تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاري

جلد ۴

شارح: مولانا ظهورالباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه (رجسٹرڈ) قصه خوانی پشاور پاکستان

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحيح البخاری

جلد ۴ پاره ۱۶ تا ۲۰


شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین دُرانی

نظر ثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری



تاج کتب خانه رجسٹرڈ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454




C-20

# تاج البخاري پاره ۱۶ دمضامینو فهرست


| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۱. | غزوات | ۲۴۹۴ |
| ۲. | د بدر مقتولینو باره کښې د نبي کریمؐ پیشین ګوئي | ۲۴۹۴ |
| | د غزوه بدر واقعه | ۲۴۹۷ |
| | د الله تعالی ارشاد چه "هغه وخت تاسو رایاد کړئ کله چه تاسو خپل پروردګارته فریاد کولو | ۲۴۹۸ |
| ۵. | باب | ۲۵۰۰ |
| ۶. | یو خو اصحاب بدر | ۲۵۰۰ |
| ۷. | د قریشو کافرانو عُتبه، شیبه، ولید او ابوجهل بن هشام د پاره د حضورؐ ښیرے او د هغوئ هلاکت | ۲۵۰۲ |
| ۸. | د ابو جهل قتل | ۲۵۰۲ |
| ۹. | د بدر په جنګ کښې د شریکېدونکو فضیلت | ۲۵۱۰ |
| ۱۰. | باب | ۲۵۱۳ |
| ۱۱. | په جنګ بدر کښې د فرښتو شرکت | ۲۵۱۹ |
| ۱۲. | باب | ۲۵۲۰ |
| ۱۳. | کومو حضراتو چه په جنګ بدر کښې شرکت کړے وو د هغوئ بالترتیب نومونه | ۲۵۳۶ |
| ۱۴. | د بنو نضیر یهودیانو واقعه | ۲۵۳۸ |
| ۱۵. | د کعب بن اشرف قتل | ۲۵۴۴ |
| ۱۶. | د ابو رافع عبدالله بن ابي حقیق قتل | ۲۵۴۷ |
| ۱۷. | غزوه اُحد | ۲۵۵۲ |
| ۱۸. | مسلمانانوله خاص په الله باندے اعتماد لرل پکار دي | ۲۵۵۹ |
| ۱۹. | د الله تعالی ارشاد | ۲۵۶۵ |
| ۲۰. | د الله تعالی ارشاد چه "هغه وخت رایاد کړئ کوم وخت چه تاسو مخ په بره ختلئ" | ۲۵۶۷ |
| ۲۱. | د الله تعالی ارشاد "بیا الله د غم نه پس تاسو باندے راحت نازل کړو | ۲۵۶۷ |
| ۲۲. | د الله تعالی ارشاد "تاته په دے کار کښې هیڅ دخل نیشته | ۲۵۶۸ |
| ۲۳. | د اُم سلیط تذکره | ۲۵۶۹ |
| ۲۴. | د حضرت حمزه شهادت | ۲۵۷۰ |
| ۲۵. | د غزوه اُحد په موقعه چه نبي کریم ته کوم زخمونه رسیدلي وو | ۲۵۷۳ |
| ۲۶. | هغه خلق چاچه د الله او رسول په بلنه باندے لبیک اووے | ۲۵۷۵ |
| ۲۷. | کومو مسلمانانو چه په غزوه اُحد کښې شهادت حاصل کړے وو | ۲۵۷۶ |
| ۲۸. | د اُحد غر مونږ سره محبت ساتي | ۲۵۷۸ |
| ۲۹. | غزوه رجیع | ۲۵۷۹ |
| ۳۰. | غزوه خندق | ۲۵۸۹ |
| ۳۱. | غزوه احزاب نه د نبي کریمؐ واپسي | ۲۶۰۰ |
| ۳۲. | غزوه ذات الرقاع | ۲۶۰۵ |
| ۳۳. | غزوه بني المصطلق | ۲۶۱۱ |
| ۳۴. | غزوه انمار | ۲۶۱۳ |
| ۳۵. | د افک واقعه | ۲۶۱۳ |
| ۳۶. | غزوه حدیبیه | ۲۶۲۷ |
| ۳۷. | د عُکل او عُرینه قبیلے واقعه | ۲۶۳۶ |


تمت

# شپاړلسمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ؕ

## كِتَابُ الۡمَغَازِىۡ

## (دَ نبي اکرم ﷺ دَ غزاګانو بیان)

**بَاب ۱ : غَزۡوَةِ الۡعُشَيۡرَةِ اَوِ الۡعُسَيۡرَةِ** قَالَ ابۡنُ اِسۡحٰقَ اَوَّلُ مَا غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ الۡاَبۡوَاءُ ثُمَّ بُوَاطُ ثُمَّ الۡعُشَيۡرَةُ.

**باب ۱ : جنګ عشیره یا عسیره.** ابن اسحاق وائي' نبي صلي الله علیه وسلم وړمبنے د ابوآء غزا اوکړله. بیا دَ بواط بیا د عشیره.

۱ : حَدَّثَنِىۡ عَبۡدُ اللّٰهِ ابۡنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهۡبٌ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ عَنۡ اَبِىۡ اِسۡحٰقَ كُنۡتُ اِلٰى جَنۡبِ زَيۡدِ بۡنِ اَرۡقَمَ فَقِيۡلَ لَهٗ كَمۡ غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مِنۡ غَزۡوَةٍ قَالَ تِسۡعَ عَشۡرَةَ قِيۡلَ كَمۡ غَزَوۡتَ اَنۡتَ مَعَهٗ قَالَ سَبۡعَ عَشۡرَةَ قُلۡتُ فَاَيُّهُمۡ كَانَتۡ اَوَّلَ قَالَ الۡعُسَيۡرَةُ اَوِ الۡعُشَيۡرَةُ فَذَكَرۡتُ لِقَتَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ فَقَالَ الۡعُشَيۡرَةُ.

۱ : عبدالله بن محمد. وهب. شعبه. ابو اسحاق نه روایت کوي' ابو اسحاق. زید بن ارقم سره ناست وو. چا ترے تپوس اوکۀ' رسول الله صلي الله علیه وسلم څومره غزاګانے کړے دي' هغۀ جواب ورکۀ' نورلس بیا ترے تپوس اوشو' چه تاسو څو خله رسول الله صلي الله علیه وسلم سره غزاګانو کښ شرکت کړے دے' نو جواب ورکۀ' اوولسو کښ. ابو اسحاق وائي' ما تپوس اوکۀ' دَ ټولونه مخکښ کومه غزا واقع شوے وه' نو وے فرمائیل' عسیره یا عشیره. شعبه وائي' ما دا خبره د قتاده نه اوپښتۀ' نو هغۀ جواب راکۀ' عشیره.

**بَاب ۲ : ذِكۡرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ مَنۡ يُّقۡتَلُ بِبَدۡرٍ.**

**باب ۲ : دَ بدر دَ مقتولین متعلق دَ نبي اکرم صلي الله علیه وسلم فرمان.**

۲ : حَدَّثَنِىۡ اَحۡمَدُ بۡنُ عُثۡمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيۡحُ ابۡنُ مَسۡلَمَةَ حَدَّثَنَا اِبۡرٰهِيۡمُ بۡنُ يُوۡسُفَ عَنۡ اَبِيۡهِ عَنۡ اَبِىۡ اِسۡحٰقَ قَالَ حَدَّثَنِىۡ عَمۡرُو بۡنُ مَيۡمُوۡنٍ

۲ : احمد بن عثمان. شریح بن مسلمه. ابراهیم بن یوسف بن اسحاق. ابو اسحاق سبیعي نه روایت کوي' عمرو بن میمون ماته اووے' عبدالله بن مسعودؓ نه ما آوریدلے دي' دَ سعد بن معاذ او اُمیه بن خلف مینځ کښ کلکه دوستي وه. اُمیه چه به مدینے ته راتۀ' نو دَ سعد

أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ مَسْعُوْدٍ
رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حَدَّثَ عَنْ سَعْدِ
بْنِ مُعَاذٍ أَنَّهُ قَالَ كَانَ صَدِيْقًا
لِأُمَيَّةَ بْنِ خَلَفٍ وَ كَانَ أُمَيَّةُ إِذَا
مَرَّ بِالْمَدِيْنَةِ نَزَلَ عَلٰى سَعْدٍ وَ
كَانَ سَعْدٌ إِذَا مَرَّ بِمَكَّةَ نَزَلَ
عَلٰى أُمَيَّةَ فَلَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
الْمَدِيْنَةَ انْطَلَقَ سَعْدٌ مُعْتَمِرًا
فَنَزَلَ عَلٰى أُمَيَّةَ بِمَكَّةَ فَقَالَ
لِأُمَيَّةَ انْظُرْ لِيْ سَاعَةَ خَلْوَةٍ لَعَلِّيْ أَنْ
أَطُوْفَ بِالْبَيْتِ فَخَرَجَ بِهِ قَرِيْبًا
مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ فَلَقِيَهُمَا أَبُوْ
جَهْلٍ فَقَالَ يَا أَبَا صَفْوَانَ مَنْ
هٰذَا مَعَكَ فَقَالَ هٰذَا سَعْدٌ فَقَالَ لَهُ
أَبُوْ جَهْلٍ أَلَا أَرَاكَ تَطُوْفُ بِمَكَّةَ
آمِنًا وَقَدْ أَوَيْتُمُ الصُّبَاةَ وَ زَعَمْتُمْ
أَنَّكُمْ تَنْصُرُوْنَهُمْ وَ تُعِيْنُوْنَهُمْ
أَمَا وَاللّٰهِ لَوْلَا أَنَّكَ مَعَ أَبِيْ صَفْوَانَ
مَا رَجَعْتَ إِلٰى أَهْلِكَ سَالِمًا فَقَالَ
لَهُ سَعْدٌ وَ رَفَعَ صَوْتَهُ عَلَيْهِ أَمَا
وَاللّٰهِ لَئِنْ مَنَعْتَنِيْ هٰذَا لَأَمْنَعَنَّكَ
مَا هُوَ أَشَدُّ عَلَيْكَ مِنْهُ طَرِيْقَكَ
عَلَى الْمَدِيْنَةِ فَقَالَ لَهُ أُمَيَّةُ لَا
تَرْفَعْ صَوْتَكَ يَا سَعْدُ عَلٰى أَبِي
الْحَكَمِ سَيِّدِ أَهْلِ الْوَادِيْ فَقَالَ

مکان کښې به پاتې کېدو، او سعد بن معاذ چه به مکې ته
راته، نو اُميه سره به ئې قيام کولو. د هجرت نه پس چه
رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم د مکې نه تشريف
راوړلو نو سعد بن معاذ يو ځل عمرې د پاره مدينې نه
مکې ته لاړلو. او حسب سابقه اُميه سره مقيم شولو،
اووې فرمائيل: اُميه ماته څه د سکون او تنهائي وخت
اوښايه، چه زه اطمينان سره د کعبې طواف اوکړے شم،
نو اُميه د تکنه غرمې په وخت سعد خان سره که، د کور
نه اووتلو. لار کښې ابوجهل دواړه اوليدل، تپوس ئې
ترې اوکه اے ابو صفوان (اُميه) تاسره څوک دے. اُميه
جواب ورکه. دا سعد دے. ابوجهل، سعد طرف ته
مخاطب شو، اوونيلے، څومره بے خوفئ سره مکې کښې
ګرځې او طواف کوې، زه دې وينم. او تا دين بدلونکو
ته خپل ملک کښې اطمينان سره د اوسيدو موقعه
ورکړے ده. او د هغوي مدد او حمايت هم کوې، په
خدائے م دے قسم وي، که ته د ابو صفوان ملګرے نه
وے، نو خپل کور والو ته سلامت نه شوے واپس کيدے.
حضرت سعد ابوجهل ته اوچت آواز سره جواب ورکه،
خدائے ګواه دے، که تا زه د طواف نه منع کړم، نو ياد
ساته، زه به ستا هغه لار اونيسم، چه د دے نه به هم تاته
ګرانه شي، يعني ته به د مدينې نه د شام په طرف نه شے
تيريدے. اُميه حضرت سعد ته اووې، دا ابوالحکم د
مکې سردار دے. ده سره په مزه (رو) خبره کوه. سعد
اووے، اے اُميه، اوس زيات حمايت مه کوه، په خدائے م
دے قسم وي، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه
آوريدلے دي، چه مسلمانان به قاتل تا قتلوي. اُميه اووے،

سَعْدٌ دَعْنَا عَنْكَ يَا اُمَيَّةُ فَوَاللّٰهِ
لَقَدْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ
اِنَّهُمْ قَاتِلُوْكَ قَالَ بِمَكَّةَ قَالَ لَا
اَدْرِيْ فَفَزِعَ لِذٰلِكَ اُمَيَّةُ فَزَعًا
شَدِيْدًا فَلَمَّا رَجَعَ اُمَيَّةُ اِلٰى اَهْلِهِ
قَالَ يَا اُمَّ صَفْوَانَ اَلَمْ تَرَيْ مَا قَالَ
لِيْ سَعْدٌ قَالَتْ وَمَا قَالَ لَكَ قَالَ
زَعَمَ اَنَّ مُحَمَّدًا اَخْبَرَهُمْ اَنَّهُمْ
قَاتِلِيَّ فَقُلْتُ لَهُ بِمَكَّةَ قَالَ لَا اَدْرِيْ .
فَقَالَ اُمَيَّةُ وَاللّٰهِ لَا اَخْرُجُ مِنْ مَّكَّةَ
فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ اِسْتَنْفَرَ اَبُوْ جَهْلٍ
النَّاسَ قَالَ اَدْرِكُوْا عِيْرَكُمْ فَكَرِهَ اُمَيَّةُ
اَنْ يَّخْرُجَ فَاَتَاهُ اَبُوْ جَهْلٍ فَقَالَ يَا اَبَا
صَفْوَانَ اِنَّكَ مَتٰى مَا يَرَاكَ النَّاسُ قَدْ
تَخَلَّفْتَ وَ اَنْتَ سَيِّدُ اَهْلِ الْوَادِيْ
تَخَلَّفُوْا مَعَكَ فَلَمْ يَزَلْ بِهٖ اَبُوْ جَهْلٍ
حَتّٰى قَالَ اَمَّا اِذَا غَلَبْتَنِيْ فَوَاللّٰهِ
لَاَشْتَرِيَنَّ اَجْوَدَ بَعِيْرٍ بِمَكَّةَ قَالَ اُمَيَّةُ
يَا اُمَّ صَفْوَانَ جَهِّزِيْنِيْ فَقَالَتْ لَهٗ يَا اَبَا
صَفْوَانَ وَقَدْ نَسِيْتَ مَا قَالَ لَكَ اَخُوْكَ
الْيَثْرِبِيُّ قَالَ لَا مَا اُرِيْدُ اَنْ اَجُوْزَ
مَعَهُمْ اِلَّا قَرِيْبًا فَلَمَّا خَرَجَ اُمَيَّةُ اَخَذَ لَا
يَنْزِلُ مَنْزِلًا اِلَّا عَقَلَ بَعِيْرَهٗ فَلَمْ يَزَلْ
بِذٰلِكَ حَتّٰى قَتَلَهُ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ
بِبَدْرٍ .

آیا په مکه کښې به م قتلوي' هغهٔ اووے. زهٔ نهٔ پوهیږم.
اُمیه چه د سعد دا خبره واوریده' نو ډیر اُویریدو' کله چه
اُمیه خپل کور ته لاړو' نو وې وئیلې' اے اُم صفوان' تا د
سعد خبره واوریده. هغې اووے ولې تاته سعد څهٔ وئیلي
دي' اُمیه اووے' سعد وائي' د محمد بیان دے چه
مسلمانان به تا وژني' نو ما هغهٔ ته اووے په مکه کښې' نو
هغه اووے' زهٔ نهٔ پوهیږم' نو اُمیه قسم اوخوړو چه ذ مکې
نه به بهر ته اونه ځمې. کله چه د بدر ورځ شوه' نو
ابوجهل خپلو سړو ته اُووے چه د جنګ د پاره اُوځئ'
خپله قافله بچ کړئ. اُمیه ذ مکې نه بهرته وتل خوښ نه
کړل (ځکه چه هغه سره ذ خپل ځان ویره وَه) لیکن
ابوجهل هغه له راغې او ورته ئې اووے' تهٔ خو ددے
وادي سردار ئې. که خلق دې اوګوري چه تهٔ نهٔ اوځې
نو هیڅوک به اونه ځي. غرض دا چه ابوجهل هغه پوئې
کړو' آخر (مجبور شو) اُمیه اووے چه تهٔ په هیڅ شان نهٔ
منې (یعني ما خامخا بوځې) نو په خدائې م دے قسم وي
چه یو داسې تیزې منډې واله بن . اوبن به واخلم' چه ذ
هغې ثاني مکه کښې نهٔ وي. بیا اُمیه اُم صفوان ته اووے
چه خما د سفر سامان تیار کړه' هغې اووے' اے ابو
صفوان' آیا تا نه د مدینې واله رور (سعد) خبره هیره
شوه. هغهٔ اووے' نه' مانه' نهٔ ده هیره شوې. مګر لږ ځائې
پورې دے خلقو سره ځم. کله چه اُمیه اووتلو' نو په لار
کښې به چه چرته کوزیدلو نو اُوبن به ئې ځان سره تړلو
(یعني چه د منډې موقع د لاس نه اونه ځي) هغهٔ به برابر
داسې احتیاط کولو. حتي چه الله تعالي هغه اووژلو په
بدر کښې.

۱. د مکے خلق به شام ته تجارت د پاره تلل او د هغوی لاره به په مدينے باندے وه، چونکه د مکے د معاش دارومدار د شام پـه تجارت باندے وو په دے وجه قدرتي طور سره دا بندش به د هغوئ د مرګ او ژوند سوال جوړ شوے وو.

۲. د حضور اکرم صلي الله عليه وسلم ژبے مبارکے نه به چه کوم الفاظ هم اووتل هغه به رښتيا وو، او قريشو د هغے د صداقت هميشه تجربه کړے وه. دا خو محض يو ضد وو چه د حضورﷺ د مخالفت نه باز نه راتلل، او د حضورﷺ دعوت نه اعراض ئے ضروري ګنړلو. شعوري طور باندے هم هغوئ پاک حضرتﷺ رښتينے ګنړلو. همدا وجه وه چه د حضورﷺ پيشين ګوئي اوريدلو سره په اُميه باندے ويره راغله او ذ مدينے نه بهر نه وتلو لوظ ئے کړے وو.

بـــــــاب۳: قِـــصَّةِ غَـــــزْوَةِ بَـــدْرٍ. وَ قَـــوْلِ اللّٰهِ تَـعَـالٰـي وَلَـقَـدْ نَـصَـرَكُمُ اللّٰـهُ بِبَـدْرٍ وَ اَنْتُـمْ اَذِلَّةٌ فَـاتَّـقُـوا اللّٰـهَ لَـعَـلَّـكُـمْ تَشْـكُـرُوْنَ اِذْ تَـقُـوْلُ لِـلْـمُـؤْمِـنِيْـنَ اَلَنْ يَّـكْـفِيَـكُـمْ اَنْ يُّـمِـدَّكُـمْ رَبُّـكُـمْ بِثَـلٰثَةِ اٰلَافٍ مِّـنَ الْـمَـلٰٓـئِـكَةِ مُـنْـزَلِيْـنَ بَـلٰـى اِنْ تَـصْـبِـرُوْا وَ تَتَّـقُـوْا وَ يَـأْتُـوْكُـمْ مِّـنْ فَـوْرِهِـمْ هٰـذَا يُـمْـدِدْكُـمْ رَبُّـكُـمْ بِـخَـمْسَةِ اٰلَافٍ مِّـنَ الْـمَـلٰـئِـكَةِ مُسَوِّمِيْـنَ وَمَـا جَـعَـلَـهُ اللّٰـهُ اِلَّا بُشْـرٰى لَـكُـمْ وَ لِتَـطْـمَـئِـنَّ قُـلُـوْبُـكُـمْ بِـهٖ وَمَـا النَّـصْـرُ اِلَّا مِـنْ عِنْدِ اللّٰهِ الْـعَـزِيْـزِ الْـحَـكِيْـمِ لِيَـقْـطَـعَ طَـرَفًـا مِّـنَ الَّـذِيْـنَ كَـفَـرُوْا اَوْ يَـكْـبِتَهُـمْ فَيَـنْـقَـلِبُـوْا خَـآئِبِيْـنَ وَ قَـالَ وَحْشِيٌّ قَـتَـلَ حَـمْـزَةَ

باب۳: ذ بـدر ذ غـزا قِصَـه. او ذ اللّٰه تعالٰي قول (سوره آل عمران) او خامخا په تحقيق سره مدد کړے وو لـه تـاسـے سره اللّٰه تعالٰي ذ بدر په جنګ کښ، څه وخت چـه تـاسـو عاجزان (کمزوري) وئ. پس اويريږئ له اللّٰه تـعـالٰي نـه، ښـائـيـري چـه تاسو شکر اوباسئ. ياد که هغه وخت (اے پيغمبرهﷺ) چه تا اوونيل مؤمنانو ته چه آيا بس به نهٔ شي ستـاسـے دا چـه مـدذ اوکړي لـه تاسے سره رب ستـاسـے په درے زره سره له ملائکو نه چه رالېږلے شوے وي لـه پـاسـه هـاؤ بـس بـه شي که تاسو صبر اوکړئ او پـرهـيـز ګـاري اوکـړئ، او راشـي دا کـافـران تاسے لره له قهـره ذ دوي نـه چه دا دے نو مدد به اُوکړي لهٔ تاسو سره رب ستـاسـے پـه پـنـځـو زرو سره له ملائکو نه چه علامه دارے بـه وي او نـهٔ وو ګـرځـولے دا مدد اللّٰه تعالٰي مګر زيـرے تـاسـو لـره او ذ پـاره ذ دے چـه په آرام شي زړونه ستاسے په دے باندے، اونهٔ دے دا مدد مګر له طرفه ذ اللّٰه تعالٰي نه چه غالب دے څښتن ذ حکمت دے ذ پاره ذ دے چـه پـريـکـړي دے يـو ټولے له هغه کسانو نه چه کافران شـوي دي او يائے خوار کړي، پس وګرځي دوئ نا اُميده لـه خپـل يـرے نـه. او وحشـي (بن حرب وحشي) اووے،

طُعَيْمَةَ بْنَ عَدِيِّ ابْنِ الْخِيَارِ يَوْمَ بَدْرٍ وَ قَوْلُهٗ تَعَالٰی وَ اِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ اِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ اَنَّهَا لَكُمْ اَلْاٰيَةَ.

حضرت حمزةؓ ذ بدر په ورځ طعیمه بن عدي بن خیار اووژلو. او اللّٰه تعالٰي اوفرمائیل، مسلمانانو، هغه وخت یاد کړئ کله چه اللّٰه تعالٰي تاسو نه ذ دوو ډلو نه ذ یوې وعده کوله یو به تاسوته ضرور ملاویږي. آخر پورې.

۳: حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ كَعْبٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ كَعْبٍؓ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ ابْنَ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ لَمْ اَتَخَلَّفْ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةٍ غَزَاهَا اِلَّا فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ غَيْرَ اَنِّيْ تَخَلَّفْتُ عَنْ غَزْوَةِ بَدْرٍ وَلَمْ يُعَاقَبْ اَحَدٌ تَخَلَّفَ عَنْهَا اِنَّمَا خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ عِيْرَ قُرَيْشٍ حَتّٰى جَمَعَ اللّٰهُ بَيْنَهُمْ وَ بَيْنَ عَدُوِّهِمْ عَلٰی غَيْرِ مِيْعَادٍ.

۳: یحیٰي بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. عبدالرحمٰن بن عبدالله بن کعب. ذ هغهٔ پلار عبدالله بن کعب، ما ذ خپل پلار کعب بن مالک نه واوریدل، هغهٔ اووې، زهٔ په هر جنګ کښې حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم سره شامل شوې یم. روستو نه یم پاتې شوې، علاوه ذ جنګ تبوک نه. پاتې شو جنګ بدر، نو هغه اتفاقیه طور سره واقع شوې وو، ذ جنګ کولو نیت نهٔ وو، نو کوم خلق چه ورستو پاتې شوې وو، په هغوي اللّٰه تعالٰي عتاب نهٔ دې فرمائیلې، هغه وخت خو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ قریشو ذ قافلې په خیال وتلې وو، خو بې طمعې، ذ مسلمانانو او ذ دُشمنانو په مینځ کښې جنګ راغې.

باب ۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّيْ مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُرْدِفِيْنَ وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰی وَلِتَطْمَئِنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ اِذْ يُغَشِّيْكُمُ النُّعَاسَ اَمَنَةً مِّنْهُ وَ يُنَزِّلُ عَلَيْكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً

باب ۴: ذ اللّٰه تعالٰي ارشاد، چه کوم وخت تاسو خپل مالک ته فریاد کولو، هغهٔ ستاسو فریاد واوریدلو. بیائې اوفرمائیل، زهٔ به مسلسل یو زر فرښتې دراولیږم، ستاسو امداد به اوکړم، او مدد چه الله اوکهٔ، هغه صرف ستاسو ذ خوشحالولو او ستاسو ذ زړهٔ ذ تسلّي ذ پاره وو، کني اصل فتح خو ذ خدائې ذ طرف نه ده، ځکه چه الله تعالٰي زبردست او حکمت واله دې. دا هغه وخت وو، چه اللّٰه تعالٰي ستاسو ذ بې خوفه کولو ذ پاره باران او

لِيُطَهِّرَكُمْ بِهٖ وَ يُذْهِبَ عَنْكُمْ رِجْزَ الشَّيْطٰنِ وَلِيَرْبِطَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ وَ يُثَبِّتَ بِهِ الْاَقْدَامَ اِذْ يُوْحِيْ رَبُّكَ اِلَى الْمَلٰٓئِكَةِ اَنِّيْ مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا سَاُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ فَاضْرِبُوْا فَوْقَ الْاَعْنَاقِ وَاضْرِبُوْا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَمَنْ يُّشَاقِقِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ.

وررولو· چه تاسونه د شيطان وسوسه لرے کړي· او ستاسو زړونه محکم شي· او تاسو ثابت قدم پاتے شئ. اے محمده! کوم وخت چه ستا رب فريښتو ته حکم ورکه· چه زه تاسو سره يم· تاسو ورشئ· د مسلمانانو زړونه مضبوط کړئ· زه د کافرو په زړونو کښې رُعب کينوم· تاسو د هغوي کردنونه او جوړ· جوړ· وهئ· د هغوي دغه سزا ده· ځکه چه هغوي الله او د هغه رسول سره مخالفت کړے دے. او څوک چه د الله او رسول مخالفت اوکړي· هغه له په دے پوهيدل پکار دي· چه د الله عذاب ډير سخت دے.

۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ مُّخَارِقِ بْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ مَسْعُوْدٍ يَّقُوْلُ شَهِدْتُّ مِنَ الْمِقْدَادِ بْنِ الْاَسْوَدِ مَشْهَدًا لَاَنْ اَكُوْنَ صَاحِبَهٗ اَحَبُّ اِلَيَّ مِمَّا عُدِلَ بِهٖ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَدْعُوْ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ فَقَالَ لَا تَقُوْلُ كَمَا قَالَ قَوْمُ مُوْسٰى اِذْهَبْ اَنْتَ وَ رَبُّكَ فَقَاتِلَا وَلٰكِنَّا نُقَاتِلُ عَنْ يَّمِيْنِكَ وَ عَنْ شِمَالِكَ وَ بَيْنَ يَدَيْكَ وَ خَلْفَكَ فَرَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَشْرَقَ وَجْهُهٗ وَ سَرَّهٗ يَعْنِيْ قَوْلَهٗ.

۴: ابو نعيم. اسرائيل بن يونس. مخارق بن عبدالله بجلي. طارق بن شهاب نه روايت کوي· ما د ابن مسعود نه واوريدل· هغه فرمائيل· ما د مقداد بن اسود نه يو داسے خبره آوريدلے ده· که هغه ماته حاصله شوے وے نو د هغے مقابله کښې به ما د دُنيا هيڅ نعمت محبوب کړے نه وو. هغه خبره داده· چه رسول الله صلي الله عليه وسلم مسلمانانو ته کافرو سره د جنګ کولو ترغيب ورکولو· دے کښې مقداد راغے· او هغه عرض اوکه· يا رسول الله· مونږ داسے نه وايو· ځنکه چه د موسيٰ قوم وئيلے وه· چه ته او ستا خدائے لاړ شئ· او عمالقه قوم سره جنګ اوکړئ· بلکه مونږ به ستاسو· ښي· ګس· او مخکښې او روستو جنګيږو. ابن مسعود فرمائي· د مقداد دے خبرے سره د رسول الله صلي الله عليه وسلم مخ مبارک اوځليدلو· او د مقداد په دے جواب حضور صلي الله عليه وسلم خوشحاله شو.

۵: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ

۵: محمد بن عبدالله بن حوشب. عبدالوهاب.

عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَوْشَبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ اَللّٰهُمَّ اَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَ وَعْدَكَ اَللّٰهُمَّ اِنْ شِئْتَ لَمْ تُعْبَدْ فَاَخَذَ اَبُوْبَكْرٍ بِيَدِهٖ فَقَالَ حَسْبُكَ فَخَرَجَ وَهُوَ يَقُوْلُ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَ يُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ.

خالد. عکرمه. عبدالله بن عباسؓ نه روايت کوي: حضورؐ د بدر په ورځ اوفرمائيل يا الله: زۀ تانه سوال کوم: چه تۀ خپله وعده او اقرار پوره کړې: يا الله: که تۀ غواړې: چه په مونږ کافر غالب شي: نو بيا به په زمکه ستا عبادت نه کيږي. حضورؐ دغه قدرې فرمائيلې وو: چه حضرت ابوبکرؓ د حضورؐ لاس مبارک اونيولو: او عرض ئې اوکړ: يا رسول الله: بس کړئ دې نه پس حضورؐ دې ونيلو سره تشريف راوړلو: عنقريب کافر به شکست اوخوري: او مخ په شا: به اوتښتي.

## بَاب ۵:

## باب ۵: (ذ دې باب څۀ سرخي نشته).

۶: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الْكَرِيْمِ اَنَّهٗ سَمِعَ مِقْسَمًا مَوْلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ يُحَدِّثُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ سَمِعَهٗ يَقُوْلُ لَا يَسْتَوِى الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ عَنْ بَدْرٍ وَّ الْخَارِجُوْنَ اِلٰى بَدْرٍ.

۶: ابراهيم بن موسي. هشام. ابن جريج. عبدالکريم بن مالک. مقسم (د عبدالله بن حارث غلام) عبدالله بن عباسؓ نه روايت کوي: حضورؐ اوفرمائيل: د دې آيت: لا يستوى القاعدون من المؤمنين: نه مراد دا دې: چه جنګ بدر کښې شامليدونکي او کورونو کښې ناسته کونکي مرتبه کښې برابريدې نشي.

## بَاب ۶: عِدَّةِ اَصْحَابِ بَدْرٍ.

## باب ۶: ذ بدر د غزا ذ شرکاؤ د تعداد بيان.

۷: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ اسْتُصْغِرْتُ اَنَا وَابْنُ عُمَرَؓ.

۷: مسلم بن ابراهيم. شعبه. ابو اسحاق. براء بن عازب نه روايت کوي: زۀ او عبدالله ابن عمر د بدر جنګ کښې واړۀ او ګڼړلې شو (يعني جنګ کښې شامل نۀ کړې شو).

۸: حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا وَهْبٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ

۸: محمود. وهب. شعبه. ابو اسحاق. حضرت براء نه روايت کوي: زۀ او ابن عمرؓ دواړه ذ بدر جنګ

الْبَرَآءِ قَالَ اسْتُصْغِرْتُ اَنَا وَ ابْنُ عُمَرَ يَوْمَ بَدْرٍ وَّ كَانَ الْمُهَاجِرُوْنَ يَوْمَ بَدْرٍ نِيِّفًا عَلٰى سِتِّيْنَ وَالْاَنْصَارُ نِيِّفًا وَّ اَرْبَعِيْنَ وَ مِائَتَيْنِ.

کښې کم عمره اګڼرلے شو. او دے جنګ کښې دَ مهاجرینو تعداد څهٔ دَ پاسه شپیته وو، او دوه سوه څلویښت څه دَ پاسه انصار وو (چه دَ مدینې باشندګان وو).

۹: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ يَقُوْلُ حَدَّثَنِيْ اَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا اَنَّهُمْ كَانُوْا عِدَّةَ اَصْحَابِ طَالُوْتَ الَّذِيْنَ جَاوَزُوْا مَعَهُ النَّهْرَ بِضْعَةَ عَشَرَ وَ ثَلٰثَ مِائَةٍ قَالَ الْبَرَاءُ لَا وَاللّٰهِ مَا جَاوَزَ مَعَهُ النَّهْرَ اِلَّا مُؤْمِنٌ.

۹: عمرو بن خالد. زهیر بن معاویه. ابو اسحاق. براء بن عازب نه روایت کوي، هغه فرمائي، ماته دَ حضورؐ اصحابو بیان اوکهٔ، چه جنګ بدر کښې حاضریدونکي دَ هغې اصحاب طالوت برابر وو، چه نهر باندې پوریوتلې وو. او هغوي دَ درې سوه لس سرو نه زیات وو. حضرت براء وائي، په خدائے مِ دے قسم وي دَ طالوت په ملګرو کښې هغه ملګري پوریوتل، کوم چه ایمان دار وو.

۱۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا اِسْرَائِيْلُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ كُنَّا اَصْحَابَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَتَحَدَّثُ اَنَّ عِدَّةَ اَصْحَابِ بَدْرٍ عَلٰى عِدَّةِ اَصْحَابِ طَالُوْتَ الَّذِيْنَ جَاوَزُوْا مَعَهُ النَّهْرَ وَلَمْ يُجَاوِزْ مَعَهُ اِلَّا مُؤْمِنٌ بِضْعَةَ عَشَرَ وَ ثَلٰثَ مِائَةٍ.

۱۰: عبداللّٰه بن رجاء. اسرائیل. ابو اسحاق. حضرت براءؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، مونږ ټولو اصحاب محمد صلي اللّٰه علیه وسلّم به خپلو کښې وئیلے، چه بدریان دَ درې سوه لس سرو نه زیات وو. او تقریباً دَ اصحاب طالوت برابر وو، او څوک چه هغهٔ سره په نهر پوریوتلے وو، هغه ټول ایماندار وو. (اللّٰه پاک دے خمونږ هم ایمان نصیب کړي. اللّٰهم آمین).

۱۱: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ. ح وَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ كُنَّا نَتَحَدَّثُ اَنَّ اَصْحَابَ بَدْرٍ ثَلٰثُ مِائَةٍ

۱۱: عبداللّٰه بن ابي شیبه. یحیي بن سعید. سفیان. ابو اسحاق. حضرت براء. محمد بن کثیر. سفیان ثوري. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازبؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، مونږ به خپلو کښې وئیلے، دَ شرکائے بدر تعداد دَ درې سوه لس نه زیات

وَ بِضْعَةَ عَشَرَ بِعِدَّةِ اَصْحَابِ طَالُوْتَ الَّذِيْنَ جَاوَزُوْا مَعَهُ النَّهْرَ وَمَا جَاوَزَ مَعَهُ اِلَّا مُؤْمِنٌ.

وو، ګويا څومره کسان چه طالوت سره په نهر پوريوتلي وو. او سه نهر هغه څوک پوريوتلي وو، چه ايماندار وو.

**باب۷: دُعَآءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى كُفَّارِ قُرَيْشٍ شَيْبَةَ وَ عُتْبَةَ وَالْوَلِيْدِ وَ اَبِيْ جَهْلِ بْنِ هِشَامٍ وَ هَلَاكِهِمْ.**

**باب۷: دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دُعا، دَ کفار قريش يعني دَ شيبه، عتبه، وليد بن عتبه او ابوجهل بن هشام دَ هلاکت دَ پاره.**

۱۲ : حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اسْتَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَعْبَةَ فَدَعَا عَلٰى نَفَرٍ مِّنْ قُرَيْشٍ عَلٰى شَيْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَالْوَلِيْدِ بْنِ عُتْبَةَ وَ اَبِيْ جَهْلِ بْنِ هِشَامٍ فَاَشْهَدُ بِاللّٰهِ لَقَدْ رَاَيْتُهُمْ قَدْ غَيَّرَتْهُمُ الشَّمْسُ وَ كَانَ يَوْمًا حَارًّا.

۱۲ : عمرو بن خالد. زهير بن معاويه. ابو اسحاق. عمرو بن ميمون. عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت کوي، هغهٔ اوفرمائيل، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم کعبې طرف ته مخ کړلو، او دَ قريشو دَ څو کافرو دَ پاره ئې بددُعا اوکړله، يعني شيبه، عتبه، وليد او ابوجهل بن هشام دَ پاره. حضرت ابن مسعودؓ فرمائي، خدائې ګواه دې، ما دا ټول دَ بدر په ورځ په ميدان کښې پراته اوليدل، چه دَ نمر دَ ګرمي په وجه دَ هغوي لاشونه بدبوداره شوې وو. او په هغه ورځ سخته ګرمي وه.

**باب۸: قَتْلِ اَبِيْ جَهْلٍ.**

**باب۸: دَ ابوجهل دَ قتل بيان.**

۱۳ : حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ اَخْبَرَنَا قَيْسٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ اَتٰى اَبَا جَهْلٍ وَّ بِهٖ رَمَقٌ يَّوْمَ بَدْرٍ فَقَالَ اَبُوْ جَهْلٍ هَلْ اَعْمَدُ مِنْ رَّجُلٍ قَتَلْتُمُوْهُ.

۱۳ : ابن نمير. ابو اسامه. اسمٰعيل. قيس. عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت کوي، هغه دَ بدر په ورځ ابوجهل له هغه وخت راغې، چه دَ هغهٔ ساه په ختو وه، ابوجهل، ابن مسعودؓ ته اووې، څهٔ عجيبه خبره ده، چه خما په شان سړې دې خلقو اَووژلو. کني خما نه به لوئې څوک وي چه هغه تاسو وژلې وي.

۱۴ : حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ

۱۴ : عمرو بن خالد. زهير. سليمان تيمي.

خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَّنْظُرُ مَا صَنَعَ اَبُوْ جَهْلٍ فَانْطَلَقَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ فَوَجَدَهٗ قَدْ ضَرَبَهُ ابْنَا عَفْرَآءَ حَتّٰى بَرَدَ قَالَ اَنْتَ اَبُوْجَهْلٍ قَالَ فَاَخَذَ بِلِحْيَتِهٖ قَالَ وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوْهُ اَوْ رَجُلٍ قَتَلَهٗ قَوْمُهٗ قَالَ اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ اَنْتَ اَبُوْ جَهْلٍ.

حضرت انسؓ نه روایت کوي، رسول د خدائے اوفرمائیل، څوک دے، چه دا معلومه کړي، چه د ابوجهل څه حال شو. نو عبدالله بن مسعودؓ لاړلو، اووے لیدل، چه د عفراء دواړو ځامنو، ابوجهل دومره سخت وهلے دے، چه هغه سلګئے وهي، ابن مسعودؓ ږ کیرے نه اونیولو، او ورته ئے اووے، آیا ته ابوجهل ئے، هغهٔ اووے، آیا دا څه غټه خبره ده، چه یو سړے ږ هغهٔ قوم قتل کړلو. یعني ږ هغے سړي نه لوئے څوک کیدے شي چه هغه ږ برادرئ خلقو قتل کړلو، ګویا دا څهٔ بده خبره نهٔ ده. احمد بن یونس چه د بخاري شیخ دے: انت ابوجهل: روایت کوي.

۱۵: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ سُلَيْمٰنَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ مَنْ يَّنْظُرُ مَا فَعَلَ اَبُوْ جَهْلٍ فَانْطَلَقَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ فَوَجَدَهٗ قَدْ ضَرَبَهُ ابْنَا عَفْرَآءَ حَتّٰى بَرَدَ فَاَخَذَ بِلِحْيَتِهٖ فَقَالَ اَنْتَ اَبَا جَهْلٍ قَالَ وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلَهٗ قَوْمُهٗ اَوْ قَالَ قَتَلْتُمُوْهُ.

۱۵: محمد بن مثنى. ابن ابي عدي. سلیمان تیميؒ نه روایت کوي، حضور صلي الله علیه وسلّم ږ بدر په ورځ اوفرمائیل، ږ ابوجهل ږ حال به ماله څوک خبر راوړي. دے آوریدو سره عبدالله مسعودؓ لاړلو، اووے لیدل، چه د عفراء ځامنو ابوجهل په وهلو وهلو بے ذمه کړے دے، هغهٔ ابوجهل د کیرے نه اونیولو، او ورته ئے اووے آیا هغه ابوجهل ته ئے هغهٔ جواب ورکه، خما نه لوئے سړے څوک کیدے شي، چه هغه د هغهٔ قوم یا تاسو خلقو هلاک کړلو.

۱۶: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى اَخْبَرَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ اَخْبَرَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ نَحْوَهٗ.

۱۶: محمد بن مثني. معاذ بن معاذ. سلیمان تیمي. انس بن مالک نه هم ددے حدیث په شان روایت کړے دے.

۱۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِؒ قَالَ كَتَبْتُ عَنْ يُوْسُفَ ابْنِ الْمَاجِشُوْنِؒ عَنْ صَالِحِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ

۱۷: علي بن عبدالله مدیني. یوسف بن ماجشون. صالح بن ابراهیم. ابراهیم. حضرت عبدالله

اَبِیْهِ عَنْ جَدِّهٖ فِیْ بَدْرٍ یَعْنِیْ حَدِیْثَ ابْنَیْ عَفْرَآءَ.

۱۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الرَّقَاشِیُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ اَبِیْ یَقُوْلُ حَدَّثَنَا اَبُوْ مِجْلَزٍ عَنْ قَیْسِ بْنِ عُبَادٍ عَنْ عَلِیِّ بْنِ اَبِیْ طَالِبٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهٗ قَالَ اَنَا اَوَّلُ مَنْ یَجْثُوْا بَیْنَ یَدَیِ الرَّحْمٰنِ لِلْخُصُوْمَةِ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ وَ قَالَ قَیْسُ بْنُ عُبَادٍ وَّ فِیْهِمْ اُنْزِلَتْ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوْا فِیْ رَبِّهِمْ قَالَ هُمُ الَّذِیْنَ تَبَارَزُوْا یَوْمَ بَدْرٍ حَمْزَةُ وَ عَلِیٌّ وَ عُبَیْدَةُ اَوْ اَبُوْ عُبَیْدَةَ بْنُ الْحٰرِثِ وَ شَیْبَةُ بْنُ رَبِیْعَةَ وَ عُتْبَةُ وَالْوَلِیْدُ بْنُ عُتْبَةَ.

۱۹: حَدَّثَنَا قَبِیْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ عَنْ اَبِیْ هَاشِمٍ عَنْ اَبِیْ مِجْلَزٍ عَنْ قَیْسِ بْنِ عُبَادٍ عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ قَالَ نَزَلَتْ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوْا فِیْ رَبِّهِمْ فِیْ سِتَّةٍ مِّنْ قُرَیْشٍ عَلِیٍّ وَ حَمْزَةَ وَ عُبَیْدَةَ بْنِ الْحَارِثِ وَ شَیْبَةَ بْنِ رَبِیْعَةَ وَ عُتْبَةَ بْنِ رَبِیْعَةَ وَالْوَلِیْدِ بْنِ عُتْبَةَ.

۲۰: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِیْمَ الصَّوَّافُ حَدَّثَنَا یُوْسُفُ بْنُ یَعْقُوْبَ کَانَ یَنْزِلُ فِیْ بَنِیْ ضُبَیْعَةَ وَهُوَ

بن عوف نه دا قصه روایت کړې ده.

۱۸: محمد بن عبدالله رقاشي. معتمر بن سلیمان. ابو مجلز (لاحق بن حمید) قیس بن عباد. حضرت علي بن ابي طالب نه روایت کوي' ذ قیامت په ورځ به زهٔ ذ ټولونه مخکښې ذ خپل خدائې په مخکښې ذ جګړې ذ ختمولو ذ پاره دوزانو (په زنګونونو) کینم. قیس بن عباد وائي' چه ذ سورهٔ حج دا آیت دې سلسله کښې نازل شوې دې: هٰذان خصمان اختصموا فی ربهم: دا دوه فریقه دي' ذ یو بل دشمن' چه ذ خپل پروردګار په مقدمه کښې په جګړه شو. ذ دې دواړو فریقو نه مراد هغه خلق دي' چه ذ جنګ ذ پاره ذ بدر په ورځ وتلې وو' یعني یو طرف ته حمزه' علي او عبیده یا ابو عبیده بن حارث او دوئیم طرف ته شیبه او عتبه ذ ربیعه ځامن او ولید بن عتبه.

۱۹: قبیصه. سفیان. ابو هاشم. ابو مجلز. قیس بن عباد. حضرت ابوذر غفاریؓ نه روایت کوي' هغهٔ اوفرمائیل. ذ سورهٔ حج دا آیت: هٰذٰنِ خَصْمٰنِ اخْتَصَمُوْا فِیْ رَبِّهِمْ: ذ دوو فریقو په حق کښې نازل شو' چه آخره پورې د یو بل دشمنان وو' او هغه شپږ دي: (۱) عليؓ (۲) حمزهؓ (۳) عبیده بن حارثؓ اول فریق دې. او (۱) شیبه بن ربیعه (۲) عتبه بن ربیعه (۳) ولید بن عتبه' دا دوئیم فریق دې.

۲۰: اسحق بن ابراهیم صواف. یوسف بن یعقوب (چه د بني ضبیعه په محله کښې اوسیدلو او د بني سدوس غلام وو)

مَوْلَى لِبَنِيْ سَدُوْسَ حَدَّثَنَا سُلَيْمٰنُ التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ قَالَ عَلِيٌّ فِيْنَا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ هٰذٰنِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوْا فِيْ رَبِّهِمْ.

سليمان. ابو مجلز. حضرت قيس بن عباد نه روايت كوي، هغه فرمائي، حضرت علي اوفرمائيل، دا آيت: هٰذٰنِ خصمان الخ: خمونږ په حق كښې نازل شوے دے.

۲۱: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ اَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ اَبِيْ هَاشِمٍ عَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ سَمِعْتُ اَبَا ذَرٍّ يُقْسِمُ لَنَزَلَتْ هٰٓؤُلَاءِ الْاٰيَاتِ فِيْ هٰٓؤُلَاءِ الرَّهْطِ السِّتَّةِ يَوْمَ بَدْرٍ نَحْوَهُ.

۲۱: يحيي بن جعفر. وكيع بن جراح. سفيان. ابو هاشم. ابو مجلز. قيس بن عباد نه روايت كوي، هغه فرمائي، ما حضرت ابوذر غفاري نه قسم سره آوريدلے دي، چه دا آيتونه كوم چه مخكښې ذكر شو، دَ بدر په ورځ دَ شپږو سړو په حق كښې نازل شولو، چه دَ بدر په ورځ مقابل شولو، او دَ هغوي نومونه مخكښې ذكر شولو

۲۲: حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ هَاشِمٍ عَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا ذَرٍّ يُقْسِمُ قَسَمًا اِنَّ هٰذِهِ الْاٰيَةَ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوْا فِيْ رَبِّهِمْ نَزَلَتْ فِي الَّذِيْنَ بَرَزُوْا يَوْمَ بَدْرٍ حَمْزَةَ وَ عَلِيٍّ وَّ عُبَيْدَةَ بْنِ الْحَارِثِ وَ عُتْبَةَ وَ شَيْبَةَ ابْنَيْ رَبِيْعَةَ وَالْوَلِيْدِ بْنِ عُتْبَةَ.

۲۲: يعقوب بن ابراهيم. هشيم. ابو هاشم. ابو مجلز. حضرت قيس نه روايت كوي، هغهٔ اوفرمائيل، ما دَ ابوذر نه قسم خوړلو سره آوريدلے دي، چه دا آيت: هٰذان خصمان الخ دَ هغے خلقو په حق كښې نازل شوے دے، چه دَ بدر په ورځ جنګ ته راكوز شوے وو، حضرت حمزه، علي، او عبيده دَ مسلمانانو دَ طرف نه او عتبه او شيبه چه دَ ربيعته خامن وو، او وليد بن عتبه دا دَ كافرو دَ طرف نه وو.

۲۳: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ سَعِيْدٍ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ سَاَلَ رَجُلٌ الْبَرَآءَ وَ اَنَا اَسْمَعُ قَالَ اَشَهِدَ عَلِيٌّ بَدْرًا قَالَ بَارَزَ وَ ظَاهَرَ.

۲۳: احمد بن سعيد. ابو عبدالله. اسحاق بن منصور. ابراهيم بن يوسف. دَ خپل پلار نه. هغهٔ دَ ابو اسحاق سبيعي نه روايت كوي، هغهٔ اوفرمائيل، يو سړي د حضرت براء رضي الله عنه نه تپو اوكړو چه آيا حضرت علي په جنګ بدر كښې شريک وو؟ هغه اووے چه مقابله ئے كړے وه او غالب شوے وو.

۳۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي يُوسُفُ بْنُ الْمَاجِشُوْنُ عَنْ صَالِحِ بْنِ إِبْرٰهِيْمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ كَاتَبْتُ أُمَيَّةَ بْنَ خَلَفٍ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ فَذَكَرَ قَتْلَهُ وَ قَتْلَ ابْنِهِ فَقَالَ بِلَالٌ لَا نَجَوْتُ اِنْ نَّجَا أُمَيَّةُ.

۳۴ : عبدالعزیز بن عبدالله. یوسف بن ماجشون. صالح بن ابراهیم. عبدالرحمن بن عوف نه روایت کوي' څما او د اُمیه بن خلف مینځ کښې (د جائیداد متعلق) یوه تحریري معاهده اوشوه. بیا هغه ذ بدر په ورځ د امیه او د هغه ذ څوي د قتل کیدو واقعه بیان کړه' او بلالؓ اووے' چه ذ بدر په ورځ' که اُمیه بن خلف بچ شولو' نو زۀ هیڅ خوشحالي نۀ محسوسومه.

۳۵ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ بْنُ عُثْمَانَ قَالَ اَخْبَرَنِي اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَرَأَ وَالنَّجْمِ فَسَجَدَ بِهَا وَ سَجَدَ مَنْ مَّعَهُ غَيْرَ اَنَّ شَيْخًا اَخَذَ كَفًّا مِّنْ تُرَابٍ فَرَفَعَهُ اِلٰى جَبْهَتِهِ فَقَالَ يَكْفِيْنِيْ هٰذَا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَلَقَدْ رَاَيْتُهُ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا.

۳۵ : عبدان بن عثمان. عثمان بن جبله. شعبه. ابو اسحاق سبیعي. اسود بن یزید. عبدالله بن مسعودؓ نه روایت کوي' هغۀ اووے حضور صلي الله علیه وسلّم سورۀ والنجم اولوست. او هغے کښې ئے سجده اوکړله. حضورؐ سره چه څوک ملګري وو' هغے ټولو هم سجده اوکړله' خو یو امیه بن خلف سجده اونۀ کړله' بلکه لږه شان خاوره ئے ذ زمکے نه اوچته کړه اوپه خپل تندي ئے اولږوله' اووے وئیل' بس ما ذ پاره دا کافي ده. ابن مسعود فرمائي' ما هغه ذ بدر په ورځ ذ کفر په حالت قتل شوے بیامُند.

۲۶ : أَخْبَرَنِيْ إِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ كَانَ فِي الزُّبَيْرِؓ ثَلٰثُ ضَرَبَاتٍ بِالسَّيْفِ اِحْدَاهُنَّ فِيْ عَاتِقِهِ قَالَ اِنْ كُنْتُ لَاُدْخِلُ اَصَابِعِيْ فِيْهَا قَالَ ضُرِبَ ثِنْتَيْنِ يَوْمَ بَدْرٍ وَّ وَاحِدَةً يَوْمَ الْيَرْمُوْكِ

۲۶ : ابراهیم بن موسي. هشام بن یوسف. معمر. هشام. عروه بن زبیرؓ نه روایت کوي' ذ زبیرؓ په جسم ذ توره درے ژور زخمونه وو. هغے کښې یو په اوږه موجود وو' ما به خپله ګوته په هغے (زخم) کښې ورخکته کوله. عروه وائي' هغے کښې دوه زخمونه خو ذ بدر په ورځ ورته لږیدلے وو. او دریم زخم ورته جنګ یرموک کښې راغلے وو. عروهؓ وائي کوم وخت چه عبدالله بن زبیرؓ شهید شولو نو عبدالملک ټپوس اوکه'

قَالَ عُرْوَةُ وَ قَالَ لِيْ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَرْوَانَ حِيْنَ قُتِلَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الزُّبَيْرِؓ يَا عُرْوَةُ هَلْ تَعْرِفُ سَيْفَ الزُّبَيْرِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَمَا فِيْهِ قُلْتُ فِيْهِ فَلَّةٌ فُلَّهَا يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ صَدَقْتَ. بِهِنَّ فُلُوْلٌ مِنْ قِرَاعِ الْكَتَائِبِ. ثُمَّ رَدَّهُ عَلٰى عُرْوَةَؓ قَالَ هِشَامٌ فَاَقَمْنَاهُ بَيْنَنَا ثَلٰثَةَ الْاٰفٍ وَّ اَخَذَهُ بَعْضُنَا وَلَوَدِدْتُ اَنِّيْ كُنْتُ اَخَذْتُهُ.

عروهؒ ته د خپل پلار زبير توره پيژندلے شے. ما اووے، او، هغه تپوس اوکه، څه علامت ئے اوښايه، ما ورته اووے، د بدر په ورځ د هغے يو دهار د يو ځائے نه مات شوے وو. نو هغه اووے، واقعي ته رِښتيا وائے، دے نه پس ئے دا مصرع اووے (ترجمه) جنګ کولو، کولو کښِ د هغوي د تورو مخونه مات شوے دي. دے نه پس عبدالملک کوم وخت چه مونږ د هغے د قيمت مشوره اوکړله، نو د درے زرو اندازه مو اولږوله، مونږ نه يو سړي هغه توره په درے زره درهمه په بيع واخسته. کاش چه ما هغه آخستے وے.

۲۷: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ عَنْ عَلِيٍّؓ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كَانَ سَيْفُ الزُّبَيْرِ مُحَلًّى بِفِضَّةٍ قَالَ هِشَامٌ وَّ كَانَ سَيْفُ عُرْوَةَ مُحَلًّى بِفِضَّةٍ.

۲۷: فروه. علي. هشام. حضرت عروه نه روايت کوي، هغه اوفرمائيل، زما د پلار حضرت زبيرؓ په توره د چاندي کار شوے وو. هشام وائي، زما د پلار، عروه توره هم چاندي سره مُزيَن شوے وه، شايد چه دا د زبيرؓ توره وه.

۲۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا هِشَامُ ابْنُ عُرْوَةَؓ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ اَصْحَابَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا لِلزُّبَيْرِ يَوْمَ الْيَرْمُوْكِ اَلَا تَشُدُّ فَنَشُدُّ مَعَكَ فَقَالَ اِنِّيْ اِنْ شَدَدْتُ كَذَبْتُمْ فَقَالُوْا لَا نَفْعَلُ فَحَمَلَ عَلَيْهِمْ حَتّٰى شَقَّ صُفُوْفَهُمْ فَجَاوَزَهُمْ وَمَا مَعَهُ اَحَدٌ ثُمَّ رَجَعَ مُقْبِلًا فَاَخَذُوْا بِلِجَامِهٖ فَضَرَبُوْهُ ضَرْبَتَيْنِ عَلٰى

۲۸: احمد بن محمد. عبدالله. هشام. خپل پلار حضرت عروه نه روايت کوي، د جنګ يرموک په ورځ صحابه کرامؓ زما پلار زبيرؓ ته اووے، څے چه ځو، اوپه کافرو حمله اوکړو، زبيرؓ ورته اووے، ما سره آنديښنه ده، چه تاسو به ماسره ملګرتيا کښِ ټينګ پاتے نهٔ شے. هغوي ورته اووے مونږ به ضرور درسره ملګرے يو (چه ئکر اونهٔ کړے) آخر حضرت زبيرؓ حمله اوکړله، د کافرو صفونو څيرولو سره تړے په بل مخ اووتلو، او هغه سره هيڅوک قائم پاتے نهٔ شو. بيا چه هغه راواپس شو، نو کافرو د هغهٔ د آس واګے اونيولے. او د حضرت زبيرؓ په اوږه ئے دوه ګزاره اوکړل. د دے ګزارونو په مينځ

عَاتِقِهِ بَيْنَهُمَا ضَرْبَةٌ ضُرِبَهَا يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ عُرْوَةُ كُنْتُ أُدْخِلُ أَصَابِعِيْ فِيْ تِلْكَ الضَّرَبَاتِ أَلْعَبُ وَ أَنَا صَغِيْرٌ قَالَ عُرْوَةُ وَ كَانَ مَعَهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الزُّبَيْرِ يَوْمَئِذٍ وَهُوَ ابْنُ عَشْرِ سِنِيْنَ فَحَمَلَهُ عَلٰى فَرَسٍ وَّ وَكَّلَ بِهٖ رَجُلًا.

کښې هغه زخم هم وو، چه هغه ته ذ بدر په ورځ رسیدلے وو. عروه وائي، کوم وخت چه زهٔ ورو کے ووم، نو ذ هغے زخمونو په غار کښې به ما ګوتې وردننه کړے او هغې سره به م لوبے کولے. عروه وائي، یرموک کښې زبیرؓ سره عبدالله بن زبیرؓ هم وو، حالانکه ذ هغهٔ عمر دغه وخت لس (یا دولس) کاله وو. زبیرؓ هغه په آس سور کړلو، او ذ یو سړي په حفاظت کښې ئے ور کړے وو.

۲۹ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ سَمِعَ رَوْحَ ابْنَ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ أَبِيْ عَرُوْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ ذَكَرَ لَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍؓ عَنْ أَبِيْ طَلْحَةَ أَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ يَوْمَ بَدْرٍ بِأَرْبَعَةٍ وَّ عِشْرِيْنَ رَجُلًا مِّنْ صَنَادِيْدِ قُرَيْشٍ فَقُذِفُوْا فِيْ طَوِيٍّ مِنْ أَطْوَاءِ بَدْرٍ خَبِيْثٍ مُّخْبِثٍ وَّ كَانَ إِذَا ظَهَرَ عَلٰى قَوْمٍ أَقَامَ بِالْعَرْصَةِ ثَلٰثَ لَيَالٍ فَلَمَّا كَانَ بِبَدْرٍ الْيَوْمَ الثَّالِثَ أَمَرَ بِرَاحِلَتِهٖ فَشُدَّ عَلَيْهَا رَحْلُهَا ثُمَّ مَشٰى وَاتَّبَعَهُ أَصْحَابُهٗ وَ قَالُوْا مَا نُرٰى يَنْطَلِقُ إِلَّا لِبَعْضِ حَاجَتِهٖ حَتّٰى قَامَ عَلٰى شَفَةِ الرَّكِيِّ فَجَعَلَ يُنَادِيْهِمْ بِأَسْمَائِهِمْ وَ أَسْمَاءِ اٰبَائِهِمْ يَا فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ وَ يَا فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ أَيَسُرُّكُمْ أَنَّكُمْ أَطَعْتُمُ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَإِنَّا قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُّمْ مَّا وَعَدَ رَبُّكُمْ

۲۹ : عبدالله بن محمد. روح بن عباده. سعید بن ابي عروبه. حضرت قتادهؓ نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دے، حضرت انسؓ ذ ابو طلحه نه روایت اوکهٔ، چه رسول اکرم صلي الله علیه وسلّم ذ بدر په ورځ ذ مکے ذ څلیریشت سردارانو ذ لاشونو ذ بدر په یو ګنده کوهي کښې ذ غرځولو حکم ورکړلو، او ذ رسول پاک صلي الله علیه وسلّم عادت وو چه کله به په یو قوم غالب شولو، نو درے شپے به ئے هلته قیام کولو، نو بدر کښې ئے هم درے ورځے قیام اوکړلو. په دریمه ورځ ذ حضورؐ حکم سره په اوښه زین کَس کړے شو. بیا حضورؐ روان شو، صحابهؓ ۇ خیال اوکهٔ، چه حضورؐ څهٔ حاجت ذ پاره ځي. اصحاب ورسره شو تلو، تلو کښې د هغے کوهي غاړے ته تشریف یوړلو، اودریدلو، او قتل شوے قریشو ته ئے نوم په نوم آواز اوکړلو، او دا شان ئے اوفرمائیل، چه اے فلان ابن فلان او اے فلان ابن فلان اوس تاته دا ښهٔ معلومیږي، چه تا ذ الله تعالٰي او ذ هغهٔ ذ رسول حکم منلے وے. مونږ سره چه څمونږ رب کومه وعده کړے وه، هغه مونږ حقه بیامنده نو تاسو هم د خپل رب وعده حقه بیاموندهٔ؟

خـفًا قَالَ فقَالَ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا تُـكَـلِّـمُ مِنْ اَجْسَادٍ لَّا اَرْوَاحَ لَهَا فقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّـذِىْ نَـفْـسُ مُـحَمَّدٍ بِيَدِهٖ مَا اَنْتُمْ بِاَسْمَعَ لِـمَا اَقُوْلُ مِنْهُمْ قَالَ قَتَادَةُ اَحْيَاهُـمُ اللّٰـهُ حَتّٰى اَسْمَعَهُمْ قَوْلَهٗ تَـوْبِيْـخًا وَّ تَصْغِيْرًا وَ نِقْمَةً وَّ حَسْرَةً وَّ نَدَمًا.

حضـرت طـلـحـهٔ وانـي: دے آوریدو سره حضرت عمرؓ عـرض اوكـه: يا رسول الله! تاسو داسے لاشونو ته خطاب كـوئے، چه هـغـوي كښ څه ساه نشته دے. حضورؐ ورته اوفـرمائيل، په هغه ذات م دے قسم وي چه د هغهٔ په لاس كښ د مـحـمـدؐ ساه ده، زهٔ چه كومے خبرے كوم، تاسو هـغـه د هغوي نه زياتے نه شے آوريدے. قتاده اووے، چه الله هغه هغه وخت ژوندي كړي وو، چه هغوي ته د خپل ذلت او رسوائي او د هغے سزا نه شرم ورشي.

۳۰: حَـدَّثَـنَا الْحُمَيْدِىُّ حَدَّثَنَا سُـفْيَـانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عَطَآءٍ عَنِ ابْـنِ عَبَّـاسٍ اَلَّـذِيْـنَ بَـدَّلُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ كُفْرًا قَالَ هُمْ وَاللّٰهِ كُفَّارُ قُرَيْشٍ قَالَ عَـمْـرٌو وَهُـمْ قُـرَيْشٌ وَّ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَةُ اللّٰهِ وَ اَحَلُّوْا قَـوْمَهُـمْ دَارَ الْبَـوَارِ قَـالَ النَّـارَ يَوْمَ بَدْرٍ.

۳۰: حـمـيـدي. سـفـيـان بـن عـيـيـنـه. عطاء بن ابي رباح فرمائي، ابن عباسؓ دَ: اَلَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ كُفْرًا: دَ تـفـسـيـر پـه سـلـسـلـه كښ اوفرمائيل، مراد ددے نه كفار قريش دي. او نعمت نه مراد رسول پاک صلي الله عليه وسلم دے. عمرو بن دينار واني دے آيت كښ دَ خلقو نه مراد كفار او نعمت نه مراد ذ رسول پاک صلي الله عليه وسلم ذات مبارک دے. او دارالبوار نه مراد هغه دوزخ دے، چه هغے كښ دَ بدر په ورځ داخل كړے شو.

۳۱: حَـدَّثَـنِـي عُبَيْـدُ بْـنُ اِسْـمٰعِيْـلَ حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَـامٍ عَـنْ اَبِيْـهِ قَـالَ ذُكِرَ عِـنْـدَ عَـآئِشَةَ اَنَّ ابْـنَ عُـمَـرَ رَفَـعَ اِلَـى النَّبِـيِّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْـمَيِّـتَ يُـعَـذَّبُ فِـىْ قَبْـرِهٖ بِبُكَآءِ اَهْـلِـهٖ فَـقَـالَـتْ اِنَّـمَـا قَـالَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ اِنَّـهٗ لَيُـعَـذَّبُ بِـخَـطِيْـئَـتِـهٖ وَ ذَنْبِـهٖ وَ اِنَّ اَهْـلَـهٗ لَيَبْـكُـوْنَ عَـلَـيْـهِ الْاٰنَ قَالَتْ

۳۱: عبيـد بـن اسـمـاعيـل. ابـو اسامـه. هشام بن عـروه نـه روايـت كـوي، هغهٔ اوفرمائيل، د بي بي عائشےؓ مـخـكـښ د حـضـور اكـرم صـلـي الله عليه وسلم ذ دے ارشـاد ذكر راغـے، چه په مړو د هغوي د عزيزانو ذ ژړا په وجـه عـذاب كـيـږي. او ابـن عمرؓ دا حديث رسول اكرم صلـے الله عليه وسلم ته رسيدلے بنائي، نو بي بي عائشےؓ اوفـرمـائـيـل، رسـول اكـرم صـلـي الله عليه وسلم خو دا فـرمـائـيـلـے دي، پـه مـړي ذ خپلو خطاګانو او ګناهونو په وجـه عـذاب كـيږي، او ذ هغهٔ عزيزان ژړا كوي. يا بالكل داسے مضمون دے، لكه چه ابن عمرؓ دا واني، چه حضور

وَ ذَاكَ مِثْلُ قَوْلِهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْقَلِيْبِ وَ فِيْهِ قَتْلٰى بَدْرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ فَقَالَ لَهُمْ مَا قَالَ اِنَّهُمْ لَيَسْمَعُوْنَ مَا اَقُوْلُ اِنَّمَا قَالَ اِنَّهُمُ الْاٰنَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّ مَا كُنْتُ اَقُوْلُ لَهُمْ حَقٌّ ثُمَّ قَرَاَتْ اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى وَمَا اَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَّنْ فِي الْقُبُوْرِ تَقُوْلُ حِيْنَ تَبَوَّءُوْا مَقَاعِدَهُمْ مِنَ النَّارِ.

اكرم صلي الله عليه وسلّم د مشركين بدر د لاشونو كندے سره اودريدلو، او حضورؐ اوفرمائيل، چه هغوي خما خبرے آوري، حالانكه حضورؐ فرمائيلے وو، چه اوس هغوي ته معلومه شوه، چه ما څۀ هغوي ته ونيلے هغه رينښتيا او حق وو. دے نه پس بي بي عائشےؓ د سورۀ نمل دا آيت تلاوت كړلو (ترجمه) اے پيغمبره، ته مړو ته خپله خبره نۀ شے آورولے. او اے پيغمبره ته قبر والو ته خپله خبره نۀ شے آورولے. حضرت عروه وائي، د بي بي عائشےؓ مراد د دے آيت د لوستونه دا وو، چه هر كله هغوي ته دوزخ كښ خپله ټيكاؤنړه حاصله شي.

۳۲: حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ وَقَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَلِيْبِ بَدْرٍ فَقَالَ هَلْ وَجَدْتُّمْ مَا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا ثُمَّ قَالَ اِنَّهُمُ الْاٰنَ يَسْمَعُوْنَ مَا اَقُوْلُ فَذُكِرَ لِعَائِشَةَؓ فَقَالَتْ اِنَّمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهُمُ الْاٰنَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّ الَّذِيْ كُنْتُ اَقُوْلُ لَهُمْ هُوَ الْحَقُّ ثُمَّ قَرَاَتْ اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى حَتّٰى قَرَاَتِ الْاٰيَةَ.

۳۲: عثمان بن ابي شيبه. عبده بن سليمان. هشام. حضرت عروه نه روايت كوي، عبدالله ابن عمرؓ اوفرمائيل، رسول د خدائے د بدر په ورځ د كوهي په غاړه اودريدلو، اووے فرمائيل، آيا تاسو د خپل رب وعده رينښتنے بيامنده. بيائے اوفرمائيل، اے مشركانو، ستاسو رب چه تاسو سره كومه وعده كړے وه، بيشكه هغه تاسو بيامنده. بيائے اوفرمائيل، دا خلق دا وخت خما وينا آوري. د ابن عمرؓ دا روايت د بي بي عائشےؓ مخكښ بيان كړے شو، نو هغے اوفرمائيل، رسول د خدائے داسے فرمائيلے وو، اوس معلومه شوه، چه ما هغوي ته څه وے هغه رينښتيا وو. بيا هغے د سورۀ نمل دا آيت اولوست: اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى آخر پورے يعني اے پيغمبره، ته مړو ته نۀ شے آورولے.

## بَاب ۹: فَضْلِ مَنْ شَهِدَ بَدْرًا.

## باب ۹: د شركانے اصحاب بدر د فضيلت بيان.

۳۳: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ

۳۳: عبدالله بن محمد. معاويه بن عمرو. ابو

بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ اُصِيْبَ حَارِثَةُ يَوْمَ بَدْرٍ وَّهُوَ غُلَامٌ فَجَآءَتْ اُمُّهُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ عَرَفْتَ مَنْزِلَةَ حَارِثَةَ مِنِّيْ فَاِنْ يَّكُنْ فِي الْجَنَّةِ اَصْبِرْ وَ اَحْتَسِبْ وَ اِنْ تَكُ الْاُخْرٰى تَرٰى مَا اَصْنَعُ فَقَالَ وَيْحَكِ اَوَ هَبِلْتِ اَوَجَنَّةٌ وَّاحِدَةٌ هِيَ اِنَّهَا جِنَانٌ كَثِيْرَةٌ وَّ اِنَّهٗ فِيْ جَنَّةِ الْفِرْدَوْسِ.

اسحاق. حضرت حميدؒ نه روايت كوي، هغه اوفرمائيل، ما ذَ حضرت انسؓ نه واوريدل، حارثه بن سراقه، ذ بدر په ورځ شهيد شولو، هغه هلک وو، ذ هغهٔ مور ذ حضرت انسؓ ترور (پھوپھی) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغلله، او عرض ئے اوكهٔ، يا رسول اللّٰه، تاسوته معلومه ده، چه حارثه سره خما څومره محبت وو، اوس كه هغه جنت كښې وي، نو زهٔ به صبر كوم، او ذَ ثواب اُميد به لرم. او كه څهٔ بد خال كښې وي، نو تاسو به اُوينئے، چه زهٔ څنګه ژړا كوم. حضور اكرمؐ ورته اوفرمائيل، افسوس ئهٔ ليونئے شوے ئے، او آيا تهٔ ذَ اللّٰه يو جنت ګڼړے. جنتونه خو ډير دي او ستا خوئے حارثه خو جنت فردوس كښې دے.

۳۴: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اِدْرِيْسَ قَالَ سَمِعْتُ حُصَيْنَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ بَعَثَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبَا مَرْثَدٍ وَّالزُّبَيْرَ وَ كُلُّنَا فَارِسٌ قَالَ انْطَلِقُوْا حَتّٰى تَأْتُوْا رَوْضَةَ خَاخٍ فَاِنَّ بِهَا امْرَاَةً مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ مَعَهَا كِتَابٌ مِنْ حَاطِبِ بْنِ اَبِيْ بَلْتَعَةَ اِلَى الْمُشْرِكِيْنَ فَاَدْرَكْنَاهَا تَسِيْرُ عَلٰى بَعِيْرٍ لَّهَا حَيْثُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا الْكِتَابَ فَقَالَتْ مَا مَعَنَا كِتَابٌ

۳۴: اسحٰق بن ابراهيم. عبداللّٰه بن ادريس. حصين بن عبدالرحمٰن. سعد بن عبيده. عبدالرحمٰن سلمي نه روايت كوي حضرت عليؓ اوفرمائيل، رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم زهٔ او ابو مرثدؓ روضه خاخ طرف ته اوليږلو، اووے فرمائيل، په اَس لاړ شئے هلته به تاسو يوه مشركه ښځه بيامومئے (نوم ئے ساره وو) هغے سره ذَ حاطب بن اَبي بلتعه يو خط دے، چه هغه مشركين مكه ته ليكلے دے، هغه خط راوړئے. حضرت عليؓ فرمائي كوم خائے چه حضور اكرمؐ ښودلے وو، هلته مونږ هغه ښځه اونيوله، هغه په اوښ سوره وه، مونږ ترے خط اوغښتلو هغے اووے، ماسره څهٔ خط نشته. مونږ ذَ هغے اُوښ كينولو، تالاشي مو واخسته، خو څه خط مو ورسره بيانهٔ موندلو، آخر مونږ ورته اووے ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خبره هيڅ كله غلطهٔ كيدے نشي، خط

فَتَتَّبَعْنَاهَا فَالْتَمَسْنَا فَلَمْ نَرَ كِتَابًا فَقُلْنَا
مَا كَذَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَتُخْرِجَنَّ الْكِتَابَ اَوْ
لَنُجَرِّدَنَّكِ فَلَمَّا رَاَتِ الْجِدَّ اَهْوَتْ اِلٰى
حُجْزَتِهَا وَ هِيَ مُحْتَجِزَةٌ بِكِسَاءٍ
فَاَخْرَجَتْهُ فَانْطَلَقْنَا بِهَا اِلٰى رَسُوْلِ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ
عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ خَانَ اللّٰهَ وَ
رَسُوْلَهُ وَالْمُؤْمِنِيْنَ فَدَعْنِيْ فَلَاَضْرِبْ
عُنُقَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ مَا حَمَلَكَ عَلٰى مَا صَنَعْتَ قَالَ
حَاطِبٌ وَاللّٰهِ مَا بِيْ اَنْ لَا اَكُوْنَ
مُؤْمِنًا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَدْتُ اَنْ يَّكُوْنَ لِيْ
عِنْدَ الْقَوْمِ يَدٌ يَدْفَعُ اللّٰهُ بِهَا عَنْ
اَهْلِيْ وَ مَالِيْ وَ لَيْسَ اَحَدٌ مِّنْ
اَصْحَابِكَ اِلَّا لَهٗ هُنَاكَ مِنْ عَشِيْرَتِهٖ مَنْ
يَدْفَعُ اللّٰهُ بِهٖ عَنْ اَهْلِهٖ وَ مَالِهٖ فَقَالَ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ
وَلَا تَقُوْلُوْا لَهٗ اِلَّا خَيْرًا فَقَالَ عُمَرُ اِنَّهٗ
قَدْ خَانَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَالْمُؤْمِنِيْنَ
فَدَعْنِيْ فَلَاَضْرِبَ عُنُقَهٗ فَقَالَ اَلَيْسَ
مِنْ اَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ لَعَلَّ اللّٰهَ اطَّلَعَ اِلٰى
اَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ اعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ
وَجَبَتْ لَكُمُ الْجَنَّةُ اَوْ فَقَدْ غَفَرْتُ
لَكُمْ فَدَمَعَتْ عَيْنَا عُمَرَ وَ قَالَ اللّٰهُ وَ

راوکاړه، کښې مونږ دې بربنډه کوو، چه تالاشي دې
واخلو، هغې چه دومره سختي اوليده، نو د خپلې کمسې
نه ئې تهکره کښې تړلې خط راوبنکلو، او مونږ ته ئې
راکړلو، مونږ خط واخست او د حضور اکرم صلي الله
عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو. حضرت عمرؓ
عرض اوکړ، يا رسول الله، حاطب، الله، د هغهٔ رسول او
مسلمانانو سره خيانت کړې دې، اجازت راکړئې، چه
کردن ئې والوځوم، حضورؐ حاطب راوغوښتلو، او د دې
خط د ليکلو وجه ئې اوپښتله، چه دا دې څهٔ کړې دي،
حاطب عرض اوکړ، قسم په خدائے زه زړه سره په الله او
رسول ايمان لرم. د دې خط نه خما غرض صرف دا
دې، چه په قريشو خما څهٔ احسان اوشي، چه هغوي د
دې لحاظ نه خما جائيداد او بال بچ وغيره برباد نهٔ کړي
او الله د هغوي په ذريعه هغه محفوظ اوساتي ځکه چه
ستاسو د ټولو اصحابو هلته داسې رشته داران شته، چه د
هغوي په وجه ئې الله مال بچ کوي، او خما هلته
هيڅوک نشته. حضورؐ چه د حاطب بيان واوريدلو، نو
وې فرمائيل، دې رېښتيا وائي، نو دهٔ ته بد مهٔ وائې، او
مسلمان ئې کنړئي. حضرت عمرؓ بيا عرض اوکړ، يا
رسول الله، دې د الله، رسول او د مسلمانانو خائن دې،
حکم اوکړئې، چه کردن ئې والوځوم، حضورؐ ورته
اوفرمائيل، حاطب د بدر په جنګ کښې شريک وو، او
تاته نهٔ ده معلومه، چه الله بدر والو ته کتل، او وې
فرمائيل، اوس چه تاسو څنګه غواړئې، کار کوئې، ستاسو
د پاره جنت واجب شولو، يا ما تاسو اوبښلئې، نو د
حضرت عمرؓ اوښکې اوبهيدلې، او وې فرمائيل، الله او

رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ.

رسول ښهٔ پوهيږي.

**باب ۱۰ :**

**باب ۱۰ :** (دا باب بې سُرخي دے).

**۳۵: حَدَّثَنِیْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِیُّ حَدَّثَنَا اَبُوْ اَحْمَدَ الزُّبَیْرِیُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْغَسِیْلِ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ اَبِیْ اُسَیْدٍ وَّالزُّبَیْرِ بْنِ الْمُنْذِرِ بْنِ اَبِیْ اُسَیْدٍ قَالَ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَوْمَ بَدْرٍ اِذَا اَكْثَبُوْكُمْ فَارْمُوْهُمْ وَاسْتَبْقُوْا نَبْلَكُمْ.**

**۳۵:** عبدالله بن محمد جعفي. ابو احمد زبيري. عبدالرحمٰن بن غسيل. حمزه بن ابي اسيد. زبير بن منذر. حضرت ابو اسيدؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، رسول الله صلي الله عليه وسلم د بدر په ورځ خلقوته ارشاد فرمائيلے وو، چه كوم وخت كافر تاسوته نزدے راشي، نو په غشو، ئې اوولئے، او خپل غشي محفوظ ساتئے.

**۳۶: حَدَّثَنِیْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِیْمِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اَحْمَدَ الزُّبَیْرِیُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْغَسِیْلِ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ اَبِیْ اُسَیْدٍ وَّالْمُنْذِرِ بْنِ اَبِیْ اُسَیْدٍ قَالَ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَوْمَ بَدْرٍ اِذَا اَكْثَبُوْكُمْ یَعْنِیْ كَثَرُوْكُمْ فَارْمُوْهُمْ وَاسْتَبْقُوْا نَبْلَكُمْ.**

**۳۶:** محمد بن عبدالرحيم. ابو احمد زبيري. عبدالرحمٰن بن غسيل. حمزه بن ابي اسيد. منذر بن ابي اسيد. حضرت ابو اسيد نه روايت كوي، هغه فرمائي، حضورؐ د بدر په ورځ ارشاد اوفرمائيلو، كوم وخت چه كافر په تاسو حمله اوكړي، نو په غشو، ئې اوولئے، او خپل غشي ضرورت ډ پاره محفوظ ساتئے.

**۳۷: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَیْرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ بْنَ عَازِبٍؓ قَالَ جَعَلَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَلَی الرُّمَاةِ یَوْمَ اُحُدٍ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ جُبَیْرٍ فَاَصَابُوْا مِنَّا سَبْعِیْنَ وَ كَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهٗ اَصَابُوْا مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ یَوْمَ بَدْرٍ اَرْبَعِیْنَ وَ**

**۳۷:** عمرو بن خالد. زهير. حضرت ابو اسحاق نه روايت كوي، هغهٔ اوويے، ما د براء بن عازب نه آوريدلے دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم جنګ اُحد كښې عبدالله بن جبيرؓ په پنځوس تير اندازو سردار مقرر كهٔ كافرو اويا مسلمانان شهيد كړل. او جنګ بدر كښې د حضورؐ اصحابوؓ يو سل څلويښت كافر قتل كړي وو، او قيديان ئې جوړ كړي وو. اويا كسان ئې قيد كړي وو،

مِائَةً سَبْعِيْنَ اَسِيْرًا وَّ سَبْعِيْنَ قَتِيْلًا قَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ يَوْمٌ بِيَوْمِ بَدْرٍ وَّ الْحَرْبُ سِجَالٌ.

اوېيا، نے وژلے وو. د جنګ اُحد په ورځ ابوسفيان اووے، نن د بدر د ورځے بدله ده. او جنګ د ډول په شان دے.

۳۸: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ جَدِّهٖ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى اُرَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ اِذَا الْخَيْرُ مَا جَآءَ اللّٰهُ بِهٖ مِنَ الْخَيْرِ بَعْدُ وَ ثَوَابُ الصِّدْقِ الَّذِيْ اَتَانَا بَعْدَ يَوْمِ بَدْرٍ.

۳۸: محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد. د خپل نيکه (دادا) حضرت ابو برده نه روايت کوي، زهٔ ګمان کوم (خما ګمان دے) چه ابو موسٰي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت اوکهٔ، حضورؐ اوفرمائيل، ما خوب کښې د خير لفظ اوليد، چه خدائے به د جنګ اُحد په ورځ مسلمانانوله فتح ورکړي، او د ريښتياؤ بدله هغه ده، چه د بدر جنګ کښې الله پاک مونږ ته عطا کړله.

۳۹: حَدَّثَنِيْ يَعْقُوْبُ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ اِنِّيْ لَفِي الصَّفِّ يَوْمَ بَدْرٍ اِذِ الْتَفَتُّ فَاِذَا عَنْ يَّمِيْنِيْ وَ عَنْ يَّسَارِيْ فَتَيَانِ حَدِيْثَا السِّنِّ فَكَاَنِّيْ لَمْ اٰمَنْ بِمَكَانِهِمَا اِذْ قَالَ لِيْ اَحَدُهُمَا سِرًّا مِّنْ صَاحِبِهٖ يَا عَمِّ اَرِنِيْ اَبَا جَهْلٍ فَقُلْتُ يَا ابْنَ اَخِيْ وَمَا تَصْنَعُ بِهٖ قَالَ عَاهَدْتُ اللّٰهَ اِنْ رَاَيْتُهٗ اَنْ اَقْتُلَهٗ اَوْ اَمُوْتَ دُوْنَهٗ فَقَالَ لِيَ الْاٰخَرُ سِرًّا مِّنْ صَاحِبِهٖ مِثْلَهٗ قَالَ فَمَا سَرَّنِيْ اَنِّيْ بَيْنَ رَجُلَيْنِ مَكَانَهُمَا فَاَشَرْتُ لَهُمَا اِلَيْهِ فَشَدَّا عَلَيْهِ مِثْلَ الصَّقْرَيْنِ حَتّٰى ضَرَبَاهُ وَهُمَا ابْنَا

۳۹: يعقوب. ابراهيم بن سعد. د خپل پلار، نيکهٔ (دادا) حضرت عبدالرحمٰن بن عوف نه روايت کوي، هغهٔ اوفرمائيل، د بدر په ورځ زهٔ صف کښې ولاړ ووم، خوا کښې م اوکتل نو ښي او کس پله دوه خلموتي هلکان ولاړ وو، ما چه هغوي اوليدل، نو خوف م محسوس کهٔ، او اطمينان م لاړلو، دے کښې يو کس پټ شان ما نه تپوس اوکهٔ، چه کاکا جي، ماتهابوجهل لږ اوښايه، چه وې وينم، هغه کوم سړے دے. ما ورته اووے وراره، تهٔ د ابوجهل څهٔ کولے شے. خلمي اووے، ما خدائے سره عهد کړے دے. چه ابوجهل اووينم، نو قتلوم به ئے، يا به خپله سر داؤ کړم. بيا هغے دوېم خلمي هم د خپل ملګري نه په پټه مانه دغه تپوس اوکهٔ. اوس خما هغوي سره دلچسپي پيدا شوه. آخر ما اشارے سره هغوي ته ابوجهل په ګوته کړلو. دے آوريدو سره دواړو د عقاب په شان په هغه حمله اوکړه، او په وهلو وهلوئے د هغه کار تمام کړلو. دا دواړه خلموتي د عفراء خامن

عَفْرَآءَ.

۴۰: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيْمُ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عُمَرُ بْنُ أَسِيْدِ بْنِ جَارِيَةَ الثَّقَفِيُّ حَلِيْفُ بَنِيْ زُهْرَةَ وَ كَانَ مِنْ أَصْحَابِ أَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةً عَيْنًا وَ أَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَاصِمَ بْنَ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيَّ جَدَّ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ حَتّٰى إِذَا كَانُوْا بِالْهَدَةِ بَيْنَ عُسْفَانَ وَ مَكَّةَ ذُكِرُوْا لِحَيٍّ مِنْ هُذَيْلٍ يُقَالُ لَهُمْ بَنُوْ لِحْيَانَ فَنَفَرُوْا لَهُمْ بِقَرِيْبٍ مِنْ مِائَةِ رَجُلٍ رَامٍ فَاقْتَصُّوْا آثَارَهُمْ حَتّٰى وَجَدُوْا مَأْكَلَهُمُ التَّمْرَ فِيْ مَنْزِلٍ نَزَلُوْهُ فَقَالُوْا تَمْرُ يَثْرِبَ فَاتَّبَعُوْا آثَارَهُمْ فَلَمَّا حَسَّ بِهِمْ عَاصِمٌ وَ أَصْحَابُهُ لَجَئُوْا إِلٰى مَوْضِعٍ فَأَحَاطَ بِهِمُ الْقَوْمُ فَقَالُوْا لَهُمُ انْزِلُوْا فَأَعْطُوْا بِأَيْدِيْكُمْ وَلَكُمُ الْعَهْدُ وَالْمِيْثَاقُ أَنْ لَا نَقْتُلَ مِنْكُمْ أَحَدًا فَقَالَ عَاصِمُ بْنُ ثَابِتٍ أَيُّهَا الْقَوْمُ أَمَّا أَنَا فَلَا أَنْزِلُ فِيْ ذِمَّةِ كَافِرٍ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ أَخْبِرْ عَنَّا نَبِيَّكَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَمَوْهُمْ بِالنَّبْلِ فَقَتَلُوْا عَاصِمًا وَ نَزَلَ إِلَيْهِمْ ثَلٰثَةُ نَفَرٍ عَلٰى

معاذ او معوذ وو.

۴۰: موسٰي بن اسماعيل. ابراهيم. ابن شهاب. زهري. عمر بن اسيد بن جاريه ثقفي. چه د بنو زهره حليف او د ابوهريرهؓ دوست وو، حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، هغهٔ اوفرمائيل، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ لس سړو په يو جماعت عاصم بن ثابت انصاري سردار مقرر كړ، او جاسوسئ دَ پاره ئے اوليږل، كوم وخت چه دا خلق هده ته اورسيدل، چه دَ عسفان او مكے په مينځ كښې دے، نو قبيلهٔ لحيان چه دَ قبيلهٔ هذيل يو شاخ دے، هغوي ته چا دَ دوي دَ راتلو خبر وركړ، هغوي سل تير انداز دَ دوي دَ پتے لږولو دَ پاره دوي پسے واستول يوځائے چه هلته دے جماعت قيام كړے وو، او دَ مدينے قجورے ئے خوړلے وے دَ هغے هډوكي چه ئے اوليدل، نو هغه تير انداز پوه شو، او بيا دَ پښو په نښه ئے دَ هغوي پته اولږوله. كوم وخت چه حضرت عاصمؓ او دَ هغهٔ ملګرو اوليدل، چه دوي نزدے راغلل، نو په يوه غونډي ئے پناه واخسته، تير اندازو غونډئ په ګهيره كښې واخسته، اوونيلے، مونږ تاسو سره وعده كوو، كه تاسو خان مونږ ته حواله كړ، نو هيچا ته به نقصان نهٔ رسوو، حضرت عاصم ملګرو ته اووے، زهٔ خو دَ كافرو پناه نهٔ خوښوم. بيائے اووے، اے اللّٰه، خمونږ دَ حال نه خمونږ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خبردار كړے. بني لحيان په هغوي غشي ورول شروع كړل، آخر حضرت عاصمؓ او دَ هغهٔ اوه ملګري شهيدان شو. او خبيب، زيد

الْعَهْدِ وَالْمِيْثَاقِ مِنْهُمْ خُبَيْبٌ وَّ زَيْدُ
بْنُ الدَّثِنَةِ وَ رَجُلٌ اٰخَرُ فَلَمَّا
اسْتَمْكَنُوْا مِنْهُمْ اَطْلَقُوْا اَوْتَارَ
قِسِيِّهِمْ فَرَبَطُوْهُمْ بِهَا قَالَ الرَّجُلُ
الثَّالِثُ هٰذَا اَوَّلُ الْغَدْرِ وَاللّٰهِ لَا
اَصْحَبُكُمْ اِنَّ لِيْ بِهٰؤُلَاءِ اُسْوَةً يُّرِيْدُ
الْقَتْلٰى فَجَرَّرُوْهُ وَ عَالَجُوْهُ فَاَبٰى اَنْ
يَّصْحَبَهُمْ فَانْطُلِقَ بِخُبَيْبٍ وَّ زَيْدِ بْنِ
الدَّثِنَةِ حَتّٰى بَاعُوْهُمَا بَعْدَ وَقْعَةِ بَدْرٍ
فَابْتَاعَ بَنُو الْحَارِثِ بْنِ عَامِرِ بْنِ
نَوْفَلٍ خُبَيْبًا وَّ كَانَ خُبَيْبٌ هُوَ قَتَلَ
الْحَارِثَ بْنَ عَامِرٍ يَوْمَ بَدْرٍ فَلَبِثَ
خُبَيْبٌ عِنْدَهُمْ اَسِيْرًا حَتّٰى اَجْمَعُوْا
قَتْلَهُ فَاسْتَعَارَ مِنْ بَعْضِ بَنَاتِ
الْحَارِثِ مُوْسٰى يَسْتَحِدُّ بِهَا فَاَعَارَتْهُ
فَدَرَجَ بُنَيٌّ لَهَا وَ هِيَ غَافِلَةٌ حَتّٰى اَتَاهُ
فَوَجَدَتْهُ مُجْلِسَهُ عَلٰى فَخِذِهٖ
وَالْمُوْسٰى بِيَدِهٖ قَالَتْ فَفَزِعْتُ فَزْعَةً
عَرَفَهَا خُبَيْبٌ فَقَالَ اَتَخْشَيْنَ اَنْ
اَقْتُلَهُ مَا كُنْتُ لِاَفْعَلَ ذٰلِكَ قَالَتْ وَاللّٰهِ
مَا رَاَيْتُ اَسِيْرًا قَطُّ خَيْرًا مِّنْ خُبَيْبٍ
وَاللّٰهِ لَقَدْ وَجَدْتُهُ يَوْمًا يَاْكُلُ قِطْفًا
مِنْ عِنَبٍ فِيْ يَدِهٖ وَ اِنَّهُ لَمُوْثَقٌ
بِالْحَدِيْدِ وَمَا بِمَكَّةَ مِنْ ثَمَرَةٍ وَّ كَانَتْ
تَقُوْلُ اِنَّهُ لَرِزْقٌ رَزَقَهُ اللّٰهُ خُبَيْبًا فَلَمَّا
خَرَجُوْا بِهٖ مِنَ الْحَرَمِ لِيَقْتُلُوْهُ فِيْ

بن دثنه او عبدالله بن طارق مجبورًا خپل خان کافرو ته
حواله کړلو. کافرو د لیندے نه جې اوښکلے، او په هغې
نے د هغوي متې اوتړلې، نو عبدالله بن طارق اووے، دا
ورمبنے غداري ده. په خدائے م دے قسم وي، زۀ تاسو
سره هیڅ کله نه ځم، زۀ خو خپلو ملګرو کښې تلل
خوښوم. کافرو ډیر راښکلو چه په څۀ طریقه نے مکے ته
بوځي، خو هغه لانۀ رلو، آخر حضرت خبیب د حارث بن
عامر بن نوفل خامنو په بیع واخستلو، ځکه چه خبیب ؓ
بدر کښې حارث بن عامر قتل کړے وو. حضرت خبیب
ډیرے ورځے قید کښې وو. کوم وخت چه د هغۀ د قتل
اراده نے اوکړله، نو یوه ورځ حضرت خبیب ؓ د حارث د
لور نه اُستره (پاکي) اوغوښتله هغې ورکړله. اتفاق سره
هغه وخت د هغې بچې خبیب ؓ له ورغے. خبیب ؓ هغه په
خپل پتون کینولو. ښځې چه دا اولیدل، چه بچې نے د
خبیب په پتون ناست دے. او استره د خبیب ؓ په لاس
کښې وه، نو هغه سخته پریشانه شوه. او خبیب ؓ د هغې په
پریشانۍ پوهه شو. نو ورته نے اووے آیا تۀ په دے یرے
آخستے نے، چه زۀ به دا بچے مړ کړمه، زۀ داسے نۀ کوم.
نو هغې ښځې اووے په خدائے م دے قسم وي، ما یو
ورځ اولیدل چه خبیب سره د انګورو غنچک دے، لګیا
دے خوري نے، حالانکه هغه د اوسپنې په زنځیرونو کښې
تړلے شوے وو. او بیا هغه زمانه کښې داسے څۀ میوه هم
مکه کښې نۀ وه. د هغې ښځې بیان دے چه دا میوه الله
تعالٰي خبیب ته (د غیب نه) رالیږلے وه. غرض کوم
وخت چه د حارث خامنو خبیب ؓ د قتل د پاره د حرم نه
بهر بوتلو نو خبیب ؓ اووے، ما یو دوه رکعاته نفلو ته

الْحِلِّ قَالَ لَهُمْ خُبَيْبٌ دَعُوْنِيْ أُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ فَتَرَكُوْهُ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَوْلَا أَنْ تَحْسِبُوْا أَنَّ مَابِيْ جَزَعٌ لَزِدْتُ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُمَّ أَحْصِهِمْ عَدَدًا وَاقْتُلْهُمْ بَدَدًا وَلَا تُبْقِ مِنْهُمْ أَحَدًا ثُمَّ أَنْشَأَ يَقُوْلُ.

فَلَسْتُ أُبَالِيْ حِيْنَ أُقْتَلُ مُسْلِمًا
عَلٰى أَيِّ جَنْبٍ كَانَ لِلّٰهِ مَصْرَعِيْ
وَ ذٰلِكَ فِيْ ذَاتِ الْإِلٰـهِ وَ إِنْ يَّشَأْ
يُبَارِكْ عَلٰى أَوْ صَالِ شِلْوٍ مُمَزَّعٍ

ثُمَّ قَامَ إِلَيْهِ أَبُوْ سَرْوَعَةَ عُقْبَةُ بْنُ الْحَارِثِ فَقَتَلَهُ وَ كَانَ خُبَيْبٌ هُوَ سَنَّ لِكُلِّ مُسْلِمٍ قُتِلَ صَبْرًا الصَّلٰوةَ وَ أَخْبَرَ أَصْحَابَهُ يَوْمَ أُصِيْبُوْا وَ بَعَثَ نَاسٌ مِّنْ قُرَيْشٍ إِلٰى عَاصِمِ بْنِ ثَابِتٍ حِيْنَ حُدِّثُوْا أَنَّهُ قُتِلَ أَنْ يُّؤْتُوْا بِشَيْءٍ مِنْهُ يُعْرَفُ وَ كَانَ قَتَلَ رَجُلًا عَظِيْمًا مِنْ عُظَمَائِهِمْ فَبَعَثَ اللّٰهُ لِعَاصِمٍ مِثْلَ الظُّلَّةِ مِنَ الدَّبْرِ فَحَمَتْهُ مِنْ رُسُلِهِمْ فَلَمْ يَقْدِرُوْا أَنْ يَّقْطَعُوْا مِنْهُ شَيْئًا وَ قَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ ذَكَرُوْا مُرَارَةَ بْنَ الرَّبِيْعِ الْعُمَرِيَّ وَ هِلَالَ ابْنَ أُمَيَّةَ الْوَاقِفِيَّ رَجُلَيْنِ صَالِحَيْنِ قَدْ شَهِدَا بَدْرًا

پریږدئ، اجازت نه پس دوه رکعاته نفل ئې او کړل. بیانئې اووې، خدائکو، که ستاسو دا خیال نهٔ وې، چه زهٔ دٔ مرګ نه یریږم، نو زیات مونځ به م کړې وې. دې نه پس خبیبؓ دا دُعا اوغُښتله، یا اللّٰه، دوي تباه کړې، او يو په کښې هم ژوندې مهٔ پرېږدې. بیائې دا اشعار اووې (ترجمه):

هر کله چه زهٔ په اسلام مرم، نو بیا هیڅ پرواه نشته په کوم آړخ چه پریوځم، ځما مرګ دٔ خدائې په محبت کښې دې که هغه غواړي نو دٔ هرې ټکړې او دٔ جسم دٔ اعضاؤ په بدله کښې به بهتر ثواب راته عطا کړي. او برکت به راکړي

دې نه پس دٔ حارث خوي ابو سروعه عقبه، خبیبؓ شهید کړلو. دا سنت دٔ خبیبؓ نه راووتلو، (یعني دا سنت دٔ هغهٔ نه جاري دې) چه هر کله څوک مسلمان بې بسه شي، او وژلې شي، نو دوه رکعاته مونځ دې او کړي. حضورؐ خپلو اصحابوؓ ته دٔ عاصم او دٔ هغهٔ دٔ ملګرو دٔ شهادت خبر په هغه ورځ ورکهٔ، په کومه ورځ چه هغوي شهید شولو. قریشو چه دٔ عاصم دٔ مرګ خبر واورید، نو څهٔ خلق ئې اولیږل، چه دٔ عاصم دٔ لاش نه څهٔ ټکړه راوړي، چه مونږ ئې اوپیژنو، ځکه چه عاصم دٔ کافرو يو غټ سړې وژلې وو، نو اللّٰه بې شماره مچئې دٔ هغهٔ دٔ لاش حفاظت له راولیږلې، چه دٔ قریشو سړي لاش ته ورنزدې نشي، او څهٔ ټکړه ترې پرې نهٔ کړي، کعب بن مالک فرمائي، ماته خلقو بیان کړې دې، چه مراره بن ربیع عمري او هلال بن اُمیه واقفي دوه نیک سړي وو، چه بدر کښې شریک وو (خو تبوک کښې زرستو پاتې شوې وو).

۱۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ نَافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَؓ ذَكَرَ لَهُ اَنَّ سَعِيدَ بْنَ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ وَ كَانَ بَدْرِيًّا مَرِضَ فِيْ يَوْمِ جُمُعَةٍ فَرَكِبَ اِلَيْهِ بَعْدَ اَنْ تَعَالَى النَّهَارُ وَاقْتَرَبَتِ الْجُمُعَةُ وَ تَرَكَ الْجُمُعَةَ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ اَبَاهُ كَتَبَ اِلٰى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْاَرْقَمِ الزُّهْرِيِّ يَأْمُرُهُ اَنْ يَدْخُلَ عَلٰى سُبَيْعَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ الْاَسْلَمِيَّةِ فَيَسْأَلَهَا عَنْ حَدِيْثِهَا وَ عَنْ مَا قَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ اسْتَفْتَتْهُ فَكَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْاَرْقَمِ اِلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ يُخْبِرُهُ اَنَّ سُبَيْعَةَ بِنْتَ الْحَارِثِ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا كَانَتْ تَحْتَ سَعْدِ بْنِ خَوْلَةَ وَهُوَ مِنْ بَنِيْ عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ وَ كَانَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا فَتُوُفِّيَ عَنْهَا فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَهِيَ حَامِلٌ فَلَمْ تَنْشَبْ اَنْ وَضَعَتْ حَمْلَهَا بَعْدَ وَفَاتِهِ فَلَمَّا تَعَلَّتْ مِنْ نِفَاسِهَا تَجَمَّلَتْ لِلْخُطَّابِ فَدَخَلَ عَلَيْهَا اَبُو السَّنَابِلِ بْنُ بَعْكَكٍ رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ عَبْدِ الدَّارِ فَقَالَ لَهَا مَالِيْ اَرَاكِ تَجَمَّلْتِ لِلْخُطَّابِ تُرَجِّيْنَ النِّكَاحَ فَاِنَّكِ وَاللّٰهِ

۱۴: قتيبه بن سعيد. ليث. يحيي حضرت نافع نه روايت كوي، هغه اوفرمائيل چا حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ ته دَ جمعې په ورځ بيان اوكړ، چه سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل بدري ناروغه دے، هغه سور شو، دَ هغه تپوس له لاړ، ورځ راختلے وه، او دَ جمعې وخت قريب وو، او هغه جمعه ترک كړه. او ليث بن سعد، يونس، حضرت ابن شهاب نه روايت كوي، ماته عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه بيان اوكړ، خما پلار عبداللّٰه، عمر بن عبداللّٰه بن ارقم ته خط اوليكه، چه ته سبيعه بنت حارث اسلميه له ورشه، او دَ هغې نه دَ هغې قصه دريافت وكړه، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه دَ هغې دَ سوال كوم جواب وركړے وو، هغه هم معلوم كړه. عمر بن عبداللّٰه ورته جواب كښې اوليكل، سبيعه بنت حارث وائي، زهٔ دَ سعد بن خوله په نكاح كښې ووم، او هغه دَ عامر بن لؤي دَ قبيلې نه وو، يا دَ هغوي حليف (دوست) وو، او هغه دَ هغې خلقو نه وو، چه جنګ بدر كښې شريک وو، او حجة الوداع كښې وفات شولو، او سبيعه ئې حامله پريښوده. لږ ورځې پس وضع حمل اوشو، څه وخت چه هغه دَ نفاس نه پاكه شوه، نو د نكاح پيغام ليږونكو دَ پاره ئې ډول سنګار اوكړلو، هغه وخت دَ عبدالدار قبيلې يو سړے چه دَ هغهٔ نوم ابو السنابل وو، هغې له راغے، او ورته ئې اووے، سبيعه څهٔ حال دے، زهٔ پوهيږم، چه تهٔ پيغام وركونكو دَ پاره تياره ناسته ئې، آيا تهٔ نكاح كول غواړې، په خدائے مِ دے قسم وي،

مَا اَنْتِ بِنَاكِحٍ حَتّٰى تَمُرَّ عَلَيْكِ اَرْبَعَةُ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرٌ وَّ عَشْرٌ قَالَتْ سُبَيْعَةُ فَلَمَّا قَالَ لِيْ ذٰلِكَ جَمَعْتُ عَلَيَّ ثِيَابِيْ حِيْنَ اَمْسَيْتُ وَ اَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذٰلِكَ فَاَفْتَانِيْ بِاَنِّيْ قَدْ حَلَلْتُ حِيْنَ وَضَعْتُ حَمْلِيْ وَ اَمَرَنِيْ بِالتَّزَوُّجِ اِنْ بَدَالِيْ تَابَعَهُ اَصْبَغُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَّ سَأَلْنَاهُ فَقَالَ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ ثَوْبَانَ مَوْلٰى بَنِيْ عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ اَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ اِيَاسِ بْنِ الْبُكَيْرِ وَ كَانَ اَبُوْهُ شَهِدَ بَدْرًا اَخْبَرَهُ.

خو پورے چه خلور میاشتے او لس ورځے پوره نشي، نو هیڅ کله نکاح نشي کیدے. سبیعه وائي، کوم وخت چه ما ذ ابو السنابل خبره واوریده، نو خپلے کپړے مِ واغُستے، او مابنام کښ ذ نبي صلي الله علیه وسلّم په خدمت کښ حاضره شوم. او ذ حضورؐ نه مِ مسئله اوپښتله. نو حضورؐ جواب راکړلو، کله چه تهٔ ذ وضع حمل نه فارغه شوے، نو دویمه نکاح درست شوله. کله چه تهٔ غواړے نو نکاح اوکړه. امام بخاريؒ فرمائي، ذ دے حدیث په بیان کولو کښ اصبغ ذ لیث پیروي کړے ده. لیث اووے، مونږ ته یونس دا حدیث بیان کړلو، او هغهٔ ته ابن شهاب زهري. یونس نه تپوس اوشو، نو هغهٔ اووے عبدالرحمٰن بن ثوبان چه ذ بني عامر بن لؤي غلام دے، ماته ذ دے خبر راکهٔ، او هغهٔ ته ایاس بن بکر، چه بدري وو.

## بَابُ ١١ : شُهُوْدِ الْمَلٰٓئِكَةِ بَدْرًا.

باب ١١ : ذ بدر میدان کښ ذ فریښتو ذ حاضرئ بیان.

٤٢: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَخْبَرَنَا جَرِيْرٌ عَنْ يَحْيٰى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مُعَاذِ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعِ الزُّرَقِيِّ عَنْ اَبِيْهِ وَ كَانَ اَبُوْهُ مِنْ اَهْلِ بَدْرٍ قَالَ جَآءَ جِبْرِيْلُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا تَعُدُّوْنَ اَهْلَ بَدْرٍ فِيْكُمْ قَالَ مِنْ اَفْضَلِ الْمُسْلِمِيْنَ اَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا قَالَ وَ كَذٰلِكَ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ.

٤٢: اسحٰق بن ابراهیم. جریر. یحیٰي بن سعید. حضرت معاذ بن رفاعه بن رافع زرقي ذ خپل پلار رفاعه نه چه بدر کښ شریک وو، روایت کوي، حضرت جبرئیل ذ نبي صلي الله علیه وسلّم خدمت کښ راغے، تپوس ئے اوکهٔ، چه تاسوؐ بدر واله څنګه ګنړئے، حضورؐ ورته اوفرمائیل، ذ ټولو مسلمانانو نه افضل یا دغسے څهٔ کلمه ئے اوفرمائیله. حضرت جبرئیلؑ عرض اوکهٔ، دغه شان هغه فریښتے چه بدر کښ حاضرے شوے وے، ذ نورو فریښتو نه افضلے دي.

٤٣: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ

٤٣: سلیمان بن حرب. حماد. یحیٰي. حضرت

حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ مُعَاذِ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ بْنِ رَافِعٍ وَ كَانَ رِفَاعَةُ مِنْ اَهْلِ بَدْرٍ وَ كَانَ رَافِعٌ مِنْ اَهْلِ الْعَقَبَةِ فَكَانَ يَقُوْلُ لِابْنِهٖ مَا يَسُرُّنِيْ اَنِّيْ شَهِدْتُ بَدْرًا بِالْعَقَبَةِ قَالَ سَأَلَ جِبْرِيْلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا.

معاذ بن رفاعه بن رافع نه روایت کوي' خما پلار بدري وو' او نیکهٔ (دادا) رافع دَ بیعت عقبه والو نه وو' نو رافع به خپل خوئے رفاعه ته فرمائیل' ما ته دَ عقبه برابر بدر کښ دَ شریکیدو خوشحالي نشته. وے فرمائیل' حضرت جبرئیل دے معامله کښ دَ نبي صلي الله علیه وسلّم نه تپوس کړے وو' څرنګه چه مخکښ ذکر اوشولو.

۴۴: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا يَزِيْدُ اَخْبَرَنَا يَحْيٰى سَمِعَ مُعَاذَ بْنَ رِفَاعَةَ اَنَّ مَلَكًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَنْ يَحْيٰى اَنَّ يَزِيْدَ بْنَ الْهَادِ اَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ كَانَ مَعَهٗ يَوْمَ حَدَّثَهٗ مُعَاذٌ هٰذَا الْحَدِيْثَ فَقَالَ يَزِيْدُ فَقَالَ مُعَاذٌ اِنَّ السَّائِلَ هُوَ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ.

۴۴: اسحاق بن منصور. یزید. یحیٰي بن سعید نه روایت کوي' ما دَ معاذ بن رفاعه نه آوریدلے دي' یوے فرېښتے دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه تپوس اوکهٔ' دَ یحیٰي بیان دے' چه یزید بن الهاد ماته بیان اوکهٔ. کوم وخت چه حضرت معاذ دا حدیث ماته بیان کهٔ' نو زه هم ورسره اوم' یزید اورے' معاذ فرمائیل' او تپوس کونکے فرېښته حضرت جبرائیل علیه السلام وو.

۴۵: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ بَدْرٍ هٰذَا جِبْرَئِيْلُ اٰخِذٌ بِرَاْسِ فَرَسِهٖ عَلَيْهِ اَدَاةُ الْحَرْبِ.

۴۵: ابراهیم بن موسٰي. عبدالوهاب. خالد. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي' نبي صلي الله علیه وسلّم دَ بدر په ورځ اوفرمائیل. دا جبرائیلؑ راغلے دے' دَ اَس سَر نے نیولے دے' او دَ جنګ وَسله نے اچولے ده.

باب ۱۲: 

باب ۱۲: (دا باب بے سُرخي دے).

۴۶: حَدَّثَنِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ مَاتَ اَبُوْ زَيْدٍ وَلَمْ يَتْرُكْ عَقِبًا وَ كَانَ

۴۶: خلیفه بن خیاط. محمد بن عبدالله انصاري. سعید بن ابي عروبه. قتاده. حضرت انسؓ نه روایت کوي' هغهٔ اوفرمائیل' ابو زید صحابي لاولده مړ شولو' او هغه بدر

بَدْرِيًّا.

۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ خَبَّابٍ اَنَّ اَبَا سَعِيْدِ بْنَ مَالِكٍ الْخُدْرِيَّ قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ فَقَدَّمَ اِلَيْهِ اَهْلُهُ لَحْمًا مِّنْ لُّحُوْمِ الْاَضْحٰى فَقَالَ مَا اَنَا بِاٰكِلِهٖ حَتّٰى اَسْاَلَ فَانْطَلَقَ اِلٰى اَخِيْهِ لِاُمِّهٖ وَ كَانَ بَدْرِيًّا قَتَادَةَ بْنِ النُّعْمَانِ فَسَاَلَهٗ فَقَالَ اِنَّهٗ حَدَثَ بَعْدَكَ اَمْرٌ نَّقْضٌ لِمَا كَانُوْا يُنْهَوْنَ عَنْهُ مِنْ اَكْلِ لُحُوْمِ الْاَضْحٰى بَعْدَ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ.

کښې شريک وو.

۴۷: عبدالله بن يوسف. ليث. يحيي بن سعيد. قاسم بن محمد. حضرت خبابؓ نه روايت کوي، حضرت ابو سعيد خدري چه کوم وخت د سفر نه کورته واپس راغے، نو د هغه کور والو، هغه ته د قرباني غوښه پيش کړله، هغهٔ ورته اوفرمائيل، زهٔ دا هغه وخته پورې نهٔ خورم، څو پورې چه د خپل ما ن جائے ورور (اِلٰى اَخِيْهِ لِاُمِّهٖ) قتاده بن نعمان نه د مسئلے تپوس اونه کړي، چه بدري وو، هغه قتاده بن نعمان له راغے، هغهٔ ورته اوفرمائيل، ستا د تلو نه پس هغه ورپسے حکم منسوخ شوے دے، چه هغے کښې د قرباني غوښه د درے ورځو نه پس د ايښودلو نه منع کړے شوے ده.

ف: مان جائے ورور: چه مور، ئې يوه وي، او پلار جدا جدا.

۴۸: حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ الزُّبَيْرُ لَقِيْتُ يَوْمَ بَدْرٍ عُبَيْدَةَ بْنَ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ هُوَ مُدَجَّجٌ لَا يُرٰى مِنْهُ اِلَّا عَيْنَاهُ وَهُوَ يُكْنٰى اَبُوْ ذَاتِ الْكَرِشِ فَقَالَ اَنَا اَبُوْ ذَاتِ الْكَرِشِ وَ حَمَلْتُ عَلَيْهِ بِالْعَنَزَةِ فَطَعَنْتُهٗ فِيْ عَيْنِهٖ فَمَاتَ قَالَ هِشَامٌ فَاُخْبِرْتُ اَنَّ الزُّبَيْرَ قَالَ لَقَدْ وَضَعْتُ رِجْلِيْ عَلَيْهِ ثُمَّ تَمَطَّاْتُ فَكَانَ الْجُهْدَ اَنْ نَّزَعْتُهَا وَقَدِ انْثَنٰى طَرَفَاهَا قَالَ عُرْوَةُ فَسَاَلَهٗ اِيَّاهَا رَسُوْلُ

۴۸: عبيد بن اسمعيل. ابو اسامه. هشام بن عروه. د خپل پلار حضرت زبير نه روايت کوي، خپل پلار زبير بن عوام به فرمائيل، د بدر په ورځ ما عبيده بن سعيد بن عاص اوليدلو، چه وسلو کښې ډوب شوے وو صرف دواړه سترګې ئې پرانستے وې، د هغه کُنيت ابوذات الکرش وو. هغه ونيلے، زهٔ ذات الکرش يم. ما يوه نيزه واخسته، په هغه م حمله اوکړه. نيزه ئې په سترګه کښې ننوته او هغه مړ شولو. هشام وائي، ماته بيان اوکړے شو، چه زبير ونيلے، کوم وخت چه عبيده مړ شو، نو ما خپله پښه په هغه کيښودلو، او خپل پوره زور سره م هغه نيزه د هغه د سترګې نه اوښکله. د هغې دواړه

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَعْطَاهُ فَلَمَّا قُبِضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخَذَهَا ثُمَّ طَلَبَهَا اَبُوْ بَكْرٍؓ فَاَعْطَاهُ فَلَمَّا قُبِضَ اَبُوْبَكْرٍؓ سَاَلَهَا اِيَّاهُ عُمَرُ فَاَعْطَاهُ اِيَّاهَا فَلَمَّا قُبِضَ عُمَرُ اَخَذَهَا ثُمَّ طَلَبَهَا عُثْمَانُ مِنْهُ فَاَعْطَاهُ اِيَّاهَا فَلَمَّا قُتِلَ عُثْمَانُ وَقَعَتْ عِنْدَ اٰلِ عَلِيٍّ فَطَلَبَهَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الزُّبَيْرِ فَكَانَتْ عِنْدَهٗ حَتّٰى قُتِلَ.

غاړې کړې شوې وې. عروهؒ وائي' هغه نيزه حضور صلي الله عليه وسلّم ذ زبيرؓ نه اوغُبنتله نو هغهٔ ورکړله. ذ حضورؐ ذ وفات نه پس هغه نيزه ابوبکرؓ اوغُبنتله' هغهٔ ته زبير ورکړله' بيا ذ هغهٔ ذ وفات نه پس حضرت عمرؓ اوغُبنتله' هغهٔ ته ورکړې شوه. ذ هغهٔ ذ وفات نه پس حضرت عثمانؓ اوغُبنتله' هغهٔ ته ورکړې شوه' بيا حضرت عليؓ ته راغله. بيا دا نيزه ذ هغهٔ اولاد سره وه. بيا عبداللّٰه بن زبير اوغبنتله' چه ذ هغهٔ شهادت پورې ورسره وه.

۴۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ اِدْرِيْسَ عَائِذُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عُبَادَةَ بْنَ الصَّامِتِؓ وَ كَانَ شَهِدَ بَدْرًا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَايِعُوْنِيْ.

۴۹: ابواليمان. شعيب. حضرت زهري نه روايت کوي' ابو ادريس عائذ اللّٰه بن عبداللّٰه چه بدر کښې شريک وو' ماته اووې' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ماته اوفرمائيل' ماته بيعت اوکړئ.

۵۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ اَبَا حُذَيْفَةَ وَ كَانَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبَنّٰى سَالِمًا وَ اَنْكَحَهٗ بِنْتَ اَخِيْهِ هِنْدَ بِنْتَ الْوَلِيْدِ بْنِ عُتْبَةَ وَهُوَ مَوْلًى لِاِمْرَاَةٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ كَمَا تَبَنّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا وَ كَانَ مَنْ تَبَنّٰى رَجُلًا

۵۰: يحيي بن بکير. ليث. عقيل. ابن شهاب. زهري. عروه بن زبير. د نبي عليه السلام تبر' بي بي عائشېؓ نه روايت کوي' حضرت ابو حذيفهؓ چه بدر کښې شريک وو' سالم ئې' چه د يوې انصاريه ښځې غلام وو خپل خوئې جوړ کړ او خپله وريره (ﺑﮭﺘﯿﺠﯽ) يعني ذ وليد بن عتبه لور سره ئې ذ هغه نکاح اوکړله' څنګه چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم زيدؓ خپل خوئې جوړ کړې وو. او ذ جاهليت زمانه کښې دا رسم وو. چه څوک به چه خپل خوئې جوړ کړلو' نو هغه به ذ هغهٔ په نوم ونيلې شو' او ذ هغهٔ د مال به وارث کيدلو' تردې چه اللّٰه

فِي الْجَاهِلِيَّةِ دَعَاهُ النَّاسُ اِلَيْهِ وَ وَرِثَ مِنْ مِيْرَاثِهٖ حَتّٰى اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ فَجَآءَتْ سَهْلَةُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ.

تعالي دا آيت نازل كړلو: اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ الخ: چه تاسو هغوي د خپل حقيقي پلارانو په نوم بلئې. د دې آيت د نازليدو نه پس سهله بنت سهل، د ابو حذيفه بي بي د حضور خدمت كښې حاضره شوه. بيائې دا حديث بيان كړلو.

۱۵: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ ذَكْوَانَ عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَدَاةَ بُنِيَ عَلَيَّ فَجَلَسَ عَلٰى فِرَاشِي كَمَجْلِسِكَ مِنِّيْ وَ جُوَيْرِيَاتٌ يَضْرِبْنَ بِالدَّفِّ يَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ اٰبَائِهِنَّ يَوْمَ بَدْرٍ حَتّٰى قَالَتْ جَارِيَةٌ: ع: وَ فِيْنَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِيْ غَدٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْلِيْ هٰكَذَا وَ قُوْلِيْ مَا كُنْتِ تَقُوْلِيْنَ.

۱۵: علي بن عبدالله. بشر بن مفضل. خالد بن ذكوان نه روايت كوي، هغه د ربيع بنت معوذ نه روايت اوكه، چه حضور اكرم صلي الله عليه وسلم د شب زفاف نه پس خما كورته تشريف راوړلو، او خما په بستره داسې كيناست لكه چه ته ناست ئې. دغه وخت څو جينكو تنبل وهلو، او د بدر د مقتولينو په شان كښې ئې قصيده خواني كوله. آخر هغې كښې يوې جينۍ داسې سندره اووئيله، مونږ ته يو داسې نبي تشريف راوړے دے، چه په دې پوهيږي چه صباله به څۀ كيږي. حضور اكرم صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل داسې مۀ وايه، بلكه څۀ چه دې مخكښې وئيلے، هغه وايه (شب زفاف: د وادۀ وړمبنے شپه).

۵۲: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ طَلْحَةَ صَاحِبُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ قَدْ شَهِدَ

۵۲: ابراهيم بن موسي. هشام. معمر. زهري. نه او دونم سند كښې امام بخاريؒ وائي، مونږ اسمعيل بن اويس. هغۀ ته د هغۀ ورور عبدالحميد. هغۀ د سليمان بن هلال نه هغه د محمد عتيق نه. هغه د ابن شهاب زهري نه او هغه د عبيدالله بن عبدالله بن مسعودؓ نه روايت كوي، حضرت ابن عباسؓ اوفرمائيل، ابو طلحه د رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابي چه بدر كښې شريک وو، ماته اووې حضور اكرم

بَدْرًا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ لَا تَدْخُلُ الْمَلٰٓئِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ كَلْبٌ وَلَا صُوْرَةٌ يُرِيْدُ التَّمَاثِيْلَ الَّتِيْ فِيْهَا الْاَرْوَاحُ.

اوفرمائيل: ذ رحمت ملائكې هغې كور كښې نه داخليږي: كوم كور كښې چه سپې يا تصويرونه وي. ابن عباسؓ فرمائي: د دې نه د جاندارو تصويرونه مراد دي.

۵۳ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ حَدَّثَنَا اَحْمَدُ ابْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ اَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَلِيًّا قَالَ كَانَتْ لِيْ شَارِفٌ مِنْ نَّصِيْبِيْ مِنَ الْمَغْنَمِ يَوْمَ بَدْرٍ وَّ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْطَانِيْ مِمَّا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلَيْهِ مِنَ الْخُمُسِ يَوْمَئِذٍ فَلَمَّا اَرَدْتُّ اَنْ اَبْتَنِيَ بِفَاطِمَةَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ بِنْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَدْتُّ رَجُلًا صَوَّاغًا فِيْ بَنِيْ قَيْنُقَاعَ اَنْ يَّرْتَحِلَ مَعِيَ فَنَاْتِيْ بِاِذْخِرٍ فَاَرَدْتُّ اَنْ اَبِيْعَهُ مِنَ الصَّوَّاغِيْنَ فَنَسْتَعِيْنَ بِهٖ فِيْ وَلِيْمَةِ عُرُسِيْ فَبَيْنَا اَنَا اَجْمَعُ لِشَارِفَيَّ مِنَ الْاَقْتَابِ وَالْغَرَآئِرِ وَالْحِبَالِ وَ شَارِفَايَ مُنَاخَانِ اِلٰى جَنْبِ حُجْرَةِ رَجُلٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ حَتّٰى جَمَعْتُ مَا جَمَعْتُ فَاِذَا اَنَا بِشَارِفَيَّ قَدْ اُجِبَّتْ اَسْنِمَتُهُمَا وَ بُقِرَتْ خَوَاصِرُهُمَا وَ اُخِذَ مِنْ اَكْبَادِهِمَا فَلَمْ اَمْلِكْ

۵۳ : عبدان. عبداللّٰه بن مبارک. يونس بن يزيد املي (دويم سند) امام بخاريؒ. احمد بن صالح. عنبسه بن خالد. يونس. زهري. علي بن حسين. حسين بن علي. حضرت عليؓ نه روايت كوي، هغه اوفرمائيل، ذ بدر مال غنيمت كښې يوه اُوښه خما اورسيده. دويمه اُوښه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ماته ذ خمس ذ مال نه راكړله، ما سره دوه اُوښې شوې. ما اُوغښتل، چه بي بي فاطمې ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم لور سره شپه تيره كړم، نو ما ذ بني قينقاع يو يهودي زرګر ته اووې، چه مونږ دواړه به لاړ شو، او اذخر وابنه به په اُوښو راوړو، خما مطلب داوو، چه هغه خرڅ كړم، او ذ خپلې نكاح وليمه به اوكړم. په دې خيال ما ذ اُوښو ذ پاره كټه، رسۍ او تهيلۍ وغيره راغنډول. اُوښې ذ يو انصاري كور سره ناستې وې، كوم وخت چه ما سامان راجمع كه، او، اُوښو، له راغلم، نو اووم ليدل، چه چا ذ هغې اُوښو قبونه پريكړې دي، او خيټې ئې ورله څيرلې دي، اينه ترې اوښكلې ده. دې ليدو سره ما له ژړا راغله، او ذ خلقو نه م تپوس اوكه دا چا كړې دي. خلقو راته اووې، دا كار حمزه بن عبدالمطلب كړې، او هغه انصارو سره ناست دې، دې كور

عَيْنَيَّ حِيْنَ رَاَيْتُ الْمَنْظَرَ قُلْتُ مَنْ
فَعَلَ هٰذَا قَالُوْا فَعَلَهٗ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ
الْمُطَّلِبِ وَهُوَ فِيْ هٰذَا الْبَيْتِ فِيْ
شَرْبٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ عِنْدَهٗ قَيْنَةٌ وَّ
اَصْحَابُهٗ فَقَالَتْ فِيْ غِنَآئِهَا. اَلَا يَا حَمْزُ
لِلشُّرُفِ النِّوَآءِ. فَوَثَبَ حَمْزَةُ اِلَى
السَّيْفِ فَاَجَبَّ اَسْنِمَتَهُمَا وَ بَقَرَ
خَوَاصِرَهُمَا وَ اَخَذَ مِنْ اَكْبَادِهِمَا قَالَ
عَلِيٌّ فَانْطَلَقْتُ حَتّٰى اَدْخُلَ عَلَى
النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ
عِنْدَهٗ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ وَ عَرَفَ النَّبِيُّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ لَقِيْتُ
فَقَالَ مَالَكَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا
رَاَيْتُ كَالْيَوْمِ عَدَا حَمْزَةُ عَلٰى نَاقَتَيَّ
فَاَجَبَّ اَسْنِمَتَهُمَا وَ بَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا وَ
هَا هُوَ ذَا فِيْ بَيْتٍ مَّعَهٗ شَرْبٌ فَدَعَا
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرِدَآئِهٖ
فَارْتَدٰى ثُمَّ انْطَلَقَ يَمْشِيْ وَ اتَّبَعْتُهٗ
اَنَا وَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ حَتّٰى جَآءَ الْبَيْتَ
الَّذِيْ فِيْهِ حَمْزَةُ فَاسْتَاْذَنَ عَلَيْهِ فَاُذِنَ
لَهٗ فَطَفِقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ يَلُوْمُ حَمْزَةَ فِيْمَا فَعَلَ فَاِذَا
حَمْزَةُ ثَمِلٌ مُّحْمَرَّةٌ عَيْنَاهُ فَنَظَرَ حَمْزَةُ
اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ اِلٰى رُكْبَتِهٖ ثُمَّ
صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ اِلٰى وَجْهِهٖ ثُمَّ قَالَ

كښې شراب څكي. يوه سندرغاړې وينزه موجود
ده. او يار دوست جمع دي، او شوه داسې،
چه وينزې اووې، اې حمزه، پاسه، او دا غټې
اُوښې پريكړه. حمزه پاسيد، توره ئې واخسته،
او دا ذ اوښو قبونه ئې پريكړل، او خيټې ئې
ورله اوڅيرلې، اينه ئې ترې راوښكله، حضرت
عليؓ وائي، دې ليدو سره زهٔ ذ حضورﷺ خدمت
كښې حاضر شوم. دغه وخت حضورﷺ سره زيد
بن حارثه هم ناست وو، حضورﷺ چه خما غم
ژپلې مخ اوليدلو نو تپوس ئې اوكهٔ، ولې خير
خو، دې كنه، ما عرض اوكهٔ، يا رسول اللّٰه؛
ذ نن په شان مصيبت ما هيڅ كله نهٔ دې ليدلې.
حمزه خما په اُوښو سخت ظلم كړې دې.
ذ هغې قبونه ئې پريكړې دي، خيټې ئې ورله
څيرلې دي، او هغه يو كور كښې ناست دې، شراب
څكي. حضورﷺ خپل څادر راوغښتلو، هغه ئې په
څان واچولو، او پياده روان شو؛ او زيد بن
حارثه ورسره وو، حضورﷺ چه هغې كورته
اورسيدلو نو دننه ذ ورتلو اجازت ئې اوغښتلو.
اجازت نه پس دننه ورغې، او حمزه ئې
په دې كار ملامته كهٔ، او ورته ئې اوفرمائيل،
دا ئې څه كړې دي. حضورﷺ اوليدل، چه ذ
حمزه سترګې ذ شرابو ذ نشې نه تكې سرې
(سرخ) وې. حمزه نظر پورته كهٔ، او ذ كنډو
پورې ئې حضورﷺ ته اوكتل، بيائې مخ مبارك
پورې ورته اوكتل، او وې وئيل، تاسو خلق

حَمْزَةُ وَ هَلْ اَنْتُمْ اِلَّا عَبِيْدٌ لِاَبِيْ فَعَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ ثَمِلٌ فَنَكَصَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى عَقِبَيْهِ الْقَهْقَرٰى فَخَرَجَ وَ خَرَجْنَا مَعَهُ.

۵۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبَّادٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ قَالَ اَنْفَذَهُ لَنَا ابْنُ الْاَصْبَهَانِيِّ سَمِعَهُ مِنِ ابْنِ مَعْقِلٍ اَنَّ عَلِيًّا كَبَّرَ عَلٰى سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ فَقَالَ اِنَّهُ شَهِدَ بَدْرًا.

۵۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَؓ يُحَدِّثُ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حِيْنَ تَاَيَّمَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عُمَرَؓ مِنْ خُنَيْسِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا تُوُفِّيَ بِالْمَدِيْنَةِ قَالَ عُمَرُ فَلَقِيْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَفْصَةَ فَقُلْتُ اِنْ شِئْتَ اَنْكَحْتُكَ حَفْصَةَ بِنْتَ عُمَرَ قَالَ سَاَنْظُرُ فِيْ اَمْرِيْ فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ فَقَالَ قَدْ بَدَالِيْ اَنْ لَّا اَتَزَوَّجَ يَوْمِيْ هٰذَا قَالَ عُمَرُ فَلَقِيْتُ اَبَابَكْرٍؓ فَقُلْتُ اِنْ شِئْتَ اَنْكَحْتُكَ حَفْصَةَ بِنْتَ عُمَرَؓ فَصَمَتَ

خو دَ پلار غلامان معلوميږئ، دغه وخت حضور صلي الله عليه وسلم پوه شولو، چه حمزه نشه کښې مست دے، نو حضورؐ هغه وخت دَ هغې کور نه مخ په شا بهر اووتلو، او مونږ ورسره وو.

۵۴: محمد بن عباد. سفيان بن عيينه. عبدالرحمن بن عبدالله اصفهاني. حضرت ابن معقل نه روايت کوي، حضرت عليؓ دَ سهل بن حنيف انصاري په جنازه تکبيرونه اووے، اووے فرمائيل، دے بدر کښې شريک وو.

۵۵: ابواليمان. شعيب. زهري. سالم بن عبدالله. عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي، هغه اووے، خما پلار حضرت عمرؓ بن خطاب اوفرمائيل. کوم وخت چه بي بي حفصهؓ کونډه شوه، او دَ هغې خاوند خنيسؓ بن حذافه سهمي، چه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابي او بدر کښې شريک وو، مدينه کښې وفات شولو. نو زهٔ حضرت عثمانؓ سره يوځائې شوم، او دَ حفصېؓ ذکر مې ورسره اوکړه، او هغه ته مې اووے که ته وائې، نو زهٔ به دَ هغې نکاح تاسره اوکړم، حضرت عثمانؓ اووے، زهٔ به دَ غور نه پس جواب درکړم، څو ورځې تيرې شوې، بيا چه يوځائې شو، نو ونيلې، مناسب دا معلوميږي، چه اوس لا زهٔ دوېمه نکاح اونه کړم. بيا زهٔ حضرت ابوبکرؓ سره يوځائې شوم، او هغهٔ ته مې اووے، که تهٔ غواړې، نو زهٔ به دَ حفصېؓ نکاح تاسره اوکړم. هغه خاموش شولو، او هيڅ جواب ئې رانهٔ کړلو ماته دَ حضرت ابوبکرؓ دَدے طرز نه دَ هغې نه هم زيات خفګان راغې، څومره چه دَ حضرت

أَبُوْبَكْرٍ فَلَمْ يَرْجِعْ إِلَيَّ شَيْئًا فَكُنْتُ عَلَيْهِ أَوْجَدَ مِنِّيْ عَلٰى عُثْمَانَ فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ خَطَبَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَنْكَحْتُهَا إِيَّاهُ فَلَقِيَنِيْ أَبُوْبَكْرٍ فَقَالَ لَعَلَّكَ وَجَدْتَ عَلَيَّ حِيْنَ عَرَضْتَ عَلَيَّ حَفْصَةَ فَلَمْ أَرْجِعْ إِلَيْكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَإِنَّهُ لَمْ يَمْنَعْنِيْ أَنْ أَرْجِعَ إِلَيْكَ فِيْمَا عَرَضْتَ إِلَّا أَنِّيْ قَدْ عَلِمْتُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ ذَكَرَهَا فَلَمْ أَكُنْ لِأُفْشِيَ سِرَّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوْ تَرَكَهَا لَقَبِلْتُهَا.

عثمانؓ د انکار نه راغلے وو. زهٔ څو شپے خاموش ووم، دے کښې رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم خپل ځان ذ پاره ذ حفصےؓ پیغام راولیږلو، ما سمدستي ذ هغے نکاح حضور صلي الله عليه وسلّم سره او کړله. دے نه پس حضرت ابوبکرؓ ماته اووے، شاید تاته خما جواب نهٔ ورکول په تا ناخوښه تیر شوے وي، ما اووے، بیشکه ماته تکلیف شوے وو. حضرت ابوبکرؓ اوفرمائیل، خبره داده، چه ما تاته په دے وجه جواب درنهٔ کړلو چه حضورؐ ماته ذ حفصے ذکر کړے وو، او مشوره ئے کړے وه، چه زهٔ هغے سره نکاح او کړم. نو ما ذ حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم راز فاش کول نهٔ غوښتل. او که حضورؐ حفصےؓ سره ذ نکاح کولو اراده ترک کړے وے، نو ما به ورسره نکاح کړے وے.

۵۶: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيٍّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يَزِيْدَ سَمِعَ أَبَا مَسْعُوْدٍ الْبَدْرِيَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَفَقَةُ الرَّجُلِ عَلٰى أَهْلِهِ صَدَقَةٌ.

۵۶: مسلم. شعبه. عدي. حضرت عبدالله بن زید نه روایت کوي، هغهٔ ذ ابو مسعود بدريؓ نه دا خبره واوریده، رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم به فرمائیل، که یو سړے په خپل اهل و عیال خرچ او کړي، نو هغے کښې هم ورته ذ صدقے ثواب رسي.

۵۷: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ يُحَدِّثُ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ فِيْ إِمَارَتِهٖ أَخَّرَ الْمُغِيْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ الْعَصْرَ وَهُوَ أَمِيْرُ الْكُوْفَةِ فَدَخَلَ أَبُوْ مَسْعُوْدٍ عُقْبَةُ بْنُ عَمْرِو الْأَنْصَارِيُّ جَدُّ زَيْدِ بْنِ حَسَنٍ شَهِدَ بَدْرًا فَقَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ

۵۷: ابوالیمان. شعیب. زهري نه روایت کوي، هغهٔ اووے، ما ذ عروه بن زبیر نه واوریدل، هغهٔ ذ عمر بن عبدالعزیز ذ حکومت ذ زمانے حال بیانوي، چه یوه ورځ مغیره بن شعبه چه ذ معاویه ذ طرف نه ذ کوفے حاکم وو، د مازیګر مونځ کښې تاخیر او کړهٔ، نو ابو مسعود عقبه بن عمرو انصاري چه د زید بن حسن بن علي نیکهٔ (نانا) وو. او جنګ بدر کښې شریک وو، مغیره ته ئے اووے، تاته معلومه ده، چه ذ معراج په سحر جبرائیلؑ راکوز شولو، او

نَزَلَ جِبْرِيلُ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسَ صَلَوٰتٍ ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا اُمِرْتُ كَذٰلِكَ كَانَ بَشِيْرُ بْنُ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْهِ.

مونځ نے وركړلو. حضورؐ پسخه مونځونه هغه پسے ورستو اوكړل. بيا جبرائيلؑ اووے' دغه شان تاسوته حكم دركړے شوے دے ذ عروه بيان دے' چه بشير بن ابي مسعود' ذ خپل پلار نه دا روايت دغه شان نقل كړے دے.

۵۸: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ يَزِيْدَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدِ الْبَدْرِيِّ ؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاٰيَتَانِ مِنْ اٰخِرِ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ مَنْ قَرَاَهُمَا فِيْ لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَلَقِيْتُ اَبَا مَسْعُوْدٍ وَّهُوَ يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ فَسَاَلْتُهُ فَحَدَّثَنِيْهِ.

۵۸: موسٰي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. اعمش. ابراهيم. عبدالرحمٰن. علقمهؒ. حضرت ابو مسعودؓ بدري نه نقل كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' څوک چه سورۀ بقره آخري دوه آيتونه ذ شپے ذ اُودۀ كيدو په وخت لولي' نو دا ذ هغۀ ذ پاره بس دي. عبدالرحمٰن بن زيد وائي' زۀ خپله ابو مسعود سره يوځائے شوم' هغۀ ذ كعبے طواف كولو. ما ذ دغے حديث د هغۀ نه تپوس اوكۀ' نو هغۀ دغه شان بيان اوكۀ.

۵۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ مَحْمُوْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ اَنَّ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ وَّ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مِّنَ الْاَنْصَارِ اَنَّهُ اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۹: يحيٰي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. زهري نه روايت كوي' هغۀ اووے' ماته محمود بن ربيع خبر راكۀ' چه عتبان بن مالک ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم صحابي او بدر كښ شريک وو' هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم له راغے.

۶۰: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ هُوَ ابْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ ثُمَّ سَاَلْتُ الْحُصَيْنَ ابْنَ مُحَمَّدٍ وَّهُوَ اَحَدُ بَنِيْ سَالِمٍ وَّهُوَ مِنْ سَرَاتِهِمْ عَنْ حَدِيْثِ مَحْمُوْدِ بْنِ

۶۰: مونږ ته دا حديث احمد بن صالح او ذ هغۀ نه عيينه بن خالد' ذ هغۀ نه يونس بن زيد روايت كړے دے' ابن شهاب وائي' ما ذ حصين بن محمد نه چه ذ بني سالم ذ شريف سرونه وو' ذ دے حديث تپوس اوكۀ چه محمود ذ عتبان نه روايت كۀ' نو هغۀ اووے چه محمود

الرَّبِيْعِ عَنْ عِتْبَانَ بْنِ مَالِكٍ فَصَدَّقَهُ.

١٦: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَامِرِ بْنِ رَبِيْعَةَ وَ كَانَ مِنْ اَكْبَرِ بَنِيْ عَدِيٍّ وَ كَانَ اَبُوْهُ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ عُمَرَ اسْتَعْمَلَ قُدَامَةَ بْنَ مَظْعُوْنٍ عَلَى الْبَحْرَيْنِ وَ كَانَ شَهِدَ بَدْرًا وَّهُوَ خَالُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ وَ حَفْصَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ.

١٢: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَسْمَآءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَنَّ سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ قَالَ اَخْبَرَ رَافِعُ بْنُ خَدِيْجٍ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ اَنَّ عَمَّيْهِ وَ كَانَا شَهِدَا بَدْرًا اَخْبَرَاهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ كِرَآءِ الْمَزَارِعِ قُلْتُ لِسَالِمٍ فَتُكْرِيْهَا اَنْتَ قَالَ نَعَمْ اِنَّ رَافِعًا اَكْثَرَ عَلٰى نَفْسِهٖ.

ريښتيا بيان کوي.

١٦: ابواليمان. شعيب. زهري نه روايت کوي، هغهٔ اووې، عبدالله بن عامر بن ربيعه چې ذ بنـي عدي سردار وو، هغهٔ سره زهري ملاقات اوکهٔ، ذ هغهٔ پلار عامر بن ربيعه رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره جنګ بدر کښې شريک وو، هغهٔ اوفرمائيل، حضرت عمر، قدامه بن مظعون ذ بحرين عامل مقرر کړې وو، او هغه جنګ بدر کښې شريک وو، هغه ذ عبدالله بن عمر او بي بي حفصې ماما کيدلو.

١٢: عبدالله بن محمد بن اسماء. جويريه. مالک. زهري نه روايت کوي، حضرت سالم بن عبدالله بن عمر بيان اوکهٔ، رافع بن خديج، حضرت عبدالله بن عمر ته اووې، ذ هغه دوارو ترونو (ظهر او مظهر) هغهٔ ته اووې چه حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم قابل کاشت زمکه ذ کرائې نه منع کړې ده. زهري اووې، ما سالم ته اووې، ته خو په کرايه ورکوې، نو هغهٔ اووې، او، رافع په خپل ځان زياتې کړې دې[1]. (ظهر او مظهر دا دواړه بدر کښې شريک وو).

[1]. مقصد دا دې چه ذ زمکې مالک ذ کرونده ګرنه د خپلې زمکې داستعمال کوم اُجرت اخلي د هغې دوه صورتونه دي يو خو هغه کوم چه په عربو کښې رائج وو چه ذ پټي په کومه حصه کښې به زيات پيداوار کيدلو هغه به مالک خپل ځان د پاره مخصوص کوله او د باقي زمکې پيداوار به کرونده ګر ته ملاويدلو. په دغه شان نورې هم بعضې غير منصفانه طريقې وې نو حضور صلي الله عليه وسلّم د زمکې دغه شان اجرت اخستلو نه منع فرمائيلې وه. ليکن خومره پورې چه په زمکه باندې د نقد اُجرت اخستلو سوال دې يعني لګان، نو حضور د هغې نه منع نه وه کړې، همدغه شان ددې باب هغه معاملاتو نه ئې هم منع نه ده کړې کوم چه په انصاف باندې مبني وي. نو رافع رضي الله عنه چه ممانعت بالکل عام ساتي، ګويا پخپل ځان باندې زياتې کوي. ددې حديث په مضمون باندې نوټ تير شوې دې.

۶۳ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُصَيْنِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ شَدَّادِ بْنِ الْهَادِ اللَّيْثِيَّ قَالَ رَاَيْتُ رِفَاعَةَ بْنَ رَافِعٍ الْاَنْصَارِيَّ وَ كَانَ شَهِدَ بَدْرًا.

۶۴ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ وَ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّهُ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَمْرَو بْنَ عَوْفٍ وَهُوَ حَلِيْفٌ لِبَنِيْ عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ وَ كَانَ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ اَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ اِلَى الْبَحْرَيْنِ يَاْتِيْ بِجِزْيَتِهَا وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ صَالَحَ اَهْلَ الْبَحْرَيْنِ وَ اَمَّرَ عَلَيْهِمُ الْعَلَاءَ بْنَ الْحَضْرَمِيَّ فَقَدِمَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ بِمَالٍ مِّنَ الْبَحْرَيْنِ فَسَمِعَتِ الْاَنْصَارُ بِقُدُوْمِ اَبِيْ عُبَيْدَةَ فَوَافَوْا صَلَاةَ الْفَجْرِ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا انْصَرَفَ تَعَرَّضُوْا لَهُ فَتَبَسَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ رَاٰهُمْ ثُمَّ قَالَ اَظُنُّكُمْ سَمِعْتُمْ اَنَّ اَبَا عُبَيْدَةَ قَدِمَ بِشَيْءٍ قَالُوْا اَجَلْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَاَبْشِرُوْا وَ اَمِّلُوْا مَا يَسُرُّكُمْ فَوَاللّٰهِ مَا الْفَقْرَ اَخْشٰى

۶۳ : آدم. شعبه. حصین بن عبدالرحمٰن نه روایت کوي، هغه اوفرمائیل، ما د عبداللّٰه بن شداد لیثي نه واوریدل، هغه اووے، حضرت رفاعه بن رافع انصاري جنګ بدر کښې شریک وو.

۶۴ : عبدان. عبداللّٰه. معمر. یونس. زهري. حضرت عروه بن زبیرؓ نه روایت کوي، هغه اوفرمائیل، ماته مسور بن مخرمه صحابي بیان اوکه، چه عمرو بن عوف انصاري چه د بني عامر بن لؤي حلیف وو، او جنګ بدر کښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره شریک وو. هغه بیان اوکه، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ابو عبیده بن جراح د بحرین جزیه وصولو د پاره اولیږلو. او بحرین والو سره نبي صلح اوکړه، علاء حضرمي ئې د هغې خانے حاکم مقرر که، او خپله مال سره واپس راغے. انصاروته معلومه شوه، نو هغوي ټول د سحر د مونځ نه پس حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته راغلل نو حضورؐ مسکے شولو، اووے فرمائیل، زۀ پوهیږم چه تاسو د روپو خبر آوریدلے دے، راغلي ئې، چه ابو عبیده راوړے دي. ټولو اووے جي، او صحیح ده. حضورؐ اوفرمائیل بنه ده، خوشحاله شئي، او د خوشحالي اُمید ساتئي په خدائے م دے قسم وي، ما ستاسو د مفلس کیدو ویره نشته، او دا یره ده، چه تاسو

عَلَيْكُمْ وَلٰكِنِّيْ اَخْشٰي اَنْ تُبْسَطَ عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا كَمَا بُسِطَتْ عَلٰي مَنْ قَبْلَكُمْ فَتَنَافَسُوْهَا كَمَاتَنَا فَسُوْهَا وَ تُهْلِكَكُمْ كَمَا اَهْلَكَتْهُمْ.

هم چرته ذ مخکني اُمتونو په شان آسوده حاله شئي، او يو بل سره رشک راواخلئي، او دُنيا به هم تاسو تباه کړي څنګه چه مخکني خلق ئې تباه کړي وو.

۲۵ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَ يَقْتُلُ الْحَيَّاتِ كُلَّهَا حَتّٰى حَدَّثَهُ اَبُوْ لُبَابَةَ الْبَدْرِيُّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ قَتْلِ جِنَانِ الْبُيُوْتِ فَاَمْسَكَ عَنْهَا.

۲۵ : ابوالنعمان. جرير بن حازم. حضرت نافع نه روايت کوي، حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ به هر مار (سانپ) وژلو، آخر هغهٔ ته ابولبابه بشير بن عبدالمنذر چه صحابي ذ رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم او بدر کښ شريک وو، دا حديث بيان کهٔ، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ کور سپين ماران چه شنهٔ او نري (پتلے) وي، ذ وژلو نه منع فرمائيلے ده، دے نه پس عبداللّٰه بن عمرؓ ذ هغوي وژل پريښودل.

۲۶ : حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ عَنْ مُّوْسَى بْنِ عُقْبَةَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رِجَالًا مِّنَ الْاَنْصَارِ اسْتَأْذَنُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا ائْذَنْ لَّنَا فَلْنَتْرُكْ لِابْنِ اُخْتِنَا عَبَّاسٍ فِدَآءَهُ قَالَ وَاللّٰهِ لَا تَذَرُوْنَ مِنْهُ دِرْهَمًا.

۲۶ : ابراهيم بن منذر. محمد بن فليح. موسي بن عقبه. ابن شهاب نه روايت کوي مونږ ته حضرت انسؓ اوفرمائيل، ذ مديني انصارو، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکهٔ، مونږ ته تاسو اجازت راکړئې، چه مونږ ذ خپل وراره حضرت عباس فديه معاف کړو. حضورؐ ورته اوفرمائيل قسم په خدائے داسے نشي کيدے، تاسو يو درهم هم مهٔ پريږدئې.

۲۷ : حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَطَآءِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَدِيٍّ عَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْاَسْوَدِ حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ بْنِ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَخِيْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهٖ

۲۷ : ابو عاصم. ابن جريج. زهري. عطاء بن يزيد. ابو عبيده بن عدي، حضرت مقداد بن اسودؓ (دوئم سند) امام بخاريؒ اووے. اسحاق بن منصور. يعقوب بن ابراهيم بن سعد ذ خپل ترهٔ ابن شهاب زهري نه روايت کوي. چه عطاء بن يزيد خبر اوکهٔ، او هغهٔ ته عبيداللّٰه

قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَآءُ بْنُ يَزِيْدَ اللَّيْثِيُّ ثُمَّ الْجُنْدَعِيُّ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ اَخْبَرَهُ اَنَّ الْمِقْدَادَ بْنَ عَمْرٍو الْكِنْدِيَّ وَ كَانَ حَلِيْفًا لِبَنِيْ زُهْرَةَ وَ كَانَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مَّعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ قَالَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَاَيْتَ اِنْ لَقِيْتُ رَجُلًا مِّنَ الْكُفَّارِ فَاقْتَتَلْنَا فَضَرَبَ اِحْدٰى يَدَيَّ بِالسَّيْفِ فَقَطَعَهَا ثُمَّ لَاذَمِنِّيْ بِشَجَرَةٍ فَقَالَ اَسْلَمْتُ لِلّٰهِ اَقْتُلُهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بَعْدَ اَنْ قَالَهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقْتُلْهُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اِنَّهُ قَطَعَ اِحْدٰى يَدَيَّ ثُمَّ قَالَ ذٰلِكَ بَعْدَ مَا قَطَعَهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقْتُلْهُ فَاِنْ قَتَلْتَهُ فَاِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ قَبْلَ اَنْ يَقُوْلَ كَلِمَتَهُ الَّتِيْ قَالَ.

بن عدي بن خيار خبر ور كړ، او هغه ته مقداد بن عمرو كندي چه د بني زهره حليف او بدر جنګ كښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوكړ، يا رسول اللّٰه، ماته اوښائې، كه زۀ يو كافر سره په جنګ شم، او څهلو كښې ښۀ مقابله اوشي، او هغه څما يو لاس په توره اووهي. او بيا دَ اُونې پناه واخلي، او وائي، چه ما په خدائې ايمان راوړے دے، او اسلام قبلوم، نو اوس دَ دے اقرار نه پس زۀ هغه اووژنم كه نه، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، هغه مۀ وژنه. حضرت مقداد عرض اوكړ، يا رسول اللّٰه هغه څما لاس پريكړے دے، او هغې نه پس ئې كلمه ونيلے ده. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، هر څۀ چه وي، هغه مۀ قتلوه. كنې هغۀ ته به هغه درجه حاصله شي، كومه چه دَ هغۀ دَ قتل نه مخكښې تاته حاصله وه، او بيا به ستا هغه حال شي، چه دَ كلمه اسلام دَ لوستلو نه مخكښې دَ هغۀ وو.

٦٨ : حَدَّثَنِيْ يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ حَدَّثَنَا اَنَسٌ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ مَنْ يَّنْظُرُ مَا صَنَعَ اَبُوْ جَهْلٍ فَانْطَلَقَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ فَوَجَدَهُ قَدْ ضَرَبَهُ ابْنَا عَفْرَآءَ حَتّٰى بَرَدَ فَقَالَ اَنْتَ اَبَا جَهْلٍ

٦٨ : يعقوب بن ابراهيم. اسمعيل بن ابراهيم. اسمعيل بن عُليَّه. سليمان تيمي نه روايت كوي، حضرت انسؓ اووے، دَ بدر په ورځ رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، څوک شته، چه دَ ابو جهل حال معلوم كړي. دے آوريدو سره عبداللّٰه بن مسعود لاړ اَووے ليدل، چه دَ عفرا خامنو په وهلو وهلو، ابوجهل مرګ ته نزدے كړے دے. ابن مسعودؓ ترے تپوس اوكۀ، آيا تۀ ابوجهل ئې. ابن عُليّه وائي، حضرت انس داسے

قَالَ ابْنُ عُلَيَّةَ قَالَ سُلَيْمَانُ هٰكَذَا قَالَهَا اَنَسٌ قَالَ اَنْتَ اَبَا جَهْلٍ قَالَ وَ هَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوْهُ قَالَ سُلَيْمَانُ اَوْ قَالَ قَتَلَهُ قَوْمُهُ قَالَ وَ قَالَ اَبُوْ مِجْلَزٍ قَالَ اَبُوْ جَهْلٍ فَلَوْ غَيْرُ اَكَّارٍ قَتَلَنِيْ.

اوفرمائيل' آيا تهٔ هغه ابو جهل ئے؟ هغهٔ (دَ ساه ختو وخت كښے) جواب وركړ' خما نه لوئے به نور څوک وي چه هغه تاسو اووژلو. سليمان وائي' يا داسے جواب ئے وركړ' چه هغه دَ هغهٔ قوم اووژلو. ابو مجلز وائي' ابوجهل دَ مرګ په وخت ابن مسعود ته اووے' كاش چه زهٔ دَ زميدار نه علاوه بل چا وژلے وے.

ف: اَكَّارٌ: كسان. (دا ابوجهل دَ مرګ په وخت وئيلے' دَ مدينے انصاروته ئے زميدار اووے).

۲۹: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ ابْنُ عَبَّاسٍؓ عَنْ عُمَرَؓ لَمَّا تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ لِاَبِيْ بَكْرٍ انْطَلِقْ بِنَا اِلٰى اِخْوَانِنَا مِنَ الْاَنْصَارِ فَلَقِيْنَا مِنْهُمْ رَجُلَانِ صَالِحَانِ شَهِدَا بَدْرًا فَحَدَّثْتُ عُرْوَةَ ابْنَ الزُّبَيْرِ فَقَالَ هُمَا عُوَيْمُ بْنُ سَاعِدَةَ وَ مَعْنُ بْنُ عَدِيٍّ.

۲۹: موسٰي. عبدالواحد. معمر. زهري. عبيدالله بن عبدالله. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' هغهٔ اوفرمائيل' ماته حضرت عمرؓ بيان اوكړ' كوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم وفات شولو' ما حضرت ابوبكرؓ ته اووے' ما انصارو رونړو له بوخه لار كښ دوه نيک خصلته انصار مو اوليدل' او هغوي دواړه د بدر جنګ كښ شريک وو. عبيدالله وائي' ما دا حديث عروه بن زبيرؓ ته بيان كړ' هغهٔ اوفرمائيل' هغے دواړو كښ يو عويم بن ساعده او بل معن بن عدي وو.

۷۰: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ سَمِعَ مُحَمَّدَ ابْنَ فُضَيْلٍ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ كَانَ عَطَاءُ الْبَدْرِيِّيْنَ خَمْسَةَ اٰلَافٍ وَ قَالَ عُمَرُ لَاُفَضِّلَنَّهُمْ عَلٰى مَنْ بَعْدَهُمْ.

۷۰: اسحٰق بن ابراهيم. محمد بن فضيل. اسماعيل بن ابي خالد. حضرت قيس نه روايت كوي' هغهٔ اوفرمائيل' بدر كښ دَ شريكيدونكو دَ پاره پنځه زره سالانه وظيفه مقرر وه' ځكه چه حضرت عمرؓ اوفرمائيل' زهٔ به بدري حضراتو ته دَ نورو نه زيات وركوم.

۷۱: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۷۱: اسحاق بن منصور. عبدالرزاق. معمر. زهريؒ نه هغه دَ محمد بن زبير بن مطعم نه روايت كوي' هغهٔ اوفرمائيل' خما پلار د حضور صلي الله عليه وسلّم نه دَ مابنام مونځ كښ سورهٔ طور

وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّوْرِ وَ ذٰلِكَ اَوَّلُ مَا وَ قَرَ الْاِيْمَانُ فِيْ قَلْبِيْ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ اُسَارٰى بَدْرٍ لَوْ كَانَ الْمُطْعِمُ بْنُ عَدِيٍّ حَيًّا ثُمَّ كَلَّمَنِيْ فِيْ هٰؤُلَآءِ النَّتْنٰى لَتَرَكْتُهُمْ لَهٗ وَ قَالَ اللَّيْثُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الْاُوْلٰى يَعْنِيْ مَقْتَلَ عُثْمَانَ فَلَمْ تُبْقِ مِنْ اَصْحَابِ بَدْرٍ اَحَدًا ثُمَّ وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الثَّانِيَةُ يَعْنِي الْحَرَّةَ فَلَمْ تُبْقِ مِنْ اَصْحَابِ الْحُدَيْبِيَةِ اَحَدًا ثُمَّ وَقَعَتِ الثَّالِثَةُ فَلَمْ تَرْتَفِعْ وَ لِلنَّاسِ طَبَاخٌ.

لوستل واوریدل' او دا ورمبنئ موقع وه' چه ایمان څما زړهٔ کښې ځائے اوکړلو' بیا دے سند سره زهري نه روایت دے. هغه ذ محمد بن مطعم نه او هغه ذ پلار نه روایت اوکه' چه حضور صلي الله علیه وسلم ذ جنګ بدر قیدیانو ذ پاره اوفرمائیل' که مطعم بن عدي ژوندے وے' او ذ دوي سفارش نے کړے وے' نو ما به ذ هغه په وینا دوي آزاد کړے وے. لیث د یحيٰی نه هغه ذ سعید بن مسیب نه روایت کوي' هغهٔ اووے ورمبنے فتنه هغه ده' چه هغے کښې حضرت عثمانؓ قتل کړے شو' هغه وخت بدر والو کښې هیڅ څوک پاتے نشو[۱]. بیا دویم فساد ذ حره' اوشولو. دے کښې صلح حدیبیه والو کښې هیڅوک باقي پاتے نه شو. بیا دریم فساد اوشو' او هغه هله ختم شو' څو پورے چه خلقو کښې څهٔ هم عقل او خوبي باقي وه. (د خلقو عقل او خوبي نے یوړه)

۱. حضرت علي' زبیر' طلحه' سعد او سعید رضي الله عنهم اکابر صحابه څوک چه د بدر په جنګ کښې شریک وو هغوی د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت نه پس ژوندي وو' په دے وجه بعضو محدثینو لیکلي دي چه د راوي دا وئیل چه د حضرت عثمانؓ شهادت نه پس هیڅ یو بدري صحابي باقي پاتے نه وو' دا خبره صحیح نه ده لیکن غالبًا د راوي مراد دا دے چه دا فتنه په کوم بنیاد باندے راپورته شوے وه' هغه لا ختمه شوے نه وه چه ټول اکابر بدریین ددے دنیا نه رخصت شوي وو' یا به نے بیا په اکثریت باندے ذ کُل حکم لګولے وي.

۴۷: حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ بْنُ يَزِيْدَ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ وَ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ وَ عَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ وَ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ حَدِيْثِ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۴۷: حجاج بن منهال. عبدالله بن نمیريؒ. یونس بن یزید. زهري نه روایت کوي' ما ذ هغهٔ نه واوریدل' چه عروه بن زبیر. سعید بن مسیب. علقمه بن وقاص لیثي او عبیدالله بن عبدالله نه ما واوریدل' چه هغے څلورو چه بي بي عائشےؓ د نبي صلي الله علیه وسلم تهمت بانده چه کوم تهمت لږولے وو' ذ هغے حدیث یوه ټکړه بیان کړه. بي بي عائشےؓ فرمائیل' زهٔ او ذ مسطح مور دواړه

وَسَلَّمَ كُلٌّ حَدَّثَنِي طَائِفَةً مِّنَ الْحَدِيثِ قَالَتْ فَأَقْبَلْتُ أَنَا وَأُمُّ مِسْطَحٍ فَعَثَرَتْ أُمُّ مِسْطَحٍ فِي مِرْطِهَا فَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَقُلْتُ بِئْسَ مَا قُلْتِ تَسُبِّينَ رَجُلًا شَهِدَ بَدْرًا فَذَكَرَ حَدِيثَ الْإِفْكِ.

۴۳: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحِ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ هٰذِهِ مَغَازِيُّ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُلْقِيهِمْ هَلْ وَجَدْتُمْ مَا وَعَدَكُمْ رَبُّكُمْ حَقًّا قَالَ مُوسَى قَالَ نَافِعٌ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ نَاسٌ مِّنْ أَصْحَابِهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ تُنَادِي نَاسًا أَمْوَاتًا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا قُلْتُ مِنْهُمْ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ فَجَمِيعُ مَنْ شَهِدَ بَدْرًا مِّنْ قُرَيْشٍ مِّمَّنْ ضُرِبَ لَهُ بِسَهْمِهِ أَحَدٌ وَّثَمَانُونَ رَجُلًا وَّكَانَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ يَقُولُ قَالَ الزُّبَيْرُ قُسِمَتْ سُهْمَانُهُمْ فَكَانُوا مِائَةً وَاللّٰهُ أَعْلَمُ.

رفع حاجت ذ پاره تللې وو. دې کښې ذ مسطح ذمور پښه په خادر کښې اونښته، او هغه راپریوتله، او بیا هغې خپل خوي مسطح ته بد رَد اوونیل. ما ورته اووے، په تا څهٔ شوي دي، چه هغهٔ ته بد رد وائې، هغه خو د بدر جنګ کښې شامل وو، بیائے ذ تهمت پوره قِصه بیان کړه.

۴۳: ابراهیم بن منذر. محمد بن فلیح بن سلیمان. موسي بن عقبه. ابن شهاب. زهري نه روایت کوي، چه اول هغه ذ رسول الله صلي الله علیه وسلّم ذ جهادونو ذکر اوکړ، بیائے اووے، دا دي ذ رسول ذ خدائے جهادونه. بیا ذ بدر والو قصه ئے بیان کړه، وئیلے چه حضور صلي الله علیه وسلّم ذ کافرو لاشونه کوهي کښې غرخول، او هغوي ته ئے فرمائیل، اوس تاسو اووائې، ستاسو پروردګار چه کومه وعده تاسو سره کړے وه، هغه تاسو حق بیامنده، یا نه، او دے سند سره موسي بن عقبه ذ نافع نه او هغهٔ ذ عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، هغهٔ اووے، دا اصحاب رسولؐ دي، چه حضرت عمرؓ هم په کښې وو. رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته ئے عرض اوکړ، یا رسول الله تاسو مړو ته خطاب کوئے. حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، ذ دوي نه زیات خو تاسوهم څما خبره نهٔ شے آوریدلے. بدر کښې چه کوم خلق شریک وو، او چا چه ذ مال غنیمت نه حصه بیامنده، ذ هغوي تعداد یو اتیا وو، او عروه بن زبیر وائي، حضرت زبیرؓ اوفرمائیل، ما خپله حصے تقسیم کړلے، او ذ خلقو تعداد سل وو. الله تعالي بنه پوهیږي.

۴٧: حَدَّثَنِيْ إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ ضُرِبَتْ يَوْمَ بَدْرٍ لِلْمُهَاجِرِيْنَ بِمِائَةِ سَهْمٍ.

۴٧: ابراهيم بن موسى. هشام بن عروه. او هغه ذ خپل پلار نه او هغه ذ خپل نيكه (دادا) حضرت زبير نه روايت كوي، چه ذ بدر په ورځ مهاجرينو ذ پاره سل حصے لرولے شوے وے.

بَابُ ١٣: تَسْمِيَةِ مَنْ سُمِّيَ مِنْ اَهْلِ بَدْرٍ فِي الْجَامِعِ الَّذِيْ وَضَعَهُ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ عَلٰى حُرُوْفِ الْمُعْجَمِ. اَلنَّبِيُّ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْهَاشِمِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. اِيَاسُ بْنُ الْبُكَيْرِ. بِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرٍ الْقُرَشِيِّ. حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ الْهَاشِمِيُّ حَاطِبُ بْنُ اَبِيْ بَلْتَعَةَ حَلِيْفٌ لِقُرَيْشٍ. اَبُوْ حُذَيْفَةَ بْنُ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ الْقُرَشِيِّ. حَارِثَةُ بْنُ الرَّبِيْعِ الْاَنْصَارِيُّ قُتِلَ يَوْمَ بَدْرٍ وَهُوَ حَارِثَةُ بْنُ سُرَاقَةَ كَانَ فِي النَّظَّارَةِ خُبَيْبُ بْنُ عَدِيِّ الْاَنْصَارِيُّ. خُنَيْسُ بْنُ حُذَافَةَ السَّهْمِيُّ. رِفَاعَةُ بْنُ رَافِعٍ الْاَنْصَارِيُّ. رِفَاعَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُنْذِرِ اَبُوْ لُبَابَةَ الْاَنْصَارِيُّ. الزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ الْقُرَشِيُّ. زَيْدُ بْنُ سَهْلٍ اَبُوْ طَلْحَةَ الْاَنْصَارِيُّ. اَبُوْ زَيْدٍ الْاَنْصَارِيُّ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ الزُّهْرِيُّ سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ الْقُرَشِيُّ. سَعِيْدُ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلِ الْقُرَشِيُّ. سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ

باب ١٣: شركائے جنگ بدر، بترتيب حروف تهجي، مرتبه امام بخاري رحمه اللّٰه.
(١) محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم بن عبداللّٰه هاشمي (٢) اياس بن بكير (٣) بلال بن رباح ذ حضرت ابوبكر غلام (۴) حمزه بن عبدالمطلب هاشمي (۵) حاطب بن ابي بلتعه حليف قريش (٦) ابو حذيفه بن عتبه بن ربيعه قرشي (٧) حارثه بن ربيع انصاري، دۀ ته حارثه بن سراقه هم وائي. دے بچے وو، صرف تماشه كتلوله تلے وو. ليكن شهيد شولو. (٨) خبيب بن عدي انصاري (٩) خنيس بن حذافه سهمي (١٠) رفاعه بن رافع انصاري (١١) رفاعه بن عبدالمنذر ابولبابه انصاري (١٢) زبير بن عوام قرشي (١٣) زيد بن سهل ابو طلحه انصاري (١۴) ابو زيد انصاري (١۵) سعد بن مالك يعني سعد بن ابي وقاص (١٦) سعد بن خوله قرشي. (١٧) سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل قرشي (١٨) سهل بن حنيف انصاري (١٩) ظهير بن رافع انصاري (٢٠) او ذ هغه ورور مظهر (٢١) عبداللّٰه

الْاَنْصَارِيُّ. ظُهَيْرُ بْنُ رَافِعٍ الْاَنْصَارِيُّ وَ اَخُوهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُثْمَانَ اَبُوْبَكْرٍ الصِّدِّيْقُ الْقُرَشِيُّ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ الْهُذَلِيُّ. عُتْبَةُ بْنُ مَسْعُوْدٍ الْهُذَلِيُّ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ الزُّهْرِيُّ. عُبَيْدَةُ بْنُ الْحَارِثِ الْقُرَشِيُّ. عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ الْاَنْصَارِيُّ. عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ الْعَدَوِيُّ. عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ الْقُرَشِيُّ خَلَّفَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى ابْنَتِهٖ وَ ضَرَبَ لَهٗ بِسَهْمِهٖ. عَلِيُّ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ الْهَاشِمِيُّ. عَمْرُو بْنُ عَوْفٍ حَلِيْفُ بَنِيْ عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ. عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو الْاَنْصَارِيُّ عَامِرُ بْنُ رَبِيْعَةَ الْعَنَزِيُّ عَاصِمُ بْنُ ثَابِتٍ الْاَنْصَارِيُّ. عُوَيْمُ بْنُ سَاعِدَةَ الْاَنْصَارِيُّ عِتْبَانُ بْنُ مَالِكٍ الْاَنْصَارِيُّ. قُدَامَةُ بْنُ مَظْعُوْنٍ قَتَادَةُ بْنُ النُّعْمَانِ الْاَنْصَارِيُّ. مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوْحِ. مُعَوِّذُ بْنُ عَفْرَاءَ وَ اَخُوْهُ. مَالِكُ بْنُ رَبِيْعَةَ اَبُوْ اُسَيْدٍ الْاَنْصَارِيُّ. مُرَارَةُ بْنُ الرَّبِيْعِ الْاَنْصَارِيُّ. مَعْنُ بْنُ عَدِيٍّ الْاَنْصَارِيُّ. مِسْطَحُ بْنُ اُثَاثَةَ بْنِ عَبَّادِ بْنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ. مِقْدَادُ بْنُ عَمْرٍو الْكِنْدِيُّ حَلِيْفُ بَنِيْ زُهْرَةَ. هِلَالُ بْنُ

بن عثمان ابوبكر صديق قرشيؓ (۲۲) عبدالله بن مسعود هذليؓ (۲۳) عتبه بن مسعود هذليؓ (۲۴) عبدالرحمٰن بن عوف زهريؓ (۲۵) عبيده بن حارث قرشيؓ (۲۶) عباده بن صامت انصاريؓ (۲۷) عمر بن خطاب عدويؓ (۲۸) عثمان بن عفان قرشيؓ هغه حضور صلي الله عليه وسلّم مدينه كښې خپل ورستو ذ خپلے لور ذ تيمارداري يعني علاج معالجے ذ پاره پريښے وو، خو ذ هغهٔ حصه ئے مال غنيمت كښې لږولے وه (۲۹) علي بن ابي طالب هاشميؓ (۳۰) عمرو بن عوف ذ بني عامر بن لوئ حليف (۳۱) عقبه بن عمر انصاريؓ (۳۲) عامر بن ربيعه عنزيؓ (۳۳) عاصم بن ثابت انصاري (۳۴) عويم بن ساعده انصاريؓ (۳۵) عتبان بن مالک انصاريؓ (۳۶) قدامه بن مظعونؓ (۳۷) قتاده بن نعمان انصاريؓ (۳۸) معاذ بن عمرو بن جموحؓ (۳۹) معوذ بن عفراءؓ (۴۰) او ذ هغهٔ وررور عوفؓ (۴۱) مالک بن ربيعه ابو اسيد انصاريؓ (۴۲) مراره بن ربيع انصاريؓ (۴۳) معن بن عدي انصاريؓ (۴۴) مسطح بن اثاثه بن عباد بن مطلب بن عبدمناف. (۴۵) مقداد بن عمرو كندي ذ بني زهره حليف (۴۶) هلال بن اميه انصاريؓ. اللّٰه دے ذ دے ټولو نه مونږ سره راضي

اُمَيَّةَ الْاَنْصَارِيُّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ.

شي. اللّٰهم امين.

بَاب ۱۴ : حَدِيْثِ بَنِيْ النَّضِيْرِ وَ مَخْرَجِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيْهِمْ فِيْ دِيَةِ الرَّجُلَيْنِ وَمَا اَرَادُوْا مِنَ الْغَدْرِ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الزُّهْرِيُّ عَنْ عُرْوَةَ كَانَتْ عَلٰى رَأْسِ سِتَّةِ اَشْهُرٍ مِنْ وَّقْعَةِ بَدْرٍ قَبْلَ اُحُدٍ وَّ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى هُوَ الَّذِيْ اَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ وَ جَعَلَهُ ابْنُ اِسْحٰقَ بَعْدَ بِئْرِ مَعُوْنَةَ وَ اُحُدٍ.

باب ۱۴ : يهود بني نضير[۱] ته ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف اوړل، ذ دوو سړو ذ ديت په سلسله کښې. او ذ هغوي ذ خدائے رسول سره دهوکه کول. زهري. عروه بن زبير نه روايت کوي، ذ هغة بيان دے، غزوه بني نضير ذ بدر نه شپږ مياشتے پس او ذ اُحد نه مخکښې اوشوه، او ذ اللّٰه تعالٰي سورة حشر کښې فرمائيل: هو الّذى اخرج الّذين كفروا من اهل الكتاب من ديارهم لاوّل الحشر: دغه پروردګار دے، چه هغه ذ اهل کتاب کافر ذ هغوي ذ کورونو نه اوبنکل. دا ذ هغوي وړمبے وتل وو. او ابن اسحاق هم ذ بني نضير نه پس ذ بير معونه او جنګ اُحد ذکر کړے دے.

۱. بنو نضير او بنو قريظه په مدينه کښې د يهوديانو دوه لوئے قبيلے وے او د مدينے په اقتصادياتو باندے تر ډيره حده پورے حاوي وو. کله چه حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم هجرت اوکړو او مدينے ته ئے تشريف راوړو نو حضورؐ هغوئ سره د امن او صلحے لوظنامه کړے وه ليکن هغوئ د غدر او بے لوظئ عادي وو. په دغه لوظنامه کښے هم هغوئ همدا طرز عمل اختيار کړو. په دے وجه د هغوئ ذ بے لوظيانو نه تنګ راتللو سره حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوئ لره ريحا، تيماء او وادي القريٰ طرفته جلاوطن کړي وو.

۷۵: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ حَارَبَتِ النَّضِيْرُ وَ قُرَيْظَةُ فَاَجْلٰى بَنِي النَّضِيْرِ وَ اَقَرَّ قُرَيْظَةَ وَمَنَّ عَلَيْهِمْ حَتّٰى حَارَبَتْ قُرَيْظَةُ فَقَتَلَ رِجَالَهُمْ وَ قَسَمَ نِسَآءَ هُمْ وَ اَوْلَادَهُمْ وَ اَمْوَالَهُمْ بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ اِلَّا بَعْضَهُمْ لَحِقُوْا بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۷۵: اسحٰق بن نصر. عبدالرزاق. ابن جريج. موسٰي بن عقبه. نافعؒ. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، هغة اووے، بني نضير او بني قريظه جنګ اوکه، نو بني نضير ئے جلاوطن کړل، او په بني قريظه ئے احسان اوکه، هغوي ئے پريښودل. ليکن هغوي دوباره جنګ اوکه، نو مسلمانانو ذ هغوي نارينه قتل کړل، او ښځے، بچي او مال اسباب ئے په مسلمانانو تقسيم کړل، خو کوم خلق چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره يوځائے شول،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاٰمَنَهُمْ وَ اَسْلَمُوْا وَ اَجْلٰى يَهُوْدَ الْمَدِيْنَةِ كُلَّهُمْ بَنِيْ قَيْنُقَاعَ وَهُمْ رَهْطُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ وَّ يَهُوْدَ بَنِيْ حَارِثَةَ وَ كُلَّ يَهُوْدِ الْمَدِيْنَةِ.

يعني مسلمانان شولو. هغوي باقي پاتې شو. باقي ئې د مدينې ټول يهوديان چه بني قينقاع يعني د عبدالله بن سلام قوم والا وو، او د بني حارثه يهوديان او کوم يهود چه مدينه کښې موجود وو هغه ټول ئې اوبنکل.

۷٦: حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُدْرِكٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ سُوْرَةُ الْحَشْرِ قَالَ قُلْ سُوْرَةُ النَّضِيْرِ تَابَعَهُ هُشَيْمٌ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ.

۷٦: حسن بن مدرک. يحيي بن حماد. ابو عوانه. سعيد بن جبير نه روايت کوي هغهٔ اووے، د حضرت ابن عباسؓ مخکښې د سورهٔ حشر ذکر راغے، نو هغه اوفرمائيل چه سورهٔ نضير وايه. ابو عوانه سره دا حديث هشيم هم د ابو بشر نه روايت کړے دے.

۷۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ اَبِيْهِ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ يَجْعَلُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّخَلَاتِ حَتّٰى افْتَتَحَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيْرَ فَكَانَ بَعْدَ ذٰلِكَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ.

۷۷: عبدالله بن اسود. معتمر بن سليمان، د خپل پلار سليمان نه روايت کوي هغه اووے، ما د حضرت انسؓ نه واوريدل، حضور صلي الله عليه وسلم د پاره خلقو د قجورے د اُونے په طور د تحفے نامزد کړے وے (چه حضورؐ د دے په ميوه ګزاره کوي) تردے چه حضورؐ په بني قريظه او بني نضير فتح بيامنده. او بيا حضورؐ هغه واپس کړلے.

۷۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ حَرَّقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيْرِ وَ قَطَعَ وَهِيَ الْبُوَيْرَةُ فَنَزَلَتْ مَا قَطَعْتُمْ مِّنْ لِّيْنَةٍ اَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَائِمَةً عَلٰى اُصُوْلِهَا فَبِاِذْنِ اللّٰهِ.

۷۸: آدم. ليث. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، هغهٔ اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلم د بني نضير د کجورو اُونے اوسوزولے بعضے ئے کټ کړلے، چه بويره کښې وے، نو هغه وخت د سورهٔ حشر دا آيت نازل شولو (ترجمه) يعني کومے اُونے چه تا کټ کړلے، يا هغه دے د هغے جرړو سره قائمے اوساتلے، نو دا د الله حکم سره اوشو.

۷۹: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا

۷۹: اسحاق. حبان. جويريه بن

حَبَّانُ اَخْبَرَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ اَسْمَآءَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّقَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيْرِ قَالَ وَلَهَا يَقُوْلُ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍؓ ـ

وَ هَانَ عَلٰى سَرَاةِ بَنِيْ لُؤَيٍّ
حَرِيْقٌ بِالْبُوَيْرَةِ مُسْتَطِيْرُ

قَالَ فَاَجَابَهُ اَبُوْ سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ ـ

اَدَامَ اللّٰهُ ذٰلِكَ مِنْ صَنِيْعٍ
وَ حَرَّقَ فِيْ نَوَاحِيْهَا السَّعِيْرُ
سَتَعْلَمُ اَيُّنَا مِنْهَا بِنُزْهٍ
وَ تَعْلَمُ اَيَّ اَرْضَيْنَا تَضِيْرُ

۰۸۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَالِكُ بْنُ اَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ النَّصْرِيُّ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِؓ دَعَاهُ اِذْ جَآءَهُ حَاجِبُهُ يَرْفَأُ فَقَالَ هَلْ لَكَ فِيْ عُثْمَانَ وَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَالزُّبَيْرِ وَ سَعْدٍ يَسْتَاْذِنُوْنَ فَقَالَ نَعَمْ فَاَدْخِلْهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ جَآءَ فَقَالَ هَلْ لَكَ فِيْ عَبَّاسٍ وَ عَلِيٍّ يَسْتَاْذِنَانِ قَالَ نَعَمْ فَلَمَّا دَخَلَا قَالَ عَبَّاسٌ يَآ اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْضِ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ هٰذَا وَ هُمَا يَخْتَصِمَانِ فِي الَّذِيْ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي النَّضِيْرِ فَاسْتَبَّ عَلِيٌّ وَ عَبَّاسٌ فَقَالَ

اسماء. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، هغه اووې، رسول الله صلي الله عليه وسلم د بني نضير د قجورو اونې اوسوزولې، نو حسان بن ثابت دا شعر اووې.

ترجمه:

يعني د بني لوئ په شريفانو آسان شو
لړيدلې اور بويره کښې ټول طرف ته برابر

ابوسفيان بن حارث د حسان په جواب کښې اووې:

ترجمه: يعني خدائے د کړي چه هميشه دا حال هلته وي
د مدينې څلور طرف ته سوزيدونکې اور وي
تاسو ته به دا معلومه شي عنقريب چه څوک به مونږ کښې
پاتې شي محفوظ او کوم ملک به نور نقصان اوچتوي

۰۸۰: ابواليمان. شعيب. زهري نه روايت کوي، هغه اووې، ماته مالک بن اوس بن حدثان نصري خبر راکړه، زهٔ حضرت عمرؓ راوغبنتلم، دے کښې يرفا دربان راغې، او هغه اووې، تاسو غواړئ، چه حضرت عثمانؓ او عبدالرحمن بن عوفؓ، زبيرؓ او سعد بن ابي وقاصؓ تاسو له راشي، هغوي ورته اوفرمائيل، راځي دې. لږ ساعت پس بيا يرفا اووې، چه حضرت عباسؓ او حضرت عليؓ هم راتلل غواړي، وې فرمائيل، راځي دې، بيا هغوي راغلل، او سلام ئې اوکړه. بيا حضرت عباسؓ اووې، اميرالمؤمنين، خما او د عليؓ مينځ کښې د دې جګړې فيصله اوکړئ، چه د دې مال متعلق ده، چه الله بې جنګه د بني نضير نه خپل رسولؐ ته ورکړې دې، او دواړو يو بل باندې

الرَّهْطُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْضِ بَيْنَهُمَا وَ اَرِحْ اَحَدَهُمَا مِنَ الْاٰخَرِ فَقَالَ عُمَرُ اِتَّئِدُوْا اَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ الَّذِيْ بِاِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ هَلْ تَعْلَمُوْنَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ يُرِيْدُ بِذٰلِكَ نَفْسَهٗ قَالُوْا قَدْ قَالَ ذٰلِكَ فَاَقْبَلَ عُمَرُ عَلٰى عَبَّاسٍ وَّ عَلِيٍّ فَقَالَ اَنْشُدُكُمَا بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمَانِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قَالَ فَاِنِّيْ اُحَدِّثُكُمْ عَنْ هٰذَا الْاَمْرِ اِنَّ اللّٰهَ سُبْحَانَهٗ كَانَ خَصَّ رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَا الْفَيْءِ بِشَيْءٍ لَّمْ يُعْطِهٖ اَحَدًا غَيْرَهٗ فَقَالَ جَلَّ ذِكْرُهٗ وَمَا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَا اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ اِلٰى قَوْلِهٖ قَدِيْرٌ فَكَانَتْ هٰذِهٖ خَالِصَةً لِّرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ وَاللّٰهِ مَا احْتَازَهَا دُوْنَكُمْ وَلَا اسْتَاْثَرَهَا عَلَيْكُمْ لَقَدْ اَعْطَاكُمُوْهَا وَ قَسَمَهَا فِيْكُمْ حَتّٰى بَقِيَ هٰذَا الْمَالُ مِنْهَا فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ عَلٰى اَهْلِهٖ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِّنْ هٰذَا الْمَالِ ثُمَّ يَاْخُذُ مَا بَقِيَ فَيَجْعَلُهٗ مَجْعَلَ مَالِ اللّٰهِ فَعَمِلَ ذٰلِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

تنقيد اوکړو. نو حاضرينو اووے چه اے امير المؤمنين ددے دواړو فيصله اوکړئ چه ذ شپے ورځے دا جګړه ختمه شي، حضرت عمرؓ ورته اوفرمائيل، لږ صبر اوکړئ، تادي مه کوئ، زهٔ تاسو ته ذ هغے پروردګار قسم درکوم، چه ذ هغه حکم سره آسمان او زمکه قائم دي، تاسو ته معلومه ده، چه حضورؐ فرمائيلے دي، خمونږ خلقو هيڅوک وارث نهٔ وي، کوم مال چه مونږ پريږدو، هغه صدقه دے، هغوي اووے بيشکه حضورؐ دا فرمائيلے دي. بيا حضرت عمرؓ، عباسؓ او عليؓ ته مخاطب شو، ورته ئے ونيلے، آيا تاسو ته معلومه ده، چه رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم داسے فرمائيلے دي، هغوي اووے، بيشکه داسے ئے فرمائيلے دي، دے نه پس حضرت عمرؓ اوفرمائيل، اوس تاسو ذ معاملے ذ حقيقت نه آګاه کوم، اللّٰه تعالي، رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ذ مال غنيمت نه يو خاص حق ورکړے وو، چه نورو پيغمبرانو ته ئے نهٔ وو ورکړے، سورهٔ حشر کښې ارشاد دے (ترجمه) کوم مال چه اللّٰه خپل رسول ذ پاره ذ بني نضير غنيمت کښې ورکړے وو ذ هغے ذ حاصلولو ذ پاره تاسو خپل آسونه او سورلئ نهٔ وے زغلولے، نو داسے قسم مال صرف ذ حضورؐ ذ پاره وو. ذ مجاهدينو په دے کښې هيڅ حق نهٔ وو، خو قسم په خدائے حضورؐ ذ دے قسم مال ذ خپل ذات ذ پاره نهٔ وو محفوظ کړے بلکه په خپل ذات ئے خرچ که، او څه چه بچ شو، هغه ئے تقسيم کړلو. او څهٔ چه به

وَسَلَّمَ حَيَاتَهُ ثُمَّ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍؓ فَاَنَا وَلِيُّ رَسُوْلِ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبَضَهُ اَبُوْ بَكْرٍؓ فَعَمِلَ فِيْهِ بِمَا عَمِلَ بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ فَاَقْبَلَ عَلٰى عَلِيٍّ وَ عَبَّاسٍ وَّ قَالَ تَذْكُرَانِ اَنَّ اَبَا بَكْرٍؓ عَمِلَ فِيْهِ كَمَا تَقُوْلَانِ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَنَّهُ فِيْهِ لَصَادِقٌ بَارٌّ رَّاشِدٌ تَابِعٌ لِّلْحَقِّ ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ اَبَا بَكْرٍؓ فَقَبَضْتُهُ سَنَتَيْنِ مِنْ اِمَارَتِيْ اَعْمَلُ فِيْهِ بِمَا عَمِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْبَكْرٍؓ وَّاللّٰهُ يَعْلَمُ اَنِّيْ فِيْهِ صَادِقٌ بَارٌّ رَّاشِدٌ تَابِعٌ لِّلْحَقِّ ثُمَّ جِئْتُمَانِيْ كِلَاكُمَا وَ كَلِمَتُكُمَا وَاحِدَةٌ وَّ اَمْرُكُمَا جَمِيْعٌ فَجِئْتَنِيْ يَعْنِيْ عَبَّاسًا فَقُلْتُ لَكُمَا اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ فَلَمَّا بَدَالِيْ اَنْ اَدْفَعَهُ اِلَيْكُمَا قُلْتُ اِنْ شِئْتُمَا دَفَعْتُهُ اِلَيْكُمَا عَلٰى اَنَّ عَلَيْكُمَا عَهْدَ اللّٰهِ وَ مِيْثَاقَهُ لَتَعْمَلَانِ فِيْهِ بِمَا عَمِلَ فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ بَكْرٍؓ وَمَا عَمِلْتُ فِيْهِ مُنْذُوَلِيْتُ وَ اِلَّا فَلَا تُكَلِّمَانِيْ فَقُلْتُمَا ادْفَعْهُ اِلَيْنَا بِذٰلِكَ فَدَفَعْتُهُ اِلَيْكُمَا اَفَتَلْتَمِسَانِ مِنِّيْ

باقي پاتے شو' هغے نه به نے د خپلو بیبانو د پاره د کال خرڅ اوبنکلو' او بیا چه به څه بچ شو' هغه به نے د اللّٰه په لار کښې خرچ کولو. او حضورؐ به خپل ټول ژوند کښې دغسے کول. بیا چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم وفات شولو' نو حضرت ابوبکر دے ونیلو سره چه د رسول د خدائے جانشین یم په هغے مال قبضه او کړله او هغه نے هغسے تقسیم او خرڅ کولو' او تاسو به هغه وخت د هغه نه دے سلسله کښې گله کوله' حالانکه خدائے پوهیږي چه هغه خپل دے طرز عمل کښې حق بجانب وو' کوم وخت چه حضرت ابوبکرؓ وفات شو' نو ما خپل خان د هغے دواړو ولي او جانشين گنړلو سره هغه او کړل کوم څه چه حضرت ابوبکرؓ کول' او اللّٰه تعالي پوهیږي' چه زه دے کښې ریښتنے او د حق پیرو یم. بیا تاسو دواړه ماله راغلنے' او متفق الرائے وئے' بیا اے عباسؓ تاسو ماله راغلنے' او ما تاسو ته هغه اووے' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلے دي' چه خمونږ هیڅوک وارث نشته' څه چه مونږ پریږدو هغه صدقه ده. بیا ما تاسو دواړو ته اووے' زه غواړم' چه دا کار تاسو دواړو ته اوسپارم' په شرط د دے چه تاسو د خدائے عهد و پیمان مدنظر ساتئے' او دا کار داسے سرته رسوئے' څنګه چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سرته رسولو' څنګه چه ابوبکرؓ دا کار کولو' او څنګه چه زه ئے کوم. که تاسو ته دا شرط منظور نه وي' نو

قَضَآءٍ غَيْرَ ذٰلِكَ فَوَاللّٰهِ الَّذِيْ بِإِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ لَا اَقْضِيْ فِيْهِ بِقَضَآءٍ غَيْرَ ذٰلِكَ حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ فَاِنْ عَجَزْتُمَا عَنْهُ فَادْفَعَا اِلَيَّ فَاَنَا اَكْفِيْكُمَاهُ قَالَ فَحَدَّثْتُ هٰذَا الْحَدِيْثَ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ فَقَالَ صَدَقَ مَالِكُ بْنُ اَوْسٍ اَنَا سَمِعْتُ عَآئِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقُوْلُ اَرْسَلَ اَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُثْمَانَ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ يَسْاَلْنَهُ ثُمُنَهُنَّ مِمَّا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُنْتُ اَنَا اَرُدُّهُنَّ فَقُلْتُ لَهُنَّ اَلَا تَتَّقِيْنَ اللّٰهَ اَلَمْ تَعْلَمْنَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ يُرِيْدُ بِذٰلِكَ نَفْسَهُ اِنَّمَا يَاْكُلُ اٰلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَا الْمَالِ فَانْتَهٰى اَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى مَا اَخْبَرْتُهُنَّ قَالَ فَكَانَتْ هٰذِهِ الصَّدَقَةُ بِيَدِ عَلِيٍّ مَنَعَهَا عَلِيٌّ عَبَّاسًا فَغَلَبَهُ عَلَيْهَا ثُمَّ كَانَ بِيَدِ حَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ ثُمَّ بِيَدِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ ثُمَّ بِيَدِ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ وَّ حَسَنِ بْنِ حَسَنٍ كِلَاهُمَا يَتَدَاوَلَانِهَا ثُمَّ بِيَدِ زَيْدِ بْنِ حَسَنٍ وَّ هِيَ صَدَقَةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

بيا د څهٔ قسم خبرو ضرورت نشته' تاسو دا خبره منظوره کړه نو ما درته دا مال اوسپارلو. اوس که تاسو ذ دے نه سِوا څهٔ بله فيصله غواړئے' نو په هغه پروردګار م دے قسم وي' چه ذ هغه حکم سره آسمان او زمکه قائم دي' زهٔ ذ قيامته پورے بله څهٔ فيصله کونکے نهٔ يم' البته که تاسو نه ذ دے مال انتظام نشي کيدے' نو بيانئے ماته حواله کړئے' زهٔ به ئے خپله کوم' زهري واني' ما دا حديث عروه ته بيان کهٔ' هغهٔ اوورے' مالک بن اوس ريښتيا اوورے' څکه چه ما ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ ټبر بي بي عائشےؓ نه واوريدل' چه ذ حضور صلي الله عليه وسلّم بيبيانو حضرت عثمانؓ' حضرت ابوبکرؓ له اوليږلو' چه ذ هغے مال نه کوم چه د بني نضير نه حاصل شوے دے' خپله اتمه حصه واخلي. ليکن هغوي ما منع کړلے' او ورته م اوورے' آيا تاسو د خدائے نه خوف نهٔ لرئے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم به فرمائيل' ذ پيغمبرانو هيڅوک وارث نشته. مونږ چه څهٔ پريږدو هغه صدقه ده. هغوي ذ دے نه خپل ذات مراد واخستلو. صرف آل محمد ذ دے مال نه خوړلے شي دے آوريدو سره ذ حضورؐ بيبيانے ذ ميراث غوښتلو نه منع شوے. عروه اوورے' دا مال ذ حضرت عليؓ په قبضه کښ وو. هغهٔ حضرت عباسؓ ته په دے قبضه ورنهٔ کړله. هغهٔ نه پس امام حسنؓ بيا امام حسينؓ بيا زين العابدين او حسن بن حسن وار په وار ذ دے انتظام کولو. بيا ذ زيد بن حسن په قبضه کښ وو' بيا ټولو دا ذ رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم صدقه ګڼړله او په حيثيت ذ متولي به ئے کار

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقًّا. كولو ئ.

۱. دا حديث دد ے نه مخکښے هم تیر شوے دے او مخکښے هم په نوټ کښے ددے وضاحت کړے شوے وو چه د فدک دغه جائداد په باره کښے چه د حضرت علي رضي الله عنه کوم اختلاف وو هغه صرف ددے خبرے وو چه ددے نګراني به څوک کوي او ددے صدقے متولي به څوک وي. د حديث نه هم دا معلوميږي چه که چرے مخکښے څه غلط فهمي وه هم نو هغه د حضورﷺ ددے حديث ټولو حضراتو ته معلوميدلو نه پس لرے شوے وه چه د انبياؤ ميراث نه تقسيميږي. په حنفي فقه کښے دا جزئيه ملاويږي چه تر څو پورے خيانت ظاهر نشي نو بهتره داده چه د وقف متوليان د ذ واقف د اولاد نه وي.

۸۱: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ وَالْعَبَّاسَ أَتَيَا أَبَا بَكْرٍ يَلْتَمِسَانِ مِيرَاثَهُمَا أَرْضَهُ مِنْ خَيْبَرَ فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ إِنَّمَا يَأْكُلُ آلُ مُحَمَّدٍ فِي هٰذَا الْمَالِ وَاللّٰهِ لَقَرَابَةُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ أَصِلَ مِنْ قَرَابَتِي.

۸۱: ابراهيم بن موسٰي. هشام. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، هغے اوو ے حضرت عباسؓ او بي بي فاطمهؓ دواړه حضرت ابوبکرؓ له راغلل، او خپل ميراث ئے د فدک د زمکے او د خيبر آمدنی نه اوغوښتلو. حضرت ابوبکرؓ ورته اوفرمائيل، ما د رسول د خدائے نه آوريدلے دي، چه څمونږ خلقو څوک وارث نه وي، مونږ چه څهٔ پريږدو، هغه صدقه ده، البته ال محمد د خپلے ګزارے د پاره ددے نه آخستے شي. پاتے شو سلوک کول. نو قسم په خدائے، زهٔ د رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم رشته دارانو سره سلوک د خپلو رشته دارانو نه زيات خوښوم.

## بَابُ ۱۵ : قَتْلِ كَعْبِ بْنِ الْأَشْرَفِ.

باب ۱۵ : د کعب بن اشرف يهودي د قتل واقعه.

۸۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لِكَعْبِ ابْنِ الْأَشْرَفِ فَإِنَّهُ قَدْ آذَى اللّٰهَ وَرَسُولَهُ فَقَامَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَتُحِبُّ أَنْ أَقْتُلَهُ

۸۲: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بن دينار نه روايت کوي، ما د جابر بن عبدالله نه واوريدل، حضورﷺ صحابهٔ ؤ ته اوفرمائيل، د کعب بن اشرف کار څوک تمام ولے شي (يعني څوک ئے قتلولے شي) هغهٔ، الله او رسول ته ډير تکليف رسولے دے، محمد بن مسلمه انصاري اودريد، او وئيلے، يا رسول الله، که تاسو ماله اجازت راکړے، نو زهٔ به دا کار تر سره کړم، حضورﷺ

قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأْذَنْ لِيْ اَنْ اَقُوْلَ شَيْئًا قَالَ قُلْ فَاَتَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَقَالَ اِنَّ هٰذَا الرَّجُلَ قَدْ سَاَلَنَا صَدَقَةً وَّ اِنَّهُ قَدْ عَنَّانَا وَّ اِنِّيْ قَدْ اَتَيْتُكَ اَسْتَسْلِفُكَ قَالَ وَ اَيْضًا وَّاللّٰهِ لَتَمَلُّنَّهُ قَالَ اِنَّا قَدِ اتَّبَعْنَاهُ فَلَا نُحِبُّ اَنْ نَّدَعَهُ حَتّٰى نَنْظُرَ اِلٰى اَيِّ شَيْءٍ يَّصِيْرُ شَاْنُهُ وَقَدْ اَرَدْنَا اَنْ تُسْلِفَنَا وَسْقًا اَوْ وَسْقَيْنِ وَ حَدَّثَنَا عَمْرٌو غَيْرَ مَرَّةٍ فَلَمْ يَذْكُرْ وَسْقًا اَوْ وَسْقَيْنِ فَقُلْتُ لَهُ فِيْهِ وَسْقًا اَوْ وَسْقَيْنِ فَقَالَ اُرٰى فِيْهِ وَسْقًا اَوْ وَسْقَيْنِ فَقَالَ نَعَمْ اِرْهَنُوْنِيْ قَالُوْا اَيَّ شَيْءٍ تُرِيْدُ قَالَ ارْهَنُوْنِيْ نِسَآءَكُمْ قَالُوْا كَيْفَ نَرْهَنُكَ نِسَائَنَا وَ اَنْتَ اَجْمَلُ الْعَرَبِ قَالَ فَارْهَنُوْنِيْ اَبْنَاءَكُمْ قَالُوْا كَيْفَ نَرْهَنُكَ اَبْنَآءَنَا فَيُسَبُّ اَحَدُهُمْ فَيُقَالُ رُهِنَ بِوَسْقٍ اَوْ وَسْقَيْنِ هٰذَا عَارٌ عَلَيْنَا وَلٰكِنَّا نَرْهَنُكَ اللَّاْمَةَ قَالَ سُفْيَانُ يَعْنِي السِّلَاحَ فَوَاعَدَهُ اَنْ يَّاْتِيَهُ فَجَآءَهُ لَيْلًا وَّ مَعَهُ اَبُوْ نَائِلَةَ وَهُوَ اَخُوْ كَعْبٍ مِّنَ الرَّضَاعَةِ فَدَعَاهُمْ اِلَى الْحِصْنِ

ورته اوفرمائيل، اجازت دے. محمد بن مسلمه اووے، ماته دا هم اجازت راکړے، چه څۀ مناسب اوګڼړم ﷺ خبرے هغه سره اوکړم. حضورؐ اجازت ورکۀ، غرض محمد بن مسلمه، کعب بن اشرف له ورغے، ورته ئے اووے، دا سړے يعني محمد بن عبدالله خمونږ نه زکوٰة غواړي. مونږ سره خپله نشته، او دے مونږ تنګوي. کعب ورته اووے، (لا صبر اوکه) تا څۀ ليدلے دي. دے به لا مخکښې تاسو ډير تنګ کړي. محمد بن مسلمه اووے، خير اوس خو مونږ دَ هغۀ پيروي شروع کړے ده، سمدستي پرېښودل ئے هم ټيک راته نۀ ښکاري چه لا مخکښې به څۀ کيږي. دے وخت زۀ تاله راغلے يم، چه يو يا دوه وسق قجورے مونږ له قرض راکړه. سفيان وائي، عمرو بن دينار مونږ ته څو ځله دا حديث واورولو، نو هغے کښې ئے دَ يو وسق قجورو ذکر اونۀ کۀ، چه ما ورته وريادکړل، نو ونيلے ئے، او، خما دا خيال دے، چه دغسے به وي. غرض کعب اووے. قرض به درکړم، څۀ څيز راسره رهن (ګانړه) کړه. ما ورته اووے، څۀ درسره رهن کړم، کعب اووے، خپلے ښځے راسره ګانړه کړه. محمد بن مسلمه اووے، دا څنګه کيدے شي، مونږ خپلے ښځے څنګه درسره ګانړه کړو، ټولو عربو کښې تۀ خوبصورته ئے. هغۀ اووے، خپل خامن راسره رهن کړه. ما اووے، تاسره خپل خامن څنګه رهن کړم، آينده چه څوک هغوي سره جنګيږي، نو طعنه به ورکوي، چه تۀ يو يا دوه وسق کښې ګانړه شوے وے، او دا مونږ بد ګڼړو. البته مونږ خپله وسله درسره ايښودے شو سفيان دَ لفظ لامه تفسير سلاح يعني هتيار کړے دے. محمد

فَنَزَلَ اِلَيْهِمْ فَقَالَتْ لَهُ امْرَأَتُهُ اَيْنَ تَخْرُجُ هٰذِهِ السَّاعَةَ فَقَالَ اِنَّمَا هُوَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ وَ اَخِيْ اَبُوْ نَائِلَةَ وَ قَالَ غَيْرُ عَمْرٍو قَالَتْ اَسْمَعُ صَوْتًا كَاَنَّهُ يَقْطُرُ مِنْهُ الدَّمُ قَالَ اِنَّمَا هُوَ اَخِيْ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ وَ رَضِيْعِيْ اَبُوْ نَائِلَةَ اِنَّ الْكَرِيْمَ لَوْدُعِيَ اِلٰى طَعْنَةٍ بِلَيْلٍ لَاَجَابَ قَالَ وَ يُدْخِلُ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ مَعَهُ بِرَجُلَيْنِ قِيْلَ لِسُفْيَانَ سَمَّاهُمْ عَمْرٌو قَالَ سَمَّى بَعْضَهُمْ قَالَ عَمْرٌو جَآءَ مَعَهُ بِرَجُلَيْنِ وَ قَالَ غَيْرُ عَمْرٍو وَ اَبُوْ عَبْسِ بْنُ جَبْرٍ وَّالْحَارِثُ بْنُ اَوْسٍ وَّ عَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ قَالَ عَمْرٌو جَآءَ مَعَهُ بِرَجُلَيْنِ فَقَالَ اِذَا مَا جَآءَ فَاِنِّيْ قَائِلٌ بِشَعْرِهٖ فَاَشَمُّهُ فَاِذَا رَاَيْتُمُوْنِيْ اسْتَمْكَنْتُ مِنْ رَّاْسِهٖ فَدُوْنَكُمْ فَاضْرِبُوْهُ وَ قَالَ مَرَّةً ثُمَّ اُشِمُّكُمْ فَنَزَلَ اِلَيْهِمْ مُتَوَشِّحًا وَّهُوَ يَنْفَحُ مِنْهُ رِيْحُ الطِّيْبِ فَقَالَ مَا رَاَيْتُ

بن مسلمه، كعب سره دوباره ذ يوخانے كيدو وعده اوكړله، او لاړلو، ذ شپے دوباره راغے، او ابو نائله ئے خان سره راوست، چه ذ كعب پنے شريک ورور وو، كعب هغوي قلعه ته راوغبنتل، او بيا هغوي ته خكته راغے، ذ هغهٔ بنځے ورته اووے، په دے وخت چرته ځے، كعب ورته اووے، دا محمد بن مسلمه او ابو نائله خما ورور دے، چه غواړي م. سفيان وائي، ذ عمر بن دينار نه سِوا نورو خلقو دے حديث كښ دومره نور زياتے كړے دے، (يعني زيات الفاظ ئے راوړے دي) چه ذ كعب بنځے دا هم اووے، ذ دے آواز نه خو ذ وينے (خون) بوي راځي، يا وينه څاڅي، كعب ورته اووے، هيڅ نشته. خما ورور ابو نائله او محمد بن مسلمه دے. او شريف سړي له خو ذ شپے وخت كښ هم كه نيزه وهلو له اوبلي، تلل پكار دي. او محمد بن مسلمه خان سره دوه سړي نور هم راوستے وي. سفيان نه تپوس اوشو، چه عمرو ذ هغوي نوم آخستے وو، هغهٔ اووے، ذ بعضے ئے اخستے وو. خو نورو ذ ابو عبس بن جبير او حارث بن اوس او عباد بن بشر نوم آخستے وو، عمرو دومره قدر اووے. محمد بن مسلمه خپلو ملگروته اووے، كعب چه راشي، نو زهٔ به د هغهٔ د سر ويښته نيسلے بوئ كړم. كله چه تاسو اووينے چه ما مضبوط اونيولو نو تاسو خپل كار ترسره كړئے. غرض كعب څادر اغُستے راكوز شولو. د هغهٔ ذ جسم نه خوشبوي تله. محمد بن مسلمه ورته اووے، ما ننه پورے داسے خوشبوئ چرته نهٔ ده ليدلے چه تپوله هوا، ئے معطر كړے ده. ذ عمرو نه علاوه نور راويان وائي، كعب جواب كښ اووے، دا وخت ماسره

كَـالْيَـوْمِ رِيْـحًـا اَىْ اَطْيَـبَ وَ قَـالَ غَيْـرُ عَمْـرٍو قَـالَ عِنْـدِيْ اَعْـطَـرُ نِسَـآءِ الْـعَـرَبِ وَ اَكْـمَـلُ الْعَـرَبِ قَـالَ عَمْـرُو فَقَـالَ اَتَـأْذَنُ لِـيْ اَنْ اَشَـمَّ رَأْسَكَ قَـالَ نَـعَـمْ فَشَـمَّـهُ ثُـمَّ اَشَـمَّ اَصْـحَـابَـهُ ثُـمَّ قَـالَ اَتَـأْذَنُ لِـيْ قَـالَ نَـعَـمْ فَـلَـمَّـا اسْتَـمْـكَـنَ مِـنْـهُ قَـالَ دُوْنَـكُـمْ فَـقَـتَلُوْهُ ثُمَّ اَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرُوْهُ.

داسے بنـخـه ده· چـه د ښـولو ښځونه زياته معطره ده· او خُسن و جمال كښې هم بے نظيره ده. عمرو وائي محمد بـن مسـلـمه ترے تپوس او كه. دَ سر بوئيلو اجازت شته؟ هغه ورته اووے· او· مـحـمـد بـن مسلمه خپله هم بو كړلو· او په ملګرو ئے هم بوئ كړلو· بيا دوباره اجازت سره ئے بـوئ كـړلو. او زور سره ئے ټينګ اونيولو ملـګـروتـه ئے اووے رانيسئے· نو هغوي ورله سمدس كار تمام كړلو (يعني وے وژلو) او بيا دَ حضور صلي الله عليـه وسلّم په خدمت كښې حاضر شو· او دَ كعب دَ قتل خوشخبري ئے ورته واوروله.

**ف**: وسق: دَ اوس بار. دَ اوو صاع مقدار. او يو صاع دوه سوه شليريشت تولے وي.

**بَـابُ ۱۶ ۱: قَتْـلِ اَبِـيْ رَافِـعٍ عَبْـدِ الـلّٰـهِ بْـنِ اَبِـى الْحَقِيْقِ وَ يُقَالُ سَلَامُ بْـنُ اَبِى الْحَقِيْقِ كَانَ بِخَيْبَرَ وَ يُـقَـالُ فِيْ حِصْنٍ لَهٗ بِاَرْضِ الْحِجَازِ وَ قَـالَ الـزُّهْـرِيُّ هُـوَ بَـعْـدَ كَعْبِ بْنِ الْاَشْرَفِ.**

**باب ۱۶ ۱**: دَ ابـو رافـع عـبدالـلّٰه بن ابيْ الحقيق قتـل قـصـه. بعضے خلق وائي· چه دَ هغهٔ نوم سلام بن ابي الـحـقيق وو· او هغه خيبر كښې اوسيدلو. او بعضے وائي چـه هـغـه خپـله قلعه واقع حجاز كښې اوسيدلو. دَ زهري بيان دے چه ابو رافع دَ كعب بن اشرف نه پس قتل كړے شوے دے ((رمضان ۶ھ كښې).

۸۳: حَـدَّثَـنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَـدَّثَـنَـا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا ابْـنُ اَبِـيْ زَائِـدَةَ عَـنْ اَبِـيْـهِ عَـنْ اَبِـيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ بَعَثَ رَسُـوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا اِلٰى اَبِيْ رَافِعٍ فَدَخَلَ عَلَيْهِ عَبْدُ الـلّٰـهِ بْـنُ عَتِيْكٍ بَيْتَـهٗ لَيْلًا وَّهُوَ نَائِمٌ فَقَتَلَهٗ.

۸۳: اسـحـٰق بـن نـصـر. يـحـيٰـي بـن آدم ابـن ابـي زائـده. ابـو اسـحـاق سبيعـي. حضـرت بـراء بـن عـازب نـه روايـت كـوي· هـغـه فـرمـائي رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّم څو سـړي ابو رافع پـلـه اولـيږل. هـغـے كـښې عـبدالـلّٰـه بن عتيک هم وو· هـغـه دَ شپے دَ هـغـهٔ كـور تـه ورننـوت· هغه اُوده وو· او هـغـوي هـغـه هـم دغـے حـالـت كـښې قتل كه.

۸۴: حَـدَّثَـنَـا يُـوْسُفُ

۸۴: يـوسف بـن مـوسـي. عبـدالـلّٰـه بن موسي.

بْـنُ مُـوْسٰى حَـدَّثَـنَا عُبَيْدُ اللّٰـهِ بْـنُ مُـوْسٰـى عَـنْ اِسْـرَآئِيْـلَ عَـنْ اَبِـيْ اِسْـحٰـقَ عَـنِ الْبَـرَآءِ قَـالَ بَـعَـثَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ صَلّٰـى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّـمَ اِلٰـى اَبِـيْ رَافِـعٍ الْيَهُـوْدِيِّ رِجَـالًا مِّـنَ الْاَنْـصَـارِ فَـاَمَّـرَ عَـلَيْهِـمْ عَبْـدَ اللّٰـهِ بْـنَ عَتِيْكٍ وَ كَـانَ اَبُـوْ رَافِـعٍ يُـؤْذِيْ رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَلّٰـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ وَ يُعِيْـنُ عَـلَيْـهِ وَ كَـانَ فِـيْ حِـصْـنٍ لَـهُ بِـاَرْضِ الْحِجَـازِ فَـلَـمَّـا دَنَـوْا مِـنْـهُ وَقَـدْ غَـرَبَـتِ الشَّـمْـسُ وَرَاحَ النَّـاسُ بِسَرْحِهِمْ فَـقَـالَ عَبْـدُ اللّٰـهِ لِاَصْحَـابِـهِ اجْـلِسُـوْا مَـكَـانَـكُـمْ فَـاِنِّـيْ مُنْطَلِقٌ وَّ مُتَـلَـطِّـفٌ لِـلْبَـوَّابِ لَعَلِّـيْ اَنْ اَدْخُـلَ فَـاَقْبَـلَ حَتّٰـى دَنَـا مِنَ الْبَـابِ ثُـمَّ تَـقَـنَّـعَ بِثَـوْبِـهٖ كَـاَنَّـهٗ يَقْضِـيْ حَـاجَـةً وَّقَـدْ دَخَـلَ النَّـاسُ فَهَتَفَ بِـهِ الْبَـوَّابُ يَـا عَبْـدَ اللّٰـهِ اِنْ كُنْتَ تُـرِيْـدُ اَنْ تَـدْخُـلَ فَادْخُلْ فَاِنِّيْ اُرِيْدُ اَنْ اُغْـلِـقَ الْبَـابَ فَـدَخَـلْتُ فَكَمَنْتُ فَـلَـمَّـا دَخَـلَ النَّـاسُ اَغْـلَقَ الْبَـابَ ثُـمَّ عَـلَّـقَ الْاَغَـالِيْـقَ عَـلٰـى وَتَـدٍ قَـالَ فَـقُـمْـتُ اِلَـى الْاَقَـالِيْـدِ فَاَخَذْتُهَا فَـفَـتَـحْـتُ الْبَـابَ وَ كَـانَ اَبُـوْ رَافِـعٍ

اسرائيل. ابو اسحٰق. براء بن عازب نه روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ابو رافع ته څو انصار اوليږل' عبداللّٰه بن عتيک ئې سردار مقرر كړ. ابو رافع ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دشمن وو (يعني ذ اسلام دشمن وو) او ذ رسولؐ ذ مخالفينو مدد به ئې كولو' ذ هغه قلعه حجاز كښې وه' او هغې كښې اوسيدلو. كوم وخت چه دا خلق هغې قلعه ته اورسيدل' نو نمر پريوتلے وو' او خلقو خپل خناور ذ مابنام كيدو په وجه واپس راوستل. عبداللّٰه بن عتيک ملګروته اووے' تاسو دلته ايسار شئ' زهٔ ورځم' او دربان ته به څهٔ بهانه اوكړم. دننه ذ ورتلو به كوشش اوكړم' نو عبداللّٰه ورغے' او دروازے ته قريب اورسيد' نو خپل ځان ئې كپړو كښې داسے پټ كړ' لكه څوک چه رفع حاجت ذ پاره كيني' قلعه واله دننه تلے وو' دربان دا خيال اوكړ' چه عبداللّٰه كني خپل سړے دے' آواز ئې وركړ' او ورته ئې اووے' اے ذ اللّٰه بنده' كه ته دننه راتلل غواړے' نو راځه' ځكه چه زهٔ دروازه بندول غواړم. عبداللّٰه بن عتيک وائي. دے آوريدو سره زهٔ دننه ورغلم' او پټ شوم. دربان چه دروازه بنده كړه' نو چابيانے ئې ميخ كښې آويزانده كړے. كوم وخت چه دربان (څوكيدار) اوده شو' نو ما چابيانے راكوزے كړے' او ذ قلعه دروازه م پرانسته (چه تيښته كښې آساني وي) اخوا ابو رافع ته به ذ شپے قصے ونيلے شوے' او هغه خپله بالاخانه كښې ناست وو' قصه ئې آوريدله. هر كله چه داستان ويونكي ټول لاړل. او ابو رافع اُوده شو' نو زهٔ بالاخانے ته ور اُوختم' اوپه كومه دروازه چه به داخليدم' نو هغه به م ذ دننه نه بندوله. او ذ

يُسْمَرُ عِنْدَهُ وَ كَانَ فِيْ عَلَالِيَّ لَهُ
فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْهُ اَهْلُ سَمَرِهٖ صَعِدتُّ
اِلَيْهِ فَجَعَلْتُ كُلَّمَا فَتَحْتُ بَابًا اَغْلَقْتُ
عَلَيَّ مِنْ دَاخِلٍ فَقُلْتُ اِنِ الْقَوْمُ لَوْ
نَذِرُوْا بِيْ لَمْ يَخْلُصُوْا اِلَيَّ حَتّٰى
اَقْتُلَهُ فَانْتَهَيْتُ اِلَيْهِ فَاِذَا هُوَ بِبَيْتٍ
مُظْلِمٍ وَسْطَ عِيَالِهٖ لَا اَدْرِيْ اَيْنَ هُوَ
مِنَ الْبَيْتِ فَقُلْتُ يَا اَبَا رَافِعٍ قَالَ مَنْ
هٰذَا فَاَهْوَيْتُ نَحْوَ الصَّوْتِ فَاَضْرِبُهُ
ضَرْبَةً بِالسَّيْفِ وَ اَنَا دَهِشٌ فَمَا اَغْنَيْتُ
شَيْئًا وَ صَاحَ فَخَرَجْتُ مِنَ الْبَيْتِ
فَاَمْكُثُ غَيْرَ بَعِيْدٍ ثُمَّ دَخَلْتُ اِلَيْهِ
فَقُلْتُ مَا هٰذَا الصَّوْتُ يَا اَبَا رَافِعٍ
فَقَالَ لِاُمِّكَ الْوَيْلُ اِنَّ رَجُلًا فِي الْبَيْتِ
ضَرَبَنِيْ قَبْلُ بِالسَّيْفِ قَالَ فَاَضْرِبُهُ
ضَرْبَةً اَثْخَنَتْهُ وَلَمْ اَقْتُلْهُ ثُمَّ وَضَعْتُ
ظُبَةَ السَّيْفِ فِيْ بَطْنِهٖ حَتّٰى اَخَذَ فِيْ
ظَهْرِهٖ فَعَرَفْتُ اَنِّيْ قَتَلْتُهُ فَجَعَلْتُ
اَفْتَحُ الْاَبْوَابَ بَابًا بَابًا حَتّٰى انْتَهَيْتُ
اِلٰى دَرَجَةٍ لَهُ فَوَضَعْتُ رِجْلِيْ وَ اَنَا
اُرٰى اَنِّيْ قَدِ انْتَهَيْتُ اِلَى الْاَرْضِ
فَوَقَعْتُ فِيْ لَيْلَةٍ مُقْمِرَةٍ فَانْكَسَرَتْ
سَاقِيْ فَعَصَبْتُهَا بِعِمَامَةٍ ثُمَّ انْطَلَقْتُ
حَتّٰى جَلَسْتُ عَلَى الْبَابِ فَقُلْتُ لَا
اَخْرُجُ اللَّيْلَةَ حَتّٰى اَعْلَمَ اَقَتَلْتُهُ
فَلَمَّا صَاحَ الدِّيْكُ قَامَ النَّاعِيْ عَلٰى

دے نه خما غرض دا وو، كه خلقو ته خما پته اولږي نو
هغوي ذ رارسيدو پورے به زهٔ ابو رافع ختم كړم. غرض
زهٔ ابو رافع ته اورسيدم، هغه يو تيارهٔ كمره كښې خپل بال
بچ سره اوده وو، ما ذ هغه خانے بنهٔ شان سره معلوم نهٔ
كړے شو. نو ذ ابو رافع نوم سره مې ورته آواز اوكړهٔ. هغهٔ
اووے، څوك دي زهٔ په آواز ورغلم، ذ تورے گزار
پرے اوكړهٔ. خما زړهٔ رپيدلو، خو دا وار خالي لاړ، او هغهٔ
چغے كړے. زهٔ ذ كوټے نه بهر راووتلم. بيا سمدستي
دننه ورغلم، تپوس مې اوكړهٔ، اے ابو رافع، تا ولے چغے
كړے، هغهٔ زهٔ خپل سرے اوكنړلم، او وئيلے مو
دربانديے بوره شه، اوس چا ما باندے ذ تورے گزار اوكه
دے آوريدو سره پرے ما د تورے يو بل گزار اوكهٔ. زخم
اگر كه ورته ژور اولږيد ليكن مړ نهٔ شولو، آخر ما ذ
تورے دهار ذ هغهٔ په خيټه كينولو، او زور سره مې دباؤ
كړلو، هغه خيرلو سره شاته اورسيدلو. اوس خما يقين
اوشو، چه هغه هلاك شو، بيا زهٔ واپس شوم. يو يو
دروازه به مې پرانستله، او ذ سيړهو نه به راخكته كيدم. زهٔ
پوه شوم، چه زمكه راغله سپوږمۍ شپه وه. زهٔ
راوغرځيدم، او پنډۍ مې ماته شوه، ما خپل پټكي سره
پنډي اوتړله. ذ قلعه نه بهر راووتم، په دروازه كيناستم.
او زړه كښې مې اووے، چه زهٔ به ذ هغه وخته پورے ذ دے
خانے نه، نه خم، څو پورے چه ذ ابو رافع ذ مرگ يقين مې
اونشي، آخر صبا شو. چرگ بانگ اووے. او ذ قلعه د
پاسه په ديوال اودريدے يو سړي اووے، اے خلقو، ابو
رافع ذ حجاز سوداگر مړ شولو. دے آوريدو سره زهٔ
سمدستي خپلو ملگرو طرف ته ورستون شوم. هغوي ته

الشُّوْرِ فَقَالَ اَلنَّعْيُ اَبَا رَافِعٍ تَاجِرَ اَهْلِ الْحِجَازِ فَانْطَلَقْتُ اِلٰى اَصْحَابِيْ فَقُلْتُ النَّجَآءَ فَقَدْ قَتَلَ اللّٰهُ اَبَا رَافِعٍ فَانْتَهَيْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ اُبْسُطْ رِجْلَكَ فَبَسَطْتُ رِجْلِيْ فَمَسَحَهَا فَكَاَنَّهَا لَمْ اَشْتَكِهَا قَطُّ.

۸۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحٌ هُوَ ابْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى اَبِيْ رَافِعٍ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَتِيْكٍ وَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُتْبَةَ فِيْ نَاسٍ مَّعَهُمْ فَانْطَلَقُوْا حَتّٰى دَنَوْا مِنَ الْحِصْنِ فَقَالَ لَهُمْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَتِيْكٍ اُمْكُثُوْا اَنْتُمْ حَتّٰى اَنْطَلِقَ اَنَا فَاَنْظُرَ قَالَ فَتَلَطَّفْتُ اَنْ اَدْخُلَ الْحِصْنَ فَفَقَدُوْا حِمَارًا لَهُمْ قَالَ فَخَرَجُوْا بِقَبَسٍ يَطْلُبُوْنَهُ قَالَ فَخَشِيْتُ اَنْ اُعْرَفَ قَالَ فَغَطَّيْتُ رَاْسِيْ كَاَنِّيْ اَقْضِيْ حَاجَةً ثُمَّ نَادٰى صَاحِبُ الْبَابِ مَنْ اَرَادَ اَنْ يَدْخُلَ فَلْيَدْخُلْ قَبْلَ اَنْ اُغْلِقَهُ فَدَخَلْتُ ثُمَّ اخْتَبَاْتُ فِيْ مِرْبَطِ حِمَارٍ عِنْدَ بَابِ الْحِصْنِ فَتَعَشَّوْا عِنْدَ اَبِيْ رَافِعٍ وَّ تَحَدَّثُوْا حَتّٰى ذَهَبَتْ سَاعَةٌ

م اوورے. اوس ذ دے خائے نه زر ځئ، الله پاک، ابو رافع هلاک کړلو. دے نه پس مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم له راغلو، خوشخبري مو ورته واورولهٔ حضور صلي الله عليه وسلّم خما پښه اوليده، او، وے فرمائيل، خپله پښه او غزوه، ما او غزوله، حضور صلي الله عليه وسلّم پرے لاس مبارک راښکلو. بس داسے معلومېده، چه دے پښے ته هډو څۀ صدمه نۀ ده رسيدلے.

۸۵: احمد بن عثمان. شريح بن مسلمه. ابراهيم بن يوسف. ذ خپل پلار يوسف بن اسحاق نه روايت کوي، هغۀ اوفرمائيل ما ذ حضرت براء بن عازبؓ نه واوريدل، چه حضور صلي الله عليه وسلّم ذ ابو رافع ذ قتلولو ذ پاره عبدالله بن عتيک، عبدالله بن عتبهؓ او نور يو څو سړي اوليږل. کوم وخت چه دا خلق قلعه ته نزدے اورسيدل، نو ابن عتيک خپلو ملګروته اوويے، تاسو ټول دلته ايسار شئ، زۀ ورځم، موقعه ګورم، ابن عتيک وائي، زۀ ورغلم، او د دربان ذ راغښتلو تدبير م کولو، چه دے کښې ذ قلعه والو يو خر ورک شولو، هغوي هغه خر رڼړا اخستو سره تلاش کولو، زۀ او يريدم، چه چرته ما اونۀ پيژني، نو ما خپل سر پټ کړلو، او دا شان کيناستم، څنګه چه څوک رفع حاجت ذ پاره کيني. دے کښې دربان آواز اوکړ، دروازه بنديږي، څوک چه دننه راځي، را دے شي، زۀ تادي سره دننه ورغلم او ذ خرونو ذ تړلو خائے کښې پټ شوم. قلعه والو ابو رافع سره ډوډي اوخوړله، او بيا ذ شپے ډير وخته پورے يے خبرے کولے. کوم وخت چه ټول لاړل او هر طرف ته خاموشي خوره شوه، نو زۀ اووتلم، او دربان چه کوم ځائے چابيانے ايښے

مِنَ اللَّيْلِ ثُمَّ رَجَعُوا إِلَى بُيُوتِهِمْ فَلَمَّا هَدَأَتِ الْأَصْوَاتُ وَلَا أَسْمَعُ حَرَكَةً خَرَجْتُ قَالَ وَ رَأَيْتُ صَاحِبَ الْبَابِ حَيْثُ وَضَعَ مِفْتَاحَ الْحِصْنِ فِيْ كُوَّةٍ فَأَخَذْتُهُ فَفَتَحْتُ بِهِ بَابَ الْحِصْنِ قَالَ قُلْتُ إِنْ نَذِرَبِيَ الْقَوْمُ انْطَلَقْتُ عَلَى مَهَلٍ ثُمَّ عَمَدْتُ إِلَى أَبْوَابِ بُيُوتِهِمْ فَغَلَّقْتُهَا عَلَيْهِمْ مِنْ ظَاهِرٍ ثُمَّ صَعِدْتُ إِلَى أَبِيْ رَافِعٍ فِيْ سُلَّمٍ فَإِذَا الْبَيْتُ مُظْلِمٌ قَدْ طُفِيءَ سِرَاجُهُ فَلَمْ أَدْرِ أَيْنَ الرَّجُلُ فَقُلْتُ يَا أَبَا رَافِعٍ قَالَ مَنْ هٰذَا قَالَ فَعَمَدْتُ نَحْوَ الصَّوْتِ فَأَضْرِبُهُ وَ صَاحَ فَلَمْ تُغْنِ شَيْئًا قَالَ ثُمَّ جِئْتُ كَأَنِّيْ أُغِيْثُهُ فَقُلْتُ مَالَكَ يَا أَبَا رَافِعٍ وَ غَيَّرْتُ صَوْتِيْ فَقَالَ أَلَا أُعْجِبُكَ لِأُمِّكَ الْوَيْلُ دَخَلَ عَلَيَّ رَجُلٌ فَضَرَبَنِيْ بِالسَّيْفِ قَالَ فَعَمَدْتُ لَهُ أَيْضًا فَأَضْرِبُهُ أُخْرٰى فَلَمْ تُغْنِ شَيْئًا فَصَاحَ وَ قَامَ أَهْلُهُ قَالَ ثُمَّ جِئْتُ وَ غَيَّرْتُ صَوْتِيْ كَهَيْئَةِ الْمُغِيْثِ فَإِذَا هُوَ مُسْتَلْقٍ عَلٰى ظَهْرِهٖ فَأَضَعُ السَّيْفَ فِيْ بَطْنِهٖ ثُمَّ أَنْكَفِيءُ عَلَيْهِ حَتّٰى سَمِعْتُ صَوْتَ الْعَظْمِ ثُمَّ خَرَجْتُ دَهِشًا حَتّٰى أَتَيْتُ السُّلَّمَ أُرِيْدُ أَنْ أَنْزِلَ فَأَسْقُطُ مِنْهُ فَانْخَلَعَتْ

وړے، هغه م راواخستے، او ذ قلعه دروازه م پرانسته، چه آساني سره تيښته اوکړے شم دے نه پس زۀ قلعه کښې چه کوم مکانات وو، هلته ورغلم، او ذ بهر نه م ذ ټولو زنځير اولګولو، دے نه پس زۀ ذ ابو رافع په سيړهو ور اوختلم، څۀ ګورم، چه کمره کښې تياره ده، ماته ذ هغه مقام معلوم نه شولو، آخر ما ابو رافع نوم اخستو سره ورته آواز اوکۀ، نو هغه تپوس اوکۀ، څوک ئے. ذ هغۀ آواز سره زۀ ورمخکښې شوم، او ذ تورے ګزار م پرے اوکۀ. هغۀ چغے کړے، خو وار خطا لاړ، زۀ لږ ساعت ايسار شوم او ورنزدے شوم، او تپوس م ترے اوکۀ، اے ابو رافع، څۀ خبره ده، هغه دا خيال اوکۀ، چه ګني دا خما څوک سړے دے، چه مدد له راغلے دے. په دے وجه هغۀ اووے، اے مور دے مړه شه، چا په ما ذ تورے ګزار اوکۀ. دے آوريدو سره پرے ما يو بل ګزار اوکۀ، خو سپک شان ګزار ښکاريدۀ (يعني سخت اونۀ لږيدلو) ذ هغۀ ښځه اوتښتيده، او هغۀ چغے کړے، ما بيا آواز بدل کړلو. او ذ مددګار په حيثيت هغۀ ته ورنزدے شوم، هغه راغرځيدلے وو، نو ما توره ذ هغۀ په خيټه کيښوده او دومره زور م ور کړلو، چه ذ هډوکي ذ تلقا آواز م واوريدلو. اوس چه ما ذ هغۀ کار تمام کړلو (يعني قتل م کۀ) نو په يره يره اندرپائے (سيړۍ) ته راغلم، اوغوښتل م، چه خکته راکوز شم. خو تادي کښې راوغرځيدم، او ذ پښے جوړ م اوختلو، ما پښه په کپړه اوتړله. او بيا رو، رو خپلو ملګرو ته م خان اورسولو، او ورته م اووے، تاسو ټول رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ذ ابو رافع ذ قتل خبر واوروے، او زۀ ذ هغۀ ذ مرګ ذ يقيني خبر پورے به دلته ايسار يم.

رِجْلِيْ فَعَصَبْتُهَا ثُمَّ أَتَيْتُ أَصْحَابِيْ أَحْجُلُ فَقُلْتُ انْطَلِقُوْا فَبَشِّرُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنِّيْ لَا أَبْرَحُ حَتّٰى أَسْمَعَ النَّاعِيَةَ فَقَالَ أَنْعٰى أَبَا رَافِعٍ قَالَ فَقُمْتُ أَمْشِيْ مَابِيْ قَلَبَةٌ فَأَدْرَكْتُ أَصْحَابِيْ قَبْلَ أَنْ يَّأْتُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَشَّرْتُهُ.

آخر صبا ته قريب يو سړے په ديوال اوختلو، او ږے ونيل، اے خلقو، زۀ درته د ابو رافع ذ مرګ خبر آوروم. ابن عتيک وائي، زۀ چه ذ تلو د پاره پاسيدم، خو ذ خوشحالي نه مِ څۀ تکليف محسوس نۀ کړلو، زۀ تيزي سره لاړم، او ملګري مِ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته د رسيدو نه مخکښ رالاندے کړل. او بيا مِ خپله حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دا خوشخبري واوروله. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خما په پنډئ خپل لاس مبارک رابنکلو، او زۀ بيخي روغ رمټ شولم.

**بـاب ۱۷ : غَزْوَةِ أُحُدٍ.** وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِيْنَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ وَقَوْلِهِ جَلَّ ذِكْرُهُ وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ إِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهُ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ وَلِيُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَيَمْحَقَ الْكَافِرِيْنَ أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جَاهَدُوْا مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ

**باب ۱۷ : ذ أحد ذ غزا بيان.** الله تعالي سورۀ آل عمران کښ اوفرمائيل، اے خمونږ رسولہ، ياد کړه، چه تۀ سحر وخت کښ ذ کور نه اووتلے، او مسلمانان دے ذ جنګ په خائے کينول، او اللّٰه اوريدونکے او پوهيدونکے دے. بيا بل خائے کښ دے سورت کښ اوفرمائيل چه مۀ سست کيږئے او مۀ غمګين کيږئے، تاسو به غالب ئے، که ايماندار يئے، که تاسو زخمي شوئے، نو هغوي ته هم زخم لږيدلے وو، دا خو ذ زمانے کير پير دے، چه مونږ وار په وار په خلقو ئے راولو، ذ پاره ذ دے چه اللّٰه تعالي مؤمنان ممتاز کړي، او تاسو کښ بعضو له د شهادت درجه ور کړي، او الله تعالي ظالمان نۀ دوستان کوي، او الله تعالي به ايماندار صاف ستهره کړي، او کافر به تباه کړي، آيا ستاسو دا خيال دے چه تاسو به جنت له لاړ شئے، حالانکه الله تعالي لا دا نۀ دي ښودلے، چه تاسو کښ به څوک جنګ کونکي او څوک صبر کونکي وي، او تاسو ذ هغے فتح نه مخکښ ذ مرګ آرزو کوله، اوس خو مو مرګ په خپلو

اَنْ تَـلْـقَـوْهُ فَـقَـدْ رَاَيْتُـمُـوْهُ وَ اَنْتُـمْ تَـنْظُرُوْنَ. وَ قَوْلِهٖ وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْـدَهٗ اِذْ تَـحُسُّـوْنَهُـمْ بِاِذْنِهٖ حَتّٰى اِذَا فَشِلْتُـمْ وَ تَـنَـازَعْتُـمْ فِـي الْاَمْـرِ وَ عَـصَيْتُـمْ مِّنْۢ بَـعْـدِ مَـا اَرٰىـكُمْ مَّـا تُـحِبُّـوْنَ مِـنْـكُـمْ مَّـنْ يُّرِيْدُ الدُّنْيَا وَ مِـنْـكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَـنْهُـمْ لِيَبْتَـلِيَـكُمْ وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ وَاللّٰـهُ ذُوْ فَـضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَلَا تَـحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا اَلْاٰيَةَ.

ستـر ګـو اوليدلو، بيا بل ځائے کښې ئے اوفرمائيل، چه اللّٰه تـعـالٰي خپـله وعده رېښتيـنې اوښودله هر کله چه تاسو ذ اللّٰـه تـعالٰي په حکم هغوي وهل، تردے چه تاسو نامردي اوکړله، او کار کښې مو جګړه واچوله او ذ خپل سهولت څيزونه ذ کتلو نه پس تاسو نافرماني اوکړله. بعضے تاسو کښې دُنيا غوښتله او بعضے آخرت غوښتلو. بيائے تاسو ذ هغـوي نـه لـرے کـړئے، چه ستاسو آزمائش اوکړي، او هغـه تـاسـو مـعـاف کـړي ئے، ځکـه چـه اللّٰـه تعالٰي په ايـمـانـدارو مهربانه دے. کوم خلق چه ذ اللّٰه په لار کښې اووژلے شـو (يـعـني شهيدان شو) هغوي مړهٔ مهٔ ګڼړئے، بلکه هغوي ژوندي دي آخر آيت پورے.

۸۶: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَـرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِـكْـرَمَةَ عَـنِ ابْنِ عَبَّـاسٍ قَـالَ قَـالَ الـنَّبِـيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُـدٍ هٰـذَا جِبْـرِيْـلُ اٰخِذٌ بِرَاْسِ فَرَسِهٖ عَلَيْهِ اَدَاةُ الْحَرْبِ.

۸۶: ابـراهيـم بـن مـوسٰـي. عبـدالـوهـاب. خـالـد. عـكـرمـه. حـضـرت ابـن عباس نه روايت کوي، هغـه فـرمـائـي، رسـالـت مـيـب صـلـي الله عليه وسلّم ذ اُحـد پـه ورځ اوفـرمـائـيـل (ګـورے) دا جبـرائيلؑ دے، چــه ذ خپـل آس سـر، ئـے نـيـولـے دے او وَسلـه ئـے اچولے ده.

۸۷: حَـدَّثَـنَـا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ اَخْبَـرَنَـا زَكَـرِيَّآءُ بْنُ عَدِيٍّ اَخْبَـرَنَـا ابْـنُ الْمُبَارَكِ عَنْ حَيْوَةَ عَنْ يَّـزِيْـدَ بْنِ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ صَلّٰى رَسُوْلُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَـلٰى قَتْـلٰى اُحُدٍ بَعْدَ ثَمَانِيْ سِنِيْنَ كَالْمُوَدِّعِ لِلْاَحْيَآءِ وَالْاَمْوَاتِ ثُمَّ طَلَعَ الْمِنْبَرَ فَقَالَ اِنِّيْ بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ فَرَطٌ وَّ

۸۷: مـحـمـد بـن عبـدالـرحيم. زكـريـا بـن عـدي. عبـداللّٰـه بـن مبارک. حيوه. يـزيـد بـن ابي حبيـب. حضـرت عقبـه بـن عـامر نـه روايـت کوي، هغـه اووے، حضـور صـلـي الله عليـه وسلّم اتـه کاله پـس ذ اُحـد پـه شهيـدانو داسے مونځ اوکړلو، ځنګه چـه څـوک ژونـدي او مـړي رخـصـت کـوي. بيـا واپـس راغـے منبـر تـه ئـے تشـريف راوړلو، او ارشـاد ئـے اوفـرمـائيلو، زهٔ ستاسو پيش خيمه يم، ستاسو ذ اعـمـالـو ګـواه يـم خـمـا او سـتـاسـو ملاقـات بـه پـه

اُمَيَّةَ الْاَنْصَارِیُّ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ.

شي. اللّهم امين.

باب ۱۴ : حَدِیْثِ بَنِیُ النَّضِیْرِ وَ مَخْرَجِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِلَیْهِمْ فِیْ دِیَةِ الرَّجُلَیْنِ وَمَا اَرَادُوْا مِنَ الْغَدْرِ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الزُّهْرِیُّ عَنْ عُرْوَةَ کَانَتْ عَلٰی رَأْسِ سِتَّةِ اَشْهُرٍ مِنْ وَّقْعَةِ بَدْرٍ قَبْلَ اُحُدٍ وَّ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی هُوَ الَّذِیْ اَخْرَجَ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْکِتَابِ مِنْ دِیَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ وَ جَعَلَهُ ابْنُ اِسْحٰقَ بَعْدَ بِئْرِ مَعُوْنَةَ وَ اُحُدٍ.

باب ۱۴ : يهود بني نضير[۱] ته ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف اُوړل، ذَ دوو سړو دَ ديت په سلسله کښې. او ذَ هغوي ذَ خدائے رسول سره دهوکه کول. زهري. عروه بن زبير نه روايت کوي، ذَ هغهٔ بيان دے، غزوه بني نضير ذَ بدر نه شپږ مياشتے پس او ذَ اُحد نه مخکښې اوشوه، او ذَ اللّٰه تعالٰي سورهٔ حشر کښې فرمائيل: هو الّذى اخرج الّذين كفروا من اهل الكتاب من ديارهم لاوّل الحشر: دغه پروردګار دے، چه هغه ذَ اهل کتاب کافر ذَ هغوي ذَ کورونو نه اوبنکل. دا ذَ هغوي وړمبے وتل وو. او ابن اسحاق هم ذَ بني نضير نه پس ذَ بير معونه او جنګ اُحد ذکر کړے دے.

۱. بنو نضير او بنو قريظه په مدينه کښے د يهوديانو دوه لوئے قبيلے وے او د مدينے په اقتصادياتو باندے تر ډيره حده پورے حاوي وو. کله چه حضور اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم هجرت او کړو او مدينے ته ئے تشريف راؤړو نو حضورؐ هغوئ سره د امن او صلحے لوظنامه کړے وه ليکن هغوئ د غدر او بے لوظئ عادي وو. په دغه لوظنامه کښے هم هغوئ همدا طرز عمل اختيار کړو. په دے وجه د هغوئ د بے لوظيانو نه تنګ راتللو سره حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوئ لره ريحا، تيماء او وادي القريٰ طرفته جلاوطن کړي وو.

۳۷۵ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَیْجٍ عَنْ مُوْسَی بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ حَارَبَتِ النَّضِیْرُ وَ قُرَیْظَةُ فَاَجْلٰی بَنِی النَّضِیْرِ وَ اَقَرَّ قُرَیْظَةَ وَمَنَّ عَلَیْهِمْ حَتّٰی حَارَبَتْ قُرَیْظَةُ فَقَتَلَ رِجَالَهُمْ وَ قَسَمَ نِسَآءَ هُمْ وَ اَوْلَادَهُمْ وَ اَمْوَالَهُمْ بَیْنَ الْمُسْلِمِیْنَ اِلَّا بَعْضَهُمْ لَحِقُوْا بِالنَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ

۳۷۵ : اسحٰق بن نصر. عبدالرزاق. ابن جريج. موسي بن عقبه. نافعؒ. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، هغه اووے، بني نضير او بني قريظه جنګ اوکه، نو بني نضير ئے جلاوطن کړل، او په بني قريظه ئے احسان اوکه، هغوي ئے پريښودل. ليکن هغوي دوباره جنګ اوکه، نو مسلمانانو ذَ هغوي نارينه قتل کړل، او ښځے، بچي او مال اسباب ئے په مسلمانانو تقسيم کړل، خو کوم خلق چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره يوځائے شول،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَمَنَهُمْ وَ اَسْلَمُوْا وَ اَجْلٰى يَهُوْدَ الْمَدِيْنَةِ كُلَّهُمْ بَنِيْ قَيْنُقَاعَ وَهُمْ رَهْطُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ وَّ يَهُوْدَ بَنِيْ حَارِثَةَ وَ كُلَّ يَهُوْدِ الْمَدِيْنَةِ.

يعني مسلمانان شولو' هغوي باقي پاتې شو. باقي ذ مدينې ټول يهوديان چه بني قينقاع يعني ذ عبدالله بن سلام قوم واله وو' او د بني حارثه يهوديان' او کوم يهود چه مدينه کښې موجود وو هغه ټول ئې اوبنکل.

۷۶: حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُدْرِكٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍؓ سُوْرَةُ الْحَشْرِ قَالَ قُلْ سُوْرَةُ النَّضِيْرِ تَابَعَهُ هُشَيْمٌ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ.

۷۶: حسن بن مدرک. يحيي بن حماد. ابو عوانه. سعيد بن جبير نه روايت کوي' هغه اووې' ذ حضرت ابن عباسؓ مخکښې ذ سورة حشر ذکر راغې' نو هغه اوفرمائيل چه سورة نضير وايه. ابو عوانه سره دا حديث هشيم هم ذ ابو بشر نه روايت کړې دې.

۷۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ اَبِيْهِ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍؓ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ يَجْعَلُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّخَلَاتِ حَتّٰى افْتَتَحَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيْرَ فَكَانَ بَعْدَ ذٰلِكَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ.

۷۷: عبدالله بن اسود. معتمر بن سليمان' ذ خپل پلار سليمان نه روايت کوي هغه اووې' ما ذ حضرت انسؓ نه واوريدل' حضور صلي الله عليه وسلّم ذ پاره خلقو ذ قجورې د اُونې په طور ذ تحفې نامزد کړې وې (چه حضورؐ ذ دې په ميوه ګزاره کوي) تردې چه حضورؐ په بني قريظه او بني نضير فتح بيامونده. او بيا حضورؐ هغه واپس کړلې.

۷۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ حَرَّقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيْرِ وَ قَطَعَ وَ هِيَ الْبُوَيْرَةُ فَنَزَلَتْ مَا قَطَعْتُمْ مِّنْ لِّيْنَةٍ اَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَائِمَةً عَلٰى اُصُوْلِهَا فَبِاِذْنِ اللّٰهِ.

۷۸: آدم. ليث. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي' هغهٔ اووې' رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ بني نضير د کجورو اُونې اوسوزولې بعضې ئې کټ کړلې' چه بويره کښې وې' نو هغه وخت ذ سورة حشر دا آيت نازل شولو (ترجمه) يعني کومې اُونې چه تا کټ کړلې' يا هغه دې ذ هغې جرړو سره قائمې اوساتلې' نو دا د الله حکم سره اوشو.

۷۹: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا

۷۹: اسحاق. حبان. جويريه بن

حَبَّانُ اَخْبَرَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ اَسْمَآءَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّقَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيْرِ قَالَ وَلَهَا يَقُوْلُ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍؓ ـ

اسماء. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، هغه اووې، رسول الله صلي الله علیه وسلم ذ بني نضیر ذ قجوررو اُونې اُوسوزولې، نو حسان بن ثابت دا شعر اووې.

وَ هَانَ عَلٰى سَرَاةِ بَنِيْ لُؤَيٍّ
حَرِيْقٌ بِالْبُوَيْرَةِ مُسْتَطِيْرُ

ترجمه:
یعني ذ بني لوئ په شریفانو آسان شو
لړیدلې اُور بویره کښ ټول طرف ته برابر

قَالَ فَاَجَابَهُ اَبُوْ سُفْيَانُ بْنُ الْحَارِثِ ـ

ابو سفیان بن حارث ذ حسان په جواب کښ اووې:

اَدَامَ اللّٰهُ ذٰلِكَ مِنْ صَنِيْعٍ
وَ حَرَّقَ فِيْ نَوَاحِيْهَا السَّعِيْرُ
سَتَعْلَمُ اَيُّنَا مِنْهَا بِنُزْهٍ
وَ تَعْلَمُ اَيَّ اَرْضَيْنَا تَضِيْرُ

ترجمه: یعني خدائے دِ کړي چه همیشه دا حال هلته وي
ذ مدینې خلور طرف ته سوزیدونکې اُور وي
تاسو ته به دا معلومه شي عنقریب چه څوک به مونږ کښ
پاتې شي محفوظ او کوم ملک به نور نقصان اوچتوي

۸۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَالِكُ بْنُ اَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ النَّصْرِيُّ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِؓ دَعَاهُ اِذْ جَآءَهٗ حَاجِبُهٗ يَرْفَأُ فَقَالَ هَلْ لَكَ فِيْ عُثْمَانَ وَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَالزُّبَيْرِ وَ سَعْدٍ يَسْتَاْذِنُوْنَ فَقَالَ نَعَمْ فَاَدْخِلْهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ جَآءَ فَقَالَ هَلْ لَكَ فِيْ عَبَّاسٍ وَ عَلِيٍّ يَسْتَاْذِنَانِ قَالَ نَعَمْ فَلَمَّا دَخَلَا قَالَ عَبَّاسٌ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْضِ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ هٰذَا وَ هُمَا يَخْتَصِمَانِ فِي الَّذِيْ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي النَّضِيْرِ فَاسْتَبَّ عَلِيٌّ وَ عَبَّاسٌ فَقَالَ

۸۰: ابوالیمان. شعیب. زهري نه روایت کوي، هغه اووې، ماته مالک بن اوس بن حدثان نصري خبر راکړ، زهٔ حضرت عمرؓ راوغښتلم، دې کښ یرفا دربان راغې، او هغهٔ اووې، تاسو غواړئ، چه حضرت عثمانؓ او عبدالرحمٰن بن عوفؓ، زبیرؓ او سعد بن ابي وقاصؓ تاسوله راشي، هغوي ورته اوفرمائیل، راخي دې. لږ ساعت پس بیا یرفا اووې، چه حضرت عباسؓ او حضرت عليؓ هم راتلل غواړي، وې فرمائیل، راخي دې، بیا هغوي راغلل، او سلام ئې اوکړ. بیا حضرت عباسؓ اووې، امیر المؤمنین، خما او ذ عليؓ مینځ کښ دَ دې جګړې فیصله اوکړئ، چه ذ دې مال متعلق ده، چه الله پے جنګه ذ بني نضیر نه خپل رسولؐ ته ورکړې دې، او دواړو یو بل باندې

الرَّهْطُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْضِ بَيْنَهُمَا وَ اَرِحْ اَحَدَهُمَا مِنَ الْاٰخَرِ فَقَالَ عُمَرُ اِتَّئِدُوْا اَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ الَّذِیْ بِاِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ هَلْ تَعْلَمُوْنَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ يُرِيْدُ بِذٰلِكَ نَفْسَهٗ قَالُوْا قَدْ قَالَ ذٰلِكَ فَاَقْبَلَ عُمَرُ عَلٰى عَبَّاسٍ وَّ عَلِيٍّ فَقَالَ اَنْشُدُكُمَا بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمَانِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قَالَ فَاِنِّیْ اُحَدِّثُكُمْ عَنْ هٰذَا الْاَمْرِ اِنَّ اللّٰهَ سُبْحَانَهٗ كَانَ خَصَّ رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِیْ هٰذَا الْفَیْءِ بِشَیْءٍ لَّمْ يُعْطِهٖ اَحَدًا غَيْرَهٗ فَقَالَ جَلَّ ذِكْرُهٗ وَمَا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَا اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ اِلٰى قَوْلِهٖ قَدِيْرٌ فَكَانَتْ هٰذِهٖ خَالِصَةً لِّرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ وَاللّٰهِ مَا احْتَازَهَا دُوْنَكُمْ وَلَا اسْتَاْثَرَهَا عَلَيْكُمْ لَقَدْ اَعْطَاكُمُوْهَا وَ قَسَمَهَا فِيْكُمْ حَتّٰى بَقِیَ هٰذَا الْمَالُ مِنْهَا فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ عَلٰى اَهْلِهٖ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِّنْ هٰذَا الْمَالِ ثُمَّ يَاْخُذُ مَا بَقِیَ فَيَجْعَلُهٗ مَجْعَلَ مَالِ اللّٰهِ فَعَمِلَ ذٰلِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

تنقيد اوکړو. نو حاضرينو اووې چه اے امير المؤمنين ددے دواړو فيصله اوکړئ چه ذ شپے ورځے دا جګړه ختمه شي، حضرت عمرؓ ورته اوفرمائيل لږ صبر اوکړئ، تادي مه کوئ، زه تاسو ته ذ هغې پروردګار قسم درکوم، چه ذ هغه حکم سره آسمان او زمکه قائم دي، تاسو ته معلومه ده، چه حضورؐ فرمائيلے دي، خمونږ خلقو هيڅوک وارث نه وي، کوم مال چه مونږ پريږدو، هغه صدقه دے، هغوي اووے بيشکه حضورؐ دا فرمائيلے دي. بيا حضرت عمرؓ، عباسؓ او عليؓ ته مخاطب شو، ورته ئے وئيلے، آيا تاسو ته معلومه ده، چه رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم داسے فرمائيلے دي، هغوي اووے، بيشکه داسے ئے فرمائيلے دي، دے نه پس حضرت عمرؓ اوفرمائيل، اوس تاسو ذ معاملے ذ حقيقت نه آګاه کوم، الله تعالي، رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم ته ذ مال غنيمت نه يو خاص حق ورکړے وو، چه نورو پيغمبرانو ته ئے نه وو ورکړے، سورۀ حشر کښې ارشاد دے (ترجمه) کوم مال چه الله خپل رسول ذ پاره ذ بني نضير غنيمت کښې ورکړے وو ذ هغے ذ حاصلولو ذ پاره تاسو خپل آسونه او سورلۍ نه وې زغلولے، نو داسے قسم مال صرف ذ حضورؐ ذ پاره وو. ذ مجاهدينو په دے کښې هيڅ حق نه وو، خو قسم په خدائے حضورؐ ذ دے قسم مال ذ خپل ذات ذ پاره نه وو محفوظ کړے بلکه په خپل ذات ئے خرچ که، او څه چه بچ شو، هغه ئے تقسيم کړلو. او څه چه به

وَسَلَّمَ حَيَاتَهُ ثُمَّ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍؓ فَاَنَا
وَلِيُّ رَسُوْلِ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَقَبَضَهُ اَبُوْ بَكْرٍؓ فَعَمِلَ فِيْهِ بِمَا عَمِلَ
بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ وَ اَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ فَاَقْبَلَ عَلٰى
عَلِيٍّ وَّ عَبَّاسٍ وَّ قَالَ تَذْكُرَانِ اَنَّ اَبَا
بَكْرٍؓ عَمِلَ فِيْهِ كَمَا تَقُوْلَانِ وَاللّٰهُ
يَعْلَمُ اَنَّهُ فِيْهِ لَصَادِقٌ بَارٌّ رَّاشِدٌ تَابِعٌ
لِّلْحَقِّ ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ اَبَا بَكْرٍؓ فَقَبَضْتُهُ
سَنَتَيْنِ مِنْ اِمَارَتِيْ اَعْمَلُ فِيْهِ بِمَا
عَمِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ وَ اَبُوْبَكْرٍؓ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَنِّيْ فِيْهِ
صَادِقٌ بَارٌّ رَّاشِدٌ تَابِعٌ لِّلْحَقِّ ثُمَّ
جِئْتُمَانِيْ كِلَاكُمَا وَ كَلِمَتُكُمَا وَاحِدَةٌ
وَّ اَمْرُكُمَا جَمِيْعٌ فَجِئْتَنِيْ يَعْنِيْ عَبَّاسًا
فَقُلْتُ لَكُمَا اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا
تَرَكْنَا صَدَقَةٌ فَلَمَّا بَدَا لِيْ اَنْ اَدْفَعَهُ
اِلَيْكُمَا قُلْتُ اِنْ شِئْتُمَا دَفَعْتُهُ اِلَيْكُمَا
عَلٰى اَنَّ عَلَيْكُمَا عَهْدَ اللّٰهِ وَ مِيْثَاقَهُ
لَتَعْمَلَانِ فِيْهِ بِمَا عَمِلَ فِيْهِ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ
بَكْرٍؓ وَمَا عَمِلْتُ فِيْهِ مُنْذُ وَلِيْتُ وَ اِلَّا فَلَا
تُكَلِّمَانِيْ فَقُلْتُمَا ادْفَعْهُ اِلَيْنَا بِذٰلِكَ
فَدَفَعْتُهُ اِلَيْكُمَا اَفَتَلْتَمِسَانِ مِنِّيْ

باقي پاتې شو. هغې نه به نې د خپلو بيبيانو د پاره
د کال خرڅ اوبنکلو، او بيا چه به څۀ بچ شو، هغه
به نې د الله په لار کښې خرڅ کولو. او حضورؐ
به خپل ټول ژوند کښې دغسې کول. بيا
چه حضور صلي الله عليه وسلم وفات شولو، نو
حضرت ابوبکر دې وئيلو سره چه د رسول
د خدائې جانشين يم په هغې مال قبضه اوکړله او
هغه نې هغسې تقسيم او خرڅ کولو، او تاسو
به هغه وخت د هغه نه دې سلسله کښې ګله
کوله. حالانکه خدائې پوهيږي چه هغه خپل دې
طرز عمل کښې حق بجانب وو. کوم وخت چه
حضرت ابوبکرؓ وفات شو، نو ما خپل ځان د هغې
دواړو ولي او جانشين ګڼړلو سره هغه اوکړل
کوم څۀ چه حضرت ابوبکرؓ کول. او الله تعالي
پوهيږي. چه زۀ دې کښې ريښتنے او د حق پيرو يم.
بيا تاسو دواړه ماله راغلئے، او متفق الرائے وئے.
بيا اے عباسؓ تاسو ماله راغلئے، او ما تاسو ته هغه
اووې. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلے
دي. چه خمونږ هيڅوک وارث نشته. څه
چه مونږ پريږدو هغه صدقه ده. بيا ما تاسو
دواړو ته اووې. زۀ غواړم، چه دا کار تاسو
دواړو ته اوسپارم. په شرط د دې چه تاسو د خدائے
عهد و پيمان مدنظر ساتئے، او دا کار داسې سرته
رسوئے. څنګه چه رسول الله صلي الله عليه وسلم
سرته رسولو. څنګه چه ابوبکرؓ دا کار کولو، او څنګه
چه زۀ نې کوم. که تاسو ته دا شرط منظور نۀ وي، نو

قَضَاءً غَيْرَ ذٰلِكَ فَوَاللّٰهِ الَّذِيْ بِإِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ لَا اَقْضِيْ فِيْهِ بِقَضَاءٍ غَيْرَ ذٰلِكَ حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ فَاِنْ عَجَزْتُمَا عَنْهُ فَادْفَعَا اِلَيَّ فَاَنَا اَكْفِيْكُمَاهُ قَالَ فَحَدَّثْتُ هٰذَا الْحَدِيْثَ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ فَقَالَ صَدَقَ مَالِكُ بْنُ اَوْسٍ اَنَا سَمِعْتُ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقُوْلُ اَرْسَلَ اَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُثْمَانَ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ يَسْاَلْنَهٗ ثُمُنَهُنَّ مِمَّا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُنْتُ اَنَا اَرُدُّهُنَّ فَقُلْتُ لَهُنَّ اَلَا تَتَّقِيْنَ اللّٰهَ اَلَمْ تَعْلَمْنَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ يُرِيْدُ بِذٰلِكَ نَفْسَهٗ اِنَّمَا يَاْكُلُ اٰلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَا الْمَالِ فَانْتَهٰى اَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى مَا اَخْبَرْتُهُنَّ قَالَ فَكَانَتْ هٰذِهِ الصَّدَقَةُ بِيَدِ عَلِيٍّ مَنَعَهَا عَلِيٌّ عَبَّاسًا فَغَلَبَهٗ عَلَيْهَا ثُمَّ كَانَ بِيَدِ حَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ ثُمَّ بِيَدِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ ثُمَّ بِيَدِ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ وَّ حَسَنِ بْنِ حَسَنٍ كِلَاهُمَا يَتَدَاوَلَانِهَا ثُمَّ بِيَدِ زَيْدِ بْنِ حَسَنٍ وَّ هِيَ صَدَقَةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

بیا ذ څۀ قسم خبرو ضرورت نشته' تاسو دا خبره منظوره کړه نو ما درته دا مال اوسپارلو. اوس که تاسو ذ دے نه بوا څۀ بله فیصله غواړئے' نو په هغه پروردګار مِ دے قسم وي' چه ذ هغه حکم سره آسمان او زمکه قائم دي' زۀ ذ قیامته پورے بله څۀ فیصله کونکے نۀ یم' البته که تاسو نه ذ دے مال انتظام نشي کیدے' نو بیائے ماته حواله کړئے' زۀ به ئے خپله کوم' زهري وائي' ما دا حدیث عروه ته بیان کۀ' هغۀ اووے' مالک بن اوس ریښتیا اووے' ځکه چه ما ذَ حضور صلي الله علیه وسلّم ذ تېر بي بي عائشےؓ نه واوریدل' چه ذَ حضور صلي الله علیه وسلّم بیبیانو حضرت عثمانؓ' حضرت ابوبکرؓ له اولیږلو' چه ذَ هغے مال نه کوم چه ذَ بني نضیر نه حاصل شوے دے' خپله اتمه حصه واخلي. لیکن هغوي ما منع کړلے' او ورته مِ اووے' آیا تاسو ذ خدائے نه خوف نۀ لرئے' رسول الله صلي الله علیه وسلّم به فرمائیل' ذ پیغمبرانو هیڅوک وارث نشته. مونږ چه څۀ پرېږدو هغه صدقه ده. هغوي ذَ دے نه خپل ذات مراد واخستلو. صرف آل محمد ذَ دے مال نه خوړلے شي دے آوریدو سره ذَ حضورؐ بیبیانے ذَ میراث غوښتلو نه منع شوے. عروه اووے' دا مال ذَ حضرت عليؓ په قبضه کښ وو. هغۀ حضرت عباسؓ ته په دے قبضه ورنۀ کړله. هغۀ نه پس امام حسنؓ بیا امام حسینؓ بیا زین العابدین او حسن بن حسن وار په وار ذَ دے انتظام کولو. بیا ذَ زید بن حسن په قبضه کښ وو' بیا تولو دا ذَ رسول اکرم صلي الله علیه وسلّم صدقه ګڼړله او په حیثیت ذَ متولي به ئے کار

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقًّا.

كولو ئـ.

۱. دا حديث ددې نه مخکښې هم تېر شوې دې او مخکښې هم په نوټ کښې ددې وضاحت کړې شوې وو چه د فدک دغه جائيداد په باره کښې چه د حضرت علي رضي الله عنه کوم اختلاف وو هغه صرف ددې خبرې وو چه ددې نګراني به څوک کوي او ددې صدقې متولي به څوک وي. د حديث نه هم دا معلومېږي چه که چرې مخکښې څه غلط فهمي وه هم نو هغه د حضور ددې حديث ټولو حضراتو ته معلوميدلو نه پس لرې شوې وه چه د انبياؤ ميراث نه تقسيمېږي. په حنفي فقه کښې دا جزئيه ملاويږي چه تر څو پورې خيانت ظاهر نشي نو بهتره داده چه د وقف متوليان دِ د واقف د اولاد نه وي.

۱۸: حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيمُ بْنُ مُوسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ وَالْعَبَّاسَ أَتَيَا أَبَا بَكْرٍ يَلْتَمِسَانِ مِيرَاثَهُمَا أَرْضَهُ مِنْ خَيْبَرَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ إِنَّمَا يَأْكُلُ آلُ مُحَمَّدٍ فِي هٰذَا الْمَالِ وَاللّٰهِ لَقَرَابَةُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ أَصِلَ مِنْ قَرَابَتِي.

۱۸: ابراهيم بن موسي. هشام. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشې نه روايت کوي، هغې اووې حضرت عباس او بي بي فاطمة دواړه حضرت ابوبکر له راغلل، او خپل ميراث ئې د فدک د زمکې او د خيبر د آمدني نه اوغوښتلو، حضرت ابوبکر ورته اوفرمائيل، ما د رسول د خدائې نه آوريدلې دي، چه خمونږ خلقو څوک وارث نه وي، مونږ چه څۀ پرېږدو، هغه صدقه ده، البته ال محمد د خپلې ګزارې د پاره ددې نه آخستې شي. پاتې شو سلوک کول. نو قسم په خدائې، زۀ د رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم رشته دارانو سره سلوک د خپلو رشته دارانو نه زيات خوښوم.

## بَابُ ۱۵: قَتْلِ كَعْبِ بْنِ الْأَشْرَفِ.

## باب ۱۵: د کعب بن اشرف يهودي د قتل واقعه.

۲۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لِكَعْبِ ابْنِ الْأَشْرَفِ فَإِنَّهُ قَدْ آذَى اللّٰهَ وَرَسُولَهُ فَقَامَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَتُحِبُّ أَنْ أَقْتُلَهُ

۲۸: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بن دينار نه روايت کوي، ما د جابر بن عبدالله نه واوريدل، حضور صحابۀ ؤ ته اوفرمائيل، د کعب بن اشرف کار څوک تمام ړلې شي (يعني څوک ئې قتلولې شي) هغۀ، الله او رسول ته ډير تکليف رسولې دې، محمد بن مسلمه انصاري اودريد، او وئيلې، يا رسول الله، که تاسو ماله اجازت راکړې، نو زۀ به دا کار تر سره کړم، حضور

قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأْذَنْ لِيْ اَنْ اَقُوْلَ شَيْئًا قَالَ قُلْ فَاَتَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَقَالَ اِنَّ هٰذَا الرَّجُلَ قَدْ سَاَلَنَا صَدَقَةً وَّ اِنَّهٗ قَدْ عَنَّانَا وَّ اِنِّيْ قَدْ اَتَيْتُكَ اَسْتَسْلِفُكَ قَالَ وَ اَيْضًا وَّاللّٰهِ لَتَمَلُّنَّهٗ قَالَ اِنَّا قَدِ اتَّبَعْنَاهُ فَلَا نُحِبُّ اَنْ نَّدَعَهٗ حَتّٰى نَنْظُرَ اِلٰى اَيِّ شَيْءٍ يَّصِيْرُ شَاْنُهٗ وَقَدْ اَرَدْنَا اَنْ تُسْلِفَنَا وَسْقًا اَوْ وَسْقَيْنِ وَ حَدَّثَنَا عَمْرُو غَيْرَ مَرَّةٍ فَلَمْ يَذْكُرْ وَسْقًا اَوْ وَسْقَيْنِ فَقُلْتُ لَهٗ فِيْهِ وَسْقًا اَوْ وَسْقَيْنِ فَقَالَ اُرٰى فِيْهِ وَسْقًا اَوْ وَسْقَيْنِ فَقَالَ نَعَمْ اِرْهَنُوْنِيْ قَالُوْا اَيَّ شَيْءٍ تُرِيْدُ قَالَ ارْهَنُوْنِيْ نِسَآءَكُمْ قَالُوْا كَيْفَ نَرْهَنُكَ نِسَائَنَا وَ اَنْتَ اَجْمَلُ الْعَرَبِ قَالَ فَارْهَنُوْنِيْ اَبْنَاءَكُمْ قَالُوْا كَيْفَ نَرْهَنُكَ اَبْنَآءَنَا فَيُسَبُّ اَحَدُهُمْ فَيُقَالُ رُهِنَ بِوَسْقٍ اَوْ وَسْقَيْنِ هٰذَا عَارٌ عَلَيْنَا وَلٰكِنَّا نَرْهَنُكَ اللَّاْمَةَ قَالَ سُفْيَانُ يَعْنِيْ السِّلَاحَ فَوَاعَدَهٗ اَنْ يَّاْتِيَهٗ فَجَآءَهٗ لَيْلًا وَّ مَعَهٗ اَبُوْ نَآئِلَةَ وَهُوَ اَخُوْ كَعْبٍ مِّنَ الرَّضَاعَةِ فَدَعَاهُمْ اِلَى الْحِصْنِ

ورته اوفرمائيل' اجازت دے. محمد بن مسلمه اووے: ماته دا هم اجازت راکړے' چه څۀ مناسب اوګڼړم هغه خبرے هغه سره اوکړم. حضورؐ اجازت ورکۀ' غرض محمد بن مسلمه' کعب بن اشرف له ورغے' ورته ئے اووے' دا سړے يعني محمد بن عبدالله خمونږ نه زکوٰة غواړي. مونږ سره خپله نښته' او دے مونږ تنګوي. کعب ورته اووے' (لا صبر اوکه) تا څۀ ليدلے دي. دے به لا مخکښ تاسو ډير تنګ کړي. محمد بن مسلمه اووے' خير اوس خو مونږ دَ هغۀ پيروي شروع کړے ده' سمدستي پرېښودل ئے هم ټيک راته نۀ ښکاري چه لا مخکښ به څۀ کيږي. دے وخت زۀ تاله راغلے يم' چه يو يا دوه وسق قجورے مونږ له قرض راکړه. سفيان وائي' عمرو بن دينار مونږ ته څو ځکه دا حديث واورولو' نو هغے کښ ئے ذ يو وسق قجورو ذکر اونۀ کۀ' چه ما ورته وريـاد کړل' نو ونيلے ئے' او' څما دا خيال دے' چه دغسے به وي. غرض کعب اووے. قرض به در کړم' څۀ څيز راسره رهن (ګانړه) کړه. ما ورته اووے' څۀ درسره رهن کړم' کعب اووے' خپلے ښځے راسره ګانړه کړه. محمد بن مسلمه اووے' دا څنګه کيدے شي' مونږ خپلے ښځے څنګه درسره ګانړه کړو' ټولو عربو کښ تۀ خوبصورته ئے. هغۀ اووے' خپل خامن راسره رهن کړه. ما اووے' تاسره خپل خامن څنګه رهن کړم' آينده چه څوک هغوي سره جنګيږي' نو طعنه به ورکوي' چه تۀ يو يا دوه وسق کښ ګانړه شوے وے' او دا مونږ بد ګنړو. البته مونږ خپله وسله درسره ايښودے شو سفيان ذ لفظ لامه تفسير سلاح يعني هتيار کړے دے. محمد

فَنَزَلَ إِلَيْهِمْ فَقَالَتْ لَهُ امْرَأَتُهُ أَيْنَ تَخْرُجُ هٰذِهِ السَّاعَةَ فَقَالَ إِنَّمَا هُوَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ وَ أَخِيْ أَبُوْ نَائِلَةَ وَ قَالَ غَيْرُ عَمْرٍو قَالَتْ أَسْمَعُ صَوْتًا كَأَنَّهُ يَقْطُرُ مِنْهُ الدَّمُ قَالَ إِنَّمَا هُوَ أَخِيْ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ وَ رَضِيْعِيْ أَبُوْ نَائِلَةَ إِنَّ الْكَرِيْمَ لَوْدُعِيَ إِلَى طَعْنَةٍ بِلَيْلٍ لَأَجَابَ قَالَ وَ يُدْخِلُ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ مَعَهُ بِرَجُلَيْنِ قِيْلَ لِسُفْيَانَ سَمَّاهُمْ عَمْرٌو قَالَ سَمَّى بَعْضَهُمْ قَالَ عَمْرٌو جَاءَ مَعَهُ بِرَجُلَيْنِ وَ قَالَ غَيْرُ عَمْرٍو وَ أَبُوْ عَبْسِ بْنُ جَبْرٍ وَ الْحَارِثُ بْنُ أَوْسٍ وَ عَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ قَالَ عَمْرٌو جَاءَ مَعَهُ بِرَجُلَيْنِ فَقَالَ إِذَا مَا جَاءَ فَإِنِّيْ قَائِلٌ بِشَعْرِهِ فَأَشَمُّهُ فَإِذَا رَأَيْتُمُوْنِيْ اسْتَمْكَنْتُ مِنْ رَأْسِهِ فَدُوْنَكُمْ فَاضْرِبُوْهُ وَ قَالَ مَرَّةً ثُمَّ أُشِمُّكُمْ فَنَزَلَ إِلَيْهِمْ مُتَوَشِّحًا وَهُوَ يَنْفَحُ مِنْهُ رِيْحُ الطِّيْبِ فَقَالَ مَا رَأَيْتُ

بن مسلمه، کعب سره دوباره ذ یوخائے کیدو وعده اوکړله، او لاړلو، ذ شپے دوباره راغے، او ابو نائله نے خان سره راوست، چه ذ کعب پنے شریک ورور وو، کعب هغوي قلعه ته راوغبنتل، او بیا هغوي ته خکته راغے، ذ هغهٔ بنځے ورته اووے، په دے وخت چرته ځے، کعب ورته اووے، دا محمد بن مسلمه او ابو نائله خما ورور دے، چه غواړي م. سفیان وائي، ذ عمر بن دینار نه سِوا نورو خلقو دے حدیث کښ دومره نور زیاتے کړے دے، (یعني زیات الفاظ نے راوړے دي) چه ذَ کعب بنځے دا هم اووے، ذ دے آواز نه خو ذ وینے (خون) بوي راخي، یا وینه خاخي، کعب ورته اووے، هیڅ نشته. خما ورور ابو نائله او محمد بن مسلمه دے. او شریف سړي له خو ذ شپے وخت کښ هم که نیزه وهلو له اوبلي، تلل پکار دي. او محمد بن مسلمه خان سره دوه سړي نور هم راوستے وي. سفیان نه تپوس اوشو، چه عمرو ذ هغوي نوم آخستے وو، هغهٔ اووے، ذ بعضے نے اخستے وو. خو نورو ذ ابو عبس بن جبیر او حارث بن اوس او عباد بن بشر نوم آخستے وو، عمرو دومره قدر اووے. محمد بن مسلمه خپلو ملګروته اووے، کعب چه راشي، نو زهٔ به د هغهٔ ذ سر ویښتهٔ نیسلے بوئ کړم. کله چه تاسو اووینئ چه ما مضبوط اونیولو نو تاسو خپل کار تر سره کړئ. غرض کعب څادر اغُستے راکوز شولو. ذ هغهٔ د جسم نه خوشبوي تله. محمد بن مسلمه ورته اووے، ما ننه پورے داسے خوشبوئ چرته نهٔ ده لیدلے، چه تهوله هوا، نے معطر کړے ده. ذ عمرو نه علاوه نور راویان وائي، کعب جواب کښ اووے، دا وخت ماسره

كَالْمَـوْرِ رِيْحًـا اَيْ اَطْيَبَ وَ قَـالَ غَيْـرُ عَمْـرٍو قَـالَ عِنْـدِيْ اَعْطَـرُ نِسَـآءِ الْعَـرَبِ وَ اَكْمَلُ الْعَـرَبِ قَـالَ عَمْـرُو فَقَالَ اَتَـأْذَنُ لِـيْ اَنْ اَشَـمَّ رَأْسَكَ قَـالَ نَـعَـمْ فَشَمَّـهُ ثُـمَّ اَشَـمَّ اَصْـحَـابَـهُ ثُـمَّ قَـالَ اَتَـأْذَنُ لِـيْ قَـالَ نَـعَـمْ فَـلَـمَّـا اسْتَمْكَنَ مِنْـهُ قَالَ دُوْنَـكُـمْ فَـقَتَلُوْهُ ثُمَّ اَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرُوْهُ.

داسے بنـخـه ده، چـه ذ ټـولو ښخونه زياته معطره ده، او حُسن و جمال کښې هم بې نظيره ده. عمرو وائي محمد بـن مسـلـمـه ترے تپوس او کړو. ذ سر بوئيلو اجازت شته هـغـه ورتـه اووے، او محـمـد بـن مسلمه خپله هم بوئ کړلو، او په ملګرو ئے هم بوئ کړلو، بيا دوباره اجازت سره ئے بوئ کړلو. او زور سره ئے ټينګ اونيولو. او ملګروتـه ئے اووے رانيسئے، نو هغوي ورله سمدستي کار تمام کړلو (يعني وے وژلو) او بيا ذ حضور صلي الله عليـه وسلّم په خدمت کښې حاضر شو، او ذ کعب د قتل خوشخبري ئے ورته واوروله.

ف: وسق: ذ اوس بار. ذ اوو صاع مقدار. او يو صاع دوه سوه خليريشت تولے وي.

بـاب ۱۶: قَتْـلِ اَبِـيْ رَافِـعٍ عَبْـدِ اللّٰـهِ بْـنِ اَبِـى الْحَقِيْقِ وَ يُقَالُ سَلَامُ بْـنُ اَبِى الْحَقِيْقِ كَانَ بِخَيْبَرَ وَ يُـقَـالُ فِيْ حِصْنٍ لَهُ بِاَرْضِ الْحِجَازِ وَ قَـالَ الـزُّهْـرِيُّ هُـوَ بَـعْـدَ كَعْبِ بْنِ الْاَشْرَفِ.

باب ۱۶: ذ ابو رافع عبدالله بن ابي الحقيق ذ قتـل قـصـه. بعضے خلق وائي، چه ذ هغه نوم سلام بن ابي الحقيق وو، او هغه خيبر کښې اوسيدلو. او بعضے وائي، چـه هـغـه خپـله قلعه واقع حجاز کښې اوسيدلو. ذ زهري بيان دے چه ابو رافع ذ کعب بن اشرف نه پس قتل کړے شوے دے (رمضان ۶ھ کښې).

۸۳: حَـدَّثَـنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَـدَّثَـنَـا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا ابْـنُ اَبِـيْ زَائِـدَةَ عَـنْ اَبِـيْـهِ عَـنْ اَبِـيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ بَعَثَ رَسُـوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا اِلٰى اَبِيْ رَافِعٍ فَدَخَلَ عَلَيْهِ عَبْدُ اللّٰـهِ بْـنُ عَتِيْكٍ بَيْتَـهُ لَيْلًا وَّهُوَ نَائِمٌ فَقَتَلَهُ.

۸۳: اسـحـق بـن نـصـر. يـحـيـي بـن آدم. ابـن ابـي زائـده. ابـو اسـحـاق سبيعي. حضـرت بـراء بـن عـازب نـه روايـت کـوي، هـغـه فـرمـائـي، رسـول الـلّـه صـلـي الـلّـه عـلـيـه وسـلّم خو سړي ابو رافع پـلـه اوليږل. هغے کښې عبداللّه بن عتيک هم وو، هغه ذ شپے ذ هغه کور تـه ورننـوت، هغه اُوده وو، او هـغـوي هـغـه هـم دغـے حـالـت کښې قتل کړه.

۸۴: حَـدَّثَـنَـا يُـوْسُفُ

۸۴: يوسف بن موسـي. عبيـدالـلّـه بن موسـي.

بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ
بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ
اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ
بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى اَبِيْ رَافِعٍ
الْيَهُوْدِيِّ رِجَالًا مِّنَ الْاَنْصَارِ
فَاَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ
عَتِيْكٍ وَ كَانَ اَبُوْ رَافِعٍ يُؤْذِيْ
رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ وَ يُعِيْنُ عَلَيْهِ وَ كَانَ
فِيْ حِصْنٍ لَهٗ بِاَرْضِ الْحِجَازِ
فَلَمَّا دَنَوْا مِنْهُ وَقَدْ غَرَبَتِ
الشَّمْسُ وَرَاحَ النَّاسُ بِسَرْحِهِمْ
فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لِاَصْحَابِهٖ
اجْلِسُوْا مَكَانَكُمْ فَاِنِّيْ مُنْطَلِقٌ
وَّ مُتَلَطِّفٌ لِلْبَوَّابِ لَعَلِّيْ اَنْ
اَدْخُلَ فَاَقْبَلَ حَتّٰى دَنَا مِنَ الْبَابِ
ثُمَّ تَقَنَّعَ بِثَوْبِهٖ كَاَنَّهٗ يَقْضِيْ
حَاجَةً وَّقَدْ دَخَلَ النَّاسُ فَهَتَفَ
بِهِ الْبَوَّابُ يَا عَبْدَ اللّٰهِ اِنْ كُنْتَ
تُرِيْدُ اَنْ تَدْخُلَ فَادْخُلْ فَاِنِّيْ اُرِيْدُ
اَنْ اُغْلِقَ الْبَابَ فَدَخَلْتُ فَكَمَنْتُ
فَلَمَّا دَخَلَ النَّاسُ اَغْلَقَ الْبَابَ
ثُمَّ عَلَّقَ الْاَغَالِيْقَ عَلٰى وَتَدٍ
قَالَ فَقُمْتُ اِلَى الْاَقَالِيْدِ فَاَخَذْتُهَا
فَفَتَحْتُ الْبَابَ وَ كَانَ اَبُوْ رَافِعٍ

اسرائيل. ابو اسحٰق. براء بن عازب نه روايت كوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ابو رافع ته څو انصار اوليږل' عبداللّٰه بن عتيک ئې سردار مقرر كړ. ابو رافع ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دشمن وو (يعني ذ اسلام دشمن وو) او ذ رسول ذ مخالفينو مدد به ئې كولو' ذ هغهٔ قلعه حجاز كښ وه' او هغې كښ اوسيدلو. كوم وخت چه دا خلق هغې قلعه ته اورسيدل' نو نمر پريوتلې وو' او خلقو خپل خناور ذ مابنام كيدو په وجه واپس راوستل. عبداللّٰه بن عتيک ملګروته اووې' تاسو دلته ايسار شئې' زهٔ ورځم' او دربان ته به څهٔ بهانه اوكړم. دننه ذ ورتلو به كوشش اوكړم' نو عبداللّٰه ورغې' او دروازې ته قريب اورسيد' نو خپل خان ئې كپړو كښ داسې پټ كړ' لكه څوک چه رفع حاجت ذ پاره كيني' قلعه واله دننه تلې وو' دربان دا خيال اوكړ' چه عبداللّٰه كني خپل سړې دې' آواز ئې وركړ' او ورته ئې اووې' اې ذ اللّٰه بنده' كه تهٔ دننه راتلل غوارې' نو راځه' څكه چه زهٔ دروازه بندول غوارم. عبداللّٰه بن عتيک وائي. دې آوريدو سره زهٔ دننه ورغلم' او پټ شوم. دربان چه دروازه بنده كړه' نو چابيانې ئې ميخ كښ آويزانډې كړې. كوم وخت چه دربان (خوكيدار) اودهٔ شو' نو ما چابيانې راكوزې كړې' او ذ قلعه دروازه م پرانسته (چه تيښته كښ آساني وي) اخوا ابو رافع ته به ذ شپې قصې ونيلې شوې' او هغه خپله بالاخانه كښ ناست وو' قصه ئې آوريدله. هر كله چه داستان ويونكي ټول لاړل. او ابو رافع اُودهٔ شو' نو زهٔ بالاخانې ته ور اُوختم' اوپه كومه دروازه چه به داخليدم' نو هغه به م ذ دننه نه بندوله. او ذ

يُسْمَرُ عِنْدَهُ وَ كَانَ فِيْ عَلَالِيَّ لَهُ فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْهُ اَهْلُ سَمَرِهِ صَعِدْتُ اِلَيْهِ فَجَعَلْتُ كُلَّمَا فَتَحْتُ بَابًا اَغْلَقْتُ عَلَيَّ مِنْ دَاخِلٍ فَقُلْتُ اِنِ الْقَوْمُ لَوْ نَذِرُوْا بِيْ لَمْ يَخْلُصُوْا اِلَيَّ حَتّٰى اَقْتُلَهُ فَانْتَهَيْتُ اِلَيْهِ فَاِذَا هُوَ بِبَيْتٍ مُظْلِمٍ وَسْطَ عِيَالِهٖ لَا اَدْرِيْ اَيْنَ هُوَ مِنَ الْبَيْتِ فَقُلْتُ يَا اَبَا رَافِعٍ قَالَ مَنْ هٰذَا فَاَهْوَيْتُ نَحْوَ الصَّوْتِ فَاَضْرِبُهٗ ضَرْبَةً بِالسَّيْفِ وَ اَنَا دَهِشٌ فَمَا اَغْنَيْتُ شَيْئًا وَ صَاحَ فَخَرَجْتُ مِنَ الْبَيْتِ فَاَمْكُثُ غَيْرَ بَعِيْدٍ ثُمَّ دَخَلْتُ اِلَيْهِ فَقُلْتُ مَا هٰذَا الصَّوْتُ يَا اَبَا رَافِعٍ فَقَالَ لِاُمِّكَ الْوَيْلُ اِنَّ رَجُلًا فِي الْبَيْتِ ضَرَبَنِيْ قَبْلُ بِالسَّيْفِ قَالَ فَاَضْرِبُهٗ ضَرْبَةً اَثْخَنَتْهُ وَلَمْ اَقْتُلْهُ ثُمَّ وَضَعْتُ ظُبَةَ السَّيْفِ فِيْ بَطْنِهٖ حَتّٰى اَخَذَ فِيْ ظَهْرِهٖ فَعَرَفْتُ اَنِّيْ قَتَلْتُهٗ فَجَعَلْتُ اَفْتَحُ الْاَبْوَابَ بَابًا بَابًا حَتّٰى انْتَهَيْتُ اِلٰى دَرَجَةٍ لَهٗ فَوَضَعْتُ رِجْلِيْ وَ اَنَا اُرٰى اَنِّيْ قَدِ انْتَهَيْتُ اِلَى الْاَرْضِ فَوَقَعْتُ فِيْ لَيْلَةٍ مُقْمِرَةٍ فَانْكَسَرَتْ سَاقِيْ فَعَصَبْتُهَا بِعِمَامَةٍ ثُمَّ انْطَلَقْتُ حَتّٰى جَلَسْتُ عَلَى الْبَابِ فَقُلْتُ لَا اَخْرُجُ اللَّيْلَةَ حَتّٰى اَعْلَمَ اَقَتَلْتُهٗ فَلَمَّا صَاحَ الدِّيْكُ قَامَ النَّاعِيْ عَلٰى

دے نه خما غرض دا وو' که خلقو ته خما پته اولږي نو د هغوي د رارسیدو پورے به زۀ ابو رافع ختم کړم. غرض زۀ ابو رافع ته اورسیدم' هغه یو تیارۀ کمره کښې خپل بال بچ سره اوده وو' ما د هغه خانے بنۀ شان سره معلوم نۀ کړے شو. نو د ابو رافع نوم سره م ورته آواز اوکۀ. هغۀ اووے' څوک دي زۀ په آواز ورغلم' د تورے ګزار م پرے اوکۀ. خما زړۀ رپیدلو' خو دا وار خالي لاړ' او هغه چغے کړے. زۀ د کوټے نه بهر راووتلم. بیا سمدستي دننه ورغلم' تپوس م اوکۀ' اے ابو رافع' تا ولے چغه کړے' هغه زۀ خپل سرے اوګنړلم' او' وئیلے مور درباندے بوره شه' اوس چا ما باندے د تورے ګزار اوکړ دے آوریدو سره پرے ما د تورے یو بل ګزار اوکۀ. زخم اګر که ورته ژور اولږید لیکن مړ نۀ شولو' آخر ما د تورے دهار د هغۀ په خیټه کیښودلو' او زور سره م دباؤ کړلو' هغه خیرلو سره شاته اورسیدلو. اوس خما یقین اوشو' چه هغه هلاک شو' بیا زۀ واپس شوم. یو یو دروازه به م پرانستله' او د سیړهو نه به راښکته کیدم. زۀ پوه شوم' چه زمکه راغلے سپوږمۍ شپه وه. زۀ راوغرځیدم' او پندۍ م ماته شوه' ما خپل پټکي سره پندي اوتړله. د قلعه نه بهر راووتم' په دروازه کیناستم. او زړه کښې م اووے' چه زۀ به د هغه وخته پورے د دے خانے نه' نه خم' څو پورے چه د ابو رافع د مرګ یقین م اونشي' آخر صبا شو. چرګ بانګ اووے' او د قلعه د پاسه په دیوال اودریدے یو سړي اووے' اے خلقو' ابو رافع د حجاز سوداګر مړ شولو. دے آوریدو سره زۀ سمدستي خپلو ملګرو طرف ته ورستون شوم. هغوي ته

السُّوْرِ فَقَالَ اَنْعٰی اَبَا رَافِعٍ تَاجِرَ اَهْلِ الْحِجَازِ فَانْطَلَقْتُ اِلٰی اَصْحَابِیْ فَقُلْتُ النَّجَآءَ فَقَدْ قَتَلَ اللّٰهُ اَبَا رَافِعٍ فَانْتَهَيْتُ اِلَی النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ اُبْسُطْ رِجْلَكَ فَبَسَطْتُ رِجْلِیْ فَمَسَحَهَا فَكَاَنَّهَا لَمْ اَشْتَكِهَا قَطُّ.

۸۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحٌ هُوَ ابْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِیْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰی اَبِیْ رَافِعٍ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَتِيْكٍ وَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُتْبَةَ فِیْ نَاسٍ مَّعَهُمْ فَانْطَلَقُوْا حَتّٰی دَنَوْا مِنَ الْحِصْنِ فَقَالَ لَهُمْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَتِيْكٍ اُمْكُثُوْا اَنْتُمْ حَتّٰی اَنْطَلِقَ اَنَا فَاَنْظُرَ قَالَ فَتَلَطَّفْتُ اَنْ اَدْخُلَ الْحِصْنَ فَفَقَدُوْا حِمَارًا لَّهُمْ قَالَ فَخَرَجُوْا بِقَبَسٍ يَّطْلُبُوْنَهٗ قَالَ فَخَشِيْتُ اَنْ اُعْرَفَ قَالَ فَغَطَّيْتُ رَاْسِیْ كَاَنِّیْ اَقْضِیْ حَاجَةً ثُمَّ نَادٰی صَاحِبُ الْبَابِ مَنْ اَرَادَ اَنْ يَّدْخُلَ فَلْيَدْخُلْ قَبْلَ اَنْ اُغْلِقَهٗ فَدَخَلْتُ ثُمَّ اخْتَبَاْتُ فِیْ مَرْبَطِ حِمَارٍ عِنْدَ بَابِ الْحِصْنِ فَتَعَشَّوْا عِنْدَ اَبِیْ رَافِعٍ وَّ تَحَدَّثُوْا حَتّٰی ذَهَبَتْ سَاعَةٌ

م اووے. اوس ذ دے خانے نه زر ځنے. اللّٰه پاک، ابو رافع هلاک کړلو. دے نه پس مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغلو، خوشخبري مو ورته واوروله، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ځما پښنه اوليده، او، وے فرمائيل، خپله پښنه او غزوه، ما او غزوله، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم پرے لاس مبارک راښکلو. بس داسے معلوميده، چه دے پښنے نه هډو څۀ صدمه نۀ ده رسيدلے.

۸۵: احمد بن عثمان. شريح بن مسلمه. ابراهيم بن يوسف. ذ خپل پلار يوسف بن اسحاق نه روايت کوي، هغۀ اوفرمائيل ما ذ حضرت براء بن عازبؓ نه واوريدل، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ ابو رافع ذ قتلولو ذ پاره عبداللّٰه بن عتيک، عبداللّٰه بن عتبهؓ او نور يو څو سړي اوليږل. کوم وخت چه دا خلق قلعه ته نزدے اورسيدل، نو ابن عتيک خپلو ملګروته اووے، تاسو ټول دلته ايسار شئے. زۀ ورځم. موقعه ګورم، ابن عتيک وائي، زۀ ورغلم، او د دربان ذ راننوتلو تدبير م کولو، چه دے کښې د قلعه والو يو خر ورک شولو، او هغوي هغه خر رنړا اخستو سره تلاش کولو، زۀ او يريدم، چه چرته ما اونۀ پيژني، نو ما خپل سر پټ کړلو، او داشان کيناستم، ځنګه چه څوک رفع حاجت د پاره کيني. دے کښې دربان آواز اوکۀ، دروازه بنديږي، څوک چه دننه راځي را دے شي، زۀ تادي سره دننه ورغلم او د خرونو ذ تړلو خانے کښې پټ شوم. قلعه والو ابو رافع سره ډوډي اوخوړله، او بيا د شپے ډير وخته پورے ئے خبرے کولے. کوم وخت چه ټول لاړل او هر طرف ته خاموشي خوره شوه، نو زۀ اووتلم، او دربان چه کوم خانے چابيانے ايښے

مِّنَ اللَّيْلِ ثُمَّ رَجَعُوْا اِلٰى بُيُوْتِهِمْ فَلَمَّا هَدَاَتِ الْاَصْوَاتُ وَلَا اَسْمَعُ حَرَكَةً خَرَجْتُ قَالَ وَ رَاَيْتُ صَاحِبَ الْبَابِ حَيْثُ وَضَعَ مِفْتَاحَ الْحِصْنِ فِيْ كُوَّةٍ فَاَخَذْتُهُ فَفَتَحْتُ بِهٖ بَابَ الْحِصْنِ قَالَ قُلْتُ اِنْ تَذَرِبِيَ الْقَوْمُ انْطَلَقْتُ عَلٰى مَهَلٍ ثُمَّ عَمَدْتُ اِلٰى اَبْوَابِ بُيُوْتِهِمْ فَغَلَّقْتُهَا عَلَيْهِمْ مِّنْ ظَاهِرٍ ثُمَّ صَعِدْتُ اِلٰى اَبِيْ رَافِعٍ فِيْ سُلَّمٍ فَاِذَا الْبَيْتُ مُظْلِمٌ قَدْ طُفِيءَ سِرَاجُهٗ فَلَمْ اَدْرِ اَيْنَ الرَّجُلُ فَقُلْتُ يَا اَبَا رَافِعٍ قَالَ مَنْ هٰذَا قَالَ فَعَمَدْتُ نَحْوَا الصَّوْتِ فَاَضْرِبُهٗ وَ صَاحَ فَلَمْ تُغْنِ شَيْئًا قَالَ ثُمَّ جِئْتُ كَاَنِّيْ اُغِيْثُهٗ فَقُلْتُ مَالَكَ يَا اَبَا رَافِعٍ وَ غَيَّرْتُ صَوْتِيْ فَقَالَ اَلَا اُعْجِبُكَ لِاُمِّكَ الْوَيْلُ دَخَلَ عَلَيَّ رَجُلٌ فَضَرَبَنِيْ بِالسَّيْفِ قَالَ فَعَمَدْتُ لَهٗ اَيْضًا فَاَضْرِبُهٗ اُخْرٰى فَلَمْ تُغْنِ شَيْئًا فَصَاحَ وَ قَامَ اَهْلُهٗ قَالَ ثُمَّ جِئْتُ وَ غَيَّرْتُ صَوْتِيْ كَهَيْئَةِ الْمُغِيْثِ فَاِذَا هُوَ مُسْتَلْقٍ عَلٰى ظَهْرِهٖ فَاَضَعُ السَّيْفَ فِيْ بَطْنِهٖ ثُمَّ اَنْكَفِيءُ عَلَيْهِ حَتّٰى سَمِعْتُ صَوْتَ الْعَظْمِ ثُمَّ خَرَجْتُ دَهِشًا حَتّٰى اَتَيْتُ السُّلَّمَ اُرِيْدُ اَنْ اَنْزِلَ فَاَسْقُطُ مِنْهُ فَانْخَلَعَتْ

وے، هغه م راواخستے، او د قلعه دروازه م پرانسته، چه آساني سره تیښته او کړے شم دے نه پس زۀ قلعه کښ چه کوم مکانات وو، هلته ورغلم، او ذ بهر نه م د تړلو زنځیر اولړولو، دے نه پس زۀ ذ ابو رافع په سیړهو ور اوختلم، څۀ ګورم، چه کمره کښ تیاره ده، ماته د هغه مقام معلوم نه شولو، آخر ما ابو رافع نوم اخستو سره ورته آواز اوکۀ، نو هغۀ تپوس اوکۀ، څوک نے. ذ هغۀ آواز سره زۀ ورمخکښ شوم، او ذ تورے ګزار م پرے اوکۀ. هغۀ چغے کړے، خو وار خطا لاړ، زۀ لږ ساعت ایسار شوم او ورنـزدے شوم، او تپوس م ترے اوکۀ، اے ابو رافع، څۀ خبره ده، هغۀ دا خیال اوکۀ، چه ګني دا خما څوک سړے دے، چه مدد له راغلے دے. په دے وجه هغۀ اووے، اے مور دے مړه شه، چا په ما ذ تورے ګزار اوکۀ. دے آوریدو سره پرے ما یو بل ګزار اوکۀ، خو سپک شان ګزار ښکاریدۀ (یعني سخت اونۀ لږیدلو) ذ هغۀ ښځه اوتښتیده، او هغۀ چغے کړے، ما بیا آواز بدل کړلو. او ذ مددګار په حیثیت هغۀ ته ورنزدے شوم، هغه راغرځیدلے وو، نو ما توره ذ هغۀ په خیټه کیښوده او دومره زور م ورکړلو، چه ذ هډوکي ذ تلقا آواز م واوریدلو. اوس چه ما ذ هغۀ کار تمام کړلو (یعني قتل م کۀ) نو په یره یره اندرپائے (سیړهۍ) ته راغلم، اوغوښتل م، چه خکته راکوز شم. خو تادي کښ راوغرځیدم، او ذ پښے جوړ م اوختلو، ما پښه په کپړه اوتړله. او بیا رو، رو خپلو ملګرو ته م خان اورسولو، او ورته م اووے، تاسو تړول رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته ذ ابو رافع ذ قتل خبر واوروے، او زۀ ذ هغۀ ذ مرګ ذ یقیني خبر پورے به دلته ایسار، یم.

رِجْلِيْ فَعَصَبْتُهَا ثُمَّ اَتَيْتُ اَصْحَابِيْ اَحْجُلُ فَقُلْتُ انْطَلِقُوْا فَبَشِّرُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنِّيْ لَا اَبْرَحُ حَتّٰى اَسْمَعَ النَّاعِيَةَ فَقَالَ اَنْعٰى اَبَا رَافِعٍ قَالَ فَقُمْتُ اَمْشِيْ مَابِيْ قَلَبَةٌ فَاَدْرَكْتُ اَصْحَابِيْ قَبْلَ اَنْ يَّاْتُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَشَّرْتُهٗ.

باب ۱۷: غَزْوَةِ اُحُدٍ. وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِذْ غَدَوْتَ مِنْ اَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِيْنَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ وَقَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَ اَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ اِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهٗ وَ تِلْكَ الْاَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ يَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ وَلِيُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ يَمْحَقَ الْكَافِرِيْنَ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جَاهَدُوْا مِنْكُمْ وَ يَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ

آخر صبا نه قریب یو سړي په دیوال اوختلو، او وې ونیل، اې خلقو، زهٔ درته ذ ابو رافع ذ مرګ خبر آوروم. ابن عتیک وائي، زهٔ چه ذ تلو ذ پاره پاسیدم، خو ذ خوشحالي نه م څهٔ تکلیف محسوس نهٔ کړلو، زهٔ تیزي سره لاړم، او ملګري م رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته ذ رسیدو نه مخکښ رالاندې کړل. او بیا م خپله حضور صلي الله علیه وسلّم ته دا خوشخبري واوروله. حضور صلي الله علیه وسلّم خما په پنډئ خپل لاس مبارک راښکلو، او زهٔ بیخي روغ رمټ شولم.

باب ۱۷: ذ اُحد ذ غزا بیان. الله تعالي سورهٔ آل عمران کښ اوفرمائیل، اې خمونږ رسولهٔ، یاد کړه، چه تهٔ سحر وخت کښ ذ کور نه اووتلې، او مسلمانان دې ذ جنګ په خائے کینول، او الله اوریدونکے او پوهیدونکے دے. بیا بل خائے کښ دې سورت کښ اوفرمائیل چه مهٔ سست کیږئ او مهٔ غمګین کیږئ، تاسو به غالب ئې، که ایماندار یئ، که تاسو زخمي شوئې، نو هغوي ته هم زخم لږیدلے وو، دا خو ذ زمانې ګیر پیر دے. چه مونږ وار په وار په خلقو ئې راولو، ذ پاره ذ دې چه الله تعالي مؤمنان ممتاز کړي، او تاسو کښ بعضو له ذ شهادت درجه ورکړي، او الله تعالي ظالمان نهٔ دوستان کوي، او الله تعالي به ایماندار صاف ستهره کړي، او کافر به تباه کړي، آیا ستاسو دا خیال دے چه تاسو به جنت له لاړ شئې، حالانکه الله تعالي لا دا نهٔ دي ښودلې، چه تاسو کښ به څوک جنګ کونکي او څوک صبر کونکي وي، او تاسو ذ هغې فتح نه مخکښ ذ مرګ آرزو کوله، اوس خو مو مرګ په خپلو

اَنْ تَلْقَوْهُ فَقَدْ رَاَيْتُمُوْهُ وَ اَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ. وَ قَوْلِهٖ وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ حَتّٰى اِذَا فَشِلْتُمْ وَ تَنَازَعْتُمْ فِى الْاَمْرِ وَ عَصَيْتُمْ مِنْۢ بَعْدِ مَا اَرٰىكُمْ مَا تُحِبُّوْنَ مِنْكُمْ مَنْ يُرِيْدُ الدُّنْيَا وَ مِنْكُمْ مَنْ يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا اَلْاٰيَةَ.

ستر كو اوليدلو' بيا بل ځائے كښې ئے اوفرمائيل' چه الله تعالٰي خپله وعده ريښتنے اوښودله هر كله چه تاسو د اللّٰه تعالٰي په حكم هغوي وهل' تردے چه تاسو نامردي اوكړله' او كار كښې مو جګړه واچوله او د خپل سهولت ځيزونه د كتلو نه پس تاسو نافرماني اوكړله' بعضے تاسو كښې دُنيا غوښتله او بعضے آخرت غوښتلو. بيائے تاسو د هغوي نه لرے كړئے' چه ستاسو آزمائش اوكړي' او هغه تاسو معاف كړي نے' څكه چه اللّٰه تعالٰي په ايماندارو مهربانه دے. كوم خلق چه د اللّٰه په لار كښې اووژلے شو (يعني شهيدان شو) هغوي مړهٔ مه ګڼړئے' بلكه هغوي ژوندي دي آخر آيت پورے.

۸۶: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُدٍ هٰذَا جِبْرِيْلُ اٰخِذٌ بِرَاْسِ فَرَسِهٖ عَلَيْهِ اَدَاةُ الْحَرْبِ.

۸۶: ابراهيم بن موسٰي. عبدالوهاب. خالد. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' هغه فرمائي' رسالت مٓب صلي اللّٰه عليه وسلّم د اُحد په ورځ اوفرمائيل (ګورے) دا جبرائيلؑ دے' چه د خپل اس سر ئے نيولے دے او وسله ئے اچولے ده.

۸۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ اَخْبَرَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ عَدِيٍّ اَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ حَيْوَةَ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِىْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِى الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ صَلّٰى رَسُوْلُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَتْلٰى اُحُدٍ بَعْدَ ثَمَانِىْ سِنِيْنَ كَالْمُوَدِّعِ لِلْاَحْيَاۤءِ وَالْاَمْوَاتِ ثُمَّ طَلَعَ الْمِنْبَرَ فَقَالَ اِنِّىْ بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ فَرَطٌ وَّ

۸۷: محمد بن عبدالرحيم. زكريا بن عدي. عبداللّٰه بن مبارک. حيوه. يزيد بن ابي حبيب. حضرت عقبه بن عامر نه روايت كوي' هغهٔ اورے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اته كاله پس د اُحد په شهيدانو داسے مونځ اوكړلو' څنګه چه څوک. وندي او مړي رخصت كوي. بيا واپس راغے' منبر ته ئے تشريف راوړلو' او ارشاد ئے اوفرمائيلو' زهٔ ستاسو پيش خيمه يم' ستاسو د اعمالو ګواه يم څما او ستاسو ملاقات به په

اَنَا عَلَيْكُمْ شَهِيْدٌ وَ اِنَّ مَوْعِدَكُمُ الْحَوْضُ وَ اِنِّيْ لَاَنْظُرُ اِلَيْهِ مِنْ مَقَامِيْ هٰذَا وَ اِنِّيْ لَسْتُ اَخْشٰى عَلَيْكُمْ اَنْ تُشْرِكُوْا وَلٰكِنِّيْ اَخْشٰى عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا اَنْ تَنَافَسُوْهَا قَالَ فَكَانَتْ اٰخِرَ نَظْرَةٍ نَظَرْتُهَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۸۸: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ لَقِيْنَا الْمُشْرِكِيْنَ يَوْمَئِذٍ وَ اَجْلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَيْشًا مِّنَ الرُّمَاةِ وَ اَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَبْدَ اللّٰهِ وَ قَالَ لَا تَبْرَحُوْا اِنْ رَّاَيْتُمُوْنَا ظَهَرْنَا عَلَيْهِمْ فَلَا تَبْرَحُوْا وَ اِنْ رَّاَيْتُمُوْهُمْ ظَهَرُوْا عَلَيْنَا فَلَا تُعِيْنُوْنَا فَلَمَّا لَقِيْنَا هَرَبُوْا حَتّٰى رَاَيْتُ النِّسَآءَ يَشْتَدِدْنَ فِى الْجَبَلِ رَفَعْنَ عَنْ سُوْقِهِنَّ قَدْ بَدَتْ خَلَاخِلُهُنَّ فَاَخَذُوْا يَقُوْلُوْنَ الْغَنِيْمَةَ الْغَنِيْمَةَ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ عَهِدَ اِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ لَّا تَبْرَحُوْا فَاَبَوْا فَلَمَّا اَبَوْا صُرِفَ وُجُوْهُهُمْ فَاُصِيْبَ سَبْعُوْنَ

حوض کوثر کیږي او زهٔ خو ذ دے خائے نه حوض کوثر وینم. ما سره د دے خبرے ویره بیخي نشته چه تاسو به خما نه پس مشرکان شئے البته زهٔ ددے خبرے اندیښنه لرم چه تاسو به خپلو کښې یو بل سره ذ دُنیا مزو کښې پریوځئے او رشک او حسد به راواخلئے. عقبه وائي دُنیا کښې دا خما نبي صلي الله علیه وسلّم سره آخري دیدن وو.

۸۸: عبیدالله بن موسٰي. اسرائیل. ابن اسحاق. حضرت براء بن عازب نه روایت کوي هغه فرمائي ذ اُحد په ورځ چه مونږ ذ مشرکانو مقابلے له ورغلو نو نبي صلي الله علیه وسلّم ذ تیر اندازو یو جماعت باندے عبدالله بن جبیر سردار مقرر کړلو او هغه ته ئے اوفرمائیل تاسو له ذ دے ځائے نه هیڅ حال کښې خوزیدل نهٔ دي پکار که تاسو مونږ غالب اووینے یا مغلوب او خمونږ مدد د پاره هم مهٔ راځئ. غرض دا چه خمونږ او ذ کافرو ټکر راغے نو هغوي میدان پریښود او تښتیدل ما د هغوي ښځے اولیدے چه پنډئ ئے پرانستے او پائینچے ئے اوچتے کړے وے په غر تښتیدلے او د هغوي پائیزیبونو چمک کولو ذ عبدالله بن جبیر ملګرو اووے منډه کړئ او مال غنیمت لوټ کړئ. عبدالله منع کړل چه ګورئ حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم هدایت کړے دے چه هیڅ حال کښې خپله مورچه مهٔ پریږدئ خو چا اونهٔ منله. آخر ذ مسلمانانو مخونه اوګرځیدل او اویا مسلمانان شهیدان شو. ابوسفیان په یو اوچت ځائے اوختلو او نعرے ئے کړے اے مسلمانانو محمدؐ ژوندے دے. حضور

قَتِيْلًا وَ اَشْرَفَ اَبُوْ سُفْيَانَ فَقَالَ اَفِي الْقَوْمِ مُحَمَّدٌ فَقَالَ لَا تُجِيْبُوْهُ فَقَالَ اَفِي الْقَوْمِ ابْنُ اَبِيْ قُحَافَةَ قَالَ لَا تُجِيْبُوْهُ فَقَالَ اَفِي الْقَوْمِ ابْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ اِنَّ هٰؤُلَآءِ قُتِلُوْا فَلَوْ كَانُوْا اَحْيَآءً لَاَجَابُوْا فَلَمْ يَمْلِكْ عُمَرُ نَفْسَهُ فَقَالَ كَذَبْتَ يَا عَدُوَّ اللّٰهِ اَبْقَى اللّٰهُ عَلَيْكَ مَا يُخْزِيْكَ قَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ اُعْلُ هُبَلُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجِيْبُوْهُ قَالُوْا مَا نَقُوْلُ قَالَ قُوْلُوْا اللّٰهُ اَعْلٰى وَ اَجَلُّ قَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ لَنَا الْعُزّٰى وَلَا عُزّٰى لَكُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجِيْبُوْهُ قَالُوْا مَا نَقُوْلُ قَالَ قُوْلُوْا اللّٰهُ مَوْلَانَا وَلَا مَوْلٰى لَكُمْ قَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ يَوْمٌ بِيَوْمِ بَدْرٍ وَّالْحَرْبُ سِجَالٌ وَ سَتَجِدُوْنَ مُثْلَةً لَمْ اٰمُرْ بِهَا وَلَمْ تَسُؤْنِيْ.

اوفرمائيل: خاموش شئ، جواب مه ور كوئ بيائے اووے: د ابو قحافه خوئے ابوبكر ژوندے دے؟ حضورؐ اوفرمائيل، چپ شئ، جواب مه ور كوئ بيائے اووے، د خطاب خوئے عمرؓ ژوندے دے؟ بيائے اووے: معلوميږي چه ټول وژلے شوے دي كه ژوندي وے، نو جواب به ئے راكړے وو. دے آوريدو سره حضرت عمرؓ ضبط اونه كړے شو، اووے وئيل، اے د خدائے دشمنه، ته دروغجن ئے؛ الله ستا د ذليل كولو د پاره ټول قائم ساتلے دي. ابو سفيان نعرے كړے. اے هبل: ته بلند او اوچت ئے. خمونږ مدد اوكه. حضور اكرمؐ ورته اوفرمائيل، تاسو هم جواب وركړئ. تپوس ئے ترے اوكړ، څه جواب وركړو. حضورؐ ورته اوفرمائيل، اووائے، خدائے بلند او بالا او بزرگ دے، ابوسفيان اووے، خمونږ مددگار عزي دے، او تاسو سره عزي نشته دے. حضورؐ اوفرمائيل دۀ له جواب وركړئ، تپوس ئے اوكړ: څۀ جواب وركړو؛ حضورؐ ورته اوفرمائيل: وائے چه: الله خمونږ مددگار دے، ستاسو مددگار هيڅوك نشته. ابوسفيان اووے، د بدر بدله اوشوه. جنګ د ډول په شان دے. ګټه بيلات (هارجيت) كيږي، تاسو به ميدان كښ ډير لاشونه اووينئ، چه د هغوي پوزے پريكړے شوے دي، ما دا حكم نۀ وو كړے، او نۀ ماته د دے افسوس شته.

**۸۹**: اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ قَالَ اصْطَبَحَ الْخَمْرَ يَوْمَ اُحُدٍ نَاسٌ ثُمَّ قُتِلُوْا شُهَدَآءَ.

**۸۹**: عبدالله بن محمد. سفيان. عمرو بن دينار. حضرت جابرؓ نه روايت كوي، هغۀ اووے، د اُحد په ورخ داسے اوشو، چه بعضے خلقو د سحر شراب اُوڅكل، او بيا جنګ كښ شهيدان شول.

۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَبِيْهِ اِبْرٰهِيْمَ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ اُتِيَ بِطَعَامٍ وَّ كَانَ صَآئِمًا فَقَالَ قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَّهُوَ خَيْرٌ مِّنِّيْ كُفِّنَ فِيْ بُرْدَةٍ اِنْ غُطِّيَ رَاْسُهُ بَدَتْ رِجْلَاهُ وَ اِنْ غُطِّيَ رِجْلَاهُ بَدَا رَاْسُهُ وَ اُرَاهُ قَالَ وَ قُتِلَ حَمْزَةُ وَهُوَ خَيْرٌ مِّنِّيْ ثُمَّ بُسِطَ لَنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا بُسِطَ اَوْ قَالَ اُعْطِيْنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا اُعْطِيْنَا وَقَدْ خَشِيْنَا اَنْ تَكُوْنَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا ثُمَّ جَعَلَ يَبْكِيْ حَتّٰى تَرَكَ الطَّعَامَ.

۹۰: عبدان. عبدالله: شعبه. سعد بن ابراهيم بن عبدالرحمٰن بن عوف ذ خپل پلار نه روايت کوي، چه ذ عبدالرحمٰن بن عوف روژه وه. مابنام هغۀ ته خوراکه راوړے شوه، نو هغۀ اووے، مصعب بن عميرؓ اُحد کښې شهيد شو، هغه خما نه بنۀ وو، يو څادر کښې هغه دفن کړے شو، که سر مو ورله پټولو، نو پښے نے څرګندے پاتے کيدے، او که پښے مو ورله پټولے، نو سر نے څرګند پاتے کيدلو. ابراهيم وائي، خما خيال دے، هغۀ دا هم ونيلے وو، چه حمزه بن عبدالمطلب هم په دغه ورځ شهيد شولو، هغه هم خما نه بنۀ وو. بيا مونږ خلقو ته دُنيا کښې فراخي راکړے شوه، او داسے راکړے شوه، چه مونږ سره ويره وه، چه چرته خمونږ ذ نيکو (نيکيوں) ثواب دُنيا کښې مونږ ته زر نه وي راکړے شوے. دے نه پس په ژړا شو، او دومره نے اوژړل، چه طعام نے هم اونۀ خوړلے شو.

۹۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِّلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُدٍ اَرَاَيْتَ اِنْ قُتِلْتُ فَاَيْنَ اَنَا قَالَ فِي الْجَنَّةِ فَاَلْقٰى تَمَرَاتٍ فِيْ يَدِهٖ ثُمَّ قَاتَلَ حَتّٰى قُتِلَ.

۹۱: عبداللّٰه بن محمد. سفيان. عمرو بن دينار. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت کوي، هغۀ اووے، ذ اُحد په ورځ يو سړي د حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوکۀ، ماته اوښائے، که زۀ اووژلے شم، نو کوم خوا به خم، حضورؐ ورته اوفرمائيل، جنت ته دے اوريدو سره هغه داسے اوشو، چه کومے قجورے نے خوړلے، هغه نے هم اوغورځولے. بيا غزا کښې شهيد شولو.

۹۲: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ خَبَّابٍؓ قَالَ هَاجَرْنَا مَعَ

۹۲: احمد بن يونس. زهير. اعمش. شقيق. حضرت خباب بن ارت نه روايت کوي، هغۀ اووے. مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم سره هجرت اوکۀ، او

رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبْتَغِيْ وَجْهَ اللّٰهِ فَوَجَبَ اَجْرُنَا عَلَى اللّٰهِ وَ مِنَّا مَنْ مَّضٰى اَوْ ذَهَبَ لَمْ يَاْكُلْ مِنْ اَجْرِهٖ شَيْئًا كَانَ مِنْهُمْ مُّصْعَبُ ابْنُ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ اُحُدٍ لَّمْ يَتْرُكْ اِلَّا نَمِرَةً كُنَّا اِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَاْسَهٗ خَرَجَتْ رِجْلَاهُ وَ اِذَا غُطِّيَ بِهَا رِجْلَاهُ خَرَجَ رَاْسُهٗ فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَطُّوْا بِهَا رَاْسَهٗ وَاجْعَلُوْا عَلٰى رِجْلِهِ الْاِذْخَرَ اَوْ قَالَ اَلْقُوْا عَلٰى رِجْلِهٖ مِنَ الْاِذْخَرِ وَ مِنَّا مَنْ قَدْ اَيْنَعَتْ لَهٗ ثَمَرَتُهٗ فَهُوَ يَهْدِبُهَا.

بيخي د اللّٰه تعالٰي د رضا د پاره مو اوکه. اوس ځمونږ ثواب د اللّٰه تعالٰي په ذمه شو. مونږ کښې بعضې داسې دي، چه تير شو (يعني مړهٔ شو) او هغوي دُنيا کښې هيڅ بدله بيانه منده. دغې خلقو کښې مصعب بن عميرؓ هم دې، چه د اُحد په ورځ شهيد شولو. د هغهٔ نه صرف يو کربنه دار کمبل پاتې شو، چه هغې سره مو د هغهٔ سر پټولو، نو پښې ئې خرګندې پاتې کيدې، او که پښې مو ورله پټولې، نو سر ئې خرګند پاتې کيدلو. آخر حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د هغهٔ سر پټ کړئ، او په پښو ورله اذخر واښه واچوئ، او مونږ کښې بعضې داسې دي، چه د هغوي ميوه ښهٔ پخه شوه، او هغه خوري.

۹۳ : حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ حَسَّانَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَلْحَةَ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّ عَمَّهٗ غَابَ عَنْ بَدْرٍ فَقَالَ غِبْتُ عَنْ اَوَّلِ قِتَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَئِنْ اَشْهَدَنِي اللّٰهُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَرَيَنَّ اللّٰهُ مَا اَجِدُّ فَلَقِيَ يَوْمَ اُحُدٍ فَهُزِمَ النَّاسُ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعْتَذِرُ اِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ هٰؤُلَاءِ يَعْنِي الْمُسْلِمِيْنَ وَ اَبْرَاُ اِلَيْكَ مِمَّا جَاءَ بِهِ الْمُشْرِكُوْنَ فَتَقَدَّمَ بِسَيْفِهٖ فَلَقِيَ سَعْدَ بْنَ مُعَاذٍ فَقَالَ اَيْنَ يَا

۹۳ : حسان بن حسان. محمد بن طلحه. حميد.

حضرت انسؓ نه روايت کوي، د انس تره انس بن نضر د بدر په جنګ کښې غير حاضر وو، هغهٔ اووې، حضورؐ سره ورمبني جنګ کښې شريک نهٔ شوم. خير که اوس اللّٰه ماته جنګ کښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره د شريکيدو موقع راکړه، نو اللّٰه به اوويني، چه زهٔ څنګه کوشش کوم. څهٔ وخت چه د اُحد ورځ راغله، او مسلمانان په تيښته شو. نو انس بن نضر اووې، يا اللّٰه، زهٔ ستا بارګاه کښې عذر کوم، څهٔ چه دې مسلمانانو اوکړل، او څهٔ چه مشرکينو اوکړل، د دې نه بيزار يم. بيائې توره واخسته، ميدان ته ورمخکښې شو. لار کښې ورسره سعد بن معاذ يوځائې شو، انس ورته اووې، ولې سعدَ، چرته روان ئې، ماته خو د اُحد غر د شا، نه د جنت بوي راځي. غرض دا چه دومره (زور سره) اوجنګيدلو، چه (د

سَعْدُ اِنِّیْ اَجِدُ رِيْحَ الْجَنَّةِ دُوْنَ اُحُدٍ فَمَضٰى فَقُتِلَ فَمَا عُرِفَ حَتّٰى عَرَفَتْهُ اُخْتُهُ بِشَامَةٍ اَوْ بِبَنَانِهٖ وَبِهٖ بِضْعٌ وَّ ثَمَانُوْنَ مِنْ طَعْنَةٍ وَّ ضَرْبَةٍ وَّ رَمْيَةٍ بِسَهْمٍ.

زخـمـونـو د كثـرت نـه) شهيـد شـولـو. ذ هـغـهٔ لاش بيـژنـدلـے نـه شـو. د هغهٔ خور د خال (توره زخه) او د ېنبـے د كـوتـے پـه نښـه هغه اوپيژندلو، ذ اتيا نه زيات د تـورے نيـزے، غشـي زخـمـونـه ذ هـغـهٔ پـه جسـم لګيدلي وو.

۹۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ اَخْبَرَنِیْ خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍؓ اَنَّهٗ سَمِعَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ يَّقُوْلُ فَقَدْتُّ اٰيَةً مِّنَ الْاَحْزَابِ حِيْنَ نَسَخْنَا الْمُصْحَفَ كُنْتُ اَسْمَعُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَاُ بِهَا فَالْتَمَسْنَاهَا فَوَجَدْنَاهَا مَعَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ الْاَنْصَارِیِّ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ وَ مِنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ فَاَلْحَقْنَاهَا فِیْ سُوْرَتِهَا فِی الْمُصْحَفِ.

۹۴: موسى بن اسمعيل. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. حضرت خارجه بن زيد. حضرت زيد بن ثابت نه روايت كوي، هغه فرمائي، كوم وخت چه مونږ قرآن كريم د حضرت عثمانؓ په خلافت كښ ليكلو، نو ذ سورت احزاب يو آيت هغے كښ بيانهٔ منديے شو، چه ما ذ حضور صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلے وو. آخر ما هغه حضرت خزيمه بن ثابت انصاريؓ سره بيامندلو، او هغه داديے (ترجمه) مسلمانانو كښ ځنے داسے دي، چه هغوي الله تعالي سره كوم قول و قرار كړے وو، هغه ئے پوره كړلو. هغوي كښ خو بعضو خپل كار پوره كړ، شهيدان شول (لكه حضرت حمزه او مصعب بن عميرؓ) او بعضے انتظار كوي (لكه حضرت عثمانؓ او طلحهؓ) مونږ دا آيت خپل سورت كښ درج كړلو. په قرآن مجيد كښ.

۹۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ يَزِيْدَ يُحَدِّثُ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ لَمَّا خَرَجَ النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى اُحُدٍ رَّجَعَ نَاسٌ مِّمَّنْ خَرَجَ مَعَهٗ وَ كَانَ اَصْحَابُ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِرْقَتَيْنِ

۹۵: ابوالوليد. شعبة. عدي بن ثابت. عبدالله بن يزيد. حضرت زيد بن ثابت نه روايت كوي، هغه فرمائي، كوم وخت چه نبي اكرم صلي الله عليه وسلّم ذ اُحد ذ غزا ذ پاره اُووتلو. نو څهٔ خلق چه حضورؐ سره تلے وو، هغه واپس شولو. صحابه كرامؓ كښ ذ هغوي متعلق دوه ډلے شوے. ذ يوے ډلے خيال وو، چه دوي قتلول پكار دي، دوئيمے ډلے اووے، نه داسے نهٔ دي كول پكار، نو هغه وخت الله تعالي ذ سورهٔ نساء دا آيت نازل كړلو

فِرْقَةٌ تَقُوْلُ نُقَاتِلُهُمْ وَ فِرْقَةٌ تَقُوْلُ لَا نُقَاتِلُهُمْ فَنَزَلَتْ فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا وَ قَالَ اِنَّهَا طَيِّبَةٌ تَنْفِي الذُّنُوْبَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْفِضَّةِ.

(ترجمه) مسلمانانو په تاسو څهٔ شوي دي، چه تاسو د منافقانو باره کښې دوه ډلې شوي يئ حالانکه اللّٰه تعالیٰ د هغوي د اعمالُو په وجه هغوي کفر ته اړولي دي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، د مديني نوم طيّبه دے، هغه سرکشان د خان نه داسے او کاږي، څنګه چه بهتيئ د چاندي نه خيرے (ميل) او کاږي.

## باب ۱۸ : اِذْهَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنْكُمْ اَنْ تَفْشَلَا وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا وَ عَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ.

باب ۱۸ : آيت: اِذْهَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنْكُمْ اَنْ تَفْشَلَا د دے آيت کريمه متعلق چه کوم وخت دوو جماعتونو تاسو کښې د سُستيئ اراده او کړله، او اللّٰه تعالیٰ د هغوي مددګار وو، او مسلمانانو له په اللّٰه بهروسه کول پکار دي. (بهروسه: تکيه، توکل يقين).

۹۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍؓ قَالَ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ فِيْنَا اِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنْكُمْ اَنْ تَفْشَلَا بَنِيْ سَلِمَةَ وَ بَنِيْ حَارِثَةَ وَمَا اُحِبُّ اَنَّهَا لَمْ تَنْزِلْ وَاللّٰهُ يَقُوْلُ وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا.

۹۶ : محمد بن يوسف. ابن عيينه. عمرو بن دينار. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت کوي، هغهٔ اووے، د سورهٔ آل عمران ذکر شوے آيت کښې د دوو جماعتونو (ډلو) نه بني سلمه او بني حارثه مراد دي. او د دے آيت نازيلدل خما ډير خوښ دي، ځکه چه دے کښې اللّٰه تعالیٰ دواړو سره د مدد وعده کړے ده.

۹۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ اَخْبَرَنَا عَمْرٌو عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ نَكَحْتَ يَا جَابِرُ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ مَاذَا اَبِكْرًا اَمْ ثَيِّبًا قُلْتُ لَابَلْ ثَيِّبًا قَالَ فَهَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُكَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَبِيْ قُتِلَ يَوْمَ اُحُدٍ وَّ تَرَكَ تِسْعَ

۹۷ : قتيبه. سفيان. عمرو بن دينار. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ما نه تپوس او کهٔ، جابره، تا نکاح کړے ده. ما عرض او کهٔ، جي او، وے فرمائيل، پيغلے سره يا کُنډے سره. ما عرض او که، کُنډے سره. حضورؐ اوفرمائيل، پيغلے (يعني جينئ يا کم عمره) سره به دے نکاح کړے وے، نو هغے به تا سره لوبے کولے. ما عرض او کهٔ، يا رسول اللّٰه، خما پلار، په اُحد کښې شهيد شولو، او خان نه پس ئے نهه لونړه پريښودے، نو د نهه خويندو په موجودګئ کښې دا

بَنَاتٍ كُنَّ لِيْ تِسْعَ اَخَوَاتٍ فَكَرِهْتُ اَنْ اَجْمَعَ اِلَيْهِنَّ جَارِيَةً خَرْقَاءَ مِثْلَهُنَّ وَلٰكِنِ امْرَأَةٌ تَمْشُطُهُنَّ وَ تَقُوْمُ عَلَيْهِنَّ قَالَ اَصَبْتَ.

مناسب نهٔ معلوميږي' چه ذَ هغوي په شان يوے بلے نادانے جينئ كښ م اضافه كړے وے' نو ما اوغښتل چه ذَ زيات عمر' يوه پوهے ښځه راولم' چه ذَ هغوي سر ګنږه او خدمت اوكړے شي' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' دا دے ډير ښهٔ اوكړل.

۹۸ : حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ شُرَيْحٍ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ فِرَاسٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ اَبَاهُ اسْتُشْهِدَ يَوْمَ اُحُدٍ وَّ تَرَكَ عَلَيْهِ دَيْنًا وَّ تَرَكَ سِتَّ بَنَاتٍ فَلَمَّا حَضَرَ جِذَاذُ النَّخْلِ قَالَ اَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ قَدْ عَلِمْتَ اَنَّ وَالِدِيْ قَدِ اسْتُشْهِدَ يَوْمَ اُحُدٍ وَّ تَرَكَ دَيْنًا كَثِيْرًا وَّ اِنِّيْ اُحِبُّ اَنْ يَّرَاكَ الْغُرَمَاءُ فَقَالَ اذْهَبْ فَبَيْدِرْ كُلَّ تَمْرٍ عَلٰى نَاحِيَةٍ فَفَعَلْتُ ثُمَّ دَعَوْتُهُ فَلَمَّا نَظَرُوْا اِلَيْهِ كَاَنَّهُمْ اُغْرُوْا بِيْ تِلْكَ السَّاعَةَ فَلَمَّا رَاٰى مَا يَصْنَعُوْنَ اَطَافَ حَوْلَ اَعْظَمِهَا بَيْدَرًا ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ جَلَسَ عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ ادْعُ لَكَ اَصْحَابَكَ فَمَا زَالَ يَكِيْلُ لَهُمْ حَتّٰى اَدَّى اللّٰهُ عَنْ وَّالِدِيْ اَمَانَتَهُ وَ اَنَا اَرْضٰى اَنْ يُّؤَدِّيَ اللّٰهُ اَمَانَةَ وَالِدِيْ

۹۸ : احمد بن شريح. عبيدالله بن موسٰي. شيبان. فراس بن يحيي. شعبي نه روايت كوي' هغهٔ اووے' حضرت جابر بن عبداللّٰہؓ بيان اوكهٔ' څما پلار ذَ اُحد په ورځ شهيد شولو' هغهٔ قرضدارے وو' او شپږ كم عمره لونړه ترے پاتے شوے. څهٔ وخت چه ذَ قجورو شوكولو وخت راغے' نو زهٔ ذَ حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شوم' عرض م اوكه' يا رسول اللّٰه' تاسو ته معلومه ده' څما پلار ذَ اُحد غزا كښ شهيد شوے دے' او ډير قرض پرے پاتے شوے دے' او څما دا خواهش دے چه تاسو تشريف راوړئے' چه قرض خواه تاسو اووينې حضورؐ ورته اوفرمائيل' ښهٔ ده' صباله تهٔ باغ ته لاړ شه' او د قجورو جدا جدا ډهيري جوړ كړه' نو ما دغسے اوكړل' خو قرض خواهانو چه حضورؐ اوليدلو نو زيات ضد ئے شروع كړلو. حضورؐ چه ذَ هغوي دا حالت اوليدلو' نو د يو لوئے ډهيري نه ئے درے چكرونه اولږول' او كيناستلو. بيائے اوفرمائيل قرض خواه راوغواړه. بيائے هغوي ته په ناپ وركولو تردے چه اللّٰه تعالٰي څما ذَ پلار قرضه بے باكه كړله' او ما دا غوښتل' چه هر څنكه وي' دا قرض ادا شي' خواه څما ذَ خويندو ذَ پاره يوه دانه قجوره هم پاتے نشي. اللّٰه تعالٰي ټول ډهيرونه بچ كړل. په كوم ډهير چه رسالت مٰاب صلي

وَلاَ اَرْجِعَ اِلَى اَخَوَاتِيْ بِتَمْرَةٍ فَسَلَّمَ اللّٰهُ الْبَيَادِرَ كُلَّهَا وَ حَتّٰى اَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَى الْبَيْدَرِ الَّذِيْ كَانَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَاَنَّهَا لَمْ تَنْقُصْ تَمْرَةً وَّاحِدَةً.

اللّٰه عليه وسلّم ناست وو' ما هغې ته كتل' او ماته داسې معلوميده' چه د هغې نه يوه قجوره هم كمه شوې نه ده' دا د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم بركت او معجزه وه' (داسې واقعات د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د نبوت د دلائيلو نه دي).

۹۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ عَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُدٍ وَّ مَعَهُ رَجُلَانِ يُقَاتِلَانِ عَنْهُ عَلَيْهِمَا ثِيَابٌ بِيْضٌ كَاَشَدِّ الْقِتَالِ مَا رَاَيْتُهُمَا قَبْلُ وَلَا بَعْدُ.

۹۹: عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. د خپل پلار سعد بن ابراهيم او نيكهٔ (دادا) عبدالرحمن بن عوف. سعد بن ابي وقاصؓ نه روايت كوي' هغهٔ اووې' ما د اُحد په ورځ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو چه حضورؐ سره دوه سپين لباس واله سړي دي چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم حمايت كښ ډيرې مستعدي سره جنګيدل' ما هغوي د دې نه مخكښ او ورستو هيڅ كله نهٔ وو ليدلې.

۱۰۰: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هَاشِمٌ السَّعْدِيُّ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ اَبِيْ وَقَّاصٍ يَقُوْلُ نَثَلَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِنَانَتَهٗ يَوْمَ اُحُدٍ فَقَالَ ارْمِ فِدَاكَ اَبِيْ وَ اُمِّيْ.

۱۰۰: عبداللّٰه بن محمد. مروان بن معاويه. هاشم بن هاشم سعدي. سعيد بن مسيب. حضرت سعد بن ابي وقاصؓ نه روايت كوي' هغهٔ اووې' د اُحد په ورځ رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم ماته د خپل تركش نه تيرونه راوښكل' اووې فرمائيل. اې سعده' غشې چلوه' په تادې خما مور پلار قربان وي.

ف: تركش: تيردان. د تيرونو ايښودو خانې. د تيرونو ايښودو خانه.

۱۰۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا يَقُوْلُ جَمَعَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبَوَيْهِ يَوْمَ

۱۰۱: مسدد بن سريد. يحيٰي بن سعيد انصاري. سعيد بن مسيب. سعد بن ابي وقاص نه روايت كوي' هغهٔ وئيلې' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خما د پاره د اُحد په ورځ خپل مور پلار جمع كړل' وې فرمائيل (فداک ابي و امي) يعني خما مور پلار دې په تا قربان

اُحُدٍ.

وي.

۱۰۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَحْيٰى عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ اَنَّهُ قَالَ قَالَ سَعْدُ ابْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍؓ لَقَدْ جَمَعَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُدٍ اَبَوَيْهِ كِلَيْهِمَا يُرِيْدُ حِيْنَ قَالَ فِدَاكَ اَبِيْ وَ اُمِّيْ وَهُوَ يُقَاتِلُ.

۱۰۲: قتيبه. ليث. يحيي. ابن مسيب. حضرت سعد بن ابي وقاص نه روايت كوي، هغهٔ اووے، حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم ما د پاره دَ اُحد په ورخ خپل مور پلار دواړه جمع كړل، ذ سعد مطلب دا وو، ما غزا كوله، دغه وخت حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، خما مور پلار دے په تا قربان وي.

۱۰۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شَدَّادٍ قَالَ سَمِعْتُ عَلِيًّاؓ يَقُوْلُ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ اَبَوَيْهِ لِاَحَدٍ غَيْرَ سَعْدٍ.

۱۰۳: ابو نعيم. مسعر بن كدام. سعد بن ابراهيم. عبداللّٰه بن شداد. حضرت عليؓ نه روايت كوي، هغهٔ اوفرمائيل، ما نهٔ دي آوريدلے چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ سعد نه سوا ذَ بل چا په حق كښ داسے فرمائيلے دي، چه خما مور پلار دے په تا قربان وي.

۱۰۴: حَدَّثَنَا بُسْرَةُ بْنُ صَفْوَانَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ عَلِيٍّؓ قَالَ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَعَ اَبَوَيْهِ لِاَحَدٍ اِلَّا لِسَعْدِ بْنِ مَالِكٍ فَاِنِّيْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ يَوْمَ اُحُدٍ يَا سَعْدُ ارْمِ فِدَاكَ اَبِيْ وَ اُمِّيْ.

۱۰۴: يسره بن صفوان. ابراهيم بن سعد. هغه ذ خپل پلار نه. هغه ذ عبداللّٰه بن شداد نه. هغه ذ حضرت عليؓ نه روايت كوي، هغهٔ اوفرمائيل، مانهٔ دي آوريدلے، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چا ذ پاره ذ خپل مور پلار تصدّق كړے وي سوا ذ سعد بن مالک نه چه ذ اُحد په ورخ ما واوريدل، حضورؐ اوفرمائيل، سعد، تير چلوه، خما مور پلار دے په تا صدقه (قربان) وي.

۱۰۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ مُعْتَمِرٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ زَعَمَ اَبُوْ عُثْمَانَ اَنَّهُ لَمْ يَبْقَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ تِلْكَ الْاَيَّامِ الَّتِيْ يُقَاتِلُ

۱۰۵: موسي بن اسماعيل. معتمر. ذ خپل پلار نه روايت كوي، هغهٔ اووے، ابو عثمان نهدي ونيلے، يو جنګ كښ چه هغے كښ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوجنګيدلو (يعني ذ اُحد په ورخ) حضورؐ سره ذ طلحه بن عبيداللّٰه او سعد بن وقاص نه سوا بل څوک پاتے نه

فِيْهِنَّ غَيْرُ طَلْحَةَ وَ سَعْدٌ عَنْ حَدِيْثِهِمَا.

شو. ابو عثمان دا خبره طلحه او سعد نه واوريده او بيان ئې کړله.

۱۰۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوْسُفَ قَالَ سَمِعْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيْدَ قَالَ صَحِبْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ وَّ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللّٰهِ وَالْمِقْدَادَ وَ سَعْدًا فَمَا سَمِعْتُ اَحَدًا مِنْهُمْ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا اَنِّيْ سَمِعْتُ طَلْحَةَ يُحَدِّثُ عَنْ يَوْمِ اُحُدٍ.

۱۰۶: عبداللّٰه بن ابي اسود. حاتم بن اسمٰعيل. محمد بن يوسف. حضرت سائب بن يزيد نه روايت كوي، هغهٔ اوونې، زهٔ عبدالرحمن بن عوف او طلحه بن عبيداللّٰه، مقداد بن اسود او سعد بن ابي وقاصؓ صحبت كښې پاتې شوې يم ما هغوي كښې ذ يو نه هم ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم حديث بيانول نه دي آوريدلې البته ذ طلحهٌ نه مې ذ جنګ اُحد واقعه بيانول آوريدلې دي.

۱۰۷: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ رَاَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ شَلَّاءَ وَقٰى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُدٍ.

۱۰۷: عبداللّٰه بن ابي شيبه. وكيع بن جراح. اسمٰعيل بن ابي خالد. قيس بن ابي حازم نه روايت كوي، هغهٔ اووې، ذ طلحه يو لاس شل شوې وو، ځكه چه هغه ذ اُحد په ورځ په دغه لاس رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم بچ كولو.

۱۰۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ اُحُدٍ انْهَزَمَ النَّاسُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ طَلْحَةَ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُجَوِّبٌ عَلَيْهِ بِحَجَفَةٍ لَّهُ وَ كَانَ اَبُوْ طَلْحَةَ رَجُلًا رَّامِيًا شَدِيْدًا النَّزْعِ كَسَرَ يَوْمَئِذٍ قَوْسَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا وَّ كَانَ الرَّجُلُ يَمُرُّ مَعَهُ بِجَعْبَةٍ مِنَ النَّبْلِ فَيَقُوْلُ انْثُرْهَا

۱۰۸: ابو معمر. عبدالوارث. عبدالعزيز. حضرت انسؓ نه روايت كوي، ذ اُحد ورځ چه راغله، نو خلقو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم پريښودلو، او اوتښتيدل، خو ابو طلحهٌ ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ حفاظت ذ پاره خپل ډهال نيولې ولاړ وو. ابو طلحهٌ لوئې تير انداز او كماندار وو. هغه په دغه ورځ دوه ليندې (كمان) ماتې كړې. كوم مسلمان چه به ذ تيرونو تركش سره تيريدلو، نو حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم به هغهٔ ته فرمائيل. دا تير ذ ابو طلحه مخې ته كيږده. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه به سر

لِاَبِىْ طَلْحَةَ قَالَ وَ يُشْرِفُ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ اِلَى الْقَوْمِ فَيَقُوْلُ اَبُوْ طَلْحَةَ بِاَبِىْ اَنْتَ وَ اُمِّىْ لَا تُشْرِفْ يُصِيْبُكَ سَهْمٌ مِّنْ سِهَامِ الْقَوْمِ نَحْرِىْ دُوْنَ نَحْرِكَ وَلَقَدْ رَاَيْتُ عَائِشَةَ بِنْتَ اَبِىْ بَكْرٍ وَّ اُمَّ سُلَيْمٍ وَ اِنَّهُمَا لَمُشَمِّرَتَانِ اَرٰى خَدَمَ سُوْقِهِمَا تَنْقُزَانِ الْقِرَبَ عَلٰى مُتُوْنِهِمَا تُفْرِغَانِهٖ فِىْ اَفْوَاهِ الْقَوْمِ ثُمَّ تَرْجِعَانِ فَتَمْلَاٰنِهَا ثُمَّ تَجِيْئَانِ فَتُفْرِغَانِهٖ فِىْ اَفْوَاهِ الْقَوْمِ وَلَقَدْ وَقَعَ السَّيْفُ مِنْ يَدَىْ اَبِىْ طَلْحَةَ اِمَّا مَرَّتَيْنِ وَ اِمَّا ثَلٰثًا.

مبارک اوچت کړلو، او کافر به ئې کتل، نو ابو طلحه به عرض کولو، یا رسول الله، څما مور پلار دې په تاسو قربان وي، خپل سر مۀ اوچتوئې، چرته داسې نۀ وي چه غشې درته اولږي، که څما په مرئ (ګلې) اولږي نو څۀ حرج نشته، ځکه چه څما غاړه ستاسو په غاړه قربان ده. حضرت انسؓ وائي، ما په دغه ورځ بي بي عائشهؓ او خپله مور اُم سلیم اُولیدې چه کپړې ئې اوچتې کړې وې، دَ اوبو ډک مشکونه به ئې راوړل او په سرو به ئې څکول، بیا به هغوي واپس کیدلې، او ډک مشکونه به ئې راوړل، او دَ خلقو یعني (زخمیانو) په خوله کښې به ئې اوبه اچولې. دَ هغوي دَ پښو پازیب ښکاریدل. او بیا داسې اوشو، چه دَ حضرت ابو طلحهؓ لاس نه دوه یا درې خله توره اوغرځیدله.

۱۰۹ : حَدَّثَنِىْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا كَانَ يَوْمُ اُحُدٍ هُزِمَ الْمُشْرِكُوْنَ فَصَرَخَ اِبْلِيْسُ لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَيْهِ اَىْ عِبَادَ اللّٰهِ اُخْرَاكُمْ فَرَجَعَتْ اُوْلَاهُمْ فَاجْتَلَدَتْ هِىَ اُخْرَاهُمْ فَبَصُرَ حُذَيْفَةُ فَاِذَا هُوَ بِاَبِيْهِ الْيَمَانِ فَقَالَ اَىْ عِبَادَ اللّٰهِ اَبِىْ قَالَتْ فَوَاللّٰهِ مَا احْتَجَزُوْا حَتّٰى قَتَلُوْهُ فَقَالَ حُذَيْفَةُ يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكُمْ قَالَ عُرْوَةُ فَوَاللّٰهِ مَا زَالَتْ فِىْ حُذَيْفَةَ بَقِيَّةُ خَيْرٍ حَتّٰى لَحِقَ بِاللّٰهِ بَصُرْتُ عَلِمْتُ مِنَ

۱۰۹ : عبیدالله بن سعید. ابو اسامه. هشام بن عروه دَ خپل پلار عروه نه، هغه دَ بي بي عائشې نه روایت کوي، دَ اُحد په ورځ چه مشرکینو ته په ورمبني ځل شکست اوشو، نو شیطان آواز ورکړه اې دَ الله بندیانو، ستاسو، د، ورستو نه یو جماعت راروان دې!، دَ هغې نه خان بچ کړئې. دې آوریدو سره خلق راپه شاشو. دې کښې ئې اولیدل، چه دَ حذیفه پلار یمان باندې مسلمانان رامات دي، وژني ئې، نو حذیفه په اوچت آواز کښې اووې اې دَ الله بندیانو دا خو څما پلار دې. عروه وائي، بي بي عائشهؓ فرمائي، په خدائې مې دې قسم وي، هغوي اونۀ منله، تردې چه یمان ئې قتل کړلو. حذیفه اووې. خدائې دې تاسو اوبښي. عروه وائي په خدائې چه حذیفه دَ خپل آخر وخته پورې هغوي دَ پاره دَ مغفرت

الْبَصِيرَةِ فِي الْاَمْرِ وَ اَبْصَرْتُ مِنْ بَصَرِ الْعَيْنِ وَ يُقَالُ بَصُرْتُ وَ اَبْصَرْتُ وَاحِدٌ.

دُعا کوله. امام بخاريؒ وائي. بصرتُ دَ بصيرت نه دے. يعني ما اوپيژند. او ابصرت معني ما ستر کو سره اوليدو. بعضو اووے چه دَ بصرت او ابصرت يوه معني ده.

۱. ګويا کوم جماعت چه دوئ پسے دے هغه دَ کافرانو دے او په دوئ باندے حمله کول غواړي. مسلمانانوته غلط فهمي اوشوه او هغوئ دغه آواز دَ خپل يو امير اوګڼرلو او په روستنو خلقونے حمله اوکړه حالانکه هغوئ پسے هم مسلمانان وو، په دغه شان مسلمانان په خپلو کښے اونختل او مسلمانانو مسلمانان قتل کړل.

بَابٌ ۱۹ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطٰنُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ.

باب ۱۹ : آيت: اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ: دَ تښتيدونکو په بيان کښ، لکه چه اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل، چه دوه ډلے سره په جنګ شوے. شيطان هغوي دَ بعضو اعمالو په وجه په پرپنجه کړل، او بيشکه اللّٰه دَ هغوي قصور معاف کړے دے، ځکه چه اللّٰه تعالٰي ښنونکے او دَ تحمل خاوند دے.

۱۱۰ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا اَبُوْ حَمْزَةَ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ حَجَّ الْبَيْتَ فَرَاٰى قَوْمًا جُلُوْسًا فَقَالَ مَنْ هٰؤُلَآءِ الْقُعُوْدُ قَالُوْا هٰؤُلَآءِ قُرَيْشٌ قَالَ مَنِ الشَّيْخُ قَالُوا ابْنُ عُمَرَ فَاَتَاهُ فَقَالَ اِنِّيْ سَائِلُكَ عَنْ شَيْءٍ اَتُحَدِّثُنِيْ قَالَ اَنْشُدُكَ بِحُرْمَةِ هٰذَا الْبَيْتِ اَتَعْلَمُ اَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ فَرَّ يَوْمَ اُحُدٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَتَعْلَمُهُ تَغَيَّبَ عَنْ بَدْرٍ فَلَمْ يَشْهَدْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَتَعْلَمُ اَنَّهُ تَخَلَّفَ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَمْ يَشْهَدْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَكَبَّرَ

۱۱۰ : عبدان. ابو حمزه. عثمان بن موهب نه روايت کوي، هغهٔ اووے، يو سړے (يزيد بن بشر) دَ بيت اللّٰه دَ حج په اراده راغے، څنے نور خلق ئے هلته ناست اوليدل، تپوس ئے اوکهٔ، دا څوک دي، جواب ورکړے شو. دا قريش دي، هغهٔ پښتنه اوکړه. دا ضعيف العمر څوک دے، ورته اووئيلے شو، دا ابن عمرؓ دے، نوهغه حضرت ابن عمرؓ ته قريب راغے، او وے وئيل، زهٔ تاسونه څهٔ تپوس کول غواړم، بيا هغه اووے، دَ دے مکان په حرمت م دے قسم وي، آيا عثمان بن عفان دَ اُحد په ورځ تښتيدلے وو. ابن عمرؓ ورته اووے، او، بيا هغهٔ اووے، آيا تاسوته معلومه ده، چه عثمان جنګ بدر نه غير حاضر وو، هغهٔ ورته اووے، او، بيا هغهٔ اووے، آيا تاسوته معلومه ده، چه عثمان دَ بيعت رضوان نه هم محروم وو. هغهٔ ورته اووے، او. هغه وخت سائل اللّٰه اکبر اووے. نو ابن عمرؓ

قَالَ ابْنُ عُمَرَ تَعَالَ لِأُخْبِرَكَ وَلِأُبَيِّنَ لَكَ عَمَّا سَأَلْتَنِي عَنْهُ أَمَّا فِرَارُهُ يَوْمَ أُحُدٍ فَأَشْهَدُ أَنَّ اللَّهَ عَفَا عَنْهُ وَ أَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَدْرٍ فَإِنَّهُ كَانَتْ تَحْتَهُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَتْ مَرِيضَةً فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لَكَ أَجْرَ رَجُلٍ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا وَ سَهْمَهُ وَ أَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَإِنَّهُ لَوْ كَانَ أَحَدٌ أَعَزَّ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ لَبَعَثَهُ مَكَانَهُ فَبَعَثَ عُثْمَانَ وَ كَانَ بَيْعَةُ الرِّضْوَانِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ عُثْمَانُ إِلَى مَكَّةَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ الْيُمْنَى هٰذِهِ يَدُ عُثْمَانَ فَضَرَبَ بِهَا عَلَى يَدِهِ فَقَالَ هٰذِهِ لِعُثْمَانَ اذْهَبْ بِهٰذَا الْآنَ مَعَكَ.

ورته اوفرمائيل' راځه چه زۀ درته ذ دې تپوسونو حقيقت اوښايم. زه ګواهي کوم چه ذ اُحد په ورځ ذ تښتيدو قصور خو الله تعالیٰ معاف کړلو[۱]' څنګه چه ذ ذکر شوي آيت نه ظاهره ده. او جنګ بدر کښې ذ غير حاضري وجه ئې دا وه' چه ذ حضور صلي الله عليه وسلّم لور بي بي رقيهؓ ناروغه وه' حضورؐ هغۀ ته اوفرمائيل تۀ ذ هغې علاج معالجه کوه. ليکن ثواب تاته هم دومره رسي' څومره چه غزا کښې شريکيدونکو ته رسي. او ذ مال غنيمت نه به هم حصه بياموې' او بيعت رضوان کښې ذ نۀ شريکيدو وجه دا وه' چه ذ هغۀ (عثمان) په مکه والو لونې اثر وو' حضورؐ هغه مکه والو ته ذ هغوي ذ پوهيولو د پاره اوليږلو' او بيا ذ هغۀ غير موجودګي کښې بيعت واقع شولو' حضورؐ خپل ښې لاس په خپل ګس لاس کيښودلو' اووې فرمائيل' دا ذ عثمان لاس دے' حضرت ابن عمرؓ اعرابي ته اووے. اے اعرابي (بانډيسيه) دا خبرې ياد ساته' او ذ حضرت عثمانؓ بن عفان په بزرګئ او شرافت کښې شک مۀ کوه.

۱. د غزوه اُحد په موقعه باندې په عامو مسلمانانو کښې د ناڅاپه او غير متوقع حملې په وجې سره ويره او دهشت خور شو. او ذ ير څو صحابو نه سوا ټول حضرات خوارۀ شوي وو. حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم په خپل ځائے باندې ولاړ وو' د ير دوۀ صحابۀ سره. د کومو ذکر چه په همدې احاديثو کښې پورته تير شو هغوئ د کفارو د ټولو حملو مقابله په ډيرۀ مړانې سره کوله' لږ ساعت پس حضورؐ اصحابو ته آواز اوکړلو. او بيا ټول اصحاب راجمع شول. الله تعالیٰ د صحابۀ دا غلطي معاف کړې وه او په قرآن مجيد کښې ئې د خپلې معافئ پخپله اعلان اوکړو. اکثر صحابهؓ خوارۀ شوي وو' او په هغوئ کښې عثمان رضي الله عنه هم وو' اګر چه مسلمانانو ته په دې غزا کښې ډير نقصان رسيدلې وو ليکن دا نتيجه ويلے کيدے چه مسلمانانو په غزوه اُحد کښې شکست خوړلے وو. ولې چه نه خو مسلمانانو وسله غورزولې وه او نۀ ذ هغوئ قائد يعني حضور صلي الله عليه وسلّم ذ جنګ ميدان پريښے وو. ذ شکست او فتحې مدار کمانډر سره د فوځ په ماتې باندې وي' په فوځ يعني اصحابو رضوان الله عليهم اجمعين کښې اګرچه لږ ساعت د پاره انتشار پيدا شوے وو ليکن بيا دا ټول حضرات زر تر زره ميدان ته راغلي وو. داسې هم نه وه

شوے چه صحابه ؓ ميدان پريښے وي بلكه د يو غير متوقع صورتحال په وجه ويره او په صفونو كښے انتشار پيدا شوے وو، ګويا دافراتفرئ يو صورت وو، خو چه كله د الله پيغمبر هغوئ ته آواز اوكړو نو هغوئ سمدستي په هوش كښے شول او بيا راغلل د حضورؐ څلور وارو طرفونو ته راجمع شول.

باب ۲۰: إِذْ تُصْعِدُوْنَ وَلَا تَلْوُوْنَ عَلٰى أَحَدٍ وَّالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ فِيْٓ أُخْرٰىكُمْ فَأَثَابَكُمْ غَمًّاۢ بِغَمٍّ لِّكَيْلَا تَحْزَنُوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَآ أَصَابَكُمْ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ○ تُصْعِدُوْنَ تَذْهَبُوْنَ أَصْعَدَ وَصَعِدَ فَوْقَ الْبَيْتِ.

باب ۲۰: آيت: إِذْ تُصْعِدُوْنَ وَلَا تَلْوُوْنَ عَلٰى أَحَدٍ: دَ صبر او استقلال په بيان كښ، لكه چه الله تعالٰي اوفرمائيل: چه كوم وخت تاسو تښتيدئے، او چاته مو كتل نه، او رسول الله تاسو دَ شا طرف نه بللئے، خو تاسو په ورستو نه كتل. آخر ما تاسوهم رنجيده كړئے، او دَ غم دَ پاسه غم درته اورسيد. او دے كښ دا حكمت هم وو، چه هر كله تاسو نه څه څيز لاړ شي يا مصيبت راشي، نو خفګان مه كوئے، بلكه دَ صبر نه كار آخلئے، او الله ستاسو دَ كارونو نه خبر دے. امام بخاريؒ وائي. دے آيت كښ دَ تصعدون معني تذهبون دي يعني تلل. دَ صعد فوق البيت: كور دَ پاسه اوختلو.

۱۱۱: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ إِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ بْنَ عَازِبٍ قَالَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الرَّجَّالَةِ يَوْمَ أُحُدٍ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ جُبَيْرٍ وَّ أَقْبَلُوْا مُنْهَزِمِيْنَ فَذَاكَ إِذْ يَدْعُوْهُمُ الرَّسُوْلُ فِيْٓ أُخْرٰىهُمْ.

۱۱۱: عمرو بن خالد. زهير. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت كوي، ما دَ هغۀ نه واوريدل، رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ اُحد په ورځ دَ پياده لښكر سردار حضرت عبدالله بن جبيرؓ مقرر كړلو، نو ټول لښكر مديني طرف ته په تيښته شو او حضور صلي الله عليه وسلّم هغوي پسے نعرے وهلے، نو دے سلسله كښ دا آيت نازل شولو: والرسول يدعوكم في اخراكم.

باب ۲۱: ثُمَّ أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً نُّعَاسًا يَّغْشٰى طَآئِفَةً مِّنْكُمْ وَطَآئِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنْفُسُهُمْ يَظُنُّوْنَ

باب ۲۱: ثُمَّ أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً نُّعَاسًا، الله پاک فرمائي، الله دَ غم نه پس بيا دَ آمن پر كالي راوسته، چه تاسو كښ په يو جماعت راغله، او بعضو سره هغه وخت هم دَ خپل خان فكر لريدلے وو، او هغوي دَ الله

بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ يَقُوْلُوْنَ هَلْ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَيْءٍ قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهُ لِلّٰهِ يُخْفُوْنَ فِيْ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ يَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا قُلْ لَوْ كُنْتُمْ فِيْ بُيُوْتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِيْنَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ وَ لِيَبْتَلِيَ اللّٰهُ مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ وَ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنْ اَبِيْ طَلْحَةَؓ قَالَ كُنْتُ فِيْمَنْ تَغَشَّاهُ النُّعَاسُ يَوْمَ اُحُدٍ حَتّٰى سَقَطَ سَيْفِيْ مِنْ يَدِيْ مِرَارًا يَسْقُطُ وَ اٰخُذُهٗ وَ يَسْقُطُ فَاٰخُذُهٗ.

تعالٰي متعلق د جاهلیت په شان ګمان کولو. او ونیل ئې، څه مونږ د پاره په دې کار کښې هغه بهتري کوم خائې ده، چه ذ هغې وعده شوې وه. اې محمد صلي الله علیه وسلّم ورته اووایه، هر کار ذ الله په اختیار کښې دې. دا منافقان زړهٔ کښې هغه څه پټوي، چه ظاهره وي ئې نه، او وائي، که فتح او نُصرت څمونږ وې، نو مونږ به ولې وژلې کیدُو. اې محمد صلي الله علیه وسلّم ورته اووایه که تاسو خپلو کورونو کښې وې، نو بیا هم ذ چا قسمت کښې چه وژل لیکلې شوې وو، هغوي به څه نه څه شکل کښې خپل قتل ګاه ته راتلې. دې جنګ کښې دا حکمت هم وو، چه اللّٰه تعالٰي ته ستاسو ذ زړونو آزمائیل او ستاسو ذ زړهٔ خیالات صاف کول منظور وو، او الله تعالٰي ذ زړونو خبرې ښې پیژني. خلیفه بن خیاط یزید بن زریع، سعید، قتاده، حضرت انسؓ، حضرت ابو طلحهؓ نه روایت کوي، هغهٔ اووې، زهٔ هم دغې خلقو کښې شامل ووم چه په هغوي د اُحد په ورځ پر کالي راغلې وه. په ما داسې پر کالي راغله، چه څو ځله څما د لاس نه توره اُوغرځیدله، هغه به غرځیدله او ما به اوچتوله.

**بَابٌ ۲۲ : لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ اَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ** قَالَ حُمَيْدٌ وَّ ثَابِتٌ عَنْ اَنَسٍؓ شُجَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُدٍ فَقَالَ كَيْفَ يُفْلِحُ قَوْمٌ شَجُّوْا نَبِيَّهُمْ

**باب ۲۲ :** آیت: لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ : اللّٰه تعالٰي فرمائیلې دي، اې محمد (صلعم) ستا اختیار کښې هیڅ نشته، ذ اللّٰه تعالٰي اختیار دې، که غواړي، نو هغوي به معاف کړي، او که غواړي نو هغوي به عذاب کښې آخته کړي، ځکه چه هغوي ظالمان دي. حمید او ثابت بناني، حضرت انس نه روایت کوي، ذ اُحد په ورځ ذ حضور صلي الله علیه وسلّم سر مبارک زخمي شولو. دغه وخت حضورؐ ارشاد اوفرمائیلو، هغه قوم به څه ترقي

فَنَزَلَتْ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ.

او فلاح بیاموميٌ چه هغوي خپل پیغمبر زخمي کړي؛ نو هغه وخت دغه آیت نازل شولو.

۴۱۱۲: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ السُّلَمِيُّ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ مِنَ الرَّكْعَةِ الْاٰخِرَةِ مِنَ الْفَجْرِ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَّ فُلَانًا وَّ فُلَانًا بَعْدَ مَا يَقُوْلُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَ لَكَ الْحَمْدُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ اِلٰى قَوْلِهٖ فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ وَ عَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ اَبِيْ سُفْيَانَ سَمِعْتُ سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْا عَلٰى صَفْوَانَ بْنِ اُمَيَّةَ وَ سُهَيْلِ بْنِ عَمْرٍو وَّ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ فَنَزَلَتْ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ اِلٰى قَوْلِهٖ فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ.

۴۱۱۲: یحیي بن عبدالله سلمي. عبدالله بن مبارک. معمر بن راشد. زهري. حضرت سالم بن عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، خپل پلار حضرت عبدالله بن عمرؓ بیان کولو ما د حضور صلي الله علیه وسلّم نه واوریدل، چه کوم وخت به حضورؐ د سحر مونځ کښ د آخري رکعت د رکوع نه سر مبارک اوچتولو، نو دا دعا به ئې کوله، اے الله په فلاني فلاني او فلاني باندې لعنت اولیږې. دا دُعا به حضور د سمع الله لمن حمده ربّنا لک الحمد، وئیلو نه پس کوله. دغه وخت دا آیت: لیس لک من الامر شيءٌ: آخر پورې نازل شولو. او عبدالله بن مبارک دغې اسناد سره د حنظله بن ابي سفیان نه روایت کړے دے. هغه اورے ما د سالم بن عبدالله نه واوریدل، هغه وئیلے، حضورؐ د اُحد په ورځ زخمي شولو، د صفوان بن امیه سهیل بن عمرو او حارث بن هشام بن مغیره د پاره ئې بددعا کوله، نو دغه وخت دا آیت: لَیْسَ لَکَ من الامر: آخر پورې نازل شولو.

## بَاب ۲۳: ذِكْرِ اُمِّ سَلِيْطٍ.

## باب ۲۳: د بي بي اُم سلیط ذکر.

۴۱۱۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَ قَالَ ثَعْلَبَةُ بْنُ اَبِيْ مَالِكٍ اِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِؓ قَسَمَ مُرُوْطًا بَيْنَ نِسَاءٍ مِنْ نِسَاءِ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ فَبَقِيَ

۴۱۱۳: یحیي بن بکیر. لیث بن سعد. یونس. ابن شهاب. ثعلبه بن ابي مالک نه روایت کوي، هغه فرمائي، حضرت عمرؓ د مدینې ښځو ته خادرونه په طور د تقسیم عنایت کړل، نو د یو ښځ قسم خادر بچ پاتې شو، بعضے خلقو، چه هغه سره

مِنْهَا مِرْطٌ جَيِّدٌ فَقَالَ لَهُ بَعْضُ مَنْ عِنْدَهُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَعْطِ هٰذَا بِنْتَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِيْ عِنْدَكَ يُرِيْدُوْنَ اُمَّ كُلْثُوْمٍ بِنْتَ عَلِيٍّ فَقَالَ عُمَرُ اُمُّ سَلِيْطٍ اَحَقُّ بِهٖ وَ اُمُّ سَلِيْطٍ مِّنْ نِّسَآءِ الْاَنْصَارِ مِمَّنْ بَايَعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُمَرُ فَاِنَّهَا كَانَتْ تَزْفِرُ لَنَا الْقِرَبَ يَوْمَ اُحُدٍ.

ناسـت وو' عـرض اوكـه' اے اميـر الـمؤمـنيـن دا خـادر ذ حضـور صـلي اللّٰـه عليـه وسلّـم نوسـئـے تـه وركـړے' چـه ستـاسـو بـي بي ده' يعنـي اُم كلثوم بنت علـيّ تـه. حضـرت عمـرؓ ورتـه اوفرمـائيل' نـه اُم سـليـط ذ دے زيـاتـه حـقـداره ده. اُم سـليـط ذ مـديـنـے انـصـاريـه وه' او ذ حضـور صـلي اللّٰـه عـليـه وسلّـم نـه ئـے بيعت كړے وو' او هغے بـه ذ اُحـد پـه ورځ ذ اُوبـو مشـك ډكـولـو' او مـونږ له به ئے راوړلو.

## بَاب ۲۴: قَتْلِ حَمْزَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

## بـاب ۲۴: ذ حـضـرت اميـر حـمـزه شهادت.

۴۱۱۴: حَدَّثَنِيْ اَبُوْ جَعْفَرٍ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا حُجَيْنُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْفَضْلِ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ اُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ فَلَمَّا قَدِمْنَا حِمْصَ قَالَ لِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ هَلْ لَكَ فِيْ وَحْشِيٍّ نَسْاَلُهُ عَنْ قَتْلِ حَمْزَةَ قُلْتُ نَعَمْ وَ كَانَ وَحْشِيٌّ يَسْكُنُ حِمْصَ فَسَاَلْنَا عَنْهُ فَقِيْلَ لَنَا هُوَ ذَاكَ فِيْ ظِلِّ قَصْرِهٖ كَاَنَّهٗ حَمِيْتٌ قَالَ فَجِئْنَا حَتّٰى وَقَفْنَا عَلَيْهِ بِيَسِيْرٍ فَسَلَّمْنَا فَرَدَّ السَّلَامَ قَالَ وَ عُبَيْدُ اللّٰهِ مُعْتَجِرٌ

۴۱۱۴: ابـو جعـفـر محمد بن عبداللّٰه بن مبارك. حجيـن بـن مثـنٰي. عبـدالـعزيز بن عبداللّٰه بن ابي سلمه. عبـداللّٰـه بن فضيل. سليمان بن يسار. جعفر بن عمرو بن اميـه ضـمـري نـه روايت كوي' هغهٔ اووے' زهٔ عبيداللّٰه بن عـدي بـن خيـار سـره سـفر ذ پاره اووتلم. كوم وخت چه مـونږ مـقـام حـمـص تـه اورسيدو. نو عبيداللّٰـه بن عدي اووے. خـه چـه ورشـو' ذ حبشـي بـن حرب نه ذ حضرت حـمـزه د قتـل ذ حـال تپـوس او كړو. مـا اووے' خـه چـه ورشـو. وحشـي حمص كښ اوسيدلو. مونږ ذ خلقو نه پته اولـږولـه' نـو راتـه اوونـيـلے شو' چه ګوره هغه دے ذ خپل مـكـان ذ سوري لاندے ذ مشـك په شان پرسيدلے ناست دے. جـعـفـر وائي' مونږ وحشي ته نزدے ورغلو' او سلام مـو اوكـهٔ' هـغـهٔ ذ سـلام جواب راكه' دغه وخت عبيداللّٰه خپـل پـټـكـے پـه سـر داسـے راتـاؤ كړے وو' چـه صرف سترګے ئے په نظر راتلے. وحشي ته د دے نه زيات هيڅ به

بِعِمَامَتِهِ مَا يَرٰى وَحْشِيٌّ اِلَّا عَيْنَيْهِ وَ
رِجْلَيْهِ فَقَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ يَا وَحْشِيُّ
اَتَعْرِفُنِيْ قَالَ فَنَظَرَ اِلَيْهِ ثُمَّ قَالَ لَا
وَاللّٰهِ اِلَّا اَنِّيْ اَعْلَمُ اَنَّ عَدِيَّ بْنِ
الْخِيَارِ تَزَوَّجَ امْرَاَةً يُقَالُ لَهَا اُمُّ قِتَالٍ
بِنْتُ اَبِي الْعِيْصِ فَوَلَدَتْ لَهُ غُلَامًا
بِمَكَّةَ فَكُنْتُ اَسْتَرْضِعُ لَهُ فَحَمَلْتُ
ذٰلِكَ الْغُلَامَ مَعَ اُمِّهِ فَنَاوَلْتُهَا اِيَّاهُ
فَكَاَنِّيْ نَظَرْتُ اِلٰى قَدَمَيْكَ قَالَ
فَكَشَفَ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ وَّجْهِهٖ ثُمَّ قَالَ
اَلَا تُخْبِرُنَا بِقَتْلِ حَمْزَةَ قَالَ نَعَمْ اِنَّ
حَمْزَةَ قَتَلَ طُعَيْمَةَ بْنَ عَدِيِّ بْنِ
الْخِيَارِ بِبَدْرٍ فَقَالَ لِيْ مَوْلَايَ جُبَيْرُ
بْنُ مُطْعِمٍ اِنْ قَتَلْتَ حَمْزَةَ بِعَمِّيْ
فَاَنْتَ حُرٌّ قَالَ فَلَمَّا اَنْ خَرَجَ النَّاسُ
عَامَ عَيْنَيْنِ وَ عَيْنَيْنِ جَبَلٌ بِحِيَالِ
اُحُدٍ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَهٗ وَادٍ خَرَجْتُ مَعَ
النَّاسِ اِلَى الْقِتَالِ فَلَمَّا اصْطَفُّوْا
لِلْقِتَالِ خَرَجَ سِبَاعٌ فَقَالَ هَلْ مِنْ
مُبَارِزٍ قَالَ فَخَرَجَ اِلَيْهِ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ
الْمُطَّلِبِ فَقَالَ يَا سِبَاعُ يَا ابْنَ اُمِّ
اَنْمَارٍ مُقَطِّعَةِ الْبُظُوْرِ اَتُحَادُّ اللّٰهَ وَ
رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ
ثُمَّ شَدَّ عَلَيْهِ فَكَانَ كَاَمْسِ الذَّاهِبِ
قَالَ وَ كَمَنْتُ لِحَمْزَةَ تَحْتَ صَخْرَةٍ
فَلَمَّا دَنَا مِنِّيْ رَمَيْتُهٗ بِحَرْبَتِيْ فَاَضَعُهَا

نظر نه راتلل، چه هغهٔ ذ هغهٔ ستر ګې او پښې ليدلې. آخر
عبيدالله تپوس اوکهٔ. وحشي ما پيژنې. وحشي هغهٔ ته
اوکتل، او، وې ونيل، قسم په خدائې ماته دومره معلومه
ده، چه عدي بن خيار يوې ښځې اُم القتال بنت ابي العيص
سره واده کړې وو. ذ اُم قتال چه مکه کښې يو هلک پيدا
شو، نو ما ذ هغې بچي ذ پاره پئې ورکونکې ښځه (دني)
کتله، چه ناساپه هغه بچې مِ ذ هغې مورله بوتلو، او هغه
بچې مِ هغې له ورکهٔ. ما ذ هغې دواړه پښې کتلې وې،
ګويا چه اوس هم زهٔ ذ هغې پښې ګورم. جعفر وائي چه
عبدالله ذ مخ نه پرده لرې کړه. او وحشي ته ئې اووې،
چه لږ ذ امير حمزه ذ قتل حال راته بيان کړه. وحشي
ورته اووې، خبره داده چه ذ بدر په ورځ امير حمزهٔ
طعيمه بن عدي بن خيار وژلې وو. جبير بن مطعم ځما
مالک وو، ماته ئې اووې که ته حمزه ځما ذ ترهٔ طعيمه په
بدل کښې اووژنې، نو تهٔ آزد، ئې، وحشي بيان اوکهٔ، چه
کوم وخت خلق ذ عينين ذ جنګ په کال اووتل، چه اُحد
ته نزدې ذ يو غر نوم دې ذ اُحد او ذ هغې مينځ کښې يوه
ناله ده دغه وخت زهٔ هم جنګيانو کښې اووتلم، ذ جنګ ذ
پاره چه صفونه درست شو، نو سباع بن عبدالعزيٰ مخې ته
راووتلو، او وې ونيل، آيا څوک جنګ کونکې شته، نو
حمزه بن عبدالمطلب، ذ هغې مقابلې له راووتلو، او
وئيلې. اې سباع ذ ام انماره خويه، چه ښځې به ئې
سنتولې، آيا تهٔ ذ الله او ذ هغه ذ رسول مخالفت کوې،
بيا حضرت حمزهٔ اولګيد، او سباع ئې د تيرې شوې
ورځې په شان جوړ کړلو (يعني وې وژلو) وحشي اووې،
بيا زهٔ ذ حمزه ذ قتل په فکر کښې ذ يو کاڼړي (ګټ) په

فِيْ ثُنَّتِهٖ حَتّٰى خَرَجَتْ مِنْ بَيْنِ
وَرِكَيْهِ قَالَ فَكَانَ ذَاكَ الْعَهْدُ بِهٖ فَلَمَّا
رَجَعَ النَّاسُ رَجَعْتُ مَعَهُمْ فَاَقَمْتُ
بِمَكَّةَ حَتّٰى فَشَا فِيْهَا الْاِسْلَامُ ثُمَّ
خَرَجْتُ اِلَى الطَّآئِفِ فَاَرْسَلُوْا اِلٰى
رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
رُسُلًا فَقِيْلَ لِيْ اِنَّهٗ لَا يَهِيْجُ الرُّسُلَ
قَالَ فَخَرَجْتُ مَعَهُمْ حَتّٰى قَدِمْتُ
عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَاٰنِيْ قَالَ اَنْتَ وَحْشِيٌّ
قُلْتُ نَعَمْ قَالَ اَنْتَ قَتَلْتَ حَمْزَةَ قُلْتُ
قَدْ كَانَ مِنَ الْاَمْرِ مَا بَلَغَكَ قَالَ فَهَلْ
تَسْتَطِيْعُ اَنْ تُغَيِّبَ وَجْهَكَ عَنِّيْ قَالَ
فَخَرَجْتُ فَلَمَّا قُبِضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ
مُسَيْلِمَةُ الْكَذَّابُ قُلْتُ لَاَخْرُجَنَّ اِلٰى
مُسَيْلِمَةَ لَعَلِّيْ اَقْتُلُهٗ فَاُكَافِئَ بِهٖ
حَمْزَةَ قَالَ فَخَرَجْتُ مَعَ النَّاسِ فَكَانَ
مِنْ اَمْرِهٖ مَا كَانَ قَالَ فَاِذَا رَجُلٌ قَآئِمٌ
فِيْ ثُلْمَةِ جِدَارٍ كَاَنَّهٗ جَمَلٌ اَوْرَقُ ثَآئِرُ
الرَّاْسِ قَالَ فَرَمَيْتُهٗ بِحَرْبَتِيْ فَاَضَعُهَا
بَيْنَ ثَدْيَيْهِ حَتّٰى خَرَجَتْ مِنْ بَيْنِ
كَتِفَيْهِ قَالَ وَوَثَبَ اِلَيْهِ رَجُلٌ مِنَ
الْاَنْصَارِ فَضَرَبَهٗ بِالسَّيْفِ عَلٰى هَامَتِهٖ
قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْفَضْلِ فَاَخْبَرَنِيْ
سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ اَنَّهٗ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ

پناه کښې کيناستم، چه حمزه ماته نزدې راغې، نو ما هغه
په خپله نيزه اوويشتلو. او آخر خما نيزه ذ هغه زير ناف
داسې سخته اولګيده، چه ذ دواړو کوناټو نه اووتله.
وحشي اووې. دا ذ هغوي آخري وخت وو، چه ټول اهل
قريش مکې ته واپس راغلل نو زه هم ورسره راغلم. بيا ذ
مکې ذ فتح نه پس چه اسلام خور شولو، نو زهٔ لاړم او
طائف کښې مقيم شوم. دې نه پس طائف والو سره ذ
رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم په خدمت کښې حاضر
شوم. حضورؐ چه زهٔ اوليدم، نو وې فرمائيل آيا تهٔ هغهٔ
وحشي ئې، ما عرض اوکهٔ، جي او، حضورؐ تپوس اوکهٔ، آيا
حمزهؓ تا شهيد کړې وو، ما اووې، جي او، تاسو ته خو
ټول کيفيت معلوم دې. حضورؐ اوفرمائيل، تهٔ خپل مخ
ماته پټولې شې؟. دې خبرې آوريدو سره زهٔ بهر
راووتلم. بيا ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ وفات نه
پس چه مسيلمه ذ نبوت دعويٰ اوکړله، نو ما سوچ اوکهٔ،
چه مسلمانانو سره به ذ مسيلمه ذ وژلو ذ پاره لاړ شم،
شايد د هغهٔ وژل د حمزهؓ ذ قتل کفاره اوګرځي. نو زهٔ
مسلمانانو سره ذ مسيلمه د مقابلې ذ پاره لاړم. ذ مسيلمه
خلقو چه څهٔ اوکړل، ما هغه ليدل. دې نه پس زهٔ څهٔ
ګورم، چه مسيلمه ذ يو ديوال په پناه کښې ولاړ دې، سر
ئې پريشانه او ذ اوښ شان رنګ ئې دې، ما هغه حربه چه
ذ امير حمزه ذ پاره م استعمال کړې وه، راوښکله، او هغه
م پرې اوويشتلو، چه ذ هغهٔ ذ دواړو تيونو (چهاتيوں) مينځ
کښې ذ هغهٔ ذ دواړو اوږو نه اووتله. دې کښې يو انصاري
ذ هغهٔ طرف ته ورټوپ کړې، او د هغهٔ په سر ئې ذ تورې
يو ګوزار هم اوکهٔ. عبدالله بن عمرؓ اووې، کوم وخت چه

بْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ فَقَالَتْ جَارِيَةٌ عَلٰى ظَهْرِ بَيْتٍ وَّ اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ قَتَلَهُ الْعَبْدُ الْاَسْوَدُ.

مسيلمه اُووژلے شو' نو يوه وړه جينۍ ذ مكان چهت نه اُوختله او وئيل' هائے امير المؤمنين (مسيلمه) يو تور غلام قتل كړلو.

۱. د ښځو سنتول خمونږ د ملک خلقو د پاره عجيبه شان خبره ده ليكن په عربو كښے به د سړو پشان د ښځو خته هم كيدله' او څرنګ چه د سړو ختنه به سړو كوله' د ښځو ختنه به ښځو كوله. دا طريقه په جاهليت كښے هم رائجه وه او اسلام دا باقي اولرله ولے چه د ابراهيم عليه السلام كوم بعضے سنتونه په عربو كښے باقي پاتے وو په هغے كښے يو دا هم وو. د عربو ملكونو كښے ذ جينكو سُنتولو اوس هم رواج شته دے ليكن مونږه هندوستاني (او پاكستاني) مسلمانان يُو او دے سره څه واقفيت هم نه لرُو. څرنګ چه د سړو ختنه سُنت ده' د ښځو ختنه هم سنت ده (ليكن غير مؤكد. كفاية المفتي ج۲ ص۲۹۵. عارف) چونكه ذ سباع بن عبدالعزي مور به جينكۍ سُنتولے په دے وجه حمزه رضي الله عنه هغه له د مور په دے كسب باندے پيغور وركړو.

۲. د اسلام راؤړلو نه پس د هغهٔ مخكني ګناهونه معاف كړے شو' ليكن هغهٔ د حضور صلي الله عليه وسلّم ترهٔ حضرت حمزه رضي الله عنه وژلے وو او په هغے كښے ئے هم دومره بے دردئ ښكاره كړے وه چه كله هغه شهيد شو نو د هغوئ سينه ئے سيرے كړه او زړه ئے ترے راؤويستو او ځوسه ئے ورله خرابه كړے وه. په دے وجه دا قدرتي (او فطري) خبره وه چه د هغهٔ په ليدلو سره به حضور صلي الله عليه وسلّم ته ذ حمزه رضي الله عنه غم كښے اچونكے شهادت مخے ته راتلو. او بيا دا هم سوچ او كړئ چه پاک حضرت روحي و اَبي و اُمّي فداه به د خپل تره په دومره بے دردئ سره ذ قتلونكي صحبت څرنګ برداشت كولے شو.

## بَاب ۲۵: مَا اَصَابَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْجِرَاحِ يَوْمَ اُحُدٍ.

باب ۲۵: ذ اُحد په ورځ د رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ زخمي كيدو بيان.

۱۱۵ ۱: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَدَّ غَضَبُ اللّٰهِ عَلٰى قَوْمٍ فَعَلُوْا بِنَبِيِّهٖ يُشِيْرُ اِلٰى رَبَاعِيَتِهٖ اشْتَدَّ غَضَبُ اللّٰهِ عَلٰى رَجُلٍ يَّقْتُلُهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَبِيْلِ

۱۱۵ ۱: اسحٰق بن نصر. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي' هغهٔ اووے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي' په هغه قوم ذ الله سخت غضب دے چه هغوي خپل پيغمبر سره داسے اوكړل (خپلو غاښونو طرف ته ئے اشاره اوكړله) او الله په هغه سړي سخت غصه شولو' چه هغهٔ ذ الله پيغمبر ذ الله په لار كښں اووژلو (لكه ابي بن خلف چه حضور صلي الله عليه وسلّم به خپله ذ اُحد په ميدان كښں وژلے

اللّٰهِ.

۱۱۶ : حَدَّثَنِيْ مَخْلَدُ بْنُ مَالِكٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ الْأُمَوِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اشْتَدَّ غَضَبُ اللّٰهِ عَلٰى مَنْ قَتَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اشْتَدَّ غَضَبُ اللّٰهِ عَلٰى قَوْمٍ دَمَّوْا وَجْهَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ اَنَّهُ سَمِعَ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ وَهُوَ يُسْئَلُ عَنْ جُرْحِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَمَا وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَاَعْرِفُ مَنْ كَانَ يَغْسِلُ جُرْحَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ كَانَ يَسْكُبُ الْمَآءَ وَ بِمَا دُوْوِيَ قَالَ كَانَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ بِنْتُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَغْسِلُهُ وَ عَلِيٌّ يَسْكُبُ الْمَآءَ بِالْمِجَنِّ فَلَمَّا رَاَتْ فَاطِمَةُ اَنَّ الْمَآءَ لَا يَزِيْدُ الدَّمَ اِلَّا كَثْرَةً اَخَذَتْ قِطْعَةً مِّنْ حَصِيْرٍ فَاَحْرَقَتْهَا وَ اَلْصَقَتْهَا فَاسْتَمْسَكَ الدَّمُ وَ كُسِرَتْ رَبَاعِيَتُهُ يَوْمَئِذٍ وَّ جُرِحَ وَجْهُهُ وَ كُسِرَتِ

وو).

۱۱۶ : مخلد بن مالک. يحيي بن سعيد اموي. ابن جريج. عمرو بن دينار. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، په هغه قوم ذ اللّٰه تعالي سخته غصه ده، چه هغه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ اللّٰه په لار کښې اووژني، او ذ اللّٰه تعالٰي سخت غضب په هغه قوم دے، چه ذ خپل پيغمبر صلي اللّٰه عليه وسلّم مخ مبارک په وينه آلوده کړي (څنګه چه قريشو اوکړل).

۱۱۷ : قتيبه بن سعيد. يعقوب بن عبدالرحمٰن. ابو حازم. سلمه بن دينار. سهل بن سعد اوويے، قسم په خدائے، ماته معلومه ده، چه ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم زخم چا وينزلو، او چا اُوبه اچولے، او کوم دارو پرے اولږولے شو، اوشوه داسے، چه بي بي فاطمےؓ لور ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ حضورؐ زخم وينزلو. او حضرت عليؓ ډهال کښې اُوبه راوړلے. بي بي فاطمےؓ چه اوليدل، چه وينه په هيڅ طور سره نهٔ بنديږي، نو هغے ذ پوزکي يوه ټکره اوسوزوله او د هغے په ايره نے زخم ډک کړلو، نو وينه بنده شوه. دغه ورځ وه، چه ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم غاښ مبارک شهيد شولو، او مخ مبارک نے زخمي شولو، او "خود" نے کاني ويشتو سره په سر مات کړے

الْبَيْضَةُ عَلٰى رَأْسِهِ. شو.

ف: معلومه شوه، چه ذ زخم ذ بندولو د پاره چيرږه يا بوريا وغيره سيزل او د هغې په ايره نے بندول هم پر سمدستي علاج دے، علاوه ذ نورو علاجونونه.

۱۱۸: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اشْتَدَّ غَضَبُ اللّٰهِ عَلٰى مَنْ قَتَلَهُ نَبِيٌّ وَاشْتَدَّ غَضَبُ اللّٰهِ عَلٰى مَنْ دَمّٰى وَجْهَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۱۸: عمرو بن علي. ابو عاصم. ابن جريج. عمرو بن دينار. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، هغه اوفرمائيل: پر هغه سړي ذ اللّٰه تعالٰي سخت غضب دے، چه خپله پيغمبر هغه قتل كړي، او پر هغه چا ذ اللّٰه سخت غضب دے، چه هغه ذ پيغمبر مخ مبارك خون آلود كړلو.

باب ۲۶: الَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ.

باب ۲۶: آيت: اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ هغې خلقو بيان، چه هغوي ذ اللّٰه تعالٰي او ذ هغهٔ ذ رسول حكم اومنلو.

۱۱۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ مِنْ بَعْدِ مَا أَصَابَهُمُ الْقَرْحُ لِلَّذِيْنَ أَحْسَنُوْا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا أَجْرٌ عَظِيْمٌ قَالَتْ لِعُرْوَةَ يَا ابْنَ أُخْتِيْ كَانَ أَبُوْكَ مِنْهُمُ الزُّبَيْرُ وَأَبُوْبَكْرٍ لَمَّا أَصَابَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَصَابَ يَوْمَ أُحُدٍ وَانْصَرَفَ عَنْهُ الْمُشْرِكُوْنَ خَافَ أَنْ يَرْجِعُوْا قَالَ مَنْ يَنْهَبُ فِيْ إِثْرِهِمْ فَانْتَدَبَ مِنْهُمْ

۱۱۹: محمد بن سلام. ابو معاويه. هشام. عروه. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، هغې اوفرمائيل چه: اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلُ الخ يعنې كوم خلقو چه ذ زخمي كيدو نه پس ذ اللّٰه تعالٰي او رسول حكم اومنلو. هغوي كښې چه خوك نيك پرهيزګار وي، هغوي ته به ډير ثواب رسي. اے خورييه، ستا پلار زبيرؓ او نيكه ابوبكر صديقؓ ذ هغې خلقونه وو. اوشوه داسے، چه ذ أحد په ورځ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته كومه صدمه اورسيده. او كافر مكې ته واپس شو، نو حضورؐ ته دا آنديښنه پيدا شوه، چه كافر چرته واپس راونه ګرځي، نو ذ كافرو تعاقب به څوك كوي. دے حكم آوريدو سره اويا حضراتو ذ دې

سَبْعُوْنَ رَجُلًا قَالَ كَانَ فِيْهِمْ اَبُوْ بَكْرٍ وَّالزُّبَيْرُ.

حكم تعميل منظور كړلو' هغے كښې زبيرؓ او ابوبكرؓ هم شامل وو.

۱. دا دے د پاره چه مشركان دا اونه ګنړي چه د اُحد نقصان مسلمانان بے تابه كړي دي كه چرے په دوئ باندے دوباره حمله اوكړے شي نو حمله به كامیابه شي.

**بـــاب ۲۷ : مَــنْ قُتِــلَ مِــنَ الْمُسْلِمِيْنَ يَوْمَ اُحُدٍ مِّنْهُمْ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَالْيَمَانُ وَ اَنَسُ بْنُ النَّضْرِ وَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ.**

**باب ۲۷ : ذ اُحد ذ شهيدانو بيان لكه حضرت حمزه بن عبدالمطلب' حضرت يمان' حضرت نضر بن انس او حضرت مصعب بن عمير رضي اللّٰه عنهم.**

۱۲۰ : حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ مَا نَعْلَمُ حَيًّا مِّنْ اَحْيَآءِ الْعَرَبِ اَكْثَرَ شَهِيْدًا اَعَزَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مِنَ الْاَنْصَارِ قَالَ قَتَادَةُ وَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّهُ قُتِلَ مِنْهُمْ يَوْمَ اُحُدٍ سَبْعُوْنَ وَ يَوْمَ بِئْرِ مَعُوْنَةَ سَبْعُوْنَ قَالَ وَ كَانَ بِئْرُ مَعُوْنَةَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ يَوْمُ الْيَمَامَةِ عَلٰى عَهْدِ اَبِيْ بَكْرٍ يَّوْمَ مُسَيْلِمَةَ الْكَذَّابِ.

۱۲۰ : عمرو بن علي فلاس. معاذ بن هشام ذ خپل پلار نه' هغه ذ حضرت قتاده نه روايت كوي' هغهٔ اوفرمائيل' مونږ ته نهٔ ده معلومه' چه ذ عربو ټولو قبائلو كښې به د انصارو نه زيات عزت واله ذ قيامت په ورځ څوک وي' قتاده وائي' ماته انس بن مالک اووے ذ اُحد په ورځ اويا انصار شهيدان شو' او دغه هومره ذ بير معونه په ورځ' او دغه هومره ذ جنګ يمامه په ورځ. او د بير معونه واقعه ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په ژوند مبارک كښې شوے وه' او ذ يمامه واقعه خلافت صديقي كښې شوے وه' په كومه ورځ چه مسيلمه كذاب سره مقابله اوشوه.

۱۲۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلٰى اُحُدٍ فِيْ ثَوْبٍ وَّاحِدٍ ثُمَّ يَقُوْلُ اَيُّهُمْ اَكْثَرُ اَخْذًا

۱۲۱ : قتيبه بن سعد. ابن شهاب. عبدالرحمٰن بن كعب بن مالک نه روايت كوي' حضرت جابر بن عبداللّٰه هغهٔ ته اووے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به دوه دوه شهيدان ذ اُحد په ورځ په يوه كپړه كښې دفن كول' او تپوس به ئے كولو' چه دے دواړو كښې قرآن شريف چاته زيات ياد وو. چه حضورؐ ته به اشارے سره اوښودلے شو' نو هغه به ئے قبلے

لِلْقُرْآنِ فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى أَحَدٍ قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ وَقَالَ أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هٰؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَائِهِمْ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ وَلَمْ يُغَسَّلُوا وَقَالَ أَبُو الْوَلِيدِ عَنْ شُعْبَةَ عَنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا قَالَ لَمَّا قُتِلَ أَبِي جَعَلْتُ أَبْكِي وَأَكْشِفُ الثَّوْبَ عَنْ وَجْهِهِ فَجَعَلَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَوْنِي وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَنْهَهُ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَبْكِيهِ أَوْ مَا تَبْكِيهِ مَا زَالَتِ الْمَلٰئِكَةُ تُظِلُّهُ بِأَجْنِحَتِهَا حَتَّى رُفِعَ.

طرف ته مخکښې کولو. او فرمائیل به ئې: زهٔ به د قیامت په ورځ د دې خلقو ګواه یم. او حضورؐ اوفرمائیل: دوي دې دغسې خون آلوده، بلاغسل او مونځ دفن کړې شي. (مونځ دلته د جنازې مونځ مطلب دې) ابو عبدالله بخاري وائي: ابوالولید د شعبه نه، هغه د محمد بن منکدر نه، هغه د جابرؓ نه واوریدل: کوم وخت چه خما پلار عبدالله د اُحد په ورځ شهید شولو، نو ما د هغهٔ لاش ته ژړل او د مخ نه به م کپړه اخوا کوله، کتلو به م، او د حضورؐ اصحابو به زهٔ د ژړا نه منع کولم، خو حضورؐ منع نهٔ کړم. حضورؐ فاطمه بنت عمر (خما ترور، پهوپهی) ته اوفرمائیل: ته په عبدالله ژړا مهٔ کوه، په هغهٔ خو فرښتو د جنازې اوچتولو پورې سورې کړې دې.

۱۲۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى أُرَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَأَيْتُ فِي رُؤْيَايَ أَنِّي هَزَزْتُ سَيْفًا فَانْقَطَعَ صَدْرُهُ فَإِذَا هُوَ مَا أُصِيبَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ أُحُدٍ ثُمَّ هَزَزْتُهُ أُخْرَى فَعَادَ أَحْسَنَ مَا كَانَ فَإِذَا هُوَ مَا جَاءَ بِهِ اللّٰهُ مِنَ الْفَتْحِ وَاجْتِمَاعِ الْمُؤْمِنِينَ وَرَأَيْتُ فِيهَا بَقَرًا وَاللّٰهُ خَيْرٌ فَإِذَا هُمُ الْمُؤْمِنُونَ يَوْمَ أُحُدٍ.

۱۲۲: محمد بن علاء. ابو اسامه. یزید بن عبدالله بن ابي برده. ابي برده بن عامر. د خپل نیکهٔ (داد) نه او هغهٔ د خپل پلار ابو موسي اشعريؓ نه روایت کوي، حضورؐ اوفرمائیل ما خوب کښې اولیدل، چه ما یو خل توره اُوخوزوله، نو د هغې خوکه ماته شوه، د هغې تعبیر دا وو، چه مسلمانان د اُحد په ورځ شهیدان شول. بیا په دویم خل م اوخوزوله، نو ټیک شوله. د هغې تعبیر دا وو، چه الله پاک مسلمانانو ته آخر کښې فتح ورکړه، او هغوي کښې ئې اتحاد پیدا کړلو. او ما خوب کښې غواګانې اولیدې، چه ذبح کیدلې. او د الله ټول کارونه بهتر دي د هغې تعبیر هم دا وو، چه مسلمانان د اُحد په ورځ شهیدان شول.

۱۲۳ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ خَبَّابٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ هَاجَرْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ نَبْتَغِيْ وَجْهَ اللّٰهِ فَوَجَبَ اَجْرُنَا عَلَى اللّٰهِ فَمِنَّا مَنْ مَّضٰى اَوْ ذَهَبَ لَمْ يَاْكُلْ مِنْ اَجْرِهٖ شَيْئًا كَانَ مِنْهُمْ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ اُحُدٍ فَلَمْ يَتْرُكْ اِلَّا نَمِرَةً كُنَّا اِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَاْسَهٗ خَرَجَتْ رِجْلَاهُ وَ اِذَا غُطِّيَ بِهَا رِجْلَيْهِ خَرَجَ رَاْسُهٗ فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَطُّوْا بِهَا رَاْسَهٗ وَاجْعَلُوْا عَلٰى رِجْلَيْهِ الْاِذْخِرَ وَ مِنَّا مَنْ اَيْنَعَتْ لَهٗ ثَمَرَتُهٗ فَهُوَ يَهْدِبُهَا.

۱۲۳ : احمد بن یونس. زهیر. اعمش. شقیق. حضرت خبابؓ نه روایت کوي، هغهٔ اووې، مونږ رسول الله صلي الله علیه وسلّم سره دَ الله دَ پاره هجرت او کړ، نو اوس څمونږ اجر دَ الله په ذمه شو. څهٔ خلق خو څمونږ نه دُنیا نه لاړل، او دَ خپل محنت څهٔ بدله ئې (دُنیا کښې) بیانهٔ مُنده. دې خلقو کښې مصعب بن عمیرؓ هم وو، چه دَ اُحد په ورځ شهید شولو، او یو لکیردار څادر ئې پریښودلو. چه دَ هغهٔ سَر به ئې پټولو، نو پښې به ئې څرګندې پاتې کیدې. او چه پښې به ئې ورله پټولې، نو سر به ئې څرګند پاتې کیدلو. آخر رسول اکرم صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. دَ دهٔ سَر پټ کړئې، او په پښو ورله اذخر واښه واچوئې، یا دائې اوفرمائیل، چه په پښو ورله لږ اذخر واښه واچوئې. او څنې خلق مونږ کښې داسې شو، چه دَ هغوي میوه ښهٔ پخه شوه، او هغوي ئې آنړولو سره خوري.

بَابُ ۲۸ : اُحُدٌ يُحِبُّنَا قَالَهٗ عَبَّاسُ بْنُ سَهْلٍ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۲۸ : دَ حضور صلي الله علیه وسلّم ارشاد، چه اُحد مونږ سره محبت لري. عباد بن سهل، ابو حمیدؓ دا روایت بیان کړې دې.

۱۲۴ : حَدَّثَنِيْ نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ قُرَّةَ بْنِ خَالِدٍ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ اَنَسًا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هٰذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهٗ.

۱۲۴ : نصر بن علي. دَ هغهٔ پلار. قره بن خالد. حضرت قتادهؒ نه روایت کوي، هغهٔ اووې، ما دَ حضرت انسؓ نه واوریدل، رسول اکرم صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل دا اُحد دې چه مونږ سره محبت کوي، او مونږ دهٔ سره محبت کوو.

۱۲۵ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَمْرٍو مَّوْلَى الْمُطَّلِبِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ

۱۲۵ : عبدالله بن یوسف. امام مالک. عمرو بن ابي عمرو. انس بن مالک نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته دَ غزوه تبوک نه په واپسي چه

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَعَ لَهُ اُحُدٌ فَقَالَ هٰذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهُ اَللّٰهُمَّ اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ حَرَّمَ مَكَّةَ وَ اِنِّيْ حَرَّمْتُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا.

اُحد په نظر راغې، نو حضور ارشاد اوفرمائيلو، دا اُحد غر دې، چه مونږ سره مينه كوي او مونږ دې دوست گنړو يا الله، حضرت ابراهيمؑ مكه حرم جوړه كړله، او زۀ مدينه ذ دوو غريزو علاقو په مينځ كښې حرم جوړوم.

۱۲۶ ا : حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمًا فَصَلّٰى عَلٰى اَهْلِ اُحُدٍ صَلٰوتَهٗ عَلَى الْمَيِّتِ ثُمَّ انْصَرَفَ اِلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ اِنِّيْ فَرَطٌ لَّكُمْ وَ اَنَا شَهِيْدٌ عَلَيْكُمْ وَ اِنِّيْ لَاَنْظُرُ اِلٰى حَوْضِي الْاٰنَ وَ اِنِّيْ اُعْطِيْتُ مَفَاتِيْحَ خَزَآئِنِ الْاَرْضِ اَوْ مَفَاتِيْحَ الْاَرْضِ وَ اِنِّيْ وَاللّٰهِ مَا اَخَافُ عَلَيْكُمْ اَنْ تُشْرِكُوْا بَعْدِيْ وَلٰكِنِّيْ اَخَافُ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنَافَسُوْا فِيْهَا.

۱۲۶ ا : عمرو بن خالد. ليث بن سعد. يزيد بن ابي حبيب. ابوالخير مرثد. حضرت عقبه بن عامر نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو ورځ اُحد طرف ته لاړلو او ذ اُحد په شهيدانو ئې ذ جنازې په شان مونځ اوكۀ بيا منبر ته راغې او وې فرمائيل، زۀ ستاسو ذ كار درست كولو ذ پاره مخكښې تلونكې يم، زۀ به تاسو گواه يم. زۀ حوض وينم، ما ته ذ زمكې ذ خزانو قُنجيانې راكړې شوې يا دائې اوفرمائيل چه ذ زمكې قُنجيانې راكړې شوې. او خبره دا ده چه ماسره خُما نه پس به خدائې چه ستاسو ذ مشرك كيدلو ويره نشته. او دا ويره ضرور راسره شته، چه چرته تاسو دُنيا كښې اُونه اِنبلئې.

## بَابُ ۲۹ : غَزْوَةِ الرَّجِيْعِ وَ رِعْلٍ وَّ ذَكْوَانَ وَ بِئْرِ مَعُوْنَةَ وَ حَدِيْثِ عَضَلٍ وَّالْقَارَةِ وَ عَاصِمِ بْنِ ثَابِتٍ وَّ خُبَيْبٍ وَّ اَصْحَابِهٖ. قَالَ ابْنُ اِسْحٰقَ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عُمَرَ اَنَّهَا بَعْدَ اُحُدٍ.

باب ۲۹ : ذ غزوه رجيع[ا] بيان، او ذ رعل. ذكوان. بير معوني او ذ عضل او قاره بيان، او عاصم بن ثابتؓ او خبيب، او ذ هغوي ذ ملگرو قصه، ابن اسحاق وائي، مونږ ته عاصم بن عمرو اووې، غزوهٔ رجيع (صفر ســ۴ه كښې) ذ اُحد نه پس اوشوه.

ا. مصنف رحمة الله عليه غزوه رجيع او غزوه بير معونه دواړه په يو باب كښې ذكر كړې دي، خو دا دواړه په مختلفو وختونو كښې راپېښې شوې وې. د غزوه رجيع تعلق ذ لسو اصحابو هغه جماعت سره دې كوم كښې چه عاصم او خبيب رضي الله عنهما شريك وو. دا حادثه د غضل او قاره قبيلو د اسلام دشمنئ نتيجه وه. او ذ بير معونې تعلق هغه اوياؤ صحابؤ سره دې كوم چه د اسلام تعليم د پاره ليګلي شوي وو. او كومو لره چه د رعل او ذكوان قبيلو په دهوكې وركولو سره شهيد كړي وو.

۱۲۷ : حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي سُفْيَانَ الثَّقَفِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً عَيْنًا وَّ أَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَاصِمَ بْنَ ثَابِتٍ وَّهُوَ جَدُّ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَانْطَلَقُوْا حَتّٰى إِذَا كَانَ بَيْنَ عُسْفَانَ وَ مَكَّةَ ذُكِرُوْا لِحَيٍّ مِّنْ هُذَيْلٍ يُقَالُ لَهُمْ بَنُوْ لِحْيَانَ فَتَبِعُوْهُمْ بِقَرِيْبٍ مِّنْ مِّائَةِ رَامٍ فَاقْتَصُّوْا آثَارَهُمْ حَتّٰى أَتَوْا مَنْزِلًا نَّزَلُوْهُ فَوَجَدُوْا فِيْهِ نَوَى تَمْرٍ تَزَوَّدُوْهُ مِنَ الْمَدِيْنَةِ فَقَالُوْا هٰذَا تَمْرُ يَثْرِبَ فَتَبِعُوْا آثَارَهُمْ حَتّٰى لَحِقُوْهُمْ فَلَمَّا انْتَهٰى عَاصِمٌ وَّ أَصْحَابُهُ لَجَئُوْا إِلٰى فَدْفَدٍ وَّ جَاءَ الْقَوْمُ فَأَحَاطُوْا بِهِمْ فَقَالُوْا لَكُمُ الْعَهْدُ وَالْمِيْثَاقُ إِنْ نَّزَلْتُمْ إِلَيْنَا أَنْ لَّا نَقْتُلَ مِنْكُمْ رَجُلًا فَقَالَ عَاصِمٌ أَمَّا أَنَا فَلَا أَنْزِلُ فِيْ ذِمَّةِ كَافِرٍ اَللّٰهُمَّ أَخْبِرْ عَنَّا نَبِيَّكَ فَقَاتَلُوْهُمْ حَتّٰى قَتَلُوْا عَاصِمًا فِيْ سَبْعَةِ نَفَرٍ بِالنَّبْلِ وَ بَقِيَ خُبَيْبٌ وَّ زَيْدٌ وَّ رَجُلٌ

۱۲۷ : ابـراهيم بن موسى. هشام بن يوسف. معمر. زهري. عمرو بن ابي سفيان ثقفي. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، هغهٔ اووے، حضور اکرم صلي الله عليه وسلم يو جماعت ذ جاسوسئ په غرض ذ قريشو خبر راوړلو ذ پاره اوليږلو. او عاصم بن ثابت انصاريؓ ئے ذ هغوي افسر اوليږولو، چه ذ عاصم بن عمر بن خطاب نيکهٔ (نانا) وو. دا خلق چه روان شو، او ذ مکے عسفان مينځ ته اورسيدل، نو ذ هذيل قبيلے خاندان بني لحيان ته ذ دوي پته اولږيده، نو هغوي سل تير انداز ذ هغوي تعاقب کښ اوليږل. او دا خلق په تلاش هغے ځائے ته اورسيدل، کوم ځائے چه هغوي مقيم وو، او هلته ئے ذ مدينے ذ قجورو کټکي پراتهٔ اوليدل. بيا ذ هغے ځائے نه ذ هغوي ذ پښو په پَل (نښه) تلل، نو مسلمانان ئے رالاندے کړل، مسلمانان ځپلو ملګرو سره يوے غونډئ ته اوختل. کافرو کير کړل او ورته ئے اووے مونږ درسره وعده کوو، که تاسو ځپل ځان مونږ ته حواله کړئ، نو مونږ به درته هيڅ نقصان اونه رسوو. عاصم اووے. زهٔ ذ کافرو په وعده يقين نهٔ کوم. هر ګز لاندے نه راځم. اے الله ځپل پيغمبر صلي الله عليه وسلم خمونږ ذ حال نه خبر کړے. کافرو حمله اوکړه، غشي ورول ئے شروع کړل، تردے چه حضرت عاصم ځپلو اوو ملګرو سره شهيد شولو. صرف حضرت خبيب، زيد، او يو بل مسلمان بچ شولو. کافرو هغوي ته ذ امان يقين ورکړلو، نو هغوي ورته راکوز شولو. کافرو چه په هغوي قابو بيامند، نو ذ ليندے په ځے ئے ذ هغوي متے اوتړلے. هغے دريم مسلمان اووے، چه دا ذ دے کافرو

آخــرُ فَـأعْطَوْهُـمُ الْعَهْدَ وَالْمِيْثَاقَ
فَلَمَّا اَعْطَوْهُمُ الْعَهْدَ وَالْمِيْثَاقَ
نَزَلُوْا اِلَيْهِمْ فَلَمَّا اسْتَمْكَنُوْا
مِنْهُمْ حَلُّوْا اَوْتَارَ قِسِيِّهِمْ
فَرَبَطُوْهُمْ بِهَا فَقَالَ الرَّجُلُ
الثَّالِثُ الَّذِيْ مَعَهُمَا هٰذَا اَوَّلُ
الْغَدْرِ فَاَبٰى اَنْ يَّصْحَبَهُمْ فَجَرَّرُوْهُ
وَ عَالَجُوْهُ عَلٰى اَنْ يَّصْحَبَهُمْ
فَلَمْ يَفْعَلْ فَقَتَلُوْهُ وَانْطَلَقُوْا بِخُبَيْبٍ
وَّ زَيْدٍ حَتّٰى بَاعُوْهُمَا بِمَكَّةَ فَاشْتَرٰى
خُبَيْبًا بَنُو الْحَارِثِ بْنِ عَامِرِ بْنِ نَوْفَلٍ
وَّ كَانَ خُبَيْبٌ هُوَ قَتَلَ الْحَارِثَ يَوْمَ
بَدْرٍ فَمَكَثَ عِنْدَهُمْ اَسِيْرًا حَتّٰى اِذَا
اَجْمَعُوْا قَتْلَهٗ اسْتَعَارَ مُوْسٰى مِنْ
بَعْضِ بَنَاتِ الْحَارِثِ وَ لِيَسْتَحِدَّ بِهَا
فَاَعَارَتْهُ قَالَتْ فَغَفَلْتُ عَنْ صَبِيٍّ لِيْ
فَدَرَجَ اِلَيْهِ حَتّٰى اَتَاهُ فَوَضَعَهٗ عَلٰى
فَخِذِهٖ فَلَمَّا رَاَيْتُهٗ فَزِعْتُ فَزْعَةً عَرَفَ
ذَاكَ مِنِّيْ وَ فِيْ يَدِهِ الْمُوْسٰى فَقَالَ
اَتَخْشَيْنَ اَنْ اَقْتُلَهٗ مَا كُنْتُ لِاَفْعَلَ
ذٰلِكَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ وَ كَانَتْ تَقُوْلُ مَا
رَاَيْتُ اَسِيْرًا قَطُّ خَيْرًا مِّنْ خُبَيْبٍ لَقَدْ
رَاَيْتُهٗ يَاْكُلُ مِنْ قِطْفِ عِنَبٍ وَّمَا
بِمَكَّةَ يَوْمَئِذٍ ثَمَرَةٌ وَّ اِنَّهٗ لَمُوْثَقٌ فِي
الْحَدِيْدِ وَمَا كَانَ اِلَّا رِزْقٌ رَّزَقَهُ اللّٰهُ
فَخَرَجُوْا بِهٖ مِنَ الْحَرَمِ لِيَقْتُلُوْهُ فَقَالَ

ورمبـے عهـد شکني (وعده ماتول) دي، او هغه ذ تلو نه
انکار او کړلو. کافرو ئے ذ را کښلو کوشش اوکړ. او څه
وخت چه پریشانه شو. نو هغه ئے قتل کړ، او خبیب او
زید ئے خان سره بوتلل. او مکه کښې ئے خرڅ کړل.
خبیب ذ حارث بن عامر بن نوفل خامنو واخستو، ځکه
چه خبیب بدر کښې حارث وژلے وو. حضرت خبیب
یوے مودے پورے هغوي سره قید وو، تردے چه هغوي
هغه قتل کړ. یوه ورځ دے درمیان کښې خبیب ذ حارث ذ
لور نه ذ صفائي ذ پاره اُستره (پاکی) اوغوښتله. هغه
وائي، خما خیال څه بل طرف ته شو، دے کښې خما بچے
(ابو حسین) خبیبؓ له ورغے. خبیب هغه محبت سره په
خپل پتون کینولو، ما چه دا حالت اولید (ذ حارث لور
وائي) نو ویرے واخستم. خبیب خما په ویره پوه شو،
اُستره ذ هغه په لاس کښې وه، هغه اووے ته دا خوف
کوے، چه زه به دا بچے اووژنم. که خدائے ته منظوره
وي، نو داسے کار به هیڅ کله خما ذ لاسه نه کیږي.
زینب به ونیلے، ما ذ خبیبؓ نه زیات هیڅ قیدي نیک نه
دے لیدلے. ما خپله لیدلے دي، چه خبیبؓ سره لاس کښې
ذ انګورو غُنچک وو، چه خوړلو ئے، حالانکه هغه
موسم کښې مکه کښې میوه نه وه. او هغه په اوسپنه کښې
تړلے شوے وو. دا ذ خدائے رزق وو، چه هغه خبیبؓ ته
عنایت کړے وو. غرض دے کافرو، خبیبؓ قتلولو ذ پاره
ذ حرم ذ حدودو نه بهر بوتلو خبیبؓ اووے. ماله اجازت
راکړئ چه زه دوه رکعاته مونځ ادا کړم. اجازت ورکړے
شو، ذ مونځ نه چه فارش شو، نو خبیبؓ اووے، که تاسو دا
خیال نه کولے، چه زه ذ مرګ نه ویریږم، نو زیات مونځ

دَعُوْنِيْ اُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفَ اِلَيْهِمْ فَقَالَ لَوْلَا اَنْ تَرَوْا اَنَّ مَابِيْ جَزَعٌ مِّنَ الْمَوْتِ لَزِدْتُ فَكَانَ اَوَّلَ مَنْ سَنَّ الرَّكْعَتَيْنِ عِنْدَ الْقَتْلِ هُوَ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ اَحْصِهِمْ عَدَدًا ثُمَّ قَالَ ـ

مَا اِنْ اُبَالِيْ حِيْنَ اُقْتَلُ مُسْلِمًا
عَلٰى اَيِّ شِقٍّ كَانَ لِلّٰهِ مَصْرَعِيْ

وَ ذٰلِكَ فِيْ ذَاتِ الْاِلٰـــهِ وَ اِنْ يَّشَاءُ. يُبَارِكْ عَلٰى اَوْصَالِ شَلْوٍ مُمَزَّعٍ. ثُمَّ قَامَ اِلَيْهِ عُقْبَةُ بْنُ الْحَارِثِ فَقَتَلَهُ وَ بَعَثَتْ قُرَيْشٌ اِلٰى عَاصِمٍ لِيُؤْتَوْا بِشَيْءٍ مِّنْ جَسَدِهٖ يَعْرِفُوْنَهُ وَ كَانَ عَاصِمٌ قَتَلَ عَظِيْمًا مِّنْ عُظَمَآئِهِمْ يَوْمَ بَدْرٍ فَبَعَثَ اللّٰهُ عَلَيْهِ مِثْلَ الظُّلَّةِ مِنَ الدَّبْرِ فَحَمَتْهُ مِنْ رُسُلِهِمْ فَلَمْ يَقْدِرُوْا مِنْهُ عَلٰى شَيْءٍ.

بـه مِ كـړے وے. غـرض دَ قـتـل نه مخکښې دَ دوه رکعاته (نفل) مونځ کولو طريقه دَ حضرت خبيبؓ نه ايجاد شوے ده. بيا حضرت خبيبؓ داسے دُعا اوکړله اے اللّٰه' دا ټول پـه ګوته ګوته تباه کړے' چه هيڅوک په کښې باقي پاتے نشي. بيائے دا اشعار اوو ے: (ترجمه)

هـر کـلـه چـه زهٔ مسـلـمان مرم' نو هيڅ فکر نشته
پـه کوم اړخ چه مړشم' زهٔ دَ خدائے په لار کښې مرم

کـه هـغـه غـواړي' نـو زهٔ به زبون حالے نهٔ يم بدن اګر که ټکړے ټکړے شي' خو د هغے په جوړونو به برکت وي. دے نـه پس عقبه بن حارث اودريد' او خبيبؓ ئے قتل کړ' او بل طرف ته داسے اوشو چه قريشو خلق اوليږل' چه دَ عـاصـم بـن ثـابتؓ دَ لاش نه يوه ټکړه پريکړي او راوړي چه مونږ ئے اوپيژنو' ځکه چه عاصمؓ دَ بدر په ورځ يو ډير لوئے سړے (عقبه بن معيط) قتل کړے وو. نو اللّٰه تعالٰي دَ عـاصـمؓ په لاش دَ مچو سيل نازل کړ' چه هغوي عاصم بچ کړلو او قريشي خلق لاش ته نزدے هم رانه رسيدل.

ا. ولـے چـه هـغـه ته خو ددے خبرے يقين دے چه زهٔ به قتلولے شم' چرته خدائے مکړه خما ماشوم په پاکۍ سره حلال نه کړي.

۱۲۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرًا يَّقُوْلُ الَّذِيْ قَتَلَ خُبَيْبًا هُوَ اَبُوْ سَرْوَعَةَ.

۱۲۸: عبدالله بن محمد. سفيان. عمرو بن دينار نـه روايت کوي' چـه هـغـه دَ حضرت جابرؓ نـه واوريدل' چه خبيب دَ ابو سروعه (عقبه بن حارث) دَ لاسه قتل شوے وو.

۱۲۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعِيْنَ رَجُلًا لِّحَاجَةٍ يُّقَالُ

۱۲۹: ابـو مـعـمـر. عبدالوارث بـن سعيد. عبدالعزيز. حضرت انسؓ نه روايت کوي هغه فرمائي' حضورؐ اويا صحابهؓ چه هغوي ته به مونږ قاريان وئيلے' دَ څهٔ کار دَ پاره اوليږل. دَ بنو سليم دوه قبيلو رعل او

لَهُمُ الْقُرَّآءُ فَعَرَضَ لَهُمْ حَيَّانِ مِنْ بَنِيْ سُلَيْمٍ رِعْلٌ وَّ ذَكْوَانُ عِنْدَ بِئْرٍ يُقَالُ لَهَا بِئْرُ مَعُوْنَةَ فَقَالَ الْقَوْمُ وَاللّٰهِ مَا اِيَّاكُمْ اَرَدْنَا اِنَّمَا نَحْنُ مُجْتَازُوْنَ فِيْ حَاجَةٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَتَلُوْهُمْ فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ شَهْرًا فِيْ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ وَ ذٰلِكَ بَدْءُ الْقُنُوْتِ وَمَا كُنَّا نَقْنُتُ قَالَ عَبْدُ الْعَزِيْزِ وَ سَاَلَ رَجُلٌ اَنَسًا عَنِ الْقُنُوْتِ اَبَعْدَ الرُّكُوْعِ اَوْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِّنَ الْقِرَآءَةِ قَالَ لَابَلْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِّنَ الْقِرَآءَةِ.

ذكوان بير معونه سره هغوي راګير كړل، او وهل ئې. صحابه ؤ ورته اووې، قسم په خدائے، مونږ جنګ ذ پاره نه يو راغلے، بلكه رسول اكرم صلي الله عليه وسلّم ذ څه كار ذ پاره راليږلے يو، خو كافرو څه توجه ورنه كړه، او ټول ئې شهيد كړل. رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو مياشت پورې ذ سحر مونځ كښې هغوي ذ پاره بددُعا اوكړله. ذ دې ځائے نه ذ قنوت ابتداء كيږي. دې نه مخكښې به مونږ قنوت نه وئيلے. عبدالعزيز (د انسؓ شاګرد) وائي، چا ذ حضرت انسؓ نه تپوس اوكړ، چه قنوت ذ ركوع نه پس دې، يا قرأت نه ذ فارغ كيدو نه پس. جواب ئې وركړ، ذ قرأت نه پس او ذ ركوع نه مخكښې.

۱۳۰: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ قَنَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا بَعْدَ الرُّكُوْعِ يَدْعُوْا عَلٰى اَحْيَاءٍ مِّنَ الْعَرَبِ.

۱۳۰: مسلم بن ابراهيم. هشام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووې، رسول اكرم صلي الله عليه وسلّم يو مياشت پورې ذ ركوع نه پس قنوت او لوست، او ذ عربو څو قبائلو ذ پاره به ئې بددُعا كوله.

۱۳۱: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْاَعْلٰى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ اَنَّ رِعْلًا وَّ ذَكْوَانَ وَ عُصَيَّةَ وَ بَنِيْ لِحْيَانَ اسْتَمَدُّوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى عَدُوٍّ فَاَمَدَّهُمْ بِسَبْعِيْنَ مِنَ الْاَنْصَارِ كُنَّا نُسَمِّيْهِمُ الْقُرَّآءَ فِيْ زَمَانِهِمْ كَانُوْا يَحْتَطِبُوْنَ بِالنَّهَارِ وَ يُصَلُّوْنَ بِاللَّيْلِ

۱۳۱: عبدالاعلي بن حماد. يزيد بن زريع. سعيد بن ابي عروبه. قتادهؒ. حضرت انسؓ نه روايت كوي، رعل او ذكوان، عصيه او بني لحيان ذ رسول اكرم صلي الله عليه وسلّم نه ذ خپلو دشمنانو مقابله كښې مدد اُوغښتلو، حضورؐ اويا اصحاب ذ انصارو نه ذ هغوي ذ مدد ذ پاره اوليږل، مونږ به هغوي ته قاريان وئيلے، دې خلقو به ذ ورځې لرګي راوړل، او ذ شپې به ئې عبادت كولو. دا حضرات چه كوم وخت بير معونه ته اورسيدل، نو ذ قبيلے خلقو

حَتّٰى كَانُوْا بِبِئْرِ مَعُوْنَةَ قَتَلُوْهُمْ وَ غَدَرُوْا بِهِمْ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَنَتَ شَهْرًا يَدْعُوْ فِي الصُّبْحِ عَلٰى اَحْيَآءٍ مِّنْ اَحْيَآءِ الْعَرَبِ عَلٰى رِعْلٍ وَّ ذَكْوَانَ وَ عُصَيَّةَ وَ بَنِيْ لِحْيَانَ قَالَ اَنَسٌ فَقَرَأْنَا فِيْهِمْ قُرْاٰنًا ثُمَّ اِنَّ ذٰلِكَ رُفِعَ بَلِّغُوْا عَنَّا قَوْمَنَا اَنَّا قَدْ لَقِيْنَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَ اَرْضَانَا وَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ حَدَّثَهُ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَنَتَ شَهْرًا فِيْ صَلَاةِ الصُّبْحِ يَدْعُوْا عَلٰى اَحْيَآءٍ مِّنْ اَحْيَاءِ الْعَرَبِ عَلٰى رِعْلٍ وَّ ذَكْوَانَ وَ عُصَيَّةَ وَ بَنِيْ لِحْيَانَ زَادَ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا ابْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسٌ اَنَّ اُولٰٓئِكَ السَّبْعِيْنَ مِنَ الْاَنْصَارِ قُتِلُوْا بِبِئْرِ مَعُوْنَةَ قُرْاٰنًا كِتَابًا نَّحْوَهٗ.

هغوي دهوکے سره اووژل. رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم چه ذ دے واقعے نه خبر شولو، نو حضورؐ يو مياشت پورے ذ سحر په مونځ کښ ذ دے قبيلو والو ذ پاره بددُعا اوکړله، يعني رعل، ذکوان، عصيه او بني لحيان ته. حضرت انسؓ وائي، مونږ ذ هغوي باره کښ څو آيتونه اولوستل، بيا ذ هغے تلاوت موقوف شولو، هغه آيتونه دا وو: بلغوا عنا قومنا انا قد لقينا ربنا فرضي عنا و ارضانا. قتاده وائي، حضرت انسؓ اووے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ سحر مونځ کښ يو مياشت پورے قنوت اولوستلو. حضور ذ عربو څو قبيلو ته بددُعا کوله، يعني رعل، ذکوان، عصيه او بني لحيان ته. خليفه بن خياط شيخ بخاري دومره نوره اضافه کړے ده، چه مونږ ته ابن زريع، هغۀ ته سعد بن عروبه، هغه ذ قتاده نه واوريدل، حضرت انسؓ بيان اوکۀ، دا اويا قاريان په بير معونه کښ شهيدان کړے شو. دا ټول انصار وو. دے حديث کښ قرانًا نه کتابًا مراد دے، يعني ذ اللّٰه کتاب.

۱۳۲ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسٌ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ خَالَهٗ اَخٌ لِّاُمِّ سُلَيْمٍ فِيْ سَبْعِيْنَ رَاكِبًا فَكَانَ رَئِيْسُ الْمُشْرِكِيْنَ عَامِرُ بْنُ الطُّفَيْلِ خَيَّرَ بَيْنَ ثَلٰثِ خِصَالٍ فَقَالَ يَكُوْنُ لَكَ اَهْلُ

۱۳۲ : موسي بن اسمٰعيل. همام. اسحاق. عبداللّٰه بن ابي طلحه. حضرت انسؓ نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم (حرام بن ملحان) ذ سليم وررور يعني ذ انس ماما اويا سورو سره بني عامر ته اوليږلو. وجه دا وه، چه ذ مشرکانو سردار عامر بن طفيل حضورؐ ته درے خبرو کښ ذ يوے خبرے اختيار ور کړے وو، هغۀ اووے يا خو داسے پکار دي، چه بانډيسيانو او ديهاتيانو باندے تاسو حکومت کوئے او په ښار والو به زۀ حکومت کوم، يا به زۀ ستاسو خليفه يعني جانشين

السَّهْلِ وَلِيَ اَهْلُ الْمَدَرِ اَوْ اَكُوْنَ خَلِيْفَتَكَ اَوْ اَغْزُوْكَ بِاَهْلِ غَطَفَانَ بِاَلْفٍ وَّ اَلْفٍ فَطُعِنَ عَامِرٌ فِيْ بَيْتِ اُمِّ فُلَانٍ فَقَالَ غُدَّةٌ كَغُدَّةِ الْبَكْرِ فِيْ بَيْتِ امْرَاَةٍ مِّنْ اٰلِ فُلَانٍ ائْتُوْنِيْ بِفَرَسِيْ فَمَاتَ عَلٰى ظَهْرِ فَرَسِهٖ فَانْطَلَقَ حَرَامٌ اَخُوْ اُمِّ سُلَيْمٍ وَهُوَ رَجُلٌ اَعْرَجُ وَ رَجُلٌ مِّنْ بَنِيْ فُلَانٍ قَالَ كُوْنَا قَرِيْبًا حَتّٰى اٰتِيَهُمْ فَاِنْ اٰمَنُوْنِيْ كُنْتُمْ وَ اِنْ قَتَلُوْنِيْ اَتَيْتُمْ اَصْحَابَكُمْ فَقَالَ اَتُؤْمِنُوْنِيْ اُبَلِّغْ رِسَالَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يُحَدِّثُهُمْ وَ اَوْمَـُٔوْا اِلٰى رَجُلٍ فَاَتَاهُ مِنْ خَلْفِهٖ فَطَعَنَهٗ قَالَ هَمَّامٌ اَحْسِبُهٗ حَتّٰى اَنْفَذَهٗ بِالرُّمْحِ قَالَ اللّٰهُ اَكْبَرُ فُزْتُ وَ رَبِّ الْكَعْبَةِ فَلُحِقَ الرَّجُلُ فَقُتِلُوْا كُلُّهُمْ غَيْرَ الْاَعْرَجِ كَانَ فِيْ رَاْسِ جَبَلٍ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْنَا ثُمَّ كَانَ مِنَ الْمَنْسُوْخِ اِنَّا قَدْ لَقِيْنَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَ اَرْضَانَا فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثَلٰثِيْنَ صَبَاحًا عَلٰى رِعْلٍ وَّ ذَكْوَانَ وَ بَنِيْ

جوړ شم. يا بيا به زۀ دوه زره غطفاني لښکر سره په تاسو حمله کوم. رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم هغۀ د پاره بددُعا اوکړله او وې ونيل' اے الله' تۀ ما ذ عامر ذ شر نه بچ کړے' نو د دے دُعا نه پس عامر ذ يوے ښځے اُم فلان په کور کښ په طاعون آخته شولو' او ونيلے چه ذ فلاني خاندان د کور ذ اوښ ذ غوټو په شان خما هم غوټے راوختے' بيا هغۀ اووے خما اَس راولئے' چه راوستے شو' نو هغۀ په شا ناستے سره مړ شولو. حرام بن ملحان يو ګوډ او يو بل سړي سره بني عامر له ورغے' حرام هغے دواړوته اووے. تاسو دواړه ماته نزدے اوسئے. اول زۀ هغوي ته ورځم' که کافرو ماله آمن راکۀ' نو تاسو ايسار شئے' او که مړ ئے کړم' نو تاسو خپلو ملګرو له لاړ شئے' حرام چه کافرو له ورغے' نو ورته ئے اووے آيا تاسو ماته آمن راکوئے' چه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو حديث تاسو ته بيان کړم. آخر حرام حديث بيانولو' هغے خلقو يو سړي ته اشاره اوکړه' نو هغه د ورستو نه راغے' او حرام ئے په نيزه اووهلو (همام راوي وائي) خما خيال دے' چه اسحاق داسے اووے' چه هغه نيزه ذ هغۀ پورے راپوريوته. نيزه لګيدو سره حرام اووے الله اکبر' ذ کعبے په رب مِ دے قسم وي' زۀ خپل مراد ته اورسيدم. او دے نه پس شهيد کړے شو. بيا هغه خلق ذ حرام ملګرو پسے اولګيدل' حتي چه ټول قتل کړے شو. صرف يو ګډ باقي پاتے شو' چه ذ غر څوکے ته اوختلو. دغه وخت دا آيت نازل شولو' چه ورستو منسوخ شولو: (ترجمه) مونږ خپل پروردګار سره يوځائے شولو. مونږ ذ هغۀ نه راضي يو' او هغه خمونږ نه راضي دے. دے نه

لِحْيَانَ وَ عُصَيَّةَ الَّذِيْنَ عَصَوُا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

پس نبي كريم صلي الله عليه وسلم ديرش ورځو پورې رعل، ذكوان، بني لحيان او بني عصيه ډ پاره بددعا كوله، چه هغوي د الله او ډ هغه ډ رسول نافرماني او كړه.

۱۳۳ : حَدَّثَنِيْ حِبَّانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ لَمَّا طُعِنَ حَرَامُ بْنُ مِلْحَانَ وَ كَانَ خَالَهُ يَوْمَ بِئْرِ مَعُوْنَةَ قَالَ بِالدَّمِ هٰكَذَا فَنَضَحَهُ عَلٰى وَجْهِهٖ وَ رَأْسِهٖ ثُمَّ قَالَ فُزْتُ وَ رَبِّ الْكَعْبَةِ.

۱۳۳ : حبان. عبدالله بن مبارک. معمر. ثمامه بن عبدالله. حضرت انس بن مالک نه روايت كوي، هغه اوږي، كوم وخت چه خما ماما حرام بن ملحان، نيزې سره شهيد كړې شو، د بير معونه په ورځ نو هغه خپله وينه خپل لاس سره په خپل مخ اومږله. او وې وئيل، ډ كعبې په رب م دې قسم وي، زه خپل مراد ته اورسيدم.

۱۳۴ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتِ اسْتَأْذَنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبُوْ بَكْرٍ فِي الْخُرُوْجِ حِيْنَ اشْتَدَّ عَلَيْهِ الْاَذٰى فَقَالَ لَهُ اَقِمْ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتَطْمَعُ اَنْ يُّؤْذَنَ لَكَ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنِّيْ لَاَرْجُوْ ذٰلِكَ قَالَتْ فَانْتَظَرَهُ اَبُوْبَكْرٍ فَاَتَاهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ ظُهْرًا فَنَادَاهُ فَقَالَ اَخْرِجْ مَنْ عِنْدَكَ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ اِنَّمَا هُمَا ابْنَتَايَ فَقَالَ اَشَعَرْتَ اَنَّهُ قَدْ اُذِنَ لِيْ فِي الْخُرُوْجِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ الصُّحْبَةَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۳۴ : عبيد بن اسمعيل. ابو اسامه. هشام. بي بي عائشې نه روايت كوي، هغې اوفرمائيل، نبي صلي الله عليه وسلم نه ابوبكرؓ ډ مكه والو تكليف ليدو سره ډ مكې نه ډ بهر تلو اجازت اوغښتلو. حضورؐ ورته اوفرمائيل، لږ صبر او كړه. حضرت ابوبكرؓ عرض او كړ: آيا تاسو دا غواړئ، چه زه هغه وخته پورې ايسار شم، چه تاسو ته هم ډ تلو اجازت اوشي، حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، او. خما ډ خپل رب نه ډ دې اُميد دې. حضرت ابوبكرؓ انتظار كولو. يوه ورځ ډ ماسپخين په وخت حضور اكرمؐ ابوبكرؓ له راغې، آواز ئې ورته او كړ، او وې وئيل، كه تا سره څوک وي، نو هغه لرې كړه. حضرت ابوبكرؓ عرض او كړ، هيڅوک نشته، خما دوه جينكۍ (عائشهؓ او اسماء) دي. حضورؐ اوفرمائيل، تاته معلومه ده، ماته ډ هجرت اجازت اوشولو. حضرت ابوبكرؓ اووې، زه به هم تاسو سره ملګرتيا كښ خم،

وَسَلَّمَ الصُّحْبَةَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ عِنْدِيْ نَاقَتَانِ قَدْ كُنْتُ اَعْدَدْتُهُمَا لِلْخُرُوْجِ فَاَعْطَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِحْدَاهُمَا وَ هِيَ الْجَدْعَآءُ فَرَكِبَا فَانْطَلَقَا حَتّٰى اَتَيَا الْغَارَ وَهُوَ بِثَوْرٍ فَتَوَارَيَا فِيْهِ فَكَانَ عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ غُلَامًا لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الطُّفَيْلِ بْنِ سَخْبَرَةَ اَخُوْ عَآئِشَةَ لِاُمِّهَا وَ كَانَتْ لِاَبِيْ بَكْرٍ مِنْحَةٌ فَكَانَ يَرُوْحُ بِهَا وَ يَغْدُوْ عَلَيْهِمْ وَ يُصْبِحُ فَيَدَّلِجُ اِلَيْهِمَا ثُمَّ يَسْرَحُ فَلَا يَفْطُنُ بِهِ اَحَدٌ مِّنَ الرِّعَآءِ فَلَمَّا خَرَجَ مَعَهُمَا يُعْقِبَانِهِ حَتّٰى قَدِمَا الْمَدِيْنَةَ فَقُتِلَ عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ يَوْمَ بِئْرِ مَعُوْنَةَ وَ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ قَالَ قَالَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ فَاَخْبَرَنِيْ اَبِيْ قَالَ لَمَّا قُتِلَ الَّذِيْنَ بِبِئْرِ مَعُوْنَةَ وَ اُسِرَ عَمْرُو بْنُ اُمَيَّةَ الضَّمْرِيُّ قَالَ لَهُ عَامِرُ بْنُ الطُّفَيْلِ مَنْ هٰذَا فَاَشَارَ اِلٰى قَتِيْلٍ فَقَالَ لَهُ عَمْرُو بْنُ اُمَيَّةَ هٰذَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ فَقَالَ لَقَدْ رَاَيْتُهُ بَعْدَ مَا قُتِلَ رُفِعَ اِلَى السَّمَآءِ حَتّٰى اِنِّيْ لَاَنْظُرُ اِلَى السَّمَاءِ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْاَرْضِ ثُمَّ وُضِعَ فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَبَرُهُمْ فَنَعَاهُمْ فَقَالَ اِنَّ اَصْحَابَكُمْ قَدْ اُصِيْبُوْا وَ اِنَّهُمْ قَدْ سَاَلُوْا رَبَّهُمْ

حضورؐ ورته اوفرمائیل: ښه خبره ده. ابوبکرؓ عرض اوکړ: ماسره دوه تیز رفتارې اوښې دي، چه سفر د پاره ېې تیارې کړې شوې دي، نو هغې کښې یوه اوښه چه د هغې نوم جدعا وو، هغه ئې حضورؐ له ورکړله، بیا خپله هم سور شو، د حضورؐ ملګرتیا کښې روان شولو. غار ثور ته راغلل، هلته روپوش شول. عامر بن فهیره د عبدالله بن طفیل غلام وو. عبدالله د بي بي عائشې مور راوړې وروور وو، او حضرت ابوبکرؓ له به ئې پئې ورکونکې اوښه سحر ماښام راوستله، او د شپې به هم هغوي له تلو راتلو. هیڅ کله به د دې راز نه واقف نه وو. کوم وخت چه حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم او حضرت ابوبکر رضي الله عنه د هغې غار نه راووتل، نو هغه ئې خان سره ملګرتیا کښې واخست، او دې دواړو به ورته لار ښودله. لار کښې به حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم او حضرت ابوبکرؓ وار په وار دوي په خپله سورلۍ کینول. دا عامر بن فهیره د بیر معونه په ورځ شهید شو، او عمرو بن امیه ضمري قید کړې شو، نو عامر بن طفیل اشارې کولو سره تپوس اوکړ، دا لاش د چا دې نو هغه اووې: دا عامر بن فهیره دې. عامر بن طفیل وائي، کوم وخت چه دې شهید شولو، نو د هغه لاش آسمان ته اوچت کړې شو، ما اولیدل، چه د آسمان او زمکې مینځ کښې معلق دې. بیا په زمکه کینودې شو. حضور اکرم صلي الله علیه وسلّ ته جبرائیلؑ د دې واقعې خبر ورکړ، نو حضورؐ صحابهؓ ته اوفرمائیل، ستاسو ورونړه شهیدان کړې شو. او هغوي د شهادت په وخت دا دُعا غوښتلې وه، چه یا الله خمونږ خبر خمونږ ورونړوله ورکړې، چه مونږ

فَقَالُوا اَخْبِرْ عَنَّا اَخْوَانَنَا بِمَا رَضِيْنَا عَنْكَ وَ رَضِيْتَ عَنَّا فَاَخْبَرَهُمْ عَنْهُمْ وَ اُصِيْبَ يَوْمَئِذٍ فِيْهِمْ عُرْوَةُ بْنُ اَسْمَآءَ بْنِ الصَّلْتِ فَسُمِّيَ عُرْوَةُ بِهٖ وَ مُنْذِرُ بْنُ عَمْرٍو سُمِّيَ بِهٖ مُنْذِرًا.

تاسو راضي يو' او تهٔ خمونږ نه راضي شوے الله ذ هغوی خبر مسلمانانوته اورسولو. دغے شهيدانو كښې عروه بن اسماء بن الصلت هم وو. په دے وجه چه عروه بن زبير پيدا شولو' نو ذ هغهٔ نوم عروه كيښودے شو. او دغے شهيدانو كښې منذر بن عمرو هم وو' په دے وجه منذر (بن زبير) نوم ئے كيښودے شو.

۱۳۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا سُلَيْمٰنُ التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ قَنَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ شَهْرًا يَدْعُوْا عَلٰى رِعْلٍ وَ ذَكْوَانَ وَ يَقُوْلُ عُصَيَّةُ عَصَتِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلَهٗ.

۱۳۵ : محمد بن مقاتل. عبدالله بن مبارك. سليمان تيمي. ابو مجلز. حضرت انسؓ نه روايت كوي' هغه اووے. حضور اكرم صلي الله عليه وسلم به يو مياشت پورے ذ ركوع نه پس قنوت لوستلو. حضورؐ ذ رعل ذكوان او عصيه ذَ خدائے او رسول نافرمانو ذ پاره بددعا كوله.

۱۳۶ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ قَالَ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الَّذِيْنَ قَتَلُوْا يَعْنِيْ اَصْحَابَهٗ بِبِئْرِ مَعُوْنَةَ ثَلٰثِيْنَ صَبَاحًا حِيْنَ يَدْعُوْ عَلٰى رِعْلٍ وَّ ذَكْوَانَ وَلِحْيَانَ وَ عُصَيَّةُ عَصَتِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَنَسٌ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَلٰى نَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الَّذِيْنَ قُتِلُوْا اَصْحَابُ بِئْرِ مَعُوْنَةَ قُرْاٰنًا قَرَاْنَاهُ حَتّٰى نُسِخَ بَعْدُ بَلِّغُوْا قَوْمَنَا فَقَدْ لَقِيْنَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَ رَضِيْنَا عَنْهُ.

۱۳۶ : يحيي بن بكير. امام مالك. اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحهؓ. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي' هغه اووے' حضور صلي الله عليه وسلم ديرش ورځے ذ هغے خلقو د پاره چه هغوي په بير معونه د حضور صلي الله عليه وسلم اصحاب شهيدان كړے وو' يعني رعل' ذكوان او بني لحيان د پاره ئے بددعا كوله' او وے فرمائيل' چه عصيه ذ الله او ذ هغه د رسولؐ نافرماني كړے ده. حضرت انسؓ وائي. بيا الله تعالي په خپل رسول د بير معونه د دے شهيدانو په حق كښې آيت نازل كړلو. خو ورستو ذ هغے لوستل موقوف شو' هغه آيت دا دے: بَلِّغُوْا قَوْمَنَا لَقَدْ لَقِيْنَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَ رَضِيْنَا عَنْهُ.

۱۳۷ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ الْاَحْوَلُ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الْقُنُوْتِ فِي الصَّلٰوةِ فَقَالَ نَعَمْ فَقُلْتُ كَانَ قَبْلَ الرُّكُوْعِ اَوْ بَعْدَهٗ قَالَ قَبْلَهٗ قُلْتُ فَاِنَّ فُلَانًا اَخْبَرَنِيْ عَنْكَ اَنَّكَ قُلْتَ بَعْدَهٗ قَالَ كَذَبَ اِنَّمَا قَنَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ شَهْرًا اَنَّهٗ كَانَ بَعَثَ نَاسًا يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّآءُ وَهُمْ سَبْعُوْنَ رَجُلًا اِلٰى نَاسٍ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَ بَيْنَهُمْ وَ بَيْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدٌ قِبَلَهُمْ فَظَهَرَ هٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ كَانَ بَيْنَهُمْ وَ بَيْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدٌ فَقَنَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ شَهْرًا يَدْعُوْ عَلَيْهِمْ.

۱۳۷ : موسي بن اسمعيل. عبدالواحد بن زياد. عاصم بن سليمان نه روايت کوي' هغه اووې: ما حضرت انسؓ نه تپوس او کړو' چه مانځه کښې قنوت لوستل ښکاره دي' هغه اووې: تېک دي: ما ورته اووې' د رکوع نه مخکښې يا ورستو. هغه اووې' د رکوع نه مخکښې. ما اووې: چه فلانے صاحب (محمد بن سيرين يا بل څوک) خو ستاسو په حواله وائي' چه تاسو وئيلې دي: د رکوع نه پس. انسؓ اووې' هغه غلط وائي' د رکوع نه پس حضورؐ صرف يو مياشت پورې قنوت لوستے وو. د هغې وجه دا وه' چه حضورؐ اويا قاريان مشرکانو ته ليږلې وو' خکه چه د هغوي حضورؐ سره عهد وو' او معاهدينو کفارو عهد مات کړلو' او دهوکې سره ئې هغه قاريان شهيدان کړل' نو هغه وخت رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم يو مياشت پورې د رکوع نه پس قنوت لوستے وو' او هغوي د پاره ئې بددُعا کړې ده.

بَابُ ۳۰: غَزْوَةِ الْخَنْدَقِ وَ هِيَ الْاَحْزَابُ قَالَ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ كَانَتْ فِيْ شَوَّالٍ سَنَةَ اَرْبَعٍ.

باب ۳۰: د جنګ خندق بيان. دې ته احزاب هم وئيلې شي' موسي بن عقبه وائي' دا جنګ شوال ۴ھ کښې واقعه شوې وو.

۱۳۸ : حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرَضَهٗ يَوْمَ اُحُدٍ وَّهُوَ ابْنُ

۱۳۸ : يعقوب بن ابراهيم. يحيي بن سعيد. عبيداللّٰه عمري. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي: هغهٔ زهٔ د اُحد په ورځ د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخکښې پيش کړې شوم. هغه وخت د څوارلس کالو ووم. حضورؐ زهٔ جنګ کښې د حصه اخستلو نه منع

اَرْبَعَ عَشَرَ فَلَمْ يُجِزْهُ وَ عَرَضَهُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ وَهُوَ ابْنُ خَمْسَ عَشَرَةَ فَأَجَازَهُ.

**۱۳۹** : حَدَّثَنِيْ قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْخَنْدَقِ وَهُمْ يَحْفِرُوْنَ وَ نَحْنُ نَنْقُلُ التُّرَابَ عَلٰى اَكْتَادِنَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ لَا عَيْشَ اِلَّا عَيْشُ الْاٰخِرَةِ فَاغْفِرْ لِلْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ.

**۱۴۰** : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْخَنْدَقِ فَاِذَا الْمُهَاجِرُوْنَ وَالْاَنْصَارُ يَحْفِرُوْنَ فِيْ غَدَاةٍ بَارِدَةٍ فَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ عَبِيْدٌ يَعْمَلُوْنَ ذٰلِكَ لَهُمْ فَلَمَّا رَاٰى مَا بِهِمْ مِنَ النَّصَبِ وَالْجُوْعِ قَالَ اللّٰهُمَّ اِنَّ الْعَيْشَ عَيْشُ الْاٰخِرَةِ. فَاغْفِرْ لِلْاَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةِ. فَقَالُوْا مُجِيْبِيْنَ لَهُ ـ

نَحْنُ الَّذِيْنَ بَايَعُوْا مُحَمَّدَا
عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِيْنَا اَبَدَا

**۱۴۱** : حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا

کړم. لیکن خندق کښې زۀ د پنځلسو کالو ووم. حضورؐ اولیدم او جنګ کښې د شریکیدو اجازت ئې راکړلو.

**۱۳۹** : قتیبه بن سعید. عبدالعزیز بن ابي حازم. هغه د خپل پلار سلمه بن دینار نه، هغه د حضرت سهل بن سعدؓ نه روایت کوي، هغه اوفرمائیل، مونږ خلقو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره خندق کنولو، او خاوره مو په اوږو چلوله، نو هغه وخت رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، اے اللّٰه د آخرت د عیش نه سوا هیڅ عیش ښه نه دے، نو انصار او مهاجرین اوبښے، او په هغوي مهرباني اوکړے.

**۱۴۰** : عبداللّٰه بن محمد. معاویه بن عمرو. ابو اسحٰق. حمید طویل. حضرت انس بن مالکؓ نه روایت کوي، هغه وائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم چه خندق ته تشریف یوړلو، نو څۀ ګوري چه مهاجرین او انصار یخني کښې خندق کني، هغوي سره دے کار اخستو د پاره غلامان هم نۀ وو. حضورؐ چه د هغوي تکلیف او لوږه اولیده، نو وې فرمائیل اے اللّٰه، عیش خو د آخرت بهتر دے، نو مهاجرین او انصار اوبښے. مسلمانانو چه دا واوریدل، نو جواب کښې ئې اووے:

مونږ خو محمد صلي اللّٰه علیه وسلّم سره بیعت کړے دے
خو پورے چه جسم کښې مو ساه وَه، نو جهاد به کوو.

**۱۴۱** : ابومعمر. عبدالوارث. عبدالعزیز

عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ جَعَلَ الْمُهَاجِرُوْنَ وَالْاَنْصَارُ يَحْفِرُوْنَ الْخَنْدَقَ حَوْلَ الْمَدِيْنَةِ وَ يَنْقُلُوْنَ التُّرَابَ عَلٰى مُتُوْنِهِمْ وَهُمْ يَقُوْلُوْنَ

نَحْنُ الَّذِيْنَ بَايَعُوْا مُحَمَّدَا
عَلَى الْاِسْلَامِ مَا بَقِيْنَا اَبَدَا

قَالَ يَقُوْلُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُجِيْبُهُمْ اَللّٰهُمَّ اِنَّهُ لَا خَيْرَ اِلَّا خَيْرُ الْاٰخِرَةِ. فَبَارِكْ فِي الْاَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةِ. قَالَ وَ يُؤْتَوْنَ بِمِلْءِ كَفِّيْ مِنَ الشَّعِيْرِ فَيُصْنَعُ لَهُمْ بِاِهَالَةٍ سَنِخَةٍ تُوْضَعُ بَيْنَ يَدَيِ الْقَوْمِ وَالْقَوْمُ جِيَاعٌ وَّ هِيَ بَشِعَةٌ فِي الْحَلْقِ وَلَهَا رِيْحٌ مُّنْتِنٌ.

بن صهيب. حضرت انس بن مالک نه روايت کوي، هغه اووې، مهاجرينو او انصارو د مدينې اطرافو کښې خندق کنولو، او خاوره ئې په خپلو اوږو چلوله، او ونيل ئې:

مونږ هغه يو چه د محمدؐ په لاس مو بيعت کړې دې
چه تول عمر به په اسلام قائم اوسو

حضور صلي الله عليه وسلّم د هغوي په جواب کښې اوفرمائيل:

اې الله فائده خو د آخرت بهتره ده
انصارو او مهاجرينو کښې برکت واچوې

حضرت انسؓ وائي، چه يو يو موټي وربشې به ئې راوړلې. بيا به ئې هغه بدمزه چربئ کښې پخولې، او په جمع به ئې خوړلې، حالانکه هغه به حلق کښې انښتلې، او د هغې نه به بوئ راتلو.

۱۴۲: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ اَيْمَنَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اَتَيْتُ جَابِرًا فَقَالَ اِنَّا يَوْمَ الْخَنْدَقِ نَحْفِرُ فَعَرَضَتْ كُدْيَةٌ شَدِيْدَةٌ فَجَآؤُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا هٰذِهٖ كُدْيَةٌ عَرَضَتْ فِي الْخَنْدَقِ فَقَالَ اَنَا نَازِلٌ ثُمَّ قَامَ وَ بَطْنُهُ مَعْصُوْبٌ بِحَجَرٍ وَّ لَبِثْنَا ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ لَا نَذُوْقُ ذَوَاقًا فَاَخَذَ النَّبِيُّ صَلّٰى

۱۴۲: خلاد بن يحيٰي. عبدالواحد بن ايمن، د خپل پلار ايمن نه روايت کوي، هغهٔ اووې، زهٔ جابر بن عبدالله له راغلم، هغهٔ اوفرمائيل، مونږ خندق کنولو، دې کښې يو سخت کاڼړې راوخت. مونږ د نبي صلي الله عليه خدمت کښې حاضر شو، او عرض مو او کهٔ، خندق کښې يو سخت کاڼړې راختلې دې، څهٔ کول پکار دي، حضورؐ اوفرمائيل، لږ صبر او کړئ، زهٔ خپله خندق ته کوزيږم بيا حضورؐ اودريدلو، او د حضورؐ په خيټه (د لوږې نه) کاڼړي تړلې وو، او د درې ورځو اوږې تږې وو، مونږ خلقو هم د درې ورځو نه څهٔ نه وو خوړلي. حضورؐ کُدالئ لاس کښې واخسته، او د هغې کاڼړي به

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِعْوَلَ فَضَرَبَ فَعَادَ كَثِيْبًا أَهْيَلَ أَوْ أَهْيَمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ائْذَنْ لِيْ إِلَى الْبَيْتِ فَقُلْتُ لِامْرَأَتِيْ رَأَيْتُ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا مَا كَانَ فِيْ ذٰلِكَ صَبْرٌ فَعِنْدَكِ شَيْءٌ قَالَتْ عِنْدِيْ شَعِيْرٌ وَعَنَاقٌ فَذَبَحْتُ الْعَنَاقَ وَطَحَنَتِ الشَّعِيْرَ حَتَّى جَعَلْنَا اللَّحْمَ فِي الْبُرْمَةِ ثُمَّ جِئْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْعَجِيْنُ قَدِ انْكَسَرَ وَالْبُرْمَةُ بَيْنَ الْأَثَافِيِّ قَدْ كَادَتْ أَنْ تَنْضَجَ فَقُلْتُ طُعَيِّمٌ لِيْ فَقُمْ أَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَرَجُلٌ أَوْ رَجُلَانِ قَالَ كَمْ هُوَ فَذَكَرْتُ لَهُ قَالَ كَثِيْرٌ طَيِّبٌ قَالَ قُلْ لَهَا لَا تَنْزِعِ الْبُرْمَةَ وَلَا الْخُبْزَ مِنَ التَّنُّوْرِ حَتَّى اٰتِيَ فَقَالَ قُوْمُوْا فَقَامَ الْمُهَاجِرُوْنَ وَالْأَنْصَارُ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَى امْرَأَتِهِ قَالَ وَيْحَكِ جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمُهَاجِرِيْنَ وَالْأَنْصَارِ وَمَنْ

سخته حصه نے ګزار او کړلو نو کاڼړے د شګو (ريت) په شان او بهيدلو ټکړے ټکړے شولو. راوي ته شک دے چه خما شيخ اهيل يا اهيم لفظ اووے. آخر ما اجازت اوغوښتلو چه کوره پورے د تلو اجازت راکړي. زۀ کور ته راغلم او خپلے ښځے (سهيله بنت مسعود) ته م اووے. نن ما يوه داسے خبره اوليده چه صبر کول راته ګران شو، يعني حضورٌ اوږے دے. آيا تا کره د خوراک څۀ شته. ښځے راته اووے لږے شان وربشے شته. او د چيلئے يو بچے (يعني چيلوکے) هم شته. ما د چيلئے هغه بچے ذبح کۀ ښځے م وربشے اوړۀ کړے. او غوښه نے کټوئے کښې پخولو د پاره واچوله اوړۀ خمبيره کيدل او کټوئے پخيدو ته نزدے وه. دغه وخت زۀ حضورٌ له راغلم او عرض م اوکۀ نږ شان طعام مو تيار کړے دے. تاسو تشريف راوړئے او يو کس دوه نور هم خان سره راولئے. حضورٌ تپوس اوکۀ، څومره طعام تيار شوے دے ما عرض اوکۀ يو صاع وربشے او يو چيلوکے مو پخکړے دے. حضورٌ اوفرمائيل کافي دے. ښۀ ده، ته خه، او خپلے بي بي ته اووايه، چه څو پورے زۀ درنشم کټوئے د نغري نه مۀ کوزوه. او روټئ د تنور نه مۀ راوکاږه، زۀ راځم. بيا حضورٌ مسلمانانو ته اوفرمائيل پاسئے، چه د جابر دعوت له ورشو. مهاجرين او انصار اودريدل. جابر چه دا کيفيت اوليدلو نو ښځے له ورغے ورته نے اووے. اوس به څۀ چل کيږي حضور صلي اللّٰه عليه وسلم خو مهاجرين، انصار او ټول ملګري خان سره راروان کړے دي. ښځے ورته اووے آيا حضورٌ تا نه څۀ تپوس کړے وو. ورته نے اووے او

مَعَهُمْ قَالَتْ هَلْ سَأَلَكَ قُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ ادْخُلُوا وَلَا تَضَاغَطُوا فَجَعَلَ يَكْسِرُ الْخُبْزَ يَجْعَلُ عَلَيْهِ اللَّحْمَ وَ يُخَمِّرُ الْبُرْمَةَ وَالتَّنُّورَ إِذَا أَخَذَ مِنْهُ وَ يُقَرِّبُ إِلَى أَصْحَابِهِ ثُمَّ يَنْزِعُ فَلَمْ يَزَلْ يَكْسِرُ الْخُبْزَ وَ يَغْرِفُ حَتَّى شَبِعُوا وَ بَقِيَ بَقِيَّةٌ قَالَ كُلِي هٰذَا وَ أَهْدِيْ فَإِنَّ النَّاسَ أَصَابَتْهُمْ مَجَاعَةٌ.

تپوس نے کړے وو. بیا حضور صلي الله علیه وسلم تشریف راوړلو، او تولو ته ئے اوفرمائیل دننه ځئ، او کړبړ مۀ کوئ. بیا حضورؐ روټۍ ماتے کړے، او په هغې ئے غوښه ذ ټولو مخکښ کیښوده. او تنور او کټوئ به ئے پټوله (یعني سر به ئے ترے نۀ لرے کولو). برابر دغسے ئے کول، ترد ے چه ټولو په مړه خیټه ډوډي اوخوړله، بیا هم لږ شان طعام باقي پاتے شو. بیا حضورؐ ذ جابر ښځے ته اوفرمائیل، تۀ هم اُوخوره او نورو خلقو ته هم حصه اولیږه، ځکه چه نن صبا خلق ذ لوږے نه پریشانه دي.

۱۴۳ : حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَاصِمٍ أَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ بْنُ أَبِيْ سُفْيَانَ أَخْبَرَنَا سَعِيْدُ بْنُ مِيْنَاءَ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا حُفِرَ الْخَنْدَقُ رَأَيْتُ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمَصًا شَدِيْدًا فَانْكَفَأْتُ إِلَى امْرَأَتِيْ فَقُلْتُ هَلْ عِنْدَكِ شَيْءٌ فَإِنِّيْ رَأَيْتُ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمَصًا شَدِيْدًا فَأَخْرَجَتْ إِلَيَّ جِرَابًا فِيْهِ صَاعٌ مِّنْ شَعِيْرٍ وَّلَنَا بُهَيْمَةٌ دَاجِنٌ فَذَبَحْتُهَا وَ طَحَنَتِ الشَّعِيْرَ فَفَرَغَتْ إِلَى فَرَاغِيْ وَ قَطَّعْتُهَا فِيْ بُرْمَتِهَا ثُمَّ وَلَّيْتُ إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ لَا تَفْضَحْنِيْ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۴۳ : عمرو بن علي. ابو عاصم. حنظله بن ابي سفیان. سعید بن میناء. حضرت جابر بن عبدالله نه روایت کوي، هغۀ اوویے کوم وخت چه خندق کنولے شو، ما اولیدل، چه حضور صلي الله علیه وسلم سخت اوږے دے. زۀ کورته راغلم، او ذ ښځے نه مِ تپوس اوکۀ، ذ خوراک څۀ شته، ځکه چه حضور صلي الله علیه وسلم اُوږے معلومیږي ښځے ذ تهیلۍ نه وربشے راوښکلے، چه یو صاع وے کور کښ یو ساتلے چیلوکے هم وو. هغه ما ذبح کۀ. دے کښ ښځے مِ اُوړۀ اوکړل. او غوښه ئے پریکړه. کټوے کښ ئے واچوله. بیا زۀ ذ حضورؐ خدمت کښ حاضر شوم، ښځے خما ذ تلو په وخت راته اووے، ګوره چه ما ذ حضور صلي الله علیه وسلم او اصحابو په مخکښ شرمنده نۀ کړے، داسے نه چه ډیر سړي راشي، او طعام کم شي. ما رسول الله صلي الله علیه وسلم ته پټ شان عرض اوکۀ، ما

وَ بِمَنْ مَّعَهُ فَجِئْتُهُ فَسَارَرْتُهُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ذَبَحْنَا بُهَيْمَةً لَّنَا وَطَحَنَّا صَاعًا مِّنْ شَعِيْرٍ كَانَ عِنْدَنَا فَتَعَالَ أَنْتَ وَ نَفَرٌ مَّعَكَ فَصَاحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا أَهْلَ الْخَنْدَقِ إِنَّ جَابِرًا قَدْ صَنَعَ سُوْرًا فَحَيَّ هَلًا بِكُمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُنْزِلُنَّ بُرْمَتَكُمْ وَلَا تُخْبِزُنَّ عَجِيْنَكُمْ حَتّٰى أَجِيْءَ فَجِئْتُ وَ جَاءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْدُمُ النَّاسَ حَتّٰى جِئْتُ امْرَأَتِيْ فَقَالَتْ بِكَ وَ بِكَ فَقُلْتُ قَدْ فَعَلْتُ الَّذِيْ قُلْتِ فَأَخْرَجَتْ لَهُ عَجِيْنًا فَبَصَقَ فِيْهِ وَ بَارَكَ ثُمَّ عَمَدَ إِلٰى بُرْمَتِنَا فَبَصَقَ وَ بَارَكَ ثُمَّ قَالَ ادْعُ خَابِزَةً فَلْتَخْبِزْ مَعِيْ وَاقْدَحِيْ مِنْ بُرْمَتِكُمْ وَلَا تُنْزِلُوْهَا وَهُمْ أَلْفٌ فَأُقْسِمُ بِاللّٰهِ لَقَدْ أَكَلُوْا حَتّٰى تَرَكُوْهُ وَانْحَرَفُوْا وَ إِنَّ بُرْمَتَنَا لَتَغِطُّ كَمَا هِيَ وَ إِنَّ عَجِيْنَنَا لَيُخْبَزُ كَمَا هُوَ.

بـو چيـلـو کـې پـريـکـړې دې' او يـو صـاع وربشـې مې اوړه کـړې دي' تـاسـو خـان سـره څو کـسـان راولئې. نـو حـضـورﷺ آواز اوکـړلو' اې خـنـدق والو' تـادي کـوئې راځئې' جـابـر ډوډۍ پخ کړې ده. بيا حضورﷺ ماته اوفرمائيل' تـه ځه' خو څما ذ راتلو پورې کټوئې مـۀ راکوزوه' او مۀ ذ خميرې نه روټئې پخوې' زۀ لاړم' او حـضـور صـلي اللّٰه عليه وسلّم هم خلقو سره ذ راتلو تياري شروع کړله' زۀ چه راغلم' ښځې ته مې ټولې خبرې اوکړلې' هغه ويرې واخسته' اوونيلې' دا' تا څۀ اوکړل. ما اووې' ما ستا خبره هم رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تـه کـړې وه. غـرض حضورﷺ تشريف راوړلو' او خمبيـره کـښې ذ خولې مبـارکې لاړې واچولې. او ذ برکت دُعا ئې اوکړله' بيائې اوفرمائيل' اې جابره' روټئې پخـونکې راوغواړه' هغه دې ماسره نزدې روټئې پخې کـړي او ذ کـټوئ نه دې غوښه راوکاږي' او هغه دې ذ نـغـرى نـه نـۀ لـرې کـوي. آخر ټولو په مړه خيټه ډوډۍ اوخـوړلـه. کـټـوې دغـسې پخيدله او جوش ئې وهلو او روټـۍ پـخـيـدلې' جابر وائي' په خدائې مې دې قسم وي' طعـام خوړونکي يو زر وو ټولو خوراک اوکۀ' او بيا هم بچ پاتې شولو. کټوئ ذ غوښې نه ډکه وه' او روټئ برابر پخيدلې.

۱۴۴ : حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ بْنُ أَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ إِذْ جَاءُوْكُمْ مِّنْ فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنْكُمْ وَ إِذْ زَاغَتِ

۱۴۴ : عثـمـان بـن ابـي شيـبـه. عبده بن سليمان. هشام بن عروه. ذ خپل پلار عروه نه روايت کوي' هغه ذ بـي بـي عائشېؓ نه تپوس اوکۀ ذ دې آيت څۀ مطلب دې (تـرجـمـه) کـوم وخـت چه کفارو ستاسو ذ پاسه نه او ذ لانـدې نـه حـمـلـه اوکـړلـه او دشمن ليدو سره ستاسو

الْاَنْصَارُ قَالَتْ كَانَ ذَاكَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ.

سترګې اوبريښيدې . بي بي عائشې جواب ورکړ دا جنګ خندق د ورځې حال وو .

۱۴۵ : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّي اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ التُّرَابَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ حَتّٰى اَغْمَرَ بَطْنُهُ يَقُوْلُ .

۱۴۵ : مسلم بن ابراهيم . شعبه . ابو اسحاق حضرت براء بن عازب نه روايت دے هغه اووے رسول الله صلي الله عليه وسلم د خندق په ورځ په خپله خاوره اوچتوله، تردے چه د حضور صلي الله عليه وسلم خېټه مبارکه خاورو پټه کړے وه، يا ګرد آلوده شوے وه او حضورٌ دا اشعار لوستل : (ترجمه)

وَاللّٰهِ لَوْلَا اللّٰهُ مَا اهْتَدَيْنَا
وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا
فَاَنْزِلَنْ سَكِيْنَةً عَلَيْنَا
وَ ثَبِّتِ الْاَقْدَامَ اِنْ لَّاقَيْنَا
اِنَّ الْاُوْلٰى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا
اِذَا اَرَادُوْا فِتْنَةً اَبَيْنَا
وَ رَفَعَ بِهَا صَوْتَهُ اَبَيْنَا اَبَيْنَا

يا الله که تا راته هدايت نه وے کړے نو خلاصے چرته وو مونږ به نه مونځونه کول او نه به مو زکوة ورکولو اوس به مونږ اے عالي صفاته تسلي نازله کړے خمونږ پښے ټکلکے کړے او جنګ کښې ثبات راکړے بے سببه په مونږ دے دشمنانو ظلم سره حمله کړے ده کوم وخت چه هغوي مونږ شرک ته رابللي نو مونږ د هغوي خبره نه آورو . رسول اکرم صلي الله عليه وسلم به دا آخري مصرعه بلند آواز سره فرمائيله .

۱۴۶ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي الْحَكَمُ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نُصِرْتُ بِالصَّبَا وَ اُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُوْرِ .

۱۴۶ : مسدد . يحيي بن سعيد . شعبه . حکم بن عتبه . مجاهد . حضرت ابن عباسٌ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، خما "پروا" (صبا) هوا سره مدد کړے شوے دے او قوم عاد د پچهوا هوا نه هلاک کړے شوے وو .

ف : پروا : جنوب يا د سهيل د غاړے هوا، د سهيل ډډے باد . پچهوا : د پچهم يعني د قبلے د ډډے باد، د نمر پريواته د مخے هوا .

۱۴۷ : حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ

۱۴۷ : احمد بن عثمان . شريح بن مسلمه . ابراهيم بن يوسف خپل پلار او نيکه ابو اسحاق نه روايت کوي، هغه اووے . . ما د حضرت براء

حَدَّثَنِیْ اَبِیْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ يُحَدِّثُ لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْاَحْزَابِ وَ خَنْدَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُهُ يَنْقُلُ مِنْ تُرَابِ الْخَنْدَقِ حَتّٰى وَارٰى عَنِّي الْغُبَارُ جِلْدَةَ بَطْنِهِ وَ كَانَ كَثِيْرَ الشَّعْرِ فَسَمِعْتُهُ يَرْتَجِزُ بِكَلِمَاتِ ابْنِ رَوَاحَةَ وَهُوَ يَنْقُلُ مِنَ التُّرَابِ يَقُوْلُ ـ

اَللّٰهُمَّ لَوْلَا اَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا
وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا
فَاَنْزِلَنْ سَكِيْنَةً عَلَيْنَا
وَ ثَبِّتِ الْاَقْدَامَ اِنْ لَاقَيْنَا
اِنَّ الْاُوْلٰى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا
وَ اِنْ اَرَادُوْا فِتْنَةً اَبَيْنَا

قَالَ ثُمَّ يَمُدُّ صَوْتَهُ بِاٰخِرِهَا.

بن عازب نه واوریدل' ذ هغه بیان دے' جنګ احزاب یعني ذ خندق په ورځ ما اولیدل چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ خندق خاوره چلوي' تردے چه شکم مبارک (خیټه مبارکه) ئے په خاوره پټه شوے وه. ذ حضورؐ په سینه مبارکه ګڼر ویښتهٔ وو. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ ابن رواحه دا اشعار لوستل:

(ترجمه) اے اللّٰه' که ستا هدایت نهٔ وے او فضل دے نهٔ وے' نو نهٔ به مونږ صدقه ورکوله' او نهٔ به مو مونځ کولو. اے اللّٰه' مونږ ته تسکین عطا کړے. او ذ دشمنانو ذ مقابلے په وخت خمونږ پښے ټینګے کړے هغوي په مونږ ظلم کړے دے که دوي مونږ سره فتنه کوي' نو مونږ ئے نهٔ منو. بیا حضورؐ دا آخري مصرعه اوچت آواز سره ادا کوله.

۱۴۸ : حَدَّثَنِیْ عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ هُوَ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ ابْنَ عُمَرَؓ قَالَ اَوَّلُ يَوْمٍ شَهِدْتُهٗ يَوْمُ الْخَنْدَقِ.

۱۴۸ : عبده بن عبداللّٰه. عبدالصمد بن عبدالوارث. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن دینار' ذ خپل پلار نه روایت کوي' ابن عمرؓ وئیلے ذ ټولو نه مخکښ چه زهٔ کوم جنګ کښ شریک شوم' هغه ذ خندق ورځ وه' یعني جنګ خندق وو.

۱۴۹ : حَدَّثَنِیْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ وَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ طَاوٗسٍ عَنْ عِكْرَمَةَ بْنِ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى حَفْصَةَ وَ نَسْوَاتُهَا تَنْطُفُ قُلْتُ قَدْ

۱۴۹ : ابراهیم بن موسي. هشام. معمر. زهري. سالم بن عبداللّٰه بن دینار. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي' هغهٔ اووے زهٔ ام المؤمنین بي بي حفصےؓ له ورغلم' نو ذ هغے ذ ویښتو نه اُوبهٔ څڅیدلے' ما ورته اووے' تهٔ وینے' چه خلقو دا څهٔ کړے دي. ما ته خو ذ حکومت نه هیڅ څیز حاصل نهٔ شولو'

كَانَ مِنْ اَمْرِ النَّاسِ مَا تَرَيْنَ فَلَمْ يُجْعَلْ لِيْ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ فَقَالَتِ الْحَقْ فَاِنَّهُمْ يَنْتَظِرُوْنَكَ وَ اَخْشٰى اَنْ يَكُوْنَ فِي احْتِبَاسِكَ عَنْهُمْ فُرْقَةٌ فَلَمْ تَدَعْهُ حَتّٰى ذَهَبَ فَلَمَّا تَفَرَّقَ النَّاسُ خَطَبَ مُعَاوِيَةُ قَالَ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ اَنْ يَتَكَلَّمَ فِيْ هٰذَا الْاَمْرِ فَلْيُطْلِعْ لَنَا قَرْنَهُ فَلَنَحْنُ اَحَقُّ بِهٖ مِنْهُ وَمِنْ اَبِيْهِ قَالَ حَبِيْبُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَهَلَّا اَجَبْتَهُ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَحَلَلْتُ حُبْوَتِيْ وَ هَمَمْتُ اَنْ اَقُوْلَ اَحَقُّ بِهٰذَا الْاَمْرِ مِنْكَ مَنْ قَاتَلَكَ وَ اَبَاكَ عَلَى الْاِسْلَامِ فَخَشِيْتُ اَنْ اَقُوْلَ كَلِمَةً تُفَرِّقُ بَيْنَ الْجَمْعِ وَ تَسْفِكُ الدَّمَ وَ يُحْمَلُ عَنِّيْ غَيْرُ ذٰلِكَ فَذَكَرْتُ مَا اَعَدَّ اللّٰهُ فِي الْجِنَانِ قَالَ حَبِيْبٌ حُفِظْتَ وَ عُصِمْتَ قَالَ مَحْمُوْدٌ عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ وَ نَوْسَاتُهَا.

هغې اوفرمائيل، تـه لاړ شـه، خلقو سـره ملاقات اوکړه، هغوي ستا انتظار کوي، چرته داسې نه وي، چـه تـه لاړ نـه شـې او هغوي کښې اختلاف پيدا شي، غرض د ام المؤمنين پـه وينا هغه لاړلو. آخر کښې امير معاويـهٔ خطبه اولوسته اووې وئيل، که څوک د خلافت معامله کښې څـه وئيل غواړي، نو مخې تـه دې راشـي، مونږ د هغـهٔ او د هغـهٔ د پـلار نـه زيات مستحق يو. حبيب بن مسلمه اووې، تاسو امير معاويـهٔ لـه جواب ولې ورنـه کړلو ابن عمرٌ ورتـه اووې، ما غوښتل، چـه معاويه تـه جواب کښې اووايـم، چـه دې معامله کښې ستا نـه او ستا د پلار نه زيات هغه مستحق دې، چه د اسلام په خاطر ئې تاسره او ستا پـلار سـره جنگ کړې دې خو زهٔ د مسلمانانو تر مينځه د خون ريزئ د خوف نه خاموش شوم. د جنت په ثواب مې قناعت اوکـهٔ. حبيب اووې، تاسو خپل ځان د فساد نه بچ کړلو. دا حديث محمود بن غيلان هم د عبدالرزاق او هغهٔ د معمر نه روايت کړې دې، هغې کښې د "نسواتها" په ځائې "نوساتها" دې.

**۱۵۰:** حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْاَحْزَابِ نَغْزُوْهُمْ وَلَا يَغْزُوْنَنَا.

**۱۵۰:** ابو نعيم. سفيان. ابو اسحاق. سليمان بن صرد نه روايت کوي، هغهٔ اووې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د احزاب په ورځ اوفرمائيل، اوس به مونږ په هغوي حمله کوو، هغوي به په مونږ حمله نه کوي.

**۱۵۱:** حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ سَمِعْتُ اَبَا اِسْحٰقَ يَقُوْلُ

**۱۵۱:** عبداللّٰه بن محمد. يحيي بن آدم. اسرائيل. ابو اسحاق. سليمان بن صرد نه روايت کوي، هغـهٔ وئيلې، د جنگ خندق پـه ورځ چـه کافر

سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ صُرَدٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ حِيْنَ اَجْلَى الْاَحْزَابُ عَنْهُ اَلْاٰنَ نَغْزُوْهُمْ وَلَا يَغْزُوْنَنَا نَحْنُ نَسِيْرُ اِلَيْهِمْ.

خپلو خپلو ملکونو ته واپس شو، او میدان صاف شو، نو ما واوریدل، رسول اکرم صلي الله علیه وسلم فرمائیل، اوس به ذ نن نه پس مونږ په هغوي چړهائي کوو، او ورسره به جنګیږو، هغوي به په مونږ چړهائي نه کوي.

۱۵۲: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَلِيٍّؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ مَلَاَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ بُيُوْتَهُمْ وَ قُبُوْرَهُمْ نَارًا كَمَا شَغَلُوْنَا عَنْ صَلٰوةِ الْوُسْطٰى حَتّٰى غَابَتِ الشَّمْسُ.

۱۵۲: اسحاق بن منصور. روح بن عباد. هشام بن حسان. محمد بن سیرین. عبیده سلماني. حضرت عليؓ نه روایت کوي، حضور اکرم صلي الله علیه وسلم ذ خندق په ورځ اوفرمائیل اے الله، ذ کافرو کورونه او قبرونه ذ اُور نه ډک کړے، ځکه چه هغوي مونږ مینځني مونځ ته پرے نهٔ ښودلو. او نمر پریوتلو (جنګ کښې ذ مشغولیت په وجه).

۱۵۳: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِؓ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ جَآءَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ جَعَلَ يَسُبُّ كُفَّارَ قُرَيْشٍ وَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا كِدْتُ اَنْ اُصَلِّيَ حَتّٰى كَادَتِ الشَّمْسُ اَنْ تَغْرُبَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ مَا صَلَّيْتُهَا فَنَزَلْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُطْحَانَ فَتَوَضَّاَ لِلصَّلٰوةِ وَ تَوَضَّاْنَا لَهَا فَصَلَّى الْعَصْرَ بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلَّى بَعْدَهَا الْمَغْرِبَ.

۱۵۳: مکي بن ابراهیم. هشام بن حسان. یحیي بن ابي کثیر. ابو سلمه بن عبدالرحمن. حضرت جابر بن عبداللّهؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، ذ خندق په ورځ حضرت عمر بن خطابؓ ذ نمر ډوبیدو نه پس کافرو ښاندے بد وئیلے، تشریف نے راوړو. او عرض نے اوکړ، اے ذ اللّه رسوله، ما ذ مازیګر مونځ اونهٔ کړے شو. او نمر پریوتلو. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، په خدائے چه ما هم مونځ نهٔ دے کړے. بیا حضور صلي الله علیه وسلم سره وادي بطحانته راغلو. حضور اکرم صلي الله علیه وسلم او مونږ اودس اوکړلو، نمر ډوب شوے وو، اول نے ذ مازیګر مونځ راکړلو، بیا ذ ماښام مونځ.

۱۵۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْاَحْزَابِ مَنْ يَّأْتِيْنَا بِخَبَرِ الْقَوْمِ فَقَالَ الزُّبَيْرُ اَنَا ثُمَّ قَالَ مَنْ يَّأْتِيْنَا بِخَبَرِ الْقَوْمِ فَقَالَ الزُّبَيْرُ اَنَا ثُمَّ قَالَ اِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا وَ اِنَّ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ.

۱۵۴: محمد بن كثير. سفيان. محمد بن منكدر. حضرت جابرؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووے، ما ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي، ذ جنګ احزاب په ورځ، څوک شته چه د كفار قريش خبر راوړي، زبير اووے، زهٔ موجود يم. بيائے اوفرمائيل، څوک شته، چه مونږ ته د قوم خبر راوړي، زبير اووے، زهٔ يم، بيائے اوفرمائيل، څوک شته، چه ذ بني قريظه خبر راوړي، زبير بن عوام اووے، زهٔ موجود يم. بيا حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ هر پيغمبر حواري (خاص ملګرے) وي، او زما حواري زبير بن عوام دے.

۱۵۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ اَعَزَّ جُنْدَهٗ وَ نَصَرَ عَبْدَهٗ وَ غَلَبَ الْاَحْزَابَ وَحْدَهٗ فَلَا شَيْءَ بَعْدَهٗ.

۱۵۵: قتيبه بن سعيد. ليث بن سعد. سعيد بن ابي سعيد ذ خپل پلار نه، هغه ذ ابوهريرهؓ نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دا دُعائيه كلمات ارشاد فرمائيلے وو، ذ اللّٰه نه سِوا معبود نشته، هغه يو دے، چه هغه خپل لښكر ته غلبه عطا كړله، او ذ خپل بنده مدد ئے اوكهٔ، او ذ كفارو جماعت ئے مغلوب كړلو، ذ هغهٔ ذات بے مثال دے. باقي هر څيز له فناده.

۱۵۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا الْفَزَارِيُّ وَ عَبْدَةُ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِيْ اَوْفٰىؓ يَقُوْلُ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْاَحْزَابِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ سَرِيْعَ الْحِسَابِ اهْزِمِ الْاَحْزَابَ اللّٰهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَ زَلْزِلْهُمْ.

۱۵۶: محمد بن سلام بيكندي. مروان بن معاويه فزاري. عبده. اسماعيل بن خالد. حضرت عبداللّٰه بن ابي اوفي نه روايت كوي، ما ذ هغهٔ نه واوريدل، چه حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ كافرو ذ جماعت ذ پاره بد دُعا كوله، او داسے ارشاد ئے فرمائيلو، اے اللّٰه، د كتاب نازلونكيه، كافرو له شكست وركړے، او قدمونه ئے اوخويږ.

۱۵۷ : حَـدَّثَـنَـا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ وَّ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا قَفَلَ مِنَ الْغَزْوِ اَوِ الْحَجِّ اَوِ الْعُمْرَةِ يَبْدَأُ فَيُكَبِّرُ ثَلٰثَ مِرَارٍ ثُمَّ يَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ اٰئِبُوْنَ تَآئِبُوْنَ عَابِدُوْنَ سَاجِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ صَدَقَ اللّٰهُ وَعْدَهٗ وَ نَصَرَ عَبْدَهٗ وَ هَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَهٗ.

۱۵۷ : محمد بن مقاتل. عبدالله بن مقاتل. موسى بن عقبه. سالم بن عبدالله او نافع دواړه حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، حضورؐ چه به د حج، جهاد، يا عمرے نه واپس راتلو، نو اول به ئے درے ځله الله اكبر وئيل. بيا به ئے داسے ارشاد فرمائيلو، چه د الله نه سوا بل ريښتنے معبود نشته، هغه يو دے، هيڅوک د هغهٔ شريک نشته، هغه بادشاه دے، او ټول تعريفونه هغه لره دي، هغه هر څهٔ كولے شي مونږ هغه طرف ته كرځيدونكے يو، توبه، عبادت او سجده كونكي يو. مونږ د خپل مالک شكر گزار يُو، هغهٔ خپله وعده پوره كړله، او د خپل بنده محمد صلي الله عليه وسلم مدد ئے اوكړلو، او كافرو له ئے شكست وركهٔ او مغلوب ئے كړل.

باب ۱۳۱: مَرْجَعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْاَحْزَابِ وَ مَخْرَجِهٖ اِلٰى بَنِيْ قُرَيْظَةَ وَ مَحَاصَرَتِهٖ اِيَّاهُمْ.

باب ۱۳۱: د رسول الله صلي الله عليه وسلم د جنګ خندق نه واپس راتلل، او يهود بني قريظه باندے حمله كول او د هغوي محاصره كول.

۱۵۸ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَؓ قَالَتْ لَمَّا رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْخَنْدَقِ وَ وَضَعَ السِّلَاحَ وَ اغْتَسَلَ اَتَاهُ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَقَالَ قَدْ وَضَعْتَ السِّلَاحَ وَاللّٰهِ مَا وَضَعْنَاهُ فَاخْرُجْ اِلَيْهِمْ قَالَ فَاِلٰى اَيْنَ قَالَ هٰهُنَا وَ اَشَارَ اِلٰى بَنِيْ قُرَيْظَةَ

۱۵۸ : عبدالله بن ابي شيبه. ابن نمير. هشام بن عروه. د خپل پلار نه. هغه د بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، حضور صلي الله عليه وسلم چه د جنګ خندق نه واپس راغے، وسله ئے كوزه كړه. غسل ئے اوكړلو. بيا حضرت جبرائيلؑ حضورؐ له راغے، او ورته ئے اووئيلے، ناسو وسله كوزه كړه، او په خدائے قسم چه مونږ لا نه ده ايښے، ځئے او په هغوي حمله اوكړئے، حضورؐ ترے تپوس اوكهٔ، په چا، جبرائيلؑ ورته اشارے سره اووے، په بني

فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ.

قريظه باندې، نو حضور صلي الله عليه وسلّم هغوي پله تشريف يوړلو.

۱۵۹: حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى الْغُبَارِ سَاطِعًا فِي زُقَاقِ بَنِي غَنْمٍ مَوْكِبَ جِبْرِيلَ حِينَ سَارَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ.

۱۵۹: موسي بن اسمٰعيل. جرير بن حازم. حميد بن هلال. حضرت انسؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووې، زهٔ دَ جبرائيلؑ دَ لښكر ګرد و غبار اوسه پورې بني غنم كښې الوتونكې وينم. دا دَ هغې وخت خبره ده، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره هغه بني قريظه طرف ته تلې وو.

۱۶۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَسْمَاءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ أَسْمَاءَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ لَا يُصَلِّيَنَّ أَحَدٌ الْعَصْرَ إِلَّا فِي بَنِي قُرَيْظَةَ فَأَدْرَكَ بَعْضُهُمُ الْعَصْرَ فِي الطَّرِيقِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَا نُصَلِّي حَتَّى نَأْتِيَهَا وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ نُصَلِّي لَمْ يُرِدْ مِنَّا ذٰلِكَ فَذُكِرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُعَنِّفْ وَاحِدًا مِنْهُمْ.

۱۶۰: عبداللّٰه بن محمد بن اسماء. جويريه بن اسماء. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووې، دَ جنګ خندق په ورځ حضورؐ اوفرمائيل، تاسو كښې دې هر څوك دَ مازيګر مونځ چه بني قريظه ته اورسي، نو اودې كړي. خو دَ مانځه وخت لار كښې راغې. څهٔ خلقو اووې، مونږ چه هلته اورسيږو، نو مونځ به كوو او بعضو اووې، چه مونږ خو نې كوو، ځكه چه دَ حضورؐ مطلب دا نهٔ وو، چه مونځ دې قضا كړې شي[1]، حضورؐ ته چه دا واقعه بيان كړې شوه، نو حضورؐ چا ته هيڅ اونهٔ وې.

[1] يعني دا مطلب نې نه وو چه كه چرې په لاره كښې د مونځ وخت شي نو هم نې مه كوئ. بلكه صرف بني قريظه ته رسيدلو كښې تلوار كول مطلوب وُو.

۱۶۱: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ وَحَدَّثَنِي خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي عَنْ أَنَسٍؓ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ يَجْعَلُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۱۶۱: عبداللّٰه بن ابي الاسود. معتمر بن سليمان (دويم سند) امام بخاري. خليفه بن خياط. معتمر بن سليمان. هغه دَ خپل نيكهٔ (دادا) نه او هغه دَ حضرت انسؓ نه روايت كوي، چه انصارو به دَ قجورو وُنې حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دَ هديې په طور

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّخَلَاتِ حَتّٰى افْتَتَحَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيْرَ وَ اِنَّ اَهْلِيْ اَمَرُوْنِيْ اَنْ اٰتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَسْاَلَهُ الَّذِيْنَ كَانُوْا اَعْطَوْهُ اَوْ بَعْضَهُ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَعْطَاهُ اُمَّ اَيْمَنَ فَجَآءَتْ اُمُّ اَيْمَنَ فَجَعَلَتِ الثَّوْبَ فِيْ عُنُقِيْ تَقُوْلُ كَلَّا وَالَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ لَا يُعْطِيْكَهُمْ وَقَدْ اَعْطَانِيْهَا اَوْ كَمَا قَالَتْ وَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَكِ كَذَا وَ تَقُوْلُ كَلَّا وَاللّٰهِ حَتّٰى اَعْطَاهَا حَسِبْتُ اَنَّهُ قَالَ عَشَرَةَ اَمْثَالِهِ اَوْ كَمَا قَالَ.

پيش كولے؛ آخر اللّٰه حضورؐ ته په بني قريظه او بني نضير (يهوديانو) فتح ورکړله. حضرت انس وائي، خما کور والو زهٔ ذ حضورؐ خدمت کښ اوليږلم، چه زهٔ ترے هغه اُونے واپس اوغواړم، چه حضورؐ ته په طور ذ تحفے ورکړے شوے وے. حضورؐ هغه اُونے اُم ايمن ته ورکړے وے. دے کښ هغه راغله، او خما په گردن کښ ئے کپړه واچوله، وئيلے، قسم په هغه خدائے چه حقيقي معبود دے، دا اُونے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ماله راکړے دي، اوس تاته واپس نشي درکيدے، يا دغسے ئے څهٔ اووے، او حضورؐ فرمائيل، اُم ايمن، تهٔ دومره اُونے ذ هغے په بدله کښ واخله، خو هغے به هم هغه خپله خبره کوله په خدائے چه زهٔ به ئے ورنهٔ کړم حتي چه حضورؐ اوفرمائيل بنه ذ دے نه لس چنده واخله، يا انس دغسے څهٔ خبره اوکړله.

١٦٢ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا اُمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ يَقُوْلُ نَزَلَ اَهْلُ قُرَيْظَةَ عَلٰى حُكْمِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فَاَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى سَعْدٍ فَاَتٰى عَلٰى حِمَارٍ فَلَمَّا دَنٰى مِنَ الْمَسْجِدِ قَالَ لِلْاَنْصَارِ قُوْمُوْا اِلٰى سَيِّدِكُمْ اَوْ خَيْرِكُمْ فَقَالَ هٰؤُلَآءِ نَزَلُوْا عَلٰى حُكْمِكَ فَقَالَ تَقْتُلُ مُقَاتِلَتَهُمْ وَ تَسْبِيْ ذَرَارِيَّهُمْ قَالَ

١٦٢ : محمد بن بشار. منذر شعبه. سعد بن ابراهيم. ابو امامه. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي، هغهٔ اووے، چه بني قريظه ذ سعد بن معاذؓ په فيصله راضي شو، ذ قلعه نه راکوز شول. رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم سعد راوغبنتلو. هغه په خر سور وو، چه جماعت ته نزدے راغے، نو حضورؐ انصاروته اوفرمائيل، خپل سردار ذ پاره پاسئے. يا دائے اوفرمائيل، چه هغهٔ ته پاسئے چه تاسو ټولو کښ بهتر دے. بيا حضورؐ سعد ته اوفرمائيل، چه بني قريظه ستا په فيصله راضي شو، ذ قلعه نه راکوز شوے دي. هغهٔ عرض اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، کوم چه دوي کښ ذ جنګ قابل دي، هغه دے قتل کړے شي، او ښځے او بچي دے قيديان کړے شي. حضورؐ ورته

قَضَيْتَ بِحُكْمِ اللّٰهِ وَ رُبَّمَا قَالَ بِحُكْمِ الْمَلِكِ.

اوفرمائيل' چه تا دَ خدائے دَ حکم مطابق فيصله اوکړله يا دَ بادشاه دَ مرضي مطابق.

۱۶۳ : حَدَّثَنَا زَكَرِيَّآءُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ اُصِيْبَ سَعْدٌ يَوْمَ الْخَنْدَقِ رَمَاهُ رَجُلٌ مِّنْ قُرَيْشٍ يُّقَالُ لَهُ حِبَّانُ بْنُ الْعَرِقَةِ رَمَاهُ فِي الْاَكْحَلِ فَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْمَةً فِي الْمَسْجِدِ لِيَعُوْدَهُ مِنْ قَرِيْبٍ فَلَمَّا رَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْخَنْدَقِ وَ وَضَعَ السِّلَاحَ وَاغْتَسَلَ فَاَتَاهُ جِبْرِيْلُ وَهُوَ يَنْفُضُ رَاْسَهُ مِنَ الْغُبَارِ فَقَالَ قَدْ وَضَعْتَ السِّلَاحَ وَاللّٰهِ مَا وَضَعْتُهُ اخْرُجْ اِلَيْهِمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَيْنَ فَاَشَارَ اِلٰى بَنِيْ قُرَيْظَةَ فَاَتَاهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلُوْا عَلٰى حُكْمِهٖ فَرَدَّ الْحُكْمَ اِلٰى سَعْدٍ قَالَ فَاِنِّيْ اَحْكُمُ فِيْهِمْ اَنْ تُقْتَلَ الْمُقَاتِلَةُ وَ اَنْ تُسْبَى النِّسَآءُ وَالذُّرِّيَّةُ وَ اَنْ تُقْسَمَ اَمْوَالُهُمْ قَالَ هِشَامٌ فَاَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ سَعْدًا قَالَ اللّٰهُمَّ اِنَّكَ تَعْلَمُ اَنَّهُ لَيْسَ اَحَدٌ اَحَبَّ اِلَيَّ اَنْ اُجَاهِدَهُمْ فِيْكَ مِنْ

۱۶۳ : زکریا بن يحيٰي. عبدالله بن نمير. هشام بن عروه. دَ خپل پلار نه' هغه دَ بي بي عائشےؓ نه روايت کوي' هغے اوفرمائيل' چه سعد جنګ خندق کښې حبان بن عرفه په غشي اوويشتلو' چه هفت اندام رګ ئے اولګيدلو (هفت اندام: دَ وجود اوه آندامونه چه هغه (۱) سر (۲) سينه (۳) خيټه (۴، ۵) دوه لاس (۶، ۷) او دوه پښے دے. دَ يو رګ نوم چه دَ هغۀ په پز وهلو سره دَ دے پاس بيان شوي اوو اندامونونه خرابه وينه ويستے شي' حضورؐ هغۀ دَ پاره جمات کښې يوه خيمه اولږوله' چه هغه دَ خيال لاندے ساتي. بيا حضورؐ دَ جنګ خندق نه واپس راغے' وَسله ئے کوزه کړه' غسل ئے اوکړلو. دے کښې حضرت جبرائيلؑ راغے' دَ خپل سر نه ئے ګرد و غبار لرے کولو' هغۀ عرض اوکۀ' يا رسول اللّٰه' تاسو وسله کوزه کړه' قسم په خدائے ما خو اوسه پورے نۀ ده کوزه کړے' خه چه بني قريظه طرف ته!' خو' نو حضورؐ ورغلو' او بني قريظه ئے ګيره کښې واخستل. آخر دَ حضورؐ په فيصله راضي شو' دَ قلعه نه راکوز شو' حضورؐ اوفرمائيل' سعد چه څۀ فيصله اوکړي' هغه منظوره کړئے. بيا سعد راغے' او هغۀ اووے' زۀ دا فيصله کوم' چه څوک دَ جنګ قابل (يهوديان) دي' هغوي دے قتل کړے شي' او بچي او ښځے دے قيدي کړے شي' هغوي دے وينزے غلامان جوړ کړے شي' او دَ هغوي مال دے په مسلمانانو تقسيم کړے شي. هشام وائي' خما پلار ماته اووے' چه سعد د زخمي کيدونه پس دُعا اوکړله' اے اللّٰه' ته ښۀ پوهيږے'

قَوْمٍ كَذَّبُوْا رَسُوْلَكَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَخْرَجُوْهُ اَللّٰهُمَّ فَاِنِّيْ اَظُنُّ اَنَّكَ قَدْ وَضَعْتَ الْحَرْبَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَهُمْ فَاِنْ كَانَ بَقِيَ مِنْ حَرْبِ قُرَيْشٍ شَيْءٌ فَاَبْقِنِيْ لَهُ حَتّٰى اُجَاهِدَهُمْ فِيْكَ وَ اِنْ كُنْتَ وَضَعْتَ الْحَرْبَ فَافْجُرْهَا وَاجْعَلْ مَوْتَتِيْ فِيْهَا فَانْفَجَرَتْ مِنْ لَبَّتِهٖ فَلَمْ يَرُعْهُمْ وَ فِي الْمَسْجِدِ خَيْمَةٌ مِّنْ بَنِيْ غِفَارٍ اِلَّا الدَّمُ يَسِيْلُ اِلَيْهِمْ فَقَالُوْا يَا اَهْلَ الْخَيْمَةِ مَا هٰذَا الَّذِيْ يَاْتِيْنَا مِنْ قِبَلِكُمْ فَاِذَا سَعْدٌ يَغْذُوْ جُرْحُهٗ دَمًا فَمَاتَ مِنْهَا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

ماته كوم قوم سره او خصوصاً دے قوم سره چه دوي ستا رسول دروغجن اوګڼړلو' او د مكے نه ئے اوښكلو' دوي سره د جنګ كولو نه هيڅ څيز زيات محبوب نه دے. اے اللّٰه' زهٔ پوهيږم' چه تا خمونږ او د هغوي مينځ كښې جنګ ختم كه. بيا هم كه څهٔ جنګ باقي وي' نو ما ژوندے لرے' چه ستا لار كښې زهٔ هغوي سره جهاد او كړم. او كه ستا د طرف نه د جنګ سلسله بنده شوے وي' نو بيا خما زخم جاري كړے' چه زهٔ هم دے كښې شهيد شمه' نو د هغهٔ د سينے نه وينه جاري[۲] شوه' چه د خيمے نه په بهيدو بهيدو سره جمات ته راتله' خلق اويريدل' او بني غفار نه ئے تپوس اوكهٔ' چه دا ستاسو د خيمے نه څهٔ څيز رابهيږي' چه وے كتل نو د سعدؓ د زخم نه وينه بهيدله آخر هغه دے كښې وفات شولو.

١. مدينے ته هجرت كولو نه پس حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم د يهرديانو مختلفو قبائلو او خواؤشا نورو د عربو مشركو قبيلو سره د صلحے او اَمن لوظنامه كړے وه ليكن يهوديان همغه شان د اسلام خلاف سازشونو كښے لګيا وو. پټ په پټه خو به هسے هم د هغوئ د طرفنه د لوظنامے خلاف ورزي كيدله ليكن د غزوه خندق په موقع باندے كومه چه انتهائي فيصله كن غزا وه' كله چه په هغے كښے مشركانو شكست اوخوړو نو پاك حضرتؐ فرمائيلي وو چه اوس به چرے هم دوئ په مونږ باندے د حملے كولو جرأت اونه كړے شي په دغه غزا كښے خاص طور سره بنو قريظه ؤ بنه په ډاګه د قريشو ملګرتيا كړے وه او د لوظنامے خلاف ورزي ئے كړے وه. په دے وجه د غزوه خندق نه فورًا پس د اللّٰه تعالٰي حكم راغے چه دوئ ته اوس مهلت ملاويدل نه دي پكار.

٢. په يو روايت كښے دي چه سعد بن معاذ رضي اللّٰه عنه ملاست وو. ناڅاپه يوه چيلئ راغله او هغے د هغوئ په سينه باندے خپله نوكه كيښوده چه هغے سره د هغوئ زخم بيا تازه شوه.

١٦٣ : حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَدِيٌّ اَنَّهٗ سَمِعَ الْبَرَآءَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَسَّانَ اهْجُهُمْ اَوْ هَاجِهِمْ وَ جِبْرِيْلُ مَعَكَ وَ

١٦٣ : حجاج بن منهال. شعبه. عدي بن ثابت. حضرت براء بن عازب نه روايت كوي' چه ما واوريدل' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم حسان بن ثابت ته فرمائيل' د مشركانو هجوه كوه' جبرائيلؑ ستا مدد كوي. (دوئيم سند)

زَادَ إِبْرٰهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ قُرَيْظَةَ لِحَسَّانَ بْنَ ثَابِتٍ اهْجُ الْمُشْرِكِيْنَ فَإِنَّ جِبْرِيْلَ مَعَكَ.

ابراهيم بن طهمان، شيباني، عدي بن ثابت ذ حضرت براء بن عازب نه دومره خبره زياته اوکړه، چه حضور اکرم صلي الله عليه وسلّ ذ بني قريظه په ورځ حسان بن ثابت ته داسے اوفرمائيل: چه ذ مشرکانو هجوه کوه، جبرئيلً ستا مدد ذ پاره موجود دے.

## باب ۳۲: غَزْوَةِ ذَاتِ الرِّقَاعِ وَ هِيَ غَزْوَةُ مُحَارِبِ خَصَفَةَ مِنْ بَنِيْ ثَعْلَبَةَ مِنْ غَطَفَانَ فَنَزَلَ نَخْلًا وَ هِيَ بَعْدَ خَيْبَرَ لِأَنَّ أَبَا مُوْسٰى جَآءَ بَعْدَ خَيْبَرَ

## بـاب ۳۲: ذ غـزوه ذات الـرقـاع بيـان.

دا جنګ قبيلهٔ محارب سره اوشولو، چه ذ خصفه اولاد وو. او خصفه ذ ثعلبه ذ اولاد نه وو، چه ذ قبيله غطفان يو شاخ دے. جنګ کښې حضور صلي الله عليه وسلّم نخلستان کښې کوز شوے وو. دا غزا ذ جنګ خيبر نه ورستو اوشوه، ځکه چه ابو موسي ذ خيبر نه پس حبش نه راغلے وو.

وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَآءٍ أَخْبَرَنَا عِمْرَانُ الْعَطَّارُ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِأَصْحَابِهِ فِي الْخَوْفِ فِيْ غَزْوَةِ السَّابِعَةِ غَزْوَةِ ذَاتِ الرِّقَاعِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَوْفَ بِذِيْ قَرَدٍ وَ قَالَ بَكْرُ بْنُ سَوَادَةَ حَدَّثَنِيْ زِيَادُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ أَبِيْ مُوْسٰى أَنَّ جَابِرًا حَدَّثَهُمْ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهِمْ يَوْمَ مُحَارِبٍ وَ ثَعْلَبَةَ وَ قَالَ ابْنُ إِسْحٰقَ سَمِعْتُ وَهْبَ بْنَ كَيْسَانَ سَمِعْتُ جَابِرًا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى ذَاتِ الرِّقَاعِ مِنْ نَخْلٍ فَلَقِيَ جَمْعًا مِّنْ

او عبدالله بن رجاء اووے مونږ ته عمران، هغهٔ ته يحيٰي بن کثير، هغهٔ ته ابو سلمه، هغه ذ جابر بن عبدالله نه بيان کوي، چه حضور صلي الله عليه وسلّم صحابه ؤ ته ذ خوف مونځ ذي قرد کښې ورکړلو. بکر بن سواده اووے، ماته زياده بن نافع، هغه ذ ابو موسي نه، هغه ذ جابر نه بيان کوي، حضور صلي الله عليه وسلّم ذ محارب او ثعلبه جنګ کښې ذ خوف مونځ ورکړلو، ابن اسحاق وهب بن کيسان نه، هغه ذ حضرت جابرؓ نه روايت کوي چه حضور صلي الله عليه وسلّم ذ نخل نه ذ ذات الرقاع جنګ ته لاړلو. هلته غطفان سره يو ځائے شولو، خو جنګ اونهٔ

غَطَفَانَ فَلَمْ يَكُنْ قِتَالٌ وَّ اَخَافَ النَّاسُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا فَصَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيِ الْخَوْفِ وَ قَالَ يَزِيْدُ عَنْ سَلَمَةَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْقَرَدِ.

شول. هر يو به بل يرول. دغه وخت حضورؐ د خوف مونځ وركړلو. يزيد بن ابي عبيد د سلمه بن اكوع نه اوري، چه زهٔ حضور صلي الله عليه وسلم سره د قرد په ورځ جنګ كښې شريک شولم.

۱۶۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰىؓ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزَاةٍ وَّ نَحْنُ سِتَّةُ نَفَرٍ بَيْنَنَا بَعِيْرٌ نَعْتَقِبُهٗ فَنَقِبَتْ اَقْدَامُنَا وَ نَقِبَتْ قَدَمَايَ وَ سَقَطَتْ اَظْفَارِيْ وَ كُنَّا نَلُفُّ عَلٰى اَرْجُلِنَا الْخِرَقَ فَسُمِّيَتْ غَزْوَةَ ذَاتِ الرِّقَاعِ لِمَا كُنَّا نَعْصِبُ مِنَ الْخِرَقِ عَلٰى اَرْجُلِنَا وَ حَدَّثَ اَبُوْ مُوْسٰى بِهٰذَا ثُمَّ كَرِهَ ذَاكَ قَالَ مَا كُنْتُ اَصْنَعُ بِاَنْ اَذْكُرَهٗ كَاَنَّهٗ كَرِهَ اَنْ يَّكُوْنَ شَيْءٌ مِّنْ عَمَلِهٖ اَفْشَاهُ.

۱۶۵: محمد بن علاء. ابو اسامه. يزيد بن عبدالله د خپل نيكهٔ (دادا) ابو برده نه هغه د ابو موسي اشعريؓ نه روايت كوي، مونږ شپږ سري رسول الله صلي الله عليه وسلم سره د يو جنګ د پاره اووتلو. مونږ ټولو سره صرف يو اُوښ وو، په وار وار به پرې سوريدلو، په تلو تلو مو پښې اوچاؤدې. خما هم پښې اوچاودې او نوكونه م پريوتل نو په خپلو پښو مو د زړو كپړو چيرې اوتړلې (يعني چيرې مو ترې راچاپيره كړې) په دې وجه دې جنګ ته ذات الرقاع وئيلې شي، يعني چيرو واله جنګ چه په پښو ئې چيرې تړلې وې. ابو موسي خو دا حديث بيان كړلو، خو هغهٔ ته د دې بيانول ښهٔ معلوم نهٔ شو، هغهٔ وئيلې، زهٔ نهٔ خوښوم، چه د خپلو اعمالو نه څهٔ ظاهر كړم.

۱۶۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ رُوْمَانَ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَمَّنْ شَهِدَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ ذَاتِ الرِّقَاعِ صَلّٰى صَلٰوةَ الْخَوْفِ اَنَّ طَآئِفَةً صَفَّتْ مَعَهٗ وَ طَآئِفَةٌ وِّجَاهَ

۱۶۶: قتيبه بن سعيد. امام مالک. يزيد بن رومان. صالح بن خوات نه روايت كوي، چه ذات الرقاع حضور صلي الله عليه وسلم سره حاضر وو، چه صلٰوة خوف د پاره يوې ډلې حضور اكرم صلي الله عليه وسلم سره صف اوتړلو، او يوه ډله د دشمن مقابله كښې موجود پاتې شوه. حضورؐ دغې ډلې له يو ركعت مونځ وركړلو

الْعَدُوِّ فَصَلّٰى بِالَّتِيْ مَعَهٗ رَكْعَةً ثُمَّ ثَبَتَ قَآئِمًا وَّ اَتَمُّوْا لِاَنْفُسِهِمْ ثُمَّ انْصَرَفُوْا فَصَفُّوْا وُجَاهَ الْعَدُوِّ وَ جَآءَتِ الطَّآئِفَةُ الْاُخْرٰى فَصَلّٰى بِهِمُ الرَّكْعَةَ الَّتِيْ بَقِيَتْ مِنْ صَلٰوتِهٖ ثُمَّ ثَبَتَ جَالِسًا وَّ اَتَمُّوْا لِاَنْفُسِهِمْ ثُمَّ سَلَّمَ بِهِمْ وَ قَالَ مُعَاذٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِي الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَخْلٍ فَذَكَرَ صَلٰوةَ الْخَوْفِ قَالَ مَالِكٌ وَّ ذٰلِكَ اَحْسَنُ مَا سَمِعْتُ فِيْ صَلٰوةِ الْخَوْفِ تَابَعَهُ اللَّيْثُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ اَنَّ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ حَدَّثَهٗ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ بَنِيْ اَنْمَارٍ.

بیا خاموش او دریدلو، مقتدیانو خپل دوئم رکعت پوره کړ، واپس لاړل، او د دشمن مقابلې ته اودریدل. بیا دویمه ډله راغله، حضورؐ هغې ډلې ته هم یو رکعت مونځ ورکړلو. بیا خاموش ناست وو، مقتدیانو یو رکعت خپله پوره کړ. بیا حضورؐ هغوي سره سلام اوګرځولو، معاذ بن هشام اووې، مونږ ته هشام دستوائي، هغه د ابي الزبير نه، هغه د جابرؓ نه روایت کوي، چه مونږ نخل کښې حضور صلي الله علیه وسلّم سره وو، بیانې د صلوةِ خوف ذکر اوکړ، خنګه چه مخکښې تیر شولو. امام مالکؒ اوفرمائیل، د صلوٰة الخوف د ټولو نه ښه دغه روایت ما آوریدلې دې، معاذ بن هشام سره دا حدیث لیث بن سعد، هغه د زید بن اسلم نه، هغه د قاسم بن محمد نه روایت اوکړ، چه رسول اکرم صلي الله علیه وسلّم د خوف مونځ بني انمار کښې اوکړلو.

۱٦٧: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيْدِ الْقَطَّانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدِ الْاَنْصَارِيِّ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ اَبِيْ حَثْمَةَ قَالَ يَقُوْمُ الْاِمَامُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ وَ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ مَعَهٗ وَ طَآئِفَةٌ مِّنْ قِبَلِ الْعَدُوِّ وُجُوْهُهُمْ اِلَى الْعَدُوِّ فَيُصَلِّيْ بِالَّذِيْنَ مَعَهٗ رَكْعَةً ثُمَّ يَقُوْمُوْنَ فَيَرْكَعُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً وَّ يَسْجُدُوْنَ سَجْدَتَيْنِ فِيْ مَكَانِهِمْ ثُمَّ يَذْهَبُ

۱٦٧: مسدد. یحیي بن سعید قطان. یحیي بن سعید انصاري. قاسم بن محمد. صالح بن خوات. سهل بن ابي حثمهؓ نه روایت کوي، هغه اووې، د صلوٰة خوف طریقه داده، چه امام قبلې ته مخ کړي، او دریږي، او د مسلمانانو یوه ډله امام پسې او یوه ډله د دشمن مقابله کښې اودریږي. کوم خلق چه امام پسې دي، هغوي سره دې امام یو رکعت اوکړي (او خاموش دې اودریږي) مقتدیان دې خپل دوئم رکعت اوکړي او د دشمن مقابلې له دې لاړ شي. بیا دې هغه خلق راشي، او امام دې یو رکعت هغوي سره اوکړي. اوس د امام دوه رکعاته

هٰـــؤُلَآءِ اِلٰى مَقَامِ اُولٰٓئِكَ فَيَرْكَعُ بِهِمْ رَكْعَةً فَلَـهُ ثِنْتَـانِ ثُمَّ يَرْكَعُوْنَ وَ يَسْجُدُوْنَ سَجْدَتَيْنِ.

شـو، مـقـتـديـان دے خپـل ركـعـت دوو سـجـدو سـره اوكـري، بيـا دے امـام او دا ټـول يوځـائـے سـلام اوكړي.

١٦٨ : حَـدَّثَـنَـا مُسَـدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ اَبِيْ حَثْمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

١٦٨ : مسـدد. يـحـيـى. شعـبـه. عـبـدالـرحمٰن. قـاسـم بـن مـحـمـد. صـالـح بـن خوات. حـضـرت سهـل بـن ابـي حثـمـه‌ؓ. هـغـه ذ حـضـور صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم نـه دغسـے حـديـث بيانوي.

١٦٩ : حَـدَّثَـنِـيْ مُـحَـمَّدُ بْنُ عُبَيْـدِ اللّٰـهِ قَـالَ حَـدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ حَـازِمٍ عَنْ يَّحْيٰـى سَمِعَ الْقَاسِمَ اَخْبَـرَنِـيْ صَالِحُ بْنُ خَوَّاتٍ عَنْ سَهْلٍ حَدَّثَهُ قَوْلَهُ.

١٦٩ : مـحـمـد بـن عبـيـداللّٰـه. ابن ابـي حـازم. يـحـيـى. قـاسـم بـن مـحـمـد. صـالـح بـن خـوات. حـضـرت سهـل نـه روايت كـوي، چـه سهـل مـاتـه خپـل قـول، چـه ذ هـغـهٔ مخكـښ ذكـر شـوے دے، بيان كهٔ.

١٧٠ : حَـدَّثَـنَـا اَبُـو الْيَـمَـانِ اَخْبَـرَنَـا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَـالَ اَخْبَـرَنِـيْ سَـالِمٌ اَنَّ ابْنَ عُمَـرَؓ قَـالَ غَزَوْتُ مَـعَ رَسُـوْلِ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ فَوَازَيْنَا الْعَدُوَّ فَصَافَفْنَا لَهُمْ.

١٧٠ : ابـو الـيـمـان. شـعـيـب. زهـري. سـالـم. حـضـرت عـبـداللّٰـه بـن عـمـرؓ نـه روايـت كـوي، هغهٔ اووے، ذ نـجـد جـهـاد كـښ زهٔ رسـول اكـرم صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم سـره مـلـگـرے ووم. مـونـږ خلق ذ دشـمـن مـقـابـل كـښ اودريـدو، او صـفـونـه مـو اوتړل.

١٧١ : حَـدَّثَـنَـا مُسَـدَّدٌ حَدَّثَنَا يَـزِيْـدُ بْـنُ زُرَيْـعٍ حَـدَّثَـنَـا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَـرَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِاِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ وَالطَّآئِفَةُ الْاُخْرٰى مُوَاجِهَةُ الْعَدُوِّ ثُمَّ انْصَرَفُوْا فَقَامُوْا فِيْ مَقَامِ

١٧١ : مسـدد. يـزيـد بـن زريـع. مـعـمـر. زهـري. سـالـم بـن عـبـداللّٰـهؒ. عـبـداللّٰـه بـن عـمـرؓ حـضـرت عـمـرؓ نـه روايـت كـوي، چـه حضور اكـرم صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلـم يوے ډلے تـه مونځ وركړلو، او بـلـه ډلـه ذ دشـمـن مـقـابـل‌ته ټـهـاتـے شـوه. كـوم وخـت چـه هـغـوي ذ خـپـلـو مـلـگـرو خـائـے تـه لاړل، نـو بـلـه ډلـه راغـلـه، حـضـورؐ هـغـوي تـه هـم

اَصْحَابِهِمْ فَجَآءَ اُولٰٓئِكَ فَصَلّٰى بِهِمْ رَكْعَةً ثُمَّ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثُمَّ قَامَ هٰٓؤُلَآءِ فَقَضَوْا رَكْعَتَهُمْ وَ قَامَ هٰٓؤُلَآءِ فَقَضَوْا رَكْعَتَهُمْ.

يو ركعت مونځ وركړلو. او بيائے تولو سره سلام او كړخولو. هغوي اودريدل او خپل يو ركعت ئے مكمل او تمام كړلو.

۱۷۲۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سِنَانٌ وَّ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ جَابِرًا اَخْبَرَ اَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ.

۱۷۲۲: ابواليمان. شعيب. زهري. سنان. ابو سلمه. حضرت جابرؓ نه روايت كوي: هغه فرمائي مونږ حضور صلي اللّه عليه وسلّم سره نجد طرف ته جهاد له تلي وو.

۱۷۲۳: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سِنَانِ ابْنِ اَبِيْ سِنَانِ الدُّؤَلِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ فَلَمَّا قَفَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَفَلَ مَعَهُ فَاَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِيْ وَادٍ كَثِيْرِ الْعِضَاهِ فَنَزَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ تَفَرَّقَ النَّاسُ فِي الْعِضَاهِ يَسْتَظِلُّوْنَ بِالشَّجَرِ وَ نَزَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ سَمُرَةٍ فَعَلَّقَ بِهَا سَيْفَهُ قَالَ جَابِرٌ فَنِمْنَا نَوْمَةً ثُمَّ اِذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْنَا فَجِئْنَاهُ فَاِذَا عِنْدَهُ اَعْرَابِيٌّ جَالِسٌ فَقَالَ رَسُوْلُ

۱۷۲۳: اسماعيل. ذ هغه ورور. سليمان. محمد بن ابي عتيق. ابن شهاب. سنان بن ابي سنان الدؤلي. حضرت جابر هغه ته اوويے مونږ رسول اكرم صلي اللّه عليه وسلّم سره نجد كښ جهاد او كړ. بيا چه حضور صلي اللّه عليه وسلّم واپس تشريف راوړلو، نو زهٔ هم حضورؐ سره واپس راغلم، بيا يو داسے ځنګل كښ رابانديے غرمه راغله، چه هغے كښ ډير آزغي وو، حضور صلي اللّه عليه وسلّم هلته كوز شولو، او خلقو ځنګل كښ اُونے تلاش كولے. حضور صلي اللّه عليه وسلّم ذ يوے كوړے اُونے لاندے آرام كولو. او توره ئے هغے اُونه كښ اويزانده كړه. حضرت جابرؓ وائي، اُوس لا ذ اودهٔ كيدو لږ ساعت شوے وو، چه حضورؐ مونږ ته نعرے كړے. مونږ حضورؐ له ورغلو، چه يو ديهاتي (اعرابي يعني بانډيسے) حضور صلي اللّه عليه وسلّم سره ناست دے. حضورؐ اوفرمائيل، زهٔ اُودهٔ ووم، او دهٔ ذ اُودو په

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ هٰذَا
اخْتَرَطَ سَيْفِيْ وَ اَنَا نَآئِمٌ فَاسْتَيْقَظْتُ
وَهُوَ فِيْ يَدِهٖ صَلْتًا فَقَالَ لِيْ مَنْ
يَمْنَعُكَ مِنِّيْ قُلْتُ اللّٰهُ فَهَا هُوَ ذَا
جَالِسٌ ثُمَّ لَمْ يُعَاقِبْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ اَبَانُ
حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ
سَلَمَةَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَاتِ
الرِّقَاعِ فَاِذَا اَتَيْنَا عَلٰى شَجَرَةٍ ظَلِيْلَةٍ
تَرَكْنَاهَا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَجَآءَ رَجُلٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَ
سَيْفُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
مُعَلَّقٌ بِالشَّجَرَةِ فَاخْتَرَطَهُ فَقَالَ
تَخَافُنِيْ قَالَ لَا قَالَ فَمَنْ يَّمْنَعُكَ مِنِّيْ
قَالَ اللّٰهُ فَتَهَدَّدَهُ اَصْحَابُ النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُقِيْمَتِ
الصَّلٰوةُ فَصَلّٰى بِطَآئِفَةٍ رَّكْعَتَيْنِ ثُمَّ
تَاَخَّرُوْا وَ صَلّٰى بِالطَّآئِفَةِ الْاُخْرٰى
رَكْعَتَيْنِ وَ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْبَعٌ وَّ لِلْقَوْمِ رَكْعَتَيْنِ
وَ قَالَ مُسَدَّدٌ عَنْ اَبِيْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ
بِشْرٍ اسْمُ الرَّجُلِ غَوْرَثُ بْنُ الْحَارِثِ
وَ قَاتَلَ فِيْهَا مُحَارِبَ خَصَفَةَ وَ قَالَ اَبُو
الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَخْلٍ فَصَلّٰى

حالت کښې په ما توره راوښکله. زۀ هغه وخت
راپاسیدم، نو دۀ اوویے، اوس به تا مانه څوک بچ
کوي. ما جواب ورکړ، اللّٰه، دیهاتي حضورؐ سره
ناست وو، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم هغۀ له هیڅ
سزا ورنۀ کړله او دا واقعه ئے بیانوله. ابان وائي مونږ
ته یحیٰي بن کثیر. هغۀ ته حضرت جابرؓ اوویے،
جنګ ذات الرقاع کښې مونږ حضور صلي اللّٰه
علیه وسلّم سره وو، کله چه یوه سایه داره اُونه به
مونږ موندله، نو هغه به مونږ حضورؐ دَ پاره پریښودله.
یو مشرک دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اُونه
کښې آویزانده توره راښکله. او حضورؐ ته ئے ونیلے،
تۀ مانه یریږے، که نه. حضورؐ جواب ورکۀ، نه. هغۀ
ورته اوویے، نن به تا مانه څوک خلاصوي، حضورؐ
ورته اوفرمائیل، اللّٰه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه
وسلّم اصحابوؓ هغه اُورټلو او دهمکي ئے ورکړله.
بیا حضورؐ یو جماعت سره دوه رکعاته اوکړل. بیا
هغوي اخوا شو (دَ دشمن مقابلے له ورغلل) او
حضورؐ بل جماعت ته دوه رکعاته مونځ ورکۀ! دَ
حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم څلور رکعاته شو،
دوه فرض، دوه نفل، او دَ خلقو دوه، دوه رکعاته
شو. مسدد وائي، چه ابو عوانه ابو بشر دَ هغے
مشرک نوم غورث بن حارث ښودلے دے.
حضورؐ دا جنګ دَ محارب خصفه خلقو
سره کړے وو. ابو الزبیر دَ جابر نه وائي
مونږ حضورؐ سره نخل کښې وو. حضورؐ
دَ خوف مونځ اوکړلو، ابوهریرهؓ وائي،

الْخَوْفَ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ نَجْدٍ صَلٰوةَ الْخَوْفِ وَ اِنَّمَا جَآءَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيَّامَ خَيْبَرَ.

ما نجد كښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره د نجد په جهاد كښې د خوف مونځ اوكړلو، حالانكه ابوهريرهؓ د خيبر په ورځو كښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغلے وو.

١. دے روايت سره د امام شافعي رحمة الله عليه ددے مسلک تائيد كيږي چه فرض مونځ د نفل مونځ كونكي امام په اقتداء كښې كيدلے شي. ولے چه د مجاهدينو دا جماعت په سفر كښې وو او په سفر كښې څلور ركعته فرض مونځ صرف دوه ركعته پاتے كيږي. د روايت نه دا معلوميږي چه فرض مونځ صرف دوه ركعته وو، پاک حضرتّ څلور ركعته اوكړل كومو كښې چه دوه ركعته يقيناً نفل وو او فرض مونځ كونكي صحابهٴ راغلل په دے كښې ئے د حضورٌ اقتداء اوكړه. ليكن احنافو محدّثينو ليكلي دي چه ددے روايت تعلق هم د همغے واقعے سره دے كومه چه د سهل بن ابي حثمه رضي الله عنه په روايت كښې بيانه شوه، ليكن راوي د واقعاتو بيانولو كښې ډيرے خبرے نظر انداز كوي هم. چونكه پاک حضرتّ رومبي جماعت د پاره انتظار اوكړو او كله چه دغه جماعت خپل مونځ پوره كړو او لاړو نو حضورٌ دويم جماعت ته يو ركعت مونځ وركړو او هغوئ سره ئے سلام اوګرځولو، په دے وجه راوي پاک حضرت صلي اللّٰه عليه وسلّم طرفته د څلورو ركعتونو نسبت اوكړو، ولے چه هر كله دواړو جماعتونو مجموعي طور سره څلور ركعته پوره كړل نو هله حضورٌ سلام اوګرځولو. د سهل رضي الله عنه په روايت كښې حديث دغه شان بيان شوے دے.

بَابُ ۳۳: غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ مِنْ خُزَاعَةَ وَهِيَ غَزْوَةُ الْمُرَيْسِيْعِ قَالَ ابْنُ اِسْحٰقَ وَ ذٰلِكَ سَنَةَ سِتٍّ وَ قَالَ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ سَنَةَ اَرْبَعٍ وَ قَالَ نُعْمَانُ بْنُ رَاشِدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ كَانَ حَدِيْثُ الْاِفْكِ فِيْ غَزْوَةِ الْمُرَيْسِيْعِ.

باب ۳۳: د غزوه بني المصطلق قصه. بني مصطلق خزاعه يو شاخ دے. دے غزا ته مريسيع هم وائي، ابن اسحاق اووے. دا جنګ ۶ ه كښې اوشو. او نعمان بن راشد د زهري نه روايت اوكړ، چه د بي بي عائشےؓ د تهمت واقعه دے جنګ كښې شوے وه.

۱۷۴ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ رَبِيْعَةَ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى ابْنِ حَبَّانَ عَنِ ابْنِ مُحَيْرِيْزٍ

۱۷۴ : قتيبه بن سعيد. اسماعيل بن جعفر. ربيع بن عبدالرحمن. محمد بن يحيي بن حبان. حضرت ابن محيريزؒ نه روايت كوه هغهٔ اووے، ما مسجد نبوي كښې حضرت ابو سعيد خدري اوليدلو،

اَنَّهُ قَالَ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَرَاَيْتُ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ فَجَلَسْتُ اِلَيْهِ فَسَاَلْتُهُ عَنِ الْعَزْلِ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ بَنِيْ الْمُصْطَلِقِ فَاَصَبْنَا سَبْيًا مِّنْ سَبْيِ الْعَرَبِ فَاشْتَهَيْنَا النِّسَآءَ وَاشْتَدَّتْ عَلَيْنَا الْعُزْبَةُ وَ اَحْبَبْنَا الْعَزْلَ فَاَرَدْنَا اَنْ نَّعْزِلَ وَ قُلْنَا نَعْزِلُ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَظْهُرِنَا قَبْلَ اَنْ نَّسْاَلَهُ فَسَاَلْنَاهُ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ مَا عَلَيْكُمْ اَنْ لَّا تَفْعَلُوْا مَا مِنْ نَّسَمَةٍ كَآئِنَةٍ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ اِلَّا وَ هِيَ كَآئِنَةٌ.

او هغه نه م ذ عزل مسئله اوپښته، نو هغهٔ اووے، مونږ غزوه بني مصطلق کښې نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره وو. هلته ذ عربو وینزے په لاس راغلے. اخوا مونږ ته ذ ښځو خواهش وو، او بے ښځو اوسیدل مشکل وو. مونږ عزل کول غوښتل، خو ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ موجودګي خیال راتلو سره مونږ ذ حضورؐ په خدمت کښې حاضر شو، او ذ دے مسئلے تپوس مو اوکهٔ، نو حضور اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائیل. عزل نهٔ کولو کښې څهٔ نقصان دے. ذ اللّٰه تعالٰي حکم کښې چه کومه ساه ذ قیامته پورے راتلونکې ده هغه به ضرور راځي یعني کوم نفس چه پیدا کیدونکے دے، هغه به ضرور پیدا کیږي.

**ف:** عزل: ښځے سره کور والے (صحبت) کولو کښې بغیر انزال کیدو (خلاصیدو) نه جدا کیدل.

۱. د عـزل مفهوم دادے چه سړے خپلے بي بي سره کوروالے اوکړي او کله چه د اِنزال وخت نزدے شي نو خاص اندام ترینه راؤباسي، د پاره ددے چه ماشوم ترے پیدا نشي.

۱۷۵ : حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ نَجْدٍ فَلَمَّا اَدْرَكَتْهُ الْقَائِلَةُ وَهُوَ فِيْ وَادٍ كَثِيْرِ الْعِضَاهِ فَنَزَلَ تَحْتَ شَجَرَةٍ وَّاسْتَظَلَّ بِهَا وَ عَلَّقَ سَيْفَهُ فَتَفَرَّقَ النَّاسُ فِي الشَّجَرِ يَسْتَظِلُّوْنَ وَ بَيْنَا نَحْنُ كَذٰلِكَ اِذْ دَعَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۷۵ : محمود. عبدالرزاق. معمر. زهري. ابي سلمه. حضرت جابر بن عبداللّٰه نه روايت کوي، هغهٔ اوفرمائیل، مونږ ذ نجد جنګ کښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره وو. چه ذ غرمے وخت شو، نو حضورؐ ذ يوے سايه دارے اُونے لاندے آرام کولو او توره ئے (اُونه کښې) آويزانده کړه. مونږ خلق هم اخوا ديخوا، ذ اُونو لاندے سوري ذ پاره ګډوډ شو. لږ ساعت پس رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ اوبللو، مونږ ورغلو، او، اومو ليدل، چه يو اعرابي خوا کښې ناست دے. حضورؐ اوفرمائيل

وَسَلَّمَ فَجِئْنَا فَإِذَا أَعْرَابِيٌّ قَاعِدٌ بَيْنَ يَدَيْهِ فَقَالَ إِنَّ هٰذَا أَتَانِيْ وَ أَنَا نَائِمٌ فَاخْتَرَطَ سَيْفِيْ فَاسْتَيْقَظْتُ وَهُوَ قَائِمٌ عَلٰى رَأْسِيْ مُخْتَرِطٌ صَلْتًا قَالَ مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّيْ قُلْتُ اللّٰهُ فَنَامَهُ ثُمَّ قَعَدَ فَهُوَ هٰذَا قَالَ وَلَمْ يُعَاقِبْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دے اعرابي په اُودو كښې په ما توره راوښكله. زهٔ راپاسيدم. نو دے توره راوښكلے خما مخے ته ولاړ وو، او وئيل ئے، او وايه، اوس به دے ما نه څوک بچ كوي. ما جواب وركهٔ، اللّٰه تعالىٰ، بيا توره ئے تيكي كښې كينوده، كيناستلو. گورے دا دے ناست دے. جابر وائي، حضور صلي الله عليه وسلم هغهٔ له هيڅ سزا ورنهٔ كړله.

باب ۳۴: غَــــزْوَةِ أَنْمَارٍ.

باب ۳۴: دَ غزوهٔ بني انمار قصه (دا يو قبيله ده).

١٧٦ : حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ ذِئْبٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سُرَاقَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ أَنْمَارٍ يُصَلِّيْ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ مُتَوَجِّهًا قِبَلَ الْمَشْرِقِ مُتَطَوِّعًا.

١٧٦ : آدم بن ابي اياس. ابن ابي وهب. عثمان بن عبداللّٰه بن سراقه. حضرت جابر بن عبداللّٰه انصاري نه روايت كوي، ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم جنگ انمار كښې په سورلي په ناسته قبلے ته مخ كړے نفل مونځ كولو بياندے ليدلے دے.

باب ۳۵: حَدِيْثِ الْإِفْكِ الْإِفْكُ وَالْأَفَكُ بِمَنْزِلَةِ النِّجْسِ وَالنَّجَسِ يُقَالُ إِفْكُهُمْ وَ أَفْكُهُمْ وَ أَفَكُهُمْ.

باب ۳۵: د افک واقعه، يعنـي بي بي عائشے صديقےؓ باند ذ تهمت لږولو بيان. د افک لفظ د نجس او نجس په شان دے. او دے ته اِفکهم وائي.

١٧٧ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ وَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَ عَلْقَمَةُ بْنُ وَقَّاصٍ وَّ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ

١٧٧ : عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. صالح بن كيسان. ابن شهاب نه روايت كوي، هغهٔ اوريے، ماته عروه بن زبير، سعيد بن مسيب، علقمه بن وقاص، عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه بن مسعود حديث بيان كه، چه دے څلورو واړو د بي بي عائشے (ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ

النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَالَ لَهَا اَهْلُ الْإِفْكِ مَا قَالُوْا وَ كُلُّهُمْ حَدَّثَنِيْ طَائِفَةً مِّنْ حَدِيْثِهَا وَ بَعْضُهُمْ كَانَ اَوْعٰى لِحَدِيْثِهَا مِنْ بَعْضٍ وَّ اَثْبَتَ لَهٗ اقْتِصَاصًا وَّقَدْ وَعَيْتُ عَنْ كُلِّ رَجُلٍ مِّنْهُمُ الْحَدِيْثَ الَّذِيْ حَدَّثَنِيْ عَنْ عَائِشَةَ وَ بَعْضُ حَدِيْثِهِمْ يُصَدِّقُ بَعْضًا وَّ اِنْ كَانَ بَعْضُهُمْ اَوْعٰى لَهٗ مِنْ بَعْضٍ قَالُوْا قَالَتْ عَائِشَةُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَرَادَ سَفَرًا اَقْرَعَ بَيْنَ اَزْوَاجِهٖ فَاَيَّتُهُنَّ خَرَجَ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهٗ قَالَتْ عَائِشَةُ فَاَقْرَعَ بَيْنَنَا فِيْ غَزْوَةٍ غَزَاهَا فَخَرَجَ فِيْهَا سَهْمِيْ فَخَرَجْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا اُنْزِلَ الْحِجَابُ فَكُنْتُ اُحْمَلُ فِيْ هَوْدَجِيْ وَ اُنْزَلُ فِيْهِ فَسِرْنَا حَتّٰى اِذَا فَرَغَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَتِهٖ وَ قَفَلَ دَنَوْنَا مِنَ الْمَدِيْنَةِ قَافِلِيْنَ اٰذَنَ لَيْلَةً بِالرَّحِيْلِ فَقُمْتُ حِيْنَ اٰذَنُوْا بِالرَّحِيْلِ فَمَشَيْتُ حَتّٰى جَاوَزْتُ الْجَيْشَ فَلَمَّا قَضَيْتُ شَاْنِيْ اَقْبَلْتُ اِلٰى رَحْلِيْ فَلَمَسْتُ صَدْرِيْ فَاِذَا عِقْدٌ لِّيْ مِنْ جَزْعِ ظِفَارٍ قَدِ انْقَطَعَ فَرَجَعْتُ

تېر) خلاف ذ هغې تهمت قصه بيان كړه او دوي كښې هر يو ذ دې حديث يوه يوه ټكړه روايت كوي. او بيان كولو كښې ډير صحيح وو، ما ذ هر يو حديث چه هغه ماته بيان كۀ ياد كړے دے، نو دا ټلور واړه بيانوي، چه بي بي عائشهؓ فرمائي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به په يو سفر ذ تلو قصد كولو نو ذ خپلو بيبيانو مينځ كښې به ئے قرعه اچوله ذ چا نوم چه به قرعه كښې راوختلو، هغه به ئے ځان سره بوتله، يو ځل قرعه كښې ځما نوم راوختلو، او حضورؐ زۀ ځان سره بوتلم، دا هغه وخت وو، چه ذ پردې آيت نازل شوے وو. نو زۀ به پرده كښې ذ اوښ كجاوه كښې سورولے او كوزولے شوم، غرض كوم وخت چه مونږ رسالت مېٓب صلي الله عليه وسلم نه ذ جنګ نه فارغ شولو، او واپس شولو او مدينې ته رانزدې شو، نو ذ شپې حضور صلي الله عليه وسلم ذ تلو حكم اوكړلو، زۀ رفع حاجت ذ پاره اووتلم، او ذ لښكر نه لرې لاړم، چه واپس شوم، او سوريدو ذ پاره خپلے سورلي ته قريب راغلم، نو څۀ ګورم، چه ځما هار چه ذ خذف يمني وو، هغه چرته شليدلے او غرځيدلے دے. زۀ سمدستي واپس شولم، او ذ هار تلاش م كولو، دے كښې په ما ناوخته شو. ذ كومو خلقو په حواله چه ځما كجاوه كښې ذ سورولو كار وو هغوي كجاوه اوچته كړه، او په اوښ ئے كيښوده او داسې ئے اوګڼړله، چه شايد زۀ په كجاوه كښې ناسته يم. دغه زمانه كښې به ښځے (ذ وجود نه) سپكے وې، ځكه چه غذا به ساده او

فَالْتَمَسْتُ عِقْدِيْ فَحَبَسَنِي ابْتِغَاؤُهُ قَالَتْ وَ اَقْبَلَ الرَّهْطُ الَّذِيْنَ كَانُوْا يُرْحِلُوْنِيْ فَاحْتَمَلُوْا هُوْدَجِيْ فَرَحَلُوْا عَلٰى بَعِيْرِي الَّذِيْ كُنْتُ اَرْكَبُ عَلَيْهِ وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ اَنِّيْ فِيْهِ وَ كَانَ النِّسَآءُ اِذْ ذَاكَ خِفَافًا لَمْ يَهْبُلْنَ وَلَمْ يَغْشَهُنَّ اللَّحْمُ اِنَّمَا يَأْكُلْنَ الْعُلْقَةَ مِنَ الطَّعَامِ فَلَمْ يَسْتَنْكِرِ الْقَوْمُ خِفَّةَ الْهَوْدَجِ حِيْنَ رَفَعُوْهُ وَ حَمَلُوْهُ وَ كُنْتُ جَارِيَةً حَدِيْثَةَ السِّنِّ فَبَعَثُوا الْجَمَلَ فَسَارُوْا وَ وَجَدْتُ عِقْدِيْ بَعْدَ مَا اسْتَمَرَّ الْجَيْشُ فَجِئْتُ مَنَازِلَهُمْ وَ لَيْسَ بِهَا مِنْهُمْ دَاعٍ وَّلَا مُجِيْبٌ فَتَيَمَّمْتُ مَنْزِلِي الَّذِيْ كُنْتُ بِهٖ وَ ظَنَنْتُ اَنَّهُمْ سَيَفْقِدُوْنِيْ فَيَرْجِعُوْنَ اِلَيَّ فَبَيْنَا اَنَا جَالِسَةٌ فِيْ مَنْزِلِيْ غَلَبَتْنِيْ عَيْنِيْ فَنِمْتُ وَ كَانَ صَفْوَانُ بْنُ الْمُعَطَّلِ السُّلَمِيُّ ثُمَّ الذَّكْوَانِيُّ مِنْ وَّرَآءِ الْجَيْشِ فَاَصْبَحَ عِنْدَ مَنْزِلِيْ فَرَاٰى سَوَادَ اِنْسَانٍ نَائِمٍ فَعَرَفَنِيْ حِيْنَ رَاٰنِيْ وَكَانَ رَاٰنِي قَبْلَ الْحِجَابِ فَاسْتَيْقَظْتُ بِاسْتِرْجَاعِهٖ حِيْنَ عَرَفَنِيْ فَخَمَّرْتُ وَجْهِيْ بِجِلْبَابِيْ وَ وَاللّٰهِ مَا تَكَلَّمْنَا بِكَلِمَةٍ وَّلَا سَمِعْتُ مِنْهُ كَلِمَةً غَيْرَ اِسْتِرْجَاعِهٖ وَ هَوٰى حَتّٰى اَنَاخَ رَاحِلَتَهٗ فَوَطِئَ عَلٰى يَدِهَا فَقُمْتُ اِلَيْهَا فَرَكِبْتُهَا

غير مرغن خوړلے شوه' په دے وجه كجاوه اوچتونكو ته هيڅ پته اونه لګيده. بله دا چه زه كم عمره ووم. دے نه پس هغوي ټول اوښان روان كړل. ماته هار هغه وخت په لاس راغے' چه لښكر ذَ خپل مقام نه روان شوے وو' زهٔ په خپل ځائے كيناستم' په دے خيال' چه خلق څما ذَ پاتے كيدو نه خبر شي' نو هغوي به ضرور ذَ تالاش په خاطر واپس راځي' زهٔ په ناسته ناسته اودهٔ شوم (سفر كښ اكثر سړي له ذَ ستړے والي په وجه خوب راځي) صفوان بن معطل سلمي چه ورستو ذَ ذكواني په نوم مشهور شولو' هغه به لښكر نه ورستو ورستو راتلو' چه پريوتے څيز ځان سره راواخلي' هغه چه سحر وخت كښ نزدے راغے' او زهٔ ئے اودهٔ اوپيژندم' ځكه چه ذَ پردے نه مخكښ هغهٔ زهٔ ليدلے ووم' نو زور سره ئے: اِنَّا لِلّٰه و انّا اليه راجعون'' اووے' نو څما سترګے اوغړيدے' او خپل څادر سره مے خپل مخ پټ كړلو' په خدائے مِ دے قسم وي' مونږ دواړو هيڅ خبره اونهٔ كړله. او نهٔ ما سِوا د: انّا للّٰه و انّا اليه راجعون: نه ذَ هغهٔ نه څهٔ خبره واوريدله' صفوان ذَ خپلے سورلي نه راكوز شولو' ذَ سورلي پښے ئے اوتړلے' او زهٔ په هغے سوره شولم صفوان مخكښ مخكښ جيلب نيولے روان وو. او مونږ ذَ غرمے وخت ته نزدے سختے ګرمي كښ لښكر ته اورسيدو' او هغوي ټول ايسار شوے وو. بيا څوک چه تهمت لږولو سره هلاكيدونكے وو' هغوي هلاک شولو. او څوک چه ذَ ټولو نه زيات

فَانْطَلَقَ يَقُوْدُ بِيَ الرَّاحِلَةَ حَتّٰى اَتَيْنَا الْجَيْشَ مُوْغِرِيْنَ فِيْ نَحْرِ الظَّهِيْرَةِ وَهُمْ نُزُوْلٌ قَالَتْ فَهَلَكَ مَنْ هَلَكَ وَ كَانَ الَّذِيْ تَوَلّٰى كِبْرَ الْاِفْكِ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اُبَيِّ ابْنِ سَلُوْلَ قَالَ عُرْوَةُ اُخْبِرْتُ اَنَّهٗ كَانَ يُشَاعُ وَ يُتَحَدَّثُ بِهٖ عِنْدَهٗ فَيُقِرُّهٗ وَ يَسْتَمِعُهٗ وَ يَسْتَوْشِيْهِ وَ قَالَ عُرْوَةُ اَيْضًا لَمْ يُسَمَّ مِنْ اَهْلِ الْاِفْكِ اَيْضًا اِلَّا حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ وَّ مِسْطَحُ بْنُ اُثَاثَةَ وَ حَمْنَةُ بِنْتُ جَحْشٍ فِيْ نَاسٍ آخَرِيْنَ لَا عِلْمَ لِيْ بِهِمْ غَيْرَ اَنَّهُمْ عُصْبَةٌ كَمَا قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَ اِنَّ كِبْرَ ذٰلِكَ يُقَالُ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اُبَيِّ ابْنِ سَلُوْلٍ قَالَ عُرْوَةُ كَانَتْ عَآئِشَةُ تَكْرَهُ اَنْ يُّسَبَّ عِنْدَهَا حَسَّانُ وَ تَقُوْلُ اِنَّهُ الَّذِيْ قَالَ:

فَاِنَّ اَبِيْ وَ وَالِدَهٗ وَ عِرْضِيْ
لِعِرْضِ مُحَمَّدٍ مِّنْكُمْ وِقَآءٌ

قَالَتْ عَآئِشَةُ فَقَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ فَاشْتَكَيْتُ حِيْنَ قَدِمْتُ شَهْرًا وَّ النَّاسُ يُفِيْضُوْنَ فِيْ قَوْلِ اَصْحَابِ الْاِفْكِ لَا اَشْعُرُ بِشَيْءٍ مِّنْ ذٰلِكَ وَهُوَ يُرِيْبُنِيْ فِيْ وَجَعِيْ اَنِّيْ لَا اَعْرِفُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللُّطْفَ الَّذِيْ كُنْتُ اَرٰى مِنْهُ حِيْنَ اَشْتَكِيْ اِنَّمَا يَدْخُلُ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

ذ دے بهتان محرک وو' هغه (ذ منافقانو سردار) عبدالله بن ابي بن سلول وو. عروه وائي' ماته معلومه شوے وه' چه عبدالله بن ابي بن سلول ته به ذ افک ذکر کیدلو' نو هغۀ به ذ دے اقرر کولو' او هغه به ئے آوریدلو او بیان کولو. عروه وائي' بهتان لړونکو کښ حضرت حسان بن ثابت مسطح بن اثاثه' او ذ حمنه بنت جحش نه علاوه بل هیڅوک بیان نۀ کړے شو. ذ باقي خلقو ماته هیڅ علم نشته دے' خو ذ هغوي یو جماعت دے' چه ذ هغے متعلق الله تبارک و تعالٰي فرمائیلے دي: والذی تولی کبره منهم له عذاب عظیم (یعني څوک چه ذ دوي سر کروه دے' هغه ذ پاره لوئے عذاب دے) او ذ هغے تولو مشر (عبدالله بن ابي بن سلول) دے. عروه وائي' اګر که حسان بن ثابت تهمت لړولے وو' خو بي بي عائشهؓ به ورته بد وئیل نۀ خوښول' ځکه چه دا شعر حسان وئیلے دے: (ترجمه)

خما پلار نیکۀ او خما عزت او ابرو
تول ذ محمد (صلعم) ذ عزت بچاؤ دي

بي بي عائشهؓ فرمائي' زۀ مدینه کښ یو میاشت ناروغه ووم' او خلقو کښ خما ذ تهمت خبرے اترے کیدلے' او خما شک به زیاتیدلو' او دومره زور ئے بیامند' چه ما حضور صلي الله علیه وسلم دے بیمارئ کښ ذ مخکښ په شان مهربان اونه لیدلو. البته دننه به ئے تشریف راوړلو. او صرف دومره به ئے دریافت کولو' او بیا به واپس تلو' چه تۀ اوس څنګه ئے' ذ حضورؐ دے طرز عمل سره

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُسَلِّمُ ثُمَّ يَقُوْلُ كَيْفَ
تِيْكُمْ ثُمَّ يَنْصَرِفُ فَذٰلِكَ يُرِيْبُنِيْ وَلَا
اَشْعُرُ بِالشَّرِّ حَتّٰى خَرَجْتُ حِيْنَ نَقَهْتُ
فَخَرَجْتُ مَعَ اُمِّ مِسْطَحٍ قِبَلَ الْمَنَاصِعِ
وَ كَانَ مُتَبَرَّزَنَا وَ كُنَّا لَا نَخْرُجُ اِلَّا لَيْلًا
اِلٰى لَيْلٍ وَ ذٰلِكَ قَبْلَ اَنْ نَتَّخِذَ الْكُنُفَ
قَرِيْبًا مِنْ بُيُوْتِنَا قَالَتْ وَ اَمْرُنَا اَمْرُ
الْعَرَبِ الْاُوَلِ فِي الْبَرِّيَّةِ قِبَلَ الْغَائِطِ وَ
كُنَّا نَتَاَذّٰى بِالْكُنُفِ اَنْ نَتَّخِذَهَا عِنْدَ
بُيُوْتِنَا قَالَتْ فَانْطَلَقْتُ اَنَا وَ اُمُّ مِسْطَحٍ
وَهِيَ ابْنَةُ اَبِيْ رُهْمِ بْنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ
عَبْدِ مُنَافٍ وَّ اُمُّهَا بِنْتُ صَخْرِ بْنِ عَامِرٍ
خَالَةُ اَبِيْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِ وَابْنُهَا مِسْطَحُ
بْنُ اُثَاثَةَ بْنِ عَبَّادِ بْنِ الْمُطَّلِبِ
فَاَقْبَلْتُ اَنَا وَ اُمُّ مِسْطَحٍ قِبَلَ بَيْتِيْ
حِيْنَ فَرَغْنَا مِنْ شَاْنِنَا فَعَثَرَتْ اُمُّ
مِسْطَحٍ فِيْ مِرْطِهَا فَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ
فَقُلْتُ لَهَا بِئْسَ مَا قُلْتِ اَتَسُبِّيْنَ
رَجُلًا شَهِدَ بَدْرًا فَقَالَتْ اَيْ هَنْتَاهُ وَلَمْ
تَسْمَعِيْ مَا قَالَ قَالَتْ وَ قُلْتُ مَا قَالَ
فَاَخْبَرَتْنِيْ بِقَوْلِ اَهْلِ الْاِفْكِ قَالَتْ
فَازْدَدْتُ مَرَضًا عَلٰى مَرَضِيْ فَلَمَّا
رَجَعْتُ اِلٰى بَيْتِيْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ
ثُمَّ قَالَ كَيْفَ تِيْكُمْ فَقُلْتُ لَهٗ اَتَاْذَنُ
لِيْ اَنْ اٰتِيَ اَبَوَيَّ قَالَتْ وَ اُرِيْدُ اَنْ

خما بیماري کښې لا اضافه کیدله. او زهٔ د دې
طوفان نه هیڅ خبر نهٔ ووم. غرض دا چه مالې
صحت بیامند، نو زهٔ د مسطح مور سره د رفع
حاجت د پاره بهرته لاړم، او مونږ به همیشه د
شپې تلو. یوه شپه به تلو، بیا به بله شپه تلو. دا
د هغې وخت خبره ده، چه خمونږ کورونو
سره نزدې بیت الخلاء (د اودس ماتې خانې) نهٔ وو
جوړ شوې. او مونږ د عربو د زوړ عادت په شان
د دې کار د پاره ځنګل ته تلو، ځکه چه کورونو
کښې د اودس ماتې د ځایونو جوړولو کښې به
مونږ ته تکلیف وو، او د مسطح مور چه د ابو
رهم بن عبدالمطلب بن عبد مناف لور وه، او د هغې
مور د صخر بن عامر لور وه، او هغه خما د پلار
حضرت ابوبکرؓ ترور (خاله) وه، او مسطح بن
اثاثه بن عباد بن مطلب د هغې ځوئې وو، زهٔ هغې
سره لاړم، څهٔ وخت چه (د رفع حاجت نه) فارغ
شو، او واپس شولو، نو د هغې پښې لار کښې
څادر کښې اونښتې، او هغه راوغرځیده، او مسطح
ته ئې بددرد اوونیل، ما ورته اووې. مسطح ته
بد ولې وائې، هغه خو جنګ بدر کښې شریک وو.
هغې راته اووې، اې د اللّٰه بندې، تا د مسطح خبره
نهٔ ده آوریدلې. ما اووې، څهٔ خبره، نو هغې هغه
خبره بیان کړه. دې آوریدو سره خما بیماري
زیاته شوله. زهٔ کور ته راغلم. بیا رسول اللّٰه صلي
اللّٰه علیه وسلّم کورته راغلو نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه
علیه وسلّم د لرې نه د سلام علیک نه پس مانه

اَسْتَيْقِنَ الْخَبَرَ مِنْ قِبَلِهِمَا قَالَتْ فَاَذِنَ
لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لِاُمِّيْ يَا اُمَّتَاهُ مَاذَا
يَتَحَدَّثُ النَّاسُ قَالَتْ يَا بُنَيَّةُ هَوِّنِيْ
عَلَيْكِ فَوَاللّٰهِ لَقَلَّمَا كَانَتِ امْرَاَةٌ قَطُّ
وَضِيْئَةٌ عِنْدَ رَجُلٍ يُحِبُّهَا لَهَا ضَرَآئِرُ
اِلَّا كَثَّرْنَ عَلَيْهَا قَالَتْ فَقُلْتُ سُبْحَانَ
اللّٰهِ اَوَ لَقَدْ تَحَدَّثَ النَّاسُ بِهٰذَا قَالَتْ
فَبَكَيْتُ تِلْكَ اللَّيْلَةَ حَتّٰى اَصْبَحْتُ لَا
يَرْقَاُ لِيْ دَمْعٌ وَّلَا اَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ ثُمَّ
اَصْبَحْتُ اَبْكِيْ قَالَتْ وَ دَعَا رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيَّ
بْنَ اَبِيْ طَالِبٍ وَّ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ حِيْنَ
اسْتَلْبَثَ الْوَحْيُ يَسْاَلُهُمَا وَ
يَسْتَشِيْرُهُمَا فِيْ فِرَاقِ اَهْلِهِ قَالَتْ فَاَمَّا
اُسَامَةُ فَاَشَارَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالَّذِيْ يَعْلَمُ مِنْ
بَرَآءَةِ اَهْلِهِ وَ بِالَّذِيْ يَعْلَمُ لَهُمْ فِيْ
نَفْسِهِ فَقَالَ اُسَامَةُ اَهْلَكَ وَلَا نَعْلَمُ اِلَّا
خَيْرًا وَّ اَمَّا عَلِيٌّ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ
لَمْ يُضَيِّقِ اللّٰهُ عَلَيْكَ وَالنِّسَآءُ سِوَاهَا
كَثِيْرٌ وَّ سَلِ الْجَارِيَةَ تَصْدُقْكَ قَالَتْ
فَدَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ بَرِيْرَةَ فَقَالَ اَيْ بَرِيْرَةُ هَلْ
رَاَيْتِ مِنْ شَيْءٍ يُرِيْبُكِ قَالَتْ بَرِيْرَةُ
وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا رَاَيْتُ عَلَيْهَا

تپوس او کړ، او وې فرمائیل: څنګه ئې، ما عرض
او کړ، ما له اجازت راکړئ چه د مور پلار کورته
لاړه شم. خما دا خیال وو، چه زهٔ هغوي ته اورسم،
نو د دې خبرې به تحقیق او کړم، نو حضورﷺ
اجازت راکړلو. زهٔ کورته راغلم، او خپلې مور
ته مې اووې، مورې، دا خلق څهٔ خبرې کوي، هغې
جواب راکړ، لورې ته د دې بالکل غم مهٔ کوه، دا
خو د پخوا نه داسې خبره ده، چه هر کله د
یوې خوبصورته ښځې بنې (سوکنیں) وي، او د
خاوند هغې سره زیات محبت وي، نو داسې قسم
فریبونه کیږي، ما اووې، سبحان الله خلق داسې
خبرې د خولې نه اوکاږي، خیر ما ټوله شپه
ژړل، او سحر شولو، نهٔ مې اوښکې اودریدلې او نهٔ
خوب راغې. دې نه پس هغه فرمائي، وحي الهي
راتلو کښې تاخیر اوشو، نو رسول الله صلي الله
علیه وسلم حضرت علیؓ او اُسامه راوغښتل او
دې معامله کښې ئې مشوره او کړله. اُسامهؓ د پاکو
بیبیانوؓ د پاکدامنئ نه واقف وو، نو وې وئیل، یا
رسول الله، بي بي عائشهؓ ستاسو ټبر دې. خپل ځان
سره ئې اوساتئ، زهٔ هغې کښې هیڅ خرابي نهٔ وینم،
هغه نیکه او پاک دامنه ده. بیائې د حضرت
علیؓ نه تپوس او کړ، هغهٔ عرض او کړ یا رسول الله
ستاسو د پاره د بیبیانو څهٔ کمې دې نورې ډیرې
ښځې موجود دي، تاسو د بریرهؓ خادمې نه تپوس
وکړئ، هغه به درته ټوله قصه بیان کړي، بي بي
عائشهؓ فرمائي، بیا حضورﷺ بریرهؓ راوغښتله

اَمْرًا قَطُّ اَغْمِصُهُ عَلَيْهَا اَكْثَرَ مِنْ اَنَّهَا جَارِيَةٌ حَدِيْثَةُ السِّنِّ تَنَامُ عَنْ عَجِيْنِ اَهْلِهَا فَتَأْتِي الدَّاجِنُ فَتَأْكُلُهُ قَالَتْ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ يَوْمِهٖ فَاسْتَعْذَرَ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اُبَيٍّ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ مَنْ يَّعْذِرُنِيْ مِنْ رَّجُلٍ قَدْ بَلَغَنِيْ عَنْهُ اَذَاهُ فِيْ اَهْلِيْ وَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ عَلٰى اَهْلِيْ اِلَّا خَيْرًا وَّلَقَدْ ذَكَرُوْا رَجُلًا مَّا عَلِمْتُ عَلَيْهِ اِلَّا خَيْرًا وَّمَا يَدْخُلُ عَلٰى اَهْلِيْ اِلَّا مَعِيْ قَالَتْ فَقَامَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ اَخُوْبَنِيْ عَبْدِ الْاَشْهَلِ فَقَالَ اَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَعْذِرُكَ فَاِنْ كَانَ مِنَ الْاَوْسِ ضَرَبْتُ عُنُقَهُ وَ اِنْ كَانَ مِنْ اِخْوَانِنَا مِنَ الْخَزْرَجِ اَمَرْتَنَا فَفَعَلْنَا اَمْرَكَ قَالَتْ فَقَامَ رَجُلٌ مِّنَ الْخَزْرَجِ وَ كَانَتْ اُمُّ حَسَّانَ بِنْتُ عَمِّهٖ مِنْ فَخِذِهٖ وَهُوَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ وَهُوَ سَيِّدُ خَزْرَجٍ قَالَتْ وَ كَانَ قَبْلَ ذٰلِكَ رَجُلًا صَالِحًا وَّلٰكِنِ احْتَمَلَتْهُ الْحَمِيَّةُ فَقَالَ لِسَعْدٍ كَذَبْتَ لَعَمْرُ اللّٰهِ لَا تَقْتُلُهُ وَلَا تَقْدِرُ عَلٰى قَتْلِهٖ وَلَوْ كَانَ مِنْ رَّهْطِكَ مَا اَحْبَبْتَ اَنْ يُّقْتَلَ فَقَامَ اُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ وَّهُوَ ابْنُ عَمِّ سَعْدٍ فَقَالَ لِسَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ كَذَبْتَ لَعَمْرُ اللّٰهِ لَنَقْتُلَنَّهُ فَاِنَّكَ مُنَافِقٌ تُجَادِلُ عَنِ الْمُنَافِقِيْنَ قَالَتْ فَثَارَ

او ورته فرمائيل، اے بريرهٔ د عائشے که څهٔ بے ځايه خبره تاته معلومه وي، نو هغه راته بيان کړه. بريرهٔ جواب ورکړ، په هغه خدائے قدوس مې دې قسم وي، چه هغهٔ تاسو پيغمبر راليږلے ئے، ما عائشهٔ کښې هيڅ داسے خبره نهٔ ده ليدلے، چه زهٔ د دے تهمت تصديق اوکړے شم. داده چه هغه کم عمره جينۍ ده. او ډ هغے د سادګئ په وجه کله داسے اوشي، چه اوړه واغږي او اودهٔ شي. او چيلئ راشي هغه اوخوري. حضورﷺ چه ډ بريرےؓ خبره واوريده نو اودريدلو. منبر ته راغے، او ډ عبدالله بن ابي متعلق ئے اوفرمائيل، مسلمانانو، ډ هغے سړي نه څوک بدله اخلي، چه هغهٔ خما په بي بي الزام لږولے دے. او دا بدنامي ئے ما پورے راوستے ده. په خدائے مې دے قسم وي، زهٔ خپله بي بي نيکه او پاک دامنه ګنړم، او کوم غريب چه دے تهمت کښې شريکوي، هغه ښهٔ سړے ګنړم. دے خبرے آوريدو سره سعد بن معاذ ډ قبيلهٔ بني اشهل اودريدلو. او عرض ئے اوکړ، يا رسول اللهﷺ زهٔ ستاسو ډ دے حکم تعميل کوم، که دا سړے خما ډ قبيلے وي، نو اوس زهٔ ډ هغه ګردن وهم، او تاسوله ئے راوړم، او که دے خمونږ ډ ورونړو خزرج ډ قبيلے نه وي، نو تاسوؐ چه څهٔ حکم راکوئے، په هغے به عمل کولے شي، بي بي عائشهؓ فرمائي. دے آوريدو سره ډ قبيلهٔ خزرج يو سړے راپاسيد، چه ډ هغهٔ مور ډ حسان ډ ترهٔ لور (چچازاد بہن) وه، او ډ هغهٔ ډ قبيلے وه، ډ هغهٔ نوم سعد بن عباده وو، او هغه ډ خزرج سردار وو، هغه اودريدلو، او وے وئيل، په خدائے چه ته دروغ

الْحَيَّانِ الْاَوْسُ وَالْخَزْرَجُ حَتّٰى هَمُّوْا
اَنْ يَّقْتَتِلُوْا وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَآئِمٌ عَلَى الْمِنْبَرِ قَالَتْ
فَلَمْ يَزَلْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَفِّضُهُمْ حَتّٰى سَكَتُوْا
وَ سَكَتَ قَالَتْ فَبَكَيْتُ يَوْمِيْ ذٰلِكَ كُلَّهٗ
لَا يَرْقَاُ لِيْ دَمْعٌ وَّلَا اَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ قَالَتْ
وَ اَصْبَحَ اَبَوَایَ عِنْدِيْ وَقَدْ بَكَيْتُ
لَيْلَتَيْنِ وَ يَوْمًا لَا يَرْقَاُ لِيْ دَمْعٌ وَّلَا
اَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ حَتّٰى اَنِّيْ لَاَظُنُّ اَنَّ
الْبُكَآءَ فَالِقٌ كَبِدِيْ فَبَيْنَا اَبَوَایَ
جَالِسَانِ عِنْدِيْ وَ اَنَا اَبْكِيْ فَاسْتَاْذَنَتْ
عَلَيَّ امْرَاَةٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَاَذِنْتُ لَهَا
فَجَلَسَتْ تَبْكِيْ مَعِيْ قَالَتْ فَبَيْنَا نَحْنُ
عَلٰى ذٰلِكَ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْنَا فَسَلَّمَ ثُمَّ
جَلَسَ قَالَتْ وَلَمْ يَجْلِسْ عِنْدِيْ مُنْذُ
قِيْلَ مَا قِيْلَ قَبْلَهَا وَقَدْ لَبِثَ شَهْرًا لَا
يُوْحٰى اِلَيْهِ فِيْ شَاْنِيْ بِشَيْءٍ قَالَتْ
فَتَشَهَّدَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ حِيْنَ جَلَسَ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ
يَا عَآئِشَةُ اِنَّهٗ بَلَغَنِيْ عَنْكِ كَذَا وَ كَذَا
فَاِنْ كُنْتِ بَرِيْٓئَةً فَسَيُبَرِّئُكِ اللّٰهُ وَ اِنْ
كُنْتِ اَلْمَمْتِ بِذَنْبٍ فَاسْتَغْفِرِي اللّٰهَ وَ
تُوْبِيْ اِلَيْهِ فَاِنَّ الْعَبْدَ اِذَا اعْتَرَفَ ثُمَّ
تَابَ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِ قَالَتْ فَلَمَّا قَضٰى

وانے، او هیڅ کله هغه نه شے وژلے. او نه ستا دا مجال
شته، چه ته هغه اووژلے شے. او که هغه ستا ذ قامه وے، نو
تا به هیڅ کله ذ هغهٔ قتلول خوښ کړے نه و. دے آوریدو
سره اسید بن حضیر اودریدلو. او وے وئیل، په خدائے م
دے قسم وي، مونږ به ضرور هغه قتلوو، ته منافق ئے، او ذ
منافقانو حمایت کوے (حالانکه دا سړے مخکښ نیک
وو خو اوس ئے ذ قوم بچاؤ کولو) بي بي عائشهؓ فرمائي،
ذ دے گفتگو نه پس ذ اوس، او، خزرج دواړو قبیلو خلق
اودریدل، او جنگ ته تیار شول، رسول الله صلي الله
علیه وسلّم ذ منبر نه هغوي خاموش کول. آخر هغوي
خاموش شولو. بي بي عائشهؓ فرمائي، ما تموله ورخ ژړل،
نه م اوښکے اودریدے، او نهٔ خوب راتلو. خما خیال
راغے، چه اوس به خما اینه اوچوي. مور پلار راسره
موجود وو دے کښ ذ انصارو یوه ښځه ماله راغله، او
هغه هم په ژړا شوه. (ماته ذ هغے نوم معلوم نهٔ شولو).
آخر حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم دننه تشریف
راوړلو. او سلام نه پس خما خوا کښ کیناستلو، کني
اوسه پورے ذ نن ورخ نه مخکښ حضورؐ ماسره نهٔ وو
ناست. ذ تهمت نه پس یو میاشت پورے حضورؐ ایسار
وو او خما باب کښ څهٔ وحي حضورؐ ته رانغله. بي بي
عائشهؓ فرمائي، حضورؐ کیناستلو. کلمهٔ شهادت ئے
اووے. او هغے نه پس ئے اوفرمائیل اے عائشهؓ، ماته ستا
بابت کښ ذ دے قسم اطلاع رارسیدلے ده، که ته بے
گناه ئے، نو الله تعالیٰ به عنقریب ستا ذ پاکدامنئ اظهار
اوفرمائي، او که تا نه څهٔ گناه شوے وي، نو الله نه توبه
کره، او مغفرت اوغواړه، څکه که بنده ذ خپلے گناه

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
مَقَالَتَهُ قَلَصَ دَمْعِيْ حَتّٰى مَا اُحِسُّ
مِنْهُ قَطْرَةً فَقُلْتُ لِاَبِيْ اَجِبْ رَسُوْلَ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِّيْ
فِيْمَا قَالَ فَقَالَ اَبِيْ وَاللّٰهِ مَا اَدْرِيْ مَا
اَقُوْلُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لِاُمِّيْ اَجِيْبِيْ رَسُوْلَ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَا
قَالَ قَالَتْ اُمِّيْ وَاللّٰهِ مَا اَدْرِيْ مَا اَقُوْلُ
لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَقُلْتُ وَ اَنَا جَارِيَةٌ حَدِيْثَةُ السِّنِّ لَا
اَقْرَاُ مِنَ الْقُرْاٰنِ كَثِيْرًا اِنِّيْ وَاللّٰهِ لَقَدْ
عَلِمْتُ لَقَدْ سَمِعْتُمْ هٰذَا الْحَدِيْثَ
حَتّٰى اسْتَقَرَّ فِيْ اَنْفُسِكُمْ وَ صَدَّقْتُمْ
بِهٖ فَلَئِنْ قُلْتُ لَكُمْ اِنِّيْ بَرِيْئَةٌ لَا
تُصَدِّقُوْنِيْ وَلَئِنِ اعْتَرَفْتُ لَكُمْ بِاَمْرٍ
وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَنِّيْ مِنْهُ بَرِيْئَةٌ
لَتُصَدِّقُنِّيْ فَوَاللّٰهِ لَا اَجِدُ لِيْ وَلَكُمْ
مَثَلًا اِلَّا اَبَا يُوْسُفَ حِيْنَ قَالَ فَصَبْرٌ
جَمِيْلٌ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا
تَصِفُوْنَ ثُمَّ تَحَوَّلْتُ وَاضْطَجَعْتُ عَلٰى
فِرَاشِيْ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَنِّيْ حِيْنَئِذٍ
بَرِيْئَةٌ وَّ اَنَّ اللّٰهَ مُبَرِّئِيْ بِبَرَآءَتِيْ
وَلٰكِنْ وَّاللّٰهِ مَا كُنْتُ اَظُنُّ اَنَّ اللّٰهَ
مُنْزِلٌ فِيْ شَأْنِيْ وَحْيًا يُّتْلٰى لَشَأْنِيْ
فِيْ نَفْسِيْ كَانَ اَحْقَرَ مِنْ اَنْ يَّتَكَلَّمَ

اقرار اوکړي. او بیا توبه کړي، نو الله تعالی بښنه کوي.
رسول الله صلي الله علیه وسلم چه خپله خبره ختمه
کړه، نو بي بي عائشهؓ وائي: خما اوښکے سمدستي
اودریدلے. یوه قطره اونه بهیدلے، بیا ما خپل پلار ته
اووے، چه د رسول پاک د خبرے جواب ورکړه، خو
هغه اووے، په خدائے مې دے قسم وي، خما په پوه کښ
نه راځي: زۀ څه جواب ورکړم. بیا ما خپلے مور ته
اووے، ته رسول الله صلي الله علیه وسلم له جواب
ورکړه، خو هغے هم ماله دغسے جواب راکړ. هر کله چه
هغوي ما د جواب ورکولو نه عاجزئ اولیدل، نو خپله مې
جواب ورکول شروع کړل. حالانکه زۀ هغه وخت کم
عمره ووم، او په قرآن هم ډیره کمه پوهیدم. ما اووے:
په الله مې دے قسم وي، تاسو دا خبره واوریده، او دا خبره
ستاسو په زړۀ کښ کیناسته، او خما په حقله مو شُبه پیدا
شوه. اوس که زۀ خپله بے ګناهي هم بیان کړم، نو تاسو
به ما ریښتنے نه ګنړئے. او که زۀ د ګناه اقرار اوکړم، او
بزۀ حقیقت کښ د دے نه پاکه یم، نو تاسو به ئے اومنئے.
خدائے ګواه دے. اوس خما او ستاسو هغه حالت دے،
کوم چه د یوسفؑ د پلار (یعقوبؑ) وو. عائشهؓ اووے:
فصبر جمیل والله المستعان علی ما تصفون: اوس دا
بهتره ده، چه په ښۀ طریقه صبر اوکړے شي. دے ونیلو
سره ما مخ واړولو. او په بستره خاموشه سملاستم. خکه
چه خما یقین وو، الله ښۀ پوهیږي، چه زۀ بے ګناه یمه، او
هغه به خما بے ګناهي ظاهره کړي، خو خما دا خیال نه
وو، چه خما متعلق به وحي نازله شي، چه د هغے نه به
خما بے ګناهي ثابته شي. دے نه پس رسول اکرم صلي

اللّٰهُ فِيْ بِأَمْرٍ وَّلٰكِنْ كُنْتُ أَرْجُوْ أَنْ
يَّرٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فِي النَّوْمِ رُؤْيَا يُبَرِّئُنِي اللّٰهُ
بِهَا فَوَاللّٰهِ مَا رَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَجْلِسَهُ وَلَا
خَرَجَ أَحَدٌ مِّنْ أَهْلِ الْبَيْتِ حَتّٰى أُنْزِلَ
عَلَيْهِ فَأَخَذَهُ مَا كَانَ يَأْخُذُهُ مِنَ
الْبُرَحَاءِ حَتّٰى إِنَّهُ لَيَتَحَدَّرُ مِنْهُ مِنَ
الْعَرَقِ مِثْلُ الْجُمَانِ وَهُوَ فِيْ يَوْمٍ
شَاتٍ مِّنْ ثِقْلِ الْقَوْلِ الَّذِيْ أُنْزِلَ
عَلَيْهِ قَالَتْ فَسُرِّيَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَضْحَكُ
فَكَانَتْ أَوَّلُ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا أَنْ قَالَ
يَا عَائِشَةُ أَمَّا اللّٰهُ فَقَدْ بَرَّأَكِ قَالَتْ
فَقَالَتْ لِيْ أُمِّيْ قُوْمِيْ إِلَيْهِ فَقُلْتُ
وَاللّٰهِ لَا أَقُوْمُ إِلَيْهِ فَإِنِّيْ لَا أَحْمَدُ إِلَّا
اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ قَالَتْ وَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى
إِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْا بِالْإِفْكِ الْعَشْرَ الْآيَاتِ
ثُمَّ أَنْزَلَ اللّٰهُ هٰذَا فِيْ بَرَآءَتِيْ قَالَ
أَبُوْبَكْرٍ الصِّدِّيْقُ وَكَانَ يُنْفِقُ عَلٰى
مِسْطَحِ بْنِ أُثَاثَةَ لِقَرَابَتِهِ مِنْهُ وَفَقْرِهِ
وَاللّٰهِ لَا أُنْفِقُ عَلٰى مِسْطَحٍ شَيْئًا أَبَدًا
بَعْدَ الَّذِيْ قَالَ لِعَائِشَةَ مَا قَالَ فَأَنْزَلَ
اللّٰهُ وَلَا يَأْتَلِ أُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ إِلٰى
قَوْلِهِ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ قَالَ أَبُوْبَكْرٍ
الصِّدِّيْقُ بَلٰى وَاللّٰهِ إِنِّيْ لَأُحِبُّ أَنْ

الله علیه وسلم د خپل ځائے نه لا پاسیدلے هم نه وو، نه د
کور څوک سړے بهرته وتلے وو، چه په حضورؐ د وحي
حالت خور شولو، څنګه چه د وحي حالت کښې به
کیدلو، دا سختي د هغې کلام د وزن په وجه وه، چه په
حضورؐ نازلیدلو، چه د یخني په موسم کښې به هم د
حضورؐ د جسم مبارک نه خوله (پسینه) څڅیدله، غرض
د وحي حالت چه ختم شو، نو حضورؐ مسکے شولو، او د
ټولو نه وړمبنے خبره ئے دا اوکړه، چه عائشےؓ، الله تعالٰي
ستا پاکدامني بیان کړه، خما مور سمدستي ماته اووے،
چه پاسه، د حضورؐ شکریه ادا کړه. ما اووے، په خدائے م
دے قسم وي، زۀ د حضورؐ شکریه نۀ ادا کوم، بلکه د
خپل پروردګار شکریه ادا کوم. او الله تعالٰي دا لس
آیتونه دے باب کښې نازل کړل: انّ الذین جاؤا بالافک
الٰی اخره: یعني کومو خلقو چه ستا برخلاف دا بهتان
راپورته کړے دے، آخر پورے: او خما رب خما بے
ګناهي ظاهره کړله. حضرت ابوبکر صدیقؓ چه د رشته
دار د غربت په وجه مسطح سره ښه سلوک کولو،
هغه د مسطح متعلق دا سوچ کړے وو، چه اوس به زۀ
هغۀ سره هیڅ ښیګړه نۀ کوم، ځکه چه هغۀ په عائشےؓ
داسے تهمت لګولے دے، نو الله تعالٰي دا آیت نازل
کړلو. (ترجمه) کوم خلق چه تاسو کښې بزرګ او
صاحب فضل دي، هغوي دے داسے قسم نۀ خوري. دے
نه پس حضرت ابوبکرؓ اووے، زۀ خوشحاله یم، چه الله
ما اوبښي. او بیا چۀ هغۀ مسطح سره ئے ښۀ سلوک
کولو، هغه ئے جاري کړلو، او، ونیلے په خدائے چه زۀ به
دا سلسله هیڅ کله بنده نۀ کړم. بي بي عائشةؓ فرمائي،

يَغْفِرَ اللّٰهُ لِيُ فَرَجَعَ إِلَى مِسْطَحٍ النَّفَقَةَ الَّتِيُ كَانَ يُنْفِقُ عَلَيْهِ وَ قَالَ وَاللّٰهِ لَا أَنْزِعُهَا مِنْهُ أَبَدًا قَالَتْ عَآئِشَةُ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَ زَيْنَبَ بِنْتَ جَحْشٍ عَنْ أَمْرِيُ فَقَالَ لِزَيْنَبَ مَاذَا عَلِمْتِ أَوْ رَأَيْتِ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَحْمِيُ سَمْعِيُ وَ بَصَرِيُ وَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ إِلَّا خَيْرًا قَالَتْ عَآئِشَةُ وَ هِيَ الَّتِيُ كَانَتْ تُسَامِيْنِيُ مِنْ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَصَمَهَا اللّٰهُ بِالْوَرَعِ قَالَتْ وَطَفِقَتْ أُخْتُهَا حَمْنَةُ تُحَارِبُ لَهَا فَهَلَكَتْ فِيْمَنْ هَلَكَ وَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَهٰذَا الَّذِيُ بَلَغَنِيُ مِنْ حَدِيْثِ هٰؤُلَآءِ الرَّهْطِ ثُمَّ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَآئِشَةُ وَاللّٰهِ إِنَّ الرَّجُلَ الَّذِيُ قِيْلَ لَهُ مَا قِيْلَ لَيَقُوْلُ سُبْحَانَ اللّٰهِ فَوَالَّذِيُ نَفْسِيُ بِيَدِهٖ مَا كَشَفْتُ مِنْ كَنَفِ أُنْثٰى قَطُّ قَالَتْ ثُمَّ قُتِلَ بَعْدَ ذٰلِكَ فِيُ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم دَ تهمت دوران كښې دَ اُم المؤمنين زينبؓ نه چه څما بنهٔ (بنَه) وه، څما متعلق تپوس اوكړ، يا رسول الله، زهٔ خپل غوږونه او سترګې محفوظ ساتم (دَ بدئ وغيره نه) په خدائے چه زهٔ خو عائشهؓ نيكه او بهتره ګنړم. بي بي عائشهؓ فرمائي، چه حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم په بيبيانو كښې بي بي زينبؓ څما برابر وه، اللّٰه دَ هغې دَ نيكئ په وجه هغه محفوظ ساتلے وه، خو دَ هغې خور حمنه هغې دَ پاره جنګ شروع كړ، او هغه هم تهمت لږونكو سره هلاكه شوه. دَ ابن شهاب قول دے، چه دا حديث دَ څلورو كسانو نه ماته راورسيد (عروه، سعيد، علقمه، عبيدالله). هغوي دا اورے، بي بي عائشهؓ بيان كولو، په خدائے چه كوم سړي سره په ما تهمت لږولے شوے وو، يعني صفوان بن معطل، هغهٔ چه به دا خبرے آوريدے، نو تعجب به ئے كولو، او سبحان الله به ئے وے، او وئيل به ئے، په هغه الله م دے قسم وي، چه دَ هغهٔ په لاس كښې څما ساه ده. ما خو هيڅ كله دَ چا زنانه ستر هم نهٔ دے پرانستے (نو دَ بدكار خو هډو سوال نهٔ پيدا كيږي. استغفر اللّٰه) بي بي عائشهؓ فرمائي. دَ دے نه پس هغه (صفوان) دَ الله په لار كښې شهيد شولو.

۱۷۸۱: حَدَّثَنِيُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ أَمْلٰى عَلَيَّ هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ مِنْ حِفْظِهٖ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ قَالَ لِيُ الْوَلِيْدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ أَبَلَغَكَ أَنَّ عَلِيًّا كَانَ فِيْمَنْ قَذَفَ عَآئِشَةَؓ قُلْتُ لَا وَلٰكِنْ قَدْ

۱۷۸۱: عبدالله بن محمد. هشام بن يوسف. معمر. علامه زهري نه روايت كوي، هغهٔ اورے، مانه وليد بن عبدالملك بن مروان تپوس اوكړ، آيا تاته معلومه ده. چه حضرت عليؓ هم تهمت لږونكو كښې شامل وو. ما اورے، نه البته ستاسو دَ قريشو دوو سړو چه

أَخْبَرَنِيْ رَجُلَانِ مِنْ قَوْمِكَ أَبُوْ سَلَمَةَ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ أَبُوْ بَكْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ لَهُمَا كَانَ عَلِيٌّ مُسَلِّمًا فِيْ شَأْنِهَا فَرَاجَعُوْهُ فَلَمْ يَرْجِعْ وَ قَالَ مُسَلِّمًا بِلَا شَكٍّ فِيْهِ وَ عَلَيْهِ كَانَ فِيْ أَصْلِ الْعَتِيْقِ كَذٰلِكَ.

۱۷۹: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ أَبِيْ وَائِلٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَسْرُوْقُ بْنُ الْأَجْدَعِ قَالَ حَدَّثَتْنِيْ أُمُّ رُوْمَانَ وَ هِيَ أُمُّ عَائِشَةَ قَالَتْ بَيْنَا أَنَا قَاعِدَةٌ أَنَا وَ عَائِشَةُ إِذْ وَلَجَتِ امْرَأَةٌ مِّنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَتْ فَعَلَ اللّٰهُ بِفُلَانٍ وَّ فَعَلَ فَقَالَتْ أُمُّ رُوْمَانَ وَمَا ذَاكِ قَالَتِ ابْنِيْ حَدَّثَ الْحَدِيْثَ قَالَتْ وَمَا ذَاكِ قَالَتْ كَذَا وَ كَذَا قَالَتْ عَائِشَةُ سَمِعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ نَعَمْ قَالَتْ وَ أَبُوْ بَكْرٍ قَالَتْ نَعَمْ فَخَرَّتْ مَغْشِيًّا عَلَيْهَا فَمَا أَفَاقَتْ إِلَّا وَ عَلَيْهَا حُمّٰى بِنَافِضٍ فَطَرَحْتُ عَلَيْهَا ثِيَابَهَا فَغَطَّيْتُهَا فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا شَأْنُ هٰذِهِ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَخَذَتْهَا الْحُمّٰى بِنَافِضٍ قَالَ فَلَعَلَّ فِيْ

ذَ هغوي لوم ابو سلمه بن عبدالرحمٰن او ابوبكر بن عبدالرحمٰن بن حارث دے' ماته ذكر كړے دے' چه بي بي عائشےؓ فرمائيل' چه حضرت علي ؓ ذَ هغے په دے معامله كښ خاموش وو. بيا خلقو هشام بن يوسف نه دوباره تپوس اوكه' نو هغهٔ دغسے اووے ذَ مسلمًا لفظ او ذَ عليه لفظ ئے زيات كړلو.

۱۷۹: موسٰي بن اسماعيل. ابو عوانه. حصين بن عبدالرحمٰن. ابو وائل. مسروق بن اجدع نه روايت كوي' هغهٔ اووے ماته اُم رومان ذَ بي بي عائشےؓ مور اووے' زهٔ او عائشهؓ دواړه ناست وُو. دے كښ يوه انصاريه ښځه راغله' ذَ هغے نوم ماته معلوم نهٔ دے' هغے اووے' اللّٰه دے فلان فلان تباه كړي. ما ترے تپوس اوكهٔ' داسے ولے وائے. هغے اووے' ځما خوئے هم دے خبره كښ شريک دے (تهمت لګونكو كښ) اُم رومان اووے' هغه څهٔ خبره ده' نو بيا هغے ذَ تهمت واقعه بيان كړه. بي بي عائشےؓ اووے' آيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلَم ته ذَ دے اطلاع شوے ده' هغے اووے' او' بيائے تپوس اوكهٔ' او ابوبكرؓ' ونيلے' او' بس دے آوريدو سره بي بي عائشهؓ بے هوشه راوغُرځيدله چه هوش كښ راغله' نو د يخنئ تبه پرے راغلے وه' ما پرے كپړے واچولے' او جسم مِ ورله پټ كړلو. دے نه پس حضورؐ دننه تشريف راوړلو' او تپوس ئے اوكهٔ' څه چل اوشو' ما جواب وركه' په دے د يخنئ تبه راغلے ده. حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو' معلوميږي' شايد ذَ دے طوفان يعني تهمت خبره ورته رسيدلے وي. ما عرض اوكهٔ' جي او' بيا

حَدِيْثٍ تُحَدِّثُ بِهٖ قَالَتْ نَعَمْ فَقَعَدَتْ عَآئِشَةُ فَقَالَتْ وَاللّٰهِ لَئِنْ حَلَفْتُ لَا تُصَدِّقُوْنِيْ وَلَئِنْ قُلْتُ لَا تَعْذِرُوْنِيْ مَثَلِيْ وَ مَثَلُكُمْ كَيَعْقُوْبَ وَ بَنِيْهِ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ قَالَتْ وَانْصَرَفَ وَلَمْ يَقُلْ شَيْئًا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عُذْرَهَا قَالَتْ بِحَمْدِ اللّٰهِ لَا بِحَمْدِ اَحَدٍ وَّلَا بِحَمْدِكَ.

عائشہؓ کیناسته، او قسم سره ئے اووے، که زهٔ خپله بے گناهي بیان کړم، نو هم تاسو به پرے یقین اونهٔ کړئ، اوس خو خما او ستاسو حال داسے دے، څنګه چه دَ یعقوبؑ او دَ هغهٔ دَ خامنو وو. یعقوبؑ صبر اوکړ، او وئیلے، زهٔ دَ اللّٰه نه ستاسو په جوړه شوے (خبرے) مدد غواړم. دے خبرے آوریدو سره حضورؐ خاموش لاړلو. آخر اللّٰه تعالٰي دَ بي بي عائشے پاکدامني ظاهره کړله او هغے اووے، زهٔ دَ اللّٰه نه سوا دَ بل چا شکریه نه ادا کوم.

۱۸۰ : حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ نَافِعِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَآئِشَةَ كَانَتْ تَقْرَأُ اِذْ تَلِقُوْنَهُ بِاَلْسِنَتِكُمْ وَ تَقُوْلُ الْوَلْقُ الْكَذِبُ قَالَ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ وَ كَانَتْ اَعْلَمَ مِنْ غَيْرِهَا بِذٰلِكَ لِاَنَّهُ نَزَلَ فِيْهَا.

۱۸۰ : یحیٰي بن جعفر. وکیع. نافع بن عمر عبداللّٰه بن ابي ملیکه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي هغے دَ سورهٔ نور دا آیت داسے تلاوت که: اِذْ تَلِقُوْنَهٗ بِاَلْسِنَتِكُمْ : دَ لام زیر سره ئے اووے. اوفرمائیل، چه دا ولق نه وتلے دے. او دَ دے معني د دروغو دي. دَ عبداللّٰه بن ابي ملیکه بیان دے، بي بي عائشهؓ په دے آیت دَ ټولونه زیاته پوهیدله، ځکه چه دا دَ هغے معاملے سره تعلق لري.

۱۸۱ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ ذَهَبْتُ اَسُبُّ حَسَّانَ عِنْدَ عَآئِشَةَ فَقَالَتْ لَا تَسُبَّهُ فَاِنَّهُ كَانَ يُنَافِحُ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَتْ عَآئِشَةُ اسْتَاْذَنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هِجَآءِ الْمُشْرِكِيْنَ قَالَ كَيْفَ بِنَسَبِيْ

۱۸۱ : عثمان بن ابي شیبه. عبده بن سلیمان. هشام بن عروه. دَ خپل پلار نه روایت کوي چه زهٔ بي بي عائشےؓ له ورغلم، او حسان ته م بد رد وئیل، نو هغے اووے، ته حسان ته بد رد مهٔ وایه. ځکه چه هغهٔ به دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ملګرتیا کښے دَ کافرو برخلاف جنګیدلو، بي بي عائشےؓ اوفرمائیل، یو ځلے حسان د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه اجازت طلب کړ، چه ما ته دَ قریشو دَ مذمت او هجو کولو اجازت راکړئے. حضورؐ ورته اوفرمائیل، قریشو ته بد مهٔ وایه، ځکه چه زهٔ هم قریشي یم، حسان عرض اوکړ. دا

قَالَ لَأَسْلُنَّكَ مِنْهُمْ كَمَا تُسَلُّ الشَّعَرَةُ مِنَ الْعَجِينِ وَ قَالَ مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ فَرْقَدٍ سَمِعْتُ هِشَامًا عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَبَبْتُ حَسَّانَ وَ كَانَ مِمَّنْ كَثَّرَ عَلَيْهَا.

صحيح ده' ليكن زهٔ به ترے تاسوٌ او كارم' لكه ويښته چه ذ اُوړو نه اوبنكلے شي' امام بخاريؒ ته شيخ محمد بن عقبه اووے' ماته عثمان بن فرقد اووے' ما ذ خپل پلار عروه نه واوريدل' هغهٔ ونيلے ما حسان ته بد اووے' خكه چه بي بي عائشےؓ باندے ذ تهمت لږونكو نه و' (خو عائشےؓ زهٔ منع كرم).

۱۸۲ : حَدَّثَنِيْ بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِى الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ دَخَلْنَا عَلٰى عَائِشَةَ وَ عِنْدَهَا حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ يُنْشِدُهَا شِعْرًا يُشَبِّبُ بِأَبْيَاتٍ لَهُ وَ قَالَ ـ

حَصَانٌ رَزَانٌ مَا تُزَنُّ بِرِيْبَةٍ

وَ تُصْبِحُ غَرْثٰى مِنْ لُحُوْمِ الْغَوَافِلِ

فَقَالَتْ لَهُ عَائِشَةُ لٰكِنَّكَ لَسْتَ كَذٰلِكَ قَالَ مَسْرُوْقٌ فَقُلْتُ لَهَا لِمَا تَأْذَنِيْ لَهُ أَنْ يَدْخُلَ عَلَيْكِ وَقَدْ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَالَّذِيْ تَوَلّٰى كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيْمٌ فَقَالَتْ وَ أَيُّ عَذَابٍ أَشَدُّ مِنَ الْعَمٰى فَقَالَتْ لَهُ إِنَّهُ كَانَ يُنَافِحُ أَوْ يُهَاجِيْ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۸۲ : بشر بن خالد. محمد بن جعفر. سليمان. ابو الضحي. حضرت مسروق نه روايت كوي هغهٔ اووے. مونږ ذ بي بي عائشےؓ په خدمت كښ حاضر شو' نو حضرت حسان بن ثابتؓ هغے ته اشعار آوړول' او ونيل ئے:

- خصانٌ رَّزانٌ ما تزنّ بريبةٍ

و تصبح غرثٰى من لحوم الغوافل[۱]

بي بي عائشےؓ حسان ته اووے' دا خو ټيک ده' خو تهٔ داسے نهٔ ئے. ذ مسروق وينا ده' ما بي بي عائشےؓ ته عرض اوكه' تهٔ حسان ولے پريږدے' حالانكه الله تعالي سورهٔ نور كښ فرمائي: وَالذى تولّٰى كبرهٗ منهم له عذاب عظيم: يعني چا چه دے تهمت لږولو كښ زياته حصه واخسته' هغهٔ ذ پاره لوئے عذاب دے. نو بي بي عائشےؓ اوفرمائيل ذ ړنديدو نه زيات كوم عذاب دے. هغے دا هم اووے' حسان به رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره ذ كافرو خلاف جنگيدلو' او ذ مشركانو هجوه به ئے كوله.

۱. يعني غيبت نه كوي ولے چه په حديث كښے دي چه ذ خپل ديني رور خور غيبت كونكے سړے د هغهٔ غوښه خوري.

۱. دا آيت د عبدالله بن اُبَي بن سلول رأس المنافقين په باره کښې نازل شوې وو، ځنګه چه معلومه ده، عائشې رضي الله عنها ذ حسّان رضي الله عنه په شان کښې څه بده خبره نه ګواره کوله. د حسّان رضي الله عنه نه په تهمت کښې د شرکت غلطي ضرور شوې وه، ليکن کومو صحابهؓ چه په دې کښې د شرکت غلطي کړې وه هغه ټولو حضراتو توبې ويستې وه او د هغوئ توبه قبوله شوې وه ليکن بهرحال په حضرت عائشې باندې ډير لوئې تهمت لګولې شوې وو، او اګرچه د هغې زړه په غلطئ سره ذ شريکيدونکو صحابهؓ د طرفه صفا شوې وو ځنګه چه د واقعاتو نه ښکاره ده ليکن کله چه به دغه قسمه تذکرې کيدلې نو ذ زړه له زور ورتلل يو قدرتي خبره وه. دلته هم حضرت عائشې رضي الله عنها يو دوه ځوکه کيدونکې جملې غالبًا په همدې تاثر کښې ونيلې دي.

بـاب ۳۶: غَـزْوَةِ الْحُدَيْبِيَّةِ. وَ قَـوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى: لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُـؤْمِـنِيْـنَ اِذْ يُبَـايِـعُـوْنَكَ تَـحْـتَ الشَّجَرَةِ.

باب ۳۶: ذ غزوهٔ حديبيه بيان. او ذ الله تعالٰي دا ارشاد، چه الله تبارک و تعالٰي ذ مسلمانانو نه راضي شولو، کوم وخت چه هغوي ذ اُونې لاندې ذ حضورؐ نه بيعت کولو.

۱۸۳: حَـدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَـدَّثَـنَـا سُلَيْـمَـانُ بْـنُ بِلَالٍ قَـالَ حَـدَّثَنِيْ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰـهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ خَـرَجْـنَـا مَـعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فَـاَصَـابَـنَـا مَـطَرٌ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَصَلّٰى لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ ثُمَّ اَقْبَلَ عَلَيْنَا فَقَالَ اَتَدْرُوْنَ مَـا ذَا قَـالَ رَبُّـكُـمْ قُلْنَا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْـلَـمُ فَـقَـالَ قَـالَ اللّٰـهُ اَصْبَحَ مِنْ عِبَادِيْ مُؤْمِنٌ بِيْ وَ كَافِرٌ بِيْ فَاَمَّا مَنْ قَالَ مُطِرْنَا بِرَحْمَةِ اللّٰهِ وَ بِرِزْقِ اللّٰهِ وَ بِـفَـضْـلِ اللّٰـهِ فَهُـوَ مُؤْمِنٌ بِيْ كَافِرٌ بِـالْكَوْكَبِ وَ اَمَّا مَنْ قَالَ مُطِرْنَا بِنَجْمِ

۱۸۳: خـالـد بـن مـخـلـد. سليمـان بن بلال. صـالـح بـن کيسـان. عبيـدالله بن عبدالله حضرت زيد بـن خـالـد نـه روايـت کـوي، هغـه وائي، ذ حديبيه په کـال مونږ هـم رسـول الله صـلي الله عليـه وسلّم سـره مـلـګـري وو، يـوه شپـه بـاران شـو، نو حضورؐ ذ سحر مـونـځ کـولـو نـه پـس مـونږ تـه متوجـه شو، او ارشـاد ئې اوفـرمـاليلو، آيا تاسوته معلومه ده، چه ستاسو رب څهٔ ارشاد فرمائيلې دې. مونږ عرض او کړ، الله او ذ هغهٔ رسـول ښـهٔ پـوهيږي، حضورؐ اوفرمائيل، الله تعالٰي ارشاد فـرمـائي، ډير خلق داسې دي، چه په هغوي سحر شـي، نـو پـه مـا ايمان راوړي، او ډير داسې دي، چه منکر شـي، يـعـنـي څـوک چـه دا وائـي، چه دا باران په مونږ د خـدائې فضل سره شوې دې، نو هغوي خو ايماندار دي، او څـوک چـه دا وائـي چـه نـه دا ذ څهٔ ستوري ذ اثر نه شـوې دې، نـو هغه په ستورو ايمان نړي، په خدائې تعالٰي

كَذَا فَهُوَ مُؤْمِنٌ بِالْكَوْكَبِ كَافِرٌ بِيْ.

ايمان نه لري.

۱۸۴ : حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسًا أَخْبَرَهُ قَالَ اعْتَمَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ عُمَرٍ كُلُّهُنَّ فِيْ ذِي الْقَعْدَةِ إِلَّا الَّتِيْ كَانَتْ مَعَ حَجَّتِهِ عُمْرَةً مِنَ الْحُدَيْبِيَةِ فِيْ ذِي الْقَعْدَةِ وَعُمْرَةً مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فِيْ ذِي الْقَعْدَةِ وَعُمْرَةً مِنَ الْجِعْرَانَةِ حَيْثُ قَسَمَ غَنَائِمَ حُنَيْنٍ فِيْ ذِي الْقَعْدَةِ وَعُمْرَةً مَعَ حَجَّتِهِ.

۱۸۴ : هدبه بن خالد. همام بن يحيٰي. قتاده نه او هغهٔ له حضرت انس اوفرمائيل' چه رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلّم کل څلور عمرے اوکړے' ټولے ماهِ ذي قعده کښ' خو يوه هغه چه حج سره ئے ذي الحجه کښ کړے وهٔ' نو دَ حديبيے هغه ذي قعده کښ اوشوه. بيا دَ دويم کال هم ذي قعده کښ دے له پس دَ جعرانه عمره' کوم ځائے چه دَ حنين مال ئے تقسيم کړے وو' هغه ذي قعده کښ اوشوه' او څلورمه عمره ئے دَ ذي الحجه مياشت حج سره ادا کړه.

۱۸۵ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ قَتَادَةَ أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ قَالَ انْطَلَقْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فَأَحْرَمَ أَصْحَابُهُ وَلَمْ أُحْرِمْ.

۱۸۵ : سعيد بن ربيع. علي بن مبارک. يحيٰي بن ابي کثير. عبداللّٰه بن قتاده. دَ خپل پلار قتاده نه روايت کوي' هغهٔ اووے' ټولو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره حديبيه کښ احرام تړلے وو' خو ما نهٔ وو تړلے.

۱۸۶ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ إِسْرَائِيْلَ عَنْ أَبِيْ إِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ تَعُدُّوْنَ أَنْتُمُ الْفَتْحَ فَتْحَ مَكَّةَ وَقَدْ كَانَ فَتْحُ مَكَّةَ فَتْحًا وَنَحْنُ نَعُدُّ الْفَتْحَ بَيْعَةَ الرِّضْوَانِ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ عَشْرَةَ مِائَةً وَالْحُدَيْبِيَةُ بِئْرٌ فَنَزَحْنَاهَا فَلَمْ نَتْرُكْ فِيْهَا قَطْرَةً فَبَلَغَ

۱۸۶ : عبيداللّٰه بن موسٰي. اسرائيل. ابو اسحٰق. حضرت براءؓ نه روايت کوي' هغهٔ اووے' اے خلقو' تاسو دَ: إِنَّا فَتَحْنَا: نه دَ مکے فتح مراد اخلئے. بيشکه دَ مکے فتح هم يوه فتح ده' ليکن مونږ بيعت رضوان' فتح ګنړو. مونږ ټول څوارلس سوه سړي رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره ملګرے وو. حديبيه يو کوهے وو' مونږ دَ هغے نه اُوبه ډکول شروع کړل' ترديے چه يوه يوه قطره مو ترے راوښکله' ځکه چه ډير خلق تږي وو. دا خبر چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته اورسيد' نو حضورؐ

ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَاهَا فَجَلَسَ عَلٰى شَفِيْرِهَا ثُمَّ دَعَا بِإِنَاءٍ مِّنْ مَّاءٍ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ مَضْمَضَ وَ دَعَا ثُمَّ صَبَّهُ فِيْهَا فَتَرَكْنَاهَا غَيْرَ بَعِيْدٍ ثُمَّ إِنَّهَا أَصْدَرَتْنَا مَا شِئْنَا نَحْنُ وَ رِكَابُنَا.

تشريف راوړلو، او د كوهي په غاړه كيناستلو. د اوبو لوښے ئے اوغښتلو، او اودس ئے اوكړلو، خوله ئے كنګال كړه، او د الله تعالٰي نه ئے دعا اوغستله. بيائے بچ شوے اوبه كوهي كښې اوغورځولے. او انتظار ئے كولو. بيا هغے كوهي مونږ ته او خمونږ خناورو ته په مړه خيټ اوبه راكړلے.

۱۸۷ : حَدَّثَنِيْ فَضْلُ بْنُ يَعْقُوْبَ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَعْيَنَ أَبُوْ عَلِيٍّ الْحَرَّانِيُّ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ إِسْحٰقَ قَالَ أَنْبَأَنَا الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ أَنَّهُمْ كَانُوْا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ أَلْفًا وَ أَرْبَعَ مِائَةٍ أَوْ أَكْثَرَ فَنَزَلُوْا عَلٰى بِئْرٍ فَنَزَحُوْهَا فَأَتَوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَى الْبِئْرَ وَ قَعَدَ عَلٰى شَفِيْرِهَا ثُمَّ قَالَ ائْتُوْنِيْ بِدَلْوٍ مِّنْ مَّاءِهَا فَأُتِيَ بِهٖ فَبَصَقَ فَدَعَا ثُمَّ قَالَ دَعُوْهَا سَاعَةً فَأَرْوَوْا أَنْفُسَهُمْ وَ رِكَابَهُمْ حَتّٰى ارْتَحَلُوْا.

۱۸۷ : فضل بن يعقوب. حسن بن محمد بن اعين. ابو علي حراني. زهير بن معاويه. ابو اسحا[ق] سبيعي اووے. مونږ ته حضرت براء بن عازب اوو[ئيل] مونږ ټول رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره څ[وارلس] پاسه څوارلس كسان ملګرے وو. مونږ يو كوهي [...] ايسار شولو، او ټولے اوبه مو راوښكلے. بيا د حض[رت] صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې مو عرض اوكړ، رسول الله، اوبه باقي پاتے نه شوے (يعني ختمے شوے) اوس څه كول پكار دي. نو حضورؐ سمدستي تشريف راوړلو، د كوهي په غاړه كيناستلو، او وے فرمائيل [...] هغے د اوبو يوه ډولچه راوړئے، نو حاضره كړے شوه. حضورؐ هغے كښې د خپلے خولے مباركے لعاب يعني لاړے واچولے. خدائے نه ئے سوال اوكړ، لږ ساعت پس ټولو خلقو خپله هم او په خپلو څاروو هم په مړه خيټه اوبه اوڅكولے.

۱۸۸ : حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ عِيْسٰى حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ عَطِشَ النَّاسُ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۱۸۸ : يوسف بن عيسي. محمد بن فضيل. حصين بن عبدالرحمٰن. سالم. حضرت جابرؓ نه روايت كوي، هغه اووے، د حديبيه په ورځ خلقو د اوبو سخت كمي محسوسولو. صرف رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره يو لوښے وو چه هغے كښې اوبه موجود وے

بَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا ثُمَّ أَقْبَلَ النَّاسُ نَحْوَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لَكُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ لَيْسَ عِنْدَنَا مَاءٌ نَتَوَضَّأُ بِهِ وَلَا نَشْرَبُ إِلَّا مَا فِي رَكْوَتِكَ قَالَ فَوَضَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ فِي الرَّكْوَةِ فَجَعَلَ الْمَاءُ يَفُورُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ كَأَمْثَالِ الْعُيُونِ قَالَ فَشَرِبْنَا وَتَوَضَّأْنَا فَقُلْتُ لِجَابِرٍ كَمْ كُنْتُمْ يَوْمَئِذٍ قَالَ لَوْ كُنَّا مِائَةَ أَلْفٍ لَكَفَانَا كُنَّا خَمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً.

حضورؐ هغې سره اودس اوکړ، او د خلقو نه ئې تپوس اوکړ، څه حال دے. تپولو عرض اوکړ، یا رسول الله بس دغه اوبه دي، کومې چه ستاسو په لوښي کښې دي. حضرت جابر وائي. دے آوریدو سره حضورؐ خپل لاس مبارک په اوبو کښې کیښودلو. او د حضورؐ د ګوتو مبارکو نه د فوارے په شان اُوبه بهیدلے، تردے چه مونږ تپولو اودس اوکړه. او ښے مو اوڅکلے، سالم تپوس اوکړ، په هغه ورځ تاسو څومره کسان وئے، هغۀ ورته اوفرمائیل، که ذیو لاکھ تعداد کښې هم وے، نو ښیا به هم کافي کیدے. خو په هغه ورځ مونږ ټول پنځلس سوه سړي وو.

۱۸۹ : حَدَّثَنَا الصَّلْتُ ابْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ قَتَادَةَ قُلْتُ لِسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ بَلَغَنِي أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ كَانَ يَقُولُ كَانُوا أَرْبَعَ عَشْرَةَ مِائَةً فَقَالَ لِي سَعِيدٌ حَدَّثَنِي جَابِرٌ كَانُوا خَمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً الَّذِينَ بَايَعُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ قَالَ أَبُو دَاوُدَ حَدَّثَنَا قُرَّةُ عَنْ قَتَادَةَ تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ.

۱۸۹ : صلت بن محمد. یزید بن زریع. سعید بن ابي عروبه. حضرت قتاده نه روایت کوي، هغۀ اووے، ما سعید بن مسیب ته اووے ماته معلومه شوے ده، چه حضرت جابر بن عبدالله د شرکائے حدیبیه شمیر څوارلس سوه کوي. سعید جواب ورکړ، ماته حضرت جابر اووے، د صلح حدیبیه په ورځ بیعت کونکي پنځلس سوه حضرات وو. ابو داؤد وائي، مونږ ته قره بن خالد اووے، هغۀ د قتاده نه او محمد بن بشار سره هم ابو داؤد سره دا روایت کړے دے.

۱۹۰ : حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ قَالَ قَالَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ أَنْتُمْ خَيْرُ أَهْلِ

۱۹۰ : علي بن عبدالله مدیني. سفیان بن عیینه. عمرو بن دینار. حضرت جابر بن عبدالله نه روایت کوي، هغۀ اووے، رسول الله صلي الله علیه وسلّم د حدیبیه په ورځ صحابهؓ ته ارشاد اوفرمائیلو نن تاسو د ټولے زمکے والو نه افضل ئې. جابر وائي، په هغه ورځ

الْاَرْضِ وَ كُنَّا اَلْفًا وَّ اَرْبَعَمِائَةٍ وَّلَوْ كُنْتُ اُبْصِرُ الْيَوْمَ لَاَرَيْتُكُمْ مَكَانَ الشَّجَرَةِ تَابَعَهُ الْاَعْمَشُ سَمِعَ سَالِمًا سَمِعَ جَابِرًا اَلْفًا وَّ اَرْبَعَ مِائَةٍ وَّ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ اَوْفٰيؓ كَانَ اَصْحَابُ الشَّجَرَةِ اَلْفًا وَّ ثَلٰثَ مِائَةٍ وَّ كَانَتْ اَسْلَمُ ثُمُنَ الْمُهَاجِرِيْنَ تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ دَاوٗدَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ.

خوارلس سوه سري وو، که نن زهٔ بینا[١] وے، لو تاسو ته به م د کیکر هغه اُونه ښودلے وے. دا حدیث سفیان سره اعمش هم بیانوي. هغه د سالم بن ابي جعده نه واوریدل، او هغه د حضرت جابرؓ نه واوریدل، چه خوارلس سوه سري وو، عبیدالله بن معاذ، د شعبه بن حجاج نه، هغهٔ د عمرو بن مره نه او هغهٔ ته عبدالله بن ابي اوفي بیان اوکهٔ، چه بیعت رضوان کښې د خلقو تعداد دیارلس سوه وو، او د قبیلهٔ اسلم خلق د مهاجرینو د اتمې حصې برابر وو. عبیدالله بن معاذ سره دا حدیث معاذ بن بشار هم روایت کړے دے. د هغهٔ نه ابو داود طیالسي او د هغهٔ نه شعبه بیان اوکهٔ.

[١]. جابر رضي الله عنه په آخري عمر کښې نابینا شوے وو.

**۱۹۱ :** حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عِيْسٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ اَنَّهٗ سَمِعَ مِرْدَاسًا الْاَسْلَمِيَّ يَقُوْلُ وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ الشَّجَرَةِ يُقْبَضُ الصَّالِحُوْنَ الْاَوَّلُ فَالْاَوَّلُ وَ تَبْقٰى حُفَالَةٌ كَحُفَالَةِ التَّمْرِ وَالشَّعِيْرِ لَا يَعْبَاُ اللّٰهُ بِهِمْ شَيْئًا.

**۱۹۱ :** ابراهیم بن موسٰی. عیسٰی بن خالد. اسماعیل. قیس نه روایت کوي هغهٔ د مرداس اسلمي نه چه اصحاب شجره کښې داخل دے، آوریدلے دي، چه قیامت ته قریب نیک خلق به یو یو واخستے شي. او د هغوي نه پس به هغه خلق پاتې شي، چه بیکاره به وي، لکه خرابې قجورے یا د وربشو بوس، او او د الله په نزد به د هغوئ هیڅ قیمت نه وي.

**۱۹۲ :** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ مَرْوَانَ وَالْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِيْ بِضْعَ عَشْرَةَ مِائَةً مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَلَمَّا كَانَ بِذِى الْحُلَيْفَةِ قَلَّدَ

**۱۹۲ :** علي بن عبدالله مدیني. سفیان بن عیینه. زهري. عروه بن زبیر نه او هغه د مروان او مسور نه روایت کوي، هغهٔ اووے. حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم د حدیبیه په کال تقریبًا خوارلس یا دیارلس سوه صحابه ؤ سره روان شو، ذوالحلیفه ته اورسیدلو. او هلته حضورؐ د قرباني ځناور ته هار واچولو. د قُب نه ئے وینه اوبهیوله، او د هغے ځائے نه ئے د عمرے احرام اوتړلو

الْهَدْيَ وَ اَشْعَرَ وَ اَحْرَمَ مِنْهَا لَا اُحْصِيْ كَمْ سَمِعْتُهُ مِنْ سُفْيَانَ حَتّٰى سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ لَا اَحْفَظُ مِنَ الزُّهْرِيِّ الْاِشْعَارَ وَالتَّقْلِيْدَ فَلَا اَدْرِيْ يَعْنِيْ مَوْضِعَ الْاِشْعَارِ وَالتَّقْلِيْدِ اَوِ الْحَدِيْثَ كُلَّهُ.

علي بن مديني وائي: زۀ نشم شميرلے چه ما دا حديث څومره ځله د سفيان نه آوريدلے دے. هغۀ اووے: د زهري نه هار اچول او قُب خيرل ياد پاتے نۀ شو. اوس ماته معلومه نۀ ده، چه د هغۀ مطلب څۀ وو، يعني د اشعار او تقليد مقام ياد پاتے نۀ شو، يا تمام حديث ياد پاتے نۀ شو.

۱۹۳: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ خَلَفٍ قَالَ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ وَرْقَاءَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰهُ وَ قَمْلُهُ يَسْقُطُ عَلٰى وَجْهِهٖ فَقَالَ اَيُؤْذِيْكَ هَوَامُّكَ قَالَ نَعَمْ فَاَمَرَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّحْلِقَ وَهُوَ بِالْحُدَيْبِيَةِ لَمْ يُبَيِّنْ لَهُمْ اَنَّهُمْ يَحِلُّوْنَ بِهَا وَهُمْ عَلٰى طَمَعٍ اَنْ يَّدْخُلُوْا مَكَّةَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ الْفِدْيَةَ فَاَمَرَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُّطْعِمَ فَرَقًا بَيْنَ سِتَّةِ مَسَاكِيْنَ اَوْ يُهْدِيَ شَاةً اَوْ يَصُوْمَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ.

۱۹۳: حسن بن خلف. اسحاق بن يوسف. ابو بشر ورقاء. عمر بن ابي نجيح. مجاهد. عبدالرحمن بن ابي ليلٰي. كعب بن عجرهؓ نه روايت كوي، هغۀ اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلم زۀ اوليدم، چه څما د سر نه سپږے (جوګس) څما په مخ غرځيږي نو حضورؐ اوفرمائيل، تاته د دے تكليف دے، نو سر اُوخريه. دغه وخت حضورؐ حديبيه كښ وو، او ورته دا معلومه نۀ وه، چه د مكے نه به منع كړے شي، او دلته به احرام كوزول وي بلكه اُميد ئے وو، چه مكه كښ به داخل شي او عمره به پوره كړي. دے نه پس الله تعالٰي د فديے آيت نازل كړلو (سورة بقره كښ) دغه وخت حضورؐ كعب ته حكم اوكۀ، چه شپږ مسكينانو ته دولس سيره خوراكه وركړه، يا يوه چيلئے قرباني كه، يا درے روژے اونيسه.

۱۹۴: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ

۱۹۴: اسماعيل بن عبدالله. امام مالك. زيد بن اسلم د خپل پلار اسلم نه روايت كوي، هغۀ اووے، زۀ حضرت عمرؓ سره بازار ته لاړم، هلته يوه خوانه ښځه ورسره يو ځائے شوه، هغے ورته اووے، اے امير المومنينه،

فَلَحِقَتْ عُمَرَ امْرَأَةٌ شَابَّةٌ فَقَالَتْ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ هَلَكَ زَوْجِي وَ تَرَكَ صِبْيَةً صِغَارًا وَاللّٰهِ مَا يُنْضِجُونَ كُرَاعًا وَلَا لَهُمْ زَرْعٌ وَلَا ضَرْعٌ وَخَشِيتُ أَنْ تَأْكُلَهُمُ الضَّبُعُ وَ أَنَا بِنْتُ خُفَافِ بْنِ أَيْمَاءَ الْغِفَارِيِّ وَقَدْ شَهِدَ أَبِي الْحُدَيْبِيَّةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَقَفَ مَعَهَا عُمَرُ وَلَمْ يَمْضِ ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِنَسَبٍ قَرِيبٍ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى بَعِيرٍ ظَهِيرٍ كَانَ مَرْبُوطًا فِي الدَّارِ فَحَمَلَ عَلَيْهِ غِرَارَتَيْنِ مَلَأَهُمَا طَعَامًا وَ حَمَلَ بَيْنَهُمَا نَفَقَةً وَ ثِيَابًا ثُمَّ نَاوَلَهَا بِخِطَامِهِ ثُمَّ قَالَ اقْتَادِيهِ فَلَنْ يَفْنَى حَتَّى يَأْتِيَكُمُ اللّٰهُ بِخَيْرٍ فَقَالَ رَجُلٌ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَكْثَرْتَ لَهَا قَالَ عُمَرُ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ وَاللّٰهِ إِنِّي لَأَرَى أَبَا هٰذِهِ وَ أَخَاهَا قَدْ حَاصَرَا حِصْنًا زَمَانًا فَافْتَتَحَاهُ ثُمَّ أَصْبَحْنَا نَسْتَفِيءُ سُهْمَانَهُمَا فِيهِ.

خـمـا خاوند مړ شوے دے، او واړۀ بچي ترے پاتے شوے دي. په الله م دے قسم وي دومره هم څۀ نشته، چه زۀ ذ بـچو ذ پاره څۀ پاخۀ کړے شم، نۀ څۀ فصل شته، او نه پيږ والـه څـناور شتـه. مـا سـره ويـره ده، چه چرته ذ قحط ذ وجـے هـغـوي مړۀ نشي. او زۀ ذ خفاف بن ايماء غفاري، لور، يم. او خـما پلار حديبيه کښ رسول الله صلي الله عليـه وسلـم سره موجود وو، دے آوريدو سره حضرت عـمـرؓ اوفرمائيل، مرحبا، ستا خاوند خو خما خاندان سره يعنـي نسـب سـره يـوخائے کيږي. دے نه پس حضرت عـمـرؓ پـه يـو اُوښ ذ غلے دوه بورئ او ذ هغے مينځ کښ کپړے او روپے کيښـودے. او ذ اُوښ رسـئ ئے ذ هغے ښـځـے پـه لاس کښ ورکـړه، او ورتـه ئے اوفرمائيل، دا واخـلـه، او څه، اميد دے چه ذ دے ختميدو نه مخکښ به الله تعالي ذ دے نه بهتر (رزق) درته عطا کړي. يو سړي دے کـيـفـيـت لـيـدو سـره اووے، تـاسـو هغے لـه ډير څۀ ورکړل، حضرت عمرؓ ورته اوفرمائيل، اے مور دربانديے بـورچـنـده شه (يا مور دربانديے وير اوکړه) خدائے گواه دے، مـا ددے ښـځـے پـلار او ورور لـيـدلـے دے، هغـه ذ کـافرو قلعه هغه وخته پورے راګيره کړے وه، څو پورے چـه فتح شـوے نـۀ وه. بـيـا سحر ذ مال غنيمت نه ذ هغے دواړو حصه وصول کړے شوه.

۱۹۵: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ ابْنُ سَوَّارٍ أَبُو عَمْرٍو الْفَزَارِيُّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ لَقَدْ رَأَيْتُ الشَّجَرَةَ ثُمَّ أَتَيْتُهَا بَعْدُ

۱۹۵: محمد بن رافع. شبابه بن سوار. ابو عمرو فزاري. شعبه. قتاده. سعيد بن مسيب نه او هغه ذ خپل پـلار نـه روايت کـوي، هغۀ اووے، ما هغه اُونه (درخت) لـيـدلے ده، چه ذ هغے لاندے بيعت آخستے شوے وو، خو مـا چـه هـغـه دوبـاره اوکـتـلـه، نـو پـيـژنـدے نـه شوه، شيخ

فَلَمْ أَعْرِفْهَا قَالَ مَحْمُودٌ ثُمَّ أُنْسِيتُهَا بَعْدُ.

بخاريؒ محمود بن غيلان وائي' ابن مسيب اووې' مانه هغه هيره شوه.

۱۹٦ : حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ طَارِقِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ انْطَلَقْتُ حَاجًّا فَمَرَرْتُ بِقَوْمٍ يُصَلُّونَ قُلْتُ مَا هٰذَا الْمَسْجِدُ قَالُوا هٰذِهِ الشَّجَرَةُ حَيْثُ بَايَعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْعَةَ الرِّضْوَانِ فَأَتَيْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ سَعِيدٌ حَدَّثَنِي أَبِي كَانَ فِيمَنْ بَايَعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ قَالَ فَلَمَّا خَرَجْنَا مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ نَسِينَاهَا فَلَمْ نَقْدِرْ عَلَيْهَا فَقَالَ سَعِيدٌ إِنَّ أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَعْلَمُوهَا وَ عَلِمْتُمُوهَا أَنْتُمْ فَأَنْتُمْ أَعْلَمُ.

۱۹٦ : محمود. عبيدالله. اسرائيل بن يونس. طارق بن عبدالرحمن نه روايت كوي' هغه بيان اوكړ' زه ذ حج په غرض مكې ته تلم' لار كښې م اوليدل' چه څه خلق مونځ كوي' ما تپوس اوكړ' دلته كوم جُمات دې جواب ئې راكړ. دا هغه اُونه ده' چه ذ دې لاندې رسول اكرم صلي الله عليه وسلّم ذ صحابهٔ ؤ نه بيعت اخستې وو. دې آوريدو سره زه سعيد بن مسيب له راغلم' او هغه ته م دا خبره بيان كړه' هغه اووې' خما پلار (مسيب بن حزن) هغې خلقو كښې دې' چه هغوي ذ حضورؐ نه ذ دې اُونې لاندې بيعت كړې وو. ذ هغه خائې او اُونه رانه هير شولو. سعيد وائي' ذ رسول اكرم صلي الله عليه وسلّم صحابه ؤُ خو ذ هغې اُونې شناخت اونه كړې شو' نو تاسو څنګه اوپيژنده' تاسو ذ هغوي نه زيات علم واله ئې.

۱۹۷ : حَدَّثَنَا مُوسٰى حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ حَدَّثَنَا طَارِقٌ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ كَانَ مِمَّنْ بَايَعَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَرَجَعْنَا إِلَيْهَا الْعَامَ الْمُقْبِلَ فَعَمِيَتْ عَلَيْنَا.

۱۹۷ : موسي بن اسماعيل. ابو عوانه. طارق. سعيد بن مسيب نه' او هغهٔ ذ خپل پلار نه' او هغه ذ هغې حضراتو نه وو' چه هغوي ذ اُونې لاندې بيعت كړې وو' وائي مونږ په دويم كال هلته لاړلو' نو مونږ اُونهٔ پيژندله' چه كومه اُونه ده.

۱۹۸ : حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ طَارِقٍ قَالَ ذُكِرَتْ عِنْدَ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ الشَّجَرَةُ فَضَحِكَ فَقَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي وَ كَانَ

۱۹۸ : قبيصه بن عقبه. سفيان ثوري. طارق نه روايت كوي' چه سعيد بن مسيب كوم وخت چه ذ هغې اُونې ذكر راغې' خندا كښې اووې. خما پلار چه ماته څهٔ بيان كړل' هغه مخكښې تير شو (يعني ذ هغې ذكر

شَهِدَهَا.

١٩٩ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِيْ اَوْفٰى وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ الشَّجَرَةِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَتَاهُ قَوْمٌ بِصَدَقَةٍ قَالَ اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِمْ فَاَتَاهُ اَبِيْ بِصَدَقَتِهٖ فَقَالَ اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى اٰلِ اَبِيْ اَوْفٰى.

مخکښ اوشو ؛ او خما پلار دے بیعت کښ شریک وو.

١٩٩ : آدم بن ابي اياس. شعبه. عمرو بن مره نه روايت كوي' هغه اووے' ما د عبدالله بن ابي اوفي نه واوريدل' چه بيعت رضوان كښ شامل وو' ذَ حضور صلي الله عليه وسلم دا عادت مبارک وو' چه کله به يو قوم حضورؐ له صدقے ورکولو له راغلو' نو حضورؐ به فرمائيل' اے الله' په دوي خپل رحم اوکړے. خما پلار هم صدقے سره حاضر شوے' نو حضورؐ اوفرمائيل' اے الله' ذ عبدالله بن اوفي په اولاد باندے خپل رحم اوکړے.

ف : په داسے موقع صدقه يا زکوة ورکونکي او ذ هغهٔ اولاد ته دُعا پکار ده. الله پاک دے مونږ او خمونږ آل و اولاد له هم ذ داسے کار خير توفيق ورکړي. اللّٰهم آمين.

٢٠٠ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ اَخِيْهِ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيٰى عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْحَرَّةِ وَالنَّاسُ يُبَايِعُوْنَ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَنْظَلَةَ النَّاسَ فَقَالَ ابْنُ زَيْدٍ عَلٰى مَا يُبَايِعُ ابْنُ حَنْظَلَةَ النَّاسَ قِيْلَ لَهٗ عَلَى الْمَوْتِ قَالَ لَا اُبَايِعُ عَلٰى ذٰلِكَ اَحَدًا بَعْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ شَهِدَ مَعَهُ الْحُدَيْبِيَّةَ.

٢٠٠ : اسماعيل بن ابي اويس. عبدالحميد. ذ هغهٔ ورور. سليمان بن عمرو بن يحيي نازلي. عباد بن تميم نه روايت كوي' هغهٔ اووے' ذ جنگ حره په ورځ خلقو ذ عبدالله بن حنظله نه بيعت کولو. ابن زيد تپوس اوکهٔ' ابن حنظله ذ خلقو نه ذ څهٔ څيز بيعت آخلي چه ورته اووے په مرګ ابن زيد اووے. زهٔ ذ حضورؐ نه پس دے معامله کښ هيچا سره بيعت نهٔ کوم' ځکه چه ابن زيد حضور اکرم صلي الله عليه وسلم سره د حديبيه بيعت کښ حاضر وو.

٢٠١ : حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ يَعْلَى الْمُحَارِبِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ حَدَّثَنَا اِيَاسُ بْنُ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ

٢٠١ : يحيي بن يعلي محاربي. ذ خپل پلار نه. او هغه اياس بن سلمه بن اکوع نه روايت کوي' هغهٔ اووے' ماته خما پلار چه ذ اصحاب شجره نه وو' اووے' مونږ رسالت

الشَّجَرَةِ قَالَ كُنَّا نُصَلِّيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجُمُعَةَ ثُمَّ نَنْصَرِفُ وَ لَيْسَ لِلْحِيْطَانِ ظِلٌّ نَسْتَظِلُّ فِيْهِ.

مونږ ب صلي الله عليه وسلم سره د جمعې د مانځه نه پس واپس راغلو' نو د ديوالونو سورے به نه وو' چه مونږ تر لاندے ناست وے.

۲۰۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ قَالَ قُلْتُ لِسَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ عَلٰى اَيِّ شَيْءٍ بَايَعْتُمْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ قَالَ عَلَى الْمَوْتِ.

۲۰۲: قتيبه بن سعيد. حاتم. يزيد بن ابي عبيد نه روايت كوي' هغه خضرت سلمه بن اكوع ته اووے' چه تاسو د صلح حديبيه په موقع كوم اقرار سره ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه بيعت كړے وو. هغه اووے. مونږ په مرګ بيعت كړے وو (يعني تر مرګه به ذ باطل خلاف جنګيږو).

۲۰۳: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ اَشْكَابٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَقِيْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ فَقُلْتُ طُوْبٰى لَكَ صَحِبْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَايَعْتَهُ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَقَالَ يَا ابْنَ اَخِيْ اِنَّكَ لَا تَدْرِيْ مَا اَحْدَثْنَا بَعْدَهُ.

۲۰۳: احمد بن اشكاب. محمد بن فضيل. علاء بن مسيب. هغه ذ خپل پلار نه روايت كوي' هغه اووے' ما براء بن عازب ته اووے' تهٔ قابل ذ مبارک باد ئے' چه تاته ذ حضورؐ ذ صحبت شرف حاصل شوے دے. او تا ذ اُونے لاندے ذ حضورؐ نه ذ بيعت سعادت حاصل كړے دے. نو هغهٔ عاجزي سره اوفرمائيل' اے وروره' تاته معلومه نهٔ ده' چه مونږ ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه پس څهٔ څهٔ بدئ كړي دي.

۲۰۴: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ هُوَ ابْنُ سَلَّامٍ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ اَنَّ ثَابِتَ بْنَ الضَّحَّاكِ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ بَايَعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ.

۲۰۴: اسحاق. يحيي بن صالح. معاويه بن سلام. يحيي بن ابي كثير. ابو قلابه نه روايت كوي' هغهٔ ته ثابت بن ضحاک اوښودل' چه ما ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه ذ اُونے ذ لاندے ذ بيعت كولو سعادت حاصل كړے دے.

۲۰۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اِسْحٰقَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ اَخْبَرَنَا

۲۰۵: احمد بن اسحاق. عثمان بن عمر. شعبه. قتاده. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت كوي' هغهٔ

شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا قَالَ الْحُدَيْبِيَّةُ قَالَ اَصْحَابُهُ هَنِيْئًا مَرِيْئًا فَمَا لَنَا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ لِيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنّٰتٍ قَالَ شُعْبَةُ فَقَدِمْتُ الْكُوْفَةَ فَحَدَّثْتُ بِهٰذَا كُلِّهٖ عَنْ قَتَادَةَ ثُمَّ رَجَعْتُ فَذَكَرْتُ لَهٗ فَقَالَ اَمَّا اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَعَنْ اَنَسٍ وَّ اَمَّا هَنِيْئًا مَّرِيْئًا فَعَنْ عِكْرَمَةَ.

اووے: انّا فتحنا لک فتحا مبينا: نه مراد صلح حديبيه دے، هغه وخت ذ هغوي ملګرو ورته عرض اوکه. تاسو ذ پاره خو دا امر باعث تبرک او مسرت دے، خو مونږ ذ پاره هغه وخت دا آيت نازل شولو: ليدخل المؤمنين والمؤمنات جنّاتٍ: يعني مؤمنان سړي او مومنې ښځې به جنت کښې داخليږي، وائي، زهٔ کوفې ته راغلم، او دا حديث م قتاده ته بيان کهٔ، نو هغهٔ اوفرمائيل، چه ذ: انّا فتحنا تفسير حضرت انس بيان کړے دے. او هَنِيْئًا مَرِيْئًا: ذ حضرت عکرمه نه منقول دے.

۴۲۰۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ مَّجْزَاةَ ابْنِ زَاهِرِ الْاَسْلَمِيِّ عَنْ اَبِيْهِ وَ كَانَ مِمَّنْ شَهِدَ الشَّجَرَةَ قَالَ اِنِّيْ لَاُوْقِدُ تَحْتَ الْقِدْرِ بِلُحُوْمِ الْحُمُرِ اِذْ نَادٰى مُنَادِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَاكُمْ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ وَ عَنْ مَجْزَاةَ عَنْ رَّجُلٍ مِّنْهُمْ مِّنْ اَصْحَابِ الشَّجَرَةِ اِسْمُهٗ اُهْبَانُ بْنُ اَوْسٍ وَّ كَانَ اشْتَكٰى رُكْبَتَهٗ وَ كَانَ اِذَا سَجَدَ جَعَلَ تَحْتَ رُكْبَتِهٖ وِسَادَةً.

۴۲۰۶: عبداللّٰه بن محمد. ابو عامر عقدي. اسرائيل بن يونس. مجزاة بن زاهر اسلمي ذ خپل پلار نه، چه حديبيه کښې شريک وو، روايت کوي: هغه اووے، ما ذ خر غوښه پخوله (جنګ خيبر کښې) ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم يو منادي نِدا (آواز) اوکړلو چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تاسو ذ خر ذ غوښې نه منع کوي. او مجزاة دا هم وائي، چه ذ هغهٔ نوم اهبان بن اوس وو. او هغه هم ذ اُونې لاندې ذ بيعت کونکو نه وو، ذ هغه زنګونانو کښې ذ درد بيماري وه، کله چه به هغه سجده کوله، نو ذ هغې کناټې لاندې به ئې تکيه ايښودله، چه هغې ته تکليف او، نهٔ رسي.

۴۲۰۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ يَّحْيَى ابْنِ سَعِيْدٍ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ الشَّجَرَةِ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

۴۲۰۷: محمد بن بشار. ابن عدي. شعبه. يحيي بن سعيد. بشير بن يسار. حضرت سويد بن نعمان نه چه اصحاب شجره نه وو، روايت کوي، هغهٔ اووے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او ذ هغوي ملګرو به

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهُ اُتُوْا بِسَوِيْقٍ فَلَا كُوْهُ تَابَعَهُ مُعَاذٌ عَنْ شُعْبَةَ.

ستـوان څـكـلـو سره وخت تيـرولـو. ابـن عـدي چـه شـعـبـه نـه روايـت كـوي. معـاذ' ئـے ذ دے مرسـتـه كړے ده.

**۲۰۸** : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيْعٍ حَدَّثَنَا شَاذَانُ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ جَمْرَةَ قَالَ سَاَلْتُ عَائِذَ بْنَ عَمْرٍو وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَصْحَابِ الشَّجَرَةِ هَلْ يُنْقَضُ الْوِتْرُ قَالَ اِذَا اَوْ تَرْتَ مِنْ اَوَّلِهٖ فَلَا تُوْتِرْ مِنْ اٰخِرِهٖ.

**۲۰۸** : مـحـمـد بـن حـاتـم بـن بـزيع. شـاذان. شـعـبـه. ابـي جـمـره نـه روايـت كـوي' هـغـه اووے' مـا ذ عـائـذ بـن عـمـرو نـه چـه ذ اصـحـاب شـجـره نـه وو' تپـوس اوكـړه' چـه آيـا وتـر مـونـږ دوبـاره كـوو' نـو هـغـه اووے. كـه ذ شپے اول كښې ئے اوكـړے' نـو بيـا آخـر شپـه كښې كول ئے نه دي پكار.

**۲۰۹** : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسِيْرُ فِيْ بَعْضِ اَسْفَارِهٖ وَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِؓ يَسِيْرُ مَعَهُ لَيْلًا فَسَاَلَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَنْ شَيْءٍ فَلَمْ يُجِبْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ سَاَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ ثُمَّ سَاَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ وَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ثَكِلَتْكَ اُمُّكَ يَا عُمَرُ نَزَرْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّاتٍ كُلُّ ذٰلِكَ لَا يُجِيْبُكَ قَالَ عُمَرُ فَحَرَّكْتُ بَعِيْرِيْ ثُمَّ تَقَدَّمْتُ اَمَامَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ خَشِيْتُ اَنْ يَّنْزِلَ فِيَّ قُرْاٰنٌ وَ جِئْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ

**۲۰۹** : عبـدالـلّـه بن يوسف. امام مالک. زيد بن اسلم نه' هغه ذ خپل پلار نه روايت كوي' بعضے سفرونو كښې بـه حـضـور صـلـي الـلّـه عليه وسلّم ذ شپے تلو' او حضرت عمرؓ به ورسره وو' حضرت عمرؓ ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه څۀ تپوس اوكۀ' حضور صلي اللّٰه عليه وسـلّـم جـواب ورنـۀ كړلو. بيائے تپوس اوكۀ' جواب ئے ورنـۀ كـړلـو' بيـائـے تپـوس اوكۀ' جواب ئے ورنۀ كړلو. حـضـرت عـمـرؓ خپـل زړۀ كـښې اووے. اے عـمـرۀ مور دربـانـدے اوژاړه (يعـني مور دربانديے بوره شه) تا درے خـلـه ذ خبرے تپوس اوكۀ' او تاله حضور صلي اللّٰه عليه وسـلّـم جـواب ورنـۀ كـړلـو حضرت عمرؓ بيان كوي' ما اوښر لـه پونده وركړه' او ذ مسلمانانو نه مخكښې اووتلم' ذ دے ويرے نۀ' چه چرته خما متعلق آيت نازل نۀ شي. لږ ساعت پس چا ماته آواز كولو' زۀ زيات خوف زده شوم' چـه شـايـد خـمـا حق كښې قرآن (آيت) نازل شولو. زۀ ذ حـضـورؐ خـدمـت كـښې حـاضـر شـوم' او سلام مِ اوكـۀ.

فَقَالَ لَقَدْ اُنْزِلَتْ عَلَيَّ اللَّيْلَةَ سُوْرَةٌ لَهِيَ اَحَبُّ اِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَرَأَ اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِيْنًا.

حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو. ذ شپې په ما يو سورت نازل شوې دې، او هغه ماته د هغې ټولو څيزونو نه محبوب دې چه په هغې نمر طلوع کيږي. بيا حضورؐ: انا فتحنا لک فتحا مبينا: تلاوت کړلو.

۴۰۱۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ حِيْنَ حَدَّثَ هٰذَا الْحَدِيْثَ حَفِظْتُ بَعْضَهُ وَ ثَبَّتَنِيْ مَعْمَرٌ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ وَ مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ يَزِيْدُ اَحَدُهُمَا عَلٰى صَاحِبِهٖ قَالَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِيْ بِضْعَ عَشْرَةَ مِائَةً مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَلَمَّا اَتٰى ذَا الْحُلَيْفَةِ قَلَّدَ الْهَدْيَ وَ اَشْعَرَهُ وَ اَحْرَمَ مِنْهَا بِعُمْرَةٍ وَّ بَعَثَ عَيْنًا لَّهُ مِنْ خُزَاعَةَ وَ سَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى كَانَ بِغَدِيْرِ الْاَشْطَاطِ اَتَاهُ عَيْنُهُ قَالَ اِنَّ قُرَيْشًا جَمَعُوْا لَكَ جُمُوْعًا وَّقَدْ جَمَعُوْا لَكَ الْاَحَابِيْشَ وَهُمْ مُقَاتِلُوْكَ وَ صَادُّوْكَ عَنِ الْبَيْتِ وَمَانِعُوْكَ فَقَالَ اَشِيْرُوْا اَيُّهَا النَّاسُ عَلَيَّ اَتَرَوْنَ اَنْ اَمِيْلَ اِلٰى عِيَالِهِمْ وَ ذَرَارِيِّ هٰؤُلَاءِ الَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ

۴۰۱۰: عبدالله بن محمد. سفيان بن عيينه. زهري نه روايت کوي، ما د زهري نه واوريدل، کوم وخت چه هغهٔ پورتني حديث بيانولو، نو څهٔ ما ياد اوساتلو، او څهٔ معمر ماته ياد کړلو، هغه ذ عروه بن زبير نه او هغه ذ مسور او مروان نه روايت کوي، چه هغې کښې هر يو ذ بل نه زيات بيان کوي، هغهٔ اووې، حديبيه ذ پاره رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ لس سوو نه څو سوه زيات اصحابوؓ سره ذي الحليفه ته اورسيد، نو ذ قرباني ذ څناورو غاړه کښې ئې هار واچولو، او ذ هغې قب ئې اوخيرلو. او بيا ذ هغې ځائې نه ئې ذ عمرې احرام اوتړلو او بيا ذ بني خزاعه يو جاسوس حضورؐ مخکښې اوليږلو. او حضور صلي الله عليه وسلّم هم برابر تلو، تردې چه مقام غدير الاشطاط ته اورسيدلو. نو جاسوس حاضر خدمت شو، عرض ئې اوکهٔ چه قريشو ډير قبائل او حمايتيان تاسو سره جنګ کولو ذ پاره يوځائې کړې دي، هغوي تاسو بيت الله ته پريښنودل نهٔ غواړي حضورؐ مسلمانانوته اوفرمائيل، خلقو، ماته دې معامله کښې اوښائې، چه څهٔ کول پکار دي، آيا زهٔ ذ کافرو په اهل و عيال ورو اوغرځيږم، او هغوي تباه کړم، چه خمونږ ذ کعبې نه ذ منع کولو تدبيرونه کوي، او که هغوي مقابلې ذ پاره راشي، نو الله تعالي مددګار دې، هغهٔ خمونږ جاسوس ذ هغوي ذ لاس نه بچ کړې دې.

يَصُدُّوْنَا عَنِ الْبَيْتِ فَإِنْ يَّأْتُوْنَا كَانَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ قَدْ قَطَعَ عَيْنًا مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَ اِلَّا تَرَكْنَاهُمْ مَّحْرُوْبِيْنَ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ يَّا رَسُوْلَ اللّٰهِ خَرَجْتَ عَامِدًا لِّهٰذَا الْبَيْتِ لَا تُرِيْدُ قَتْلَ اَحَدٍ وَّلَا حَرْبَ اَحَدٍ فَتَوَجَّهْ لَهٗ فَمَنْ صَدَّنَا عَنْهُ قَاتَلْنَاهُ قَالَ امْضُوْا عَلٰى اسْمِ اللّٰهِ.

که هغوي رانغلل' نو مونږ به هغ ي ذ اُودو یا مغرور په شان پریږدو. په دے حضرت ابوبکرؓ عرض او کۀ' یا رسول اللّٰه' مونږ خو صرف ذ اللّٰه ذ کور په اراده حاضر شوے یُو' چاسره جنګ کول یا لوټ کول خمونږ غرض نۀ دے. تاسو اخوا روان شئ که څوک مونږ منع کړي' نو مونږ به هغوي سره جنګ کوو' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' پاسئے' ذَ اللّٰه نوم واخلئے.

۲۱۱: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا يَعْقُوْبُ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهٖ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّهٗ سَمِعَ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ يُخْبِرَانِ خَبَرًا مِّنْ خَبَرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ عُمْرَةِ الْحُدَيْبِيَّةِ فَكَانَ فِيْمَا اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ عَنْهُمَا اَنَّهٗ لَمَّا كَاتَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُهَيْلَ بْنَ عَمْرٍو يَّوْمَ الْحُدَيْبِيَّةِ عَلٰى قَضِيَّةِ الْمُدَّةِ وَ كَانَ فِيْمَا اشْتَرَطَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو اَنَّهٗ قَالَ لَا يَأْتِيْكَ مِنَّا اَحَدٌ وَّ اِنْ كَانَ عَلٰى دِيْنِكَ اِلَّا رَدَدْتَّهٗ اِلَيْنَا وَ خَلَّيْتَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَهٗ وَ اَبٰى سُهَيْلُ اَنْ يُّقَاضِيَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا عَلٰى ذٰلِكَ فَكَرِهَ الْمُؤْمِنُوْنَ ذٰلِكَ وَ امْعَضُوْا فَتَكَلَّمُوْا فِيْهِ فَلَمَّا اَبٰى سُهَيْلُ اَنْ يُّقَاضِيَ

۲۱۱: اسحاق بن راهویه. یعقوب بن ابراهیم. ابن اخي ابن شهاب. محمد بن مسلم. ابن شهاب. حضرت عروه بن زبیر نه روایت کوي' هغۀ اووے' ما ذ مروان او مسورؓ نه آوریدلے دي' هغه ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ حدیبیه ذ عمرے قصه بیانوله. راوي اووے' عروه چه دا قصه ماته بیان کړه' نو هغے کښ ئے دا خبره هم بیان کړه' هر کله چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ حدیبیه په ورخ سهیل بن عمرو سره معاهده د یو مودے ذ پاره تحریر کړله' نو ذ سهیل په شرطونو کښ یو شرط دا هم وو' که خمونږ څوک سړے اګر که هغه مسلمان شوے وي' تاسوله راشي' نو هغه به واپس کوئے. او تاسو به دے کښ رکاوټ نۀ اچوئے. سهیل بن عمرو په دے شرط اصرار اوکړلو' او مسلمانانو به نامنظورولو. لیکن سهیل بن عمرو دا شرط معاهده کښ داخل کړے وو. دے نه پس ابوجندل بن سهیل بن

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا عَلٰى ذٰلِكَ كَاتَبَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبَا جَنْدَلِ ابْنِ سُهَيْلٍ يَّوْمَئِذٍ اِلٰى اَبِيْهِ سُهَيْلِ بْنِ عَمْرٍو وَلَمْ يَأْتِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَدٌ مِّنَ الرِّجَالِ اِلَّا رَدَّهٗ فِيْ تِلْكَ الْمُدَّةِ وَ اِنْ كَانَ مُسْلِمًا فَجَآءَ تِ الْمُؤْمِنٰتُ مُهَاجِرَاتٍ فَكَانَتْ اُمُّ كُلْثُوْمٍ بِنْتُ عُقْبَةَ بْنِ اَبِيْ مُعَيْطٍ مِمَّنْ خَرَجَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هِيَ عَاتِقٌ فَجَآءَ اَهْلُهَا يَسْاَلُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّرْجِعَهَا اِلَيْهِمْ حَتّٰى اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى فِي الْمُؤْمِنٰتِ مَا اَنْزَلَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَّ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَآئِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْتَحِنُ مَنْ هَاجَرَ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ بِهٰذِهِ الْاٰيَةِ يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ وَ عَنْ عَمِّهٖ قَالَ بَلَغَنَا حِيْنَ اَمَرَ اللّٰهُ رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ اَبَا بَصِيْرٍ فَذَكَرَهٗ بِطُوْلِهٖ.

عمرو ذ هغه پلار ته حواله کړے شو (دے رسول الله صلي الله علیه وسلم سره حاضر وو) او دے درمیان کښې چه څوک به رسالت مےب صلي الله علیه وسلم سره حاضریدلو، حضورؐ به هغه واپس کولو، خواه هغه به مسلمان ولے نه وو نو ځنے ښځے هم په هجرت راغلے. ام کلثوم بنت عقبه بن ابي معیط هم راغله، او هغه بالغه وه، ذ هغې رشته دارانو حضور صلي الله علیه وسلم ته ذ هغې ذ واپسۍ خواست اوکړه نو هغه وخت ذ سورت ممتحنه هغه آیت نازل شو، چه ذ ښځو په حق کښې[۱] دے (یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا اِذَا جَاءَکُمُ الْمُؤْمِنَاتُ) ابن شهاب اووے. عروه بن زبیر وئیلے، بي بي عائشےؓ فرمائیل، چه کومو ښځو به هجرت اوکړه او رسول الله صلي الله علیه وسلم له به راغلے، نو حضورؐ به ذ دے آیت په موجب ذ هغوي امتحان اخستلو (یا ایها النبي اذا جاءک المؤمنات) یعني اے نبيؐ کومے ښځے چه تا له راشي، آخر پورے. ابن شهاب ذ خپل تره نه روایت کوي، هغه اووے، مونږ ته دا حدیث رارسیدلے دے، چه حضور صلي الله علیه وسلم ته الله تعالي ارشاد فرمائیلے دے، چه مشرکانو په خپلو هغه ښځو چه په هجرت راغلے دي، څه چه خرچ کړے وي، هغه دے واپس کړے شي، نو ذ ابو بصیر قصه نے تفصیل سره بیان کړے ده.

۱. چونکه د لوظنامے په شرط کښے د ښځو هیڅ ذکر نه وو په دے وجه چه کله د ښځو مسئله مخے

ته راغله نو پخپله قرآن مجيد كښې حكم نازل شو چه ښځې دِ مشركانو ته حواله نه كړې شي. ځكه چه دې سره د لوظنامې خلاف ورزي نه لازميږي.

۲۱۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَّالِكٍ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَؓ خَرَجَ مُعْتَمِرًا فِي الْفِتْنَةِ فَقَالَ اِنْ صُدِدْتُ عَنِ الْبَيْتِ صَنَعْنَا كَمَا صَنَعْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَهَلَّ بِعُمْرَةٍ مِّنْ اَجْلِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ.

۲۱۲: قتيبه. امام مالک. نافع نه روايت كوي، هغه فرمائي، عبدالله بن عمرؓ دَ فتنې په زمانه كښې دَ عمرې كولو دَ پاره اووتلو، او وئيل ئې، كه زهٔ دَ بيت الله نه منع كړې شوم نو زهٔ به هغه كوم، چه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم زمانه كښې مو حديبيه كښې كړې وو. غرض دا چه هغه دَ عمرې احرام اوتړلو، ځكه چه حضور صلي الله عليه وسلّم دَ عمرې احرام تړلې وو (دا زمانه دَ حجاج او دَ ابن زبير دَ جنگ وه).

۲۱۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ اَهَلَّ وَ قَالَ اِنْ حِيْلَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهُ لَفَعَلْتُ كَمَا فَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ حَالَتْ كُفَّارُ قُرَيْشٍ بَيْنَهُ وَ تَلَا لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ.

۲۱۳: مسدد. يحيٰي. عبيدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، چه هغه دَ عمرې كولو په نيت احرام اوتړلو، او بيائې وئيلې، كه زهٔ دَ بيت الله نه منع كړې شوم، نو زهٔ به هغه كوم، څهٔ چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم كړي وو. هر كله چه دَ قريشو كافرو حضورؐ منع كړې وو. بيائې دا آيت تلاوت كړلو: لقد كان لكم في رسول الله اسوة حسنه.

۲۱۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَسْمَآءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ وَ سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَاهُ اَنَّهُمَا كَلَّمَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ. ح وَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ بَعْضَ بَنِيْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَهُ لَوْ اَقَمْتَ الْعَامَ فَاِنِّيْ اَخَافُ اَنْ لَا

۲۱۴: عبدالله بن محمد بن اسماء. جويريه. حضرت نافع نه روايت كوي، چه هغهٔ ته عبيدالله بن عبدالله او سالم بن عبدالله اوښودل، چه موږ دواړو خپل پلار حضرت عبدالله بن عمرؓ سره خبرې اترې اوكړې. (دوئم سند) امام بخاريؒ. موسٰي بن اسماعيل. جويريه. حضرت نافع نه روايت كوي، دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ خامنو هغه ته اووې، سږكال تاسو عمرې له مهٔ ځئې، ځكه چه موږ سره ويره ده، شايد چه تاسو بيت الله ته اونهٔ رسئې. هغه اوفرمائيل، موږ رسول

تَصِلَ اِلَى الْبَيْتِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ دُوْنَ الْبَيْتِ فَنَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدَايَاهُ وَ حَلَقَ وَ قَصَّرَ اَصْحَابُهُ وَ قَالَ اُشْهِدُكُمْ اَنِّيْ اَوْجَبْتُ عُمْرَةً فَاِنْ خُلِّيَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ الْبَيْتِ طُفْتُ وَ اِنْ حِيْلَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ الْبَيْتِ صَنَعْتُ كَمَا صَنَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ مَا اُرٰى شَاْنَهُمَا اِلَّا وَاحِدًا اُشْهِدُكُمْ اَنِّيْ قَدْ اَوْجَبْتُ حَجَّةً مَعَ عُمْرَتِيْ فَطَافَ طَوَافًا وَّاحِدًا وَّ سَعْيًا وَّاحِدًا حَتّٰى حَلَّ مِنْهُمَا جَمِيْعًا.

اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ذ عمرے په نيت وتلے وو' خو قريش كافرو' ذ بيت اللّٰه تلو ته پرے نه ښودلو' آخر رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم حديبيه كښ ذ قرباني څناور ذبح كړل. سر' ئے اوخريلو' او ذ حضور اصحابوؑ هم ويښتہ لنډے كړل. بيا ابن عمرؓ اوفرمائيل' زهٔ تاسو ګواه كوم' چه ما په خپل ځان عمره واجب كړے ده' اوس كه زهٔ خلقو بيت اللّٰه تلو ته پريښودم' نو زهٔ به طواف اوكړم' او عمره به اوكړم' او كه مزاحمت اوكړے شو' نو بيا به هغه كوم' څهٔ چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم كړے وو' دے وړنا سره روان شولو' لږ لرے چه لاړ' نو وئيلے' ما عمرے سره په خپله ذمه حج هم واجب كړے دے. دے نه پس هغهٔ ذ حج او عمرے يو طواف اوكهٔ' او يوه سعي ئے اوكړله' او په لسم تاريخ ئے احرام كوز كړلو.

۲۱۵: حَدَّثَنِيْ شُجَاعُ بْنُ الْوَلِيْدِ سَمِعَ النَّضْرَ بْنَ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا صَخْرٌ عَنْ نَافِعٍ قَالَ اِنَّ النَّاسَ يَتَحَدَّثُوْنَ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ اَسْلَمَ قَبْلَ عُمَرَ وَ لَيْسَ كَذٰلِكَ وَلٰكِنَّ عُمَرَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ اَرْسَلَ عَبْدَ اللّٰهِ اِلٰى فَرَسٍ لَهٗ عِنْدَ رَجُلٍ مِنَ الْاَنْصَارِ يَأْتِيْ بِهٖ لِيُقَاتِلَ عَلَيْهِ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَايِعُ عِنْدَ الشَّجَرَةِ وَ عُمَرُ لَا يَدْرِيْ بِذٰلِكَ فَبَايَعَهٗ عَبْدُ اللّٰهِ ثُمَّ ذَهَبَ اِلَى الْفَرَسِ فَجَآءَ بِهٖ اِلٰى عُمَرَ وَ عُمَرُ يَسْتَلْئِمُ لِلْقِتَالِ

۲۱۵: شجاع بن وليد. نضر بن محمد. صخر بن جويريه. حضرت نافع نه روايت كوي' ذ هغهٔ بيان دے' خلق وائي ابن عمرؓ ذ حضرت عمرؓ نه مخكښ ايمان راوړلو' دا درست نهٔ دے' بلكه خبره داده' ذ حديبيه په ورځ حضرت عمرؓ خپل خوئے حضرت عبداللّٰه يو انصاري ته دے ذ پاره اوليږلو' چه هغه ذ هغهٔ نه ذ هغهٔ آس راولي' چه په هغے سوريدو سره كافرو سره جهاد اوشي. دغه وخت حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ اصحابو نه ذ اونے لاندے بيعت آخستلو. حضرت عمرؓ ته ذ دے خبر نه وو. عبداللّٰه ذ رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم نه بيعت اوكه' ذ آس آخستوله ورغے. بيائے حضرت عمرؓ له هغه آس راوستلو. حضرت عمرؓ وسله اچوله' عبداللّٰه

فَأَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَايِعُ تَحْتَ الشَّجَرَةِ قَالَ فَانْطَلَقَ فَذَهَبَ مَعَهُ حَتّٰى بَايَعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهِيَ الَّتِيْ يَتَحَدَّثُ النَّاسُ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَسْلَمَ قَبْلَ عُمَرَ وَ قَالَ هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْعُمَرِيُّ أَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي أَنَّ النَّاسَ كَانُوْا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ تَفَرَّقُوْا فِيْ ظِلَالِ الشَّجَرِ فَإِذَا النَّاسُ مُحْدِقُوْنَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ انْظُرْ مَا شَأْنُ النَّاسِ قَدْ أَحْدَقُوْا بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَهُمْ يُبَايِعُوْنَ فَبَايَعَ ثُمَّ رَجَعَ إِلٰى عُمَرَ فَخَرَجَ فَبَايَعَ.

هغهٔ ته دا خبره بیان کړه نو هغه عبدالله سره ورغے، او ذ حضورؐ نه ئے بیعت اوکړهٔ، دا هغه خبره ده، چه ذ هغے په وجه دا خلق دا وائي، چه عبدالله ذ حضرت عمرؓ نه مخکښ اسلام راوړے دے. (دویم سند) هشام بن عمار، ولید بن مسلم، عمر بن محمد عمري، حضرت نافع نه روایت کوي، او هغه ذ حضرت ابن عمرؓ نه بیان کوي، ذ حدیبیه په ورځ خلق حضور صلي الله علیه وسلّم سره ذ جُدا جُدا اُونو ذ سوري لاندے ایسار شوي وو، ناساپه په نظر راغله چه خلق ذ حضور صلي الله علیه وسلّم نه چاپیره جمع دي حضرت عمرؓ (خپل خوي) عبدالله ته اووے. لږ لاړ شه اوګوره، چه دا خلق څهٔ ذ پاره جمع شوے دي، او حضور صلي الله علیه وسلّم نه په څهٔ وجه راچاپیره شوے دي، هغه ورغے، نو وے لیدل، چه خلق ذ حضور صلي الله علیه وسلّم نه بیعت کوي، نو عبدالله هم بیعت اوکړلو. بیا واپس راغے، او حضرت عمرؓ ته ئے خبر اوکړ، نو حضرت عمرؓ هم ورغے، او بیعت ئے اوکړلو.

۴۲۱۶: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْلٰى حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ أَبِيْ أَوْفٰى رضي قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ اعْتَمَرَ فَطَافَ فَطُفْنَا مَعَهُ وَ صَلّٰى وَ صَلَّيْنَا مَعَهُ وَ سَعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَكُنَّا نَسْتُرُهُ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ لَا يُصِيْبُهُ أَحَدٌ بِشَيْءٍ.

۴۲۱۶: ابن نمیر. یعلي نه روایت کوي، هغهٔ اووے، ما د عبدالله بن ابي اوفيؓ نه واوریدل، مونږ رسول الله صلي الله علیه وسلّم سره وو. چه حضورؐ عمره ادا کړله، حضورؐ طواف اوکړلو، مونږ هم حضورؐ سره طواف اوکړهٔ. بیا حضورؐ مونځ وکړلو، مونږ هم حضورؐ سره مونځ اوکړلو. حضورؐ ذ صفا، مروه، مینځ کښ سعي اوکړله، مونږ هم سعي اوکړله، او مونږ ذ اهل مکه نه ذ حضورؐ حفاظت کولو، چه څوک حضورؐ ته څهٔ تکلیف اونهٔ رسوي.

۲۱۷ : حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ اِسْحٰقَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا حَصِيْنٍ قَالَ قَالَ اَبُوْ وَائِلٍ لَمَّا قَدِمَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ مِّنْ صِفِّيْنَ اَتَيْنَاهُ نَسْتَخْبِرُهُ فَقَالَ اتَّهِمُوا الرَّأْيَ فَلَقَدْ رَاَيْتُنِيْ يَوْمَ اَبِيْ جَنْدَلٍ وَلَوْ اَسْتَطِيْعُ اَنْ اَرُدَّ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمْرَهٗ لَرَدَدْتُ وَاللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ وَمَا وَضَعْنَا اَسْيَافَنَا عَلٰى عَوَاتِقِنَا لِاَمْرٍ يُفْظِعُنَا اِلَّا اَسْهَلْنَ بِنَا اِلٰى اَمْرٍ نَّعْرِفُهٗ قَبْلَ هٰذَا الْاَمْرِ مَا نَسُدُّ مِنْهَا خُصْمًا اِلَّا انْفَجَرَ عَلَيْنَا خُصْمٌ مَّا نَدْرِيْ كَيْفَ نَأْتِيْ لَهٗ.

۲۱۷ : حسن بن اسحٰق. محمد بن سابق. مالک بن مغول. ابو حصين. ابو وائل. شقيق بن سلمه نه روايت کوي، هغهٔ اووے، کوم وخت چه سهيل بن حنيف دَ جنګ صفين نه واپس راغے، مونږ دَ هغهٔ دَ واپسي سبب معلومولو له ورغلو، هغهٔ اووے، بهئ، په خپله رائے ناز مهٔ کوے. هغه هم يوه ورځ وه، چه زهٔ دومره مستعد ووم، چه دَ ابوجندل په واپسي هيڅ کله نهٔ راضي کيدم. او که طاقت مې لرلے، نو دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم حکم به مې نهٔ وے منلے، او په بنهٔ شان به جنګيدلے وے. دا خبره اللّٰه تعالٰي او دَ هغهٔ رسول بنهٔ پيژني، چه مونږ کله يو مُهم کښې توره اوچته کړے ده، نو هغه کار آسان شوے دے. غرض دَ دے جنګ نه مخکښې کله چه هم مونږ توره اوچته کړے ده، نو هغه مونږ خان دَ پاره بنهٔ کښرله. خو دَ دے جنګ عجيبه حال دے، چه مونږ يو کار سنبالوو، نو بل کار ورانيږي. مونږ حيران يو چه دَ دے مسئلے څهٔ تدبير اوکړو.

۲۱۸ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُّجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ اَتٰى عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ وَالْقَمْلُ يَتَنَاثَرُ عَلٰى وَجْهِيْ فَقَالَ اَيُؤْذِيْكَ هَوَامُّ رَاْسِكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَاحْلِقْ وَصُمْ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اَوْ اَطْعِمْ سِتَّةَ مَسَاكِيْنَ اَوِ انْسُكْ نَسِيْكَةً قَالَ اَيُّوْبُ لَا اَدْرِيْ بِاَيِّ هٰذَا

۲۱۸ : سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ايوب. مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي کعب بن عجره نه روايت کوي، هغهٔ اووے، دَ حديبيه زمانه کښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم زهٔ داسے حالت کښې اوليدم، چه خما دَ سر نه سپږے ډورېدلے، نو حضورؐ اوفرمائيل، دا سپږے جوړ تاته تکليف درکوي. ما عرض اوکړو، جي او. حضورؐ اوفرمائيل، ته خپل سر اُوخريه، او درے روژے اُونيسه يا شپږ مسکينانو باندے طعام اوخوروه، يا يوه چيلئے ذبح کړه. ايوب (دَ حديث راوي) وائي، ماته دا معلومه نه ده، چه دے کښې ورمبئ خبره حضورؐ کومه

بَدَاً.

**٢١٩: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ هِشَامٍ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلٰى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحُدَيْبِيَةِ وَ نَحْنُ مُحْرِمُونَ وَقَدْ حَصَرَنَا الْمُشْرِكُونَ قَالَ وَ كَانَتْ لِي وَفْرَةٌ فَجَعَلَتِ الْهَوَامُّ تَسَاقَطُ عَلٰى وَجْهِي فَمَرَّ بِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَيُؤْذِيكَ هَوَامُّ رَاسِكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ وَ أُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيضًا أَوْ بِهٖ أَذًى مِّنْ رَّأْسِهٖ فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ.**

**بَابُ ٣٧: قِصَّةِ عُكْلٍ وَّ عُرَيْنَةَ.**

**٢٢٠: حَدَّثَنِي عَبْدُ الْأَعْلٰى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسًا حَدَّثَهُمْ أَنَّ نَاسًا مِّنْ عُكْلٍ وَّ عُرَيْنَةَ قَدِمُوا الْمَدِينَةَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ تَكَلَّمُوا بِالْإِسْلَامِ فَقَالُوا يَا نَبِيَّ اللّٰهِ إِنَّا كُنَّا أَهْلَ ضَرْعٍ وَّلَمْ نَكُنْ أَهْلَ رِيفٍ وَاسْتَوْخَمُوا الْمَدِينَةَ فَأَمَرَهُمْ رَسُولُ**

ارشاد اوفرمائيله.

**٢١٩:** محمد بن هشام. ابو عبدالله. هشيم. ابو بشر. مجاهد. عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰى. كعب بن عجره نه روايت كوي، هغهٔ اووے، زهٔ حديبيه كښ رسالت مآب صلي الله عليه وسلّم سره احرام ترلے موجود ووم، چه مشركانو مونږ منع كړلو، هغه وخت خما په سر اوږدهٔ ويښتهٔ وو، او ذهغے نه سپږے په مخ م راڅوړيدے. حضورؐ چه زهٔ اوليدلم، نو وے فرمائيل، آيا تاته دا سپږے تكليف دركوي، ما عرض اوكړهٔ، جي، او، كعب بيان كوي، دے نه پس دا آيت نازل شولو: فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيضًا أَوْ بِهٖ أَذًى مِّنْ رَّأْسِهٖ فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ: يعني څوك چه تاسو كښ ناروغه وي يا ئهغهٔ سر كښ تكليف وي، نو هغه دے، ذ دے پ. بدله كښ روژے يا صدقه دے وركړي يا قرباني دے اوكړي.

**باب ٣٧: ذ قبائل عكل او عرينه قصه.**

**٢٢٠:** عبدالاعلٰي ابن حماد. يزيد بن زريع. سعيد. قتاده نه روايت كوي، هغهٔ اووے، ما ته حضرت انس بن مالكؓ بيان اوكهٔ، ذ عكل او عرينه قبيلو خلق ذ رسول اكرم صلي الله عليه وسلّم په خدمت كښ مدينه كښ حاضر شو، او ذ اسلام ذ كلمے لوستو نه پس ئے عرض اوكهٔ، يا رسول الله، مونږ به پئے وركونكي خناور ساتل، او كركيله به مو نهٔ كوله. ذ مدينے هوا خمونږ ناموافقه ده، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم څو اوښان او يو ګوارچي وركړل، ورته ئے اوفرمائيل، تاسو

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَوْدٍ وَرَاعٍ وَ اَمَرَهُمْ اَنْ يَّخْرُجُوْا فِيْهِ فَيَشْرَبُوْا مِنْ اَلْبَانِهَا وَ اَبْوَالِهَا فَانْطَلَقُوْا حَتّٰى اِذَا كَانُوْا نَاحِيَةَ الْحَرَّةِ كَفَرُوْا بَعْدَ اِسْلَامِهِمْ وَ قَتَلُوْا رَاعِيَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَاقُوا الذَّوْدَ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ الطَّلَبَ فِيْ اٰثَارِهِمْ فَاَمَرَهُمْ فَسَمَّرُوْا اَعْيُنَهُمْ وَ قَطَعُوْا اَيْدِيَهُمْ وَ تُرِكُوْا فِيْ نَاحِيَةِ الْحَرَّةِ حَتّٰى مَاتُوْا عَلٰى حَالِهِمْ قَالَ قَتَادَةُ بَلَغَنَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذٰلِكَ كَانَ يَحُثُّ عَلَى الصَّدَقَةِ وَ يَنْهٰى عَنِ الْمُثْلَةِ وَ قَالَ شُعْبَةُ وَ اَبَانُ وَ حَمَّادٌ عَنْ قَتَادَةَ مِنْ عُرَيْنَةَ وَ قَالَ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ وَ اَيُّوْبُ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ قَدِمَ نَفَرٌ مِّنْ عُكْلٍ.

دا واخلئ، خنګل ته ځئ، او د دې پئ وغيره استعمالوئ، هغوي لاړل، خو حره ته چه اورسيدل، نو د اسلام نه منکر شو، او د حضور صلي الله عليه وسلم ګوارچي ئې قتل کړو[1]، او اوښان ئې اوتښتول. رسول الله صلي الله عليه وسلم ته چه معلومه شوه، نو حضورؐ د هغوي د نيولو د پاره سړي اوليږل، نو نيولي راوستې (يعني ګرفتار) شو. حضور صلي الله عليه وسلم حکم اوکړو، چه د هغوي سترګو کښې ګرم سلايان اوګرځولې شي. لاس پښې دې پريکړې شي، او د حره يو کټ کښې دې اُوغرځولې شي، آخر هغوي دې حال کښې مړه شو. قتاده وائي مونږ ته دا خبره هم رارسيدلې ده، چه دې نه پس حضور صلي الله عليه وسلم خلقو ته د خيرات کولو ترغيب ورکولو. او د مثله کولو (پوزه، غوږونو پريکولو) نه ئې منع کوله. شعبه، ابان او حماد، د قتاده نه صرف د عرينه لفظ روايت کړې دې، او يحيي بن کثير، ايوب، ابو قلابه د حضرت انس نه دغسې روايت کړې دې، چه د عکل څۀ خلق د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شوې وو.

۱. د ګوارچي نوم يسار النوبي وو، کله چه قبيلې والو اوښان تښتول نو هغه مزاحمت اوکړو. نو هغوئ د هغه لاس خپې پريکړې او په ژبه او سترګو کښې ئې ورله ازغي اوټومبل چه هغې سره هغه شهادت بيامونده. رضي الله عنه.

۱۲۲۱: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ اَبُوْ عُمَرَ الْحَوْضِيُّ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ وَالْحَجَّاجُ الصَّوَّافُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ رَجَاءٍ مَّوْلٰى اَبِيْ قِلَابَةَ وَ

۱۲۲۱: محمد بن عبدالرحيم. حفص بن عمر. ابو عمر حوضي. حماد بن زيد. ايوب. حجاج صواف. ابو رجاء نه روايت کوي، هغۀ اووې. حضرت عمر بن عبدالعزيز د خلقونه تپوس اوکۀ، چه تاسو د قسامت (قسم خوړلو) متعلق څۀ وائې،

كَانَ مَعَهُ بِالشَّامِ أَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ اِسْتَشَارَ النَّاسَ يَوْمًا قَالَ مَا تَقُوْلُوْنَ فِي هٰذِهِ الْقَسَامَةِ فَقَالُوْا حَقٌّ قَضٰى بِهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَضَتْ بِهَا الْخُلَفَاءُ قَبْلَكَ قَالَ وَ اَبُوْ قِلَابَةَ خَلْفَ سَرِيْرِهِ فَقَالَ عَنْبَسَةُ بْنِ سَعِيْدٍ فَاَيْنَ حَدِيْثُ اَنَسٍ فِي الْعُرَنِيِّيْنَ قَالَ اَبُوْ قِلَابَةَ اِيَّایَ حَدَّثَهُ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ مِنْ عُرَيْنَةَ وَ قَالَ اَبُوْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ مِنْ عُكْلٍ ذَكَرَ الْقِصَّةَ.

خلقو اووے، چه قسامت برحق دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم او ذ هغوي خلفاؤ هم ذ دے حکم کړے دے، چه تاسو نه مخکښ تیر شوے دي. دغه وخت ابو قلابه ذ حضرت عمر بن عبدالعزیز ذ تخت شاته ولاړ وو. دے کښ عنبسه بن سعید اووے، ذ حضرت انسؓ روایت کړده حدیث عرنیین چرته دے. ابو قلابه اووے، دا حدیث خو حضرت انسؓ ماته بیان کړے وو، او هغۀ ته عبدالعزیز بن صهیب هم ذ حضرت انسؓ نه روایت کړے دے، هغے کښ صرف ذ عرینه ذکر دے، خو ذ ابو قلابه روایت کښ حضرت انسؓ نه ذ عکل لفظ ذکر شوے دے، چه دے قصه کښ دے.

## الحمدللّٰه والشکر للّٰه شپاړسمه پاره ختمه شوه

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۱۷

شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-15

# تاج البخاري پاره ۱۷ د مضامينو فهرست


| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۸. | غزوه ذي القرد | ۲۶۶۸ |
| ۳۹. | غزوهٔ خيبر | ۲۶۶۹ |
| ۴۰. | د نبي اکرم په خيبر والو باندې عامل مقررول | ۲۶۷۵ |
| ۴۱. | د خيبر خلقو سره د حضورؐ معامله | ۲۶۷۶ |
| ۴۲. | د چيلۍ غوښه کومه کښې چه نبي کريمؐ ته په خيبر کښې زهر ورکړې شوي وو | ۲۶۷۶ |
| ۴۳. | د زيد بن حارثه | ۲۶۷۷ |
| ۴۴. | غزوه عمرهٔ قضا | ۲۶۷۷ |
| ۴۵. | غزوه موته | ۲۶۸۲ |
| ۴۶. | اسامه بن زيدؓ لره د جُهينې قبيلې شاخ حرفات خلاف مهم باندې ليکل | ۲۶۸۵ |
| ۴۷. | غزوه فتح مکه | ۲۶۸۷ |
| ۴۸. | غزوه فتح مکه په رمضان کښې شوې وه | ۲۶۸۹ |
| ۴۹. | د فتح مکې په موقع نبي کريمؐ جهنډه کوم ځائې خخه کړې وه | ۲۶۹۱ |
| ۵۰. | د مکې پاسنۍ علاقې طرفه د حضورؐ داخله | ۲۶۹۶ |
| ۵۱. | د فتح مکې په ورځ د حضورؐ قيامګاه | ۲۶۹۸ |
| ۵۲. | باب | ۲۶۹۸ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۵۳. | د فتح مکې په زمانه کښې د نبي کريمؐ په مکه کښې قيام | ۲۷۰۱ |
| ۵۴. | نبي کريمؐ د فتح مکې په ورځ د هغه په مخ باندې لاس رابنکلې وو | ۲۷۰۲ |
| ۵۵. | د الله تعالٰي ارشاد | ۲۷۰۸ |
| ۵۶. | غزوهٔ اوطاس | ۲۷۱۵ |
| ۵۷. | غزوه طائف | ۲۷۱۶ |
| ۵۸. | نجد طرفته د مهم روانګي | ۲۷۲۶ |
| ۵۹. | حضورؐ خالد بن وليدؓ لره بني جُذيمه طرفته ليګلې وو | ۲۷۲۶ |
| ۶۰. | عبدالله بن حذافه هم او د علقمه بن مجزز په مهم باندې روانيدل | ۲۷۲۷ |
| ۶۱. | د حجة الوداع نه مخکښې حضورؐ ابو موسیٰؓ او معاذ يمن ته ليګلي وو | ۲۷۲۸ |
| ۶۲. | د حجة الوداع نه مخکښې عليؓ بن ابي طالب او خالد بن وليد لره يمن ته ليګل | ۲۷۳۲ |
| ۶۳. | غزوه ذوالخلصه | ۲۷۳۶ |
| ۶۴. | غزوه ذات السلاسل | ۲۷۳۸ |
| ۶۵. | د جريرؓ يمن ته روانګي | ۲۷۳۹ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۶۶. | غزوه سيف البحر | ۲۷۴۰ |
| ۶۷. | د ابوبکرؓ خلقو سره په ۹ هـ کښې حج | ۲۷۴۲ |
| ۶۸. | د بني تميم وفد | ۲۷۴۳ |
| ۶۹. | ابن اسحاق بيان او کړو الخ | ۲۷۴۴ |
| ۷۰. | د عبدالقيس وفد | ۲۷۴۵ |
| ۷۱. | د وفد بنو حنيفه او ثمامه بن اثال واقعه | ۲۷۴۸ |
| ۷۲. | د اسود عنسي واقعه | ۲۷۵۲ |
| ۷۳. | د اهل نجران واقعه | ۲۷۵۳ |
| ۷۴. | د عمان او بحرين واقعه | ۲۷۵۴ |
| ۷۵. | د اَشعر قبيلې او اهل يمن راتلل | ۲۷۵۶ |
| ۷۶. | د قبيله دَوس او طفيل بن عمرو دوسي واقعه | ۲۷۶۰ |
| ۷۷. | د طي قبيلې وفد او د عدي بن حاتم واقعه | ۲۷۶۱ |
|  | تمت |  |


ا

# اوولسمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**بـاب۳۸: غَزْوَةِ ذَاتِ الْقَرَدِ وَهِيَ الْغَزْوَةُ الَّتِيْ اَغَارُوْا عَلٰى لِقَاحِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ خَيْبَرَ بِثَلَاثٍ.**

**۴۲۲۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيْدِ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَلَمَةَ بْنَ الْاَكْوَعِ يَقُوْلُ خَرَجْتُ قَبْلَ اَنْ يُؤَذَّنَ بِالْاُوْلٰى وَ كَانَتْ لِقَاحُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرْعٰى بِذِيْ قَرَدٍ قَالَ فَلَقِيَنِيْ غُلَامٌ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ فَقَالَ اُخِذَتْ لِقَاحُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ مَنْ اَخَذَهَا قَالَ غَطَفَانُ قَالَ فَصَرَخْتُ ثَلَاثَ صَرَخَاتٍ يَا صَبَاحَاهُ قَالَ فَاَسْمَعْتُ مَا بَيْنَ لَابَتَيِ الْمَدِيْنَةِ ثُمَّ انْدَفَعْتُ عَلٰى وَجْهِيْ حَتّٰى اَدْرَكْتُهُمْ وَقَدْ اَخَذُوْا يَسْتَقُوْنَ مِنَ الْمَاءِ فَجَعَلْتُ اَرْمِيْهِمْ بِنَبْلِيْ وَ كُنْتُ رَامِيًا وَ اَقُوْلُ اَنَا ابْنُ الْاَكْوَعِ اَلْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعِ وَ اَرْتَجِزُ حَتّٰى اسْتَنْقَذْتُ اللِّقَاحَ مِنْهُمْ وَاسْتَلَبْتُ مِنْهُمْ ثَلَاثِيْنَ بُرْدَةً قَالَ وَ جَاءَ النَّبِيُّ**

**باب۳۸: ذَ غـزوهٔ ذات الـقـرد بيـان.** يعنـي ذَ جنـګ خيبـر نـه درے شپے مخکښ ځنے کـافرو ذَ نبـي صلـي الـلّـه عليـه وسـلّم (شـل) اُوښـان لوټ کړي وو.

**۴۲۲۲:** قتيبـه بـن سعيد. حاتم. يزيد بن ابي عبيد. سلمه بن اکوع نه روايت کوي، هغه فرمائي، زهٔ ذَ سحر ذَ آذان نـه مـخکښ (ځنګل طرف ته) اووتم. مقام ذي قرد کښ ذَ نبـي صلـي اللّٰه عليه وسلّم پئے ورکونکے اُوښے (اوټياں) څـريدلے. ما سره ذَ عبدالرحمن بن عوف غلام يـوځـائـے شـولـو، او وے ونيـل، ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسـلّم اوښـے نيـولے شـوے دي، ما تپوس او کهٔ چا نيولے دي، هغه جواب راکهٔ، ذَ قوم غطفان خلقو. ما درے چغے "يا صبـاحـاه" ونيـلـو سـره اووهلے (دا کلمه ذَ دشمن ذَ راتـلـو پـه اطلاع ذَ خلقو ذَ جمع کولو ذَ پاره ونيلے شي) چـه هغے سره ټول اهل مدينه خبر شول. بيا زهٔ سمدستي نيـغ لاړم، حتـي چـه هـغـه کافر، مو رالاندے کړل، هغوي هغه اُوښے اُوبه کولے، نو ما په هغوئ غشي وَرَول شروع کـړل، او زهٔ ډيـر تيـر انـداز ووم، مـا دا رجز لوستلو، چه: "زهٔ ابـن اکـوع يـم، نـن ورځ ذَ کـمينـه ؤ ذَ هلاکت ورځ ده". حتي چه ما ذَ هغوي نه اُوښے خلاصے کړے. او ما ذَ هـغوي نه ديرش څادرونه هم قبضه کړل. سلمه والي. بيا حـضـور صلي اللّٰه عليه وسلّم او نور خلق هم راورسيدل. مـا عـرض او کـهٔ، يا رسول اللّٰه، ما هغه خلق اُوبو څکلو ته

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ قَدْ حَمَيْتُ الْقَوْمَ الْمَآءَ وَهُمْ عِطَاشٌ فَابْعَثْ إِلَيْهِمُ السَّاعَةَ فَقَالَ يَا ابْنَ الْاَكْوَعِ مَلَكْتَ فَاَسْجِعْ قَالَ ثُمَّ رَجَعْنَا وَ يُرْدِفُنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى نَاقَتِهٖ حَتّٰى دَخَلْنَا الْمَدِيْنَةَ.

هم پرې نبنودل، حالانکه هغوي تږي وو، نو سمدستي هغوي پسې خلق اوليږې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اې ابن اکوع، تا هغوي تبنتولې دي، نو اوس نې پرېږده هم. سلمه وائي، بيا مونږ واپس راغلو، او رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خپله اُوښه زۀ ورستو سور راوستلم، حتي چه مونږ مدينې ته راورسيدلو.

## بَــــابُ ۳۹: غَــــزْوَةِ خَيْبَرَ.

## باب ۳۹: دَ جنګ خيبر بيان (چه ۷ ه کښې اوشو).

۲۲۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ اَنَّ سُوَيْدَ بْنَ النُّعْمَانِ اَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ خَرَجَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ خَيْبَرَ حَتّٰى اِذَا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ وَ هِيَ مِنْ اَدْنٰى خَيْبَرَ صَلّٰى الْعَصْرَ ثُمَّ دَعَا بِالْاَزْوَادِ فَلَمْ يُؤْتَ اِلَّا بِالسَّوِيْقِ فَاَمَرَ بِهٖ فَثُرِّيَ فَاَكَلَ وَ اَكَلْنَا ثُمَّ قَامَ اِلَى الْمَغْرِبِ فَمَضْمَضَ وَ مَضْمَضْنَا ثُمَّ صَلّٰى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

۲۲۳: عبدالله بن مسلمه. مالک. يحيي بن سعيد. بشير بن يسار. سويد بن نعمان نه روايت کوي، هغه فرمائي، مونږ دَ خيبر په کال نبي صلي الله عليه وسلّم سره (دَ جنګ په اراده) اووتلو. کوم وخت چه مقام صهبا ته اورسيدو، چه دَ خيبر خوا کښې دې، نو حضورؐ دَ مازيګر مونځ اوکړلو. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم دَ سفر توښه (چه چاسره وه) طلب کړه. بغير دَ ستوانو نه نور هيڅ رانغلل. دَ حضورؐ دَ حکم مطابق هغه په اُوبو کښې اوسولولې شو. او مونږ ټولو حضور صلي الله عليه وسلّم سره په شريکه اوخوړل. بيا حضورؐ دَ ماښام دَ مونځ دَ پاره اودريدلو نو حضورؐ او مونږ خوله کنګال کړه، او دَ اودس تازه کولو نه بغير حضور صلعم مونځ اوکړلو.

۲۲۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ

۲۲۴: عبدالله بن مسلمه. حاتم بن اسماعيل. يزيد بن ابي عبيد. سلمه بن اکوع نه روايت کوي، هغه فرمائي، مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم سره خيبر جانب ته (دَ جنګ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى خَيْبَرَ فَسِرْنَا لَيْلًا فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَ لْقَوْمِ لِعَامِرٍ يَا عَامِرُ أَلَا تُسْمِعُنَا مِنْ هُنَيْهَاتِكَ وَ كَانَ عَامِرٌ رَّجُلًا شَاعِرًا فَنَزَلَ يَحْدُوْ بِالْقَوْمِ يَقُوْلُ.

اَللّٰهُمَّ لَوْلَا أَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا
وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا
فَاغْفِرْ فِدَاءً لَّكَ مَا أَبْقَيْنَا
وَ ثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا
وَ أَلْقِيَنْ سَكِيْنَةً عَلَيْنَا
وَ بِالصِّيَاحِ عَوَّلُوْا عَلَيْنَا

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ هٰذَا السَّائِقُ قَالُوْا عَامِرُ بْنُ الْأَكْوَعِ قَالَ يَرْحَمُهُ اللّٰهُ قَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ وَجَبَتْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ لَوْلَا أَمْتَعْتَنَا بِهٖ فَأَتَيْنَا خَيْبَرَ فَحَاصَرْنَاهُمْ حَتّٰى أَصَابَتْنَا مَخْمَصَةٌ شَدِيْدَةٌ ثُمَّ إِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى فَتَحَهَا عَلَيْهِمْ فَلَمَّا أَمْسَى النَّاسُ مَسَاءَ الْيَوْمِ الَّذِيْ فُتِحَتْ عَلَيْهِمْ أَوْقَدُوْا نِيْرَانًا كَثِيْرَةً فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا هٰذِهِ النِّيْرَانُ عَلٰى أَيِّ شَيْءٍ تُوْقِدُوْنَ قَالُوْا عَلٰى لَحْمٍ قَالَ عَلٰى أَيِّ لَحْمٍ قَالُوْا عَلٰى لَحْمِ حُمُرِ الْإِنْسِيَّةِ

په اراده) اووتلو. مونږ دَ شپې روان وو، يو سړي عامر ته اووے، ته مونږ ته خپل اشعار، ولې نه آوروے. دے آوريدو سره هغه ښکته راکوز شو، او داسے حدي خواني ئے شروع کړه:.

"اے خدايه، که ستا حکم نهٔ وے، نو مونږ به هدايت يافته نهٔ وو، نهٔ به مو صدقه ورکوله، او نه به مونځ کولو. مونږ ستا دَ نبي په دين قربانيږو، خمونږ کوتاهئے معاف کړے، او جنګ کښې مو ثابت قدم لرے. او مونږ دَ سکون په دولت ماله مال کړے. هر کله چه مونږ (باطل طرف ته) بللے شو، نو مونږ به انکار کوو. او کافر شور کولو سره خمونږ خلاف شوے دي، نو نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل دا حدي خوان څوک دے، صحابه ؤ عرض اوکړ، عامر بن اکوع، حضورؐ اوفرمائيل، الله دے په دهٔ رحم اوکړي، نو دَ جماعت نه يو سړي (حضرت عمرؓ) عرض اوکړ، يا رسول الله، اوس دے دَ جنت يا شهادت مستحق شو، چه تاسو مونږ دَ دهٔ نه منتفع کړلو، بيا مونږ خيبر ته اورسيدو، نو مونږ دَ يهوديانو محاصره اوکړله، حتي چه مونږ سخت اُوږي شو. بيا الله تعالي خيبر کښې مسلمانانوته فتح عطا کړه. د فتح په ورځ مسلمانانو مابنام ته دَ څهٔ پخولو دَ پاره اُور بل کړلو، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل دا اُور څنګه دے، او تاسو خلق په دے څهٔ څيز پخوئې. عرض اوشو، غوښه پرے پخوو، حضورؐ تپوس اوکړلو، دَ څهٔ غوښه ده. عرض اوکړے شو، دَ پالتو (ساتلے شوے) خرونو غوښه، حضورؐ اوفرمائيل، وے غرخوئې او کټوے ماتے کړئې، يو سړي

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْرِيقُوهَا وَاكْسِرُوهَا فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَوْ نُهَرِيقُهَا وَنَغْسِلُهَا قَالَ أَوْ ذَاكَ فَلَمَّا تَصَافَّ الْقَوْمُ كَانَ سَيْفُ عَامِرٍ قَصِيرًا فَتَنَاوَلَ بِهِ سَاقَ يَهُودِيٍّ لِيَضْرِبَهُ وَيَرْجِعُ ذُبَابُ سَيْفِهِ فَأَصَابَ عَيْنَ رُكْبَةِ عَامِرٍ فَمَاتَ مِنْهُ قَالَ فَلَمَّا قَفَلُوا قَالَ سَلَمَةُ رَآنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ آخِذٌ بِيَدِي قَالَ مَا لَكَ قُلْتُ لَهُ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي زَعَمُوا أَنَّ عَامِرًا حَبِطَ عَمَلُهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَبَ مَنْ قَالَهُ إِنَّ لَهُ أَجْرَيْنِ وَجَمَعَ بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ إِنَّهُ لَجَاهِدٌ مُجَاهِدٌ قَلَّ عَرَبِيٌّ مَشَى بِهَا مِثْلَهُ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ قَالَ نَشَأَ بِهَا.

عرض اوکړ' یا رسول الله! آیا مونږ غوښه اوغرځوو' او کټونې اووینځو' حضورؐ ورته اوفرمائیل' او' دغسې اوکړئ' کوم وخت چه د قوم صف بندي اوشوه' او جنګ شروع شو' نو د عامر توره وړه وه' هغوي د یو یهودي په پنډۍ ګزار اوکړ' خو د هغې مخ راواوړیدلو' او د هغه په ګنډۍ اولګیدلو او د هغې نه هغه وفات شولو. سلمهؓ وائي کوم وخت چه واپسي اوشوه' نبي صلي الله علیه وسلم چه ځما لاس نیولې وو' زهٔ ئې (مغموم) اولیدم' وې فرمائیل' په تا څهٔ شوې دي' ما عرض اوکړ' ځما مور پلار دې په تاسو قربان وي. د خلقو دا خیال دې' چه د عامر عمل فضول (ضائع) شولو. نبي صلي الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل' څوک چه داسې وائي' هغه دروغجن دي' او حضور صلي الله علیه وسلم خپلې دواړه ګوتې یوځائې کړې' وې فرمائیل' دهٔ ته به دوچند اجر ورکیدې شي دې خو کوشش کونکې مجاهد وو. ډیر کم مدینه کښې تلونکي عربي د دهٔ په شان دي' قتیبه په واسطه د حاتم دا الفاظ روایت کړې دي' نشابها.

۲۲۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى خَيْبَرَ لَيْلًا وَكَانَ إِذَا أَتَى قَوْمًا بِلَيْلٍ لَمْ يُغِرْ بِهِمْ حَتَّى يُصْبِحَ فَلَمَّا أَصْبَحَ خَرَجَتِ الْيَهُودُ بِمَسَاحِيهِمْ وَمَكَاتِلِهِمْ فَلَمَّا رَأَوْهُ قَالُوا مُحَمَّدٌ

۲۲۵: عبدالله بن یوسف. مالک. حمید طویل. انسؓ نه روایت کوي' هغه فرمائي' رسول الله صلي الله علیه وسلم د شپې په وخت خیبر ته اورسید. او د حضورؐ دا عادت مبارک وو' چه د شپې به چرته اورسیدلو' نو په هغوي به ئې د سحر پورې حمله نهٔ کوله' چه سحر شو' نو یهودیان خپلو تبرونو او ټوکرو سره راووتل. کوم وخت چه هغوي حضور صلي الله علیه وسلم اولیدلو' نو بې ساخته ئې اووې دا خو محمد صلي الله علیه وسلم

وَاللّٰهِ مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيسُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرِبَتْ خَيْبَرُ إِنَّا إِذَآ نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ أَخْبَرَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ صَبَّحْنَا خَيْبَرَ بُكْرَةً فَخَرَجَ أَهْلُهَا بِالْمَسَاحِيْ فَلَمَّا بَصُرُوْا بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا مُحَمَّدٌ وَاللّٰهِ مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيسُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُ أَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ فَأَصَبْنَا مِنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ فَنَادٰى مُنَادِي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ يَنْهَيَانِكُمْ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ فَإِنَّهَا رِجْسٌ.

دے. والله محمد صلي الله عليه وسلّم سره ذ لښکره موجود دے. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل خيبر برباد شولو. کوم وخت چه مونږ ذ يو قوم ميدان ته راکوز شو، نو ذ ويرولے شوے خلقو سحر خراب وي. صدقه بن فضل، ابن عيينه، ايوب، محمد بن سيرين، انس بن مالکؓ نه روايت کوي، مونږ خلق خيبر کښې سحر ذ وخته موجود وو[1]، چه اهل خيبر خپلو تبرونو سره راووتل، کوم وخت چه هغوي حضور صلي الله عليه وسلّم اوليدلو، نو وئيلے دا خو محمد صلي الله عليه وسلّم لښکر سره موجود دے، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله اکبر، خيبر برباد شولو، کوم وخت چه مونږ ذ يو قوم ميدان ته راکوز شو، نو ذ ويرولے شوے خلقو سحر خراب شي. حضرت انسؓ وائي، مونږ ته ذ خرونو غوښه په لاس راغله، نو ذ حضور صلي الله عليه وسلّم منادي اعلان اوکړلو، الله تعالي او ذ هغهٔ رسول صلي الله عليه وسلّم تاسو ذ خرونو ذ غوښے نه منع کوي، ځکه چه دا ناپاکه ده.

[1]. اوس ددے نه مخکښې روايت کښے تير شوي دي چه د شپے وخت کښے اسلامي لښکر خيبر ته رسيدلے وو. محدثينو ليکلي دي چه غالبًا د شپے وخت کښے به لښکر هلته رسيدلے وي. ليکن شپه به ئے د موقعے نه په څه فاصله کښے تيره کړے وي، بيا چه کله سحر شوے وي نو لښکر به ميدان ته راغلے وي. او په دے روايت کښے د سحر وخت کښے رسيدلو ذکر ذ واقعے همدے نوعيت په وجے سره دے.

٢٢٦: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَآءَهٗ جَاءٍ فَقَالَ أُكِلَتِ الْحُمُرُ فَسَكَتَ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّانِيَةَ فَقَالَ

٢٢٦: عبدالله بن عبدالوهاب. عبدالوهاب. ايوب. محمد. انس بن مالکؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته يو سړے راغے، هغهٔ عرض اوکړ، يا رسول اللهؐ خرونه اوخوړلے شو. حضورؐ جواب ورنهٔ کړلو، بيا هغه په دويم وار راغے او عرض ئے اوکړو چه خرونه اوخوړلے شو، حضورؐ جواب ورنه کړو

اُكِلَتِ الْحُمُرُ فَسَكَتَ ثُمَّ اَتَاهُ الثَّالِثَةَ فَقَالَ اُفْنِيَتِ الْحُمُرُ فَاَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادٰى فِي النَّاسِ اِنَّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ يَنْهَيَانِكُمْ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ فَاُكْفِئَتِ الْقُدُوْرُ وَ اِنَّهَا لَتَفُوْرُ بِاللَّحْمِ.

بيا هغه په دريم وار راغے 'عرض ئے اوكړ' چه اوس خو خرونه ختم شو' نو حضورﷺ يو منادي ته حكم اوكړو' هغه خلقو كښ دا اعلان اوكړ' چه الله او ذ هغه رسول تاسو ذ كورنو خرونو ذ غوښے نه منع كوي' نو كټولے واړولے شوے حالانكه هغے كښ غوښه ويشيدله شوے وه.

۴۲۲۷ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ قَرِيْبًا مِنْ خَيْبَرَ بِغَلَسٍ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُ اَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ اِنَّا اِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ فَخَرَجُوْا يَسْعَوْنَ فِي السِّكَكِ فَقَتَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُقَاتِلَةَ وَ سَبَى الذُّرِّيَّةَ وَ كَانَ فِي السَّبْيِ صَفِيَّةُ فَصَارَتْ اِلَى دِحْيَةَ الْكَلْبِيِّ ثُمَّ صَارَتْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا فَقَالَ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ لِثَابِتٍ يَا اَبَا مُحَمَّدٍ ءَ اَنْتَ قُلْتَ لِاَنَسٍ مَا اَصْدَقَهَا فَحَرَّكَ ثَابِتٌ رَاْسَهُ تَصْدِيْقًا لَهُ.

۴۲۲۷ : سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ثابت. حضرت انسؓ نه روايت كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ خيبر قريب تياره (اندهيرے) كښ ذ سحر مونځ اوكه. بيائے اوفرمائيل' الله اكبر' خيبر برباد شولو' كله چه مونږ ذ يو قوم ميدان ته ورکوز شو' نو ذ هغے ويرولے شوو خلقو سحر ډير خراب وي' اهل خيبر چه بهرته راووتل' نو كوڅو كښ ئے منډے ترړے وهلے. حضور صلي الله عليه وسلّم مقابله كونكي قتل كړل. او بچي وغيره ئے قيد كړل. قيديانو كښ بي بي صفيةؓ هم وه. اول خو هغه ذ دِحيه كلبي په خصه كښ وه' بيا ذ حضور صلي الله عليه وسلّم حصے ته راغله. حضورﷺ هغے سره نكاح اوكړله' او ذ هغے آزادي ئے ذ هغے مَهر مقرر كړلو. عبدالعزيز بن صهيب ذ ثابت نه اووے' اے ابو محمد' آيا تا انس ته وئيلے وو' چه حضور صلي الله عليه وسلّم ذ هغے څهٔ مهر مقرر كړے وو' نو هغهٔ سر خوزولو سره ذ هغے تصديق اوكړلو.

۴۲۲۸ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ سَبَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةَ فَاَعْتَقَهَا وَ

۴۲۲۸ : آدم. شعبه. عبدالعزيز بن صهيب. انسؓ نه روايت كوي' نبي صلي الله عليه وسلّم صفيةؓ قيده كړه. بيائے هغه آزاده كړه او نكاح ئے ورسره اوكړه' نو ثابت ذ حضرت انسؓ نه دريافت اوكهٔ' چه حضورﷺ ذ هغے څهٔ

تَزَوَّجَهَا فَقَالَ ثَابِتٌ لِاَنَسٍ مَا اَصْدَقَهَا قَالَ اَصْدَقَهَا نَفْسَهَا فَاَعْتَقَهَا.

مهر مقرر کړلو. حضرت انسؓ ورته اووے، خپله هغه ئے ذ هغے مهر مقرر کړلو، چه هغه ئے آزاده کړه.

۲۲۹ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْتَقٰى هُوَ وَالْمُشْرِكُوْنَ فَاقْتَتَلُوْا فَلَمَّا مَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى عَسْكَرِهٖ وَ مَالَ الْاٰخَرُوْنَ اِلٰى عَسْكَرِهِمْ وَ فِيْ اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ لَّا يَدَعُ شَاذَّةً وَّلَا فَاذَّةً اِلَّا تَبِعَهَا يَضْرِبُهَا بِسَيْفِهٖ فَقِيْلَ مَا اَجْزَاَ مِنَّا الْيَوْمَ اَحَدٌ كَمَا اَجْزَاَ فُلَانٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَا اِنَّهٗ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ اَنَا صَاحِبُهٗ قَالَ فَخَرَجَ مَعَهٗ كُلَّمَا وَّقَفَ وَقَفَ مَعَهٗ وَ اِذَا اَسْرَعَ اَسْرَعَ مَعَهٗ قَالَ فَجُرِحَ الرَّجُلُ جُرْحًا شَدِيْدًا فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَوَضَعَ سَيْفَهٗ بِالْاَرْضِ وَ ذُبَابَهٗ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلٰى سَيْفِهٖ فَقَتَلَ نَفْسَهٗ فَخَرَجَ الرَّجُلُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَمَا ذَاكَ قَالَ الرَّجُلُ الَّذِيْ ذَكَرْتَ

۲۲۹ : قتيبه. يعقوب. ابي حازم. سهل بن سعد ساعديؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم او مشرکين (يعني ذ خيبر يهود) صف آرا شو، بيا جنګ ئے اوکړ. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم او نور خلق خپل خپل لښکر ته واپس راغلل. او ذ نبي صلي الله عليه وسلّم ذ اصحابو لښکر کښ يو داسے سړے هم وو، چه يکه دوکه يهودي به ئے بے قتلولو نه، نهٔ پريښودلو. نو مسلمانانو کښ مشهوره شوه، چه خونړ ذ طرف نه څومره کار نن فلاني سړي اوکړ، بل چا نهٔ دے کړے، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ګورے، هغه دوزخي دے. دے آوريدو سره يو سړي اووے زه به (ذ امتحان په طور) هغه سره يم، نو هغه هغے سړي پسے اولګيد، چه کوم ځائے به هغه ايساريدلو، نو دے به هم ورسره ايساريدلو، او چه هغه به تيزي سره تلو، نو دے به هم ورپسے تلو. هغه وائي، بيا هغے سړي ته يو سخت زخم اولګيد (چه ذ هغے تکليف ئے برداشت کولے نهٔ شو) هغه تادي سره مرګ کيدل اوغوښتل، نو هغهٔ توره په زمکه کيښوده، او ذ هغے څوکه ئے ذ خپلے سينے په مينځ کيښوده. بيائے هغے له زور ورکړ، او خودکُشي ئے اوکړله، نو دا سړے حضور صلي الله عليه وسلّم له راغے، او وے وئيل، زهٔ ګواهي کوم، چه تاسوٌ ذ الله رسول ئے، حضورٌ ورته اوفرمائيل، څهٔ خبره ده، هغهٔ

الـفـا بـنه من نفل النـار فـلحظـر الـنـاس ذلك فـفـلـت قالكم به فـعرجت في طلبه فـلم جـرح جـرحـا شديدًا فـاستعجل المَوْتَ فـوضـع نصل سَيْفِهِ فِي الْاَرضِ وَ ذُبَابَـهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلَيْـهِ فَـقَتَلَ نَفْسَـهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذٰلِكَ اِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ اَهْلِ الْجَنَّةِ فِيْمَـا يَبْـدُوْ لِلنَّاسِ وَهُوَ مِنْ اَهْلِ الـنَّـارِ وَ اِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ اَهْلِ النَّارِ فِيْمَا يَبْدُوْ لِلنَّاسِ وَهُوَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ.

عرض او كۀ' اوس چه تاسو د كوم سړي د دوزخي كيدو متعلق فرمائيلي وو' خلقو نه دا خبره ګرانه ښكاره شوه' نو ما اووے' د هغه د حقيقت معلومولو ذۀ ذمه وار يم' نو زۀ د هغۀ تلاش كښ اووتلم. بيا هغه سخت زخمي شو' او زر مرګ كيدو د پاره توره په زمكه او د هغے څوكه ئے د خپلے سينے په مينځ كښ كيښوده' بيا ئے زور سره خودكشي اوكړله' نو هغه وخت رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' انسان د خلقو نظر كښ د جنتيانو په شان كار كوي' حالانكه هغه دوزخي وي' (نو داسے څۀ كار اوكړي' چه هغے سره ورمبني ټول اعمال ئے برباد شي) او يو سړے د خلقو په نظر كښ د دوزخيانو په شان عمل كوي' حالانكه هغه جنتي وي.

۲۳۰ : حَـدَّثَـنَـا اَبُـو الْيَـمَـانِ اَخْبَـرَنَـا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْـرِيِّ قَـالَ اَخْبَـرَنِـيْ سَعِيْـدُ بْـنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُـرَيْـرَةَ قَالَ شَهِدْنَا خَيْبَرَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ مِـمَّـنْ مَـعَـهُ يَدَّعِي الْاِسْلَامَ هٰذَا مِنْ اَهْـلِ الـنَّـارِ فَـلَـمَّا حَضَرَ الْقِتَالُ قَاتَلَ الرَّجُـلُ اَشَـدَّ الْقِتَالِ حَتّٰى كَثُرَتْ بِهِ الْجِـرَاحَةُ فَـكَـادَ بَعْضُ النَّاسِ يَرْتَابُ فَـوَجَـدَ الرَّجُـلُ اَلَمَ الْجِرَاحَةِ فَاَهْوٰى بِيَدِهٖ اِلٰـى كِـنَـانَتِـهٖ فَـاسْتَخْرَجَ مِنْهَا اَسْهُـمًـا فَـنَحَرَ بِهَا نَفْسَهُ فَاشْتَدَّ رِجَالٌ مِـنَ الْـمُسْلِمِيْنَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَـدَّقَ الـلّٰـهُ حَـدِيْثَكَ اِنْتَحَـرَ فُلَانٌ

۲۳۰ : ابـوالـيـمـان. شـعـيـب. زهـري. سـعـيد بـن مسيـب. حـضـرت ابـوهـريـرهؓ نـه روايـت كـوي' هـغـه فـرمـائـي' مـونږ خيبر كـښ حـاضـر وو' حضورؐ د يو مـدعـي اسـلام پـه بـاره كـښ چـه هـغـه دوزخي وو' وے فـرمـائيـل' دا سـړے دوزخـي دے. لـيـكـن څۀ وخت چـه جـهـاد شـروع شـو' نـو هـغـۀ زبردست جهاد اوكۀ' تـردے چـه ډير زيات زخـمـي شـو' او د بعضے خلقو د حـضـورؐ په دے فرمان كښ څۀ شك شبه پيدا شوه (چه خـدائے خبـر' د حضورؐ د دے نه څۀ مقصد دے' چه مونږ پرے پو هـ نۀ شو) هـغـے زخمي سړي د زخمونو تكليف بـرداشـت نـۀ كـړے شـو' نـو هغۀ خپل لاس تركش كښ ننبـاسـلـو' او غشـے ئے راښكلو' او هغه ئے په خپله مري (ګلے) ور اُوتـومـبـلـو' نـو څـنـے مسـلـمـانـان تيزئ سره د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شو' او

فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَقَالَ قُمْ يَا فُلَانُ فَأَذِّنْ أَنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا مُؤْمِنٌ إِنَّ اللّٰهَ يُؤَيِّدُ الدِّيْنَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ شَبِيْبٌ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبٍ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ شَهِدْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُنَيْنًا وَ قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَابَعَهُ صَالِحٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ قَالَ الزُّبَيْدِيُّ أَخْبَرَنَا الزُّهْرِيُّ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ كَعْبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ كَعْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مَنْ شَهِدَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ قَالَ الزُّهْرِيُّ وَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ وَ سَعِيْدٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

وئيلے، يا رسول اللّٰه، اللّٰه تعالىٰ ستاسو خبره ريښتيني اوښودله، چه فلاني سړي مړي كښې غشيٰ ور اُوټومبلو، او خودكشي ئے اوكړله. نو حضورؐ چاته اوفرمائيل، چه اے فلانيه، پاسه، اودريږه، او خلقو كښې اعلان اُوكه، چه جنت ته به ذَ مومن نه سوا نور هيڅوک نه ځي، او اللّٰه كله ذَ بدكار سړي په ذريعه هم خپل دين ته مدد وركوي. صالح ذَ زهري نه ذَ دے حديث متابع حديث روايت كړے دے، او شبيب ذَ ابو اسامه يونس، ابن شهاب نه روايت كړے دے، چه ماته ابن مسيب او عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن كعب راكه، چه حضرت ابوهريرهؓ دا الفاظ اوفرمائيل: شَهِدنَا مع النَّبى صلى اللّٰه عليه وسلم خيبر، او ابن مبارک په واسطه ذَ يونس، زهري، سعيد، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړے دے. صالح ذَ زهري نه ذَ دے متابع حديث روايت كه. او زبيده په واسطه ذَ زهري عبدالرحمٰن بن كعب، عبيداللّٰه بن كعب دا الفاظ وئيلے دي: اَخْبَرَنِىْ مَنْ شَهِدَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ او زهري په واسطه ذَ عبيداللّٰه بن عبداللّٰه او سعيد، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړے دے.

۱۲۳۱: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ أَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ أَبِيْ مُوْسَى الْأَشْعَرِيِّ رضي اللّٰه عنه قَالَ لَمَّا غَزَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ أَوْ قَالَ لَمَّا تَوَجَّهَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْرَفَ النَّاسُ عَلَى وَادٍ

۱۲۳۱: موسيٰ بن اسماعيل. عبدالواحد. عاصم. ابو عثمان. حضرت ابو موسيٰ اشعري نه روايت كوي، هغه فرمائي، كوم وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په خيبر حمله اوكړله، يا دائے اوفرمائيل، كوم وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خيبر طرف ته لاړلو، خلق چه يو وادي طرف ته اورسيدل، نو اوچت آواز سره ئے تكبير وئيل شروع كړل: اللّٰه اكبر اللّٰه اكبر، لا اله الا

فَرَفَعُوْا اَصْوَاتَهُمْ بِالتَّكْبِيْرِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِرْبَعُوْا عَلٰى اَنْفُسِكُمْ اِنَّكُمْ لَا تَدْعُوْنَ اَصَمَّ وَلَا غَائِبًا اِنَّكُمْ تَدْعُوْنَ سَمِيْعًا قَرِيْبًا وَّهُوَ مَعَكُمْ وَ اَنَا خَلْفَ دَابَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعَنِيْ وَ اَنَا اَقُوْلُ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ فَقَالَ لِيْ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ قَيْسٍ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَلَا اَدُلُّكَ عَلٰى كَلِمَةٍ مِنْ كَنْزٍ مِّنْ كُنُوْزِ الْجَنَّةِ قُلْتُ بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فِدَاكَ اَبِيْ وَ اُمِّيْ قَالَ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ.

الله والله اكبر' حضورؐ اوفرمائيل. خان سره نرمي كوئ (يعني ډير په زوره تكبير مه وائے' خكه چه تاسو څوک كونړ (بهرے) يا غير موجود ذات نه بلنے' بلكه تاسو خو يو آوريدونكے ذات بلنے' چه هغه تاسو ته ډير قريب دے. (ابو موسىٰ وائي) زهٔ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه ورستو ووم حضورؐ خما نه "لاحول ولا قوة الّا بالله" وئيل واوريدل' نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' اے عبدالله بن قيس' ما عرض او كه' لبّيک يا رسول الله' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' آيا زهٔ تاته يوه داسے كلمه اونهٔ ښائم' چه دَ جنت دَ خزانونه يوه خزانه ده. ما عرض او كهٔ' خما مور پلار دے په تاسو قربان وي ضرور اوښائے' نو حضورؐ اوفرمائيل: لاحول ولا قوة الا بالله: (يعني هغه خزانه دا ده).

۲۳۲ : حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ عُبَيْدٍ قَالَ رَاَيْتُ اَثَرَ ضَرْبَةٍ فِيْ سَاقِ سَلَمَةَ فَقُلْتُ يَا اَبَا مُسْلِمٍ مَّا هٰذِهِ الضَّرْبَةُ فَقَالَ هٰذِهِ ضَرْبَةٌ اَصَابَتْنِيْ يَوْمَ خَيْبَرَ فَقَالَ النَّاسُ اُصِيْبَ سَلَمَةُ وَّ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَفَثَ فِيْهِ ثَلٰثَ نَفَثَاتٍ فَمَا اشْتَكَيْتُهَا حَتَّى السَّاعَةِ.

۲۳۲ : مكي بن ابراهيم. يزيد بن ابي عبيد نه روايت كوي' هغه فرمائي ما دَ سلمهؓ پنډئ (پنډلی) كښ دَ توره دَ چوټ نښه اوليده' ما تپوس او كهٔ' اے ابو مسلم' دا چوټ څنګه دے' هغهٔ جواب راكهٔ' ماته دا چوټ دَ خيبر په ورځ لږيدلے وو' نو خلقو دا اووے' چه سلمهؓ مړ شولو. ليكن زهٔ دَ حضورؐ خدمت كښ حاضر شوم. حضورؐ درے خله په دے دم چُف كړلو' نو دَ هغے وخت نه اوسه پورے په دے حقله ماته هيڅ تكليف نشته.

۲۳۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ اِلْتَقَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۳۳ : عبدالله بن مسلمه. ابن ابي حازم. دَ هغهٔ پلار. حضرت سهلؓ نه روايت كوي' يو جهاد (يعني خيبر) كښ حضور صلي الله عليه وسلّم او مشركينو كښ ښهٔ مقابله اوشوه. بيا هر يو قوم خپل خپل لښكر ته

وَسَلَّمَ وَالْمُشْرِكُونَ فِيْ بَعْضِ مَغَازِيْهِ فَاقْتَتَلُوْا فَمَالَ كُلُّ قَوْمٍ اِلَى عَسْكَرِهِمْ وَ فِي الْمُسْلِمِيْنَ رَجُلٌ لَا يَدَعُ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ شَاذَّةً وَّلَا فَاذَّةً اِلَّا اتَّبَعَهَا فَضَرَبَهَا بِسَيْفِهِ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا اَجْزَاَ اَحَدُهُمْ مَا اَجْزَاَ فُلَانٌ فَقَالَ اِنَّهٗ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَقَالُوْا اَيُّنَا مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ اِنْ كَانَ هٰذَا مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ لَاَتَّبِعَنَّهٗ فَاِذَا اَسْرَعَ وَ اَبْطَاَ كُنْتُ مَعَهٗ حَتّٰى جُرِحَ فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَوَضَعَ نِصَابَ سَيْفِهِ بِالْاَرْضِ وَ ذُبَابَهٗ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلَيْهِ فَقَتَلَ نَفْسَهٗ فَجَاءَ الرَّجُلُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَقَالَ وَمَا ذَاكَ فَاَخْبَرَهٗ فَقَالَ اِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ اَهْلِ الْجَنَّةِ فِيْمَا يَبْدُوْ لِلنَّاسِ وَ اِنَّهٗ مِنْ اَهْلِ النَّارِ وَ يَعْمَلُ بِعَمَلِ اَهْلِ النَّارِ فِيْمَا يَبْدُوْ لِلنَّاسِ وَهُوَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ.

واپس شو مسلمانانو کښې يو سړے وو. چه يکه دوکه مشرک به ئے نۀ پريښودلو، بلکه دَ هغۀ دَ شا، نه به راغے، او قتل به ئے کۀ. حضور صلي الله عليه وسلّم ته عرض اوشو، يا رسول الله، څومره کار چه دے سړي اوکۀ، بل چا نۀ دے کړے. حضورؐ اوفرمائيل، هغه خو دوزخي دے، صحابه وُ (زړۀ کښې) اووے، که دے دوزخي دے، نو بيا مونږ کښې جنتي څوک دے. دے کښې مسلمانانو کښې يو سړي اووے، زۀ به هغے سړي پسے لګيدلے يم، چه دَ هغۀ امتحان واخلم، چه هغه به تيز يا رو تلو، نو زۀ به هم هغۀ سره هغسے تلم، حتٰي چه هغه زخمي شو، دَ زخمونو دَ تکليف نه بے تابه شو، زر ئے مړ کيدل غوښتل، نو دَ تورے قبضه ئے په زمکه کيښوده، او دَ هغې څوکه ئے دَ خپلے سينے په مينځ کښې کيښوده. بيائے په هغے زور اوکړو، او خودکشي ئے اوکړله. اوس هغه سړے نبي صلي الله عليه وسلّم له راغے، او عرض ئے اوکۀ، زۀ ګواهي کوم چه تاسو دَ الله رسول ئے، حضورؐ ورته اوفرمائيل، څۀ خبره ده، نو هغۀ هغه واقعه حضورؐ ته واوروله، حضورؐ ورته اوفرمائيل، يو سړے دَ خلقو په نظر کښې دَ جنتيانو په شان کارونه کوي، حالانکه هغه دوزخي وي، او څنے دَ خلقو په نظر کښې دَ دوزخيانو په شان عمل کوي، حالانکه هغه جنتي وي.

۲۳۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَعِيْدٍ الْخُزَاعِيُّ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ الرَّبِيْعِ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ قَالَ نَظَرَ اَنَسٌ اِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَرَاٰى طَيَالِسَةً فَقَالَ كَاَنَّهُمُ السَّاعَةَ يَهُوْدُ

۲۳۴: محمد بن سعيد خزاعي. زياد بن ربيع. ابو عمران نه روايت کوي. حضرت انس (بصره کښې، دَ جمعے په ورځ په خلقو داسے څادرونه اوليدل، چه دَ خيبر دَ يهودو دَ څادرونو په شان رنګين وو، نو وے فرمائيل دا خلق دا وخت دَ خيبر دَ يهوديانو په شان

خَيْبَرَ.

۲۳۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ كَانَ عَلِيٌّ تَخَلَّفَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خَيْبَرَ وَ كَانَ رَمِدًا فَقَالَ أَنَا أَتَخَلَّفُ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَحِقَ فَلَمَّا بِتْنَا اللَّيْلَةَ الَّتِي فُتِحَتْ قَالَ لَأُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ غَدًا أَوْ لَيَأْخُذَنَّ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلٌ يُحِبُّهُ اللّٰهُ وَ رَسُولُهُ يُفْتَحُ عَلَيْهِ فَنَحْنُ نَرْجُوهَا فَقِيلَ هٰذَا عَلِيٌّ فَأَعْطَاهُ فَفُتِحَ عَلَيْهِ.

معلوميدل.

۲۳۵: عبدالله بن مسلمه. حاتم. يزيد بن ابو عبيد. سلمةؓ نه روايت كوي، چه ذَ حضرت علي كرم الله وجهه سترګې خوږيدلې، په دې وجه هغه ذَ خيبر جنګ كښې رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره رانغې. بيا حضرت عليؓ اووې، زه دې ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه ورستو پاتې شم (داسې نشي كيدې) نو هغه هم بيا ورستو راغې، كوم وخت چه هغه شپه راغله، چه ذَ هغې سحر ته به خيبر فتح كيږي، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل صباله به زهٔ داسې سړي ته جنډه وركوم يا دائې اوفرمائيل، صباله به داسې سړې جنډه آخلي، چه هغهٔ سره الله او رسول محبت لري، ذَ هغهٔ په لاس به فتح هم حاصليږي. مونږ ذَ جنډې اميدوار وو، دې كښې حضورؑ ته اووئيلې شو، چه دغه دې عليؓ راغې، حضورؑ هغهٔ له جنډه وركړله، او ذَ هغهٔ په لاس فتح اوشوه.

۲۳۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ خَيْبَرَ لَأُعْطِيَنَّ هٰذِهِ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلًا يَفْتَحُ اللّٰهُ عَلَى يَدَيْهِ يُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُولَهُ وَ يُحِبُّهُ اللّٰهُ وَ رَسُولُهُ قَالَ فَبَاتَ النَّاسُ يَدُوكُونَ لَيْلَتَهُمْ أَيُّهُمْ يُعْطَاهَا فَلَمَّا أَصْبَحَ النَّاسُ غَدَوْا عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّهُمْ يَرْجُو أَنْ

۲۳۶: قتيبه بن سعيد. يعقوب بن عبدالرحمٰن. ابو حازم. سهل بن سعدؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذَ خيبر په ورځ اوفرمائيل، زهٔ به صباله دا جنډه هغې سړي له وركوم، چه ذَ هغهٔ په لاس به الله تعالٰي فتح عطا كړي، او هغه الله او رسول سره محبت ساتي. سهيل وائي، خلقو هغه شپه ډيرې بې چينې سره تيره كړه، كورو چاته جنډه وركولې شي. كوم وخت چه صبا شو، نو خلق ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، او هر يو ذَ هغې جنډې خواهشمند وو، حضورؑ اوفرمائيل، عليؓ بن ابو طالب كوم ځائې دې. عرض اوكړې شو، يا رسول الله، ذَ هغهٔ خو سترګې

يُعْطَاهَا فَقَالَ اَيْنَ عَلِيُّ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ فَقِيْلَ هُوَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ يَشْتَكِيْ عَيْنَيْهِ قَالَ فَاَرْسِلُوْا اِلَيْهِ فَاْتِيَ بِهٖ فَبَصَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ عَيْنَيْهِ وَ دَعَا لَهٗ فَبَرَاَ حَتّٰى كَاَنْ لَمْ يَكُنْ بِهٖ وَجَعٌ فَاَعْطَاهُ الرَّايَةَ فَقَالَ عَلِيٌّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُقَاتِلُهُمْ حَتّٰى يَكُوْنُوْا مِثْلَنَا فَقَالَ انْفُذْ عَلٰى رِسْلِكَ حَتّٰى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ ثُمَّ ادْعُهُمْ اِلَى الْاِسْلَامِ وَ اَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ مِنْ حَقِّ اللّٰهِ فِيْهِ فَوَاللّٰهِ لَاَنْ يَهْدِيَ بِكَ رَجُلًا وَّاحِدًا خَيْرٌ لَّكَ مِنْ اَنْ يَكُوْنَ لَكَ حُمْرُ النَّعَمِ.

خوږيږي، حضورؐ اوفرمائيل: هغه پسے خوک اوليږئ او ماته ئے راولئ، هغه راوغوښتلے شو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ذ خپلے خولے مبارکے لاړے ذ هغه په سترګو اولړولے، هغه ته ئے دُعا اوکړله، نو هغه داسے تندرست شو، ګويا هغه ته هډو څۀ تکليف نه وو، حضورؐ هغه ته جنډه ورکړله، حضرت عليؓ عرض اوکۀ، يا رسول اللّٰه، زۀ به هغوي سره هغے پورے جنګ کوم، څو پورے چه هغوي خمونږ په شان مسلمانان نشي، حضورؐ ورته اوفرمائيل، تۀ نيغ لاړ شه، ذ هغوي ميدان کښ کوز شه. اول هغوي ته ذ اسلام دعوت ورکړه، او اسلام کښ چه ذ اللّٰه کوم حقوق په هغوي واجب دي، هغه ورته اوښايه، قسم په خدائے ستا په ذريعه ذ اللّٰه تعالٰي چاته (اسلام طرف ته) هدايت کول ستا ذ پاره ذ سرو .(سُرخ) اُوښانو نه بهتر دي.

۲۳۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْغَفَّارِ بْنُ دَاوُدَ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ح وَ حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الزُّهْرِيُّ عَنْ عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَدِمْنَا خَيْبَرَ فَلَمَّا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْحِصْنَ ذُكِرَ لَهٗ جَمَالُ صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيِّ بْنِ اَخْطَبَ وَقَدْ قُتِلَ زَوْجُهَا وَ كَانَتْ عَرُوْسًا فَاصْطَفَاهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهٖ فَخَرَجَ بِهَا حَتّٰى بَلَغْنَا سَدَّ الصَّهْبَاءِ حَلَّتْ فَبَنٰى

۲۳۷ : عبدالغفار بن داؤد. يعقوب بن عبدالرحمٰن (دويم سند) احمد بن وهب. يعقوب بن عبدالرحمٰن. زهري ذ مطلب آزاد کرده غلام عمرو، حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي. هغه فرمائي، مونږ خيبر ته راغلو، هر کله چه اللّٰه تعالٰي حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته قلعه خيبر کښ فتح ورکړله، نو حضورؐ ته ذ بي بي صفيه بنت حي ذ حسن و جمال ذکر اوکړے شو، هغه نوے ناوے وه، چه ذ هغے خاوند قتل کړے شو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه ذ خپل خان ذ پاره منتخب کړله، حضورؐ هغه بوتله، تردے چه کوم وخت مونږ مقام صهباته اورسيدو، نو بي بي صفيهؓ (ذ حيض نه غسل کولو سره حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ پاره)

بِهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَنَعَ حَيْسًا فِيْ نِطَعٍ صَغِيْرٍ ثُمَّ قَالَ لِيْ اٰذِنْ مَنْ حَوْلَكَ فَكَانَتْ تِلْكَ وَلِيْمَتَهٗ عَلٰى صَفِيَّةَ ثُمَّ خَرَجْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَرَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَوِّيْ لَهَا وَرَاءَهٗ بِعَبَاءَتِهٖ ثُمَّ يَجْلِسُ عِنْدَهٗ بَعِيْرَهٗ فَيَضَعُ رُكْبَتَهٗ وَتَضَعُ صَفِيَّةُ رِجْلَهَا عَلٰى رُكْبَتِهٖ حَتّٰى تَرْكَبَ.

حلاله شوه، حضور صلي الله عليه وسلّم هغې سره خلوت اوكړلو. بيا حضورؐ ماليده (چوري) شان جوړه كړه. په دستر خوان ئې كېښوده، او ماته ئې اوفرمائيل، ذ خپل خواوشا خلق راوغواړه، دا ذ بي بي صفيې د واده وليمه وه. او مونږ مدينې طرف ته روان شو، نو ما نبي صلي الله عليه وسلّم اُيدلو چه بي بي صفيې ذ پاره ئې خپل ورستو څادر خور كړلو، بيا به حضورؐ خپل اوښ سره قريب كيناستلو، خپل زنګون مبارك به ئې كېښود. بيا به بي بي صفيې ذ حضورؐ په زنګون مبارك، خپله ګسه پښه كېښودله، او په اُوښ به سوره شوله.

۲۳۸: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ يَحْيٰى عَنْ حُمَيْدِ الطَّوِيْلِ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقَامَ عَلٰى صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ بِطَرِيْقِ خَيْبَرَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ حَتّٰى اَعْرَسَ بِهَا وَكَانَتْ فِيْمَنْ ضُرِبَ عَلَيْهَا الْحِجَابُ.

۲۳۸: اسماعيل. ذ اسماعيل ورور. سليمان. يحيٰي. حميد طويل. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم، صفيهؓ بنت حي سره ذ خيبر په لاره درې ورځې ايسار وو، تردې چه حضورؐ هغې سره خلوت (صحبت) اوكړلو، او هغه په هغې ښځو كښې وه چه په هغوي پرده مقرر وه (يعني اُمهات المؤمنين كښې وه).

۲۳۹: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدٌ اَنَّهٗ سَمِعَ اَنَسًا يَقُوْلُ اَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ خَيْبَرَ وَالْمَدِيْنَةِ ثَلٰثَ لَيَالٍ يُبْنٰى عَلَيْهِ بِصَفِيَّةَ فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِيْنَ اِلٰى وَلِيْمَتِهٖ وَمَا كَانَ فِيْهَا مِنْ خُبْزٍ وَلَا

۲۳۹: سعيد بن ابو مريم. محمد بن جعفر بن ابي كثير. حميد. حضرت انسؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، نبي صلي الله عليه وسلّم ذ مدينې او خيبر لاره كښې درې ورځې ايسار وو، چه هلته حضورؐ بي بي صفيېؓ سره خلوت اوكړلو، نو ما د حضور صلي الله عليه وسلّم وليمه كښې مسلمانان راوغستل، او دې وليمه كښې نه روټې وَه او نه غوښه. دې كښې صرف دا شوې وو، چه حضور صلي الله عليه وسلّم حضرت بلالؓ ته د

لَحْمٍ وَمَا كَانَ فِيهَا إِلَّا أَنْ أَمَرَ بِلَالًا بِالْأَنْطَاعِ فَبُسِطَتْ، فَأَلْقَى عَلَيْهَا التَّمْرَ وَالْأَقِطَ وَالسَّمْنَ فَقَالَ الْمُسْلِمُونَ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ أَوْ مَا مَلَكَتْ يَمِينُهُ قَالُوا إِنْ حَجَبَهَا فَهِيَ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ وَ إِنْ لَمْ يَحْجُبْهَا فَهِيَ مَا مَلَكَتْ يَمِينُهُ فَلَمَّا ارْتَحَلَ وَطَّأَ لَهَا خَلْفَهُ وَ مَدَّ الْحِجَابَ.

دسترخوان غوړولو حکم ورکړلو، هغه اوغوړولے (خور کړے) شو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم پـه هغے چوهارے، پنير او غوړي کيښودل، نو، مسلمانانو خپلو کښ اووے، که حضور صلي الله عليه وسلّم په هغے پرده اوکړي، نو دَ اُم المؤمنين کښ به وي، او که پرده ئے پرے اونـه کړلـه، نو بيا وينزه ده. کوم وخت چه حضورؐ کوچ اوکهٔ، نو هغے دَ پاره ئے خان پسے ورستو دَ ناستے ځائے جوړ کړلو، او پرده ئے پرے راښکله.

۲۴۰: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهْبٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ كُنَّا مُحَاصِرِيْ خَيْبَرَ فَرَمٰى إِنْسَانٌ بِجِرَابٍ فِيهِ شَحْمٌ فَنَزَوْتُ لِاٰخُذَهُ فَالْتَفَتُّ فَإِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَحْيَيْتُ.

۲۴۰: ابوالوليد. شعبه. (دويم سند) عبداللّٰه بن محمد. وهب. شعبه. حميد بن هلال. عبداللّٰه بن مغفلؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، مونږ خلقو دَ خيبر محاصره کړے وَه، چه يو سړي ناشته دان راوغرځولو هغے کښ چربي وه، ما دَ هغے اخستلو دَ پاره ورمنډه کړے، چه ورستو م اوکتل، څهٔ گورم حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم موجود دے، ماله شرم راغے، او هغه چربي مِ پريښودله.

۲۴۱: حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمٰعِيلَ عَنْ أَبِي أُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ وَ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ أَكْلِ الثُّوْمِ وَ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ نَهٰى عَنْ أَكْلِ الثُّوْمِ هُوَ عَنْ نَافِعٍ وَحْدَهُ وَ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ عَنْ سَالِمٍ.

۲۴۱: عبيد بن اسماعيل. ابو اسامه. عبيداللّٰه. نافع او سالم. ابن عمرؓ نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د خيبر په ورځ د اُوګے (لهسن) او دَ ساتلے خرونو د غوښے خوړلو نـه منع اوکړله، دَ اُوګے دَ خوراک دَ ممانعت راوي صرف نافع دے، او دَ کورنو خرونو دَ غوښے ممانعت دَ سالم نه روايت دے (دَ پالتو يعني د ساتلے خرونو غوښه دَ جمهور علماؤ په نزد حرام او کچه بدبوداره اُوګه مکروه ده).

۲۴۲: حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ

۲۴۲: يحيي بن قزعه. مالک. ابن شهاب. دَ محمد بن علي دواړه هلکان

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ وَالْحَسَنِ ابْنَىْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ اَبِيْهِمَا عَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِىْ طَالِبٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ مُتْعَةِ النِّسَآءِ يَوْمَ خَيْبَرَ وَ عَنْ اَكْلِ الْحُمُرِ الْاِنْسِيَّةِ.

عبدالله او حسن. ذ هغوي پلار. ذ علي بن ابي طالب نه روايت كوي، چه نبي صلي الله عليه وسلّم ذ خيبر په ورځ ښځو سره نكاح مُتعه كول او ذ كورنو خرونو غوښه خوړلو نه منع فرمائيلے ده.

ف: نكاحِ متعه: داده چه مثلًا ذ يو دوو هفتو ذ پاره نكاح اوكړے شي. دا ذ ټولو علماؤ په نزد ښيخي حرامه ده.

۲۴۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ.

۲۴۳ : محمد بن مقاتل. عبدالله. عبيدالله بن عمر. عمر. نافع. حضرت ابن عمر نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ خيبر په ورځ ذ ساتلے شوے خرونو ذ غوښے نه منع فرمائيلے ده.

۲۴۴ : حَدَّثَنِىْ اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ وَ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ نَهَى النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَكْلِ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ.

۲۴۴ : اسحاق بن نصر. محمد بن عبيد. عبيدالله. نافع او سالم. حضرت ابن عمر نه روايت كوي، هغه فرمائي: چه نبي صلي الله عليه وسلّم ذ كورنو خرونو ذ غوښے خوړلو نه منع فرمائيلے ده.

۲۴۵ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ وَ رَخَّصَ فِى الْخَيْلِ.

۲۴۵ : سليمان بن حرب. حماد بن زيد. عمرو. محمد بن علي. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت كوي، هغه فرمائي: حضور صلي الله عليه وسلّم ذ خيبر په ورځ ذ خرونو د غوښے خوړلو نه منع فرمائيلے ده او د اس ذ غوښے اجازت ئے ور كړلو۱.

۱. امام شافعي رحمة الله عليه ددے حديث په وجے سره ذ اَس غوښه جائزه ګرځولے ده. امام ابو

حنيفه رحمة اللّٰه عليه دے لره مكروهه ګرځوي. په دې حديث كښے دا هم دي چه پاک حضرتؐ ذ اس غوښے ذ خوړلو نه منع والے كړے وو. بهرحال دلائل دواړه طرفته شته.

۲۴۶ : حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا عَبَّادٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي أَوْفَى أَصَابَتْنَا مَجَاعَةٌ يَوْمَ خَيْبَرَ فَإِنَّ الْقُدُورَ لَتَغْلِي قَالَ وَ بَعْضُهَا نَضِجَتْ فَجَاءَ مُنَادِي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَأْكُلُوا مِنْ لُحُومِ الْحُمُرِ شَيْئًا وَّ اَهْرِيْقُوْهَا قَالَ ابْنُ أَبِي أَوْفَى فَتَحَدَّثْنَا أَنَّهُ إِنَّمَا نَهَى عَنْهَا لِأَنَّهَا لَمْ تُخَمَّسُ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ نَهَى عَنْهَا الْبَتَّةَ لِأَنَّهَا كَانَتْ تَأْكُلُ الْقَذِرَةَ.

۲۴۶ : سعيد بن سليمان. عباد. شيباني. ابن ابي اوفیؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، ذ خيبر په ورځ په مونږ ذ لوږے غلبه اوشوه (هغه وخت) كټونے (ہانډياں) په جوش راختلے وے، او څه پخ شوے وے دے كښں ذ حضورؐ منادي آواز اوكړلو. ذ خرونو غوښه لره هم مه خورئے، او كټوے آړولے كړئے. ابن ابي اوفی وائي، مونږ خپلو كښں اووے، حضورؐ صرف دے ذ پاره منع فرمائيلے ده، چه دے كښں اوسه پورے خمس لا نهٔ دے اوښكلے شوے. او بعضو اووے، حضورؐ يقينًا په دے وجه منع فرمائيلے ده، چه دا نجاست خوري.

۲۴۷ : حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ عَنِ الْبَرَاءِ وَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَىؓ أَنَّهُمْ كَانُوْا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَصَابُوْا حُمُرًا فَطَبَخُوْهَا فَنَادٰى مُنَادِي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكْفِؤُا الْقُدُوْرَ.

۲۴۷ : حجاج بن منهال. شعبه. عدي بن ثابت. براء و عبداللّٰه بن ابي اوفی نه روايت كوي، هغه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره (ذ خيبر ذ جنګ په موقعه) موجود وو، نو هغوي ته خوراک ذ پاره صرف خرونه حاصل شو، هغوي ئے غوښه پخه كړله، نو ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اعلان كونكي اعلان اوكهٔ، چه كټوئے واړوئے.

۲۴۸ : حَدَّثَنِي إِسْحٰقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ وَ ابْنَ أَبِي أَوْفَىؓ يُحَدِّثَانِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ يَوْمَ خَيْبَرَ

۲۴۸ : اسحاق. عبدالصمد. شعبه. عدي بن ثابت. حضرت براء او ابن ابي اوفیؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ خيبر په ورځ چه كټونے په نغرو خيژولے شوے وے او فرمائيل، چه

وَقَدْ نَصَبُوا الْقُدُوْرَ اَكْفِئُوا الْقُدُوْرَ.

كتونې واړونې.

۲۴۹: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنِ الْبَرَآءِ غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

۲۴۹: مسلم. شعبه. عدي بن ثابت. حضرت براء نه روايت كوي، هغه فرمائي مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم سره جهاد كښ وو. ذ مخكښ په شان روايت ئې ذكر كۀ.

۲۵۰: حَدَّثَنِي إِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا ابْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ اَخْبَرَنَا عَاصِمٌ عَنْ عَامِرٍ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍؓ قَالَ اَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ خَيْبَرَ اَنْ نُلْقِيَ الْحُمُرَ الْاَهْلِيَّةَ نِيْئَةً وَ نَضِجَةً ثُمَّ لَمْ يَأْمُرْنَا بِاَكْلِهٖ بَعْدُ.

۲۵۰: ابراهيم بن موسي. ابن ابي زائده. عاصم. عامر. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، مونږ ته حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم غزوهٔ خيبر كښ ذ كورَنو خرونو ذ كچه اوپښې غوښې غرځولو حكم اوكړلو. بيائې ذ هغې نه پس مونږ ته ذ هغې ذ خوړلو حكم رانۀ كړلو.

۲۵۱: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِي الْحُسَيْنِ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ عَامِرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ لَا اَدْرِيْ اَنَهٰى عَنْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَجْلِ اَنَّهُ كَانَ حَمُوْلَةَ النَّاسِ فَكَرِهَ اَنْ تَذْهَبَ حَمُوْلَتُهُمْ اَوْ حَرَّمَهُ فِيْ يَوْمِ خَيْبَرَ لَحْمَ الْحُمُرِ الْاَهْلِيَّةِ.

۲۵۱: محمد بن ابو الحسين. عمر بن حفص. ذ هغۀ پلار. عامر. ابن عباسؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، زۀ نشم وئيلې، چه آيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په دې وجه ذ خرونو ذ غوښې خوړلو نه منع فرمائيلې ده، چه خرونه ذ خلقو ذ بار برداري په كار راځي (او ذهغې په خوراک به بيا خلقوته تكليف وي) يا حضورؐ ذ خيبر په ورځ (هميشه ذ پاره) ذ ساتلې شوو خرونو غوښه حرام كړې ده.

۲۵۲: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ اِسْحَاقَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَسَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ لِلْفَرَسِ سَهْمَيْنِ وَ لِلرَّاجِلِ

۲۵۲: حسين بن اسحاق. محمد بن سابق. زائده. عبيداللّٰه بن عمر. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، ذ خيبر په ورځ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم (ذ مال غنيمت) داسې تقسيم اوكړلو، چه ذ آس ئې دوه حصې او ذ پياده ئې يو حصه ئې مقرر كړله. نافع ذ دې تشريح داسې اوكړه، چه چا سره آس

سَهْمًا قَالَ فَسَّرَهُ نَافِعٌ فَقَالَ اِذَا كَانَ مَعَ الرَّجُلِ فَرَسٌ فَلَهُ ثَلَاثَةُ اَسْهُمٍ فَاِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ فَرَسٌ فَلَهُ سَهْمٌ.

وو نو هغهٔ ته به درے حصے ورکیدے (یوه حصه دَ هغهٔ او دوه حصے دَ آس) او که هغه سره به آس نهٔ وو، نو دَ هغهٔ به یوه حصه رسیده.

۲۵۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ اَنَّ جُبَيْرَ بْنَ مُطْعِمٍ اَخْبَرَهُ قَالَ مَشَيْتُ اَنَا وَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا اَعْطَيْتَ بَنِي الْمُطَّلِبِ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ وَ تَرَكْتَنَا وَ نَحْنُ بِمَنْزِلَةٍ وَّاحِدَةٍ مِنْكَ فَقَالَ اِنَّمَا بَنُوْ هَاشِمٍ وَّ بَنُو الْمُطَّلِبِ شَيْءٌ وَاحِدٌ فَقَالَ جُبَيْرٌ وَلَمْ يَقْسِمِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبَنِيْ عَبْدِ شَمْسٍ وَ بَنِيْ نَوْفَلٍ شَيْئًا.

۲۵۳: یحیٰی بن بکیر. لیث. یونس. ابن شهاب. سعید بن مسیب. حضرت جبیر بن مطعمؓ نه روایت کوي، هغه فرماني، زهٔ او حضرت عثمان بن عفان، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم له ورغلو، نو مونږ عرض اوکهٔ، تاسو بنو المطلب ته دَ خیبر خمس کښې حصه ورکړله، او مونږ مو پریښودلو. حالانکه مونږ (او هغوي) تاسو سره قرابت کښې یوه درجه لرو، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم جواب راکړلو، چه بنو هاشم او بنو عبدالمطلب یو دي. جبیر واني، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم بنو عبد شمس او بنو نوفل ته څهٔ حصه ورنهٔ کړله.

۲۵۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ بَلَغَنَا مَخْرَجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ بِالْيَمَنِ فَخَرَجْنَا مُهَاجِرِيْنَ اِلَيْهِ اَنَا وَ اَخَوَانِ لِيْ اَنَا اَصْغَرُهُمْ اَحَدُهُمَا اَبُوْ بُرْدَةَ وَالْاٰخَرُ اَبُوْ رُهْمٍ اِمَّا قَالَ بِضْعٌ وَ اِمَّا قَالَ فِيْ ثَلٰثَةٍ وَ خَمْسِيْنَ اَوْ اثْنَيْنِ وَ خَمْسِيْنَ رَجُلًا مِّنْ قَوْمِيْ فَرَكِبْنَا سَفِيْنَةً فَاَلْقَتْنَا سَفِيْنَتُنَا اِلَى

۲۵۴: محمد بن علاء. ابو اسامه. یزید بن عبداللّٰه. ابو برده. حضرت ابو موسیٰؓ نه روایت کوي، هغهٔ بیان اوکهٔ، مونږ ته یمن کښې دَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم (دَ مکے نه دَ) هجرت خبر راورسید، نو زهٔ او خما دوه ورونړه، چه دَ هغوي نه زهٔ وړوکے ووم، یو ابو برده او دویم ابو رهم څهٔ دَ پاسه پنځوس یا داسے ئے اوفرمائیل، چه درے پنځوس یا دوه پنځوس سره چه خما دَ قوم خلق وو (دَ یمن نه) دَ هجرت په اراده روان شو. او کشتي کښې کیناستلو، هغے کشتئ مونږ حبشه کښې نجاشي (باچا) ته اورسولو، نو هلته مونږ سره

النَّجَاشِيِّ بِالْحَبْشَةِ فَوَافَقْنَا جَعْفَرَ بْنَ أَبِيْ طَالِبٍ فَأَقَمْنَا مَعَهُ حَتَّى قَدِمْنَا جَمِيْعًا فَوَافَقْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ وَ كَانَ أُنَاسٌ مِنَ النَّاسِ يَقُوْلُوْنَ لَنَا يَعْنِيْ لِأَهْلِ السَّفِيْنَةِ سَبَقْنَاكُمْ بِالْهِجْرَةِ وَ دَخَلَتْ أَسْمَاءُ بِنْتُ عُمَيْسٍ وَّ هِيَ مِمَّنْ قَدِمَ مَعَنَا عَلَى حَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَائِرَةً وَقَدْ كَانَتْ هَاجَرَتْ إِلَى النَّجَاشِيِّ فِيْمَنْ هَاجَرَ فَدَخَلَ عُمَرُ عَلَى حَفْصَةَ وَ أَسْمَاءُ عِنْدَهَا فَقَالَ عُمَرُ حِيْنَ رَأَى أَسْمَاءَ مَنْ هٰذِهِ قَالَتْ أَسْمَاءُ بِنْتُ عُمَيْسٍ قَالَ عُمَرُ الْحَبَشِيَّةُ هٰذِهِ الْبَحْرِيَّةُ هٰذِهِ قَالَتْ أَسْمَاءُ نَعَمْ قَالَ سَبَقْنَاكُمْ بِالْهِجْرَةِ فَنَحْنُ أَحَقُّ بِرَسُوْلِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَغَضِبَتْ وَ قَالَتْ كَلَّا وَاللَّهِ كُنْتُمْ مَعَ رَسُوْلِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطْعِمُ جَائِعَكُمْ وَ يَعِظُ جَاهِلَكُمْ وَ كُنَّا فِيْ دَارٍ أَوْ فِيْ أَرْضِ الْبُعَدَاءِ الْبُغَضَاءِ بِالْحَبَشَةِ وَ ذٰلِكَ فِي اللَّهِ وَ فِيْ رَسُوْلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ايْمُ اللَّهِ لَا أَطْعَمُ طَعَامًا وَلَا أَشْرَبُ شَرَابًا حَتَّى أَذْكُرَ مَا قُلْتِ لِرَسُوْلِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

جعفر بن ابي طالب يو ځائے شو. مونږ هغهٔ سره مقيم شو. بيا دَ هغے ځائے نه مونږ ټول (مدينے طرف ته) روان شو، نو حضور صلي اللّه عليه وسلّم سره دَ فتح خيبر په ورځ ملاقات اوشو. ځينے خلقو مونږ اهل کشتي ته دا اوويے، چه هجرت کښې مونږ خلق تاسو نه مخکښې شو. اسماء بنت عميس چه مونږ سره راغلے وه، دَ اُم المؤمنين بي بي حفصےؓ دَ ليدو دَ پاره لاړله، او هغے دَ مهاجرينو ډله کښې نجاشي طرف ته هم هجرت کړے وو. اسماء بي بي حفصےؓ سره وه، حضرت عمرؓ بي بي حفصےؓ پله راغے، چه اسماء ئے اوليده، نو تپوس ئے او کړهٔ، دا څوک ده، بي بي حفصےؓ جواب ورکړهٔ، اسماء بنت عميس ده. حضرت عمرؓ اوويے، آيا درياب والـه حبشيه اسماءؓ ده (يعني چه هغې حبشه ته هجرت کړے وو، او اوس بـراه راست پـه سمندر راغلے ده) اسماءؓ اوويے او، نو حضرت عمرؓ اوويے، هجرت کښې مونږ په تاسو سبقت او کړهٔ، نو مونږ تاسو نه رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم ته زيات قريب او حقدار يو. دے آوريدو سره بي بي اسماءؓ له غصه ورغله، او وئيلے، هيڅ کله نه، په خدائے چه تاسو رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم سره وئے، چه حضورؐ به ستاسو اُوږو (بھوکوں) باندے ډوډې خوړلـه، او ناواقفو ته به ئے وعظ و نصيحت کولو، او مونږ دَ غيـرو او دشمنانو په ملک کښې وو او دا هر څهٔ (مصائب) دَ اللّه او دَ هغهٔ دَ رسول په لاره کښې وو، او په خدائے م دے قسم وي،

وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ كُنَّا نُؤْذٰى وَ نُخَافُ وَ سَاَذْكُرُ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَسْاَلُهُ وَاللّٰهِ لَا اَكْذِبُ وَلَا اَزِيْغُ وَلَا اَزِيْدُ عَلَيْهِ فَلَمَّا جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ اِنَّ عُمَرَ قَالَ كَذَا وَ كَذَا قَالَ فَمَا قُلْتِ لَهُ قَالَتْ قُلْتُ لَهُ كَذَا وَ كَذَا قَالَ لَيْسَ بِاَحَقَّ بِيْ مِنْكُمْ وَلَهُ وَلِاَصْحَابِهِ هِجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ وَلَكُمْ اَنْتُمْ اَهْلَ السَّفِيْنَةِ هِجْرَتَانِ قَالَتْ فَلَقَدْ رَاَيْتُ اَبَا مُوْسٰى وَ اَصْحَابَ السَّفِيْنَةِ يَاْتُوْنِيْ اَرْسَالًا يَسْاَلُوْنِيْ عَنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ مَا مِنَ الدُّنْيَا شَيْءٌ هُمْ بِهِ اَفْرَحُ وَلَا اَعْظَمُ فِيْ اَنْفُسِهِمْ مِمَّا قَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَبُوْ بُرْدَةَ قَالَتْ اَسْمَاءُ فَلَقَدْ رَاَيْتُ اَبَا مُوْسٰى وَ اِنَّهُ لَيَسْتَعِيْدُ هٰذَا الْحَدِيْثَ مِنِّيْ قَالَ اَبُوْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَاَعْرِفُ اَصْوَاتَ رُفْقَةِ الْاَشْعَرِيِّيْنَ بِالْقُرْاٰنِ حِيْنَ يَدْخُلُوْنَ اللَّيْلَ وَ اَعْرِفُ مَنَازِلَهُمْ مِنْ اَصْوَاتِهِمْ بِالْقُرْاٰنِ بِاللَّيْلِ وَ اِنْ كُنْتُ لَمْ اَرَ مَنَازِلَهُمْ حِيْنَ نَزَلُوْا بِالنَّهَارِ وَ مِنْهُمْ حَكِيْمٌ اِذَا لَقِيَ الْخَيْلَ اَوْ قَالَ الْعَدُوَّ قَالَ لَهُمْ اِنَّ اَصْحَابِيْ يَاْمُرُوْنَكُمْ اَنْ

په ما دې خوراک څکاک حرام وي څو پورې چه زۀ به دا خبره ډير زر رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته بيان کړم، او ذ حضورﷺ نه به تپوس کوم په خدائې چه زۀ به نۀ دروغ وائم، نه به کجروي اختياروم، او نۀ به ذ هغې نه زياته خبره بيانوم. بيا چه حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو، نو اسماءؓ عرض اوکۀ، يا رسول الله، عمرؓ داسې داسې وئيلي دي حضورﷺ اوفرمائيل، تا هغۀ له څۀ جواب ورکړلو هغې اووې، ما هغۀ ته داسې داسې اووې، حضورﷺ ورته اوفرمائيل هغه ستاسو نه زيات څما قريب او حقدار نۀ دې، څکه چه ذ هغۀ او ذ هغۀ ذ ملګرو صرف يو ځل هجرت دې، او اې کشتئ والو، ستاسو دوه ځله هجرت دې، اسماءؓ وائي، ما ابو موسٰي او کشتئ واله ليدل، چه ماته به ډلې ډلې راتلل، او دا حديث به ئې مانه پښتلو، ذ دُنيا هيڅ څيز ذ هغوي په زړونو کښې ذ دې حديث نه زيات محبوب نۀ وو. ابو برده وائي. اسماءؓ اوفرمائيل، ابو موسٰي به دا حديث مانه بار بار آوريدلو، ابو برده په واسطه ذ ابو موسٰي روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زۀ ذ اشعري دوستانو ذ قرآن ذ لوستو آواز کله چه هغوي ذ شپې راشي، پيژنم، او زۀ ذ هغوي ذ شپې ذ قرآن لوستو ذ آواز نه ذ هغوي منزلونه پيژنم، اګر که ذ ورځې ما ذ هغوي قيام ګاه نۀ وي ليدلې ذ دوي نه حکيم هم دې، هر کله چه هغه به ذ يو جماعت يا دشمن (دې کښې ذ راوي شک دې) مقابله کوله، نو هغوي ته به ئې وئيل، څما دوستان تاسو ته ذ انتظار کولو حکم

تَنْظُرُوْهُمْ.

دركوي.

ف: فرودګاه: قيام ګاه. سفر كښې د ايساريدو يا كوزيدو ځائے.

۲۵۵: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ سَمِعَ حَفْصَ بْنَ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ اَنْ اِفْتَتَحَ خَيْبَرَ فَقَسَمَ لَنَا وَلَمْ يَقْسِمْ لِاَحَدٍ لَّمْ يَشْهَدِ الْفَتْحَ غَيْرَنَا.

۲۵۵: اسحاق بن ابراهيم. حفص بن غياث. يزيد بن عبدالله. ابو برده. ابو موسٰي اشعريؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي مونږ نبي صلي الله عليه وسلم له د فتح خيبر نه پس راغلو، حضورؐ مال غنيمت كښې مونږ د پاره د تقسيم كولو په وخت حصه مقرر كړله (حالانكه مونږ غزوه خيبر كښې شريک شوي نۀ وو) او حضورؐ خمونږ نه علاوه چاته هم چه فتح كښې شريک نۀ وو، حصه نۀ وه وركړې.

۲۵٦: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنْ مَالِكِ بْنِ اَنَسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ ثَوْرٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ مَوْلَى بْنِ مُطِيْعٍ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ افْتَتَحْنَا خَيْبَرَ وَلَمْ نَغْنَمْ ذَهَبًا وَّلَا فِضَّةً اِنَّمَا غَنِمْنَا الْبَقَرَ وَالْاِبِلَ وَ الْمَتَاعَ وَالْحَوَائِطَ ثُمَّ انْصَرَفْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ وَادِي الْقُرٰى وَ مَعَهٗ عَبْدٌ لَّهٗ يُقَالُ لَهٗ مِدْعَمٌ اَهْدَاهُ لَهٗ اَحَدُ بَنِي الضِّبَابِ فَبَيْنَمَا هُوَ يَحُطُّ رَحْلَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ جَاءَهٗ سَهْمٌ عَائِرٌ حَتّٰى اَصَابَ ذٰلِكَ الْعَبْدَ فَقَالَ النَّاسُ هَنِيْئًا لَّهُ الشَّهَادَةُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۲۵٦: عبدالله بن محمد. معاويه بن عمرو. ابو اسحاق. مالک بن انس. ثور د ابن مطيع آزاد كرده غلام سالم. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، د هغۀ بيان دے، مونږ خيبر فتح كه، او مونږ ته مال غنيمت كښې سرۀ سپين (سونا، چاندی) رانۀ كړے شو، بلكه غوا ګانے، اوښان، اسباب او باغونه راته حاصل شول. بيا مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره وادي القري ته راغلو، او حضورؐ سره مدعم نومے يو غلام وو، چه د بنو الضباب يو سړي حضورؐ ته نذرانه كښې وركړے وو، هغه د حضورؐ كجاوه كوزوله، دے كښې يو داسے غشے هغے طرف ته راغے، چه د هغے د ويشتونكے پته نۀ وه، او هغه غلام پرے اولګيدلو، خلقو اووے، د دۀ دے شهادت مبارک وي، حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد فرمائيل نه، نه، په هغے ذات م دے قسم وي چه د هغۀ په قبضه

بَلٰى وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنَّ الشَّمْلَةَ الَّتِيْ اَصَابَهَا يَوْمَ خَيْبَرَ مِنَ الْمَغَانِمِ لَمْ تُصِبْهَا الْمَقَاسِمُ لَتَشْتَعِلُ عَلَيْهِ نَارًا فَجَاءَ رَجُلٌ حِيْنَ سَمِعَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشِرَاكٍ اَوْ بِشِرَاكَيْنِ فَقَالَ هٰذَا شَيْءٌ كُنْتُ اَصَبْتُهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شِرَاكٌ اَوْ شِرَاكَيْنِ مِنْ نَّارٍ.

کښې خما ساه ده، کوم څادر چه ده د خیبر په ورځ د مال غنیمت نه د تقسیم نه مخکښې آخستے وو، په ده به د أور شعله جوړه شي، د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دے خبرے آوریدو سره یو سړي یوه یا دوه تسمے راوړلے، راغے، او ونیلے، دا څیز ما اخستے وو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، دا تسمے به هم أور شوے وے (که ده نه وے واپس کړے).

۲٥٧ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ زَيْدٌ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهٗ سَمِعَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِؓ يَقُوْلُ اَمَا وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْلَا اَنْ اَتْرُكَ اٰخِرَ النَّاسِ بَبَّانًا لَيْسَ لَهُمْ شَيْءٌ مَّا فُتِحَتْ عَلَيَّ قَرْيَةٌ اِلَّا قَسَمْتُهَا كَمَا قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ وَلٰكِنِّيْ اَتْرُكُهَا خِزَانَةً لَّهُمْ يَقْتَسِمُوْنَهَا.

۲٥٧ : سعید بن ابو مریم. محمد بن جعفر. زید. د زید پلار. عمر بن خطابؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، په هغه ذات مې دے قسم وي، چه د هغه په قبضه کښې خما ساه ده، که ما سره د راتلونکو نسلونو د مفلس کیدو آندیښنه نه وے، نو کوم ملک چه فتح کیدلے، ما به هغه (په مجاهدینو) تقسیم کولو، څنګه چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم کړے وو، لیکن زۀ هغه د راتلونکو د پاره د خزانے په طور پریږدم، چه هغوي به ئے تقسیم کړي.

۲٥٨ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ عَنْ مَالِكِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُمَرَؓ قَالَ لَوْلَا اٰخِرُ الْمُسْلِمِيْنَ مَا فُتِحَتْ عَلَيْهِمْ قَرْيَةٌ اِلَّا قَسَمْتُهَا كَمَا قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ.

۲٥٨ : محمد بن مثنٰي. ابن مهدي. مالک بن انس. زید بن اسلم. د هغه پلار. حضرت عمر بن خطابؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، که د راتلونکو مسلمانانو راسره خیال نۀ وے، نو کومه علاقه چه فتح کیدله، ما به هغه (په دوي) تقسیمولہ، څنګه چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خیبر تقسیم کړے وو.

۲۵۹ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ وَ سَأَلَهُ اِسْمٰعِيلُ بْنُ اُمَيَّةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَنْبَسَةُ بْنُ سَعِيْدٍ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ قَالَ لَهُ بَعْضُ بَنِيْ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ لَا تُعْطِهِ فَقَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ هٰذَا قَاتِلُ ابْنِ قَوْقَلٍ فَقَالَ وَاعَجَبَاهُ لِوَبْرٍ تَدَلّٰى مِنْ قُدُوْمِ الضَّأْنِ وَ يُذْكَرُ عَنِ الزُّبَيْدِيِّ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَنْبَسَةُ بْنُ سَعِيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يُخْبِرُ سَعِيْدَ بْنَ الْعَاصِ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبَانًا عَلٰى سَرِيَّةٍ مِّنَ الْمَدِيْنَةِ قِبَلَ نَجْدٍ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَقَدِمَ اَبَانُ وَ اَصْحَابُهُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَيْبَرَ بَعْدَ مَا افْتَتَحَهَا وَ اِنَّ حُزُمَ خَيْلِهِمْ لَلِيْفٌ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَا تَقْسِمْ لَهُمْ قَالَ اَبَانُ وَ اَنْتَ بِهٰذَا يَا وَبْرُ تَحَدَّرَ مِنْ رَأْسِ ضَأْنٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَانُ اجْلِسْ فَلَمْ يُقْسِمْ لَهُمْ.

۲۵۹ : علي بن عبدالله. سفيان نه روايت دے، كوم وخت چه اسمٰعيل بن اميه زهري نه تپوس اوكڼ، نو هغهٔ داسے سند بيان كڼ، عنبسه بن سعيد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم له راغے، او سوال ئے ترے اوكه، (چه دَ خيبر دَ غنيمت نه ماله هم حصه راكړه) نو دَ سعيد بن عاص يو هلک اووے، يا رسول الله، ابو هريرهؓ له مه وركوئے، نو ابوهريرهؓ اووے، دهٔ له مهٔ وركوئے، خكه چه دے دَ ابن قوقل قاتل دے[1]، نو هغهٔ اووے، تعجب دے، په دے پشو رنګي بانديے، چه دَ كوه ضان دَ څوكو نه اوس راكوز شوے دے. زبيدي، زهري، عنبسه بن سعيد، ابوهريره، سعيد بن عاص نه مذكور دي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم، ابان مديني نه نجد طرف ته دَ يو لښكر سردار مقرر كړے اوليږلے وو، ابوهريرهؓ فرمائي، خيبر كښې دَ فتح خيبر نه پس ابان او دَ هغهٔ ملګري رسول الله صلي الله عليه وسلّم له واپس راغلل، او دَ هغوي دَ آسونو پيتي دَ پوستكو وے (يعني بے سروسامان وو) نو ما عرض اوكه، يا رسول الله، دوي له مال غنيمت كښې حصه مه وركوئے، نو ابان اووے، اے پشو رنګيه، چه دَ كوه ضان دَ چوټو (څوكو) نه اوس راكوز شوے ئے، ته دا خبره كوے، نو نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اے ابانه، كينه، او هغوي له ئے حصه ورنهٔ كړه.

[1] . ابن قوقل رضي الله عنه صحابي دے، ابان بن سعيد رضي الله عنه اسلام نه وو راوړے او په همدغه حالت كښې هغهٔ ابن قوقل رضي الله عنه شهيد كړے وو.

۲٦۰ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ

۲٦۰ : موسي بن اسمعيل. عمرو بن يحيي بن

اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيٰى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جَدِّيْ اَنَّ اَبَانَ بْنَ سَعِيْدٍ اَقْبَلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَقَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا قَاتِلُ ابْنِ قَوْقَلٍ وَ قَالَ اَبَانُ لِاَبِيْ هُرَيْرَةَ وَاعَجَبًا لَكَ وَبْرٌ تَدَاْدَاَ مِنْ قَدُوْمِ ضَانٍ يَنْعٰى عَلَيَّ امْرَاً اَكْرَمَهُ اللّٰهُ بِيَدِيْ وَ مَنَعَهُ اَنْ يُهِيْنَنِيْ بِيَدِهٖ.

سعيد. د هغه نيكه (دادا) ابان بن سعيد نه روايت كوي: هغه نبي صلي الله عليه وسلم له راغے. او حضورؐ ته ئے سلام او كه. ابوهريرهؓ اووے. يا رسول الله. دے د ابن قوقل قاتل دے، نو ابان، ابوهريرهؓ ته اووے. په تا تعجب دے، چه تـه يـو پشـو رنگے ئے. چه د كوه ضان نه راكوز شوے ئے، او ذ داسے سړي ذ وژلو په ما عيب لږوے، چه هغه لـه الله خما ذ لاسه (شهادت) سره بزرگي ور كړله، او زه ذ هغه ذ لاس نه (ذ كفر حالت كښ قتلولو سره) ذ ذليل كيدو نه بچ كړمه[۱].

۱. يعني كچرے ما ابن قوقل رضي الله عنه شهيد كړے دے نو هغه خما د جاهليت زمانه وه او بهرحال شهادت يو مطلوب خبره ده، د الله تعالٰي په بارگاه كښے دے سره عزت حاصليږي كوم چه خما د لاس نه هغه ته حاصل شو. بل طرفته د الله دا فضل هم اوشو چه زه ئے د هغه د لاس نه د كفر په حالت كښے قتل نه كړم كوم چه به خما د اُخروي ذلت سبب جوړ شوے وو، او اوس زه مسلمان يم او په الله او د هغه په رسول باندے ايمان لرم.

۱۲۶۱: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ بِنْتَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسَلَتْ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍؓ فَسَاَلَهُ مِيْرَاثَهَا مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا اَفَاۤءَ اللّٰهُ عَلَيْهِ بِالْمَدِيْنَةِ وَفَدَكَ وَمَا بَقِيَ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍؓ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَاهُ صَدَقَةٌ اِنَّمَا يَاْكُلُ اٰلُ

۱۲۶۱: يحيٰي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهابَ. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم لور بي بي فاطمےؓ، حضرت ابوبكر صديقؓ له ذَ هغهٔ ذَ خلافت په زمانه كښ خوكے او ليږل، چه مونږ ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذَ هغے مال چه الله تعالٰي حضورؐ ته ذَ مدينے از فدك نه وركړے وو. او ذَ خيبر ذَ بقيه خمس، ميراث غواړو، ابوبكرؓ جواب وركهٔ، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي، خمونږ ذَ مال هيڅوك وارث نشته، څهٔ چه مونږ پريږدو، هغه صدقه ده او آل محمد صلي الله عليه وسلّم ذَ هغے نه (په قدر ذَ ضرورت) خوړلے شي. او زهٔ ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم صدقه كښ ذَ حضورؐ ذَ عهد مبارك ذَ عمل خلاف بالكل تبديلي نشم كولے. او زهٔ به دے كښ هغه

مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
عَنْ حَالِهَا الَّتِي كَانَ عَلَيْهَا فِي
عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَأَعْمَلَنَّ فِيهَا بِمَا
عَمِلَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَبَى أَبُوبَكْرٍ أَنْ
يَدْفَعَ إِلَى فَاطِمَةَ مِنْهَا شَيْئًا فَوَجَدَتْ
فَاطِمَةُ عَلَى أَبِي بَكْرٍ فِي ذَلِكَ
فَهَجَرَتْهُ فَلَمْ تُكَلِّمْهُ حَتَّى تُوُفِّيَتْ
وَعَاشَتْ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّةَ أَشْهُرٍ فَلَمَّا
تُوُفِّيَتْ دَفَنَهَا زَوْجُهَا عَلِيٌّ لَيْلًا
وَلَمْ يُؤْذِنْ بِهَا أَبَا بَكْرٍ وَصَلَّى عَلَيْهَا
وَكَانَ لِعَلِيٍّ مِنَ النَّاسِ وَجْهٌ حَيَاةَ
فَاطِمَةَ فَلَمَّا تُوُفِّيَتْ اسْتَنْكَرَ
عَلِيٌّ وُجُوهَ النَّاسِ فَالْتَمَسَ
مُصَالَحَةَ أَبِي بَكْرٍ وَمُبَايَعَتَهُ وَلَمْ
يَكُنْ يُبَايِعُ تِلْكَ الْأَشْهُرَ فَأَرْسَلَ
إِلَى أَبِي بَكْرٍ أَنِ ائْتِنَا وَلَا يَأْتِنَا
أَحَدٌ مَعَكَ كَرَاهِيَةً لِمَحْضَرِ عُمَرَ
فَقَالَ عُمَرُ لَا وَاللَّهِ لَا تَدْخُلُ
عَلَيْهِمْ وَحْدَكَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ
وَمَا عَسَيْتُهُمْ أَنْ يَفْعَلُوا بِي وَاللَّهِ
لَآتِيَنَّهُمْ فَدَخَلَ عَلَيْهِمْ أَبُوبَكْرٍ
فَتَشَهَّدَ عَلِيٌّ فَقَالَ إِنَّا قَدْ عَرَفْنَا
فَضْلَكَ وَمَا أَعْطَاكَ اللَّهُ وَلَمْ

شان عمل در آمد کوم، څنګه چه به رسول الله صلي الله عليه وسلم کولو، يعني حضرت ابوبکرؓ هغې کښې ذره شان هم بي بي فاطمېؓ ته ډ حواله کولو نه انکار اوکړلو. بي بي فاطمهؓ دے مسئله کښې ډ حضرت ابوبکرؓ نه ناراضه شوه، او ډ خپل وفات پورے ئې حضرت ابوبکرؓ سره خبرے اونه کړلے. بي بي فاطمهؓ ډ حضورؐ د وفات نه پس شپږ مياشتے ژوندئ وه، کوم وخت چه هغه وفات شوه، نو ډ هغې خاوند حضرت عليؓ هغه ډ شپے دفن کړه او حضرت ابوبکرؓ ته ئې ډ هغې اطلاع هم ورنهٔ کړله، او خپله ئې ډ هغې د جنازے مونځ هم اوکړلو. ډ بي بي فاطمېؓ په ژوند کښې حضرت عليؓ ته خلقو کښې وجاهت حاصل وو، کوم وخت چه هغه وفات شوه، نو حضرت عليؓ ډ خلقو رُخ ګرځيدلے بيامند، نو حضرت ابوبکرؓ ته ئې ډ صلح او بيعت خواست اوکهٔ، حضرت عليؓ دے شپږ مياشتو کښې (ډ بي بي فاطمېؓ ډ تيمارداري او نورو مشاغلو په بناء) ډ حضرت ابوبکرؓ نه بيعت نهٔ وو کړے، نو حضرت عليؓ، حضرت ابوبکرؓ ته پيغام اوليږلو، چه تاسو مونږ پورے تشريف راوړئې، او بل هيڅوک دے درسره نهٔ وي، دائې څکه اووے، چه چرته عمرؓ ورسره رانشي، حضرت عمرؓ ته چه ددے اطلاع اوشوه، نو هغهٔ اوفرمائيل، نه، په خدائې چه تاسو به هلته يوازے نهٔ ځئې. حضرت ابوبکرؓ ورته اووے، څما ډ هغه نه دا اميد نشته، چه هغه به ماسره څهٔ بدسلوک اوکړي، په خدائې چه زهٔ به هغهٔ له ورځم، حضرت ابوبکرؓ هغهٔ له ورغے، حضرت عليؓ ډ تشهد نه پس اوفرمائيل، مونږ ستا فضيلت او ډ الله عطا کړده انعامات په ښهٔ شان سره

نَنْفَسْ عَلَيْكَ خَيْرًا سَاقَهُ اللّٰهُ عَلَيْكَ وَلٰكِنَّكَ اسْتَبْدَدْتَ عَلَيْنَا بِالْاَمْرِ وَ كُنَّا نَرٰى لِقَرَابَتِنَا مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَصِيْبًا حَتّٰى فَاضَتْ عَيْنَا اَبِيْ بَكْرٍ فَلَمَّا تَكَلَّمَ اَبُوْ بَكْرٍ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَقَرَابَةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَبُّ اِلَيَّ اَنْ اَصِلَ مِنْ قَرَابَتِيْ وَ اَمَّا الَّذِيْ شَجَرَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ مِنْ هٰذِهِ الْاَمْوَالِ فَلَمْ اٰلُ فِيْهَا عَنِ الْخَيْرِ وَلَمْ اَتْرُكْ اَمْرًا رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُهُ اِلَّا صَنَعْتُهُ فَقَالَ عَلِيٌّ لِاَبِيْ بَكْرٍ مَوْعِدُكَ الْعَشِيَّةَ لِبَيْعَةِ فَلَمَّا صَلّٰى اَبُوْ بَكْرٍ الظُّهْرَ رَقِيَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَتَشَهَّدَ وَ ذَكَرَ شَاْنَ عَلِيٍّ وَ تَخَلُّفَهُ عَنِ الْبَيْعَةِ وَ عُذْرَهُ بِالَّذِيْ اعْتَذَرَ اِلَيْهِ ثُمَّ اسْتَغْفَرَ وَ تَشَهَّدَ عَلِيٌّ فَعَظَّمَ حَقَّ اَبِيْ بَكْرٍ وَ حَدَّثَ اَنَّهُ لَمْ يَحْمِلْهُ عَلَى الَّذِيْ صَنَعَ نَفَاسَةً عَلٰى اَبِيْ بَكْرٍ وَلَا اِنْكَارًا لِلَّذِيْ فَضَّلَهُ اللّٰهُ بِهٖ وَلٰكِنَّا كُنَّا نَرٰى لَنَا فِيْ هٰذَا الْاَمْرِ نَصِيْبًا فَاسْتَبَدَّ عَلَيْنَا فَوَجَدْنَا

پیژنو. او مونږ ته په دې ښیګړه (یعني خلافت) کښې چه الله تعالي تاسو ته عطا کړې دې، هیڅ حسد نشته، لیکن تاسو دې امر خلافت کښې خود مختار جوړ شوئې، حالانکه ذ قرابت رسول په بناء خمونږ دا اُمید وو، چه د هغهٔ مشوره کښې خمونږ هم حصه شته. حضرت ابوبکرؓ دې کلام آوریدو سره په ژړا شولو، او وې فرمائیل په خدائې مې دې قسم وي، ذ قرابت رسول رعایت خما په نظر کښې ذ خپل قرابت ذ رعایت نه زیات عزیز دې، او خما او ستاسو مینځ کښې چه ذَ حضور صلي الله علیه وسلّم ذ مال باره کښې کوم اختلاف پیدا شوې دې، ما دې کښې هیڅ کله ذ امر خیر نه کوتاهي نهٔ ده کړې. او دې مال کښې چه ما کوم کار حضورؐ په کولو لیدلې دې، هغه مې نهٔ دې پریښې. حضرت عليؓ، حضرت ابوبکرؓ ته اووې، ذ زوال نه پس تاسو نه ذ بیعت کولو وعده ده. کوم وخت چه ابوبکرؓ ذ ماسپخین مونځ ورکړلو، نو حضرت په منبر کیناستلو، او تشهد نه پس ئې ذَ حضرت عليؓ حال، بیعت نه ذ هغهٔ ورستو پاتې کیدل، او هغهٔ چه کوم عذر پیش کړې وو، هغه ئې بیان کړلو. بیا حضرت عليؓ ذ استغفار او تشهد نه پس، ذ حضرت ابوبکرؓ ذ حقوقو عظمت او بزرګي بیان کړه، او وې فرمائیل، خما ذَ دې فعل باعث حضرت ابوبکرؓ سره حسد، او الله چه هغه کوم خلافت سره سرفراز کړې دې، ذ هغې نه انکار نهٔ وو. لیکن خمونږ دا خیال وو، چه امر خلافت کښې خمونږ هم څهٔ حصه وه. لیکن حضرت ابوبکرؓ هغې کښې مونږ پریښودو، مختار جوړ شولو، دې سره خمونږ زړونو کښې څهٔ تکدّر (خیرن والې) وو. نو ټول

فِيْ اَنْفُسِنَا فَسُرَّ بِذٰلِكَ الْمُسْلِمُوْنَ وَ قَالُوْا اَصَبْتَ وَ كَانَ الْمُسْلِمُوْنَ اِلٰى عَلِيٍّ قَرِيْبًا حِيْنَ رَاجَعَ الْاَمْرَ بِالْمَعْرُوْفِ.

مسلمانان ډیر سره خوشحاله شو، او وئيلې، چه تاسو درست كار اوكړلو. او مسلمانان هغه وخت د حضرت عليؓ بيا ملګري شو، كوم وخت چه هغهٔ امر بالمعروف ته رجوع اوكړله.

۲۶۲: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا حَرَمِيٌّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُمَارَةُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ قُلْنَا الْاٰنَ نَشْبَعُ مِنَ التَّمَرِ.

۲۶۲: محمد بن بشار. حرمي. شعبه. عماره. عكرمه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، كوم وخت چه خيبر فتح شو، مونږ اووې، اوس به مونږ په مړي خيټه قجورې خورو.

۲۶۳: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ حَدَّثَنَا قُرَّةُ بْنُ حَبِيْبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ مَا شَبِعْنَا حَتّٰى فَتَحْنَا خَيْبَرَ.

۲۶۳: حسن. قتاده بن حبيب. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن دينار. د عبداللّٰه بن دينار پلار. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، د فتح خيبر نه مخكښې مونږ په مړه خيټه ډوډي نهٔ ده خوړلې.

## باب ۴۰: اِسْتِعْمَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اَهْلِ خَيْبَرَ.

## باب ۴۰: د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په اهل خيبر عامل مقررول.

۲۶۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الْمَجِيْدِ بْنِ سُهَيْلٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ وَ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعْمَلَ رَجُلًا عَلٰى خَيْبَرَ فَجَاءَهُ بِتَمَرٍ جَنِيْبٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ تَمَرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا فَقَالَ لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا

۲۶۴: اسماعيل. مالک. عبدالمجيد بن سهيل. سعيد بن مسيب. حضرت ابو سعيد خدري او حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم يو سړے د خيبر عامل مقرر كړلو، هغه حضورؐ له اعلي قجورې راوړې، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغهٔ نه تپوس اوكړ، آيا د خيبر ټولې قجورې داسې دي، هغهٔ ورته اووې، نه، يا رسول اللّٰه، په خدائې چه د معمولي قجورو د دوه صاع په بدله كښې د دې اعلي قجوره يو صاع او د دريو په بدله كښې دوه صاع

لَنَأْخُذُ الصَّاعَ مِنْ هٰذَا بِالصَّاعَيْنِ بِالثَّلٰثَةِ فَقَالَ لَا تَفْعَلْ بِعِ الْجَمْعَ بِالدَّرَاهِمِ ثُمَّ ابْتَعْ بِالدَّرَاهِمِ جَنِيْبًا وَ قَالَ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ عَبْدِ الْمَجِيْدِ عَنْ سَعِيْدٍ اَنَّ اَبَا سَعِيْدٍ وَ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَاهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ اَخَا بَنِيْ عَدِيِّ مِنَ الْاَنْصَارِ اِلٰى خَيْبَرَ فَاَمَّرَهُ عَلَيْهَا وَ عَنْ عَبْدِ الْمَجِيْدِ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ اَبِيْ سَعِيْدٍ مِثْلَهُ.

اخلو. حضور صلي الله عليه وسلم ورته وفرمايل داسې مه کوه (دا سود دے) بلکه ټولې (د صيحانې) کجورې په روپو خرڅې کړه، بيا په هغې روپو اعلى کجورې واخله. عبدالعزيز بن محمد. عبدالمجيد. سعيد. ابو سعيد (خدري) او حضرت ابو هريرةؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، نبي صلي الله عليه وسلم د بني عدي وررور انصاري ذ خيبر امير جوړ کړلو، او هلته ئې اوليږلو. عبدالمجيد. ابو صالح سمان. حضرت ابوهريرةؓ او حضرت ابو سعيد نه دغسې روايت کوي.

## بَاب ۴۱: مُعَامَلَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَهْلَ خَيْبَرَ.

باب ۴۱: ذ حضور صلي الله عليه وسلّم اهل خيبر سره ذ کر کيلے معامله کول.

**۲۶۵**: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَّةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَعْطَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ الْيَهُوْدَ اَنْ يَعْمَلُوْهَا وَ يَزْرَعُوْهَا وَلَهُمْ شَطْرُ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا.

**۲۶۵**: موسي بن اسماعيل. جويريه. نافع. حضرت عبداللّٰهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ خيبر زمکه يهوديانو ته په دے شرط ورکړه، چه هغوي به هغے کښې کر کيله کوي، او ذ پيداوار نيمه حصه به آخلي.

## بَاب ۴۲: الشَّاةِ الَّتِيْ سُمَّتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَيْبَرَ رَوَاهُ عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۴۲: خيبر کښې ذ نبي صلي الله عليه وسلّم ذ خوراک ذ پاره ذ زهر آلود چيلئ بيان دا عروه په واسطه ذ بي بي عائشےؓ ذ حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت کړے دے.

**۲۶۶**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدٌ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ اُهْدِيَتْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

**۲۶۶**: عبداللّٰه بن يوسف. ليث. سعيد. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي ذ هغه بيان دے، کوم وخت چه خيبر فتح شو، نو ذ حضورؐ په خدمت کښې زهر آلوده چيلي هديهٔ پيش کړے

وَسَلَّمَ شَاةٌ فِيْهَا سَمٌّ.

شوه.

## بــاب ۴۳: غَــزْوَةُ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ.

بــــاب ۴۳: دَ زيـــد بـــن حـــارثـــه دَ غـــزا بيان.

۲۶۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اَمَّرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُسَامَةَ عَلٰى قَوْمٍ فَطَعَنُوْا فِيْ اِمَارَتِهٖ فَقَالَ اِنْ تَطْعَنُوْا فِيْ اِمَارَتِهٖ فَقَدْ طَعَنْتُمْ فِيْ اِمَارَةِ اَبِيْهِ مِنْ قَبْلِهٖ وَ اَيْمُ اللّٰهِ لَقَدْ كَانَ خَلِيْقًا لِّلْاِمَـارَةِ وَ اِنْ كَانَ مِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ وَ اِنَّ هٰذَا لَمِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ بَعْدَهٗ.

۲۶۷: مسدد. يحيٰي بن سعيد. سفيان بن سعيد. عبدالله بن دينار. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي: نبي صلي الله عليه وسلم په قوم (مهاجرينو او انصارو) باندې اسامه (بن زيد) يو جهاد كښې امير اولګولو. خلقو دَ هغهٔ په امير كيدو طعن اوكۀ، حضورؐ ورته اوفرمائيل: كه تاسو دَ اسامه په اميرئ طعن كوئې، نو مخكښې تاسو دَ هغهٔ دَ پلار په اميرئ هم طعن كړې وو. په خدائې م دې قسم وي، هغه دَ امير كيدو مستحق او اهل وو او هغه ماته دَ ټولو خلقو كښې زيات محبوب وو. او دَ هغه نه پس دا (اسامه) ماته دَ ټولونه زيات محبوب دې.

ف: طعن. پيغور. اعتراض.

## باب ۴۴: عُمْرَةُ الْقَضَاءِ. ذَكَرَ اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۴۴: دَ عمرهٔ قضا بيان. دا حضرت انسؓ دَ حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كړې دې.

۲۶۸: حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا اعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ ذِي الْقَعْدَةِ فَاَبٰى اَهْلُ مَكَّةَ اَنْ يَّدَعُوْهُ يَدْخُلُ مَكَّةَ حَتّٰى قَاضَاهُمْ عَلٰى اَنْ يُقِيْمَ بِهَا ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ فَلَمَّا

۲۶۸: عبيدالله بن موسٰي. اسرائيل. ابو اسحٰق. براء نه روايت كوي: رسول الله صلي الله عليه وسلم چه ذيقعده كښې دَ عمرې اراده اوفرمائيله: نو اهل مكه دَ حضورؐ مكه كښې دَ داخليدو نه انكار اوكړلو: تردې چه حضورؐ هغوي سره په دې شرط صلح اوكړه: چه مخې كال له به مكې كښې درې ورځې مقيم وي: هر كله چه مسلمانانو صلح نامه اوليكله، نو هغې كښې نې دا اوليكل: دا دَ محمد صلي الله عليه وسلم صلح نامه ده،

كَتَبُوا الْكِتَابَ كَتَبُوا هٰذَا مَا قَاضَانَا عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا لَا نُقِرُّ بِهٰذَا لَوْ نَعْلَمُ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ مَا مَنَعْنٰكَ شَيْئًا وَلٰكِنْ اَنْتَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ثُمَّ قَالَ لِعَلِيٍّ امْحُ رَسُوْلَ قَالَ عَلِيٌّ لَا وَاللّٰهِ لَا اَمْحُوْكَ اَبَدًا فَاَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكِتَابَ وَ لَيْسَ يُحْسِنُ يَكْتُبُ فَكَتَبَ هٰذَا مَا قَاضٰى مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ لَا يُدْخِلُ مَكَّةَ السِّلَاحَ اِلَّا السَّيْفَ فِى الْقِرَابِ وَ اَنْ لَّا يَخْرُجَ مِنْ اَهْلِهَا بِاَحَدٍ اِنْ اَرَادَ اَنْ يَّتْبَعَهُ وَ اَنْ لَّا يَمْنَعَ مِنْ اَصْحَابِهٖ اَحَدًا اِنْ اَرَادَ اَنْ يُّقِيْمَ بِهَا فَلَمَّا دَخَلَهَا وَ مَضَى الْاَجَلُ اَتَوْا عَلِيًّا فَقَالُوْا قُلْ لِصَاحِبِكَ اُخْرُجْ عَنَّا فَقَدْ مَضَى الْاَجَلُ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَبِعَتْهُ ابْنَةُ حَمْزَةَ تُنَادِيْ يَا عَمِّ فَتَنَاوَلَهَا عَلِيٌّ فَاَخَذَ بِيَدِهَا وَ قَالَ لِفَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ دُوْنَكِ ابْنَةَ عَمِّكِ حَمَلَتْهَا فَاخْتَصَمَ فِيْهَا عَلِيٌّ وَ زَيْدٌ وَ جَعْفَرٌ قَالَ عَلِيٌّ اَنَا اَخَذْتُهَا

نو كفارو اوويے' مونږ خو ذ دے اقرار نۀ كوو' كه مونږ تاسو ذَ اللّٰه رسول گنړلئے' نو تاسو به مونږ بالكل نه منع كولے. ليكن تاسو محمد بن عبداللّٰه اوليكئے. حضورؐ اوفرمائيل' زۀ ذَ اللّٰه رسول هم يم' او محمد بن عبداللّٰه هم يم' بيا حضورؐ' حضرت عليؓ ته اوفرمائيل' لفظ رسول اللّٰه (ذَ صلح نامے نه) لرے كړه' حضرت عليؓ عرض اوكۀ' په خدائے چه زۀ خو دا هيڅ كله نشم لرے كولے' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلَم هغه صلح نامه واخسته' حالانكه حضورؐ په ليک لوست نه پوهيدلو' بيا هم حضورؐ دا اوليكل' دا ذَ محمد بن عبداللّٰه صلح نامه ده' چه حضورؐ به مكے ته سِوا ذَ غلاف پوش تورے نه بله وَسله نۀ راوړي' او كه اهل مكه كښ څوک حضورؐ سره تلل غواړي' نو حضورؐ به هغه نۀ بوځي' او ذَ حضورؐ ذَ ملگرو نه كه څوک مكه كښ اوسيدل غواړي' نو حضورؐ به ئے نۀ منع كوي (مخے كال له چه) حضورؐ مكے ته تشريف راوړلو' او ذ درے ورځو نيته پوره شوه' نو كفار حضرت عليؓ له راغلل' ورته ئے اووے' تۀ خپل ملگري (حضور صلي اللّٰه عليه وسلَم) ته اووايه چه تشريف واپس يوځي' ځكه چه موده پوره شوے ده' نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلَم ذَ مكے نه تشريف يوړلو. ذَ حضرت حمزه لور' چاچا' چاچا نعرے وهلو سره حضورؐ پسے روانه شوه' نو هغه حضرت عليؓ واخسته' ذَ هغے لاس ئے اونيولو' او بي بي فاطمےؓ ته ئے اووے' ذَ خپل ذَ ترۀ لور واخله' چه ما دا اخستلے ده (مدينے ته چه اورسيدل' نو) عليؓ' زيدؓ او جعفرؓ جگړه جوړه كړه. حضرت عليؓ اووے' ما وړمبے دا آخستے ده' او دا خما

وَ هِيَ بِنْتُ عَمِّيْ وَ قَالَ جَعْفَرٌ ابْنَةُ عَمِّيْ وَ خَالَتُهَا تَحْتِيْ وَ قَالَ زَيْدٌ ابْنَةُ اَخِيْ فَقَضٰى بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَالَتِهَا وَ قَالَ الْخَالَةُ بِمَنْزِلَةِ الْاُمِّ وَ قَالَ لِعَلِيٍّ اَنْتَ مِنِّيْ وَ اَنَا مِنْكَ وَ قَالَ لِجَعْفَرٍ اَشْبَهْتَ خَلْقِيْ وَ خُلُقِيْ وَ قَالَ لِزَيْدٍ اَنْتَ اَخُوْنَا وَ مَوْلَانَا وَ قَالَ عَلِيٌّ اَلَا تَتَزَوَّجُ بِنْتَ حَمْزَةَ قَالَ اِنَّهَا اِبْنَةُ اَخِيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ.

ذ تره لور ده، جعفرؓ اووے، دا خما ذ تره لور ده، او د دے ترور خما په نکاح کښې ده. زيد اووے، دا خما وريره (بھتيجى) ده. خو رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم (د حضرت جعفرؓ په حق کښې) ذ هغے د ترور په وجه فيصله اوکړله. او وے فرمائيل، ترور ذ مور په درجه کښې وي. او حضرت عليؓ ته ئے ذ تسلي په طور اوفرمائيل، ته خما نه او زۀ له تانه يم. او حضرت جعفر ته ئے اوفرمائيل، ته صورت او سيرت کښې ماسره مشابه ئے، او زيدؓ ته ئے اوفرمائيل، ته خمونږ وررور او محبوب ئے. حضرت عليؓ اووے، تاسو ذ حمزه لور سره نکاح ولے نه کوئے نو حضورؐ اوفرمائيل، هغه خما رضاعي وريره ده.

٢٦٩ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ حَدَّثَنَا سُرَيْجٌ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ ح وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مُعْتَمِرًا فَحَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الْبَيْتِ فَنَحَرَ هَدْيَهُ وَ حَلَقَ رَاْسَهُ بِالْحُدَيْبِيَةِ وَ قَاضَاهُمْ عَلٰى اَنْ يَعْتَمِرَ الْعَامَ الْمُقْبِلَ وَلَا يَحْمِلَ سِلَاحًا اِلَّا سُيُوْفًا وَلَا يُقِيْمُ بِهَا اِلَّا مَا اَحَبُّوْا فَاعْتَمَرَ مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فَدَخَلَهَا كَمَا كَانَ صَالَحَهُمْ فَلَمَّا اَنْ اَقَامَ بِهَا ثَلَاثًا اَمَرُوْهُ اَنْ يَخْرُجَ فَخَرَجَ.

٢٦٩ : محمد بن رافع. سريج. فليح (دوئيم سند) محمد بن حسين بن ابراهيم. ذ هغۀ پلار. فليح بن سليمان. نافع. ابن عمرؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ عمرے په قصد روان شو، نو کفار قريش ذ حضورؐ بيت اللّٰه ته په راتلو آړي راواخسته، حضورؐ حديبيه کښې قرباني اوکړه. د سر ويښتۀ ئے اوخريل، او هغوي سره ئے په دے شرط صلح اوکړه، چه تاسو به مخے کال له عمره ادا کړئے، او سوا د غلاف پوش تورو نه به بله څۀ وسله نۀ راوړئے، او د کفارو د خواهش مطابق به مکه کښې (ذ مقرره نيټے پورے) ايسار ے، نو حضورؐ مخے کال له عمره ادا کړه. او مکه کښې د صلح مطابق حضورؐ داخل شولو. څه وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هلته درے ورځے تيرے کړے، کفارو حضورؐ ته ذ مکے نه د وتلو د پاره اووے، نو حضورؐ لاړلو.

۲۷۰ : حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ دَخَلْتُ اَنَا وَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ الْمَسْجِدَ فَاِذَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ جَالِسٌ اِلٰى حُجْرَةِ عَائِشَةَ ثُمَّ قَالَ كَمْ اِعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَرْبَعًا سَمِعْنَا اسْتِنَانَ عَائِشَةَؓ قَالَ عُرْوَةُ يَا اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَلَا تَسْمَعِيْنَ مَا يَقُوْلُ اَبُوْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِعْتَمَرَ اَرْبَعَ عُمَرٍ فَقَالَتْ مَا اعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُمْرَةً اِلَّا وَهُوَ شَاهِدُهٗ وَمَا اعْتَمَرَ فِيْ رَجَبَ قَطُّ.

۲۷۰ : عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. مجاهد وائي، زهٔ او عروه بن زبير مسجد (نبوي) ته اورسيدو، هلته عبدالله بن عمرؓ دَ بي بي عائشےؓ حجرے سره قريب ناست وو، بيا عروه دَ هغهٔ نه تپوس اوکهٔ، رسول الله صلي الله عليه وسلّم څومره عُمرے کړے وے. ابن عمرؓ جواب ورکهٔ، څلور، بيا مونږ دَ بي بي عائشےؓ دَ مسواک کولو آواز واوريدلو، نو عروه اووے، اے اُم المؤمنين، تاسو دَ نو عبدالرحمٰن خبره واونهٔ ريده، چه حضور صلي الله عليه وسلّم څلور عمرے کړے دي. بي بي عائشےؓ اوفرمائيل (صحيح ده څکه چه) نبي صلي الله عليه وسلّم چه کله هم عُمره کړے ده، نو دے هغے کښې موجود وو (او) حضورؐ رجب کښې هيڅ عمره نهٔ ده کړے.

۲۷۱ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ سَمِعَ ابْنَ اَبِيْ اَوْفٰى يَقُوْلُ لَمَّا اعْتَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَتَرْنَاهُ مِنْ غِلْمَانِ الْمُشْرِكِيْنَ وَ مِنْهُمْ اَنْ يُّؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۷۱ : علي بن عبدالله. سفيان. اسماعيل بن ابي خالد. ابن ابي اوفٰي نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے، چه کله به رسول الله صلي الله عليه وسلّم عمره کوله، نو مونږ به دَ نبي صلي الله عليه وسلّم، دَ مشرکانو او دَ هغوي دَ بچو د ايذا نه دَ حضورؐ حفاظت کولو.

۲۷۲ : سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهٗ فَقَالَ الْمُشْرِكُوْنَ اِنَّهٗ يَقْدَمُ عَلَيْكُمْ وَفْدٌ

۲۷۲ : سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ايوب. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، کوم وخت چه حضورؐ او دَ هغوي اصحابؓ مکے ته راغلل، مشرکانو خپلو کښې اووے، تاسو له هغه جماعت (مسلمانان) راځي، چه دَ يثرب (مدينے) تبے کمزورے کړے دي، نو حضور صلي الله

وَمِنْهُمْ حُمّٰى يَثْرِبَ وَ اَمَرَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَرْمُلُوْا الْاَشْوَاطَ الثَّلٰثَةَ وَ اَنْ يَمْشُوْا مَا بَيْنَ الرُّكْنَيْنِ وَلَمْ يَمْنَعْهُ اَنْ يَأْمُرَهُمْ اَنْ يَرْمُلُوا الْاَشْوَاطَ كُلَّهَا اِلَّا الْاِبْقَآءُ عَلَيْهِمْ وَ زَادَ ابْنُ سَلَمَةَ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَامِهِ الَّذِيْ اسْتَأْمَنَ قَالَ ارْمُلُوْا لِيَرَى الْمُشْرِكُوْنَ قُوَّتَهُمْ وَالْمُشْرِكُوْنَ مِنْ قِبَلِ قُعَيْقِعَانٍ.

عليه وسلّم مسلمانانوته (طواف كښې) ورمبے درے چكرو كښې ذ ايغ نيغ تلو حكم ورکړلو. او ذ دواړو ركنونو مينځ كښې په رو (مزه) تلو. او ټولو چكرونو كښې ذ ايغ نيغ تلو حكم حضورؐ په مسلمانانو صرف ذ شفقت او نرمي كولو په وجه ورنهٔ کړلو. ابن سلمه، ايوب، سعيد بن جبير، ابن عباس روايت كښې دا زيادتي هم شته، چه هر كله نبي صلي الله عليه وسلّم ذ صلح په كال (مكے ته) تشريف راوړلو، نو حضورؐ (مسلمانانوته) اوفرمائيل، ايغ نيغ ځئ، چه مشركان ذ مسلمانانو طاقت اووينى، اومشركينو ذ كوه قعيقعان ذ جانب نه (په ولاړه) كتل.

۲۷۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ عَنْ سُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عَطَآءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اِنَّمَا سَعَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَيْتِ وَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ لِيُرِيَ الْمُشْرِكِيْنَ قُوَّتَهُ.

۲۷۳: محمد. سفيان بن عيينه. عمرو. عطاء. ابن عباسؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ بيت الله طواف كښې ذ صفا او مروه مينځ كښې كافرو ته خپل قوت ښودلو په غرض منډه وهله.

۲۷۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَيْمُوْنَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ وَ بَنٰى بِهَا وَهُوَ حَلَالٌ وَ مَاتَتْ بِسَرِفَ وَ زَادَ ابْنُ اِسْحٰقَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ نَجِيْحٍ وَّ اَبَانُ بْنُ صَالِحٍ عَنْ عَطَآءٍ وَ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَزَوَّجَ النَّبِيُّ

۲۷۴: موسي بن اسمٰعيل. وهيب. ايوب. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم بي بي ميمونےؓ سره ذ احرام په حالت كښې نكاح اوكړله، او ذ حلال كيدو نه پس ئے ورسره خلوت اوكړلو، او بي بي ميمونهؓ مقام سرف كښې وفات شوه. ابن اسحاق، ابن ابي نجيح، ابان بن صالح، عطاء، مجاهد، حضرت ابن عباسؓ دومره زياتے (يعني زيات الفاظو) سره روايت كړے دے، چه نبي صلي الله عليه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَيْمُوْنَةَ فِيْ عُمْرَةِ الْقَضَاءِ.

وسلّم عمره قضاء کښې بي بي ميمونهؓ سره نکاح اوکړله.

## بـاب ۴۵: غَـــزْوَةِ مُؤْتَةَ مِنْ اَرْضِ الشَّامِ.

## بـاب ۴۵: دَ غـزوه مـؤتـه بيان (ملک شام کښې).

۲۷۵: حَـدَّثَـنَـا اَحْـمَدُ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ اَبِيْ هِلَالٍ قَـالَ وَ اَخْبَـرَنِـيْ نَـافِعٌ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ اَخْبَـرَهُ اَنَّهُ وَقَفَ عَـلٰـى جَعْفَرٍ يَوْمَئِذٍ وَهُـوَ قَتِيْـلٌ فَعَدَدْتُ بِهٖ خَمْسِيْنَ بَيْنَ طَعْنَةٍ وَ ضَـرْبَةٍ لَيْسَ مِنْهَا شَيْءٌ فِيْ دُبُـرِهٖ يَعْنِيْ فِيْ ظَهْرِهٖ اَخْبَرَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ بَـكْـرٍ حَـدَّثَـنَـا مُـغِيْـرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْـمٰنِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ نَـافِعٍ عَـنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ اَمَّرَ رَسُـوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِـيْ غَـزْوَةِ مُؤْتَةَ زَيْدَ بْنَ حَارِثَةَ فَقَالَ رَسُـوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ قُتِـلَ زَيْدٌ فَجَعْفَرٌ وَ اِنْ قُتِلَ جَعْفَرٌ فَـعَبْـدُ الـلّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ كُـنْتُ فِيْهِمْ فِيْ تِلْكَ الْغَزْوَةِ فَالْتَمَسْنَا جَـعْـفَـرَ بْـنَ اَبِـيْ طَالِبٍ فَوَجَدْنَاهُ فِي الْقَتْـلٰى وَ وَجَدْنَا مَا فِيْ جَسَدِهٖ بِضْعًا وَّ تِسْعِيْنَ مِنْ طَعْنَةٍ وَ رَمْيَةٍ.

۲۷۵: احـمـد. ابـن وهـب. عـمـرو. ابـن ابـي هـلال. نـافـع. حـضـرت ابـن عـمـرؓ نـه روايت کوي، ذ هغـهٔ بيـان دے، زهٔ غـزوه موتـه نـه پس ذ حضـرت جعـفـرؓ دَ شهـادت نـه پـس هغـه سره اودريدم، ما ذ هغـهٔ پـه جسم پـنـځوس زخـمـونـه دَ نيـزو او تورو اوليـدل، دے کـښې يو زخـم هـم دَ هغهٔ پـه شا، نـهٔ وو. احمد بن ابوبکر، مغيره بن عبدالرحمٰن، عبداللّٰه بن سعد، نافع، حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي، ذ هغـهٔ بيـان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عـليـه وسـلّم غزوه موتـه کـښې زيد بن حارثهؓ سپـه سـالار مـقـرر کـړلـو. بيـا حضـورؐ اوفـرمـائيـل، کـه دے شهيـد شـي، نـو بيـا سپـه سـالار جعفر دے، او کـه دے هـم شهيـد شـي، نـو عبـداللّٰـه بـن رواحــه دے. حـضـرت عبـداللّٰـه بـن عـمـرؓ وائي، زهٔ دے غـزا کـښې شـريـک ووم (دَ جـنـګ پـه ختميدو) مونږ حـضـرت جعـفـرؓ تـلاش کـهٔ، نو هغه شهيدانو کـښې بيـامـنـدے شـو. او مونږ دَ هغـهٔ پـه جسم څـهٔ دَ پـاسـه نوي (۹۰) زخمونـه دَ غشـو او نيـزو اوليدل.

۲۷۶: حَـدَّثَـنَـا اَحْـمَدُ بْـنُ وَاقِـدٍ حَدَّثَـنَـا حَـمَّـادُ بْـنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّـوْبَ عَـنْ حُـمَيْـدِ بْـنِ هِلَالٍ عَـنْ

۲۷۶: احـمـد بـن واقـد. حـمـاد بن زيد. ايوب. حميد بن هلال. حضرت انسؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ زيدؓ جعفر او ابن رواحهؓ دَ شهادت خبر

انس ان النبي صلى الله عليه وسلم نعى زيدا و جعفرا وابن رواحة للناس قبل ان يأتيهم خبرهم فقال اخذ الراية زيد فاصيب و عيناه تذرفان حتى اخذ الراية سيف من سيوف الله حتى فتح الله عليهم.

خلقوته واورولو، حالانكه اوسه پورے خبر لا حضورﷺ ته نه وو راغلے، حضورﷺ اوفرمائيل: (اول) زيدؓ جنډه سنباله كړه، او هغه شهيد شو، بيا جعفرؓ سنباله كړه، هغه هم شهيد شو، بيا عبدالله بن رواحه جنډه اوچته كړه، هغه هم شهيد كړے شو، ذ حضور صلي الله عليه وسلم ذ سترګو مباركو نه دے ونيلو سره اوښكے جاري وے، ترديے چه ذ الله يو توره (يعني خالد بن وليد) جنډه واخسته، حتي چه الله په (عيسايانو باندے) ورته فتح عنايت كړله.

١. حضور صلي الله عليه وسلم په دے غزا كښے شريك نه وو او دا ټول اطلاعات ئے په مدينے كښے ناستے سره صحابه وؤ ته وركول.

۲۷۷ : حدثنا قتيبة حدثنا عبد الوهاب قال سمعت يحيى بن سعيد قال اخبرتني عمرة قالت سمعت عائشة تقول لما جاء قتل ابن حارثة و جعفر بن ابي طالب و عبد الله بن رواحة جلس رسول الله صلى الله عليه وسلم يعرف فيه الحزن قالت عائشة و انا اطلع من صائر الباب تعني من شق الباب فأتاه رجل فقال اي رسول الله ان نساء جعفر قال و ذكر بكاءهن فأمره ان ينهاهن قال فذهب الرجل ثم اتى فقال قد نهيتهن و ذكر انه لم يطعنه قال فأمر ايضا فذهب ثم اتى فقال والله لقد غلبتنا فزعمت ان رسول الله صلى الله عليه وسلم

۲۷۷ : قتيبه. عبدالوهاب. يحيي بن سعيد. عمره. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي ذ هغے بيان دے، كوم وخت چه ذ (زيدؓ) بن حارثه، جعفر بن ابو طالبؓ او عبدالله بن رواحه ذ شهادت خبر راغے، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم جمات كښې تشريف فرما شو، او په حضورﷺ ذ خفګان آثار ښامندے شو. بي بي عائشےؓ فرمائي ما ذ دروازے ذ چونډونو نه كتل، يو سړے راغے، او هغه اووے، يا رسول الله، ذ جعفرؓ په كور كښې ښځے ژاړي، حضورﷺ اوفرمائيل، هغوي منع كړه، هغه سړے ورغے. بيا راغے، وئيلے ئے، ما هغوي منع كړے، خو هغوي اونه منل، حضورﷺ بيا ذ منع كولو حكم اوكړلو، هغه لاړ او بيا راغے، وئيلے، په خدائے چه هغوي خو نه مني، بلكه په مونږ غالبے شوے دي. بي بي عائشهؓ وائي: رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، بيا ذ هغوي

قَالَ فَاحْثُ فِيْ اَفْوَاهِهِنَّ مِنَ التُّرَابِ قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ اَرْغَمَ اللّٰهُ اَنْفَكَ فَوَاللّٰهِ مَا اَنْتَ تَفْعَلُ وَمَا تَرَكْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْعَنَاءِ.

مخ پـه خـاورو كـكـړ كـړه بـي بـي عـائشـهؓ وائـي' ما هغهٔ تـه اووے' اللّٰه دے ستا پوزه خاک آلوده کړي' تـهٔ خو نـهٔ دا كـولے شـے' چه هغوي ذ ژړا نه منع كړے او نـهٔ رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عليه وسلّم (پـه آرام) پريږدے.

۲۷۸: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ عَامِرٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ اِذَا حَيَّا ابْنَ جَعْفَرٍ قَالَ السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا ابْنَ ذِي الْجَنَاحَيْنِ.

۲۷۸: مـحـمـد بـن ابـي بـكـر. عمر بن علي. اسـمـاعـيـل بـن ابو خالد. عامر نه روايت كوي' حضرت ابـن عمرؓ به كله ذ حضرت جعفر فرزند ته سلام كولو' نو وئيـل بـه نـے' السـلام عليک يا ابن ذي الجناحين (يعني اے ذ دوو وزرو واله څويه' په تا دے سلام وي).

۲۷۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ يَقُوْلُ لَقَدِ انْقَطَعَتْ فِيْ يَدِيْ يَوْمَ مُؤْتَةَ تِسْعَةُ اَسْيَافٍ فَمَا بَقِيَ فِيْ يَدِيْ اِلَّا صَفِيْحَةٌ يَمَانِيَةٌ.

۲۷۹: ابـو نـعـيـم. سـفـيـان. اسـمـاعيل. قيـس بن ابـو حـازم. حـضـرت خـالـد بـن وليد نـه روايت كوي' هـغـهٔ بيـان اوكـهٔ' غـزوه موتـه كښ څما ذ لاس نـه (پـه گـزارونـو گـزارونو) نهـه تـورے مـاتـے شـوے وے' او څـمـا يـمـيـنـي پـلـنـه توره څما په لاس كښ باقي پاتے شوه.

۲۸۰: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَيْسٌ قَالَ سَمِعْتُ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ يَقُوْلُ لَقَدْ دُقَّ فِيْ يَدِيْ يَوْمَ مُؤْتَةَ تِسْعَةُ اَسْيَافٍ وَ صَبَرَتْ فِيْ يَدِيْ صَفِيْحَةٌ لِيْ يَمَانِيَةٌ.

۲۸۰: مـحـمـد بـن مثنـي. يـحـيـي. اسـمـعيل. قيـس. حـضـرت خـالـد بـن وليـد نـه روايـت كوي ذ هـغـهٔ بيـان دے' جنگ مـوتـه كـښ څـمـا ذ لاس نـه نهـه تـورے (جنگ كـولـو كـښ) مـاتـے شـوے. او څـمـا يـمـنـي پـلـنـه تـوره څما لاس كـښ بـاقي پـاتـے شوه.

۲۸۱: حَدَّثَنِيْ عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَامِرٍ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ اُغْمِيَ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ

۲۸۱: عـمـران بـن ميـسـره. مـحـمـد بن فضيل. حـصـيـن. عـامر. نعمان بن بشير نه روايت كوي' عبداللّٰه بن رواحه يوه ورځ بيهوشه شو' ذ هغهٔ خور وئيلے' څما ذ غـر پـه شـان وروره' هائے داسے' هائے داسے' وئيلو سره

رَوَاحَةَ فَجَعَلَتْ اُخْتُهُ تَبْكِيْ وَاجَبَلَاهُ وَاكَذَا وَاكَذَا تُعَدِّدُ عَلَيْهِ فَقَالَ حِيْنَ اَفَاقَ مَا قُلْتِ شَيْئًا اِلَّا قِيْلَ لِيْ اَنْتَ كَذَالِكَ.

ئې ژړل يعني د هغهٔ اوصاف ئې بيانول، کوم وخت چه هغهٔ ته هوش راغې، نو خور ته ئې اووې، چه تا به کومه خبره کوله، نو ما نه به تپوس کولے شو، چه ته (واقعي) داسې وې ؟[۱].

۱. په عبدالله بن رواحه رضي الله عنه باندې د بې هوشئ او خنکدن غوندې کيفيت طاري شوې وو. د هغوئ د کور د خلقو خيال راغې چه څه حادثه پيښه شوه او د هغوئ خور په ژړا شوه. نو يوې فرشتې د هغوئ نه دا سوال کړې وو. ګويا د هغوئ کيفيت دې حال ته رسيدلې وو چه د عالم غيب بعضې څيزونه ورته په نظر راغلي وو.

۲۸۲ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْثَرٌ عَنْ حُصَيْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ اُغْمِيَ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ رَوَاحَةَ بِهٰذَا فَلَمَّا مَاتَ لَمْ تَبْكِ عَلَيْهِ.

۲۸۲ : قتيبه. عبثر. حصين. نعمان بن بشيرؓ نه روايت دې، عبدالله بن رواحهؓ چه بيهوشه شو، او د ورمبي حديث په شان ئې روايت بيان کۀ (خو دومره په کښې زياتې وو) چه هر کله عبدالله وفات شو، نو د هغهٔ خور په هغهٔ بيخي اونهٔ ژړل.

## باب ۴۶: بَعْثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ اِلَى الْحُرُقَاتِ مِنْ جُهَيْنَةَ.

## باب ۴۶: د قبيلهٔ جهينه قوم حرقات طرف ته د نبي صلي الله عليه وسلم اسامه بن زيد ليږل.

۲۸۳ : حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ ظِبْيَانَ قَالَ سَمِعْتُ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ بَعَثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْحُرُقَةِ فَصَبَّحْنَا الْقَوْمَ فَهَزَمْنَاهُمْ وَلَحِقْتُ اَنَا وَرَجُلٌ مِنَ الْاَنْصَارِ رَجُلًا مِنْهُمْ فَلَمَّا غَشِيْنَاهُ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَكَفَّ الْاَنْصَارِيُّ فَطَعَنْتُهُ بِرُمْحِيْ حَتّٰى قَتَلْتُهُ فَلَمَّا قَدِمْنَا بَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۸۳ : عمرو بن محمد. هشيم. حصين. ابو ظبيان. حضرت اسامه بن زيدؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم حرقه جانب ته اوليږلو. مونږ سحر کښې په هغې قوم حمله اوکړه او هغوئ له مو شکست ورکه. زهٔ او يو انصاري د هغې قوم يو سړي پسې اولګيدلو. کوم وخت چه مونږ هغه ګير کړلو، نو هغه اووې: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ: هغې انصاري خو لاس اونيولو، خو ما هغه په نيزه اووهلو، او قتل مِ کۀ، کوم وخت چه مونږ واپس راغلو، نبي صلي الله عليه وسلم ته دا خبره معلومه شوه، نو وې فرمائيل، اسامه تا، د: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وئيلو نه پس هم هغه قتل کۀ، ما

وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا أُسَامَةُ أَقَتَلْتَهُ بَعْدَ مَا قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ قُلْتُ كَانَ مُتَعَوِّذًا فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا حَتّٰى تَمَنَّيْتُ أَنِّي لَمْ أَكُنْ أَسْلَمْتُ قَبْلَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ.

عرض اوكړ، هغه د خان خلاصولو د پاره داسے وئيلے وو، خو حضورﷺ برابر دغه فرمائيل، حتي چه ما آرزو اوكړه، چه كاش د نن نه مخكښې ما اسلام نه وے راوړے[1].

[1]. ددے مطلب دا نه دے چه هغه واقعي ددے نه مخكښې ژوند كښې كفر خوښولو، بلكه صرف په دغه واقعه باندے د انتهائي حسرت او افسوس اظهار مقصود وو يعني دا غلطي دومره غطيمه وه چه د هغوئ په زړه كښې دا تمنا پيدا شوه چه كاش زه د نن نه مخكښې مسلمان نه وے او خما نه دا غلطي نه وے شوے. او چه نن م اسلام راوړے وے نو خما ټول مخكني گناهونه به رژيدلي وو، ولے چه اسلام د كفر د ژوند ټول گناهونه ختموي. بهرحال ددے جملے نه صرف د حسرت او افسوس اظهار مقصود وو او دا قسمه جملے په داسے موقعو كښې د استعمالولو عام دستور دے.

۲۸۴ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ أَبِيْ عُبَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَلَمَةَ بْنَ الْأَكْوَعِ يَقُوْلُ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ وَ خَرَجْتُ فِيْمَا يَبْعَثُ مِنَ الْبُعُوْثِ تِسْعَ غَزَوَاتٍ مَرَّةً عَلَيْنَا أَبُوْ بَكْرٍ وَ مَرَّةً عَلَيْنَا أُسَامَةُ وَ قَالَ عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ أَبِيْ عُبَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَلَمَةَ يَقُوْلُ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ وَّ خَرَجْتُ فِيْمَا يَبْعَثُ مِنَ الْبَعْثِ تِسْعَ غَزَوَاتٍ عَلَيْنَا مَرَّةً أَبُوْ بَكْرٍ وَ مَرَّةً أُسَامَةُ.

۲۸۴ : قتيبه بن سعيد. حاتم. يزيد بن ابي عبيد. سلمه بن اكوعؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، زه حضورﷺ سره اوه غزاگانو كښې شريک ووم، او نور لښكر چه حضورﷺ به (د چا په سپه سالاري كښې) ليږلو، هغے كښې نهو كښې زه شريک ووم. يو ځل خمونږ سپه سالار ابوبكرؓ وو، او يو ځل اسامهؓ. عمر بن حفص بن غياث، د هغه پلار، يزيد بن ابي عبيد، سلمه بن اكوع نه روايت كوي، چه حضورﷺ سره اوه غزاگانو كښې شريک شوم، او نورے لښكرے چه به حضورﷺ ليږلے، هغے كښې نهه غزاگانو كښې زه لاړم. يو ځل خمونږ امير، ابوبكرؓ وو، او يو ځل اسامهؓ.

۲۸۵ : حَدَّثَنَا أَبُوْ عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مُخَلَّدٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ

۲۸۵ : ابو عاصم ضحاک بن مخلد. يزيد. سلمه بن اكوعؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، زه حضورﷺ سره اوه غزاگانو كښې شريک شوم، او زه ابن

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَـزَوَاتٍ وَّ غَـزَوْتُ مَعَ ابْنِ حَارِثَةَ اسْتَعْمَلَهُ عَلَيْنَا.

حارثه سره هغې غزا کښې شريک ووم، چه هغې کښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم، هغه خمونږ امير جوړ کړے وو.

٢٨٦: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ مَسْعَدَةَ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ فَذَكَرَ خَيْبَرَ وَالْحُدَيْبِيَّةَ وَ يَوْمَ حُنَيْنٍ وَ يَوْمَ الْقَرَدِ قَالَ يَزِيْدُ وَ نَسِيْتُ بَقِيَّتَهُمْ.

٢٨٦: محمد بن عبداللّٰه. حماد بن مسعده. يزيد بن ابو عبيد. سلمه بن اکوعؓ نه روايت کوي، ۮ هغه بيان دے، زۀ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره اُوه غزاګانو کښې شريک شوے يم، بيا هغه ۮ خيبر، حديبيه، حنين او جنګِ قرد ذکر اوکۀ. يزيد اووے. باقي غزاګانے مانه هيرے شوے.

باب۴۷: غَزْوَةِ الْفَتْحِ وَمَا بَعَثَ حَاطِبُ بْنُ أَبِي بَلْتَعَةَ إِلَى أَهْلِ مَكَّةَ يُخْبِرُهُمْ بِغَزْوِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب۴۷: ۮ مکے ۮ فتح ۮ غزا بيان او ۮ حاطب بن ابي بلتعه اهل مکه ته ۮ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ۮ لشکر کشي اطلاع.

٢٨٧: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ قَالَ أَخْبَرَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ أَبِي رَافِعٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُوْلُ بَعَثَنِي رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَالزُّبَيْرَ وَالْمِقْدَادَ فَقَالَ انْطَلِقُوْا حَتّٰى تَأْتُوْا رَوْضَةَ خَاخٍ فَإِنَّ بِهَا ظَعِيْنَةً مَعَهَا كِتَابٌ فَخُذُوْا مِنْهَا قَالَ فَانْطَلَقْنَا تَعَادَى بِنَا خَيْلُنَا حَتّٰى أَتَيْنَا الرَّوْضَةَ فَإِذَا نَحْنُ

٢٨٧: قتيبه. سفيان. عمرو بن دينار. حسن بن محمد. عبيداللّٰه بن ابي رافع. حضرت عليؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، زۀ، زبير او مقداد، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليږلو او حضورؐ اوفرمائيل، تاسو خلق لاړ شئ، حتي چه مقام روضۀ خاخ ته اُورسئ. هلته به تاسو يوه کجاوه نشينه ښځه بيا مومئ. هغې سره به يو خط وي، هغه خط ۮ هغې نه واخلئ. حضرت عليؓ فرمائي، خمونږ آسونو تيزئ سره مونږ اورسولو حتي چه روضۀ خاخ ته اورسيدلو. هلته مونږ يوه کجاوه نشينه بيامونده. مونږ هغې ته اووے. خط راوکاږه هغې اووے. ما سره خط نشته.

بِالظَّعِيْنَةِ قُلْنَا لَهَا اخْرُجِيُ الْكِتَابَ قَالَتْ مَا مَعِيَ كِتَابٌ فَقُلْنَا لَتُخْرِجَنَّ الْكِتَابَ اَوْ لَنُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ قَالَ فَاَخْرَجَتْهُ مِنْ عِقَاصِهَا فَاَتَيْنَا بِهٖ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا فِيْهِ مِنْ حَاطِبِ بْنِ اَبِيْ بَلْتَعَةَ اِلٰى اُنَاسٍ بِمَكَّةَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ يُخْبِرُهُمْ بِبَعْضِ اَمْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا حَاطِبُ مَا هٰذَا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَا تَعْجَلْ عَلَيَّ اِنِّيْ كُنْتُ امْرَأً مُلْصَقًا فِيْ قُرَيْشٍ يَقُوْلُ كُنْتُ حَلِيْفًا وَّلَمْ اَكُنْ مِّنْ اَنْفُسِهَا وَ كَانَ مَنْ مَّعَكَ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ مَنْ لَّهُمْ قَرَابَاتٌ يَحْمُوْنَ اَهْلِيْهِمْ وَ اَمْوَالَهُمْ فَاَحْبَبْتُ اِذْ فَاتَنِيْ ذٰلِكَ مِنَ النَّسَبِ فِيْهِمْ اَنْ اَتَّخِذَ عِنْدَهُمْ يَدًا يَّحْمُوْنَ قَرَابَتِيْ وَلَمْ اَفْعَلْهُ ارْتِدَادًا عَنْ دِيْنِيْ وَلَا رِضًا بِالْكُفْرِ بَعْدَ الْاِسْلَامِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَا اِنَّهٗ قَدْ صَدَقَكُمْ فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ دَعْنِيْ اَضْرِبْ عُنُقَ هٰذَا الْمُنَافِقِ فَقَالَ اِنَّهٗ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا وَّمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ اللّٰهَ اَطَّلَعَ عَلٰى مَنْ شَهِدَ بَدْرًا قَالَ اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ

مونږ ورته اووې خط راکه، کني مونږ درنه کپړې اوکاږو تالاشي دې آخلو، نو هغې د خپلې کمسئ نه يو خط راوښکلو. مونږ هغه خط رسول الله صلي الله عليه وسلم له راوړلو، هغې کښې ليکلې وو، د حاطب بن ابي بلتعه د جانب نه د مشرکين مکه په نوم، هغوي ته ئې د حضورصلي الله عليه وسلم د بعضې جنګي معاملاتو متعلق اطلاع ورکوله، رسول الله صلي الله عليه وسلم حاطب ته اوفرمائيل. حاطبه، دا څۀ دي هغۀ جواب ورکۀ، يا رسول الله، په ما تادي مۀ کوئې، زۀ داسې سړې يم، چه قريشو سره ځما تعلق دې، يعني زۀ د هغوي حليف يم، او زۀ د هغوي د ذات نه، نه يم، او تاسو سره چه کوم مهاجر دي، د هغې ټولو رشته داران دي، چه د هغوي د مال او اولاد حمايت کولې شي ځما هغوي سره څۀ قرابت نۀ وو، په دې وجه ما اوغوښتل، چه په هغوي څۀ احسان اوکړم، چه د هغې په وجه هغوي ځما د رشته داري حفاظت اوکړي. او دا کار ما د خپل دين نه د آوړيدلو او د اسلام نه پس په کفر د راضي کيدلو په سبب نۀ دې کړې، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، ګورې حاطب تاسوته ريښتيا وئيلې دي. حضرت عمرؓ عرض اوکۀ، يا رسول الله ماله اجازت راکړئې، چه د دې منافق ګردن والوخوم. حضورؐ ورته اوفرمائيل (نه، نه) دې د بدر غزا کښې شريک وو، او تاته څۀ معلومه ده، چه الله تعالي حاضرين بدر طرف ته التفات اوکۀ، نو وې فرمائيل، ستاسو زړۀ چه څۀ غواړي هغه عمل اوکړئې،

فَأَنْزَلَ اللّٰهُ السُّوْرَةَ يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَ عَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ اِلٰى قَوْلِهٖ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ.

خو ما تاسو بښلي يئے. بيا اللّٰه تعالىٰ دا سورت نازل كړلو، اے ايمان والو، تاسو خما او خپل دشمنان، دوستان مۀ جوړوئے، چه تاسو هغوي سره خپل محبت ظاهر كړئے. آخر آيت: فقد ضلّ سواء السّبيل: پورے.

## بـاب۴۸: غَـزْوَةِ الْـفَـتْـحِ فِيْ رَمَضَانِ.

## باب۴۸: دَ مکے دَ فتح دَ غزا بيان، چه رمضان ســـ۸ـھ كښې پيښه شوه.

۲۸۸: حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ حَـدَّثَـنَـا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُتْبَةَ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا غَزْوَةَ الْفَتْحِ فِيْ رَمَضَانَ قَالَ وَ سَمِعْتُ ابْنَ الْمُسَيَّبَ يَقُوْلُ مِثْلَ ذٰلِكَ وَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ صَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اِذَا بَلَغَ الْكَدِيْدَ الْمَآءَ الَّذِيْ بَيْنَ قُدَيْدٍ وَ عُسْفَانَ اَفْطَرَ فَلَمْ يَزَلْ مُفْطِرًا حَتّٰى انْسَلَخَ الشَّهْرُ.

۲۸۸: عبداللّٰه بن يوسف. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ مکے دَ فتح غزا رمضان كښې اوكړه، زهري وائي، ما دَ ابن مسيب نه هم دغسے آوريدلے دي، او عبيداللّٰه په واسطه دَ حضرت ابن عباسؓ روايت كړے دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم روژه اونيوله، تردے چه مقام كديد ته هغے چينے ته اورسيدلو، چه دَ قديد او عسفان مينځ كښې ده، نو حضورؐ روژه ماته كړه. بيا دَ هغے مياشتے ختميدو پورے ئے روژه اونۀ نيوله[۱].

۱. ولے چه مسافر وو او جهاد مقصد وو، روژے سره انسان فطرةً كمزورے كيږي كوم چه خاص طور سره د جهاد وخت كښے نقصان ده ثابتيدے شي، همدا وجه وه چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم پخپله هم روژے اونه نيوے او نۀ صحابه كرامو.

۲۸۹: حَـدَّثَنِيْ مَحْمُوْدُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ الزُّهْرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

۲۸۹: محمود. عبدالرزاق. معمر. زهري. عبيداللّٰه بن عبيدالله بن عبدالله. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دے، حضورؐ لس زره مسلمانانو سره رمضان كښې دَ مکے دَ فتح دَ پاره مدينے نه روان

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فِيْ رَمَضَانَ مِنَ الْمَدِيْنَةِ وَ مَعَهُ عَشَرَةُ الْاٰفٍ وَ ذٰلِكَ عَلٰى رَأْسِ ثَمَانِ سِنِيْنَ وَ نِصْفٍ مِنْ مَقْدَمِهِ الْمَدِيْنَةَ فَسَارَ هُوَ وَمَنْ مَعَهُ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ اِلٰى مَكَّةَ يَصُوْمُ وَ يَصُوْمُوْنَ حَتّٰى بَلَغَ الْكَدِيْدَ وَهُوَ مَآءٌ بَيْنَ عُسْفَانَ وَ قُدَيْدٍ اَفْطَرَ وَ اَفْطَرُوْا قَالَ الزُّهْرِيُّ وَ اِنَّمَا يُؤْخَذُ مِنْ اَمْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاٰخِرُ فَالْاٰخِرُ.

شولو، او دغه وخت ذ حضورؐ مدینې ته ذ هجرت اتنیم (۸½) کاله شوي وو، نو حضورؐ او ورسره نور مسلمانان مکې طرف ته روان شو، چه حضورؐ هم روژه دار وو، او نور مسلمانان هم، تردې چه مقام کدید ته اورسیدل، چه ذ عسفان او قدید مینځ کښې یوه چینه (چشمه) ده، نو حضور هم روژه ماته کړه او مسلمانانو هم. زهري وائي، ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم آخري فعل اخستل پکار دي (یعني سفر جهاد کښې روژه نه ساتل پکار دي)، ځکه چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دلته روژه اونهٔ نیوله.

۲۹۰: حَدَّثَنِيْ عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ رَمَضَانَ اِلٰى حُنَيْنٍ وَّ النَّاسُ مُخْتَلِفُوْنَ فَصَائِمٌ وَ مُفْطِرٌ فَلَمَّا اسْتَوٰى عَلٰى رَاحِلَتِهٖ دَعَا بِاِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ اَوْ مَآءٍ فَوَضَعَهُ عَلٰى رَاحَتِهٖ اَوْ رَاحِلَتِهٖ ثُمَّ نَظَرَ اِلَى النَّاسِ فَقَالَ الْمُفْطِرُوْنَ لِلصُّوَّامِ اَفْطِرُوْا وَ قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ وَ قَالَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۹۰: عیاش بن ولید. عبدالاعلٰي. خالد. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دې، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم حنین طرف ته رمضان کښې روان شولو، او ذ خلقو حال مختلف وو، بعضې روژه دار وو، او بعضې بې روژې وو، کوم وخت چه حضورؐ په خپلې سورلئ کیناست، نو حضورؐ ذ پیتو یا اوبو ګلاس اوغوښتلو، او هغه ئې په خپل لاس کیښودلو، بیا حضورؐ خلقو طرف ته اوکتل، نو بې روژه دارو، روژه دارو ته چه ذ حضورؐ دا فعل ئې اولیدٔ، اووې، چه روژه ماته کړئې. عبدالرزاق. معمر. ایوب. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، چه حضورؐ ذ فتح مکې په کال اووتلو. حماد بن زید، ایوب، عکرمه، حضرت ابن عباسؓ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي.

۱ په مشهورو روايتونو كښې دي چه حضور صلي الله عليه وسلم غزوه حنين د پاره په شوال كښې د فتح مكې نه پس تشريف اوړے وو محدثينو ددے روايت متعلق ليكلي دي چه پاك حضرت په رمضان كښې د غزوه حنين اراده كړے وه او راوي د هغوئ د ارادے تعبير په داسې لفظ سره كړے دے د كوم معني چه روايدل او فهم باندے د تللو ده. بهرحال د رواياتو او واقعاتو بيانولو وخت كښې په دا قسمه تعبيراتو كښې هيڅ استبعاد او اجنبيت نيشته.

۱۹۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَافَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ فَصَامَ حَتَّى بَلَغَ عُسْفَانَ ثُمَّ دَعَا بِإِنَاءٍ مِنْ مَّاءٍ فَشَرِبَ نَهَارًا لِيُرِيَهُ النَّاسَ فَأَفْطَرَ حَتَّى قَدِمَ مَكَّةَ قَالَ وَ كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ صَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السَّفَرِ وَ أَفْطَرَ فَمَنْ شَاءَ صَامَ وَمَنْ شَاءَ أَفْطَرَ.

۱۹۱: علي بن عبدالله. جرير. منصور. مجاهد. طاؤس. حضرت ابن عباسؓ نه رويت كوي، هغه فرمائي، نبي صلي الله عليه وسلم رمضان كښې سفر اوكړ، او روژه ئے اونيوله، ترديے چه حضورؐ مقام عسفان ته اورسيدلو، بيا حضورؐ دَ اُوبو ګلاس اوغښتلو او خلقو ته دَ ښودلو دَ پاره ئے په هغه ورځ اوڅکلو بيا حضورؐ مكې ته راتلو پورے روژه اونۀ نيوله او ابن عباس به فرمائيل، نبي صلي الله عليه وسلم سفر كښې روژه نيولے هم ده، او نيولے ئے هم نۀ ده. نو دَ چا زړۀ چه غواړي، او دے نيسي، او دَ چا زړۀ چه ئے غواړي، نۀ دے نيسي.

باب ۴۹: أَيْنَ رَكَزَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّايَةَ يَوْمَ الْفَتْحِ.

باب ۴۹: دَ مكې دَ فتح په ورځ نبي صلي الله عليه وسلم جنډه كوم ځائے نصب كړله.

۲۹۲: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ قَالَ لَمَّا سَارَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ فَبَلَغَ ذٰلِكَ قُرَيْشًا خَرَجَ اَبُوْ سُفْيَانَ ابْنُ حَرْبٍ وَ حَكِيمُ بْنُ حِزَامٍ وَ بُدَيْلُ بْنُ وَرْقَاءَ يَلْتَمِسُوْنَ الْخَبَرَ عَنْ رَسُوْلِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَقْبَلُوْا

۲۹۲: عبيد بن اسماعيل. ابو اسامه. هشام. دَ خپل پلار نه روايت كوي، كوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلم دَ فتح مكې په كال روان شولو، قريشو ته دَ دے خبر اورسيدلو، نو ابو سفيان بن حرب، حكيم بن حزام او بديل بن ورقاء دَ قريشو دَ جانب نه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم دَ خبر اخستو دَ پاره اووتل، دا دريے واړه تلو تلو كښې مقام مر الظهران ته اورسيدل، هلته ئے كثرت سره

يَسِيْرُوْنَ حَتّٰى اَتَوْا مَرَّ الظَّهْرَانِ فَاِذَا هُمْ بِنِيْرَانٍ كَاَنَّهَا نِيْرَانُ عَرَفَةَ فَقَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ مَا هٰذِهٖ لَكَاَنَّهَا نِيْرَانُ عَرَفَةَ فَقَالَ بُدَيْلُ ابْنُ وَرْقَآءَ نِيْرَانُ بَنِيْ عَمْرٍو فَقَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ عَمْرٌو اَقَلُّ مِنْ ذٰلِكَ فَرَاٰهُمْ نَاسٌ مِّنْ حَرَسِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَدْرَكُوْهُمْ فَاَخَذُوْهُمْ فَاَتَوْا بِهِمْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَسْلَمَ اَبُوْ سُفْيَانَ فَلَمَّا سَارَ قَالَ لِلْعَبَّاسِ احْبِسْ اَبَا سُفْيَانَ عِنْدَ حَطْمِ الْخَيْلِ حَتّٰى يَنْظُرَ اِلَى الْمُسْلِمِيْنَ فَحَبَسَهُ الْعَبَّاسُ فَجَعَلَتِ الْقَبَائِلُ تَمُرُّ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَمُرُّ كَتِيْبَةً كَتِيْبَةً عَلٰى اَبِيْ سُفْيَانَ فَمَرَّتْ كَتِيْبَةٌ قَالَ يَا عَبَّاسُ مَنْ هٰذِهٖ غِفَارُ قَالَ مَا لِيْ وَ لِغِفَارَ ثُمَّ مَرَّتْ جُهَيْنَةُ قَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ مَرَّتْ سَعْدُ بْنُ هُذَيْمٍ فَقَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ وَ مَرَّتْ سُلَيْمُ فَقَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ حَتّٰى اَقْبَلَتْ كَتِيْبَةٌ لَمْ يَرَ مِثْلَهَا قَالَ هٰؤُلَآءِ الْاَنْصَارُ عَلَيْهِمْ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ مَعَهُ الرَّايَةُ فَقَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ يَا اَبَا سُفْيٰنَ اَلْيَوْمُ يَوْمُ الْمَلْحَمَةِ اَلْيَوْمَ تُسْتَحَلُّ الْكَعْبَةُ فَقَالَ اَبُوْ سُفْيٰنَ يَا عَبَّاسُ حَبَّذَا يَوْمُ الذِّمَارِ ثُمَّ جَاءَتْ

اُور داسې روښانه اولېدلو، څنګه چه عرفه کښې وي. ابوسفيان اُووې، دا اُور څنګه دې، څنګه چه عرفه کښې وي. بديل بن ورقاء جواب ورکړ، ډ بنو عمرو اُور به وي ابوسفيان اووې، ډ بنو عمرو تعداد دې نه ډير کم دې. دا درې واړه ډ حضور صلي الله عليه وسلّم محافظانو اوليدل، او وې نيول، او هغوي ئې ډ حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې پيش کړل. ابوسفيان خو مسلمان شو بيا چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم روان شو، نو حضورؐ حضرت عباسؓ ته اوفرمائيل، چه ابوسفيان ډ اسلام ډ لښکر تنګ ګزرګاه سره ايسار کړه، چه ډ اسلام ډ لښکر نظاره اوکړي حضرت عباسؓ هلته اودريدلو. اوس حضورؐ سره قبائل تيريدل شروع شو. ډ لښکر يوه يوه دسته ډ ابوسفيان خوا سره تيريدله، هر کله چه يوه دسته راغله، نو ابوسفيان تپوس اوکړ اے عباسؓ، دا کومه دسته ده، هغه ورته اووې دا قبيلهٔ غفار دسته ده. ابوسفيان اووې، څما او ډ قبيلهٔ غفار خو څهٔ جګړه نهٔ وه. بيا قبيلهٔ جهينه تيره شوه، نو دغسې ئې اووې، بيا سعد بن هذيم تيره شوه، نو دغسې ئې اووې، بيا سُليم تيره شوه، نو دغسې ئې اووې. بيا يوه دسته تيره شوه، چه داسې ئې نهٔ وه ليدلې، ابوسفيان اووې، دا کومه دسته ده. عباسؓ اووې، دا انصار دي، ډ دوي سپه سالار سعد بن عباده دې، چه هغهٔ سره جنډه ده. سعد بن عباده اووې، اے ابوسفيان، نن ورځ ډ جنګ ورځ ده. نن به کعبه (ډ کافرو ډ کُشت و خون ډ مخه) حلاله شي. ابوسفيان اووې، اے عباسؓ ډ هلاکت (ډ کفارو) ورځ خومره ښهٔ ده. بيا ډ ټولو نه وړه

كَتِيْبَةٌ وَّ هِيَ اَقَلُّ الْكَتَائِبِ فِيْهِمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهُ وَرَايَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ فَلَمَّا مَرَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَبِيْ سُفْيَانَ قَالَ اَلَمْ تَعْلَمْ مَّا قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ قَالَ مَا قَالَ قَالَ كَذَا وَ كَذَا فَقَالَ كَذَبَ سَعْدٌ وَّلٰكِنْ هٰذَا يَوْمٌ يُعَظِّمُ اللّٰهُ فِيْهِ الْكَعْبَةَ وَ يَوْمٌ تُكْسٰى فِيْهِ الْكَعْبَةُ قَالَ وَ اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُرْكَزَ رَايَتُهُ بِالْحَجُوْنِ قَالَ عُرْوَةُ فَاَخْبَرَنِيْ نَافِعُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ سَمِعْتُ الْعَبَّاسَ يَقُوْلُ لِلزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ يَا اَبَا عَبْدِ اللّٰهِ هٰهُنَا اَمَرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تَرْكُزَ الرَّايَةَ قَالَ وَ اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ اَنْ يَّدْخُلَ مِنْ اَعْلٰى مَكَّةَ مِنْ كَدَاءٍ وَّ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ كُدَاءٍ فَقُتِلَ مِنْ خَيْلِ خَالِدٍ يَوْمَئِذٍ رَجُلَانِ حُبَيْشُ ابْنُ الْاَشْعَرِ وَ كُرْزُ بْنُ جَابِرٍ الْفِهْرِيُّ.

دسته راغله، چه هغې کښې حضور صلي الله عليه وسلّم او حضورﷺ سره (مهاجر) صحابهؓ وو. او ﺩ نبي صلي الله عليه وسلّم جنډه زبير بن عوام سره وه. کوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلّم ﺩ ابوسفيان خوا کښې تير شولو، نو ابوسفيان اووے، تاسو ته معلومه ده، چه سعد بن عباده څۀ اووے. حضورﷺ ورته اوفرمائيل، څۀ ئے اووے، ابوسفيان اووے، داسے ئے وئيلے دي. حضورﷺ اوفرمائيل، سعد صحيح نۀ دي وئيلے. نن ورځ خو هغه ورځ ده، چه هغې کښې به الله تعالٰي کعبے ته بزرګي او عظمت عطا کړي، او نن به کعبے ته غلاف اغُستولے شي. عروه وائي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ﺩ خپلے جنډے مقام حجون کښې ﺩ نصب کولو حکم ورکړلو. عروه وائي، ماته نافع بن جبير بن مطعم اوښودل، چه هغه عباسؓ ته ﺩ زبير بن عوام نه دا واوريدل، چه اے ابو عبدالله، رسول الله صلي الله عليه وسلّم تاسو ته په دے ځائے ﺩ جنډے نصب کولو حکم درکړے دے. عروه وائي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم په دغه ورځ خالد بن وليد ته حکم ورکړلو، چه هغه ﺩ مکے ﺩ پورته حصے يعني کداء نه داخل شي، او خپله حضور صلي الله عليه وسلّم ﺩ کُدَي نه داخل شولو. په دغه ورځ ﺩ خالد ﺩ دستے دوه سړي حُبيش بن اشعر او کرز بن جابر فهري شهيد شولو. (باقي ﺩ بل چا غوږ قدرے هم ګرم نۀ شولو).

ف: (۱) كَدَاءٍ: يوه بلنده غنډئ ده، جنت المعلي سره. (۲) كُدَي: يو لاندے مقام دے، باب عمره سره.

**۲۹۳ :** حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ قَالَ

**۲۹۳ :** ابوالوليد. شعبه. معاويه بن قره. عبدالله بن مغفلؓ نه روايت کوي، ﺩ هغه بيان دے، ما ﺩ مکے ﺩ

سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مُغَفَّلٍ يَقُولُ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ عَلٰى نَاقَتِهٖ وَهُوَ يَقْرَاُ سُوْرَةَ الْفَتْحِ يُرَجِّعُ وَ قَالَ لَوْلَا اَنْ يَجْتَمِعَ النَّاسُ حَوْلِيُ لَرَجَّعْتُ كَمَا رَجَّعَ.

فتح په ورځ رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم په اُوښه سور، خوش الحاني سره سورۀ فتح لوستو باندے اوليدلو. معاويه وائي كه ماسره ذَ خلقو خواوشا ته دَ جمع كيدو انديښنه نۀ وے، نو ما به دَ حضورؐ په شانے خوش الحاني ښودلے وے (څنګه چه عبدالله بن مغفل كړے وو).

۲۹۴: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سَعْدَانُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ حَفْصَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ اَنَّهٗ قَالَ زَمَنَ الْفَتْحِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيْنَ تَنْزِلُ غَدًا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهَلْ تَرَكَ لَنَا عَقِيْلٌ مِّنْ مَّنْزِلٍ ثُمَّ قَالَ لَا يَرِثُ الْمُؤْمِنُ الْكَافِرَ وَلَا يَرِثُ الْكَافِرُ الْمُؤْمِنَ قِيْلَ لِلزُّهْرِيِّ وَمَنْ وَرِثَ اَبَا طَالِبٍ قَالَ وَرِثَهٗ عَقِيْلٌ وَ طَالِبٌ قَالَ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَيْنَ تَنْزِلُ غَدًا فِيْ حَجَّتِهٖ وَلَمْ يَقُلْ يُوْنُسُ حَجَّتَهٗ وَلَا زَمَنَ الْفَتْحِ.

۲۹۴: سليمان بن عبدالرحمٰن. سعدان بن يحيٰي. محمد بن ابي حفصه. زهري. علي بن حسين. عمرو بن سليمان. اسامه بن زيدؓ نه روايت كوي، هغه دَ مكے دَ فتح په زمانه كښې عرض اوكۀ، يا رسول اللّٰه، صباله به تاسو كوم ځائے قيام كوئے، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه سلّم ورته اوفرمائيل، آيا عقيل مونږ دَ پاره دَ ايساريدو څۀ ځائے پريښے دے. بيا حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، نۀ مومن دَ كافر وارث كيدے شي، او نۀ كافر دَ مؤمن. زهري نه تپوس اوشو، چه دَ ابو طالب څوک وارث شولو، هغۀ اووے، عقيل او طالب دَ هغۀ وارثان شولو. معمر دَ زهري نه دا روايت كړے دے، چه تاسو به صباله كوم ځائے ايساريږئے، دَ حضورؐ دَ حج زمانه كښې اسامه ورته وئيلے وو، او دَ يونس روايت كښې نۀ دَ حج ذكر شته نۀ دَ فتح دَ زمانے.

۲۹۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْزِلُنَا اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اِذَا فَتَحَ اللّٰهُ الْخَيْفُ حَيْثُ تَقَاسَمُوْا عَلَى الْكُفْرِ.

۲۹۵: ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. عبدالرحمٰن. حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، هغه وائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، كه اللّٰه فتح راكړه، نو انشاء اللّٰه څمونږ دَ ايساريدو ځائے به خيف وي، كوم ځائے چه قريشو په كفر قسمونه خوړلي وو.

۲۹۶: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ أَرَادَ حُنَيْنًا مَنْزِلُنَا غَدًا إِنْشَاءَ اللّٰهُ بِخَيْفِ بَنِي كِنَانَةَ حَيْثُ تَقَاسَمُوا عَلَى الْكُفْرِ.

۲۹۶: موسي بن اسماعيل. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. ابو سلمه. حضرت ابو هريرةؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه دَ جنگ حنين اراده اوكړله، نو وې فرمائيل، مونږ به انشاء اللّٰه خيف بني كنانه كښې ايساريږو، كوم ځائې چه كافرو په كفر خپلو كښې عهد پيمان كړې وو.

۲۹۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ يَوْمَ الْفَتْحِ وَ عَلَى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ فَلَمَّا نَزَعَهُ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ ابْنُ خَطَلٍ مُتَعَلِّقٌ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ فَقَالَ اقْتُلْهُ قَالَ مَالِكٌ وَلَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا نُرَى وَاللّٰهُ أَعْلَمُ يَوْمَئِذٍ مُحْرِمًا.

۲۹۷: يحيي بن قزعه. مالك. ابن شهاب. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ مكې دَ فتح په ورځ په سر مبارك خود (جنگي ټوپي) ايښې وه، چه مكه كښې داخل شولو، حضورؐ خود لا كوز كړې وو، چه يو سړې راغې، وئيلې، ابن خطل (چه څو مسلمانان ئې قتل كړي وو، او مرتد شوې وو) دَ كعبې پرده ئې نيولې موجود دې. حضورؐ اوفرمائيل، دې قتل كړئې، څو پورې چه څما خيال دې، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه وخت محرم نه وو.

۲۹۸: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ يَوْمَ الْفَتْحِ وَ حَوْلَ الْبَيْتِ سِتُّونَ وَ ثَلٰثُ مِائَةِ نُصُبٍ فَجَعَلَ يَطْعَنُهَا بِعُودٍ فِي يَدِهٖ وَ يَقُولُ جَاءَ الْحَقُّ وَ زَهَقَ الْبَاطِلُ جَاءَ

۲۹۸: صدقه بن فضل. ابن عيينه. ابن ابي نجيح. مجاهد. ابو معمر. حضرت عبداللّٰهؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دې، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ مكې دَ فتح په ورځ مكه كښې داخل شو، نو بيت اللّٰه كښې گير چاپېره درې سوه شپېته بُتان وو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به دَ خپل لاس په لرگي هغه وهل، او فرمائيل به ئې، حق راغې، او باطل برباد شو. حق راغې، اوس به باطل نهٔ راځي او نهٔ به دوباره واپس

الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيْدُ.

کیږي.

۲۹۹: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ اَبٰى اَنْ يَّدْخُلَ الْبَيْتَ وَ فِيْهِ الْاٰلِهَةُ فَاَمَرَ بِهَا فَاُخْرِجَتْ فَاُخْرِجَ صُوْرَةُ اِبْرَاهِيْمَ وَ اِسْمَاعِيْلَ فِيْ اَيْدِيْهِمَا مِنَ الْاَزْلَامِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاتَلَهُمُ اللّٰهُ لَقَدْ عَلِمُوْا مَا اسْتَقْسَمَا بِهَا قَطُّ ثُمَّ دَخَلَ الْبَيْتَ فَكَبَّرَ فِيْ نَوَاحِي الْبَيْتِ وَ خَرَجَ وَلَمْ يُصَلِّ فِيْهِ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنْ اَيُّوْبَ وَ قَالَ وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۹۹: اسحاق. عبدالصمد. ذ هغهٔ پلار. ایوب. عکرمه. ابن عباسؓ نه روایت کوي هغه فرمائي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه مکے ته تشریف راوړلو، نو کعبه کښې (ډیر) بُتان وو، حضورؐ کعبه کښې ذ داخلیدو نه ایسار شولو، نو ذ هغے بُتانو ذ اوښکلو حکم ئے اوکړ، هغه اوښکلے شو. هغے نه ذ ابراهیمؑ او اسماعیل تصویرونه راوښکلے شو، چه ذ هغوي لاسونو کښې (ذ جوارئ) غشي وو، نو نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائیل، الله دے، دے کافرو سره پو ه شي، دوي ته په ښهٔ شان معلومه ده، چه دے دواړو بزرګانو هیڅ کله ذ جواري غشي نهٔ دي ویشتلي، بیا حضورؐ کعبه کښې داخل شو، او ذ هغے ګُټونو کښې ئے تکبیر (الله اکبر) اووے. او هغے کښې بغیر ذ مونځ کولو نه ئے بهر تشریف راوړلو معمر په واسطه ذ ایوب او وهیب په وسطه ذ ایوب، عکرمه، نبي صلي الله عليه وسلّم نه ذ دے متابع حدیث روایت کړے دے.

## بَاب ۵۰: دُخُوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَعْلٰى مَكَّةَ

## باب ۵۰: ذ نبي صلي الله عليه وسلّم ذ مکے معظمے ذ پاسه طرف نه ذ داخلیدو بیان.

وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبَلَ يَوْمَ الْفَتْحِ مِنْ اَعْلٰى مَكَّةَ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ مُرْدِفًا اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَّ مَعَهُ بِلَالٌ وَّ مَعَهُ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ مِنَ الْحَجَبَةِ حَتّٰى

لیث. یونس. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، چه نبي صلي الله عليه وسلّم ذ مکے ذ فتح په ورځ ذ پاسه حصے نه په خپله سورلئ اسامه بن زید کینولے تشریف راوړلو. حضور صلي الله عليه وسلّم سره بلالؓ او حاجب کعبه عثمان بن طلحهؓ هم وو. حضورؐ جمات کښې خپله سورلي کینوله، او عثمان ته ئے ذ

أَنَاخَ فِي الْمَسْجِدِ فَأَمَرَهُ أَنْ يَأْتِيَ بِمِفْتَاحِ الْبَيْتِ فَدَخَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهُ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَّ بِلَالٌ وَ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ فَمَكَثَ فِيهِ نَهَارًا طَوِيلًا ثُمَّ خَرَجَ فَاسْتَبَقَ النَّاسُ فَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ أَوَّلَ مَنْ دَخَلَ فَوَجَدَ بِلَالًا وَرَآءَ الْبَابِ قَآئِمًا فَسَأَلَهُ أَيْنَ صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَشَارَ لَهُ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَنَسِيتُ أَنْ أَسْأَلَهُ كَمْ صَلَّى مِنْ سَجْدَةٍ.

كعبے دَ چابي راوړلو حکم او کړ، حضورؐ سره اسامه بن زيدؓ، بلالؓ او عثمان بن طلحهؓ کعبه کښې داخل شو او هغې کښې ډير ساعت پورے ايسار وو. بيا حضورؐ بهر تشريف راوړلو، اوس خلقو ورمنډه کړے، دَ ټولونه مخکښې حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ دننه ورغے، هغه دَ دروازے شا، ته حضرت بلالؓ ولاړ اوليدلو، نو دَ هغهٔ نه ئے تپوس او کړ، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مونځ کوم ځائے کړے دے، بلالؓ ورته دَ حضور دَ مونځ کولو ځائے اوښودلو، عبداللّٰهؓ وائي، ما دَ بلالؓ نه دا تپوس کول هير شولو، چه حضورؐ څومره رکعاته کړي وو[۲].

۱. ددے نه مخکښې يو حديث تير شوے دے کوم کښې چه دي چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ ژَورے (جَورے) علاقے نه داخل شو، او حضرت خالد بن وليد رضي اللّٰه عنه ته ئے دَ بَرَنئ علاقے نه داخليدلو حکم ورکړو. په دے روايت کښې د هغې نه خلاف ده يعني پخپله حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د بَرَنئ علاقے نه داخل شوے وو. اکثرو محدّثينو دے روايت له ترجيح ورکړے ده.

۲. اوس په يو روايت کښې راغلي وو چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم بيت اللّٰه کښې دننه مونځ نه وو کړے او په دے حديث کښې ددے نه خلاف دي دا يو اوکد بحث دے او دَ امامانو په دے کښې اختلاف دے چه حضورؐ بيت اللّٰه کښې دننه مونځ کړے وو او که نه. ددے قِسم حديث مخکښې هم تير شوے دے او نوټ پرے هم ليکلے شوے دے.

۴۳۰۰: حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ خَارِجَةَ حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَامَ الْفَتْحِ مِنْ كَدَآءٍ الَّتِي بِأَعْلَى مَكَّةَ تَابَعَهُ أَبُو أُسَامَةَ وَ وُهَيْبٌ فِي كَدَاءٍ.

۴۳۰۰: هيثم بن خارجه. حفص بن ميسره. هشام بن عروه. دَ هغهٔ پلار بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ مکے دَ فتح په ورځ دَ کداء نه چه دَ مکے دَ پاسه حصه کښې دے، داخل شولو. ابو اسامه او، وهيب کداء کښې دَ دے متابع حديث روايت کړے دے.

۴۳۰۱: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ سَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ مِنْ اَعْلٰى مَكَّةَ مِنْ كَدَاءٍ.

۴۳۰۱: عبيد بن اسماعيل. ابو اسامه. هشام دَ خپل پلار نه روايت كوي، حضورؐ دَ مكے دَ فتح په كال دَ مكے دَ پاسه حصے يعني كداء نه داخل شولو.

باب ۵۱: مَنْزِلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ.

باب ۵۱: دَ مكے دَ فتح په ورځ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم دَ راكوزيدو دَ ځائے بيان.

۴۳۰۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى قَالَ مَا اَخْبَرَنَا اَحَدٌ اَنَّهٗ رَاَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّى الضُّحٰى غَيْرُ اُمِّ هَانِيءٍ فَاِنَّهَا ذَكَرَتْ اَنَّهٗ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ اغْتَسَلَ فِيْ بَيْتِهَا ثُمَّ صَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ قَالَتْ لَمْ اَرَهٗ صَلّٰى صَلٰوةً اَخَفَّ مِنْهَا غَيْرَ اَنَّهٗ يُتِمُّ الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ.

۴۳۰۲: ابو الوليد. شعبه. عمرو. ابن ابي ليلٰي نه روايت كوي، مونږ ته دَ اُم هاني نه سِوا بل هيڅا اونه ښودل، چه هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ چاشت په مونځ كولو ليدلے دے، هغه وائي، حضور صلي الله عليه وسلّم دَ مكے دَ فتح په ورځ دَ هغے په كور كښې غسل اوكړلو، او اته ركعاته مونځ ئے اوكۀ، هغه وائي، ما دَ حضور صلي الله عليه وسلّم دَ دے مونځ نه آسان (مختصر) هيڅ مونځ نۀ دے ليدلے. خو دا چه حضورؐ به ركوع او سجده پوره طور سره ادا كوله.

باب ۵۲:

باب ۵۲: (دَ دے باب څۀ سرخي نشته).

۴۳۰۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْ رُكُوْعِهٖ وَ سُجُوْدِهٖ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَ بِحَمْدِكَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ.

۴۳۰۳: محمد بن بشار. غندر. شعبه. منصور. ابوالضحي. مسروق. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، نبي صلي الله عليه وسلّم به خپلے ركوع او سجده كښې دا لوستل: اے الله، ته پاك ئے، اے خمونږ پروردګاره، مونږ ستا حمد بيانوو، اے الله ما اوبښې.

۴۳۰۴: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ

۴۳۰۴: ابوالنعمان. ابو عوانه. ابو بشر. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، حضرت

سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ عُمَرُ يُدْخِلُنِي مَعَ اَشْيَاخِ بَدْرٍ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِمَ تُدْخِلُ هٰذَا الْفَتٰى مَعَنَا وَ لَنَا اَبْنَاءٌ مِثْلُهٗ فَقَالَ اِنَّهٗ مِمَّنْ قَدْ عَلِمْتُمْ قَالَ فَدَعَاهُمْ ذَاتَ يَوْمٍ وَ دَعَانِيْ مَعَهُمْ قَالَ وَمَا رَاَيْتُهٗ دَعَانِيْ يَوْمَئِذٍ اِلَّا لِيُرِيَهُمْ مِنِّيْ فَقَالَ مَا تَقُوْلُوْنَ اِذَا جَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ وَ رَاَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُوْنَ حَتّٰى خَتَمَ السُّوْرَةَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ اُمِرْنَا اَنْ نَحْمَدَ اللّٰهَ وَ نَسْتَغْفِرَهٗ اِذَا نُصِرْنَا وَ فُتِحَ عَلَيْنَا وَ قَالَ بَعْضُهُمْ لَا نَدْرِيْ وَلَمْ يَقُلْ بَعْضُهُمْ شَيْئًا فَقَالَ لِيْ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ اَكَذَاكَ تَقُوْلُ قُلْتُ هُوَ اَجَلُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْلَمَهُ اللّٰهُ لَهٗ اِذَا جَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ فَتْحُ مَكَّةَ فَذَاكَ عَلَامَةُ اَجَلِكَ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ اِنَّهٗ كَانَ تَوَّابًا قَالَ عُمَرُ مَا اَعْلَمُ مِنْهَا اِلَّا مَا تَعْلَمُ.

عمرؓ به زهٔ (خپل مجلس کښې) مشائخ بدر سره کښېنولم، نو بعضو هغوي کښې اووے، تاسو دا هلک، چه ذَ هغهٔ برابر خمونږ اولاد دے، مونږ سره ولے کښېنوئے، هغوي جواب راکړهٔ، بیا تاسو ابن عباسؓ کومو خلقو (طبقه) کښې شمارئے. ابن عباسؓ وائي بیا یو ورځ ئے هغوي او هغوي سره زهٔ هم، خو پوهے چه زهٔ پوهیږم، صرف دے دَ پاره راﺍغبنتلو، چه هغوي ته خما دَ طرف نه (خما علمي) کمال اوښائي نو حضرت عمرؓ خلقوته اووے، اِذَا جَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ الخ سورت متعلق ستاسو څهٔ رائے ده. بعضو اووے، هر کله چه اللّٰه خمونږ مدد کوي، او فتح راته عطا کوي، نو هغهٔ مونږ ته دَ حمد و استغفار حکم کړے دے. بعضو اووے، مونږ ته نهٔ ده معلومه، بعضو هیڅ او، نه وے، حضرت عمرؓ ماته اووے، اے ابن عباسؓ، ستا هم دغه خیال دے، ما اووے، نه، هغهٔ اوفرمائیل، بیا تهٔ څهٔ وائے، ما اووے، هر کله چه اللّٰه مدد اوکهٔ، او دَ مکے فتح حاصله شوه، نو اللّٰه خپل رسول صلي اللّٰه علیه وسلّم ته دَ وفات خبر ورکهٔ، دَ مکے فتح ستاسوٌ دَ وفات علامت دے، نو تاسو دَ اللّٰه تعالٰي حمد، تسبیح او استغفار کوئے، بیشکه اللّٰه پاک قبلونکے دے، حضرت عمرؓ اوفرمائیل، خما هم دغه خیال دے، کوم چه ستا دے.

۳۰۵: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ شُرَحْبِيْلَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ شُرَيْحٍ الْعَدَوِيِّ اَنَّهٗ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ سَعِيْدٍ وَهُوَ يَبْعَثُ الْبُعُوْثَ اِلٰى مَكَّةَ ائْذَنْ لِيْ اَيُّهَا الْاَمِيْرُ اُحَدِّثْكَ قَوْلًا قَامَ بِهٖ رَسُوْلُ

۳۰۵: سعید بن شرحبیل. لیث. مقبري. ابو شریح عدوي. عمرو بن سعید ته. هر کله چه هغه مکے طرف ته لښکر لیږلو، اووے، اے امیره، ماله اجازت راکړه، چه زهٔ تاته دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم هغه قول چه حضورٌ دَ فتح مکے په دویمه ورځ فرمائیلے وو، بیان کړم، حضورٌ نه دا خبره خما غوږونو واوریده او زړهٔ

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَدَ مِنْ يَوْمِ الْفَتْحِ سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ وَ وَعَاهُ قَلْبِيْ وَ أَبْصَرَتْهُ عَيْنَايَ حِيْنَ تَكَلَّمَ بِهِ حَمِدَ اللّٰهَ وَ أَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ مَكَّةَ حَرَّمَهَا اللّٰهُ وَلَمْ يُحَرِّمْهَا النَّاسُ لَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ أَنْ يَسْفِكَ بِهَا دَمًا وَّلَا يَعْضِدُ بِهَا شَجَرًا فَإِنْ أَحَدٌ تَرَخَّصَ لِقِتَالِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهَا فَقُوْلُوْا لَهُ إِنَّ اللّٰهَ أَذِنَ لِرَسُوْلِهِ وَلَمْ يَأْذَنْ لَكُمْ وَ إِنَّمَا أَذِنَ لِيْ فِيْهَا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ وَّقَدْ عَادَتْ حُرْمَتُهَا الْيَوْمَ كَحُرْمَتِهَا بِالْأَمْسِ وَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَقِيْلَ لِأَبِيْ شُرَيْحٍ مَاذَا قَالَ لَكَ عَمْرٌو قَالَ قَالَ أَنَا أَعْلَمُ بِذٰلِكَ مِنْكَ يَا أَبَا شُرَيْحٍ إِنَّ الْحَرَمَ لَا يُعِيْذُ عَاصِيًا وَّلَا فَارًّا بِدَمٍ وَّلَا فَارًّا بِخَرْبَةٍ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الْخَرْبَةُ الْبَلِيَّةُ.

محفوظ اوساتله، او كوم وخت چه حضورؐ دا خبره كوله نو حضورؐ ته څما سترګو كتل، حضورؐ دَ الله دَ حمد و ثنا نه پس اوفرمائيل الله مكه حرام جوړه كړے ده. خلقو نهٔ ده جوړه كړے (چه كله غواړي حلاله ئے كړي، او چه كله غواړي، حرامه ئے كړي) كوم سړے چه الله او دَ آخرت په ورځ ايمان لري، هغهٔ دَ پاره مكه كښې خون ريزي كول او دَ مكے اُونه وهل جائز نهٔ دي، كه څوك دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ فتح مكے دَ ورځ دَ قتال نه استدلال اوكړي نو تاسو هغهٔ ته دا جواب وركړے، چه الله خپل رسول ته دَ دے اجازت وركړے وو، او تاسوله ئے اجازت نهٔ دے دركړے، او ماته ئے هم ډير لږ وخت دَ پاره اجازت راكړے وو. نو نن دَ هغے حرمت داسے دے، څنګه چه پرون وو، او دا خبره دے موجود خلق، غير موجود خلقوته اورسوي. ابو شريح نه تپوس اوشو، بيا عمرو تاته څهٔ اووے، هغهٔ اووے، عمرو دا جواب اوكهٔ اے ابو شريح، په دے خبره زهٔ تانه زيات پوهيږم (ليكن) حرم (مكه) يو ګنهګار، قاتل او مفسد له پناه نهٔ وركوي (يعني دا خلق دَ دے دَ حرمت نه مستثنيٰ دي).

۳۰۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ أَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِيْ رَبَاحٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ عَامَ الْفَتْحِ وَهُوَ بِمَكَّةَ إِنَّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ حَرَّمَ بَيْعَ الْخَمْرِ.

۳۰۶: قتيبه. ليث. يزيد بن ابي حبيب. عطاء بن ابي رباح. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلّم دَ فتح مكے په كال چه حضورؐ مكه كښې وو، او فرمائيل، الله او دَ هغهٔ رسول دَ شرابو خريد و فروخت حرام كړے دے.

باب۵۳: مَقَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ زَمَنَ الْفَتْحِ.

باب۵۳: ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم ذَ مكے ذ فتح زمانه كښې مكه كښې ذَ ايساريدلو بيان.

۳۰۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ يَحْيَى ابْنِ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ اَقَمْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرًا نَقْصُرُ الصَّلٰوةَ.

۳۰۷: ابو نعيم. سفيان (دويم سند) قبيصه. سفيان. يحيي بن ابي اسحاق. حضرت انسؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، مونږ نبي صلي الله عليه وسلّم سره لس ورخو پورے مكه كښې ايسار وو، او ذَ قصر مونځ به مو كولو.

ف: قصر: كوم مونځ چه سفر كښې كولے شي يعني ذَ څلورو ركعاتو په ځائے دوه ركعاته كول.

۳۰۸: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عَاصِمٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ اَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ تِسْعَةَ عَشَرَ يَوْمًا يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ.

۳۰۸: عبدان، عبدالله، عاصم، عكرمه، حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي ذَ هغهٔ بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم مكه كښې نورلس (۱۹) ورځے ايسار وو. او دوه ركعاته به ئے كول[۱].

۱. دا د فتح مكے واقعه ده. احناف دومره مودے پورے په مكه كښے د قيام باوجود د قصر كولو تاويل دا هم بيان كړے دے چه ممكنه ده حضور صلي الله عليه وسلّم د اِقامت نيت نه وو كړے او هغوئ هيلته خپل اقامت په حالاتو باندے موقوف لرلے وي، ولے چه د مكے فتحے نه پس د حُنين غزا له تلل وُو. ددے نه علاوه په دے سفر كښے په مكه كښے د حضورؐ د اقامت موده مختلف فيه ده. په بعضو روايتونو كښے د پنځلسو ورځو موده هم بيانه شوے ده. ددے نه مخكښے د اَنس رضي الله عليه په روايت كښے په مكه كښے صرف د لسو ورځو د قيام بيان دے. دا په حجة الوداع كښے شوي وُو.

۳۰۹: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اَبُوْ شِهَابٍ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ اَقَمْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ تِسْعَ عَشْرَةَ نَقْصُرُ الصَّلٰوةَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَّ نَحْنُ نَقْصُرُ مَا بَيْنَنَا وَ بَيْنَ تِسْعَ عَشْرَةَ فَاِذَا زِدْنَا اَتْمَمْنَا.

۳۰۹: احمد بن يونس، ابو شهاب، عاصم، حضرت ابن عباسؓ نه روايت دے، ذَ هغهٔ بيان دے، مونږ نبي صلي الله عليه وسلم سره فتح مكه كښې ذَ سفر په حالت كښې نورلس (۱۹) ورځے ايسار وو. د قصر مونځ به مو كولو، ابن عباسؓ وائي، مونږ نورلس (۱۹) ورځے كښې قصر مونځ كولو، كه نور زيارت ايسار شوے وے نو پوره مونځ به مو كولے.

باب ۵۴: وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَخْبَرَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ ثَعْلَبَةَ ابْنِ صُعَيْرٍ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ مَسَحَ وَجْهَهُ عَامَ الْفَتْحِ.

باب ۵۴: ليث، يونس، ابن شهاب، عبدالله بن ثعلبه بن صعير نه روايت كوي، دَ هغهٔ په مخ حضور صلي الله عليه وسلم دَ فتح مكې په ورځ لاس راښكلې وو.

۳۱۰: حَدَّثَنِي اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سُنَيْنٍ اَبِيْ جَمِيْلَةَ قَالَ اَخْبَرَنَا وَ نَحْنُ مَعَ ابْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ وَ زَعَمَ اَبُوْ جَمِيْلَةَ اَنَّهُ اَدْرَكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ خَرَجَ مَعَهُ عَامَ الْفَتْحِ.

۳۱۰: ابراهيم بن موسٰي. هشام. معمر. زهري. سنين ابي جميله وائي، مونږ ابن مسيب سره ملګري وو. زهري وائي، مونږ ته ابو جميله اووې، چه هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم ليدلې دې، او حضورؐ سره دَ فتح مكې په كال تلې وو.

۳۱۱: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ اَلَا تَلْقَاهُ فَتَسْاَلَهُ قَالَ فَلَقِيْتُهُ فَسَاَلْتُهُ فَقَالَ كُنَّا بِمَآءٍ مَمَرَّ النَّاسِ وَ كَانَ يَمُرُّ بِنَا الرُّكْبَانُ فَنَسْاَلُهُمْ مَا لِلنَّاسِ مَا هٰذَا الرَّجُلُ فَيَقُوْلُوْنَ يَزْعَمُ اَنَّ اللّٰهَ اَرْسَلَهُ اَوْحٰى اِلَيْهِ اَوْ اَوْحَى اللّٰهُ بِكَذَا فَكُنْتُ اَحْفَظُ ذٰلِكَ الْكَلَامَ وَ كَاَنَّمَا يُغْرٰى فِيْ صَدْرِيْ وَ كَانَتِ الْعَرَبُ تَلَوَّمُ بِاِسْلَامِهِمُ الْفَتْحَ فَيَقُوْلُوْنَ اتْرُكُوْهُ وَ قَوْمَهُ فَاِنَّهُ اِنْ ظَهَرَ عَلَيْهِمْ فَهُوَ نَبِيٌّ

۳۱۱: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ايوب. قلابه. عمرو بن سلمه نه روايت دې ايوب وائي، ماته ابو قلابه اووې، ته چه عمرو بن سلمه سره يوځائې شې، نو ولې تپوس ترې نهٔ كوې، هغه وائي، زهٔ هغهٔ سره يوځائې شوم او دَ هغهٔ نه مې تپوس اوكهٔ، هغهٔ جواب راكهٔ، مونږ په يوه چينه (چشمه) چه هلته دَ خلقو ګزر ګاه وو، اوسيدلو. خمونږ خوا كښې به قافلې تيريدلې، مونږ به دَ هغې قافلو نه تپوس كولو دَ خلقو څهٔ حال دې، او دَ (مدعي نبوت) سړي څهٔ حالت دې، هغوي به جواب راكولو، هغه مدعي دعوي كوي، چه هغه دَ الله رسول دې هغهٔ ته وحي كيږي، يا دائې اووې، چه الله به هغهٔ ته كومه وحي راليږله، ما به هغه كلام يادولو، ګويا هغه خما په سينه كښې محفوظ دې او اهل عرب خپل اسلام راوړلو كښې دَ فتح مكې انتظار كولو، او دا به ئې وئيل،

صَادِقٌ فَلَمَّا كَانَتْ وَقْعَةُ أَهْلِ الْفَتْحِ بَادَرَ كُلُّ قَوْمٍ بِإِسْلَامِهِمْ وَبَدَرَ أَبِي قَوْمِي بِإِسْلَامِهِمْ فَلَمَّا قَدِمَ قَالَ جِئْتُكُمْ وَاللَّهِ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقًّا فَقَالَ صَلُّوا صَلَاةَ كَذَا فِي حِينِ كَذَا وَصَلُّوا كَذَا فِي حِينِ كَذَا فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ أَحَدُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ أَكْثَرُكُمْ قُرْآنًا فَنَظَرُوا فَلَمْ يَكُنْ أَحَدٌ أَكْثَرَ قُرْآنًا مِنِّي لِمَا كُنْتُ أَتَلَقَّى مِنَ الرُّكْبَانِ فَقَدَّمُونِي بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَأَنَا ابْنُ سِتٍّ أَوْ سَبْعِ سِنِينَ وَكَانَتْ عَلَيَّ بُرْدَةٌ كُنْتُ إِذَا سَجَدْتُ تَقَلَّصَتْ عَنِّي فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنَ الْحَيِّ أَلَا تُغَطُّونَ عَنَّا اسْتَ قَارِئِكُمْ فَاشْتَرَوْا فَقَطَعُوا لِي قَمِيصًا فَمَا فَرِحْتُ بِشَيْءٍ فَرَحِي بِذَلِكَ الْقَمِيصِ.

چه حضورؐ او دَ هغوي قوم (قريش) ترک کړے، که حضورؐ غالب راغے، نو ريښتنے نبي دے، هر کله چه دَ فتح مکے واقعه اوشوه، نو هر قوم اسلام راوړلو کښې سبقت اوکړلو، او څما پلار هم دَ خپل قوم په مسلمانيدو کښې تادي کوله. او مسلمانيدو نه پس چه واپس راغے، نو وئيلے ئے، په خدائے چه زهٔ تاسو ته دَ نبي برحق صلي الله عليه وسلّم دَ طرف نه راغلے يم، هغوي فرمائيلے دي، چه فلاني فلاني وخت بانديے داسے مونځ کوئے، هر کله چه دَ مونځ وخت راشي، نو يو سړے دے آذان اوکړي، او چاته چه زيات قرآن ياد وي، هغه دے امام جوړ شي، ما به دَ قافلے والو نه قرآن يادولو، په دے وجه هغوي کښې څما نه هيچا ته قرآن زيات ياد نهٔ وو. زهٔ دَ شپږو يا اوو کالو ووم، چه هغوي زهٔ (امامت دَ پاره) مخکښې کړم، او څما په جسم يو څادر وو، کله چه به ما سجده کوله، نو هغه به پورته شو (او جسم به م ظاهر شولو) نو دَ قبيلے يوے ښځے اووے، تاسو دَ خپل قاري (امام) کوناتي مونږ نه ولے نهٔ پټوئے، هغوي کپړه ما دَ پاره په بيع واخسته، او يو قميص ئے راله جوړ کړلو، زهٔ دومره هيڅ څيز سره نهٔ ووم خوشحاله شوے، څومره چه دغے قميص سره.

۴۳۰۲: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ

۴۳۰۲: عبدالله بن مسلمه. مالک. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، هغه وائي، عتبه بن ابي وقاص خپل ورور سعد بن ابي وقاص ته وئيلے وو، دَ زمعه دَ وينځے هلک واخله. او عتبه وئيلے وو، هغه څما څوئے دے، هر کله چه

قَالَتْ كَانَ عُتْبَةُ بْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَهِدَ اِلٰى اَخِيْهِ سَعْدٍ اَنْ يَّقْبِضَ ابْنَ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ وَ قَالَ عُتْبَةُ اِنَّهُ ابْنِيْ فَلَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ فِي الْفَتْحِ اَخَذَ سَعْدُ بْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍ ابْنَ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ فَاَقْبَلَ بِهٖ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَقْبَلَ مَعَهُ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ فَقَالَ سَعْدُ بْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍ هٰذَا ابْنُ اَخِيْ عَهِدَ اِلَيَّ اَنَّهُ ابْنُهُ قَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا اَخِيْ هٰذَا ابْنُ زَمْعَةَ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِهٖ فَنَظَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى ابْنِ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ فَاِذَا اَشْبَهُ النَّاسِ بِعُتْبَةَ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ هُوَ اَخُوْكَ يَا عَبْدَ بْنَ زَمْعَةَ مِنْ اَجْلِ اَنَّهُ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِهٖ وَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجِبِيْ مِنْهُ يَا سَوْدَةُ لِمَا رَاٰى مِنْ شَبَهِ عُتْبَةَ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَ لِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ وَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَ كَانَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ يَصِيْحُ بِذٰلِكَ.

حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د فتح ورځو كښې مكې ته تشريف راوړلو نو سعد بن ابي وقاص، د زمعه د وينځې ځوئې واخست، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ئې راوړلو، او هغۀ سره عبد بن زمعه هم راغې، سعد اووې. دا ځما ورارۀ دې، عتبه ماته وئيلي وو، چه دا د هغۀ هلك دې (بل خوا) عبد بن زمعه اووې، يا رسول اللّٰه، دا ځما ورور دې، د زمعه ځوئې دې، د هغۀ په بستره پېدا شوې دې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه بچي طرف ته اوكتل، نو هغه د عتبه بن ابي وقاص زيات مشابه وو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اې عبد بن زمعه، دې واخله. دا ستا ورور دې، ځكه چه دې د هغۀ په بستره پېدا شوې دې. او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. اې سودهؓ د دۀ نه پرده كوه ځكه چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغۀ مشابهت د عتبه بن ابي وقاص په شان ليدلې وو، ابن شهاب په واسطه د بي بي عائشېؓ روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، بچې د هغۀ دې، د چا په بستره چه پېدا شي، او زناكار د پاره كانړي دي. ابن شهاب وائي، حضرت ابوهريرهؓ به دا حديث په اوچت آواز بيانولو.

۳۱۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ

۳۱۴: محمد بن مقاتل. عبداللّٰه. يونس.

۱۳۴۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدِ بْنِ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمَ حُنَيْنٍ اَقْبَلَتْ هَوَازِنُ وَ غَطَفَانُ وَ غَيْرُهُمْ بِنَعَمِهِمْ وَ ذَرَارِيِّهِمْ وَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةُ الْآفٍ مِّنَ الطُّلَقَاءِ فَاَدْبَرُوْا عَنْهُ حَتّٰى بَقِيَ وَحْدَهُ فَنَادٰى يَوْمَئِذٍ نِدَاءَيْنِ لَمْ يَخْلِطْ بَيْنَهُمَا الْتَفَتَ عَنْ يَمِيْنِهِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْاَنْصَارِ قَالُوْا لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَبْشِرْ نَحْنُ مَعَكَ ثُمَّ الْتَفَتَ عَنْ يَسَارِهِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْاَنْصَارِ قَالُوْا لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَبْشِرْ نَحْنُ مَعَكَ وَهُوَ عَلٰى بَغْلَةٍ بَيْضَاءَ فَنَزَلَ فَقَالَ اَنَا عَبْدُ اللّٰهِ وَ رَسُوْلُهُ فَانْهَزَمَ الْمُشْرِكُوْنَ فَاَصَابَ يَوْمَئِذٍ غَنَائِمَ كَثِيْرَةً فَقَسَمَ فِي الْمُهَاجِرِيْنَ وَالطُّلَقَاءِ وَلَمْ يُعْطِ الْاَنْصَارَ شَيْئًا فَقَالَتِ الْاَنْصَارُ اِذَا كَانَتْ شَدِيْدَةٌ فَنَحْنُ نُدْعٰى وَ يُعْطَى الْغَنِيْمَةَ غَيْرُنَا فَبَلَغَهُ ذٰلِكَ فَجَمَعَهُمْ فِيْ قُبَّةٍ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْاَنْصَارِ مَا حَدِيْثٌ بَلَغَنِيْ عَنْكُمْ فَسَكَتُوْا فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْاَنْصَارِ اَلَا تَرْضَوْنَ اَنْ يَّذْهَبَ النَّاسُ بِالدُّنْيَا وَ تَذْهَبُوْنَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۱۳۴۱: محمد بن بشار. معاذ بن معاذ. ابن عون. هشام بن زيد بن انس بن مالک. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، د حنينؐ په ورځ قبيلهٔ هوازن او غطفان وغيره خپلو څناورو او بال بچ سره مقابلې له راغلل، حضور صلي الله عليه وسلّم سره لس زره (مهاجر او انصار) او څهٔ نو مسلم وو، نو دوي اوتښتيدل، حتي چه حضورؐ يوازې پاتې شو، نو حضورؐ دوه آوازونه داسې اوکړل، چه بالکل صاف او واضحه وو. حضورؐ ښي طرف ته مخ کړ، وې فرمائيل، اې جماعت انصار، هغوي اووې، مونږ حاضر يو، يا رسول الله، تاسو فکر مهٔ کوئې، مونږ ستاسو رکاب کښې حاضر يو. حضورؐ دغه وخت په سپينه قچره سور وو، نو راکوز شولو، او وې فرمائيل، زهٔ د الله بنده او رسول يم، مشرکانو شکست اوخوړ. په دغه ورځ ډير مال غنيمت حاصل شولو، حضور صلي الله عليه وسلّم مهاجرينو او طلقاؤ بانديې تقسيم کړلو. او انصارو ته ئې هيڅ ورنهٔ کړل. (څنې) انصارو اووې، د سختي په وخت خو مونږ يادېږو، او مال غنيمت نوروته ورکولې شي، حضورؐ ته چه دا خبره معلومه شوه، نو حضورؐ هغوي يوه خيمه کښې راجمع کړل، او وې فرمائيل، اې د انصارو جماعته، دا څنګه خبره ده، چه ماته ستاسو د جانب نه رارسيدلې ده. انصار خاموش شو، حضورؐ ورته اوفرمائيل تاسو په دې راضي نهٔ ئې، چه خلق دُنيا يوسي، او تاسو خپلو کورونوته د الله رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحُوْزُوْنَهُ إِلَى بُيُوْتِكُمْ قَالُوْا بَلَى فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا وَ سَلَكَتِ الْأَنْصَارُ شِعْبًا لَسَلَكْتُ وَادِيَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ هِشَامٌ يَا أَبَا حَمْزَةَ وَ أَنْتَ شَاهِدٌ ذَاكَ قَالَ وَ أَيْنَ أَغِيْبُ عَنْهُ.

سره لاړ شي، هغوي اوويل، مونږ به دې راضي يو، بيا حضورﷺ اوفرمائيل، كه خلق يو ميدان كښې روان شي، او انصار بل غاښي كښې، نو زه به د انصارو غاښي اختيار كړم، هشام (د حضرت انسؓ نه) تپوس او كړ، اې ابو حمزه ته هغه وخت موجود وې، هغه اوويل، زه د حضورﷺ نه جدا كله ووم.

## بَابٌ ۵۸ : السَّرِيَّةِ الَّتِيْ قِبَلَ نَجْدٍ.

## باب ۵۸ : نجد طرف ته د دستې د روانګي بيان.

۴۳۴۲ : حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمٰنِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ حَدَّثَنَا أَيُّوْبُ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ؓ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً قِبَلَ نَجْدٍ فَكُنْتُ فِيْهَا فَبَلَغَتْ سِهَامُنَا اثْنَي عَشَرَ بَعِيْرًا وَ نُفِّلْنَا بَعِيْرًا فَرَجَعْنَا بِثَلٰثَةَ عَشَرَ بَعِيْرًا.

۴۳۴۲ : ابو النعمان. حماد. ايوب. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دې، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم چه نجد طرف ته كومه دسته ليږلې وه، زه هغې كښې (مال غنيمت كښې) شريك ووم، خمونږ حصه كښې دولس دولس اوښان راغلل. بيا يو يو اوښ مونږ ته زيات حاصل شو. ديارلس ديارلس اوښان مونږ واخستل، واپس شو.

## باب ۵۹ : بَعْثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ إِلَى بَنِيْ جَذِيْمَةَ.

## باب ۵۹ : بني جزيمه طرف ته د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د خالد بن وليد د ليږلو بيان.

۴۳۴۳ : حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ وَ حَدَّثَنِيْ نُعَيْمٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ إِلَى بَنِيْ جَذِيْمَةَ فَدَعَاهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ فَلَمْ يُحْسِنُوْٓا أَنْ يَّقُوْلُوْا أَسْلَمْنَا فَجَعَلُوْا يَقُوْلُوْنَ

۴۳۴۳ : محمود. عبدالرزاق. معمر. (دويم سند) نعيم. عبداللّٰه. معمر. زهري. سالم. د خپل پلار نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم، خالد بن وليد، بنو جزيمه طرف ته اوليږلو. خالد هغوي ته د اسلام دعوت وركړ، هغوي دا دعوت خو قبول كړلو، (خو ژبې سره) هغوي "مونږ مسلمانان شو" وئيل" بنه نشو وئيلې، نو داسې ئې اوويل، چه مونږ بې دينه شو، خو حضرت خالدؓ د هغوي قتلول او قيدول

صَبَأْنَا صَبَأْنَا فَجَعَلَ خَالِدٌ يَقْتُلُ مِنْهُمْ وَ يَأْسِرُ وَ دَفَعَ اِلٰى كُلِّ رَجُلٍ مِنَّا اَسِيْرَهُ فَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَا اَقْتُلُ اَسِيْرِيْ وَلَا يَقْتُلُ رَجُلٌ مِنْ اَصْحَابِيْ اَسِيْرَهُ حَتّٰى قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْنَاهُ فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَبْرَأُ اِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدٌ مَرَّتَيْنِ.

شروع كړل، او قيديان ئې مونږ كښې هر يو ته حواله كړل. يو ورځ حضرت خالدؓ مونږ ته دَ خپل خپل قيدي دَ قتلولو حكم اوكړ، نو ما اووې، قسم په خدائې، نه به زهٔ خپل قيدي اونهٔ به څما ملګري خپل خپل قيديان قتل كړي، تردې چه مونږ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم په خدمت كښې واپس راغلو، ما حضورؐ ته واقعه ذكر كړه، حضور صلي الله عليه وسلّم لاس اوچت كړل، دوه ځله ئې اوفرمائيل، اے اللّٰه، زهٔ دَ خالدؓ دَ دې فعل نه بري يم.

## بَابٌ ٦٠ : سَرِيَّةِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ وَ عَلْقَمَةَ بْنِ مُجَزِّزٍ الْمُدْلِجِيِّ وَ يُقَالُ اِنَّهَا سَرِيَّةُ الْاَنْصَارِ.

## باب ٦٠ : دَ عبداللّٰه بن حذافه سهمي دَ دستې بيان او دَ علقمه بن مجزز مدلجي دَ دستې او دې ته "سريه انصار" هم وئيلې شي.

۳۴۴۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعْدُ بْنُ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً فَاسْتَعْمَلَ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ وَ اَمَرَهُمْ اَنْ يُطِيْعُوْهُ فَغَضِبَ قَالَ: اَلَيْسَ اَمَرَكُمُ النَّبِيُّ (صلعم) اَنْ تُطِيْعُوْنِيْ قَالُوْا بَلٰى قَالَ فَاجْمَعُوْا لِيْ حَطَبًا فَجَمَعُوْا فَقَالَ اَوْقِدُوْا نَارًا فَاَوْقَدُوْهَا فَقَالَ ادْخُلُوْهَا فَهَمُّوْا وَ جَعَلَ بَعْضُهُمْ يُمْسِكُ بَعْضًا وَ يَقُوْلُوْنَ فَرَرْنَا اِلَى

۳۴۴۴: مسدد. عبدالواحد. اعمش. سعد بن عبيده. ابو عبدالرحمٰن. حضرت عليؓ نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم يو دسته اوليږله، دَ هغې امير ئې يو انصاري مقرر كړلو، او اهل دسته ته ئې دَ هغهٔ دَ اطاعت حكم وركړلو. هغې امير له غصه ورغله، او وې وئيل، آيا حضور صلي الله عليه وسلّم تاسو ته څما دَ اطاعت حكم نهٔ دې دركړې، خلقو اووې، او، راكړې دې. نو هغهٔ اووې، ما دَ پاره لرګي جمع كړئې، چه لرګي جمع كړې شو، نو هغهٔ اووې، دې ته اور ورته كړې، اُور ورته كړې شو. بيا هغهٔ اووې، دې ته ورننوځئې. خلقو ورننوتلو اراده اوكړله، خو يو بل ئې دَ ورننوتلو نه منع كول، او وئيلې، مونږ دَ دوزخ نه راتښتيدلي يُو، او دَ حضور صلي الله عليه وسلّم پناه مو آخستې ده. هغوي

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ النَّارِ. فَمَا زَالُوْا حَتّٰى خَمَدَتِ النَّارُ فَسَكَنَ غَضَبُهُ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْ دَخَلُوْهَا مَا خَرَجُوْا مِنْهَا إِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوْفِ.

برابر دے شش و پنج کښې وو، حتي چه هغه اُور مړ شولو، او دَ هغې امیر غصه هم کمه شوه. کوم وخت چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ته (دَ دے واقعې) پته اُولګیده، نو حضورؐ اوفرمائیل، که هغوي دے اُورته ورغلې وے، نو دَ قیامته پورے به ترے نۀ وے وتلې. فرمانبرداري نیک کار کښې ده.

**باب ۱۶۱: بَعْثِ أَبِيْ مُوْسٰى وَ مُعَاذٍ إِلَى الْيَمَنِ قَبْلَ حَجَّةِ الْوِدَاعِ.**

**باب ۱۶۱: دَ حجة الوداع نه مخکښې دَ ابو موسیٰؓ او معاذؓ یمن ته دَ لیږلو بیان.**

۴۳۴۵: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا أَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ أَبِيْ بُرْدَةَ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَا مُوْسٰى وَ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ إِلَى الْيَمَنِ قَالَ وَ بَعَثَ كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا عَلٰى مِخْلَافٍ قَالَ وَالْيَمَنُ مِخْلَافَانِ ثُمَّ قَالَ يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا وَ بَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا فَانْطَلَقَ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا إِلٰى عَمَلِهِ وَ كَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا إِذَا سَارَ فِيْ أَرْضِهِ كَانَ قَرِيْبًا مِّنْ صَاحِبِهِ أَحْدَثَ بِهِ عَهْدًا فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَسَارَ مُعَاذٌ فِيْ أَرْضِهِ قَرِيْبًا مِنْ صَاحِبِهِ أَبِيْ مُوْسٰى فَجَاءَ يَسِيْرُ عَلٰى بَغْلَتِهِ حَتّٰى انْتَهٰى إِلَيْهِ فَإِذَا هُوَ جَالِسٌ وَقَدِ اجْتَمَعَ إِلَيْهِ النَّاسُ وَ إِذَا رَجُلٌ عِنْدَهُ قَدْ جُمِعَتْ يَدَاهُ إِلٰى عُنُقِهِ فَقَالَ لَهُ مُعَاذٌ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ قَيْسٍ أَيَّمَ هٰذَا قَالَ هٰذَا

۴۳۴۵: موسیٰ. ابو عوانه. عبدالملک. ابو برده نه روایت کوي، هغه وائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم، ابو موسیٰؓ او معاذ بن جبلؓ یمن طرف ته اولیږل، او هر یو ئے جُدا جُدا صوبے ته اولیږلو. دَ یمن دوه صوبے وے. بیا حضورؐ اوفرمائیل، تاسو دواړه نرمي کوئے، سختي مۀ کوئے، خلق خوشحاله ساتئے، خفه کوئے ئے مه، هر یو خپل خپل حکومت ته لاړلو. ابو برده وائي، دوي کښې به هر یو دَ خپل حکومت حدودو کښې چکر لګولو، او هغه حصه به دَ هغه بل ملګري ته قریب وه، نو هغه به ملاقات سره سلام علیک کولو. معاذ بن جبل دَ ابو موسیٰ حدود ته قریب خپل حدود کښې په خپله قچره سیل کولو سره سره ابو موسیٰ له راغې. ابو موسیٰؓ ناست وو، او یو سړے چه دَ هغۀ متې (مشکیں) تړلې شوې وې، او خلق ترے کیر چاپیره جمع وو، هغۀ سره وو. معاذ دَ ابو موسیٰ نه تپوس اوکۀ، اے عبداللّٰه بن قیس، دا سړے څوک دے، هغۀ ورته اووے، دا سړے دَ اسلام راوړلو نه پس مرتد شوے دے. معاذؓ اووے، څو

رَجُلٌ كَفَرَ بَعْدَ اِسْلَامِهٖ قَالَ لَا اَنْزِلُ حَتّٰى يُقْتَلَ قَالَ اِنَّمَا جِيْءَ بِهٖ لِذٰلِكَ فَانْزِلْ قَالَ مَا اَنْزِلُ حَتّٰى يُقْتَلَ فَاَمَرَ بِهٖ فَقُتِلَ ثُمَّ نَزَلَ فَقَالَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ كَيْفَ تَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ قَالَ اَتَفَوَّقُهٗ تَفَوُّقًا قَالَ فَكَيْفَ تَقْرَأُ اَنْتَ يَا مُعَاذُ قَالَ اَنَامُ اَوَّلَ اللَّيْلِ فَاَقُوْمُ وَقَدْ قَضَيْتُ جُزْئِيْ مِنَ النَّوْمِ فَاَقْرَأُ مَا كَتَبَ اللّٰهُ لِيْ فَاَحْتَسِبُ نَوْمَتِيْ كَمَا اَحْتَسِبُ قَوْمَتِيْ.

پورې دې قتل نه کړې، زۀ دَ سورلۍ نه، نۀ کوزیږم. ابو موسٰي ورته اووې دې خو قتل دَ پاره راوستې شوې دې، نو تاسو راکوز شئې. معاذ اووې، څو پورې چه دې قتل نشي، زۀ نۀ کوزیږم، نو دَ ابو موسٰي په حکم هغه سړې قتل کړې شو. بیا معاذ دَ قچرې نه راکوز شو. معاذ تپوس اوکۀ، اې عبدالله، تۀ قرآن څنګه وائې، هغۀ ورته اووې زۀ اول شپه کښې اودۀ کیږم. بیا دَ خوب نه پس راپاسم، او څومره چه خدائې ته منظوره وي، اولولم (یا مونځ اوکړم) زۀ خپل خوب کښې هم دَ عبادت برابر ثواب ګڼړم.

۳۴۶: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَهٗ اِلَى الْيَمَنِ فَسَاَلَهٗ عَنْ اَشْرِبَةٍ تُصْنَعُ بِهَا فَقَالَ وَمَا هِيَ قَالَ الْبِتْعُ وَالْمِزْرُ فَقُلْتُ لِاَبِيْ بُرْدَةَ مَا الْبِتْعُ قَالَ نَبِيْذُ الْعَسَلِ وَالْمِزْرُ نَبِيْذُ الشَّعِيْرِ فَقَالَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ رَوَاهُ جَرِيْرٌ وَعَبْدُ الْوَاحِدِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ.

۳۴۶: اسحاق. خالد. شیباني. سعید بن ابو برده، دَ هغۀ پلار. ابو موسٰي اشعري نه روایت کوي، حضور صلي الله علیه وسلّم مونږ یمن طرف ته اولیږلو، نو ابو موسٰي دَ یمني شرابو مسئله دَ حضورؐ نه وپښتله، حضورؐ ورته اوفرمائیل، هغه کوم کوم قسم شراب دي، ابو موسٰي ورته اووې بتع او مزر. سعید راوي وائي، ما ابو برده نه تپوس اوکۀ، چه بتع کوم قسم شراب دي، هغۀ اووې، دَ شهدو (شاتو) شراب. او مزر دَ وربشو شراب، نو حضورؐ جواب ورکۀ، چه هر نشه دار څیز حرام دې. دا روایت، جریر په واسطه دَ عبدالواحد، شیباني، ابو برده نه روایت کړې دې.

۳۴۷: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَدَّهٗ اَبَا مُوْسٰى وَمُعَاذًا اِلَى الْيَمَنِ

۳۴۷: مسلم. شعبه. سعید بن ابو برده. دَ هغۀ پلار نه روایت کوي، چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ هغۀ نیکه (دادا) ابو موسٰي او معاذ یمن طرف ته اولیږل، او ورته ئې اوفرمائیل، نرمي کوئې، سختي مه کوئې، خلق خوشحاله ساتئې، خفه کوئې ئې مه. او تاسو،

فَقَالَ يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا وَ بَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا وَ تَطَاوَعَا فَقَالَ اَبُوْ مُوْسٰى يَا نَبِيَّ اللّٰهِ اِنَّ اَرْضَنَا بِهَا شَرَابٌ مِّنَ الشَّعِيْرِ الْمِزْرُ وَ شَرَابٌ مِّنَ الْعَسَلِ الْبِتْعُ فَقَالَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ فَانْطَلَقَا فَقَالَ مُعَاذٌ لِاَبِيْ مُوْسٰى كَيْفَ تَقْرَاُ الْقُرْاٰنَ قَالَ قَائِمًا وَّ قَاعِدًا وَّ عَلٰى رَاحِلَتِيْ وَ اَتَفَوَّقُهٗ تَفَوُّقًا قَالَ اَمَّآ اَنَا فَاَنَامُ وَ اَقُوْمُ فَاَحْتَسِبُ نَوْمَتِيْ كَمَا اَحْتَسِبُ قَوْمَتِيْ وَ ضَرَبَ فُسْطَاطًا فَجَعَلَا يَتَزَاوَرَانِ فَزَارَ مُعَاذٌ اَبَا مُوْسٰى فَاِذَا رَجُلٌ مُّوْثَقٌ فَقَالَ مَا هٰذَا فَقَالَ اَبُوْ مُوْسٰى يَهُوْدِيٌّ اَسْلَمَ ثُمَّ ارْتَدَّ فَقَالَ مُعَاذٌ لَاَضْرِبَنَّ عُنُقَهٗ تَابَعَهُ الْعَقَدِيُّ وَ وَهْبٌ وَ اَبُوْ دَاوُدَ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَوَاهُ جَرِيْرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيْدِ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ.

دواړه متفق اوسئ، ابو موسٰي اووې، يا رسول الله، ځمونږ ملک کښې دَ وربشو شراب مزر (نومې) او دَ شاتو شراب بتع (نومې) دي. (دَ دې څۀ حکم دے) حضورؐ ورته اوفرمائيل، هر نشه دار څيز حرام دے، نو دا دواړه لاړل. معاذ ابو موسٰي نه تپوس اوکۀ، تۀ څنګه قرآن لولې، هغۀ ورته اووې، په ولاړه، په ناسته، په سورلۍ پـه قرار قرار لولم. معاذ اووې، زۀ خو اُودۀ شم، بيا راپاسم او خپل خوب کښې هم هغه ثواب ګنړم، کوم چه خپل عبادت کښې ګنړم. بيا ابو موسٰي يوه خيمه نصب کړه، او دَ يو بل ملاقات به کيدلو، (يوه ورځ) معاذ، ابو موسٰي له راغې، نو يو سړے ئې اوليد، چه متې ورله تړلې شوې وې. معاذ اووې، دا څۀ قصه ده. ابو موسٰي جواب ورکۀ، دا يهودي وو، اوس دَ اسلام راوړلو نه پس مرتد شوے دے. معاذ اووې. زۀ به دَ دۀ ګردن اووهم، عقدي او وهب دَ شعبه نه دَ دې متابع حديث روايت کۀ، او وکيع، نضر، او ابو داود په واسطه دَ شعبه، سعيد، دَ هغۀ پلار، دَ هغۀ دَ نيکه (دادا) نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت اوکۀ، او جرير بن عبدالحميد پـه واسطه دَ شيباني، ابو برده نه روايت اوکۀ.

۳۴۸: حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ عَنْ اَيُّوْبَ بْنِ عَائِذٍ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيُّؓ قَالَ بَعَثَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى اَرْضِ قَوْمِيْ فَجِئْتُ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنِيْخٌ بِالْاَبْطَحِ فَقَالَ

۳۴۸: عباس بن وليد. عبدالواحد. ايوب بن عائد. قيس بن مسلم. طارق بن شهاب. حضرت ابو موسٰي اشعريؓ نه روايت کوي، دَ هغۀ بيان دے، زۀ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ځما دَ قوم ملک ته (دَ عامل په حيثيت) اوليږلم. هغه وخت حضورؐ (مقام) ابطح کښې تيکاؤ وو، حضورؐ تپوس اوکۀ، اے عبدالله بن قيس، آيا تا احرام تړلے دے، ما عرض اوکۀ، او، يا رسول الله، حضورؐ

أَحَجَجْتَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ قَيْسٍ قُلْتُ
نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ كَيْفَ قُلْتَ
قَالَ قُلْتُ لَبَّيْكَ اِهْلَالًا كَاِهْلَالِكَ قَالَ
فَهَلْ سُقْتَ مَعَكَ هَدْيًا قُلْتُ لَمْ اَسُقْ
قَالَ فَطُفْ بِالْبَيْتِ وَاسْعَ بَيْنَ الصَّفَا
وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ حِلَّ فَفَعَلْتُ حَتّٰى
مَشَطَتْ لِيْ امْرَأَةٌ مِّنْ نِّسَاءِ بَنِيْ قَيْسٍ
وَ مَكُثْنَا بِذٰلِكَ حَتّٰى اسْتُخْلِفَ عُمَرُ.

۴۳۴۹: حَدَّثَنِيْ حِبَّانُ اَخْبَرَنَا
عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ زَكَرِيَّاءَ بْنِ اِسْحَاقَ عَنْ
يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ صَيْفِيٍّ عَنْ
اَبِيْ مَعْبَدٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَالَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
لِمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ حِيْنَ بَعَثَهُ اِلَى الْيَمَنِ
اِنَّكَ سَتَاْتِيْ قَوْمًا مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ
فَاِذَا جِئْتَهُمْ فَادْعُهُمْ اِلٰى اَنْ يَّشْهَدُوْا
اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ
اللّٰهِ فَاِنْ هُمْ اَطَاعُوْا لَكَ بِذٰلِكَ
فَاَخْبِرْهُمْ اَنَّ اللّٰهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ
خَمْسَ صَلَوٰتٍ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ وَّ لَيْلَةٍ
فَاِنْ هُمْ اَطَاعُوْا لَكَ بِذٰلِكَ فَاَخْبِرْهُمْ
اَنَّ اللّٰهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ صَدَقَةً
تُؤْخَذُ مِنْ اَغْنِيَائِهِمْ فَتُرَدُّ عَلٰى
فُقَرَائِهِمْ فَاِنْ هُمْ اَطَاعُوْا لَكَ بِذٰلِكَ
فَاِيَّاكَ وَ كَرَائِمَ اَمْوَالِهِمْ وَاتَّقِ دَعْوَةَ
الْمَظْلُوْمِ فَاِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ اللّٰهِ

اوفرمائیل، تا څنګه وئیلي وو، ما عرض اوکړه، ما وئیلي
وو، اے اللّٰه، زۀ حاضر یم، او ستاسو په شان احرام م تړلے
دے. حضورؐ اوفرمائیل، آیا تا خان سره قرباني راوستے
ده، ما عرض اوکړه، نه، حضورؐ اوفرمائیل، دَ بیت اللّٰه
طواف اوکړه، او دَ صفا مروه سعي اوکړه، نو احرام پرانزه.
ما دغسے اوکړل، تردے چه دَ بني قیس یوه ښځے ماله
ګومنز هم اوکړه (یعني سر، ئے راله ګومنز کړلو) او
مونږ دَ حضرت عمرؓ خلافت پورے دغسے کول.

۴۳۴۹: حبان. عبداللّٰه. زکریا بن اسحاق.
یحیٰي بن عبداللّٰه بن صیفي، دَ حضرت ابن عباس
آزاد کړده غلام ابو معبد حضرت ابن عباسؓ نه
روایت کوي، دَ هغۀ بیان دے، حضور صلي اللّٰه
علیه وسلّم، معاذؓ یمن ته لیږلو، ورته ئے اوفرمائیل، تۀ به
اهل کتابو ته ځے، کوم وخت چه ور اورسے، نو هغه خلق
کلمۀ توحید او شهادت طرف ته اوبله، که هغوي دا
دعوت قبول کړي، او اسلام راوړي، نو بیا هغوي له دا
تعلیم ورکړه، چه اللّٰه په هغوي شپه او ورځ کښې پنځه
مونځونه فرض کړي دي، که هغوي اومني، نو بیا ورته دا
اوښایه، چه اللّٰه په هغوي زکٰوة فرض کړے دے، چه
مالدارو نه به اخستلے شي او (دَ هغوي) غریبانو کښې به
تقسیمولے شي. که هغوي ستا دا خبره اُومني نو تاله دَ
هغوي دَ اعلٰي مال (زکٰوة کښې) آخستو نه بچ کیدل
پکار دي، او دَ مظلوم دَ بد دُعا نه ویره کوه، ځکه چه دَ
هغۀ دَ بد دُعا او دَ اللّٰه مینځ کښې هیڅ پرده نشته. ابو
عبداللّٰه (امام بخاريؒ) وائي، چه طَوَّعَتْ، طَاعَتْ او
اَطَاعَتْ یو لغت دے، او طِعْتُ، طَعْتُ او اَطَعْتُ یو معني

حِجَابٌ قَالَ

دي.

۳۵۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ أَنَّ مُعَاذًا لَمَّا قَدِمَ الْيَمَنَ صَلَّى بِهِمُ الصُّبْحَ فَقَرَأَ وَاتَّخَذَ اللّٰهُ إِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ لَقَدْ قَرَّتْ عَيْنُ أُمِّ إِبْرَاهِيمَ زَادَ مُعَاذٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ حَبِيبٍ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ فَقَرَأَ مُعَاذٌ فِي صَلٰوةِ الصُّبْحِ سُوْرَةَ النِّسَاءِ فَلَمَّا قَالَ وَاتَّخَذَ اللّٰهُ إِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا قَالَ رَجُلٌ خَلْفَهُ قَرَّتْ عَيْنُ أُمِّ إِبْرٰهِيْمَ.

۳۵۰: سليمان بن حرب. شعبه. حبيب بن ابي ثابت. سعيد بن جبير. عمرو بن ميمون نه روايت كوي، معاذ بن جبل يمن ته راغے، لو خلقوته ئے ذ سحر مونځ كښې دا آيت اولوست، چه اللّٰه ابراهيم عليه السلام دوست جوړ كړلو، نو يو سړي اووے، ذ ابراهيم عليه السلام ذ مور سترګے يخے شوے[1]، معاذ په واسطه ذ شعبه، حبيب، سعيد، عمرو، دے روايت كښې زياتے دا شان بيان كړے دے، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم معاذ يمن ته اوليږلو، معاذ ذ سحر په مونځ كښې سورة نساء اولوست. كوم وخت چه دا آيت راغے، چه "اللّٰه ابراهيم عليه السلام دوست جوړ كړلو" نو يو سړي ذ ورستو نه اووے، ذ ابراهيمؑ ذ مور سترګے يخے شوے.

[1]. يعني تر اوسه د يمن خلقوته دا معلومه نه وه چه په مونځ كښے خبرو كولو سره مونځ ماتيږي، په دے وجه كله چه هغوئ په مانځه كښے د ابراهيم عليه السلام صفت واوريدو، نو دغه فقره ئے اوويله. د سترګو يخوالي نه مراد مسرت او خوشالي ده.

## بَابٌ ٦٢: بَعْثِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَخَالِدِ بْنِ الْوَلِيْدِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ إِلَى الْيَمَنِ قَبْلَ حَجَّةِ الْوِدَاعِ.

## باب ۶۲: ذ حضرت عليؓ بن ابي طالب او خالد بن وليد ذ حجة الوداع نه مخكښې يمن ته ذ روانګي بيان.

۳۵۱: حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ ابْنِ إِسْحَاقَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ حَدَّثَنِي أَبِي

۳۵۱: احمد بن عثمان. شريح بن مسلمه. ابراهيم بن يوسف بن اسحاق بن ابي اسحاق. ذ هغهٔ پلار ابو اسحاق. حضرت براءؓ نه روايت كوي، مونږ حضور صلي اللّٰه عليه

عَنْ اَبِیْ اِسْحٰقَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ ؓ بَعَثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيْدِ اِلَى الْيَمَنِ قَالَ ثُمَّ بَعَثَ عَلِيًّا بَعْدَ ذٰلِكَ مَكَانَهُ فَقَالَ مُرْ اَصْحَابَ خَالِدٍ مَنْ شَاءَ مِنْهُمْ اَنْ يُعَقِّبَ مَعَكَ فَلْيُعَقِّبْ وَمَنْ شَاءَ فَلْيُقْبِلْ فَكُنْتُ فِيْمَنْ عَقَّبَ مَعَهُ قَالَ فَغَنِمْتُ اَوَاقِيَ ذَوَاتِ عَدَدٍ.

وسلّم خالد بن وليد سره يمن ته اوليږلو بيائے ذ هغهٔ په ځائے حضرت عليؓ اوليږلو، او وے فرمائيل، ذ خالد ملګروته اووايه، چه څوک تاسره تلل غواړي، نو لاړ دے شي، او څوک چه راتلل غواړي، رادے شي (براءؓ وائي) زهٔ حضرت عليؓ سره ذ تلونکو نه ووم، او ماته غنيمت کښې ډير اوقيه حاصل شوے وو.

ف: اوقيه: يو اوقيه ذ څلويښت درهمو وي.

۳۵۲: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سُوَيْدِ بْنِ مَنْجُوْفٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا اِلَى خَالِدٍ لِيَقْبِضَ الْخُمُسَ وَ كُنْتُ اُبْغِضُ عَلِيًّا وَقَدِ اغْتَسَلَ فَقُلْتُ لِخَالِدٍ اَلَا تَرٰى اِلَى هٰذَا فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرْتُ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ يَا بُرَيْدَةُ اَتُبْغِضُ عَلِيًّا فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ لَا تُبْغِضْهُ فَاِنَّ لَهُ فِي الْخُمُسِ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ.

۳۵۲: محمد بن بشار. روح بن عباده. علي بن سويد بن منجوف. عبدالله بن بريده ذ خپل پلار بريده نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم حضرت عليؓ، حضرت خالدؓ ته ذ خمسؓ راوړلو ذ پاره اوليږلو. حضرت عليؓ هغے کښې يوه وينزه واخسته. څما خيال راغے، چه هغهٔ خيانت اوکهٔ، نو زهٔ ذ هغهٔ مخالف شوم. او لطف پرے دا چه هغهٔ ذ شپے هغے سره خلوت اوکهٔ، او سحر ئے غسل اوکهٔ! نو ما خالدؓ ته اووے، تهٔ دے نهٔ وينے، (چه خيانت ئے اوکه) کوم وخت چه مونږ نبي صلي الله عليه وسلّم له راغلو، ما حضورؐ ته دا خبره ذکر کړه، نو وے فرمائيل، اے بريده، آيا تهٔ ذ عليؓ مخالف ئے، ما عرض اوکهٔ، او، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، مخالفت مهٔ کوه، ذ هغهٔ حصه خو خمس کښې ذ دے نه هم زياته ده.

۱. هغهٔ ته دا شُبه شوے وه چه علي رضي الله عنه په ناجائزه طريقه باندے د خُمس نه يوه وينزه اخستے ده او هغے سره هم بستر شوے دے او په همدے وجه ئے غسل کړے دے.

۳۵۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ

۳۵۳: قتيبه. عبدالواحد. عماره بن قعقاع بن

حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ شُبْرُمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِیْ طَالِبٍ رَضِیَ عَنْهُ اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْيَمَنِ بِذُهَيْبَةٍ فِیْ اَدِيْمٍ مَقْرُوْظٍ لَمْ تُحَصَّلْ مِنْ تُرَابِهَا قَالَ فَقَسَمَهَا بَيْنَ اَرْبَعَةِ نَفَرٍ بَيْنَ عُيَيْنَةَ بْنِ بَدْرٍ وَّ اَقْرَعَ بْنِ حَابِسٍ وَّ زَيْدِ الْخَيْلِ وَالرَّابِعُ اِمَّا عَلْقَمَةُ وَ اِمَّا عَامِرُ بْنُ الطُّفَيْلِ فَقَالَ رَجُلٌ مِّنْ اَصْحَابِهٖ كُنَّا نَحْنُ اَحَقَّ بِهٰذَا مِنْ هٰؤُلَاءِ قَالَ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَلَا تَأْمَنُوْنِیْ وَ اَنَا اَمِيْنُ مَنْ فِی السَّمَآءِ يَأْتِيْنِیْ خَبَرُ السَّمَآءِ صَبَاحًا وَّ مَسَآءً قَالَ فَقَامَ رَجُلٌ غَائِرُ الْعَيْنَيْنِ مُشْرِفُ الْوَجْنَتَيْنِ نَاشِزُ الْجَبْهَةِ كَثُّ اللِّحْيَةِ مَحْلُوْقُ الرَّاْسِ مُشَمَّرُ الْاِزَارِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اتَّقِ اللّٰهَ قَالَ وَيْلَكَ اَوَلَسْتُ اَحَقَّ اَهْلِ الْاَرْضِ اَنْ يَّتَّقِیَ اللّٰهَ قَالَ ثُمَّ وَلَّی الرَّجُلُ قَالَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا اَضْرِبُ عُنُقَهٗ قَالَ لَا لَعَلَّهٗ اَنْ يَّكُوْنَ يُصَلِّیْ فَقَالَ خَالِدٌ وَكَمْ مِّنْ مُّصَلٍّ يَقُوْلُ بِلِسَانِهٖ مَا لَيْسَ فِیْ قَلْبِهٖ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّیْ لَمْ

شبرمه. عبدالرحمٰن بن ابي نعم. ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي، حضرت عليؓ د يمن نه رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته د پاره رنګ شوي د څرمنې تهيلۍ کښې لږ شان سرۀ زر (سونا) راوليږل، چه د هغې خاوره د هغې سرو (زرو) نه جدا کړے شوي نۀ وه (تازه د کان نه راوتي وو) حضورؐ هغه د څلورو سړو: عيينه بن بدر، اقرع بن حابس، زيد بن خيل او څلورم علقمه يا، عامر بن طفيل مينځ کښې تقسيم کړلو. د حضورؐ اصحابوؓ کښې يو سړي اووې، مونږ د دې خلقو نه د دې زيات مستحق يُو، حضورؐ ته چه دا خبره معلومه شوه، نو وې فرمائيل، آيا ستاسو په ما اطمينان نشته، حالانکه زۀ د آسمان واله امين يم، ماته سحر مابنام د آسمان واله خبرونه راځي، نو يو سړي چه سترګے ورته ورپريوتے وې، د مخ هډوکي نے راختلے وو، اوچت تندے، ګنړه ږيره، خريلے سر وو، او په بند لے اوچت کړے وو، اودريد، او وې وئيل يا رسول الله، د الله نه اويريږه. حضورؐ ورته اوفرمائيل، تۀ هلاک شے، آيا زۀ تمام روئے زمين کښې د الله تعالیٰ نه د زيات د ويريدلو مستحق نۀ يم. بيا هغه سړے لاړلو، نو خالد بن وليد عرض اوکۀ، يا رسول الله، آيا زۀ د هغۀ ګردن والۀ لوخوم. حضورؐ ورته اوفرمائيل نه، ممکن ده، هغه مونځ کوي (يعني ظاهري اسلام سره هغه د قتل مستحق نۀ وي) خالدؓ عرض اوکۀ، او ډير داسے مونځ ګزار دي، چه ژبے سره داسے خبرے کوي، چه د هغوي زړۀ کښې نۀ وي (يعني منافق وي) نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ماته د خلقو د زړونو ګرولو، د هغوي خيټه څيرلو او د باطني حالاتو د معلومولو حکم

اُوْمَرْ اَنْ اَنْقُبَ قُلُوْبَ النَّاسِ وَلَا اَشُقَّ بُطُوْنَهُمْ قَالَ ثُمَّ نَظَرَ اِلَيْهِ وَهُوَ مُقَفٍّ فَقَالَ اِنَّهُ يَخْرُجُ مِنْ ضِئْضِئِ هٰذَا قَوْمٌ يَتْلُوْنَ كِتَابَ اللّٰهِ رَطْبًا لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ وَ اَظُنُّهُ قَالَ لَئِنْ اَدْرَكْتُهُمْ لَاَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ ثَمُوْدَ.

نشته. ابو سعید وائي، هر کله چه هغه سړي شا کړه، نو حضورؐ هغهٔ طرف ته مخ کړلو، او وې فرمائیل، دٰ دې سړي دٰ نسل نه به هغه قوم پیدا کیږي، چه کتاب الله به مزې سره لولي، حالانکه هغه به دٰ هغوي دٰ مرو (غاړو) نه لاندې نهٔ کوزیږي، دین نه به هغوي داسې اوځي، څنګه چه غشې دٰ ښکار نه اوځي. ابو سعید وائي وائي، ماته یاد دي، دالې هم اوفرمائیل، که زهٔ دٰ دې قوم په زمانه کښې وې، نو دٰ قوم ثمود په شان به مې قتل کړې وو.

۳۵۴: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا اَنْ يُقِيْمَ عَلٰى اِحْرَامِهِ زَادَ مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ فَقَدِمَ عَلِيُّ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بِسَعَايَتِهِ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَ اَهْلَلْتَ يَا عَلِيُّ قَالَ بِمَا اَهَلَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاَهْدِ وَامْكُثْ حَرَامًا كَمَا اَنْتَ قَالَ وَ اَهْدٰى لَهُ عَلِيٌّ هَدْيًا.

۳۵۴: مکي بن ابراهیم. ابن جریج. عطاء. جابر نه روایت کوي، نبي صلي الله علیه وسلّم حضرت عليؓ ته حکم ورکړلو، په خپل احرام قائم اوسه. محمد بن ابوبکر په واسطه دٰ ابن جریج، عطاء او جابر دومره زیات روایت کړې دې، چه حضرت عليؓ خپل وصول کړده محصول (دٰ یمن نه) راوړې وو، نو هغهٔ ته حضورؐ اوفرمائیل، اې عليؓ تا کوم احرام تړلې دې، هغهٔ اووې، ما دٰ نبي صلي الله علیه وسلّم په شان احرام تړلې دې. حضورؐ ورته اوفرمائیل، تهٔ قرباني راولیږه، او حالت احرام کښې اوسه، څنګه چه اوس یې. راوي وائي، حضرت عليؓ حضور صلي الله علیه وسلّم دٰ پاره قرباني لیږلې وه.

۳۵۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ عَنْ حُمَيْدِ الطَّوِيْلِ حَدَّثَنَا بَكْرٌ اَنَّهُ ذَكَرَ لِابْنِ عُمَرَ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَّ حَجَّةٍ فَقَالَ اَهَلَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ

۳۵۵: مسدد. بشر بن مفضل. حمید طویل. بکر نه روایت کوي، هغه وائي، ما ابن عمرؓ ته ذکر اوکړ، انس خلقوته دا بیان کوي، چه نبي صلي الله علیه وسلّم دٰ حج او عمرې احرام تړلې وو، نو هغهٔ اوفرمائیل، چه نبي صلي الله علیه وسلّم دٰ حج احرام اوتړلو. او مونږ هم حضورؐ سره دٰ حج احرام اوتړلو. کوم وخت چه مونږ

وَ اَهْلَلْنَا بِهٖ مَعَهٗ فَلَمَّا قَدِمْنَا مَكَّةَ قَالَ مَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهٗ هَدْیٌ فَلْيَجْعَلْهَا عُمْرَةً وَ كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدْیٌ فَقَدِمَ عَلَيْنَا عَلِيُّ بْنُ اَبِیْ طَالِبٍ مِّنَ الْيَمَنِ حَاجًّا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَ اَهْلَلْتَ فَاِنَّ مَعَنَا اَهْلَكَ قَالَ اَهْلَلْتُ بِمَا اَهَلَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاَمْسِكْ فَاِنَّ مَعَنَا هَدْيًا.

مکے ته راغلو، نو حضورؐ اوفرمائيل، چا چه خان سره قرباني نه وي راوستے، هغه دے دا احرام ذ عمرے احرام جوړ کړي (او عمره دے ادا کړي، چه حلال شي) او نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ذ قرباني خناور وو. بيا حضرت عليؓ ذ يمن نه ذ حج په اراده راغے، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغهٔ ته اوفرمائيل، اے عليؓ، تا کوم قسم احرام تړلے دے، خکه چه مونږ سره ستا کور واله دي، هغهٔ ورته اووے، ما د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په شان احرام تړلے دے، حضورؐ ورته اوفرمائيل، نو تهٔ ذ احرام حالت کښ اوسه، خکه چه مونږ سره قرباني خو شته.

## بَـــابُ ٦٣ : غَــــزْوَةِ ذِی الْخَلَصَةِ.

## بـــاب ٦٣ : ذ غـــزوهٔ ذي الـــخـــلـــصـــه بيان.

۳۵٦: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا بَيَانٌ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيْرٍ قَالَ كَانَ بَيْتٌ فِی الْجَاهِلِيَّةِ يُقَالُ لَهٗ ذُو الْخَلَصَةِ وَالْكَعْبَةُ الْيَمَانِيَّةُ وَالْكَعْبَةُ الشَّامِيَّةُ فَقَالَ لِیَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا تُرِيْحُنِیْ مِنْ ذِی الْخَلَصَةِ فَنَفَرْتُ فِیْ مِائَةٍ وَّ خَمْسِيْنَ رَاكِبًا فَكَسَرْنَاهُ وَ قَتَلْنَا مَنْ وَّجَدْنَا عِنْدَهٗ فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهٗ فَدَعَا لَنَا وَلِاَحْمَسَ.

۳۵٦: مسدد. خالد. بيان. قيس. جرير نه روايت دے، هغه وائي، زمانه جاهليت کښ يو مکان وو، چه هغے ته ئے ذي الخلصه، کعبه يمانيه او کعبه شاميه وئيلے، ما ته حضورؐ اوفرمائيل، آيا تهٔ به ما ته ذ ذي الخلصه (ذ فکر نه) نجات رانه کړے. (چه هغه اوغرخوے) نو زهٔ يو نيم سل سورو سره روان شوم، هغه م اوغرخوله، او کوم خلق چه ذ هغے خواوشا ته وو، هغه مو قتل کړل، بيا زهٔ راغلم، او حضورؐ ته م ذ دے اطلاع ورکړله، نو حضورؐ مونږ او قبيلهٔ احمس ذ پاره دُعا اوکړله.

ف: ذوالخلصه: يو بت خانه وه. هغے ته به ئے کعبه يمانيه يا شاميه وے، هلته به ذ بُتانو عبادت کيدلو.

۳۵۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا

۳۵۷: محمد بن مثني. يحيي. اسمٰعيل. قيس. جرير نه روايت کوي، ما ته حضور صلي اللّٰه

إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا قَيْسٌ قَالَ قَالَ لِيْ جَرِيْرٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا تُرِيْحُنِيْ مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ وَ كَانَ بَيْتًا فِيْ خَثْعَمَ يُسَمَّى الْكَعْبَةَ الْيَمَانِيَةَ فَانْطَلَقْتُ فِيْ خَمْسِيْنَ وَ مِائَةِ فَارِسٍ مِنْ اَحْمَسَ وَ كَانُوْا اَصْحَابَ خَيْلٍ وَ كُنْتُ لَا اَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ فَضَرَبَ فِيْ صَدْرِيْ حَتّٰى رَاَيْتُ اَثَرَ اَصَابِعِهٖ فِيْ صَدْرِيْ وَ قَالَ اللّٰهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا فَانْطَلَقَ اِلَيْهَا فَكَسَرَهَا وَ حَرَّقَهَا ثُمَّ بَعَثَهُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ جَرِيْرٍ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا جِئْتُكَ حَتّٰى تَرَكْتُهَا كَاَنَّهَا جَمَلٌ اَجْرَبُ قَالَ فَبَارَكَ فِيْ خَيْلِ اَحْمَسَ وَ رِجَالِهَا خَمْسَ مَرَّاتٍ.

عليه وسلّم اوفرمائيل' آيا ته به ماته ذ ذي الخلصه (ذ فكر) نه نجات رانهٔ كړې' هغه قبيلهٔ خثعم كښې يو مكان وو' چه هغې ته ئې كعبه يمانيه وئيلې' نو زهٔ ذ قبيلهٔ احمس يو نيم سل سورو سره روان شوم' او هغوي (يعني خما ملګري) په اسونو وو' او زهٔ په آس ټينګيدې نهٔ شوم' نو حضور صلي الله عليه وسلّم خما په سينه لاس راپريښودو' حتي چه ذ حضورﷺ ذ ګوتو مبارکو نښه ما په خپله سينه اوليدله' حضورﷺ اوفرمائيل' اې الله' دهٔ له (په آس) ټينګيدل ورکړې' او دې هدايت کونکې او هدايت يافته جوړ کړې. هغه کعبه يمانيه ته اورسيد' او هغه ئې راوغرځوله' او وې سوزوله' بيا هغهٔ حضورﷺ ته قاصد وليږلو' هغې قاصد جرير حضورﷺ ته عرض اوکړ' قسم دې په هغه ذات چه تاسو' ئې حق سره رالیږلې ئې' زهٔ چه ذ هغې ځائې نه راروان شوې يم' نو هغه مکان ذ خارښي اوښ په شان (اوسوزيد) او تک تور شولو' نو حضورﷺ پنځه ځله ذ احمس سورو' او پيادو ته دُعا اوکړله.

۳۵۸: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيْرٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا تُرِيْحُنِيْ مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ فَقُلْتُ بَلٰى فَانْطَلَقْتُ فِيْ خَمْسِيْنَ وَ مِائَةِ فَارِسٍ مِنْ اَحْمَسَ وَ كَانُوْا اَصْحَابَ خَيْلٍ وَ كُنْتُ لَا اَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ فَذَكَرْتُ

۳۵۸: يوسف بن موسٰي. ابو اسامه. اسماعيل بن ابي خالد. قيس. جرير نه روايت کوي' هغه وائي' ماته نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' آيا ته به ماته ذ ذي الخلصه (ذ فکر) نه نجات رانهٔ کړې. ما عرض اوکړ' ضرور به نجات درکړم' نو زهٔ ذ قبيلهٔ احمس يو نيم سل سورو سره روان شوم' هغوي ټول په آسونو سواره وو' او زهٔ په آس ټينګيدې نهٔ شوم' ما نبي صلي الله عليه وسلّم ته ذ دې ذکر اوکړ' نو حضورﷺ خما په سينه لاس اووهلو'

ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَرَبَ يَدَهٗ عَلٰى صَدْرِيْ حَتّٰى رَاَيْتُ اَثَرَ يَدِهٖ فِيْ صَدْرِيْ وَ قَالَ اَللّٰهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَّهْدِيًّا فَمَا وَقَعْتُ عَنْ فَرَسٍ بَعْدُ قَالَ وَ كَانَ ذُو الْخَلَصَةِ بَيْتًا بِالْيَمَنِ لِخَثْعَمَ وَ بَجِيْلَةَ فِيْهِ نُصُبٌ يُعْبَدُ يُقَالُ لَهُ الْكَعْبَةُ قَالَ فَاَتَاهَا فَحَرَّقَهَا بِالنَّارِ وَ كَسَرَهَا قَالَ وَلَمَّا قَدِمَ جَرِيْرٌ الْيَمَنَ كَانَ بِهَا رَجُلٌ يَسْتَقْسِمُ بِالْاَزْلَامِ فَقِيْلَ لَهٗ اِنَّ رَسُوْلَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰهُنَا فَاِنْ قَدَرَ عَلَيْكَ ضَرَبَ عُنُقَكَ قَالَ فَبَيْنَمَا هُوَ يَضْرِبُ بِهَا اِذْ وَقَفَ عَلَيْهِ جَرِيْرٌ فَقَالَ لَتَكْسِرَنَّهَا وَلَتَشْهَدَنَّ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَوْ لَاَضْرِبَنَّ عُنُقَكَ قَالَ فَكَسَرَهَا وَ شَهِدَ ثُمَّ بَعَثَ جَرِيْرٌ رَّجُلًا مِّنْ اَحْمَسَ يُكْنٰى اَبَا اَرْطَاةَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا جِئْتُ حَتّٰى تَرَكْتُهَا كَاَنَّهَا جَمَلٌ اَجْرَبُ قَالَ فَبَرَّكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى خَيْلِ اَحْمَسَ وَ رِجَالِهَا خَمْسَ مَرَّاتٍ.

### بـاب ۶۴ : غَـزْوَةِ ذَاتِ السَّلَاسِلِ وَ هِيَ غَزْوَةُ لَخْمٍ وَّ جُذَامٍ

قَالَهٗ اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اَبِيْ خَالِدٍ وَ قَالَ

چه هغه سره ما دَ حضورﷺ دَ لاس مبارک نښه په خپله سينه اوليده' او حضورﷺ اوفرمائيل' اے اللّٰه دے په اَس قائم اوساتے او دے هدايت کونکے او هدايت يافته جوړ کړے. جرير وائي' دَ هغے نه پس زۀ هيڅ کله دَ اَس نه اونۀ غورځيدم' جرير وائي' ذوالخلصه يمن کښ دَ (قبيلۀ) خثعم او بجيله يو مکان وو' چه هغے کښ دَ بُتانو عبادت کيدلو' هغے ته به ئے کعبه هم وئيلے' قيس وائي' کوم وخت چه جرير يمن ته راغے' نو هلته به يَو سړي غشو سره فال اوښکلو' هغۀ ته چا اووے' دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم قاصد دلته دے' که هغۀ ته ستا پته اولګيده' نو ګردن به دے اووهي' راوي وائي' يوه ورځ هغۀ فال اوښکلو' چه جرير هلته ور اورسيد' او هغۀ ته ئے اووے' چه دا غشي مات کړه' او مسلمان شه. ګنے څټ درله وهم هغه غشي مات کړل او مسلمان شو' بيا جرير' دَ (قبيلۀ) احمس يو سړے ابا ارطاة دَ حضورﷺ په خدمت کښ دَ هغے فتح دَ خوشخبري ورکولو دَ پاره اوليږلو' هغه راغے' حضورﷺ ته ئے عرض اوکۀ' يا رسول اللّٰه' قسم دے په هغه ذات' چه تاسو' ئے حق سره راليږلے ئے' زۀ دَ هغے خائے نه راغلے يم' هغه مکان ما اوليد' چه دَ خارشي اوښ په شان (سوزيدلے تور) شوے وو. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ احمس سورو او پيادو ته پنځه ځله دَ برکت دُعا اوکړله.

### باب ۶۴ : دَ غزوۀ سلاسل بيان:

اسمٰعيل بن ابو خالد وئيلے دي' چه دے (قبائل) لخم و جذام سره جنګ شوے وو' او ابن اسحاق په واسطه دَ يزيد' عروه نه

ابْنُ اِسْحٰقَ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ عُرْوَةَ بِلَادُ بَلِيٍّ وَّ عُذْرَةَ وَ بَنِي الْقَيْنِ.

روايت كړے، چه دا دَ (قبائل) بلي، عذره او دَ بنو القين ښارونه دي.

۳۵۹: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ خَالِدِ الْحَذَّاءُ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ عَلٰى جَيْشِ ذَاتِ السَّلَاسِلِ قَالَ فَاَتَيْتُهُ فَقُلْتُ اَيُّ النَّاسِ اَحَبُّ اِلَيْكَ قَالَ عَائِشَةُ قُلْتُ مِنَ الرِّجَالِ قَالَ اَبُوْهَا قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ عُمَرُ فَعَدَّ رِجَالًا فَسَكَتُّ مَخَافَةَ اَنْ يَجْعَلَنِيْ فِيْ اٰخِرِهِمْ.

۳۵۹: اسحٰق. خالد بن عبدالله. خالد خداء. ابو عثمان نه روايت دے، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم جيش ذات السلاسل كښ عمرو بن عاص امير جوړ كړلو، وے ليږلو، عمرو وائي، زهٔ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شوم، تپوس مِ اوكهٔ، چه تاسو ته دَ ټولونه زيات محبوب څوک دے، حضورؐ اوفرمائيل، بي بي عائشهؓ، ما اووے، نارينو كښ، حضورؐ اوفرمائيل دَ هغے پلار (ابوبكرؓ) ما عرض اوكهٔ، بيا څوک، حضورؐ اوفرمائيل، عمرؓ. بيا حضورؐ دَ څو نورو سړو نوم واخست، بس ما دَ دے خوف نه، چه زهٔ دَ ټولونه آخر كښ نشم، خاموش شولم.

باب ۶۵: ذَهَابِ جَرِيْرٍ اِلَى الْيَمَنِ.

باب ۶۵: دَ جرير يمن طرف ته دَ تلو بيان.

۳۶۰: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ الْعَبَسِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ اِدْرِيْسَ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيْرٍ قَالَ كُنْتُ بِالْبَحْرِ فَلَقِيْتُ رَجُلَيْنِ مِنْ اَهْلِ الْيَمَنِ ذَاكَلَاعٍ وَ ذَا عَمْرٍو فَجَعَلْتُ اُحَدِّثُهُمْ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهٗ ذُوْ عَمْرٍو لَئِنْ كَانَ الَّذِيْ تَذْكُرُ مِنْ اَمْرِ صَاحِبِكَ لَقَدْ مَرَّ عَلٰى اَجَلِهٖ مُنْذُ ثَلٰثٍ وَاَقْبَلَا مَعِيَ حَتّٰى اِذَا كُنَّا فِيْ بَعْضِ الطَّرِيْقِ رُفِعَ

۳۶۰: عبدالله بن ابو شيبه عبسي. ابن ادريس. اسمٰعيل بن ابي خالد. قيس. جرير نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے. زهٔ دَ درياب سفر كښ ووم، چه دَ يمن دوو سړو ذو كلاع او ذو عمرو سره مو ملاقات اوشو، ما هغوي ته دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم حديث بيان كولو، هغوي كښ ذو عمرو اووے، كه دا خبره ستاسو دَ نبي صلي الله عليه وسلّم كوي، كومه چه تهٔ كوے، نو دَ هغوي دَ وفات درے ورځے اوشوے، او هغوي دواړه ماسره راغلل، كوم وخت چه مونږ يوه لاره كښ وو، نو دَ مدينے دَ طرف نه مونږ ته څهٔ سوارهٔ په نظر

لَنَا رَكْبٌ مِنْ قِبَلِ الْمَدِيْنَةِ فَسَأَلْنَاهُمْ فَقَالُوْا قُبِضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتُخْلِفَ اَبُوْ بَكْرٍ وَالنَّاسُ صَالِحُوْنَ فَقَالَا اَخْبِرْ صَاحِبَكَ اَنَّا قَدْ جِئْنَا وَلَعَلَّنَا سَنَعُوْدُ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ وَ رَجَعْنَا اِلَى الْيَمَنِ فَاَخْبَرْتُ اَبَا بَكْرٍ بِحَدِيْثِهِمْ قَالَ اَفَلَا جِئْتَ بِهِمْ فَلَمَّا كَانَ بَعْدُ قَالَ لِيْ ذُوْ عَمْرٍو يَا جَرِيْرُ اِنَّ بِكَ عَلَيَّ كَرَامَةً وَ اِنِّيْ مُخْبِرُكَ خَبَرًا اِنَّكُمْ مَعْشَرَ الْعَرَبِ لَنْ تَزَالُوْا بِخَيْرٍ مَا كُنْتُمْ اِذَا هَلَكَ اَمِيْرٌ تَاَمَّرْتُمْ فِيْ اٰخَرَ فَاِذَا كَانَتْ بِالسَّيْفِ كَانُوْا مُلُوْكًا يَغْضَبُوْنَ غَضَبَ الْمُلُوْكِ وَ يَرْضَوْنَ رِضَا الْمُلُوْكِ.

راغلل، مونږ ذ هغوي نه تپوس اوکړ، هغوي اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلم وفات شولو، او د خلقو په مشوره حضرت ابوبکرؓ خليفه شولو، هغے دواړو ماته اووے چه خپل سړي ته اووايه، چه مونږ راغلے وو، او عنقريب به انشاء الله واپس راشو، او هغوي دواړه يمن ته واپس لاړل. ما ابوبکرؓ ته د هغوي خبره اوکړه، نو هغهٔ اووے، چه تا هغوي ځان سره ولے راڼهٔ وستل. بيا دے نه پس ماته ذو عمرو اووے، اے جريره! ته ماته منتشر نې، او زه تاته يوه خبره بنائم، هغه دا چه تاسو اهل عرب به هميشه کامياب ئې، هر کله چه تاسو د يو امير په وفات کېدلو دويم امير جوړوئے، ليکن که دا امارت د توري په ذريعه شي، نو دوي به د بادشاهانو پشان شي، د هغوي په شان غصه کيږي، او د هغوي په شان به راضي کيږي.

بَابٌ ٦٦: غَزْوَةُ سَيْفِ الْبَحْرِ. وَهُمْ يَتَلَقَّوْنَ عِيْرًا لِقُرَيْشٍ وَ اَمِيْرُهُمْ اَبُوْ عُبَيْدَةَ.

باب ٦٦: د غزوه سيف البحر (ساحل سمندر بيان). او دے جنګ کښې د قافله قريش منتظر وو، او د مسلمانانو امير ابو عبيدهؓ وو.

۱ ٦ ۳: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهُ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْثًا قِبَلَ السَّاحِلِ وَ اَمَّرَ عَلَيْهِمْ اَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ وَهُمْ ثَلَاثُ مِائَةٍ فَخَرَجْنَا وَ كُنَّا بِبَعْضِ الطَّرِيْقِ فَنِيَ الزَّادُ فَاَمَرَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ بِاَزْوَادِ الْجَيْشِ فَجُمِعَ فَكَانَ

۱ ٦ ۳: اسماعيل. مالک. وهب بن کيسان. حضرت جابر بن عبداللهؓ نه روايت د هغهٔ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم ابو عبيدهؓ امير جوړ کړ، د درے سوو سړو يو لښکر ئې ساحل طرف ته اوليږلو. مونږ روان شو، لا لار کښې وو، چه د لارے توښه ختمه شوه، ابو عبيده د ټول لښکر د توښے راجمع کولو حکم اوکړلو، نو هغه د قجورو دوه تهيلئ شوے. ابو عبيدهؓ به مونږ ته روزانه لږے لږے راکولے، تردے چه هغه ذخيره هم ختمه شوه. اوس مونږ

مِزْوَدَى تَمْرٍ فَكَانَ يَقُوتُنَا كُلَّ يَوْمٍ قَلِيْلٌ قَلِيْلٌ حَتّٰى فَنِيَ فَلَمْ يَكُنْ يُصِيْبُنَا اِلَّا تَمْرَةٌ تَمْرَةٌ فَقُلْتُ مَا تُغْنِيْ عَنْكُمْ تَمْرَةٌ فَقَالَ لَقَدْ وَجَدْنَا فَقْدَهَا حِيْنَ فَنِيَتْ ثُمَّ انْتَهَيْنَا اِلَى الْبَحْرِ فَاِذَا حُوْتٌ مِثْلُ الظَّرِبِ فَاَكَلَ مِنْهَا الْقَوْمُ ثَمَانَ عَشْرَةَ لَيْلَةً ثُمَّ اَمَرَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ بِضِلَعَيْنِ مِنْ اَضْلَاعِهٖ فَنُصِبَا ثُمَّ اَمَرَ بِرَاحِلَةٍ فَرُحِلَتْ ثُمَّ مَرَّتْ تَحْتَهُمَا فَلَمْ تُصِبْهُمَا.

ته يوه يوه قجوره راكولې شوه، ما جابر ته اووې، يوې قجورې سره به څۀ خېته مړه شي. جابر اووې، ذ هغې يوې قجورې ذ نۀ بيامندو حقيقت هغه وخت معلوم شو، چه هغه يوه قجوره بيا نۀ وه، تردې چه مونږ (ساحل) سمندر ته اورسيدو، نو څۀ ګورو چه يو كب (مچهلی) ذ غر په شان موجود دې. هغې لښكر هغه كب اتلس ورځې پورې اوخوړ بيا ابو عبيدهؓ ذ هغې كب دوه پښتۍ اُودرولې، او يوه سورلۍ ئې ذ هغې لاندې تيره كړه، نو هغې سره ذ لږيدو نه بغير ترې هغه سورلۍ ذ لاندې نه اووتله.

۳۶۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الَّذِيْ حَفِظْنَاهُ مِنْ عَمْرِو ابْنِ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ بَعَثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَ مِائَةِ رَاكِبٍ اَمِيْرُنَا اَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ نَرْصُدُ عِيْرَ قُرَيْشٍ فَاَقَمْنَا بِالسَّاحِلِ نِصْفَ شَهْرٍ فَاَصَابَنَا جُوْعٌ شَدِيْدٌ حَتّٰى اَكَلْنَا الْخَبَطَ فَسُمِّيَ ذٰلِكَ الْجَيْشُ جَيْشُ الْخَبَطِ فَاَلْقٰى لَنَا الْبَحْرُ دَابَّةً يُقَالُ لَهَا الْعَنْبَرُ فَاَكَلْنَا مِنْهُ نِصْفَ شَهْرٍ وَادَّهَنَّا مِنْ وَدَكِهٖ حَتّٰى ثَابَتْ اِلَيْنَا اَجْسَامُنَا فَاَخَذَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ ضِلَعًا مِنْ اَضْلَاعِهٖ فَنَصَبَهٗ فَعَمِدَ اِلٰى اَطْوَلِ رَجُلٍ مَعَهٗ قَالَ سُفْيَانُ مَرَّةً مِّنْ اَضْلَاعِهٖ فَنَصَبَهٗ وَ اَخَذَ رَجُلًا وَ بَعِيْرًا

۳۶۲: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بن دينار. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت كوي، ذ هغۀ بيان دې، مونږ درې سوه سوارۀ نبي صلي الله عليه وسلم ذ حضرت ابو عبيدهؓ اميري كښې ذ قريشو قافلې ته لار نيولو ذ پاره ليږلې وو. مونږ ذ سمندر په ساحل پنځلس ورځې ايسار وو، هته سختې لوږې په مونږ غلبه اوكړه، تردې چه مونږ پاڼړو خوړلو باندې ګزاره كوله، په دې وجه دې ته جيش الخبط (پاڼړو واله لښكر) وائي سمندر عنبر نومې يو كب بهرته راوغرځولو، مونږ هغه پنځلس ورځې اوخوړلو، او مونږ ذ هغې چربي اومږله، نو څمونږ جسمونه په خپل اصلي حالت (ذ غټ والي) راغلل، حضرت ابو عبيدهؓ ذ هغې يوه پښتۍ اُودروله. سفيان كله ذ "ضلعا من اضلاعه" روايت كه، بيا خپلو ملګرو كښې يو اوږود سړې په اوښ كينولو، ذ هغې لاندې ئې تير كړلو،

نَمَرَّ تَحْتَهُ قَالَ جَابِرٌ وَ كَانَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ نَحَرَ ثَلَاثَ جَزَائِرَ ثُمَّ نَحَرَ ثَلٰثَ جَزَائِرَ ثُمَّ نَحَرَ ثَلٰثَ جَزَائِرَ ثُمَّ اِنَّ اَبَا عُبَيْدَةَ نَهَاهُ وَ كَانَ عَمْرٌو يَقُوْلُ اَخْبَرَنَا اَبُوْ صَالِحٍ اَنَّ قَيْسَ بْنَ سَعْدٍ قَالَ لِاَبِيْهِ كُنْتُ فِي الْجَيْشِ فَجَاعُوْا قَالَ انْحَرْ قَالَ نَحَرْتُ قَالَ ثُمَّ جَاعُوْا قَالَ انْحَرْ قَالَ نَحَرْتُ ثُمَّ جَاعُوْا قَالَ انْحَرْ قَالَ نَحَرْتُ قَالَ ثُمَّ جَاعُوْا قَالَ انْحَرْ قَالَ نُهِيْتُ.

نو هغه ذ هغے لاندے بے لګيدو اووتلو. حضرت جابرؓ وائي. ذ لښکر يو سړي درے اوښان ذبح کړل، بيا حضرت ابو عبيدهؓ هغه منع کړلو. عمرو په واسطه ذ ابو صالح قيس بن سعد، ذ هغهٔ ذ پلار نه روايت کوي، چه زهٔ هم دغے لښکر کښې ووم، چه سخت اوږے شو، نو حضرت سعد هغه ته اووے، چه اُوښ ذبح کړه، هغه وائي، ما ذبح کړلو، بيا چه اُوږے شو، نو هغهٔ بيا اووے، چه اُوښ ذبح کړه، ما بيا ذبح کړلو. بيا چه اُوږے شو، هغهٔ اووے، اُوښ ذبح کړه، نو ما ورته اووے، چه زهٔ منع کړے شوے يم.

۳۶۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو اَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا يَقُوْلُ غَزَوْنَا جَيْشَ الْخَبَطِ وَ اُمِّرَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ فَجُعْنَا جُوْعًا شَدِيْدًا فَاَلْقَى الْبَحْرُ حُوْتًا مَيِّتًا لَمْ نَرَ مِثْلَهُ يُقَالُ لَهُ فَاَكَلْنَا مِنْهُ نِصْفَ شَهْرٍ فَاَخَذَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ عَظْمًا مِنْ عِظَامِهٖ فَمَرَّ الرَّاكِبُ تَحْتَهُ فَاَخْبَرَنِيْ اَبُو الزُّبَيْرِ اَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا يَقُوْلُ قَالَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ كُلُوْا فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ ذَكَرْنَا ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كُلُوْا رِزْقًا اَخْرَجَهُ اللّٰهُ اَطْعِمُوْنَا اِنْ كَانَ مَعَكُمْ فَاَتَاهُ بَعْضُهُمْ فَاَكَلَهُ.

۳۶۳: مسدد. يحيي. ابن جريج. عمرو. حضرت جابرؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے کوم وخت چه ذ جيش الخبط جهاد کښې وو او خمونږ امير ابو عبيدهؓ وو، مونږ سخت اوږے شو، نو سمندر يو مړ کب، چه هغے ته عنبر وائي، بهر ته راوغورځولو. مونږ دغسے کب چرته نهٔ وو ليدے. مونږ هغه پنځلس ورځے اوخوړو، حضرت ابو عبيدهؓ ذ هغهٔ يو هډوکے راواخست، نو يو سور ذ هغے ذ لاندے نه اووتلو، بيا ابو زبير ذ حضرت جابر نه دا روايت ماته اوکهٔ، حضرت ابو عبيدهؓ اووے، خورئے (کهالو) بيا چه مونږ مدينے ته راغلو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ذ هغے ذکر اوشو، نو حضورؓ اوفرمائيل، دا ذ اللّٰه راليږلے شوے رزق دے، خورئے، او که تاسو سره څهٔ (باقي) وي، نو په مونږ هم اوخوروئے چا حضورؓ ته راوړلو، نو حضورؓ اوخوړلو.

باب ۶۷: حَجِّ اَبِيْ بَكْرٍ بِالنَّاسِ فِيْ سَنَةِ تِسْعٍ.

باب ۶۷ سنه ۹ هجري کښې ذ حضرت ابوبکرؓ په خلقو ذ حج کولو بيان.

۳۶۴: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ أَبُو الرَّبِيعِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ الصِّدِّيْقَ بَعَثَهُ فِي الْحَجَّةِ الَّتِيْ أَمَّرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ يَوْمَ النَّحْرِ فِيْ رَهْطٍ يُؤَذِّنُ فِي النَّاسِ لَا يَحُجُّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ.

۳۶۴: سليمان بن داؤد. ابو الربيع. فليح. زهري. حميد بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، حضرت ابوبكرؓ دے حج كښ، چه هغے كښ هغه حضور صلي الله عليه وسلّم ذ حجة الوداع نه مخكښ امير جوړ كړے وو، زهٔ ئے يو جماعت سره په لسم تاريخ اوليږلم، چه خلقو كښ اعلان اوكړم چه دے كال نه پس دے هيڅ مشرك حج نهٔ كوي، او ذ بيت اللّٰه طواف دے په بربنډه نشي كولے (مشركينو به عام طور سره جاهليت كښ په بربنډه طواف كولو).

۳۶۵: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيْلُ عَنْ أَبِيْ إِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ اٰخِرُ سُوْرَةٍ نَزَلَتْ كَامِلَةً بَرَاءَةٌ وَ اٰخِرُ سُوْرَةٍ نَزَلَتْ خَاتِمَةُ سُوْرَةِ النِّسَاءِ يَسْتَفْتُوْنَكَ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلَالَةِ.

۳۶۵: عبداللّٰه بن رجاء. اسرائيل. ابو اسحاق. حضرت براءؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، چه كوم سورت ذ ټولونه آخر كښ پوره نازل شوے دے، هغه سورت برات دے او آخري آيت چه نازل شوے دے، هغه ذ سورهٔ نساء آيت دے: يستفتونك قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلَالَةِ.

باب۶۸ : وَفْدِ بَنِيْ تَمِيْمٍ.

باب۶۸ : ذ بنو تميم ذ وفد بيان.

۳۶۶: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ أَبِيْ صَخْرَةَ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ الْمَازِنِيِّ عَنْ عِمْرَانَ ابْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ أَتَى نَفَرٌ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرٰى يَا بَنِيْ تَمِيْمٍ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ بَشَّرْتَنَا فَأَعْطِنَا فَرُئِيَ ذٰلِكَ فِيْ وَجْهِهِ فَجَاءَ نَفَرٌ مِنَ الْيَمَنِ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرٰى إِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا

۳۶۶: ابو نعيم. سفيان. ابو صخره. صفوان بن محرز مازني. حضرت عمران بن حصين نه روايت كوي، هغهٔ بيان اوكهٔ، ذ بنو تميم وفد ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شو، حضورؐ اوفرمائيل، اے بني تميم، بشارت قبول كړئے، هغوي اووے، يا رسول اللّٰه، تاسو بشارت خو راكړلو، اوس مونږ ته څهٔ راكړئے. ذ حضورؐ په مخ مبارك ذ دے اثر معلوم شو. بيا ذ يمن وفد راغے، حضورؐ

بَنُو تَمِيمٍ قَالُوا قَدْ قَبِلْنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ.

ورته اوفرمائيل' هغوي عرض اوكړو. يا رسول الله' مونږ قبول كړلو.

**باب ۶۹ : قَالَ ابْنُ اِسْحٰقَ غَزْوَةُ عُيَيْنَةَ بْنِ حِصْنِ ابْنِ حُذَيْفَةَ بْنِ بَدْرٍ بَنِي الْعَنْبَرِ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ بَعَثَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيْهِمْ فَاَغَارَ وَ اَصَابَ مِنْهُمْ نَاسًا وَ سَبٰى مِنْهُمْ نِسَآءً.**

**باب ۶۹ : (دا باب ذ عنوان نه خالي دے).**

ابن اسحاق وائي' عيينه بن حصين بن حذيفه بن بدر' حضور صلي الله عليه وسلّم ذ بنو تميم شاخ بنو عنبره سره ذ جنګ كولو ذ پاره اوليږلو' هغوي ذ شپے حمله اوكړه' نارينه ئے قتل كړل او زنانه ئے قيدي كړلے.

۳۶۷: حَدَّثَنِيْ زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَا اَزَالُ اُحِبُّ بَنِيْ تَمِيْمٍ بَعْدَ ثَلَاثٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُهَا فِيْهِمْ هُمْ اَشَدُّ اُمَّتِيْ عَلَى الدَّجَّالِ وَ كَانَتْ فِيْهِمْ سَبِيَّةٌ عِنْدَ عَائِشَةَ فَقَالَ اَعْتِقِيْهَا فَاِنَّهَا مِنْ وُّلْدِ اِسْمَاعِيْلَ وَ جَاءَتْ صَدَقَاتُهُمْ فَقَالَ هٰذِهٖ صَدَقَاتُ قَوْمٍ اَوْ قَوْمِيْ.

۳۶۷: زبير بن حرب. جرير. عماره بن قعقاع. ابو زرعه. حضرت ابو هريرةؓ نه روايت كوي' ذ هغهٔ بيان دے' ذ كله نه چه ما ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه ذ بنو تميم په حق كښ درے خبرے آوريدلے دي' نو دا برابر درست ګنړم' بنو تميم څما اُمت كښ ذ دجّال په مقابله كښ ذ ټولو نه زياتِ سخت دي. بي بي عائشےؓ سره ذ هغے قوم يوه وينزه وه' نو حضورؐ اوفرمائيل' دا آزاده كړه' ځكه چه دا ذ اسماعيلؑ ذ اولاد نه ده' كوم وخت چه هغے ته صدقات راغلل' نو حضورؐ اوفرمائيل' دا څما ذ قوم يا وے فرمائيل ذ قوم صدقه ده.

۳۶۸: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الزُّبَيْرِ اَخْبَرَهُمْ اَنَّهُ قَدِمَ رَكْبٌ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ اَمِّرِ الْقَعْقَاعَ ابْنَ

۳۶۸: ابراهيم بن موسٰي. هشام بن يوسف. ابن جريج. ابن ابي مليكه. حضرت عبدالله بن زبير نه روايت كوي' ذ بنو تميم سوارهٔ ذ حضورؐ خدمت كښ راغلل' نو ابوبكرؓ عرض اوكړه' ذ دوي امير قعقاع بن معبد بن زراره جوړ كړے' عمرؓ عرض اوكړه' نه' بلكه اقرع بن حابس جوړ كړے' نو حضرت ابوبكرؓ اووے' ته

مُحَمَّدِ بْنِ زُرَارَةَ قَالَ عُمَرُ بَلْ أَمِّرِ الْأَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ مَا أَرَدْتَ إِلَّا خِلَافِيْ قَالَ عُمَرُ مَا أَرَدْتُ خِلَافَكَ فَتَمَارَيَا حَتَّى ارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا فَنَزَلَ فِيْ ذٰلِكَ يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا حَتَّى انْقَضَتْ.

همیشه ما سره اختلاف کوے، حضرت عمرؓ اووے، زۀ تاسو سره دَ اختلاف قصد نۀ کوم، دواړو کښې تکرار اوشولو، تردے چه دَ هغوي آوازونه اوچت شو، نو دے باره کښې دا آیت نازل شولو: اے ایمان والو، اللّٰه او دَ هغۀ رسول مخکښې پیش قدمي مۀ کوے، آخره پورے.

## باب ۷۰: وَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ.

## باب ۷۰: دَ وفد عبدالقیس بیان.

۳۶۹: حَدَّثَنِيْ إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا أَبُوْ عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ حَدَّثَنَا قُرَّةُ عَنْ أَبِيْ جَمْرَةَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ إِنَّ لِيْ جَرَّةً يُنْتَبَذُ لِيْ نَبِيْذٌ فَأَشْرَبُهُ حُلْوًا فِيْ جَرٍّ إِنْ أَكْثَرْتُ مِنْهُ فَجَالَسْتُ الْقَوْمَ فَأَطَلْتُ الْجُلُوْسَ خَشِيْتُ أَنْ أَفْتَضِحَ فَقَالَ قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامَى فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ الْمُشْرِكِيْنَ مِنْ مُضَرَ وَإِنَّا لَا نَصِلُ إِلَيْكَ إِلَّا فِيْ أَشْهُرِ الْحُرُمِ حَدِّثْنَا بِجُمَلٍ مِنَ الْأَمْرِ إِنْ عَمِلْنَا بِهِ دَخَلْنَا الْجَنَّةَ وَنَدْعُوْ بِهِ مَنْ وَرَاءَنَا قَالَ آمُرُكُمْ بِأَرْبَعٍ وَأَنْهَاكُمْ عَنْ أَرْبَعٍ الْإِيْمَانُ بِاللّٰهِ هَلْ تَدْرُوْنَ

۳۶۹: اسحاق. ابو عامر عقدي، قُرّه. ابو حمزه وائي، ما حضرت ابن عباسؓ ته اووے، ماسره یو منګے دے هغے کښې نبیذ تیارولے شي، زۀ دا نبیذ خواږۀ کړم او دَ خاورو ګلاس کښې ئے څکم، ماسره ویره ده که زۀ هغه نبیذ زیات اوڅکم، او خلقو سره ډیر ساعت کینم، نو زۀ به (دَ نشے تهمت کښې) رسوا شم، حضرت ابن عباسؓ اووے. وفد عبدالقیس دَ حضورؐ خدمت کښې حاضر شو، نو حضورؐ اوفرمائیل، هر کله راشے، اے قوم چه نۀ نقصان کښې دے او نۀ شرمسار هغوي عرض اوکۀ، یا رسول اللّٰه، خمونږ او ستاسو مینځ کښې مشرکین مُضَر حائل دي په دے وجه مونږ سِوا دَ حُرمت دَ میاشتو (رجب، ذي قعده، ذي الحجه، محرم) نه تاسوؐ له نۀ شو راتلے، نو مونږ ته څۀ داسے مختصرے خبرے اوښائے، چه مونږ په هغے عمل اوکړو او جنت ته لاړ شو، او مونږ نه ورستو چه کوم خلق پاتے شوے دي، هغوي ته هم دَ دے دعوت ورکړو، حضورؐ ورته اوفرمائیل، زۀ تاسو ته دَ څلورو خیزونو حکم درکوم، او دَ څلورونه مو منع کوم. په اللّٰه دَ ایمان راوړلو حکم درکوم. پوهیږئ، په اللّٰه دَ ایمان راوړلو څۀ مطلب دے، دَ دے خبرے شهادت کول، چه دَ

مَا الْاِیْمَانُ بِاللّٰهِ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اِقَامُ الصَّلٰوةِ وَ اِیْتَاءُ الزَّكٰوةِ وَ صَوْمُ رَمَضَانَ وَ اَنْ تُعْطُوْا مِنَ الْمَغَانِمِ الْخُمُسَ وَ اَنْهَاكُمْ عَنْ اَرْبَعٍ مَا انْتُبِذَ فِی الدُّبَّآءِ وَالنَّقِیْرِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ.

اللّٰه نه سِوا څوک معبود نشته، او مونځ کول، زکٰوة ورکول، دَ رمضان روژے نیول، او مال غنیمت نه خمس ورکول، او زهٔ تاسو دَ څلورو څیزونو نه منع کوم. دَ کدو دَ تونبي نه نقیر دَ لرګي لوښي. شین منګوټي او روغن کړے شوو لوښو کښِ نبیذ (شراب) جوړولو نه (دا ټول یو قسم لوښي وو، چه شراب به په کښِ جوړولے شو، نو دَ دے نه منع اوشوله).

۳۷۰: حَدَّثَنَا سُلَیْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَیْدٍ عَنْ اَبِیْ جَمْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ یَقُوْلُ قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَیْسِ عَلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ هٰذَا الْحَیَّ مِنْ رَبِیْعَةَ وَقَدْ حَالَتْ بَیْنَنَا وَ بَیْنَكَ كُفَّارُ مُضَرَ فَلَسْنَا نَخْلُصُ اِلَیْكَ اِلَّا فِیْ شَهْرٍ حَرَامٍ فَمُرْنَا بِاَشْیَاءَ نَاْخُذُ بِهَا وَ نَدْعُوْ اِلَیْهَا مَنْ وَرَائَنَا قَالَ اٰمُرُكُمْ بِاَرْبَعٍ وَ اَنْهَاكُمْ عَنْ اَرْبَعٍ الْاِیْمَانُ بِاَرْبَعٍ وَ اَنْهَاكُمْ عَنْ اَرْبَعٍ الْاِیْمَانُ بِاللّٰهِ شَهَادَةِ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ عَقَدَ وَاحِدَةً وَ اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَ اِیْتَاءِ الزَّكٰوةِ وَ اَنْ تُؤَدُّوْا لِلّٰهِ خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ وَ اَنْهَاكُمْ عَنِ الدُّبَّاءِ وَالنَّقِیْرِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ.

۳۷۰: سلیمان بن حرب. حماد بن زید. ابو حمزه. ابن عباسؓ نه روایت دے هغه وائي، وفد عبدالقیس دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم په خدمت کښِ راغلے، او عرض ئے اوکهٔ یا رسول اللّٰه، مونږ دَ ربیعه قبیله یُو، او کفار مُضر څمونږ او ستاسو مینځ کښِ حائل دي، مونږ ستاسو خدمت کښِ سِوا دَ عزت ؟ میاشو نه، نهٔ شو راتلے، نو څمونږ دَ عمل دَ پاره، او کوم خلق چه څمونږ ورستو دي، هغوي ته دعوت ورکولو دَ پاره دَ څهٔ څیزونو حکم راکړئے، حضورؐ ورته اوفرمائیل، زهٔ تاسوته دَ څلورو څیزونو حکم درکوم، او دَ څلورو څیزونو نه مو منع کوم، په اللّٰه ایمان راوړل، یعني دَ یو معبود کیدو شهادت ورکول (او حضورؐ دَ ګوتے یو عدد ته اشاره اوکړه) مونځ کول، زکٰوة ورکول، مال غنیمت نه خمس دَ اللّٰه دَ پاره ورکول، او زهٔ تاسو دَ کدو، نقیر د دَ لرګي لوښي، شین منګوټي او روغن کړو لوښو (شراب دَ پاره ستعمال) نه منع کوم.

۳۷۱: حَدَّثَنَا یَحْیٰی بْنُ سُلَیْمَانَ حَدَّثَنِی ابْنُ

۳۷۱: یحیٰي بن سلیمان. ابن وهب. عمرو (دوئم سند) بکر بن مضر. عمرو بن حارث. بکیر. دَ ابن

وَهْبٍ أَخْبَرَنِي عَمْرٌو وَ قَالَ بَكْرُ بْنُ مُضَرَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ عَنْ بُكَيْرٍ أَنَّ كُرَيْبًا مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ حَدَّثَهُ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ أَزْهَرَ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ أَرْسَلُوا إِلَى عَائِشَةَ فَقَالُوا اقْرَأْ عَلَيْهَا السَّلَامَ مِنَّا جَمِيعًا وَ سَلْهَا عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ وَ إِنَّا أُخْبِرْنَا أَنَّكِ تُصَلِّيهِمَا وَقَدْ بَلَغَنَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْهَا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَ كُنْتُ أَضْرِبُ مَعَ عُمَرَ النَّاسَ عَنْهُمَا قَالَ كُرَيْبٌ فَدَخَلْتُ عَلَيْهَا وَ بَلَّغْتُهَا مَا أَرْسَلُونِي فَقَالَتْ سَلْ أُمَّ سَلَمَةَ فَأَخْبَرْتُهُمْ فَرَدُّونِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ بِمِثْلِ مَا أَرْسَلُونِي إِلَى عَائِشَةَ فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنْهُمَا وَ إِنَّهُ صَلَّى الْعَصْرَ ثُمَّ دَخَلَ عَلَيَّ وَ عِنْدِي نِسْوَةٌ مِنْ بَنِي حَرَامٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَصَلَّاهُمَا فَأَرْسَلْتُ إِلَيْهِ الْخَادِمَ فَقُلْتُ قُومِي إِلَى جَنْبِهِ فَقُولِي تَقُولُ أُمُّ سَلَمَةَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَلَمْ أَسْمَعْكَ تَنْهَى عَنْ هَاتَيْنِ الرَّكْعَتَيْنِ فَأَرَاكَ

عباس دَ آزاد کرده غلام کریب نه روایت کوي، ابن عباس، عبدالرحمن بن ازهر او مسور بن مخرمه زهٔ بي بي عائشې له اوليږلم، او وئيلې، خمونږه دَ ټولو دَ طرف نه هغې ته سلام کوه، او مازيګر نه پس دَ دوه رکعاته نفلو باره کښې دَ هغې نه تپوس اوکړه، او ورته اُووايه، مونږ ته اطلاع رارسيدلې ده، چه تاسو دَ مازيګر نه پس دوه رکعاته کوئې، حالانکه مونږ ته دَ حضورؐ نه دا حديث معلوم شوې دې، چه حضورؐ دَ دې دوو رکعاتو نه منع فرمائيلې ده. ابن عباس اووې ما به حضرتِ عمرؓ سره خلق دَ دې دوو رکعاتو کولو باندې وهل (مارتګا) کريب وائي، زهٔ دَ بي بي عائشېؓ خدمت کښې حاضر شوم، او هغې ته مې دَ دغې خلقو پيغام اورسولو. بي بي عائشېؓ جواب راکړلو، چه دَ ام سلمهؓ نه معلومات اوکړه (کريب وائي) ما هغې خلقو ته دَ بي بي عائشېؓ خبره اوکړله نو هغوي زهٔ اُم سلمهؓ ته دغې پيغام سره اوليږلم، کوم چه مې بي بي عائشېؓ ته اُورې وو، اُم سلمهؓ اوفرمائيل، ما دَ حضورؐ نه دَ دې دوو رکعاتو په حقله منع آوريدلې ده. او حضورؐ يوه ورځ دَ مازيګر مونځ اوکهٔ، ما پله ئې تشريف راوړلو. دغه وخت ماسره دَ بنو حرام (انصارو) ښځې وې، نو حضورؐ دوه رکعاته اوکړل، ما حضورؐ ته خدمتګاره اوليږله، او هغې ته مې اووې، چه دَ حضورؐ په خوا کښې اُودريږه او عرض اوکه، چه اُم سلمه دا وائي، يا رسول الله، آيا ما تاسونه، نهٔ وو آوريدلې، چه تاسو به دَ دې دوو رکعاتو کولو نه منع فرمائيله، حالانکه اوس زهٔ تاسو وينم، چه دغه (دوه رکعاته) کوئې، که حضورؐ لاس سره اشاره اوکړي، نو ته ورستو شه، نو هغه خادمه

تُصَلِّيهِمَا فَإِنْ أَشَارَ بِيَدِهِ فَاسْتَأْخَرْتُ عَنْهُ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ يَا بِنْتَ أَبِيْ أُمَيَّةَ سَأَلْتِ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ إِنَّهُ أَتَانِيْ أُنَاسٌ مِنْ عَبْدِ الْقَيْسِ بِالْإِسْلَامِ مِنْ قَوْمِهِمْ فَشَغَلُوْنِيْ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ فَهُمَا هَاتَانِ.

ورغله، او هغه دغسې اوکړل، حضورؐ لاس سره اشاره اوکړله، نو هغه وروسته شوه، بیا چه حضورؐ روانیدلو، نو وې فرمائیل، اې دَ اُمیه لور، ته دَ مازیګر نه پس دَ دوو رکعاتو تپوس کوې، ماته دَ عبدالقیس سري اسلام راوړلو دَ پاره راغلل، نو ما دَ هغوي په وجه دَ ماسپخین نه پس دوه رکعاته اونهٔ کړې شو، نو دا دوه رکعاته هغه دي.

۳۷۲: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَامِرٍ عَبْدُ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيْمُ هُوَ ابْنُ طَهْمَانَ عَنْ أَبِيْ جَمْرَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ أَوَّلُ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ بَعْدَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ فِيْ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَسْجِدِ عَبْدِ الْقَيْسِ بِجُوَاثٰى يَعْنِيْ قَرْيَةً مِنَ الْبَحْرَيْنِ.

۳۷۲: عبدالله بن محمد جعفي. ابو عامر عبدالملک. ابراهیم بن طهمان. ابو جمره. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي دَ هغهٔ بیان دې، دَ حضورؐ جمات کښې دَ جمعې دَ مونځ کیدو نه پس دَ ټولونه مخکښې چه کوم ځائې دَ جمعې مونځ ادا کړې شو، هغه مقام جواثي کښې دَ عبدالقیس جمات دې، جواثي بحرین کښې دَ یو کلي نوم دې.

## باب ۷۱: وَفْدِ بَنِيْ حَنِيْفَةَ وَ حَدِيْثِ ثُمَامَةَ بْنِ أُثَالٍ.

## باب ۷۱: دَ وفد بنو حنیفه او دَ ثمامه بن اُثال قصه.

۳۷۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ أَبِيْ سَعِيْدٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ فَجَاءَتْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِيْ حَنِيْفَةَ يُقَالُ لَهُ ثُمَامَةُ بْنُ أُثَالٍ فَرَبَطُوْهُ بِسَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ فَخَرَجَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ

۳۷۳: عبدالله بن یوسف. لیث. سعید بن ابو سعید. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دې، حضور صلي الله علیه وسلم نجد طرف ته څهٔ سوارهٔ اولیږل، هغوي دَ بني حنیفه یو سړې ثمامه بن اثال نیولې راوستلو، او دَ مسجد نبوي یوې ستنې سره ئې اوتړلو، رسول الله صلي الله علیه وسلم چه په هغهٔ تیریدلو، نو تپوس ئې ترې اوکړلو، چه اې ثمامه، څهٔ خیال دِ دې، هغهٔ اووې، اې محمد صلي الله علیه وسلم څما خیال بهتر دې، که ته ما قتل کړې، نو یو خوني به

فَقَالَ عِنْدِيْ خَيْرٌ يَا مُحَمَّدُ إِنْ
تَقْتُلْنِيْ تَقْتُلْ ذَا دَمٍ وَ إِنْ تُنْعِمْ
تُنْعِمْ عَلٰى شَاكِرٍ وَ إِنْ كُنْتَ تُرِيْدُ
الْمَالَ فَسَلْ مِنْهُ مَا شِئْتَ حَتّٰى كَانَ
الْغَدُ ثُمَّ قَالَ لَهُ مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ
قَالَ مَا قُلْتُ لَكَ إِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلٰى
شَاكِرٍ فَتَرَكَهُ حَتّٰى كَانَ بَعْدَ الْغَدِ
فَقَالَ مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ قَالَ عِنْدِيْ
مَا قُلْتُ لَكَ فَقَالَ اَطْلِقُوْا ثُمَامَةَ
فَانْطَلَقَ إِلٰى نَخْلٍ قَرِيْبٍ مِّنَ الْمَسْجِدِ
فَاغْتَسَلَ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَقَالَ
اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ
مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللّٰهِ يَا مُحَمَّدُ وَاللّٰهِ مَا
كَانَ عَلٰى الْاَرْضِ وَجْهٌ اَبْغَضَ اِلَيَّ
مِنْ وَّجْهِكَ فَقَدْ اَصْبَحَ وَجْهُكَ اَحَبَّ
الْوُجُوْهِ اِلَيَّ وَاللّٰهِ مَا كَانَ مِنْ دِيْنٍ
اَبْغَضَ اِلَيَّ مِنْ دِيْنِكَ فَاَصْبَحَ دِيْنُكَ
اَحَبَّ الدِّيْنِ اِلَيَّ وَاللّٰهِ مَا كَانَ مِنْ
بَلَدٍ اَبْغَضَ اِلَيَّ مِنْ بَلَدِكَ فَاَصْبَحَ
بَلَدُكَ اَحَبَّ الْبِلَادِ اِلَيَّ وَ اِنَّ خَيْلَكَ
اَخَذَتْنِيْ وَ اَنَا اُرِيْدُ الْعُمْرَةَ فَمَاذَا تَرٰى
فَبَشَّرَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ وَ اَمَرَهٗ اَنْ يَّعْتَمِرَ فَلَمَّا قَدِمَ
مَكَّةَ قَالَ لَهٗ قَائِلٌ صَبَوْتَ قَالَ لَا
وَلٰكِنْ اَسْلَمْتُ مَعَ مُحَمَّدٍ
رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

قتل کړے، او که احسان راسره اوکړے، نو په یو شکر
گزار به احسان اوکړے. او که تاسو مال غواړے، نو
څومره چه مو زړهٔ غواړي، اوغواړئ، حتی چه دوېمه
ورځ راغله، بیا حضورﷺ هغه ته اوفرمائیل، څهٔ خیال دِ دے،
اے ثمامه، هغهٔ اووے، ښما هغه خیال دے، چه ما تاسو ته
ظاهر کړے دے، که تاسو احسان اوکړئ، نو په یو شکر
گزار به احسان اوکړے، نو حضورﷺ هغه په هغې حال
پرېښودلو، حتی چه درېمه ورځ راغله، بیا ترې حضورﷺ
تپوس اوکړو، اے ثمامه، څهٔ خیال دِ دے، هغهٔ اووے، ښما
هغه خیال دے، چه څهٔ م تاسو ته وئیلے دي، حضورﷺ
اوفرمائیل، ثمامه آزاد کړئ، نو ثمامه جُماعت سره
قریب یو باغ ته وزغے، غسل ئے اوکړو، بیا جومات ته
راغے، او وئیلے: اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمد
رسول الله: اے محمدهﷺ په روئے زمین ستاسو نه زیات
بُغض ښما هیچا سره نهٔ وو، لیکن اوس ستاسو نه زیات
محبوب دَ زمکے په مخ ماته هیڅوک نشته، په خدائے
چه ستاسو دَ دین نه زیاته دشمني ښما هیڅ دین سره نهٔ
وه، خو اوس ستاسو دَ دین نه زیات محبت ښما بل هیڅ
دین سره نشته. په خدائے چه ستاسو دَ ښار نه زیات
ناخوښه ښما په نزد هیڅ ښار نهٔ وو، لیکن اوس ستاسو دَ
ښار نه زیات زړهٔ پورے هیڅ ښار ښما په نزد بل نشته،
ستاسو سوَرو زهٔ هغه وخت اونیولم چه زهٔ دَ عُمرے په
اراده تلم، اوس ستاسو څهٔ حکم دے، رسول الله صلي
الله علیه وسلم هغهٔ له بشارت ورکهٔ، او هغهٔ ته ئے دَ
دَعمرے کولو حکم ورکړلو. کوم وخت چه هغه مکے ته
راغے، نو هغهٔ ته چا اووے، تهٔ خو بے دینه شوے ئے، هغهٔ

وَسَلَّمَ وَلَا وَاللّٰهِ لَا يَأْتِيكُمْ مِنَ الْيَمَامَةِ حَبَّةُ حِنْطَةٍ حَتَّى يَأْذَنَ فِيهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

جواب ورکړ، نه بلکه د رسول الله صلي الله عليه وسلم په لاس په اسلام مشرف شوے يم، او په خدائے چه تاسو ته به د يمامه نه د نبي صلي الله عليه وسلم د اجازت نه بغير د غنمو يو دانه هم نشي رارسيدے.

۳۷۴: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ أَبِي حُسَيْنٍ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ مُسَيْلِمَةُ الْكَذَّابُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يَقُولُ إِنْ جَعَلَ لِي مُحَمَّدٌ مِنْ بَعْدِهِ تَبِعْتُهُ وَ قَدِمَهَا فِي بَشَرٍ كَثِيرٍ مِنْ قَوْمِهِ فَأَقْبَلَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهُ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ وَّ فِي يَدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِطْعَةُ جَرِيدٍ حَتَّى وَقَفَ عَلَى مُسَيْلِمَةَ فِي أَصْحَابِهِ فَقَالَ لَوْ سَأَلْتَنِي هٰذِهِ الْقِطْعَةَ مَا أَعْطَيْتُكَهَا وَلَنْ تَعْدُ وَ أَمْرَ اللّٰهِ فِيكَ وَلَئِنْ أَدْبَرْتَ لَيَعْقِرَنَّكَ اللّٰهُ وَ إِنِّي لَأَرَاكَ الَّذِي أُرِيتُ فِيهِ مَا رَأَيْتُ وَ هٰذَا ثَابِتٌ يُجِيبُكَ عَنِّي ثُمَّ انْصَرَفَ عَنْهُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَسَأَلْتُ عَنْ قَوْلِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكَ أَرَى الَّذِي أُرِيتُ فِيهِ مَا رَأَيْتُ فَأَخْبَرَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ

۳۷۴: ابو اليمان. شعيب. عبدالله بن ابي حسين. نافع بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، مسيلمه كذاب د نبي صلي الله عليه وسلم زمانه كښ (مدينے ته) راغے، او وئيلے، كه محمد صلي الله عليه وسلم د ځان نه پس ما خپل خليفه جوړوي، نو زه به د هغه تابعدار شم، او مدينے ته ئے د خپل قوم ډير سړي راوستي وو. رسول الله صلي الله عليه وسلم ثابت بن قيس بن شماس سره هغه طرف ته ورغلو، د حضور صلي الله عليه وسلم په لاس كښ د قجورے يوه لخته وه حتي چه حضورؐ خپلو اصحابوؓ سره مسيلمه سره ايسار شولو، نو حضورؐ اوفرمائيل، كه ته مانه دا لخته هم غوارے، نو زه به ئے درنه كرمه (چه جائيكه خلافت) او ستا باره كښ د الله حكم غلط كيدے نشي (چه ته دوزخي ئے) كه تا خما نه روګرداني اوكړه، نو الله به تا هلاک كړي، او زه خو تا هغسے وينم، چه ماته خوب كښ په نظر راغلے ئے، او دا ثابت بن قيس دے چه خما د طرف نه به تاته جواب دركوي، بيا حضورؐ واپس راغے. ابن عباسؓ وائي، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم د قول: زه تا هغسے وينم، څنګه چه ماته خوب كښ په نظر راغلے ئے: مطلب دريافت كړلو، نو ماته ابوهريرهؓ اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلم

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُ فِيْ يَدَيَّ سِوَارَيْنِ مِنْ ذَهَبٍ فَاَهَمَّنِيْ شَأْنُهُمَا فَاُوْحِيَ اِلَيَّ فِي الْمَنَامِ اَنِ انْفُخْهُمَا فَنَفَخْتُهُمَا فَطَارَا فَاَوَّلْتُهُمَا كَذَّابَيْنِ يَخْرُجَانِ بَعْدِيْ اَحَدُهُمَا اَسْوَدُ الْعَنَسِيُّ وَالْاٰخَرُ مُسَيْلِمَةُ.

اوفرمائيل' يوه ورځ زهٔ اوده ووم' ما خپل لاس کښې ذ سرو (زرو) دوه کنګڼ اوليدل' ماته ذ هغې حالت ته خفګان شو' نو خوب کښې ماته وحي اوکړې شوه' دې دواړو ته پوکې ورکړه. ما چه پوکې ورکهٔ' نو هغه والوتل. ما ذ هغې خوب تعبير دې دوو دروغجنو سره اوکهٔ' چه خما نه پس به ظاهر شي' يو' عنسي او بل مسيلمه.

۳۷۵: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَّعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ اُتِيْتُ بِخَزَائِنِ الْاَرْضِ فَوُضِعَ فِيْ كَفِّيْ سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ فَكَبُرَا عَلَيَّ فَاُوْحِيَ اِلَيَّ اَنِ انْفُخْهُمَا فَنَفَخْتُهُمَا فَذَهَبَا فَاَوَّلْتُهُمَا الْكَذَّابَيْنِ الَّذَيْنِ اَنَا بَيْنَهُمَا صَاحِبُ صَنْعَاءَ وَ صَاحِبُ الْيَمَامَةِ.

۳۷۵: اسحاق بن نصر. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت' ذ هغهٔ بيان دې' رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل' يوه ورځ زهٔ اوده ووم' چه ما ته ذ دُنيا ټولې خزانې راکړې شوې. بيا خما لاس کښې دوه کنګڼ کيښودې شو' چه په ما بنهٔ اونهٔ لګيدل' ماته وحي اوکړې شوې' دې له پوکې ورکه' ما پوکې ورکهٔ' نو هغه غائب شو' نو ما ذ هغې تعبير هغې دوو دروغجنو سره اوکهٔ' چه ذ هغوي مينځ کښې يم' يعني صنعاء واله' عنسي' او يمامه واله مسيلمه.

۳۷۶: حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ سَمِعْتُ مَهْدِيَّ بْنَ مَيْمُوْنٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا رَجَاءٍ الْعُطَارِدِيَّ يَقُوْلُ كُنَّا نَعْبُدُ الْحَجَرَ فَاِذَا وَجَدْنَا حَجَرًا هُوَ اَخْيَرُ مِنْهُ اَلْقَيْنَاهُ وَ اَخَذْنَا الْاٰخَرَ فَاِذَا لَمْ نَجِدْ حَجَرًا جَمَعْنَا جُثْوَةً مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ جِئْنَا بِالشَّاةِ فَحَلَبْنَاهُ عَلَيْهِ ثُمَّ طُفْنَا بِهٖ فَاِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَجَبٍ قُلْنَا مُنَصِّلُ الْاَسِنَّةِ فَلَا نَدَعُ رُمْحًا فِيْهِ

۳۷۶: صلت بن محمد. مهدي بن ميمون. ابو رجاء عطاردي وائي' مونږ بهٔ ذ کاڼړو عبادت کولو' که مونږ ته به ذ هغې نه بنهٔ کاڼړې حاصل شولو' نو مونږ به وړمبنې کاڼړې اوغورځولو' او هغه به مو اوچت کړلو' اوکه مونږ به ذ خاورې يو ډهير راجمع کهٔ' يوه چيلې به مو راوسته' په هغې به مو ذ هغې پئې اولوشل' ذ هغې طواف به مو کولو. او ذ رجب مياشت چه به راغله' نو مونږ به وئيلې' دا مياشت ذ تيرږو وغيره نه ذ تيرو څوکو ذ لرې کولو ده' نو مونږ به هيڅ نيزه او تير ذ

حَدِيْدَةٌ وَّلَا سَهْمًا فِيْهِ حَدِيْدَةٌ اِلَّا نَزَعْنَاهُ وَ اَلْقَيْنَاهُ شَهْرَ رَجَبٍ وَّ سَمِعْتُ اَبَا رَجَاءٍ يَّقُوْلُ كُنْتُ يَوْمَ بُعِثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلَامًا اَرْعَى الْاِبِلَ عَلٰى اَهْلِيْ فَلَمَّا سَمِعْنَا بِخُرُوْجِهٖ فَرَرْنَا اِلَى النَّارِ اِلٰى مُسَيْلِمَةَ الْكَذَّابِ.

سونبے لرے کولو نه بغير نۀ پريښودلو، او هغه به مونږ د رجب پوره مياشت کښې غرخول (مهدي والي) ابو رجاء دا هم فرمائيل، کوم وخت چه نبي صلي الله عليه وسلم مبعوث شولو، نو زۀ بچے ووم، او د خپل کور والو اُوښان به م خرخول، کوم وخت چه مونږ د حضورٌ د ظهور باره کښې واوريدل، نو مونږ دوزخ يعني مسيلمه طرف ته اوتښتيدلو.

## بَابُ ۲۷۲: قِصَّةِ الْاَسْوَدِ الْعَنَسِيِّ.

## باب ۲۷۲: دَ اسود عنسي قِصه.

۳۷۷: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجَرْمِيُّ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ عُبَيْدَةَ بْنِ نَشِيْطٍ وَ كَانَ فِيْ مَوْضِعٍ اٰخَرَ اسْمُهٗ عَبْدُ اللّٰهِ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ بَلَغَنَا اَنَّ مُسَيْلَمَةَ الْكَذَّابَ قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ فَنَزَلَ فِيْ دَارِ بِنْتِ الْحَارِثِ وَ كَانَتْ تَحْتَهٗ بِنْتُ الْحَارِثِ بْنِ كُرَيْزٍ وَّ هِيَ اُمُّ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَامِرٍ فَاَتَاهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهٗ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ وَهُوَ الَّذِيْ يُقَالُ لَهٗ خَطِيْبُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ فِيْ يَدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضِيْبٌ فَوَقَفَ عَلَيْهِ فَكَلَّمَهٗ فَقَالَ مُسَيْلِمَةُ اِنْ شِئْتَ خَلَّيْتَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ الْاَمْرِ

۳۷۷: سعيد بن محمد جرمي. يعقوب بن ابراهيم. دَ هغۀ پلار صالح. ابن عبيده بن نشيط عبدالله. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه نه روايت کوي، دَ هغۀ بيان دے، مونږ ته معلومه شوه، چه مسيلمه کذاب مدينے ته راغلے دے، او دَ حارث دَ لور مکان کښې تيکاؤ شوے دے، دَ هغۀ په نکاح کښې اُم عبدالله بن عامر دَ حارث بن کريز لور، وه، نو حضور، صلي الله عليه وسلم، ثابت بن قيس بن شماس سره، چه هغۀ ته به دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم خطيب وئيلے شو، مسيلمه ته ورغلل، او دَ حضورٌ لاس کښې يوه لخته وه، حضورٌ ايسار شولو، هغۀ سره ئے خبرے اوکړے، نو مسيلمه اووے، که تاسو غواړئ، نو تاسو خمونږ او حکومت مينځ کښې مۀ حائل کيږئ. بيا هغۀ دَ خان نه پس خمونږ دَ پاره کړئ، نو هغۀ ته حضورٌ اوفرمائيل، که تۀ خما نه دا لخته

ثُمَّ جَعَلَهُ لَنَا بَعْدَكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ سَأَلْتَنِيْ هٰذَا الْقَضِيْبَ مَّا اَعْطَيْتُكَهُ وَ اِنِّيْ لَاَرَاكَ الَّذِيْ اُرِيْتُ فِيْهِ مَا اُرِيْتُ وَ هٰذَا ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ وَ سَيُجِيْبُكَ عَنِّيْ فَانْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ سَأَلْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ عَنْ رُؤْيَا رَسُوْلِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِيْ ذُكِرَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ذُكِرَ لِيْ اَنَّ رَسُوْلَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ اُرِيْتُ اَنَّهُ وُضِعَ فِيْ يَدَيَّ سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ فَفَظِعْتُهُمَا وَ كَرِهْتُهُمَا فَاُذِنَ لِيْ فَنَفَخْتُهُمَا فَطَارَا فَاَوَّلْتُهُمَا كَذَّابَيْنِ يَخْرُجَانِ فَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ اَحَدُهُمَا الْعَنْسِيُّ الَّذِيْ قَتَلَهُ فَيْرُوْزُ بِالْيَمَنِ وَالْاٰخَرُ مُسَيْلَمَةُ الْكَذَّابُ.

اوغواړې، نو زۀ به درنه کړم، او زۀ تا هغسې وینم، څنګه چه مې خوب کښې لیدلے یې، او دا ثابت بن قیس دے، څما د طرفه به تاته جواب درکوي، بیا حضورؐ واپس راغے، عبیدالله بن عبدالله وائي، ما د حضرت ابن عباسؓ نه د حضورؐ د مذکوره خوب باره کښې تپوس اوکړو، نو حضرت ابن عباسؓ اوویے، ماته دا بیان شوے دے، رسول الله صلي الله علیه وسلّم فرمائیلي دي، چه زۀ اُوده ووم، نو ما اولیدل، چه څما لاس کښې د سرو (زرو) دوه کړکن ایښودے شوے دي ماسره ویره پیدا شوه، او هغه ماته بد ښکاره شو، ماته حکم اوشو، ما هغې له پُوکې ورکړې، نو هغه دواړه والوتل. ما د دے تعبیر دوو دروغجنو سره اوکړو، چه راؤبه خي، عبیدالله اوویے، هغې کښې یو عنسي وو، چه هغه فیروز په یمن کښې قتل کړے وو، او دویم مسیلمه کذاب وو.

## بَاب ۷۴۳: قِصَّةُ اَهْلِ نَجْرَانَ.

## باب ۷۴۳: د اهل نجران (د نصاراؤ) قِصّه.

۳۷۸: حَدَّثَنِيْ عَبَّاسُ بْنُ الْحُسَيْنِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ عَنْ اِسْرَائِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ صِلَةَ ابْنِ زُفَرَ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ جَاءَ الْعَاقِبُ وَالسَّيِّدُ صَاحِبَا نَجْرَانَ اِلٰى رَسُوْلِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدَانِ اَنْ يُلَاعِنَاهُ قَالَ فَقَالَ اَحَدُهُمَا

۳۷۸: عباس بن حسین. یحیي بن آدم. اسرائیل. ابو اسحاق. صله بن زفر. حضرت حذیفهؓ نه روایت کوي، عاقب او سید د نجران دوه سرداران حضورؐ له مباهلې کولو د پاره راغلل (مباهله داده، چه دواړه فریقه خپل خپل اهل و عیال سره څنګل له راوځي، او د الله نه دُعا اوغواړي، چه څوک مونږ کښې دروغجن شو، نو په هغۀ

لِصَاحِبِهٖ لَا تَفْعَلْ فَوَاللّٰهِ لَئِنْ كَانَ نَبِيًّا فَلَا عَنَّا لَا نُفْلِحُ نَحْنُ وَلَا عَقِبُنَا مِنْ بَعْدِنَا قَالَا اِنَّا نُعْطِيْكَ مَا سَأَلْتَنَا وَابْعَثْ مَعَنَا رَجُلًا اَمِيْنًا وَلَا تَبْعَثْ مَعَنَا اِلَّا اَمِيْنًا فَقَالَ لَاَبْعَثَنَّ مَعَكُمْ رَجُلًا اَمِيْنًا حَقَّ اَمِيْنٍ حَقَّ اَمِيْنٍ فَاسْتَشْرَفَ لَهٗ اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ قُمْ يَا اَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ فَلَمَّا قَامَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا اَمِيْنُ هٰذِهِ الْاُمَّةِ.

عذاب نازل كړي) نو يو خپل ملګري ته ئې اوويل' مباهله مۀ كوه' په خدائې چه كه هغه نبي وي' او مونږ مباهله اوكړه' نو مونږ او خمونږ اولاد هيڅ كله فلاح نشي بيامندے' نو هغې دواړو' اوويل' چه تاسو مونږ نه څه طلب كوئې' هغه به مونږ ادا كوو' او مونږ سره يو امين سړے اوليږئې' خائن مۀ ليږئې' حضورؐ ورته اوفرمائيل' زۀ تاسو سره داسې امين ليږم' چه پوخ او ريښتنې امين دے' اصحاب رسول منتظر وو' نو حضورؐ اوفرمائيل' اے ابو عبيده بن جراح' تۀ اودريږه' څۀ وخت چه هغه اودريدلو' نو حضورؐ اوفرمائيل' دا دَدے اُمت امين دے.

۳۷۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا اِسْحَاقَ عَنْ صِلَةَ بْنِ زُفَرَ عَنْ حُذَيْفَةَ رضی اللہ عنہ قَالَ جَاءَ اَهْلُ نَجْرَانَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا ابْعَثْ لَنَا رَجُلًا اَمِيْنًا فَقَالَ لَاَبْعَثَنَّ اِلَيْكُمْ رَجُلًا اَمِيْنًا حَقَّ اَمِيْنٍ فَاسْتَشْرَفَ لَهُ النَّاسُ فَبَعَثَ اَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ.

۳۷۹: محمد بن بشار. محمد بن جعفر. شعبه. ابو اسحاق. صله بن زفر. حضرت حذيفهؓ نه روايت كوي' دَ هغۀ بيان دے' اهل نجران دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو' او وئيلے' مونږ دَ پاره يو امين سړے راوليږئې' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' زۀ به تاسو سره په خ او ريښتنې آمين اوليږم' خلق منتظر وو. چه كورو' حضورؐ كوم خوش نصيبه هلته ليږي' نو حضورؐ ابو عبيده بن جراح اوليږلو.

۳۸۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِكُلِّ اُمَّةٍ اَمِيْنٌ وَ اَمِيْنُ هٰذِهِ الْاُمَّةِ اَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ.

۳۸۰: ابوالوليد. شعبه. خالد. ابو قلابه. حضرت انسؓ نه روايت كوي' دَ هغه بيان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' دَ هر يو اُمت يو آمين وي' او دَ دے اُمت آمين ابو عبيده بن جراح دے.

## بَابٌ ۷۴: قِصَّةُ عُمَانَ

## باب ۷۴: دَ عمان او بحرين

وَالْبَحْرَيْنِ.

۳۸۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ سَمِعَ ابْنَ الْمُنْكَدِرِ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ قَدْ جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ لَأَعْطَيْتُكَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا ثَلَاثًا فَلَمْ يَقْدِمْ مَالُ الْبَحْرَيْنِ حَتّٰى قُبِضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَدِمَ عَلٰى أَبِيْ بَكْرٍ أَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادٰى مَنْ كَانَ لَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَيْنٌ أَوْ عِدَةٌ فَلْيَأْتِنِيْ قَالَ جَابِرٌ فَجِئْتُ أَبَا بَكْرٍ فَأَخْبَرْتُهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ قَدْ جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ أَعْطَيْتُكَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا ثَلَاثًا قَالَ فَأَعْطَانِيْ قَالَ جَابِرٌ فَلَقِيْتُ أَبَا بَكْرٍ بَعْدَ ذٰلِكَ فَسَأَلْتُهُ فَلَمْ يُعْطِنِيْ ثُمَّ أَتَيْتُهُ فَلَمْ يُعْطِنِيْ ثُمَّ أَتَيْتُهُ الثَّالِثَةَ فَلَمْ يُعْطِنِيْ فَقُلْتُ لَهُ قَدْ أَتَيْتُكَ فَلَمْ تُعْطِنِيْ ثُمَّ أَتَيْتُكَ فَلَمْ تُعْطِنِيْ ثُمَّ أَتَيْتُكَ فَلَمْ تُعْطِنِيْ فَإِمَّا أَنْ تُعْطِيَنِيْ وَ إِمَّا أَنْ تَبْخَلَ عَنِّيْ فَقَالَ أَقُلْتَ تَبْخَلُ عَنِّيْ وَ أَيُّ دَاءٍ أَدْوَأُ مِنَ الْبُخْلِ قَالَهَا ثَلَاثًا مَا مَنَعْتُكَ مِنْ مَرَّةٍ إِلَّا وَ أَنَا أُرِيْدُ أَنْ أُعْطِيَكَ وَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ

قصه.

۳۸۱: قتيبه بن سعيد. سفيان. ابن منكدر. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، كه ذ بحرين مال راغے، نو زهٔ به تاله دا شان (درے ځله اشاره اوكړه) دركړم. ذ حضورؐ په ژوند كښې ذ هغے ځائے نه څهٔ مال رانغے. بيا هغه مال حضرت ابوبكرؓ له راغے، نو ذ هغهٔ اعلان كونكي دا اعلان اوكړ، كه په نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم. ذ چا قرض وي، يا حضورؐ چا سره څهٔ وعده كړے وي، نو هغه دے ماله راشي. جابر وائي، زهٔ حضرت ابوبكر صديقؓ له راغلم، او هغهٔ ته م اووے، حضورؐ ماته داسے فرمائيلے وو، كه ذ بحرين مال راغے، نو زهٔ به تاله داسے داسے (درے ځله) دركړم جابر وائي، حضرت ابوبكرؓ ماله هغه مال راكړلو. دے نه پس زهٔ بيا ابوبكرؓ له راغلم، او مال م ترے اوغوښتلو، نو هغهٔ رانهٔ كړلو. بيا راغلم، خو رائے نهٔ كړلو. زهٔ په دريم ځل بيا راغلم. بيائے هم رانهٔ كړلو، ما ورته اووے، زهٔ تاسوله راغلم، خو تاسو هيڅ رانهٔ كړل. بيا دوباره راغلم، بيا دے هم څه رانهٔ كړل. بيا په دريم ځل درله راغلم، بيا دے هم څهٔ رانهٔ كړل، نو تهٔ ماله څهٔ مال راكړه، كني زهٔ به دا اوګنړم، چه تاسو ماسره بخل كوئے، ابوبكر ورته اووے، دا تا څهٔ اووے، چه ماسره بُخل كوے. ذ بخل نه زياته بله كومه بيماري ده. دائے درے ځله اوفرمائيل، ما چه كله هم تاله ذ مال ذ وركولو نه منع كړے ده، نو ما دا غوښتل، چه تاله

سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ جِئْتُهُ فَقَالَ لِيْ اَبُوْبَكْرٍ عُدَّهَا فَعَدَدْتُهَا فَوَجَدْتُهَا خَمْسَ مِائَةٍ فَقَالَ خُذْ مِثْلَهَا مَرَّتَيْنِ.

(دَ چرته نه) دركرم، عمرو، محمد بن علي، جابر بن عبدالله فرمائي، زهٔ ابوبكرؓ له راغلم، نو هغهٔ ماته اووے، چه دا مال اوشميره، ما اوليدهٔ، چه پنځه سوه وے، ابوبكرؓ اووے. دومره دوه خله نور واخله.

باب ۷۵: قُدُوْمِ الْاَشْعَرِيِّيْنَ وَ اَهْلِ الْيَمَنِ وَ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُمْ مِنِّيْ وَ اَنَا مِنْهُمْ.

باب ۷۵: دَ اشعريانو، او يمن يانو، دَ راتلو قصه. ابو موسٰي دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دا قول دَ اشعريانو په باره كښې نقل كړے دے، چه هغوي خما نه دي، او زهٔ دَ هغوي نه يم.

۳۸۲: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ وَّ اِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَا حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰىؓ قَالَ قَدِمْتُ اَنَا وَ اَخِيْ مِنَ الْيَمَنِ فَمَكَثْنَا حِيْنًا مَّا نُرٰى ابْنَ مَسْعُوْدٍ وَّ اُمَّهٗ اِلَّا مِنْ اَهْلِ الْبَيْتِ مِنْ كَثْرَةِ دُخُوْلِهِمْ وَ لُزُوْمِهِمْ لَهٗ.

۳۸۲: عبداللّٰه بن محمد او اسحاق بن نصر. يحيٰي بن آدم. ابن ابي زائده. دَ هغهٔ پلار. ابو اسحاق. اسود بن يزيد. حضرت ابو موسٰيؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، چه زهٔ او خما ورور دَ يمن نه راغلو، او يو زمانه پورے دَ حضورؐ په خدمت كښې ايسار وو. عبداللّٰه بن مسعود او دَ هغهٔ مور حضورؐ له كثرت سره دَ تلو راتلو او اكثر حضورؐ سره دَ پاتے كيدو په وجه مونږ هغوي اهل بيت گنړل.

۳۸۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ زَهْدَمٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ اَبُوْ مُوْسٰى اَكْرَمَ هٰذَا الْحَيَّ مِنْ جَرْمٍ وَ اِنَّا لَجُلُوْسٌ عِنْدَهٗ وَهُوَ يَتَغَدّٰى دَجَاجًا وَ فِي الْقَوْمِ رَجُلٌ جَالِسٌ فَدَعَاهُ اِلَى الْغَدَآءِ فَقَالَ اِنِّيْ رَاَيْتُهٗ يَاْكُلُ شَيْئًا فَقَذِرْتُهٗ قَالَ هَلُمَّ فَاِنِّيْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۳۸۳: ابو نعيم. عبدالسلام. ايوب. ابو قلابه. زهدم وائي، چه كوم وخت ابو موسٰي راغے، نو هغهٔ د قبيلهٔ جدم ئے ډير اعزاز اوكړ. مونږ هغهٔ سره ناست وو، او هغهٔ چرگ خوړلو، خلقو كښې يو بل سړے هم وو چه هغه ابو موسٰي دَ خوراك دَ پاره راوغښتلو، نو هغهٔ اووے، ما دا چرگ په څهٔ خوراك ليدلے دے په دے وجه دَ دے دَ خوراك نه ماته كركه (كراهت) راځي. ابو موسٰي اووے، راشه، ما نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په چرگ

وَسَلَّمَ يَأْكُلُهُ فَقَالَ اِنِّيْ حَلَفْتُ لَا اٰكُلُهُ فَقَالَ هَلُمَّ اُخْبِرُكَ عَنْ يَمِيْنِكَ اِنَّا اَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَرٌ مِنَ الْاَشْعَرِيِّيْنَ فَاسْتَحْمَلْنَاهُ فَاَبٰى اَنْ يَحْمِلَنَا فَاسْتَحْمَلْنَاهُ فَحَلَفَ اَنْ لَّا يَحْمِلَنَا ثُمَّ لَمْ يَلْبَثِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ اُتِيَ بِنَهْبِ اِبِلٍ فَاَمَرَ لَنَا بِخَمْسِ ذَوْدٍ فَلَمَّا قَبَضْنَاهَا قُلْنَا تَغَفَّلْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمِيْنَهُ لَا نُفْلِحُ بَعْدَهَا اَبَدًا فَاَتَيْتُهُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ حَلَفْتَ اَنْ لَّا تَحْمِلَنَا وَقَدْ حَمَلْتَنَا قَالَ اَجَلْ وَلٰكِنْ لَّا اَحْلِفُ عَلٰى يَمِيْنٍ فَاَرٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا اِلَّا اَتَيْتُ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ مِنْهَا.

خوړلو ليدلے دے، هغه اووے ما قسم خوړلے دے، چه نه به نے خورم، ابو موسٰي اووے، راشه، ستا دَ قسم باره کښې به زهٔ درته اووايم، چه څمونږ دَ اشعريانو يو جماعت ته حضورؐ دَ سورلۍ نه راکولو قسم اوخوړ. لږ ساعت پس حضورؐ له دَ مال غنيمت اوښان راغلل، نو حضورؐ مونږ ته دَ پنځه اوښانو راکولو حکم اوکړهٔ. کوم وخت چه مونږ هغه اوښان واخستل، نو مونږ اووے چه حضورؐ نه خپل قسم هير شولو. مونږ هيڅ کله (داسے حالت کښې) کامپابيدے نهٔ شو، نو زهٔ حضورؐ له راغلم، عرض مې اوکړهٔ، يا رسول اللّٰه، تاسو مونږ ته دَ سورلۍ نه راکولو قسم خوړلے وو، او اوس تاسو سورلۍ راکړے. حضورؐ اوفرمائيل، جي، او، زهٔ که څهٔ قسم اوخورم، او دَ هغے خلاف ماته نيکي په نظر راشي، نو زهٔ هغه نيکي اختياروم.

۳۸۴: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَخْرَةَ جَامِعُ بْنُ شَدَّادٍ حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ مُحْرِزٍ الْمَازِنِيُّ حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ قَالَ جَاءَتْ بَنُوْ تَمِيْمٍ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبْشِرُوْا يَا بَنِيْ تَمِيْمٍ قَالُوْا اَمَّا اِذَا بَشَّرْتَنَا فَاَعْطِنَا فَتَغَيَّرَ وَجْهُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبِلُوا الْبُشْرٰى اِذْ

۳۸۴: عمرو بن علي. ابو عاصم. سفيان. ابو صخره جامع بن شداد. صفوان بن محرز مازني. حضرت عمران بن حصين نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، کوم وخت چه بنو تميم دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو، نو حضورؐ اوفرمائيل اے بنو تميم. بشارت حاصل کړئے. هغوي اووے، تاسو بشارت خو راکړلو، اوس راته څهٔ مال هم عطا کړئے، نو دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخ مبارک متغير شولو. بيا دَ يمن نه څه خلق راغلل، نو حضورؐ ورته اوفرمائيل، بنو تميم خو بشارت

لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُوْ تَمِيْمَ قَالُوْا قَدْ قَبِلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ.

قبول نهٔ کړلو، تاسو ئې قبول کړې، نو هغوي اووې، يا رسول الله، مونږ قبول کړلو.

۳۸۵: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ إِسْمَاعِيْلَ بْنِ أَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ أَبِيْ مَسْعُوْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْإِيْمَانُ هٰهُنَا وَ أَشَارَ بِيَدِهٖ إِلَى الْيَمَنِ وَالْجَفَاءُ وَ غِلَظُ الْقُلُوْبِ فِي الْفَدَّادِيْنَ عِنْدَ أُصُوْلِ أَذْنَابِ الْإِبِلِ مِنْ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنَا الشَّيْطَانِ رَبِيْعَةَ وَ مُضَرَ.

۳۸۵: عبدالله بن محمد جعفي. وهب بن جرير. شعبه. اسمٰعيل بن ابي خالد. قيس بن ابي حازم. حضرت ابو مسعودؓ نه روايت کوي، هغهٔ بيان اوکړه، حضور صلي الله عليه وسلّم لاس سره يمن طرف ته اشاره اوکړه، وې فرمائيل، چه ايمان دلته دې، درشتي او سخت دلي ربيعه او مضر کښې ده، چه دَ اُوښانو لکو (ږمون)سره آواز کوي، دَ کوم ځائے نه چه دَ شيطان دَ سر، ګُټ (ښکر) نمودار کيږي (يعني نمر طلوع کيږي).

۳۸۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ ذَكْوَانَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتَاكُمْ أَهْلُ الْيَمَنِ هُمْ أَرَقُّ أَفْئِدَةً وَ أَلْيَنُ قُلُوْبًا الْإِيْمَانُ يَمَانٍ وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ وَالْفَخْرُ وَالْخُيَلَاءُ فِيْ أَصْحَابِ الْإِبِلِ وَالسَّكِيْنَةُ وَالْوَقَارُ فِيْ أَهْلِ الْغَنَمِ وَ قَالَ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ سَمِعْتُ ذَكْوَانَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۳۸۶: محمد بن بشار. ابن ابي عدي. شعبه. سليمان. ذکوان. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دې، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسوله يمن واله راغلي دي، چه رقيق القلب او نرم زړې دي، ايمان يمني دې، او حکمت يمني، فخر او تکبير اوښانو واله کښې دې. سکون او وقار چيلو واله کښې دې. غندر په واسطه دَ شعبه سليمان، ذکوان، حضرت ابوهريرهؓ حضو صلي الله عليه وسلّم نه دا حديث روايت کړې دې.

۳۸۷: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ أَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَبِي الْغَيْثِ عَنْ أَبِيْ

۳۸۷: اسماعيل. دَ هغهٔ ورور سليمان. ثور بن يزيد. ابوالغيث. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. دَ هغهٔ بيان دې، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل،

هُـرَيْـرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْاِيْمَانُ يَمَانٍ وَالْفِتْنَةُ هٰهُنَا وَ هٰهُنَا يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ.

ايمان يمني دے او فتنه دلته ده، ذ كوم خائے نه چه ذ شيطان ذ سر، ګټ (ښكر) نمودار كيږي (يعني نمر طلوع كيږي).

ف: دا ټول تمثيلات دي، ذ دے مطلب دا دے، چه نمر ته سجده كونكي ذ شيطان په جال كښې راغلے دي، هر كله چه هغوي نمر ته سجده كوي، نو ګويا شيطان ته سجده كوي، ذ فتنے خائے دے.

۳۸۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَتَاكُمْ اَهْلُ الْيَمَنِ اَضْعَفُ قُلُوْبًا وَ اَرَقُّ اَفْئِدَةً اَلْفِقْهُ يَمَانٍ وَّالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ.

۳۸۸: ابو اليمان. شعيب. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابو هريرةؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو ته يمني راغلے دي، چه نرم دله او رقيق القلب دي. فقه يمني ده، او حكمت هم يمني دے.

۳۸۹: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا مَعَ ابْنِ مَسْعُوْدٍ فَجَآءَ خَبَّابٌ فَقَالَ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَيَسْتَطِيْعُ هٰؤُلَاءِ الشَّبَابُ اَنْ يَّقْرَءُوْا كَمَا تَقْرَاُ قَالَ اَمَا اِنَّكَ لَوْ شِئْتَ اَمَرْتُ بَعْضَهُمْ يَقْرَاُ عَلَيْكَ قَالَ اَجَلْ قَالَ اقْرَءْ يَا عَلْقَمَةُ فَقَالَ زَيْدُ بْنُ حُدَيْرٍ اَخُوْ زِيَادِ بْنِ حُدَيْرٍ اَتَاْمُرُ عَلْقَمَةَ اَنْ يَقْرَاَ وَ لَيْسَ بِاَقْرَئِنَا اَمَا اِنَّكَ اِنْ شِئْتَ اَخْبَرْتُكَ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ قَوْمِكَ وَ قَوْمِهِ فَقَرَاْتُ خَمْسِيْنَ اٰيَةً مِنْ سُوْرَةِ مَرْيَمَ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ كَيْفَ تَرٰى قَالَ قَدْ اَحْسَنَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ مَا اَقْرَاُ شَيْئًا

۳۸۹: عبدان. ابو حمزه. اعمش. ابراهيم علقمه نه روايت دے، هغه وائي، مونږ ابن مسعود سره ناست وو، چه خبابؓ تشريف راوړلو، او هغۀ اووے، اے ابو عبدالرحمٰن آيا دا ذ ځوانانو طبقه ستا په شان قرآن لوستے شي، عبداللّٰه اووے، كه تهٔ غواړے، نو زۀ به هغوي كښې په چا قرآن تاته واوروم. هغۀ اووے، جي، او، واوروه، نو عبداللّٰه اووے، اے علقمه، اووايه (اولوله) نو زيد بن حدير ذ زياد بن حدير ورور، اووے، چه علقمه خو خمونږ نه ښه لوستونكے نۀ دے، بياهم تاسو ذ هغۀ نه آورے. عبداللّٰه جواب وركۀ، كه تۀ وائے، نو زۀ به ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه قول چه ستا ذ قوم او ذ هغۀ ذ قوم باره كښې دے، تاته اوښايم، (علقمه وائي چه) ما ذ سورۀ مريم پنځوس آيتونه اولوستل. عبداللّٰه اووے، اے خباب، څۀ رائے دے ده، هغۀ اووے، ښۀ لولي، عبداللّٰه اووے، څنګه چه زۀ لولم، علقمه هم هغسے

اِلاَّ وَهُوَ يَقْرَأُهُ ثُمَّ الْتَفَتَ اِلَى خَبَّابٍ وَ عَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ ذَهَبٍ فَقَالَ اَلَمْ يَأْنِ لِهٰذَا الْخَاتَمِ اَنْ يُلْقٰى قَالَ اَمَا اِنَّكَ لَنْ تَرَاهُ عَلَيَّ بَعْدَ الْيَوْمِ فَأَلْقَاهُ رَوَاهُ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ.

لولي. بيا عبدالله دَ خباب جانب ته چه دَ هغهٔ په لاس دَ سرو زرو گوته وه، متوجه شو، وے فرمائيل، آيا اوس دَ دے دَ غرخولو وخت نهٔ دے راغلے، خباب اووے، دَ نن نه پس به تاسو دا اونهٔ وينے، او گوته ئے اُوغرخوله. دا شعبه دَ غندر نه روايت کړے دے.

باب ۷۶: قِصَّةِ دَوْسٍ وَّالطُّفَيْلِ بْنِ عَمْرٍو الدَّوْسِيِّ.

باب ۷۶: دَ (قبيلهٔ) دوس او طفيل بن عمرو دوسي قصه.

۳۹۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ ذَكْوَانَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ جَاءَ الطُّفَيْلُ بْنُ عَمْرٍو اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَنَّ دَوْسًا قَدْ هَلَكَتْ عَصَتْ وَ اَبَتْ فَادْعُ اللّٰهَ عَلَيْهِمْ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اهْدِ دَوْسًا وَأْتِ بِهِمْ.

۳۹۰: ابو نعيم. سفيان. ذکوان. عبدالرحمٰن. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، چه طفيل بن عمرو دوسي، حضور صلي الله عليه وسلّم له راغے، او ورته ئے اووے، دوس قوم هلاک شولو، هغوي نافرماني کړے ده، او دَ اسلام نه ئے انکار اوکړ، هغوي ته بددُعا اوکړے، حضورؐ ورته اوفرمائيل، اے خدايه، قوم دوس ته هدايت اوکړے، او هغوي اسلام ته راولے.

۳۹۱: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ عَنْ قَيْسٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا قَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ فِي الطَّرِيْقِ.

يَا لَيْلَةً مِنْ طُوْلِهَا وَ عَنَائِهَا
عَلٰى اَنَّهَا مِنْ دَارَةِ الْكُفْرِ نَجَّتِ

وَ اَبَقَ غُلَامٌ لِيْ فِي الطَّرِيْقِ فَلَمَّا قَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَايَعْتُهُ فَبَيْنَا اَنَا عِنْدَهُ اِذْ طَلَعَ الْغُلَامُ فَقَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۳۹۱: محمد بن علاء. ابو اسامه. اسمٰعيل. قيس. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، کوم وخت چه زهٔ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښ حاضريدو دَ پاره راتلم، نو لاره کښ م اووے: (ترجمه)

اے شپے باوجود دَ درازي او مشقت (ستا شکريه)
چه تا، ماله دَ دار الکفر نه نجات راکړلو

او خما يو غلام لار کښ تښتيدلے وو، کوم وخت چه زهٔ دَ حضورؐ په خدمت کښ حاضر شوم، بيعت م اوکهٔ، نو يو ورځ زهٔ حضورؐ سره ووم، چه ناساپه هغه غلام راغے، حضورؐ ماته اوفرمائيل، اے ابوهريرهؓ، دا ستا هغه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ هٰذَا غُلَامُكَ فَقُلْتُ هُوَ لِوَجْهِ اللّٰهِ فَاَعْتَقْتُهُ.

غلام دے. ما اووے، ما دے خاص دَ اللّٰه دَ پاره آزاد کړلو.

## بَابُ۷۷: قِصَّةِ وَفْدِ طَيِّءٍ وَ حَدِيْثِ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ.

باب۷۷: دَ وفد بني طے او عدي بن حاتم قصه.

۳۹۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ اَتَيْنَا عُمَرَ فِيْ وَفْدٍ فَجَعَلَ يَدْعُوْ رَجُلًا رَجُلًا وَ يُسَمِّيْهِمْ فَقُلْتُ اَمَا تَعْرِفُنِيْ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَ بَلٰى اَسْلَمْتَ اِذْ كَفَرُوْا وَ اَقْبَلْتَ اِذْ اَدْبَرُوْا وَ وَفَيْتَ اِذْ غَدَرُوْا وَ عَرَفْتَ اِذْ اَنْكَرُوْا فَقَالَ عَدِيٌّ فَلَا اُبَالِيْ اِذًا.

۳۹۲: موسٰي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. عبدالملک. عمرو بن حريث. عدي بن حاتم نه روايت کوي، هغه بيان کوي، مونږ يو وفد کښې حضرت عمرؓ له راغلو، نو هغه به دَ يو يو سړي نوم اخستلو او راغبنتلوئے، ما اووے، اے امير المؤمنين، آيا تاسو ما نهٔ پيژنئے، نو وے فرمائيل، ولے نه، کوم وخت چه خلق ورستو وو، نو تهٔ مخکښې راغلے، چه خلقو دهوکه اوکړه، نو تا وفا اوکړله، او خلقو چه (دَ حقانيت اسلام نه) انکار اوکړلو، نو تا اُوپيژندلو. عدي اووے، اُوس خما هيڅ پروا نشته.

**الحمدلله والشکر لله اوولسمه پاره ختمه شوه**

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۱۸


شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری



تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پیشاور
فون: 214454

C-23

# تاج البخاري پاره ١٨ دمضامینو فهرست


| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ٧٨. | حجة الوداع | ٢٧٦٦ |
| ٧٩. | غزوه تبوک | ٢٧٧٦ |
| ٨٠. | د کعب بن مالکؓ واقعه | ٢٧٧٩ |
| ٨١. | مقام حجر کښې د حضورؐ قیام | ٢٧٩٠ |
| ٨٢. | کسريٰ او قیصر ته د حضورؐ خطونه | ٢٧٩٢ |
| ٨٣. | د حضورؐ ناروغتیا او وفات | ٢٧٩٣ |
| ٨٤. | د نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلّم آخري خبره | ٢٨٠٩ |
| ٨٥. | د نبي کریمؐ وفات | ٢٨١٠ |
| ٨٦. | باب | ٢٨١١ |
| ٨٧. | د حضورؐ اسامه بن زیدؓ لره په مهم باندې روانول | ٢٨١١ |
| ٨٨. | باب | ٢٨١٢ |
| ٨٩. | نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلّم څو غزاګانې کړې دي | ٢٨١٢ |
| | کتاب التفسیر | |
| ٩٠. | د سورتِ فاتحې فضیلت | ٢٨١٣ |
| ٩١. | د غیر المغضوب علیهم ولا الضالین تفسیر | ٢٨١٤ |
| ٩٢. | سورت بقره | ٢٨١٥ |
| ٩٣. | آدمؑ ته ټولې نامې اوښودلې شوې | ٢٨١٥ |
| ٩٤. | د مجاهد بیان | ٢٨١٧ |
| ٩٥. | د اللّٰه تعالیٰ ارشاد | ٢٨١٧ |
| ٩٦. | او په تاسو باندې مونږه د وریځې سورې اوکړو | ٢٨١٨ |
| ٩٧. | د وَ اِذْ قُلْنَا ادْخُلُوا تفسیر | ٢٨١٨ |
| ٩٨. | د اللّٰه تعالیٰ ارشاد مَنْ کَانَ | ٢٨١٩ |
| ٩٩. | کله چه مونږ یو آیت منسوخ کړو | ٢٨٢١ |
| ١٠٠. | عیسایانو عیسیٰ علیه السلام لره د اللّٰه ځوئے جوړ کړو | ٢٨٢٢ |
| ١٠١. | کوم طرفته چه بیا بیا راتلل کوي | ٢٨٢٢ |
| ١٠٢. | کله چه ابراهیمؑ او اسمعیلؑ د بیت اللّٰه بنیاد اوچتولو | ٢٨٢٣ |
| ١٠٣. | تاسو اُوایئ چه مونږه په اللّٰه باندې ایمان راوړے دے | ٢٨٢٤ |
| ١٠٤. | بیوقوفان خلق به ضرور وائي چه دوئ د مخکښې قبلې نه څه څیز اوګرځول | ٢٨٢٤ |
| ١٠٥. | مونږه تاسو منځومانه امت جوړ کړي یئ | ٢٨٢٦ |
| ١٠٦. | په کومه قبله چه ته اوسې پورې وې | ٢٨٢٦ |
| ١٠٧. | بیشکه مونږه اولیدل | ٢٨٢٧ |
| ١٠٨. | که ته ددې خلقو مخې ته ټولې ښنې هم راوړې | ٢٨٢٧ |
| ١٠٩. | کومو خلقوله چه مونږه کتاب ورکړے دے | ٢٨٢٨ |
| ١١٠. | هر یو د پاره یو رُخ وي | ٢٨٢٨ |
| ١١١. | خپل مخ مسجد حرام طرفته اوګرځوي | ٢٨٢٩ |
| ١١٢. | تاسو چه د کوم ځائے نه هم اوځئ | ٢٨٢٩ |
| ١١٣. | صفا او مروه د اللّٰه نخښې دي | ٢٨٣٠ |
| ١١٤. | او څه خلق داسې هم دي | ٢٨٣١ |
| ١١٥. | اے ایمان والو تاسو باندې قصاص فرض کړے شوے دے | ٢٨٣٢ |
| ١١٦. | اے ایمان والو تاسو باندې روژې فرض کړې شوې | ٢٨٣٣ |
| ١١٧. | د شماریو څو روژې دي | ٢٨٣٥ |
| ١١٨. | نو څوک چه تاسو کښې دا میاشت بیامومي | ٢٨٣٦ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۱۱۹ | حاضر کړے شوي دي | ۲۸۳۷ |
| ۱۲۰ | حورئ او ښکئ | ۲۸۳۷ |
| ۱۲۱ | دا خو څه نیکي نه ده | ۲۸۳۹ |
| ۱۲۲ | هغوئ سره او جنګیږئ | ۲۸۳۹ |
| ۱۲۳ | د الله په لاره کښے خرچ کوئ | ۲۸۴۱ |
| ۱۲۴ | که په تاسو کښے څوک بیمار وي | ۲۸۴۲ |
| ۱۲۵ | نو کوم سړے چه د عمرے نه فائده مند شي | ۲۸۴۲ |
| ۱۲۶ | تاسو د پاره په د خبره کښے څه بدیت نیشته | ۲۸۴۳ |
| ۱۲۷ | نو تاسو د هغه ځائے نه واپس راشئ | ۲۸۴۳ |
| ۱۲۸ | او په دوئ کښے داسے هم دي | ۲۸۴۵ |
| ۱۲۹ | هغه ډیر سخت جهګړے مار دے | ۲۸۴۵ |
| ۱۳۰ | آیا تاسو ګمان کوئ | ۲۸۴۶ |
| ۱۳۱ | ستاسو بیبیانے ستاسو پټي دي | ۲۸۴۶ |
| ۱۳۲ | کله چه تاسو ښځو له طلاق ورکړئ | ۲۸۴۷ |
| ۱۳۳ | تاسو کښے چه کوم خلق وفات شي | ۲۸۴۸ |
| ۱۳۴ | د ټولو مونځونو پابندي کوئ او خاصکر د مازیګر مونځ | ۲۸۵۱ |
| ۱۳۵ | د الله په وړاندے په عاجزئ سره او دریږئ | ۲۸۵۱ |
| ۱۳۶ | لیکن که چرے تاسو ته اندیښنه وي | ۲۸۵۲ |
| ۱۳۷ | کوم خلق چه تاسو کښے وفات بیاموي | ۲۸۵۳ |
| ۱۳۸ | قابل ذکر وخت | ۲۸۵۴ |
| ۱۳۹ | آیا په تاسو کښے څوک دا خوښوي | ۲۸۵۴ |
| ۱۴۰ | هغوئ د خلقونه په کلکه غوښتل نه کوي | ۲۸۵۵ |
| ۱۴۱ | حالانکه الله تعالی سوداګري حلاله کړے ده | ۲۸۵۶ |
| ۱۴۲ | الله سود متاوئ | |
| ۱۴۳ | خبردار شئ | ۲۸۵۷ |
| ۱۴۴ | که چرے تنګ لاسے وي الخ | |
| ۱۴۵ | د هغه ورځے نه یره کوئ | ۲۸۵۷ |
| ۱۴۶ | څه چه ستاسو په نفسونو کښے دننه دي | ۲۸۵۸ |
| ۱۴۷ | پیغمبرانو ایمان راوړے دے | ۲۸۵۸ |
| | سورة آل عمران | |
| ۱۴۸ | په دے کښے محکم آیتونه دي | ۲۸۵۹ |
| ۱۴۹ | زه هغه او د هغه اولاد لره | ۲۸۶۰ |
| ۱۵۰ | کوم خلق چه د الله لوظ خرخوي | ۲۸۶۱ |
| ۱۵۱ | ته ورته اُووایه چه راشئ یوے کلمے طرف ته | ۲۸۶۳ |
| ۱۵۲ | ترڅو پورے چه تاسو خپل محبوب څیزونه خرچ نه کړئ | ۲۸۶۸ |
| ۱۵۳ | ته ورته او وایه چه تورات راوړئ | ۲۸۶۹ |
| ۱۵۴ | تاسو خلق بهترین جماعت یئ | ۲۸۷۰ |
| ۱۵۵ | ستا په دے کار کښے هیڅ دخل نیشته | ۲۸۷۰ |
| ۱۵۶ | ستا په اختیار کښے هیڅ نیشته | ۲۸۷۱ |
| ۱۵۷ | رسول تاسو ته اوازونه کول | ۲۸۷۲ |
| ۱۵۸ | تاسو باندے ئے راحت نازل کړو | ۲۸۷۳ |
| ۱۵۹ | کومو خلقو چه الله او د هغه رسول او منلو | ۲۸۷۳ |
| ۱۶۰ | خلقو ستاسو خلاف لوئے سامان راجمع کړے دے | ۲۸۷۳ |
| ۱۶۱ | او کوم خلق چه | ۲۸۷۴ |
| ۱۶۲ | یقینا تاسو خلق | ۲۸۷۵ |
| ۱۶۳ | کوم خلق چه په خپلو عملونو باندے خوشاله شوي دي | ۲۸۷۷ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۱۶۴. | د اسمانونو او زمکے پیدائش | ۲۸۷۰ |
| ۱۶۵. | دا داسے خلق دي | ۲۸۸۰ |
| ۱۶۶. | اے زمونږ پروردګاره | ۲۸۸۱ |
| ۱۶۷. | مونږ د یو آواز کونکي نه واؤریدل | ۲۸۸۲ |
| | سورت نساء | |
| ۱۶۸. | که چرے تاسو سره اندیښنه وي | ۲۸۸۳ |
| ۱۶۹. | البته کوم کس چه نیست مند وي | ۲۸۸۵ |
| ۱۷۰. | کله چه ذ ویش وخت کښے | ۲۸۸۵ |
| ۱۷۱. | اللّه تاسو ته ستاسو د اولاد باره کښے حکم درکوي | ۲۸۸۶ |
| ۱۷۲. | تاسو د پاره د دغه مال نیمه ده | ۲۸۸۶ |
| ۱۷۳. | تاسو د پاره جائز نه دي | ۲۸۸۷ |
| ۱۷۴. | کوم مال چه مور پلار نه پاتے شي | ۲۸۸۸ |
| ۱۷۵. | اللّه یو ذره قدرے هم ظلم نه کوي | ۲۸۸۹ |
| ۱۷۶. | نو هغه وخت به څه حال وي | ۲۸۹۱ |
| ۱۷۷. | او که چرے تاسو ناجوړه يئ | ۲۸۹۱ |
| ۱۷۸. | اے ایمان والؤ | ۲۸۹۲ |
| ۱۷۹. | پس ستا پروردګار باندے قسم دے | ۲۸۹۳ |
| ۱۸۰. | داسے خلق به هغوئ سره وي | ۲۸۹۳ |
| ۱۸۱. | تاسو ته څه عُزر دے | ۲۸۹۴ |
| ۱۸۲. | په تاسو باندے څه شوي دي | ۲۸۹۵ |
| ۱۸۳. | کله چه هغوئ ته د ویرے څه خبرد اورسي | ۲۸۹۵ |
| ۱۸۴. | څوک چه یو مسلمان قصدا اووژني | ۲۸۹۶ |
| ۱۸۵. | څوک چه تاسو ته سلام اوکړي | ۲۸۹۶ |
| ۱۸۶. | د مسلمانانو نه | ۲۸۹۷ |
| ۱۸۷ | بیشکه د هغه خلقو خان | ۲۸۹۹ |
| ۱۸۸. | سوا د هغه خلقونه | ۲۹۰۰ |
| ۱۸۹. | نو دا خلق داسے دي | ۲۹۰۰ |
| ۱۹۰. | تاسو د پاره الخ | ۲۹۰۰ |
| ۱۹۱. | تاسه د ښځو باره کښے فتوي غواړي | ۲۹۰۱ |
| ۱۹۲. | که چرے یوے ښځے ته د خپل خاوند د طرفنه زیاتي اندیښنه وي | ۲۹۰۲ |
| ۱۹۳. | منافقان به د دوزخ ښکته نئ طبقه کښے وي | ۲۹۰۲ |
| ۱۹۴. | مونږه تا طرفته وحي درلیګلے ده | ۲۹۰۳ |
| ۱۹۵. | خلق تانه د کلاله باره کښے تپوس کوي | ۲۹۰۳ |
| | سورت مائده | |
| ۱۹۶. | نن ما ستاسو دین کامل کړلو | ۲۹۰۵ |
| ۱۹۷. | بیا تاسو ته اوبه ملاؤ نشي | ۲۹۰۵ |
| ۱۹۸. | نو ته پخپله لاړ شه | ۲؟۰۷ |
| ۱۹۹. | کوم خلق چه اللّه او رسول سره جنګیږي | ۲۹۰۸ |
| ۲۰۰. | په زخمونو کښے قصاص دے | ۲۹۰۹ |
| ۲۰۱. | ته اورسوه څه چه ستا رب نازل کړي دي | ۲۹۱۰ |
| ۲۰۲. | اللّه تاسو نه په بے مطلبه قسم باندے مواخذه نه کوي | ۲۹۱۱ |
| ۲۰۳. | په خپل خان باندے هغه پاکیزه څیزونه الخ | ۲۹۱۱ |
| ۲۰۴. | شراب او جزاري | ۲۹۱۲ |
| ۲۰۵. | کوم خلق چه ایمان لري | ۲۹۱۳ |
| ۲۰۶. | د داسے خبرو تپوس مه کوي | ۲۹۱۴ |
| ۲۰۷. | د اللّه تعالي نه | ۲۹۱۶ |
| ۲۰۸. | زه په دوی باندے ګواه اوم | ۲۹۱۷ |
| ۲۰۹. | که چرے ته دوی له عذاب ورکړے | ۲۹۱۸ |
| | سورت انعام | |
| ۲۱۰. | هغه سره د غیب خزانے دي | ۲۹۲۰ |

| باب | مضامین | صفحه | باب | مضامین | صفحه | باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲۱۱. | ته ورته اووايه | ۲۹۲۱ | ۲۱۹. | كله چه موسیٰؑ زمونږه وخت له راغے | ۲۹۲۸ | ۲۲۸. | حالانكه الله به داسے نه كوي | ۲۹۳۵ |
| ۲۱۲. | كومو خلقو چه ايمان راوړو | ۲۹۲۱ | ۲۲۰. | ترنجبين او مرزان ملاويدل | ۲۹۲۹ | ۲۲۹. | او دوئ سره او جنگيږئ | ۲۹۳۶ |
| ۲۱۳. | يونسؑ او لوط او ټولو پيغمبرانو ته ئے فضيلت وركړے دے | ۲۹۲۲ | ۲۲۱. | اے انسانانو الخ | ۲۹۲۹ | ۲۳۰. | اے نبيؐ! مسلمانانو له ترغيب وركړه | ۲۹۳۸ |
| ۲۱۴. | همدا هغه خلق دي | ۲۹۲۲ | ۲۲۲. | دا وينا كوئ چه زمونږه توبه ده | ۲۹۳۰ | ۲۳۱. | اوس الله په تاسو باندے تخفيف اوكړو | ۲۹۳۸ |
| ۲۱۵. | كوم خلق چه يهوديان دي | ۲۹۲۳ | ۲۲۳. | درگذر اختيار كړئ | ۲۹۳۱ | | | |
| | | | | سورت انفال | | | | |
| ۲۱۶. | بے حيا كارونو ته نزدے هم مه ورځئ | ۲۹۲۴ | ۲۲۴. | اے پيغمبره دا خلق تانه الخ | ۲۹۳۲ | | | |
| ۲۱۷. | ته اُوايه چه خپل گواهان راولئ | ۲۹۲۵ | ۲۲۵. | بدترين حيوانات | ۲۹۳۳ | | تمت | |
| | سورتِ اعراف | | ۲۲۶. | اے ايمان والؤ | ۲۹۳۳ | | | |
| ۲۱۸. | تاسو ورته اووايئ | ۲۹۹۷ | ۲۲۷. | اے الله كه چرے دا قرآن حق وي | ۲۹۳۴ | | | |

# اتلسمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

باب ۷۸: حَجَّةُ الْوَدَاعِ.

۳۹۳: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَأَهْلَلْنَا بِعُمْرَةٍ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ فَلْيُهْلِلْ بِالْحَجِّ مَعَ الْعُمْرَةِ ثُمَّ لَا يَحِلَّ حَتَّى يَحِلَّ مِنْهُمَا جَمِيعًا فَقَدِمْتُ مَعَهُ مَكَّةَ وَ اَنَا حَائِضٌ وَلَمْ اَطُفْ بِالْبَيْتِ وَلَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَشَكَوْتُ اِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ انْقُضِيْ رَأْسَكِ وَامْتَشِطِيْ وَ اَهِلِّيْ بِالْحَجِّ وَ دَعِي الْعُمْرَةَ فَفَعَلْتُ فَلَمَّا قَضَيْنَا الْحَجَّ اَرْسَلَنِيْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِ اِلَى التَّنْعِيْمِ فَاعْتَمَرْتُ فَقَالَ هٰذِهٖ مَكَانَ عُمْرَتِكِ قَالَتْ فَطَافَ الَّذِيْنَ اَهَلُّوْا بِالْعُمْرَةِ بِالْبَيْتِ وَ بَيْنَ

باب ۷۸: د حجة الوداع بيان.

۳۹۳: اسماعيل بن عبدالله. امام مالک. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، د هغې بيان دے حجة الوداع دَ پاره مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم سره لاړلو، او كوم وخت چه احرام مو اوتړلو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل كومو خلقو چه ځان سره دَ قرباني خناور راوستلے دي، هغوي دے دَ حج او عمرے دواړو نيت اوكړي او هغه وخته پورے دے احرام نۀ پرانزي، څو پورے چه دواړه كارونه پوره طور سره تر سره نشي. غرض كوم وخت چه زۀ مكے ته اورسيدم، نو حائضه ووم، په دے وجه نۀ خو ما دَ كعبے طواف اوكۀ، او نۀ مِ دَ صفا مروه سعي اوكړله، ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته شكايت اوكۀ، يا رسول الله، اوس زۀ څۀ اوكړم، حضورؐ اوفرمائيل، سر پرانزه، ويښتۀ ګومنز كړه، او دَ حج په نيت احرام اوتړه، او عمره پريږده، نو ما دغسے اوكړل، بيا چه دَ حج نه فارغه شوم، نو حضورؐ زۀ عبدالرحمٰن بن ابي بكر سره مقام تنعيم ته اوليږلم، ما دَ هغے ځائے نه دَ عمرے احرام اوتړلو. حضورؐ اوفرمائيل، دا عُمره دَ دے په بدله كښې ده، چه تا ترک كړے وه. بي بي عائشہؓ فرمائي، كوم خلقو چه دَ عمرے نيت سره احرام تړلے وو، هغوي چه مكے ته اورسيدل، نو طواف كعبه او دَ صفا مروه سعي ئے اوكړله. بيائے خپل احرام كوز كړلو، دے نه پس دَ

الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ طَافُوْا طَوَافًا اٰخَرَ بَعْدَ اَنْ رَّجَعُوْا مِنَ الْمِنٰى وَ اَمَّا الَّذِيْنَ جَمَعُوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَاِنَّمَا طَافُوْا طَوَافًا وَّاحِدًا.

حج نه فارغ کیدو سره د منیٰ نه مکې ته راغلل، نو د حج دویم طواف او سعي ئې اوکړله، او کوم چه داسې خلق وو، چه هغوي د حج او عمرې دواړو نیت سره احرام تړلې وو. هغوي صرف یو ځل طواف او سعي اوکړله.

۳۹۴: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَطَاءٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اِذَا طَافَ بِالْبَيْتِ فَقَدْ حَلَّ فَقُلْتُ مِنْ اَيْنَ قَالَ هٰذَا ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ مِنْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى ثُمَّ مَحِلُّهَا اِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ وَمِنْ اَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْحَابَهُ اَنْ يَّحِلُّوْا فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ قُلْتُ اِنَّمَا كَانَ ذٰلِكَ بَعْدَ الْمُعَرَّفِ قَالَ كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَرَاهُ قَبْلُ وَ بَعْدُ.

۳۹۴: عمرو بن علي. یحیي بن سعید. ابن جریج. عطاء. ابن عباسؓ نه روایت کوي، هغهٔ اووې، هر کله چه عمره کونکې د کعبې طواف اوکړي، نو حلال شي، نو ما (ابن جریج) عطاء ته اووې، دا مسئله ابن عباسؓ د کوم ځائې نه اخستې ده، هغهٔ اووې، د خدائې د هغې ارشاد نه چه "بیا د هغوي حلال کیدل بیت العتیق سره دي" او خپله حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم خپلو اصحابو ته حجة الوداع کښې د احرام پرانستلو حکم ورکړلو. ما اووې، چه دا وقوف د عرفه نه پس دې، نو هغهٔ اووې، د ابن عباسؓ دا خیال وو، چه عرفات ته د رسیدو نه مخکښې او ورستو کله هم طواف اوکړي احرام پرانستې شي.

۳۹۵: حَدَّثَنِيْ بَيَانٌ حَدَّثَنَا النَّضْرُ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ طَارِقًا عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّؓ قَالَ قَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَطْحَاءِ فَقَالَ اَحَجَجْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ كَيْفَ اَهْلَلْتَ قُلْتُ لَبَّيْكَ بِاِهْلَالٍ كَاِهْلَالِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ طُفْ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ حِلَّ فَطُفْتُ بِالْبَيْتِ وَ بِالصَّفَا

۳۹۵: بیان. نضر. شعبه. قیس. طارق. ابو موسیٰ اشعري نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دې، زهٔ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم سره بطحاء کښې موجود وومٔ. حضورؐ ماته اوفرمائیل، آیا تا د حج احرام تړلې دې، ما عرض اوکړ، جي، او حضورؐ اوفرمائیل، تا احرام څهٔ وئیلو سره تړلې وو، ما عرض اوکړ، دا چه زهٔ هم هغه احرام تړم، کوم چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم تړلې دې دې نه پس حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، د کعبې د طواف او صفا مروه د سعي نه پس احرام پرانزه، نو ما طواف اوکړ، سعي مې اوکړله، احرام مې پرانستلو، او

وَالْمَرْوَةِ وَ اَتَيْتُ اِمْرَأَةً مِنْ قَيْسٍ فَفَلَتْ رَأْسِيْ.

بیا ذَ قبیلـه قیس یوې ښځې ذَ سر نه راله سپږې اوښکلې.

۳۹۶: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ اَخْبَرَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ اَخْبَرَهُ اَنَّ حَفْصَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ اَزْوَاجَهُ اَنْ يَحْلِلْنَ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَقَالَتْ حَفْصَةُ فَمَا يَمْنَعُكَ فَقَالَ لَبَّدْتُ رَأْسِيْ وَ قَلَّدْتُ هَدْيِيْ فَلَسْتُ اَحِلُّ حَتّٰى اَنْحَرَ هَدْيِيْ.

۳۹۶: ابراهیم منذر. انس بن عیاض. موسٰي بن عقبه. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، هغه اووې، ماته ذَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم تېر، بي بي حفصېؓ اووې، حجة الوداع کښې حضورؐ خپلو بیبیانو ته ارشاد اوفرمائیلو، تاسو ټولې احرام پرانزئې، ما عرض اوکۀ، یا رسول اللّٰه، تاسو ولې احرام نۀ پرانزئې، وې فرمائیل، ما ذَ خپلې قرباني ذَ خناور غاړه کښې پټې اچولې ده، او ویښتۀ مې جم کړې دي. ذَ قرباني خناور مې هار اچولې راوستې دې، نو څو پورې چه خپل خناور ذبح نۀ کړم، زۀ احرام نشم پرانستې.

۳۹۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ قَالَ حَدَّثَنِيْ شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ امْرَأَةً مِنْ خَثْعَمَ اسْتَفْتَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَالْفَضْلُ بْنُ عَبَّاسٍ رَدِيْفُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ فَرِيْضَةَ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهٖ اَدْرَكَتْ اَبِيْ شَيْخًا كَبِيْرًا لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يَسْتَوِيَ عَلَى الرَّاحِلَةِ فَهَلْ يَقْضِيْ اَنْ اَحُجَّ عَنْهُ قَالَ

۳۹۷: ابوالیمان. شعیب. زهري. محمد بن یوسف. اوزاعي. ابن شهاب. سلیمان بن یسار. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي ذَ هغۀ بیان دې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم حجة الوداع کښې په سورلي ناست وو، او فضل ابن عباسؓ ذَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورستو ناست وو، چه ذَ قبیله خثعم یوې ښځې حضورؐ ته عرض اوکۀ، یا رسول اللّٰه، خما په پلار حج فرض شوې دې، خو هغه دومره بوډا دې چه په سورلي کیناستې نشي، آیا زۀ ذَ هغۀ ذَ طرف نه حج کولې شم، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، او،

نَعَمْ.

**۳۹۸: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ حَدَّثَنِيْ سُرَيْجُ بْنُ النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ وَهُوَ مُرْدِفٌ اُسَامَةَ عَلَى الْقَصْوَآءِ وَ مَعَهُ بِلَالٌ وَ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ حَتّٰى اَنَاخَ عِنْدَ الْبَيْتِ ثُمَّ قَالَ لِعُثْمَانَ ائْتِنَا بِالْمِفْتَاحِ فَجَاءَهُ بِالْمِفْتَاحِ فَفُتِحَ لَهُ الْبَابُ فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُسَامَةُ وَ بِلَالٌ وَ عُثْمَانُ ثُمَّ اَغْلَقُوْا عَلَيْهِمُ الْبَابَ فَمَكَثَ نَهَارًا طَوِيْلًا ثُمَّ خَرَجَ وَابْتَدَرَ النَّاسُ الدُّخُوْلَ فَسَبَقْتُهُمْ فَوَجَدْتُ بِلَالًا قَآئِمًا مِنْ وَّرَآءِ الْبَابِ فَقُلْتُ لَهُ اَيْنَ صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ صَلّٰى بَيْنَ ذَيْنِكَ الْعَمُوْدَيْنِ الْمُقَدَّمَيْنِ وَ كَانَ الْبَيْتُ عَلٰى سِتَّةِ اَعْمِدَةٍ سَطْرَيْنِ صَلّٰى بَيْنَ الْعَمُوْدَيْنِ مِنَ السَّطْرِ الْمُقَدَّمِ وَ جَعَلَ بَابَ الْبَيْتِ خَلْفَ ظَهْرِهٖ وَاسْتَقْبَلَ بِوَجْهِهِ الَّذِيْ يَسْتَقْبِلُكَ حِيْنَ تَلِجُ الْبَيْتَ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ الْجِدَارِ قَالَ وَ نَسِيْتُ اَنْ اَسْاَلَهٗ كَمْ صَلّٰى وَ عِنْدَ الْمَكَانِ الَّذِيْ صَلّٰى فِيْهِ مَرْمَرَةٌ حَمْرَآءُ.**

کولے شي.

**۳۹۸:** محمد. سريج بن نعمان. فليح. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، ذَ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ فتح مکے په کال په خپله اوښه قصواء سور وو، او حضرت اسامه ذَ حضورؐ ورستو ناست وو، حضرت بلال او عثمان بن طلحه ورسره ملګري وو، تردے چه کعبے ته راغلل. او اُوښه ئے کينوله. ذَ عثمان بن طلحه نه ئے قُنجي اُوغښتله. ذَ کعبے دروازه ئے پرانسته، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم حضرت اسامهؓ، بلالؓ او عثمانؓ دننه ورغلل، بيائے دروازه ذَ دننه نه بنده کړله. ډير ساعت پس ئے بهر ته تشريف راوړلو. ډير خلق دننه داخليدو ذَ پاره ورمخکښ شو، خو زهٔ ذَ ټولو نه مخکښ ورننوتم. حضرت بلالؓ ورسره ولاړ وو. ما ذَ هغهٔ نه تپوس اوکهٔ، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونځ کوم ځائے ادا کړے دے، هغهٔ اووے چه دا شپږ ستنے دي. دے کښې چه کومے وړمبنے درے ستنے دي، ذَ هغے د دغے دوو مينځ کښې حضورؐ مونځ کړے دے. او د حضورؐ شا مبارکه دروازے طرف ته وه، او مخ مبارک ئے مخامخ ديوال طرف ته وو، ذَ حضرت ابن عمرؓ بيان دے. ما نه دا معلومول هير شولو، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم څومره رکعاته ادا کړي وو، او کوم ځائے چه حضورؐ مونځ کولو، هلته يو اعلي سُور کاڼړے لګيدلے وو.

۳۹۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ وَ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُمَا اَنَّ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَاضَتْ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَابِسَتُنَا هِيَ فَقُلْتُ اِنَّهَا قَدْ اَفَاضَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ طَافَتْ بِالْبَيْتِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْتَنْفِرْ.

۳۹۹: ابو اليمان. شعيب. زهري. عروه بن زبير. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. بي بي عائشې تېر دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، دَ هغې بيان دے، اُمّ المومنين بي بي صفيه دَ حج الوداع په ورځ حائضه شوه، حضورؐ اوفرمائيل: دَ هغې په وجه به آيا مونږ ايساريږو، ما عرض اوكړه، يا رسول اللّٰه، هغې خو مكې ته واپسئ كښې طواف زيارت كړے دے، حضورؐ اوفرمائيل بيا څه فكر دے، مونږ سره (دے مدينې ته) ځي، ځكه چه دَ طواف وداع هيڅ ضرورت نشته.

۴۰۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَنَّ اَبَاهُ حَدَّثَهُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا نَتَحَدَّثُ بِحَجَّةِ الْوَدَاعِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَظْهُرِنَا وَلَا نَدْرِيْ مَا حَجَّةُ الْوَدَاعِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ ذَكَرَ الْمَسِيْحَ الدَّجَّالَ فَاَطْنَبَ فِيْ ذِكْرِهِ وَ قَالَ مَا بَعَثَ اللّٰهُ مِنْ نَّبِيٍّ اِلَّا اَنْذَرَ اُمَّتَهُ اَنْذَرَهُ نُوْحٌ وَالنَّبِيُّوْنَ مِنْ بَعْدِهِ وَ اِنَّهُ يَخْرُجُ فِيْكُمْ فَمَا خَفِيَ عَلَيْكُمْ مِنْ شَأْنِهِ فَلَيْسَ يَخْفٰى عَلَيْكُمْ اِنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِاَعْوَرَ وَ اِنَّهُ

۴۰۰: يحيٰي بن سليمان. ابن وهب. عمرو بن محمد. محمد بن زيد. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، يو ځل مونږ دَ حجة الوداع ذكر كولو، او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ كښې موجود وو، خو مونږ ته دا معلومه نهٔ وه، چه حجة الوداع څهٔ ته وائي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ اللّٰه دَ تعريف نه پس دَ مسيح دجال ذكر ډير تفصيل سره اوكړلو. بيائے ارشاد اوفرمائيلو. هيڅ نبي داسے نهٔ دے راغلے، چه هغهٔ خپل اُمت دَ مسيح دجال نه يرولے نه وي، تردے چه نوح عليه السلام او دَ هغهٔ نه پس راتلونكو پيغمبرانو نم اويرول. هغه به ضرور راوځي او ستاسو دَ پيژندګلو دَ پاره دا علامت كافي دے، چه هغه به كاڼړے (كانا) وي، او ستاسو رب كاڼړے نهٔ دے. دَ هغهٔ ښئے ستر ګه به كاڼړے وي، او دَ آنګور دَ دانې په شان به راپړسيدلے وي. نو په

اَعْوَرُ عَيْنِ الْيُمْنٰى كَاَنَّ عَيْنَهٗ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ اَلَا اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ دِمَاءَكُمْ وَ اَمْوَالَكُمْ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ بَلَدِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا اَلَا هَلْ بَلَّغْتُ قَالُوْا نَعَمْ قَالَ اَللّٰهُمَّ اشْهَدْ ثَلَاثًا وَيْلَكُمْ اَوْ وَيْحَكُمْ اُنْظُرُوْا لَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ كُفَّارًا يَّضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ.

ښه شان واورئ چه څنګه ئې دې ښار او مياشت کښې د مسلمانانو وينه (خون) او مال حرام کړے شوے دي. دغه شان آينده د پاره به هم حرام وي. حضورؐ تپوس او کړو، آيا ما د الله احکام تاسوته اورسول. نو ټولو په يوه ژبه اقرار او کړو، اوونيلے، جي، او، بيا حضورؐ درے خله اوفرمائيل، اے الله ته ګواه ئې. بيائے اوفرمائيل، ګورے، دا، افسوس ناک کار اونه کړئ، چه خما نه پس کافر شئ، او خپلو کښې د يو بل ګردنونه وهئ.

۴۰۱: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ قَالَ حَدَّثَنِيْ زَيْدُ بْنُ اَرْقَمَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا تِسْعَ عَشْرَةَ غَزْوَةً وَ اَنَّهٗ حَجَّ بَعْدَ مَا هَاجَرَ حَجَّةً وَّاحِدَةً لَمْ يَحُجَّ بَعْدَهَا حَجَّةَ الْوَدَاعِ قَالَ اَبُوْ اِسْحٰقَ وَ بِمَكَّةَ اُخْرٰى.

۴۰۱: عمرو بن خالد. زهير. ابو اسحاق سبيعي. زيد بن ارقم نه روايت کوي، د هغه بيان دے، حضورؐ نورلس (۱۹) غزاګانې اوکړلے، او د هجرت نه پس ئې صرف يو حج او کړو، چه هغے ته حجة الوداع وائي، دے نه پس حضورؐ حج نه دے کړے. د ابو اسحاق بيان دے، حضورؐ يو حج هغه وخت کړے وو، کوم وخت چه حضورؐ مکه کښې وو.

۴۰۲: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَلِيِّ بْنِ مُدْرِكٍ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيْرٍ عَنْ جَرِيْرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ لِجَرِيْرٍ اسْتَنْصِتِ النَّاسَ فَقَالَ لَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ كُفَّارًا يَّضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ.

۴۰۲: حفص بن عمر. شعبه. علي بن مدرک. ابي زرعه بن عمرو بن جرير. حضرت جرير بجلي نه روايت کوي، د هغه بيان دے، حجة الوداع کښې حضورؐ ماته اوفرمائيل، ټول خلق خاموش کړه، چه زه څه وايم، نو هغوي به ئې واوري. دے نه پس حضورؐ اوفرمائيل، اے خلقو، خما نه پس داسے مه کوئ، چه د اسلام نه اوګرځئ، او کافر شئ، خپلو کښې د يو بل ګردنونه وهل شروع کړئ.

۴۰۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ

۴۰۳: محمد بن مثنی. عبدالوهاب. ايوب. محمد. ابن ابي بکر. حضرت ابوبکرؓ نه روايت کوي، د

حَدَّثَنَا اَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ اَبِي بَكْرَةَ عَنْ اَبِي بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الزَّمَانُ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ اَلسَّنَةُ اِثْنَا عَشَرَ شَهْرًا مِنْهَا اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ثَلَاثَةٌ مُتَوَالِيَاتٌ ذُوالْقَعْدَةِ وَ ذُوالْحَجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ وَ رَجَبُ مُضَرَ الَّذِيْ بَيْنَ جُمَادٰى وَ شَعْبَانَ اَيُّ شَهْرٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهُ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ ذُو الْحَجَّةِ قُلْنَا بَلٰى، قَالَ فَاَيُّ بَلَدٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهُ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اِسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ الْبَلْدَةَ قُلْنَا بَلٰى قَالَ فَاَيُّ يَوْمٍ هٰذَا قُلْنَا اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهُ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اِسْمِهٖ قَالَ اَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ قُلْنَا بَلٰى قَالَ فَاِنَّ دِمَائَكُمْ وَ اَمْوَالَكُمْ قَالَ مُحَمَّدٌ وَّ اَحْسِبُهُ قَالَ وَ اَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ بَلَدِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا وَ سَتَلْقَوْنَ

هغهٔ بیان دے، ذ حجة الوداع په ورځ حضورؐ خطبه کښ ارشاد اوفرمائیلو، زمانه چورلیدو سره بیا هغې مقام ته راغله، کوم خائے چه ذ آسمان او زمکے ذ پیدائش په ورځ وه. ذ کال دولس میاشتے دي، دے کښ څلور ذ عزت میاشتے دي، درے متواتر دي: ذي قعده، ذي الحجّه، محرم او څلورمه ذ رجب میاشت، چه ذ جمادي الثانیه او شعبان مینځ کښ راځي، بیا حضورؐ تپوس اوکهٔ، دا کومه میاشت ده، عرض اوشو، اللّٰه او ذ هغهٔ رسول ته ښهٔ معلومه ده. حضورؐ لږ ساعت خاموش وو. نو خمونږ دا خیال راغے، چه حضورؐ به ذ دے میاشتے نوم څهٔ بل اوفرمائي، خو حضورؐ اوفرمائیل، آیا دا ذ ذي الحجّه میاشت نهٔ ده، عرض اوشو، جي، او. بیا حضورؐ تپوس اوکهٔ، دا کوم ښار دے، عرض اوشو، اللّٰه او ذ هغهٔ رسول ښهٔ پوهیږي، حضورؐ لږ ساعت خاموش وو. خمونږ خیال پیدا شو، چه شاید حضورؐ ذ دے ښار څهٔ بل نوم اِږدي، وے فرمائیل آیا ذ دے نوم مکه نهٔ دے. عرض اوشو، جي، او، بیا حضورؐ تپوس اوکهٔ، نن ذ څهٔ ورځ ده، عرض اوشو، اللّٰه او ذ هغهٔ رسول ښهٔ پوهیږي، بیا حضورؐ خاموش شولو، نو خمونږ خیال راغے، چه شاید حضورؐ ئے څهٔ بل نوم اوفرمائي. حضورؐ اوفرمائیل، نن یوم النحر یعني ذ قرباني ورځ نهٔ ده، عرض اوشو، جي، او دے نه پس حضورؐ اوفرمائیل، ښه واورئے، ستاسو ځانونه، ستاسو مال، محمد وائي، چه خما خیال کښ ابو بکره دا هم وئیلے وو، چه ستاسو عزتونه دغه شان حرام دي، څنګه چه دا میاشت، ښار، او ورځ حرام ده. تاسو به یو ورځ خپل رب له ورځئے، هغه به تاسو نه ستاسو ذ اعمالو

رَبَّكُمْ فَيَسْأَلُكُمْ عَنْ اَعْمَالِكُمْ اَلَا فَلَا تَرْجِعُوْا بَعْدِيْ ضُلَّالًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ اَلَا لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَلَعَلَّ بَعْضَ مَنْ يُبَلَّغُهُ يَكُوْنَ اَوْعٰى لَهٗ مِنْ بَعْضِ مَنْ سَمِعَهُ فَكَانَ مُحَمَّدٌ اِذَا ذَكَرَهُ يَقُوْلُ صَدَقَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ اَلَا هَلْ بَلَّغْتُ مَرَّتَيْنِ.

متعلق تپوس کوي، نو داسې مه کوئې، چه څما نه پس د يو بل گردن وهل شروع کړئې، او گمراه شئې. بيا کوم خلق چه دلته حاضر دي، هغوي دې دا نورو خلقو ته اورسوي، کوم چه دلته موجود نۀ دي، ځکه چه کله داسې هم کيږي، چه د پيغام رسونکي نه هغه سړې زيات ياد لرونکې وي، چاته چه پيغام اورسولې شي. محمد د دې حديث بيانولو په وخت وئيلې، چه رسول د خدائې رښتيا اوفرمائيل، آخر کښې حضورؐ اوفرمائيل، ما د خدائې پيغام تاسو ته اورسولو. دائې دوه ځله اوفرمائيل.

۴۴۰۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ اَنَّ اُنَاسًا مِّنَ الْيَهُوْدِ قَالُوْا لَوْ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ فِيْنَا لَا تَّخَذْنَا ذٰلِكَ الْيَوْمَ عِيْدًا فَقَالَ عُمَرُ اَيَّةُ اٰيَةٍ قَالُوْا اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَ اَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَ رَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا فَقَالَ عُمَرُ اِنِّيْ لَاَعْلَمُ اَيَّ مَكَانٍ اُنْزِلَتْ اُنْزِلَتْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقِفٌ بِعَرَفَةَ.

۴۴۰۴: محمد بن يوسف. سفيان. قيس بن مسلم. حضرت طارق بن شهاب نه روايت کوي، د هغۀ بيان دې، څنې يهوديانو داسې اوُوې، که د سورۀ مائده دا آيت په مونږ نازل شوې وې، نو مونږ به دغه ورځ د اختر ورځ مقرر کړې وې. حضرت عمر تپوس اوکۀ، کوم آيت. يهودي اووې، دا آيت: نن ورځ ما ستاسو دين مکمل کړلو، او په تاسو م خپل نعمت پوره کړلو. حضرت عمرؓ جواب ورکړلو، ماته معلومه ده، کوم ځائې چه دا آيت نازل شوې وو، دا د عرفې په ورځ نازل شوې وو، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلم عرفات کښې تشريف فرما وو.

۴۴۰۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِي الْاَسْوَدِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمِنَّا مَنْ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَ مِنَّا مَنْ اَهَلَّ

۴۴۰۵: عبداللّٰه بن مسلمه. امام مالک. ابو الاسود. محمد بن عبدالرحمٰن. عروه بن زبير. بي بي عائشېؓ نه روايت کوي، مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره حجة الوداع د پاره اووتلو، نو څنې خلقو د عمرې نيت کړې وو، او څنو د حج او څنو د دواړو، او رسول اللّٰه

بِحَجَّةٍ وَ مِنَّا مَنْ اَهَلَّ بِحَجٍّ وَ عُمْرَةٍ وَ اَهَلَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ فَاَمَّا مَنْ اَهَلَّ بِالْحَجِّ اَوْ جَمَعَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَلَمْ يَحِلُّوْا حَتّٰى يَوْمِ النَّحْرِ.

صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ حج نيت کړے وو، نو چا چه صرف ذ حج يا ذ حج او عمرے دواړو نيت کړے وو، نو هغوي احرام ترلے وو، څو پورے ذ ذي الحجه لسم تاريخ (يعني ذ قرباني ورځ) نه وه راغلے.

۴۰۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ وَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ.

۴۰۶: عبداللّٰه بن يوسف. مالک نه روايت کوي، هغهٔ دا حديث داسے بيان کهٔ، چه مونږ حجة الوداع کښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره وو.

۴۰۷: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ مِثْلَهٗ.

۴۰۷: ذ اسماعيل بن اويس بيان دے، مالک ماته هم داسے حديث بيان کهٔ، کوم چه مخکښې ذکر شوے دے.

۴۰۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ هُوَ ابْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ عَادَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ مِنْ وَّجَعٍ اَشْفَيْتُ مِنْهُ عَلَى الْمَوْتِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بَلَغَ بِيْ مِنَ الْوَجَعِ مَا تَرٰى وَ اَنَا ذُوْ مَالٍ وَّلَا يَرِثُنِيْ اِلَّا ابْنَةٌ لِّيْ وَاحِدَةٌ اَفَاَتَصَدَّقُ بِثُلُثَيْ مَالِيْ قَالَ لَا قُلْتُ اَفَاَتَصَدَّقُ بِشَطْرِهٖ قَالَ لَا قُلْتُ فَبِالثُّلُثِ قَالَ وَالثُّلُثُ كَثِيْرٌ اِنَّكَ اَنْ تَذَرَ وَرَثَتَكَ اَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَّتَكَفَّفُوْنَ النَّاسَ وَ لَسْتَ

۴۰۸: احمد بن يونس. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. عامر بن سعد. سعد بن ابي وقاص نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، زهٔ حجة الوداع کښې مرض کښې مرگ ته قريب ووم، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خما ذ پښتنے ذ پاره تشريف راوړلو. ما عرض اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، تاسو وينئے، زهٔ څومره سخت ناروغه شوے يم. او ذ بچ کيدو څهٔ اُميد م نشته، او ماسره ډير مال دے، خو صرف يوه لور م ده. بل څوک وارث م نشته، نو آيا زهٔ دريو کښې دوه حصے (۲/۳) مال صدقه کولے شم. حضورؐ اوفرمائيل، نه. ما عرض اوکهٔ، بنه نو، نيم صدقه کوے شم، حضورؐ منع اوفرمائيله، ما عرض اوکهٔ، بنهٔ ده، نو دريمه حصه حضورؐ اوفرمائيل. او، دريمه حصه ور کولے شے، خو خپل وارثان ذ محتاج پريښودو، نه مالدار پريښودل بنهٔ دي، کني هغوي به ذ خلقو مخکښې (سوال

تُنفِقُ نَفَقَةً تَبْتَغِيُ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا اُجِرْتَ بِهَا حَتَّى اللُّقْمَةَ تَجْعَلُهَا فِيْ فِيْ اِمْرَاَتِكَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُخَلَّفُ بَعْدَ اَصْحَابِيْ قَالَ اِنَّكَ لَنْ تَخَلَّفَ فَتَعْمَلَ عَمَلًا تَبْتَغِيُ بِهٖ وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا ازْدَدْتَ بِهٖ دَرَجَةً وَّ رِفْعَةً وَ لَعَلَّكَ تُخَلَّفُ حَتّٰى يَنْتَفِعَ بِكَ اَقْوَامٌ وَ يُضَرُّ بِكَ اٰخَرُوْنَ اَللّٰهُمَّ امْضِ لِاَصْحَابِيْ هِجْرَتَهُمْ وَلَا تَرُدُّهُمْ عَلٰى اَعْقَابِهِمْ لٰكِنِ الْبَائِسَ سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ رَثٰى لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُوُفِّيَ بِمَكَّةَ.

دَ پاره) لاس اوړدوي. حقيقت دا دے، چه تاسو دَ اللّٰه په لار كښې څه خرڅ كوئے، دَ هغې به ثواب بيامومئے، حتٰي چه دَ هغې نوړے (لُقمے) هم، چه تاسو، ئے خپلے بي بي باندے اوخوروئے، بيا ما عرض اوكۀ، يا رسول اللّٰه آيا زۀ به دَ خپلو ملګرو نه جُدا شم، او هغوي به ستاسو سره مدينے ته لاړ شي. حضورؐ اوفرمائيل، او كه پاتے هم شے، نو دَ اللّٰه په مرضئ چه څۀ، مرتبه به دِے زياتيږي او دَ څه تعجب خبره نۀ ده، چه تۀ زياتے ورځے ژوندے پاتے شے، او ستا په وجه خلقوته فائده اورسي، او كافروته نقصان. اے اللّٰه څما دَ اصحابو هجرت پوره كړے، او هغوي ورستو اومۀ ګرځوے، البته سعد بن خوله مكه كښې وفات شولو، چه دَ هغې حضورؐ ته ډيره صدمه اوشوه.

۴۰۹: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَخْبَرَهُمْ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلَقَ رَاْسَهٗ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ.

۴۰۹: ابراهيم بن منذر. ابو ضمره. اسحاق بن عقبه. نافع. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم حجة الوداع كښې دَ ټولو اركانو ادا كولو نه پس خپل سر مبارك اوخريلو.

۴۱۰: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِيْ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ اَخْبَرَهٗ ابْنُ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلَقَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَ اُنَاسٌ مِنْ اَصْحَابِهٖ وَ قَصَّرَ بَعْضُهُمْ.

۴۱۰: عبيداللّٰه بن سعيد. محمد بن بكر. ابن جريج. موسي بن عقبه. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دے، حجة الوداع كښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او بعضے صحابهؓ ؤ ويښته اوخريل، او څو صرف قينچي كړل.

۴۱۱: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ

۴۱۱: يحيي بن قزعه. امام مالک.

حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ اَقْبَلَ يَسِيْرُ عَلٰى حِمَارٍ وَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ بِمِنًى فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ فَصَارَ الْحِمَارُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ ثُمَّ نَزَلَ عَنْهُ فَصَفَّ مَعَ النَّاسِ.

ابن شهاب. ليث. يونس. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. حضرت عبدالله بن عباسؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، زهٔ په يو خر سور راروان ووم، او رسول الله صلي الله عليه وسلّم د حجة الوداع په موقعه مني كښې مونځ كولو، اوس ذ لږ شان جماعت د مخے نه خما خر تير شوے وو. چه زهٔ راكوز شوم، او مونځ كښې شامل شوم.

۴۱۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ قَالَ سُئِلَ اُسَامَةُ وَ اَنَا شَاهِدٌ عَنْ سَيْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّتِهٖ فَقَالَ الْعَنَقَ فَاِذَا وَجَدَ فَجْوَةً نَصَّ.

۴۱۲: مسدد. يحيي. هشام بن عروه. ذ خپل پلار عبدالله بن زبير نه روايت كوي، هغهٔ اووے، ما آوريدل. چا اسامه بن زيد نه تپوس اوكهٔ، چه حجة الوداع كښې حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم خپله سورلي څنگه چلوله، هغهٔ اووے، درميانه چال سره، كه خائے به كشاده وو، نو تيزه به ئے هم چلوله.

۴۱۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يَزِيْدَ الْخَطْمِيِّ اَنَّ اَبَا اَيُّوْبَ اَخْبَرَنِيْ اَنَّهُ صَلّٰى مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَآءَ جَمِيْعًا.

۴۱۳: عبدالله بن مسلمه. امام مالک. يحيي بن سعيد. عدي بن ثابت. عبدالله بن يزيد خطمي. حضرت ابو ايوب انصاريؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، ما حجة الوداع كښې د حضورؐ اقتدا كښې ذ ماښام او ماسختن مونځ يو ځائے ادا كړے دي.

## بَابٌ ۷۹: غَزْوَةُ تَبُوْكَ وَ هِيَ غَزْوَةُ الْعُسْرَةِ.

## باب ۷۹: ذ غزوهٔ تبوک بيان. او دے ته غزوهٔ عسرت هم وائي.

۴۱۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ

۴۱۴: محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد بن عبدالله. ذ خپل نيكهٔ ابو برده نه هغه ذ

عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي
مُوسَى قَالَ أَرْسَلَنِي أَصْحَابِي إِلَى
رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
أَسْأَلُهُ الْحُمْلَانَ لَهُمْ إِذْهُمْ مَعَهُ فِي
جَيْشِ الْعُسْرَةِ وَهِيَ غَزْوَةُ تَبُوكَ
فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ إِنَّ أَصْحَابِي
أَرْسَلُونِي إِلَيْكَ لِتَحْمِلَهُمْ فَقَالَ وَاللّٰهِ
لَا أَحْمِلُكُمْ عَلٰى شَيْءٍ وَوَافَقْتُهُ
وَهُوَ غَضْبَانُ وَلَا أَشْعُرُ وَرَجَعْتُ
حَزِينًا مِنْ مَنْعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمِنْ مَخَافَةِ أَنْ يَكُونَ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ
فِي نَفْسِهِ عَلَيَّ فَرَجَعْتُ إِلٰى أَصْحَابِي
فَأَخْبَرْتُهُمُ الَّذِي قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ أَلْبَثْ إِلَّا
سُوَيْعَةً إِذْ سَمِعْتُ بِلَالًا يُنَادِي أَيْ عَبْدَ
اللّٰهِ بْنَ قَيْسٍ فَأَجَبْتُهُ فَقَالَ أَجِبْ
رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
يَدْعُوكَ فَلَمَّا أَتَيْتُهُ قَالَ خُذْ هٰذَيْنِ
الْقَرِينَيْنِ وَهٰذَيْنِ الْقَرِينَيْنِ لِسِتَّةِ
أَبْعِرَةٍ ابْتَاعَهُنَّ حِينَئِذٍ مِنْ سَعْدٍ
فَانْطَلِقْ بِهِنَّ إِلٰى أَصْحَابِكَ فَقُلْ إِنَّ
اللّٰهَ أَوْ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْمِلُكُمْ عَلٰى
هٰؤُلَاءِ فَارْكَبُوهُنَّ فَانْطَلَقْتُ إِلَيْهِمْ
بِهِنَّ فَقُلْتُ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

حپل پلار حضرت ابو موسي اشعري نه روايت
کوي: د هغه بيان دے، خما ملګرو د جنګ
تبوک په موقعه زۀ حضور صلي اللّٰه عليه
وسلم ته اوليږلم. چه زۀ د هغوی نه سورلي طلب
کړم. ما خدمت مبارک کښې عرض اوکړو: يا
رسول اللّٰه، زۀ خپلو ملګرو تاسو له راليږلے يم.
چه تاسو نه سورلي طلب کړم. حضورؐ
اوفرمائيل: په خدائے م دے قسم وي، زۀ به تاته
هيڅ سورلي درنه کړم. او حضورؐ دغه وخت
غصه کښې وو. زۀ په هغه حالت پوهـ نه شوم. زۀ
افسوس سره واپس شوم، او خپلو ملګروته م
حال بيان کړو، ماسره يو غم خو دا وو، چه حضورؐ
مونږ له سورلي رانه کړه، او دويم غم راسره دا وو.
چه چرته نبي صلي اللّٰه عليه وسلم خما نه خفه
نشي، زۀ چه د نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه واپس
راغلم، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلم چه څۀ وئيلي وو.
د هغے نه م هغوي خبر کړل، لږ ساعت نۀ وو
تير، چه حضرت بلالؓ راغے، آواز ئے اوکړو، ما
جواب ورکړو، نو وئيلے، راشه حضورؐ دے
غواړي، زۀ حاضر خدمت شوم، نو حضور صلي
اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل: دا د اوښانو جوړے
(٦ اوښان) بوځه، او خپلو ملګروته اووايه، چه دا
اوښان اللّٰه يا دائے اوفرمائيل، چه رسول اللّٰهؐ
تاسو له سورلي د پاره درکړے دي. دا پکار
راولے، ما اوښان ملګرو له راوستل، او وئيلے م،
دا اوښان حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ستاسو د

غَنَمِهٖ وَسَلَّمَ يَحْمِلُكُمْ عَلٰى هٰؤُلَاۤءِ وَلٰكِنَّنِيْ وَاللّٰهِ لَا اَدَعُكُمْ حَتّٰى يَنْطَلِقَ مَعِيْ بَعْضُكُمْ اِلٰى مَنْ سَمِعَ مَقَالَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَظُنُّوْا اَنِّيْ حَدَّثْتُكُمْ شَيْئًا لَمْ يَقُلْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا لِيْ اِنَّكَ عِنْدَنَا لَمُصَدَّقٌ وَلَنَفْعَلَنَّ مَا اَحْبَبْتَ فَانْطَلَقَ اَبُوْ مُوْسٰى بِنَفَرٍ مِنْهُمْ حَتّٰى اَتَوُا الَّذِيْنَ سَمِعُوْا قَوْلَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْعَهٗ اِيَّاهُمْ ثُمَّ اَعْطَاهُمْ فَحَدَّثُوْهُمْ بِمِثْلِ مَا حَدَّثَهُمْ بِهٖ اَبُوْ مُوْسٰى.

سورلي د پاره عنايت کړې دي. خو زه به تاسو هغې خلقو له بوځم چه هغوي به ورسي خال د نبي صلي اللّه عليه وسلّم منع فرمائيل آوريدلي دي. څکه چه شايد تاسو ما دروغجن اوګنړئ. او دا خيال اوکړئ. چه حضور دغسې نه دي فرمائيلي. ملګرو ورته اووې. نه مونږ تا رښتني ګڼړو. خو بيا هم که ته وائې مونږ به ورشو آخر يو سړې ماسره هلته لاړلو. کوم خائي چه انکار آوريدونکي موجود وو. هغوي خما تصديق اوکه. او وئيلې. واقعي رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم مخکښې منع فرمائيلې ده.

۴۱۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ اِلٰى تَبُوْكَ وَاسْتَخْلَفَ عَلِيًّا فَقَالَ اَتُخَلِّفُنِيْ فِي الصِّبْيَانِ وَالنِّسَآءِ قَالَ اَلَا تَرْضٰى اَنْ تَكُوْنَ مِنِّيْ بِمَنْزِلَةِ هٰرُوْنَ مِنْ مُوْسٰى اِلَّا اَنَّهٗ لَيْسَ نَبِيٌّ بَعْدِيْ وَ قَالَ اَبُوْ دَاوُدَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ سَمِعْتُ مُصْعَبًا.

۴۱۵: مسدد. يحيي. شعبه. حکم. مصعب بن سعد. سعد بن وقاص نه روايت کوي. رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم چه تبوک د پاره روان شولو. نو حضرت عليؓ ئې مدينه کښې خپل قائم مقام مقرر کړلو. حضرت عليؓ عرض اوکه، آيا تاسو ما بچو او زنانه ؤ سره پريږدئې. حضورؐ ورته اوفرمائيل اې عليؓ. ته په دې خوشحاله شه. خما په نزد ستا مرتبه هغه ده. لکه موسیؑ سره دَ هارونؑ وه. خو دا چه مانه پس به څوک نبي نه راځي. ابو داود طيالسي دا داسې روايت کړ. چه شعبه د حکم نه او حکم دَ مصعب نه واوريدلو.

۴۱۶: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ عَطَاءً يُخْبِرُ

۴۱۶: عبيداللّه بن سعيد. محمد بن بکر. ابن جريج. عطاء نه روايت کوي. د هغه بيان دې. صفوان وئيلې، خما پلار يعلي بن اُميه بيان کولو،

قَالَ اَخْبَرَنِیْ صَفْوَانُ ابْنُ یَعْلَی بْنِ اُمَیَّةَ عَنْ اَبِیْهِ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ الْعُسْرَةَ قَالَ کَانَ یَعْلٰی یَقُوْلُ تِلْكَ الْغَزْوَةُ اَوْثَقُ اَعْمَالِیْ عِنْدِیْ قَالَ عَطَاءٌ فَقَالَ صَفْوَانُ قَالَ یَعْلٰی فَکَانَ لِیْ اَجِیْرٌ فَقَاتَلَ اِنْسَانًا فَعَضَّ اَحَدُهُمَا یَدَ الْاٰخَرِ قَالَ عَطَاءٌ فَلَقَدْ اَخْبَرَنِیْ صَفْوَانُ اَیُّهُمَا عَضَّ الْاٰخَرَ فَنَسِیْتُهٗ قَالَ فَانْتَزَعَ الْمَعْضُوْضُ یَدَهٗ مِنْ فِیِّ الْعَاضِّ فَانْتَزَعَ اِحْدٰی ثَنِیَّتَیْهِ فَاَتَیَا النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَاَهْدَرَ ثَنِیَّتَهٗ قَالَ عَطَاءٌ وَ حَسِبْتُ اَنَّهٗ قَالَ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَفَیَدَعُ یَدَهٗ فِیْ فِیْكَ تَقْضَمُهَا کَاَنَّهَا فِیْ فَحْلٍ یَقْضَمُهَا.

زهٔ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم سره جنګ تبوک کښې شامل ووم. یعلٰي وائي، زهٔ خپلو ټولو عملونو کښې په دې عمل زیات اعتماد کوم، عطاء اووې، صفوان ماته اوښودل، چه یعلٰي يو سړې ملازم اوساتلو. هغهٔ يو سړي سره جنګ اوکړو، او بیا دواړو د يو بل لاسونه غاښونو سره اوچیچل، او غوښته ئې خوله کښې اونیوه، چه ډیر مشکل سره خلاص شو. خو د چیچونکي غاښ اووتلو. بیا دواړه د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو، خو حضورؐ غاښ والـه تـه هیڅ دیت ورنهٔ کړلو. د عطاء بیان دې، صفوان د هغې چیچونکي نوم خو اخستې وو، خو خما د ذهن نه اووتلو. او شاید صفوان دا هم وئیلې وو، چه حضورؐ اوفرمائیل، آیا هغهٔ خپل لاس ستا په خوله کښې پریښې وو، چه تا د اوښ په شان چیچلې وې. (دیت: خون بها. د خون د معاوضې روپې. مطلق جرمانه).

بَابُ ۸۰: حَدِیْثُ کَعْبِ بْنِ مَالِكٍ وَ قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ عَلَی الثَّلٰثَةِ الَّذِیْنَ خُلِّفُوْا.

باب ۸۰: د کعب بن مالک واقعه یعني غزوهٔ تبوک کښې د ورستو پاتې شوو درې سړو د معافۍ بیان، د کعب بن مالک حدیث، او د اللّٰه تعالي فرمائیل، او په هغې درې سړو، چه ورستو پاتې شو.

۴۱۷: حَدَّثَنَا یَحْیَی بْنُ بُکَیْرٍ حَدَّثَنَا اللَّیْثُ عَنْ عُقَیْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ کَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ کَعْبِ بْنِ مَالِكٍ وَ کَانَ قَائِدَ کَعْبٍ مِنْ بَنِیْهِ حِیْنَ عَمِیَ قَالَ سَمِعْتُ

۴۱۷: یحیٰي بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه د خپل پلار عبداللّٰه بن کعب نه، چه خپل پلار به ئې د نابینا کیدو په وجه نیولې بوتلو، روایت کوي ما د کعب بن مالک نه واوریدل، هغهٔ اووې، زهٔ ټولو غزاګانو کښې حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم سره حاضر ووم، خو

كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ يُحَدِّثُ حِيْنَ تَخَلَّفَ عَنْ قِصَّةِ تَبُوْكَ قَالَ كَعْبٌ لَمْ اَتَخَلَّفْ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةٍ غَزَاهَا اِلَّا فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ غَيْرَ اَنِّيْ كُنْتُ تَخَلَّفْتُ فِيْ غَزْوَةِ بَدْرٍ وَّلَمْ يُعَاتِبْ اَحَدًا تَخَلَّفَ عَنْهَا اِنَّمَا خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ عِيْرَ قُرَيْشٍ حَتّٰى جَمَعَ اللّٰهُ بَيْنَهُمْ وَ بَيْنَ عَدُوِّهِمْ عَلٰى غَيْرِ مِيْعَادٍ وَلَقَدْ شَهِدْتُّ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ الْعَقَبَةِ حِيْنَ تَوَاثَقْنَا عَلَى الْاِسْلَامِ وَمَا اُحِبُّ اَنَّ لِيْ بِهَا مَشْهَدَ بَدْرٍ وَ اِنْ كَانَتْ بَدْرٌ اَذْكَرُ فِي النَّاسِ مِنْهَا كَانَ مِنْ خَبَرِيْ اَنِّيْ لَمْ اَكُنْ قَطُّ اَقْوٰى وَلَا اَيْسَرَ حِيْنَ تَخَلَّفْتُ عَنْهُ فِيْ ذٰلِكَ الْغَزَاةِ وَاللّٰهِ مَا اجْتَمَعَتْ عِنْدِيْ قَبْلَهٗ رَاحِلَتَانِ قَطُّ حَتّٰى جَمَعْتُهُمَا فِيْ تِلْكَ الْغَزْوَةِ وَلَمْ يَكُنْ رَّسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ غَزْوَةً اِلَّا وَرّٰى بِغَيْرِهَا حَتّٰى كَانَتْ تِلْكَ الْغَزْوَةُ غَزَاهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَرٍّ شَدِيْدٍ وَاسْتَقْبَلَ سَفَرًا بَعِيْدًا وَ مَفَازًا وَّ عَدُوًّا كَثِيْرًا فَجَلّٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ اَمْرَهُمْ لِيَتَاَهَّبُوْا اُهْبَةَ غَزْوِهِمْ

تبوک او بدر کښې ورستو پاتې شوم، بدر کښې ورستو پاتې کېدونکو باندې د الله تعالیٰ عتاب اونه شولو. جنګ بدر کښې د حضور صلي الله علیه وسلّم غرض دا وو، چه د قریشو د قافلې تعاقب او کړې شي، نو دشمنان الله ناساپې حائل کړل، او جنګ اوشو، زهٔ لیلة العقبه کښې د رسول الله صلي الله علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم. حضورؐ د ټولو نه مخکښې په اسلام د قائم پاتې کېدو عهد واخست. او ماته خو لیلة العقبه د جنګ بدر مقابله کښې عزیز ده. اګر که جنګ بدر ته خلقو کښې زیات شهرت او فضیلت حاصل دې. او جنګ تبوک کښې د نهٔ شریکېدو وجه دا ده، چه د تبوک په وخت خما حالت ډېر ښهٔ وو، خدائې ګواه دې، چه د دې نه قبل هیڅ کله ماسره دوه سورلئ نهٔ وې جمع شوې خو دې غزا کښې زهٔ د دوو سورلو مالک جوړ شوې ووم. د دې نه علاوه د حضور صلي الله علیه وسلّم دا دستور وو، چه کله به ئې د جنګ خیال کولو، نو صاف صاف پته نښه او ځائې به ئې نه ښودلو. بلکه څهٔ ګول مول الفاظو کښې به ئې اظهار کولو، د پاره د دې چه خلق ئې څهٔ بل مقام ګنړي. غرض د جنګ وخت چه راغې، نو حضورؐ مسلمانان پوره طور سره آګاه کړل. چه مونږ تبوک له خو، چه تیاري او کړي، دغه وخت حضورؐ سره کثیر تعداد کښې مسلمانان موجود وو، خو څهٔ داسې کتاب وغیره نهٔ وو، چه هغې کښې ئې د ټولو نومونه لیکلې وې کعب وائي، داسې

فَأَخْبَرَهُمْ بِوَجْهِهِ الَّذِيْ يُرِيْدُ وَالْمُسْلِمُوْنَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَثِيْرٌ وَّلَا يَجْمَعُهُمْ كِتَابُ حَافِظٍ يُرِيْدُ الدِّيْوَانَ قَالَ كَعْبٌ فَمَا رَجُلٌ يُرِيْدُ اَنْ يَّتَغَيَّبَ اِلَّا ظَنَّ اَنْ سَيُخْفٰى لَهٗ مَالَمْ يَنْزِلْ فِيْهِ وَحْيُ اللّٰهِ وَغَزَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الْغَزْوَةَ حِيْنَ طَابَتِ الثِّمَارُ وَالظِّلَالُ وَتَجَهَّزَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُسْلِمُوْنَ مَعَهٗ فَطَفِقْتُ اَغْدُوْ لِكَيْ اَتَجَهَّزَ مَعَهُمْ فَاَرْجِعُ وَلَمْ اَقْضِ شَيْئًا فَاَقُوْلُ فِيْ نَفْسِيْ اَنَا قَادِرٌ عَلَيْهِ فَلَمْ يَزَلْ يَتَمَادٰى بِيْ حَتّٰى اشْتَدَّ بِالنَّاسِ الْجِدُّ فَاَصْبَحَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُسْلِمُوْنَ مَعَهٗ وَلَمْ اَقْضِ مِنْ جَهَازِيْ شَيْئًا فَقُلْتُ اَتَجَهَّزُ بَعْدَهٗ بِيَوْمٍ اَوْ يَوْمَيْنِ ثُمَّ اَلْحَقُهُمْ فَغَدَوْتُ بَعْدَ اَنْ فَصَلُوْا لِاَتَجَهَّزَ فَرَجَعْتُ وَلَمْ اَقْضِ شَيْئًا ثُمَّ غَدَوْتُ ثُمَّ رَجَعْتُ وَلَمْ اَقْضِ شَيْئًا فَلَمْ يَزَلْ بِيْ حَتّٰى اَسْرَعُوْا وَتَفَارَطَ الْغَزْوُ وَهَمَمْتُ اَنْ اَرْتَحِلَ فَاُدْرِكَهُمْ وَلَيْتَنِيْ فَعَلْتُ فَلَمْ يُقَدَّرْ لِيْ ذٰلِكَ فَكُنْتُ اِذَا خَرَجْتُ فِي النَّاسِ بَعْدَ خُرُوْجِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطُفْتُ فِيْهِمْ

هیڅ مسلمان نه وو، چه دے جنګ کښې نے شریکیدل نه غوښتل، خو ورسره ئے دا خیال هم کولو، چه د چا غیر حاضري حضورؐ ته هغه وخته پورے معلومیدے نشي، څو پورے چه وحي رانشي، غرض دا چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د جنګ تیاری شروع کړے، او دا هغه وخت وو، چه میوه به پخیدو وه. او سوري (سایه) کښې ناسته ښه معلومیده. ټولو تیاری کولے. خو ما به هر سحر دا سوچ کولو، چه زه به تیاري او کړم، څه تادي ده، زه خو هر وخت تیاري کولے شم. دغه شان ورځے تیریدلے، چه یوه ورځ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم روان شولو. ما سوچ اُوکړ، هغوي دے خي، او زه به یو ورځ دوه کښې تیاري او کړم، نو لار کښې به هغوي سره شامل شم. غرض دا چه په دوېمه ورځ ما تیاري کول اوغښتل، خو اونه شوله، او زه دغسے پاتے شوم، په دریمه ورځ هم دغسے اوشو. او بیا برابر څما دغه حال وو اوس ټول خلق ډیر لرے تلے وو، ما خو خله قصد اوکړ، چه حضورؐ سره یوځائے شم، حال به ورته اووانم، خو تقدیر کښې م نه وه. کاش چه داسے م کړے وے، نو د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د تلو نه پس چه زه به مدینه کښې ګرځیدم راګرځیدم، نو ماته به یا منافق په نظر راتلل، یا هغه خوک چه کمزورے، ضعیف او ناروغه به وو. ماته ډیر افسوس وو، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم په لاره زه هیچرته یاد نه کړم، البته چه تبوک ته اورسیدل، او ټول ئے اولیدل، نو

حَزَنَنِيْ أَنِّيْ لَا أَرٰى إِلَّا رَجُلًا مَغْمُوْصًا عَلَيْهِ النِّفَاقُ أَوْ رَجُلًا مِمَّنْ عَذَرَ اللّٰهُ مِنَ الضُّعَفَآءِ وَلَمْ يَذْكُرْنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَلَغَ تَبُوْكَ فَقَالَ وَهُوَ جَالِسٌ فِي الْقَوْمِ بِتَبُوْكَ مَا فَعَلَ كَعْبٌ فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ سَلِمَةَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ حَبَسَهُ بُرْدَاهُ وَ نَظَرُهُ فِيْ عِطْفِهِ فَقَالَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ بِئْسَ مَا قُلْتَ وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ إِلَّا خَيْرًا فَسَكَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ فَلَمَّا بَلَغَنِيْ أَنَّهُ تَوَجَّهَ قَافِلًا حَضَرَنِيْ هَمِّيْ وَ طَفِقْتُ أَتَذَكَّرُ الْكَذِبَ وَ أَقُوْلُ بِمَا ذَا أَخْرُجُ مِنْ سَخَطِهِ غَدًا وَّاسْتَعَنْتُ عَلٰى ذٰلِكَ بِكُلِّ ذِيْ رَأْيٍ مِنْ أَهْلِيْ فَلَمَّا قِيْلَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَظَلَّ قَادِمًا زَاحَ عَنِّي الْبَاطِلُ وَ عَرَفْتُ أَنِّيْ لَمْ أَخْرُجْ مِنْهُ أَبَدًا بِشَيْءٍ فِيْهِ كَذِبٌ فَأَجْمَعْتُ صِدْقَهُ وَ أَصْبَحَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَادِمًا وَّ كَانَ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ فَيَرْكَعُ فِيْهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ جَلَسَ لِلنَّاسِ فَلَمَّا فَعَلَ ذٰلِكَ جَاءَهُ الْمُخَلَّفُوْنَ فَطَفِقُوْا يَعْتَذِرُوْنَ إِلَيْهِ وَ يَحْلِفُوْنَ لَهُ وَ كَانُوْا

حضورؐ اوفرمائيل: كعب بن مالك څه اوكړل. د بني سلمه يو سړي عبدالله بن انيس اووے: يا رسول الله! هغه خو په خپل حسن او جمال د نظر كولو په وجه پاتے شوے دے. معاذ بن جبل اووے: تا بنه خبره اونه كړه په خدائے مې دے قسم وي. اے د الله رسوله! مونږ خو هغه ښه سړے ګنړو. دے اوريدو سره حضورؐ خاموش شولو. د كعب بن مالك بيان دے: هر كله چه ماته دا معلومه شوه، چه حضورؐ واپس رارروان دے، نو ما سوچ اوكړ، چه څنګه داسے حيله بهانه په لاس راشي، چه د حضور صلي الله عليه وسلم د غصے نه پرے خلاص شم. بيا ما د كور په هر خلقو سره مشوره اوكړه، چه دے سلسله كښې تاسو هم څه سوچ اوكړئے. خو كوم وخت چه دا خبره راته معلومه شوه، چه حضورؐ مدينے ته بالكل قريب راغلے دے، نو خما د زړه نه د هغے حيلے خيال لرے شو، او خما يقين راغے: چه د حضورؐ د غصے نه په دروغو نشم بچ كيدے. صبا ته حضورؐ مدينے ته تشريف راوړلو، او د حضورؐ طريقه دا وه، چه د سفر نه به واپس راغلو: نو اول به جمات ته تللو، او دوه ركعاته نفل به ئے كول. اوس كوم خلق چه ورستو پاتے شوے وو: هغوي راتلل، او خپل خپل عذرونه ئے بيانول شروع كړل. او قسمونه به ئے خوړل. دا خلق اتيا وو: يا د دے نه هم څه زيات، حضورؐ د هغوي عذر قبول كړلو، او د هغوي نه ئے دوباره بيعت واخست، او هغوي

بِضْعَةً وَ ثَمَانِيْنَ رَجُلًا فَقَبِلَ مِنْهُمْ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
عَلَانِيَتَهُمْ وَ بَايَعَهُمْ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمْ وَ
وَكَلَ سَرَآئِرَهُمْ اِلَى اللّٰهِ فَجِئْتُهُ فَلَمَّا
سَلَّمْتُ عَلَيْهِ تَبَسَّمَ تَبَسُّمَ الْمُغْضَبِ
ثُمَّ قَالَ تَعَالَ فَجِئْتُ اَمْشِيْ حَتّٰى
جَلَسْتُ بَيْنَ يَدَيْهِ فَقَالَ لِيْ مَا خَلَّفَكَ
اَلَمْ تَكُنْ قَدِ ابْتَعْتَ ظَهْرَكَ فَقُلْتُ
بَلٰى اِنِّيْ وَاللّٰهِ لَوْ جَلَسْتُ عِنْدَ
غَيْرِكَ مِنْ اَهْلِ الدُّنْيَا لَرَاَيْتُ اَنْ
سَاَخْرُجُ مِنْ سَخَطِهٖ بِعُذْرٍ وَلَقَدْ
اُعْطِيْتُ جَدَلًا وَلٰكِنِّيْ وَاللّٰهِ لَقَدْ
عَلِمْتُ لَئِنْ حَدَّثْتُكَ الْيَوْمَ حَدِيْثَ
كَذِبٍ تَرْضٰى بِهٖ عَنِّيْ لَيُوْشِكَنَّ اللّٰهُ
اَنْ يُّسْخِطَكَ عَلَيَّ وَلَئِنْ حَدَّثْتُكَ
حَدِيْثَ صِدْقٍ تَجِدُ عَلَيَّ فِيْهِ اِنِّيْ
لَاَرْجُوْ فِيْهِ عَفْوَ اللّٰهِ لَا وَاللّٰهِ مَا كَانَ
لِيْ مِنْ عُذْرٍ وَاللّٰهِ مَا كُنْتُ قَطُّ اَقْوٰى
وَلَا اَيْسَرَ مِنِّيْ حِيْنَ تَخَلَّفْتُ عَنْكَ
فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ اَمَّا هٰذَا فَقَدْ صَدَقَ فَقُمْ حَتّٰى
يَقْضِيَ اللّٰهُ فِيْكَ فَقُمْتُ وَ سَارَ رِجَالٌ
مِنْ بَنِيْ سَلِمَةَ فَاتَّبَعُوْنِيْ فَقَالُوْا لِيْ
وَاللّٰهِ مَا عَلِمْنَاكَ كُنْتَ اَذْنَبْتَ ذَنْبًا
قَبْلَ هٰذَا وَلَقَدْ عَجَزْتَ اَنْ لَّا تَكُوْنَ
اعْتَذَرْتَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د پاره ئې د مغفرت دعا اوكړله، او د هغوي د
زړۀ خيالات ئې خدائے ته حواله كړل. كعبؓ وائي،
زۀ هم راغلم، السلام عليكم م اووے، خو حضورﷺ
داسے مُسكا كښې چه هغے كښې د غصے هم
جهلك وو. جواب راكړلو، او وے فرمائيل،
راشه، نو ورته زۀ مخے ته كيناستم. حضورﷺ مانه
تپوس اوكۀ، اے كعب، تۀ ولے ورستو پاتے شوے،
حالانكه تا خو د سورلي هم انتظام كړے وو، ما
عرض اوكړ. ستاسو فرمائيل درست دي كه زۀ د بل
چا مخے ته وے، نو ممكنه ده، چه هغۀ ته م بيان
وغيره كړے وے او ځان م خلاص كړے وے، ځكه
چه ماله د خبرو كولو هم چل راځي. خو خدائے
گواه دے، زۀ په دے پوهيږم، كه نن ما دروغ اووے،
او تاسو م راضي كړلے، نو صبا له به اللّٰه تعالي تاسو
مانه ناراضه كړي، نو زۀ درته ريښتيا ريښتيا وائم،
خواه تاسوﷺ ماته غصه ولے نۀ شئ، آئنده د پاره خو
به م د خدائے نه د مغفرت او بخښش اُميد وي.
په خدائے م دے قسم وي، زۀ قصور وار يم، حالانكه
مال دولت كښې هيڅوك خما برابر نۀ دي، خو
د دے ټولو څيزونو د موجودگي باوجود زۀ شريك
نۀ شوم. دے آوريدو سره حضورﷺ اوفرمائيل،
كعب ريښتيا خبره اوكړه، ښۀ ده خه، او د خدائے د
حكم په حقله انتظار كوه. غرض دا چه زۀ پاسيدم،
لاړم، نو د بني سلمه څه سړي هم ما پسے راغلل، او وے
وئيل، مونږ خو اوسه پورے ستا څۀ گناه نۀ ده ليدلے.
تا به هم د نورو خلقو په شان د حضور صلي اللّٰه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا اعْتَذَرَ اِلَيْهِ الْمُتَخَلِّفُوْنَ قَدْ كَانَ كَافِيَكَ ذَنْبَكَ اسْتِغْفَارُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَكَ فَوَاللّٰهِ مَازَالُوْا يُؤَنِّبُوْنِيْ حَتّٰى اَرَدْتُّ اَنْ اَرْجِعَ فَاُكَذِّبَ نَفْسِيْ ثُمَّ قُلْتُ لَهُمْ هَلْ لَقِيَ هٰذَا مَعِيَ اَحَدٌ قَالُوْا نَعَمْ رَجُلَانِ قَالَا مِثْلَ مَا قُلْتَ فَقِيْلَ لَهُمَا مِثْلُ مَا قِيْلَ لَكَ فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوْا مُرَارَةُ بْنُ الرَّبِيْعِ الْعَمْرَوِيُّ وَ هِلَالُ اُمَيَّةَ الْوَاقِفِيُّ فَذَكَرُوْا لِيَ رَجُلَيْنِ صَالِحَيْنِ قَدْ شَهِدَا بَدْرًا فِيْهِمَا اُسْوَةٌ فَمَضَيْتُ حِيْنَ ذَكَرُوْهُمَا لِيْ وَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمِيْنَ عَنْ كَلَامِنَا اَيُّهَا الثَّلَاثَةُ مِنْ بَيْنِ مَنْ تَخَلَّفَ عَنْهُ فَاجْتَنَبَنَا النَّاسُ وَ تَغَيَّرُوْا لَنَا حَتّٰى تَنَكَّرَتْ فِيْ نَفْسِي الْاَرْضُ فَمَا هِيَ الَّتِيْ اَعْرِفُ فَلَبِثْنَا عَلٰى ذٰلِكَ خَمْسِيْنَ لَيْلَةً فَاَمَّا صَاحِبَايَ فَاسْتَكَانَا وَ قَعَدَا فِيْ بُيُوْتِهِمَا يَبْكِيَانِ وَ اَمَّا اَنَا فَكُنْتُ اَشَبَّ الْقَوْمِ وَ اَجْلَدَهُمْ وَ كُنْتُ اَخْرُجُ فَاَشْهَدُ الصَّلٰوةَ مَعَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ اَطُوْفُ فِي الْاَسْوَاقِ وَلَا يُكَلِّمُنِيْ اَحَدٌ وَ اٰتِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاُسَلِّمُ عَلَيْهِ وَهُوَ فِيْ مَجْلِسِهٖ بَعْدَ الصَّلٰوةِ

عليه وسلّم مخكښې څۀ بهانه پيش كړے وه. ذ حضورؐ دُعا ذ مغفرت ذ پاره كافي وَه. هغوي برابر ماته دغه خبره كوله، تردے چه څما په زړۀ كښې دا خيال راغے، چه واپس حضور صلي الله عليه وسلّم له ورشم، ورمښنے خبره غلطه ثابته كړم او څۀ بهانه ورته پيش كړم. بيا ما ذ هغوي نه تپوس اوكۀ، آيا بل څوک هم داسے شته، چه هغه څما په شان ذ ګناه اعتراف كړے وي، هغوي اووے، او دوه سړي نور هم شته، هغوي اقرار كړے دے، او حضورؐ هغوي ته هم دغسے فرمائيلے دي، څنګه چه ئے تاته ارشاد فرمائيلے دے. ما ذ هغوي ذ نومونه تپوس اوكۀ، نو ونيلے، يو مراره بن ربيع عمروي، دوئيم هلال بن اُميه واقفي. دا دواړه نيک سړي وو، او جنګ بدر كښې شريک شوي وو. ماته هغوي سره يوځائے كيدل ښۀ معلوميدل، غرض ذ هغے دواړو سړو نومونه آوريدو سره ماته اطمينان اوشولو، او زۀ روان شوم. او رسول الله صلي الله عليه وسلّم تول مسلمانان منع كړے وو، چه دے درے سړو سره دے هيڅوک خبرے نۀ كوي، څو نورو پاتے كيدونكو او ذ دروغو بهانه جوړونكو ذ پاره ئے دا حكم نۀ وو وركړے. آخر خلقو خمونږ نه لرے اوسيدل شروع كړل، او مونږ داسے شو، لكه چه مونږ هډو څوک پيژني نه، ګويا آسمان او زمكه بدل شوے دي. غرض دا چه پنځوس شپے په دے حال كښې تيرے شوے. خما دوه ملګري خو كور كښې كيناستل خو زۀ ډير همت واله ووم. بهر ته وتلم راوتلم، ذ جماعت مونځ كښې به شريكيدم، بازار وغيره ته به تلم، خو چا به راسره

فَاَقُوْلُ فِيْ نَفْسِيْ هَلْ حَرَّكَ شَفَتَيْهِ بِرَدِّ السَّلَامِ عَلَيَّ اَمْ لَا ثُمَّ اُصَلِّيْ قَرِيْبًا مِنْهُ فَاُسَارِقُهُ النَّظَرَ فَاِذَا اَقْبَلْتُ عَلٰى صَلٰوتِيْ اَقْبَلَ اِلَيَّ وَ اِذَا الْتَفَتُّ نَحْوَهُ اَعْرَضَ عَنِّيْ حَتّٰى اِذَا طَالَ عَلَيَّ ذٰلِكَ مِنْ جَفْوَةِ النَّاسِ مَشَيْتُ حَتّٰى تَسَوَّرْتُ جِدَارَ حَائِطِ اَبِيْ قَتَادَةَ وَهُوَ ابْنُ عَمِّيْ وَ اَحَبُّ النَّاسِ اِلَيَّ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَوَاللّٰهِ مَا رَدَّ عَلَيَّ السَّلَامَ فَقُلْتُ يَا اَبَا قَتَادَةَ اُنْشِدُكَ بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمُنِيْ اُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ فَسَكَتَ فَعُدْتُ لَهُ فَنَشَدْتُّهُ فَسَكَتَ فَعُدْتُ لَهُ فَنَشَدْتُّهُ فَقَالَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ فَفَاضَتْ عَيْنَايَ وَ تَوَلَّيْتُ حَتّٰى تَسَوَّرْتُ الْجِدَارَ قَالَ فَبَيْنَا اَنَا اَمْشِيْ بِسُوْقِ الْمَدِيْنَةِ اِذَا نَبَطِيٌّ مِنْ اَنْبَاطِ اَهْلِ الشَّامِ مِمَّنْ قَدِمَ بِالطَّعَامِ يَبِيْعُهُ بِالْمَدِيْنَةِ يَقُوْلُ مَنْ يَّدُلُّ عَلٰى كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ فَطَفِقَ النَّاسُ يُشِيْرُوْنَ لَهُ حَتّٰى اِذَا جَآءَ نِيْ دَفَعَ اِلَيَّ كِتَابًا مِنْ مَلِكِ غَسَّانَ فَاِذَا فِيْهِ اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّهُ قَدْ بَلَغَنِيْ اَنَّ صَاحِبَكَ قَدْ جَفَاكَ وَلَمْ يَجْعَلْكَ اللّٰهُ بِدَارِ هَوَانٍ وَلَا مَضِيْعَةٍ فَالْحَقْ بِنَا نُوَاسِكَ فَقُلْتُ لَمَّا قَرَاْتُهَا وَ هٰذَا اَيْضًا مِنَ الْبَلَاءِ فَتَيَمَّمْتُ بِهَا التَّنُّوْرَ

خبرے نهٔ کولے' زهٔ به ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلَم پـه خدمت کښې هم حاضريدم' حضورؐ به په مصلّٰي رونق افـروز وو' مـا بـه ورته سلام کولو' او ماته به داسے شبهه کيده' چه ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلَم شونډے مبارکے خوزيږي' شايـد چـه ذَ سـلام جواب راکوي' بيا بـه ما حضورؐ سره قريب مونځ کولو' خو سترګو کښې پټ به مِ ورتـه کتلو' چه حضورؐ څهٔ کوي' زهٔ چه به په مانځه ووم' نو حضورؐ به ماته کتل' او کله چه به ځما نظر حضورؐ سره يـوځـائے شو' نو حضورؐ به مخ اوګرځولو. دے حال کښې مـوده تيره شوه' او زهٔ ذَ خلقو ذَ خاموشي نه عاجز راغلم' او بيا ذَ خپل ترهٔ (چچا) ذَ ځـوي ابو قتاده باغ ته راغلم' او سـلام مِ ورتـه اوکـهٔ' او هغهٔ سره ځما ډير محبت وو' خو پـه خـدائـے مِ دے قسم وي' هغه ځما ذ سلام جواب رانهٔ کړلو. ما ورته اووے' ابو قتاده' تاته نده معلومه چه اللّٰه او رسـول سـره ځـمـا ځـومـرد مينه ده. خو هغهٔ جواب رانهٔ کـړلـو. بيـا مـا قسم ورکولو سره ورته دغه خبرد اوکړله خو جواب ئے رانهٔ کړلو. په دريم ځل هم ورته ما دغسے اووے' نـو ابو قتاده صرف دومره قدر جواب راکړلو' چه اللّٰه او رسـول ښـهٔ پـوهيږي بيا ما ضبط اونه کړے شو' اُوښـکـے مِ جاري شولے' او زهٔ واپس شولم. يوه ورځ زهٔ بـازار کـښې تـلـم' چه يو نصراني زميدار چه د ملک شام اوسيدونکے وو' او غلے خرڅولو د پاره راغلے وو' هغه د خـلقـو نـه ځـما پته معلوموله' نو خلقو ما طرف ته اشاره اوکـړلـه چه دا کعب بن مالک دے' هغه ما[illegible] راغے' او د غسّـان ذَ نـصـراني بادشاه خط ئے ماله را[illegible] هغے کښې لـيـکـلـے وو' مـاتـه معلومه شوے ده' چه ستا صاحب په تا

فَسَجَرْتُهُ بِهَا حَتّٰى اِذَا مَضَتْ اَرْبَعُوْنَ لَيْلَةً مِنَ الْخَمْسِيْنَ اِذَا رَسُوْلُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِيْنِيْ فَقَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُكَ اَنْ تَعْتَزِلَ امْرَاَتَكَ فَقُلْتُ اُطَلِّقُهَا اَمْ مَاذَا اَفْعَلُ قَالَ لَا بَلِ اعْتَزِلْهَا وَلَا تَقْرَبْهَا وَ اَرْسَلَ اِلٰى صَاحِبَيَّ مِثْلَ ذٰلِكَ فَقُلْتُ لِامْرَاَتِي الْحَقِيْ بِاَهْلِكِ فَتَكُوْنِيْ عِنْدَهُمْ حَتّٰى يَقْضِيَ اللّٰهُ فِيْ هٰذَا الْاَمْرِ قَالَ كَعْبٌ فَجَاءَتْ اِمْرَاَةُ هِلَالِ بْنِ اُمَيَّةَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ هِلَالَ بْنَ اُمَيَّةَ شَيْخٌ ضَائِعٌ لَيْسَ لَهُ خَادِمٌ فَهَلْ تَكْرَهُ اَنْ اَخْدِمَهُ قَالَ لَا وَلٰكِنْ لَا يَقْرُبْكِ قَالَتْ اِنَّهُ وَاللّٰهِ مَا بِهِ حَرَكَةٌ اِلٰى شَيْءٍ وَاللّٰهِ مَا زَالَ يَبْكِيْ مُنْذُ كَانَ مِنْ اَمْرِهِ مَا كَانَ اِلٰى يَوْمِهِ هٰذَا فَقَالَ لِيْ بَعْضُ اَهْلِيْ لَوِ اسْتَاْذَنْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ امْرَاَتِكَ كَمَا اَذِنَ لِامْرَاَةِ هِلَالِ بْنِ اُمَيَّةَ اَنْ تَخْدِمَهُ فَقُلْتُ لَا وَاللّٰهِ لَا اَسْتَاْذِنُ فِيْهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا يُدْرِيْنِيْ مَا يَقُوْلُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اسْتَاْذَنْتُهُ فِيْهَا وَ اَنَا رَجُلٌ شَابٌّ

زياتے کوي، حالانکه الله ته ذليل نه ئې جوړ کړے، ته ډير ذ کار سړے ئې، ته ماله راشه، مونږ به تا ډير آرام سره ساتو. ما سوچ او کړ، دا دوئيم آزمائش دے. بيا م هغه خط ذ اور په تنور کښې اوسوزولو، اوس صرف څلويښت شپے تيرے شوے وے، او لس شپے باقي وے، چه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم قاصد (خزيمه بن ثابت) راغے او ماته ئې اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائي، چه ته ذ خپلے بي بي نه جُدا شه، ما اووے، څه مطلب دے، طلاق ورکړم، يا نور څه. خزيمه اُووے، بس جدا شه، او نزديکت ورسره مهٔ کوه، او داسے حکم څما هغا دوو ملګرو ته هم ورکړے شوے وو. غرض دا چه ما خپلے ښځے ته اووے، چه ته خپلو رشته دارانو سره لاړه شه، اوسيږه، څو پورے چه الله تعالىٰ څما فيصله اونه کړي. کعبؓ وائي، بيا ذ هلال بن اُميهؓ ښځه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت کښې حاضره شوه، او عرض ئې او کړ، چه يا رسول الله، هلال بن اُميه څما خاوند ډير بوډا دے، که زهٔ ذ هغهٔ کار خدمت کوم، نو دے کښې خو به څه بدي نه وي، حضورؐ ورته اوفرمائيل، هيڅ نه، خو هغه صحبت (کور والے) نشي کولے. ما عرض او کړ، حضورؐ هغهٔ کښې خو دا خواهش هډو نشته، او ذ کوم وخت نه چه دا خبره معلومه شوے ده، هغه ژاړي، او ذ هغے وخت نه ئے دا حال دے، کعبؓ وائي، ماته څما څنے عزيزانو اووے چه ته هم حضورؐ له ورشه، او ذ خپلے بي بي باره کښې ترے دغسے اجازت حاصل کړه، چه هغه ستا خدمت جاري اوساتي، څنګه چه ذ هلال ښځے ته اجازت ورکړے شوے دے ما اووے، څما

فَلَبِثْتُ بَعْدَ ذٰلِكَ عَشْرَ لَيَالٍ حَتّٰى كَمُلَتْ لَنَا خَمْسُوْنَ لَيْلَةً مِنْ حِيْنَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كَلَامِنَا فَلَمَّا صَلَّيْتُ صَلٰوةَ الْفَجْرِ صُبْحَ خَمْسِيْنَ لَيْلَةً وَ اَنَا عَلٰى ظَهْرِ بَيْتٍ مِنْ بُيُوْتِنَا فَبَيْنَا اَنَا جَالِسٌ عَلَى الْحَالِ الَّتِيْ ذَكَرَ اللّٰهُ قَدْ ضَاقَتْ عَلَيَّ نَفْسِيْ وَ ضَاقَتْ عَلَيَّ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ سَمِعْتُ صَوْتَ صَارِخٍ اَوْفٰى عَلٰى جَبَلِ سَلْعٍ بِاَعْلٰى صَوْتِهٖ يَا كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ اَبْشِرْ قَالَ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا وَ عَرَفْتُ اَنْ قَدْ جَآءَ فَرَجٌ وَّ اٰذَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَوْبَةِ اللّٰهِ عَلَيْنَا حِيْنَ صَلّٰى صَلٰوةَ الْفَجْرِ فَذَهَبَ النَّاسُ يُبَشِّرُوْنَنَا وَ ذَهَبَ قِبَلَ صَاحِبَيَّ مُبَشِّرُوْنَ وَ رَكَضَ اِلَيَّ رَجُلٌ فَرَسًا وَّ سَعٰى سَاعٍ مِنْ اَسْلَمَ فَاَوْفٰى عَلَى الْجَبَلِ وَ كَانَ الصَّوْتُ اَسْرَعَ مِنَ الْفَرَسِ فَلَمَّا جَآءَنِيَ الَّذِيْ سَمِعْتُ صَوْتَهٗ يُبَشِّرُنِيْ نَزَعْتُ لَهٗ ثَوْبَيَّ فَكَسَوْتُهٗ اِيَّاهُمَا بِبُشْرَاهُ وَاللّٰهِ مَا اَمْلِكُ غَيْرَهُمَا يَوْمَئِذٍ وَاسْتَعَرْتُ ثَوْبَيْنِ فَلَبِسْتُهُمَا وَانْطَلَقْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَتَلَقَّانِي النَّاسُ فَوْجًا فَوْجًا يُهَنِّئُوْنِيْ بِالتَّوْبَةِ

دے په خدائے قسم وي زۀ هيڅ کله داسے نشم کولے. معلومه نۀ ده، چه حضور صلي الله عليه وسلّم څۀ فرمائي. زۀ خو خلمے سړے يم، دَ هلال په شان ضعيف نه يم. غرض دا چه دَ هغے نه پس هغه لس ورځے هم تيرے شوے، او زۀ دَ پنځوستمے شپے په سحر دَ مانځه نه پس خپل کور سره (خوا کښ) ناست ووم، او دا معلوميده چه ژوند راباندے تنګ شوے دے، او زمکه راباندے باوجود دَ وسعت تنګه شوے ده، چه دے کښ دَ کوه سلع نه يو آواز کونکي نعرے کړے، ونيلے: اے کعب بن مالک، تاته زيرے (بشارت) درکولے شي. دے آواز آوريدو سره زۀ دَ خوشحالي نه په سجده پريوتم. او يقين مِ اوکۀ، چه اوس دغه مشکل آسان شولو، ځکه چه حضور صلي الله عليه وسلّم دَ مانځه نه پس اوفرمائيل، چه الله تعالي ځمونږ خلقو قصور معاف کړلو، اوس خلق ماته او ځما هغے ملګرو ته مبارک بادي او خوشخبرئ دَ پاره راتلل شروع شو، او يو سړے زبير بن عوامؓ په خپل آس په زغل ماته راغے، او يو بل سړے دَ بني سلمه کوه سلع باندے اوختلو، دَ هغۀ آواز تادي سره ځما غوږ ته راورسيد. هغه وخت زۀ دومره خوشحاله شوم، چه خپلے دواړه کپړے مِ اوښکلے، او هغه ته مِ واغستولے. بيا دَ حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښ حاضر شوم، لاره کښ دَ خلقو يو هجوم وو، چه مبارک بادي ئے راکولے، او وئيل ئے، چه دَ الله تعالي دا انعام دے تاته مبارک وي، کعبؓ وائي، زۀ جمات ته راغلم، حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف فرما وو، او نور خلق هم ناست وو، طلحه بن عبيد الله چه زۀ اوليدم؛ په منډه

يَقُوْلُوْنَ لِتَهْنِكَ تَوْبَةُ اللّٰهِ عَلَيْكَ قَالَ
كَعْبٌ حَتّٰى دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَإِذَا
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
جَالِسٌ حَوْلَهُ النَّاسُ فَقَامَ إِلَيَّ طَلْحَةُ
بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ يُهَرْوِلُ حَتّٰى صَافَحَنِيْ
وَ هَنَّأَنِيْ وَاللّٰهِ مَا قَامَ إِلَيَّ رَجُلٌ مِنَ
الْمُهَاجِرِيْنَ غَيْرُهُ وَلَا أَنْسَاهَا لِطَلْحَةَ
قَالَ كَعْبٌ فَلَمَّا سَلَّمْتُ عَلٰى رَسُوْلِ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ
يَبْرُقُ وَجْهُهُ مِنَ السُّرُوْرِ أَبْشِرْ بِخَيْرِ
يَوْمٍ مَرَّ عَلَيْكَ مُنْذُ وَلَدَتْكَ أُمُّكَ قُلْتُ
أَمِنْ عِنْدِكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَمْ مِنْ
عِنْدِ اللّٰهِ قَالَ لَا بَلْ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَ
كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ إِذَا سُرَّ اسْتَنَارَ وَجْهُهُ حَتّٰى
كَأَنَّهُ قِطْعَةُ قَمَرٍ وَّ كُنَّا نَعْرِفُ ذٰلِكَ مِنْهُ
فَلَمَّا جَلَسْتُ بَيْنَ يَدَيْهِ قُلْتُ يَا
رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّ مِنْ تَوْبَتِيْ أَنْ أَنْخَلِعَ
مِنْ مَالِيْ صَدَقَةً إِلَى اللّٰهِ وَ إِلٰى
رَسُوْلِ اللّٰهِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْسِكْ عَلَيْكَ بَعْضَ
مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكَ قُلْتُ فَإِنِّيْ أُمْسِكُ
سَهْمِيَ الَّذِيْ بِخَيْبَرَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ
اللّٰهِ إِنَّ اللّٰهَ إِنَّمَا نَجَّانِيْ بِالصِّدْقِ وَ
إِنَّ مِنْ تَوْبَتِيْ أَنْ لَّا أُحَدِّثَ إِلَّا صِدْقًا
مَّا بَقِيْتُ فَوَاللّٰهِ مَا أَعْلَمُ أَحَدًا مِنَ

راپاسیدو، جوړ تازه ئې راسره اوکړل، بیائې مبارک
بادي راکړه، مهاجرینو کښې دا کار صرف طلحهؓ
اوکړلو. خدائې ګواه دے، چه زۀ به دَ هغهٔ دا احسان هیڅ
کله هیر نۀ کړم. کعبؓ وائي: بیا چه ما حضورؐ ته سلام
اوکۀ، او دَ حضور صلي الله علیه وسلّم مخ مبارک د
خوشحالي نه پړقیدلو، نو حضور صلي الله علیه وسلّم
اوفرمائیل، اے کعب، دا ورځ دے تاته مبارک وي، چه
ستا دَ پیدائش نه واخله، نه پورے دَ ټولو نه ښۀ ورځ ده.
ما عرض اوکۀ، حضورؐ دا معافي دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه
ده، یا ستاسوؐ دَ طرف نه. حضورؐ اوفرمائیل، دَ الله تعالیٰ دَ
طرف نه درته معافي شوے ده، او حضور صلي الله علیه
وسلّم چه به خوشحاله وو، نو مخ مبارک به ئې دَ
سپوږمي په شان چمک کولو. او مونږ به دَ حضورؐ په
خوشحالي پوهیدلو، بیا ما حضور صلي الله علیه وسلّم
ته عرض اوکۀ، اے دَ الله رسوله، دَ دے خلاصي او معافي
په شکریه کښې زۀ خپل ټول مال الله او دَ هغهٔ رسول د
پاره خیرات نۀ کړم. حضورؐ صلي الله علیه وسلّم
اوفرمائیل، څۀ خیرات کړه، او څۀ ځان دَ پاره اوساته،
ځکه چه دا ستا دَ پاره فائده مند دے. ما عرض اوکۀ،
صحیح ده، زۀ دَ خیبر خپله حصه خیرات کوم. بیا ما
عرض اوکۀ، اے دَ الله رسوله، ما دَ ریښتیا وئیلو په وجه
خلاصے بیامندلے دے. اُوس به زۀ ټول ژوند کښې هم
ریښتیا وایم، په خدائے مِ دے قسم وي، زۀ نشم وئیلے،
چه ریښتیا وئیلو سره چا باندے دومره مهرباني شوے
وي، څنګه چه په ما شوے ده، دَ هغې وخت نه چه ما
رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته ریښتیا خبره کړے

الْمُسْلِمِيْنَ اَبْلَاهُ فِيْ صِدْقِ الْحَدِيْثِ مُنْذُ ذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى يَوْمِيْ هٰذَا كَذِبًا وَ اِنِّيْ لَاَرْجُوْ اَنْ يَّحْفَظَنِي اللّٰهُ فِيْمَا بَقِيْتُ وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ تَابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِيْنَ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ كُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ فَوَاللّٰهِ مَا اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ مِنْ نِّعْمَةٍ قَطُّ بَعْدَ اَنْ هَدَانِيْ لِلْاِسْلَامِ اَعْظَمَ فِيْ نَفْسِيْ مِنْ صِدْقِيْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ لَا اَكُوْنَ كَذَبْتُهٗ فَاَهْلِكَ كَمَا هَلَكَ الَّذِيْنَ كَذَبُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ قَالَ لِلَّذِيْنَ كَذَبُوْا حِيْنَ اَنْزَلَ الْوَحْيُ شَرَّ مَا قَالَ لِاَحَدٍ فَقَالَ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ اِذَا انْقَلَبْتُمْ اِلٰى قَوْلِهٖ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَرْضٰى عَنِ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ قَالَ كَعْبٌ وَ كُنَّا تَخَلَّفْنَا اَيُّهَا الثَّلَاثَةُ عَنْ اَمْرِ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ قَبِلَ مِنْهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ حَلَفُوْا لَهٗ فَبَايَعَهُمْ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمْ وَ اَرْجَاَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمْرَنَا حَتّٰى قَضَى اللّٰهُ فِيْهِ فَبِذٰلِكَ قَالَ اللّٰهُ وَ عَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا وَ لَيْسَ

دہ، بیا د هغې وخت نه اوسه پورې ما هيڅ كله دروغ نه دي ونيلي، او زه اُميد كوم چه تول ژوند كښې به الله تعالٰي ما د دروغونه اوساتي، او الله تعالٰي په خپل رسولٔ باندې دا آيت نازل كړلو: لقد تاب اللّٰه على النبيّ والمهاجرين والانصار: يعني الله تعالٰي، نبي مهاجرينو او انصاروته معافي اوكړه: په خدائې م دې قسم وي، د اسلام نه پس د دې نه زيات هيڅ انعام او احسان مانه دې ليدلې (يعني دا ډير لوئې انعام او احسان دې، چه الله تعالٰي راته معافي اوكړله) او حضور صلي الله عليه وسلّم راته معافي اوكړله) او د حضور صلي الله عليه وسلّم مخكښې ئې ماته د ريښتيا ونيلو توفيق راكړلو، او د هلاكت نه ئې بچ كړم، كني د نورو خلقو په شان به زه هم تباه او هلاك شوې وې، كومو چه حضورٌ ته دروغ ونيلې وو، او په دروغه ئې قسمونه اوخوړل، او بيا دا آيت نازل شو: سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ اِذَا انْقَلَبْتُمْ: يعني دا خلق په دروغه قسمونه خوري، د پاره د دې چه ته ورته معافي اوكړې، خو د هغوي ټيكاونړه دوزخ دې. كعبٌ وائي، مونږ درې واړه د هغې منافقانو نه جُدا يُو، چه هغوي قسم قسم بهانې جوړې كړې، او په دروغه قسمونه ئې اوخوړل، او حضورٌ د هغوي خبره قبوله كړه، او د هغوئ نه ئې بيعت واخست، او د مغفرت دُعائې ورته اوكړله، خو خمونږ معامله ئې پريښودله، تردې چه خدائې تعالٰي دا آيت نازل كړلو: و على الثّلاثة الّذين خُلّفُوا: يعني هغه درې ئې معاف كړل، كوم چه ورستو پاتې شوې وو. دې نه هغه خلق مراد نه دي چه قصدًا ورستو پاتې

الَّذِيْ ذَكَرَ اللّٰهُ مِمَّا خُلِّفْنَا عَنِ الْغَزْوِ وَ اِنَّمَا هُوَ تَخْلِيْفُهُ اِيَّانَا وَ اِرْجَاؤُهُ اَمْرَنَا عَمَّنْ حَلَفَ لَهُ وَاعْتَذَرَ اِلَيْهِ فَقَبِلَ مِنْهُ.

شوي وو، بلكه مطلب دا دے چه موږ د هغوي سه ورستو پاتے شو، كومو چه قسمونه اوخوړل عذر ئے اوكړلو، او دوست د خدائے صلى الله عليه وسلّم د هغوي عذر قبول كړلو.

## باب ۸۱: نُزُوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحِجْرَ.

باب ۸۱: د حضور صلي الله عليه وسلّم مقام حجر كښې د قيام بيان.

۴۱۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَمَّا مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحِجْرِ قَالَ لَا تَدْخُلُوْا مَسَاكِنَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ اَنْ يُّصِيْبَكُمْ مَا اَصَابَهُمْ اِلَّا اَنْ تَكُوْنُوْا بَاكِيْنَ ثُمَّ قَنَّعَ رَاْسَهُ وَ اَسْرَعَ السَّيْرَ حَتّٰى اَجَازَ الْوَادِيَ.

۴۱۸: عبدالله بن محمد. عبدالرزاق. معمر. زهري. سالم بن عبدالله. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے نبي صلي الله عليه وسلّم چه جنګ تبوک ته تلو، او په مقام حجر تيريدلو[۱] نو وے فرمائيل دا ذ ظالمانو زمكه ده دلته ذ هغوي كورونه وو ذ هغوي ذ نافرماني په وجه په هغوي عذاب نازل كړے شو، تاسو دغے طرف ته مهٔ ځئ، داسے نه چه په تاسو هم عذاب نازل شي، دے مقام سره په ژړا تيريږئ، بيا حضورؐ خپل مخ مبارک پټ كړلو، او تيزي سره ذ هغے ځائے نه تير شولو.

۱. "حِجرْ" د حضرت صالح عليه السلام د قوم ثمود يانو ذ ښارئے نوم دے. دا همغه قوم دے كوم بانديے چه د الله تعالي عذاب د زلزلے او سختو دهماكو (چاؤدنو) او د بجلئ ذ چمک او د تندر د آواز په شكل كښے نازل شوے وو. كله چه حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم غزوه تبوک د پاره تشريف اوړلو نو دغه مقام په لاره كښے راغلے وو، حجر د شام او مدينے تر مينځه يو ښاريه وه.

۴۱۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَصْحَابِ الْحِجْرِ لَا تَدْخُلُوْا عَلٰى هٰؤُلَآءِ الْمُعَذَّبِيْنَ اِلَّا اَنْ تَكُوْنُوْا بَاكِيْنَ اَنْ يُّصِيْبَكُمْ مِثْلَ مَا اَصَابَهُمْ.

۴۱۹: يحيي بن بكير. مالک. عبدالله بن دينار. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلّم ذ حجر په مقام مسلمانانو ته اوفرمائيل، دلته ذ دے ځائے په خلقو عذاب نازل شوے وو، په ژړا او تادئ سره ذ خدائے خوف سره تيريږئ، داسے نه چه، تاسو باندے هم ذ هغوي په شان عذاب نازل شي.

۴۲۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ عَنِ اللَّيْثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ اَبِىْ سَلَمَةَ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الْمُغِيْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ ذَهَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبَعْضِ حَاجَتِهٖ فَقُمْتُ اَسْكُبُ عَلَيْهِ الْمَآءَ لَا اَعْلَمُهُ اِلَّا قَالَ فِيْ غَزْوَةِ تُبُوْكَ فَغَسَلَ وَجْهَهُ وَ ذَهَبَ يَغْسِلُ ذِرَاعَيْهِ فَضَاقَ عَلَيْهِ كُمُّ الْجُبَّةِ فَاَخْرَجَهُمَا مِنْ تَحْتِ جُبَّتِهٖ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ مَسَحَ عَلٰى خُفَّيْهِ.

۴۲۰: يحيي بن بكير. ليث. عبدالعزيز بن ابي سلمه. سعد بن ابراهيم. نافع. ابن جبير. عروه بن مغيره. حضرت مغيره بن شعبه نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم يو خل رفع حاجت ذ پاره تشريف يوړلو، چه واپس راغے، نو ما اودس ذ پاره ورته اوبه اچولے. حضورؐ مخ اووينزلو، بيائے څنګلو پورے لاسونه اووينزل خو لستونړي ئے تنګ وو. په دے وجه دواړه لاسونه ئے رابهر كړے وو. بيائے په موزو مسح اوكړله، عروه وائي، خما پلار مغيره دا ذ جنګ تبوک واقعه بيان كړے ده.

۴۲۱: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مُخَلَّدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ يَحْيٰى عَنْ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ قَالَ اَقْبَلْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ حَتّٰى اِذَا اَشْرَفْنَا عَلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَ هٰذِهٖ طَابَةُ وَ هٰذَا اُحُدٌ جَبَلٌ يُّحِبُّنَا وَ نُحِبُّهُ.

۴۲۱: خالد بن مخلد. سليمان. عمرو بن يحيٰي. عباس بن سهل بن سعد. حضرت ابي حميد ساعدي نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے. مونږ چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ذ جنګ تبوک نه واپس شو، او مديني ته نزدے شو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: دا طابه ده (طابه ذ مديني منورے نوم دے) او دا كوه اُحد دے، چه مونږ سره محبت كوي او مونږ ذ (اُحد) سره محبت كوو.

۴۲۲: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا حُمَيْدُ الطَّوِيْلُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَعَ مِنْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ فَدَنَا مِنَ الْمَدِيْنَةِ فَقَالَ اِنَّ بِالْمَدِيْنَةِ

۴۲۲: احمد بن محمد. عبداللّٰه بن مبارک. حميد طويل. حضرت انس بن مالک نه روايت كوي، هغه وائي، مونږ ذ جنګ تبوک نه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره واپس راتلو، مديني ته چه قريب شو، نو حضورؐ اوفرمائيل، مدينه كښ څنے خلق داسے هم دي، چه مدينه كښ پاتے كيدو سره هم هر ځائے كښ تاسو

أَقْوَامًا مَا سِرْتُمْ مَسِيرًا وَلَا وَادِيًا إِلَّا كَانُوا مَعَكُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ فَقَالَ وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ حَبَسَهُمُ الْعُذْرُ.

سره دي. خلقو تعجب سره عرض او کړ: یا رسول الله! مدینه کښې (او مونږ سره دا څنګه) حضورؐ ورته اوفرمائیل: هغوي د خپل (رینښتنے) عذر په وجه پاتے شوے وو (ګویا، د هغوي زړونه تاسو سره دي).

**باب ۸۲: كِتَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى كِسْرٰى وَ قَيْصَرَ.**

**باب ۸۲:** د نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم د هغے خطونو بیان، چه کسري او قیصر ته لیکلے وو.

۴۲۳: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرٰهِيمَ حَدَّثَنَا أَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بِكِتَابِهِ إِلَى كِسْرٰى مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ فَأَمَرَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ الْبَحْرَيْنِ فَدَفَعَهُ عَظِيمُ الْبَحْرَيْنِ إِلَى كِسْرٰى فَلَمَّا قَرَأَهُ مَزَّقَهُ فَحَسِبْتُ أَنَّ ابْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ فَدَعَا عَلَيْهِمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُمَزَّقُوا كُلَّ مُمَزَّقٍ.

۴۲۳: اسحاق. یعقوب بن ابراهیم. صالح. ابن شهاب. عبیداللّٰه بن عبداللّٰه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم، عبداللّٰه بن حذافه سهمي له خط ورکهٔ، او دَ کِسرٰي عامل بحرین منذرین ساوا ته ئے اولیږلو، نو دَ بحرین عامل هغه خط کسريٰ ته واستولو خو هغهٔ چه خط اولید، نو وے شلولو. دَ زهري بیان دے، ابن مسیب دا بیان هم کړے دے، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم چه دا خبر واورید، نو وے فرمائیل، اے اللّٰه، ایران واله داسے بسمے بسمے کړے، څنګه چه دا خط ئے بسمے بسمے کړلو.

۴۲۴: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ لَقَدْ نَفَعَنِيَ اللّٰهُ بِكَلِمَةٍ سَمِعْتُهَا مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيَّامَ الْجَمَلِ بَعْدَ مَا كِدْتُ أَنْ أَلْحَقَ أَصْحَابَ الْجَمَلِ

۴۲۴: عثمان بن هیثم. عوف. حسن. ابي بکره نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم هغے ارشاد ماته ډیره فائده اورسوله، یعني دَ جنګ جمل په ورځ زهٔ دَ بي بي عائشے په لښکر کښې شریک ووم، نزدے وه، چه زهٔ مسلمانانو سره جنګیدلے وے، چه ماته دَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دا ارشاد

فَقَتَلَ مَعْمَرٌ قَالَ لَمَّا بَلَغَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ اَهْلَ فَارِسَ قَدْ مَلَّكُوْا عَلَيْهِمْ بِنْتَ كِسْرٰى قَالَ لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا اَمْرَهُمُ امْرَاَةً.

مبارک را یاد شولو، چه حضورؐ ذ کسري د لور د تخت نشیني خبر آوریدلو سره فرمائیلي وو، هغه قوم څنګه کامیابیدی شي، چه خپل کار یوې ښځې ته حواله کړي.

۴۲۵: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ يَقُوْلُ اَذْكُرُ اَنِّيْ خَرَجْتُ مَعَ الْغِلْمَانِ اِلٰى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ نَتَلَقّٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ سُفْيَانُ مَرَّةً مَعَ الصِّبْيَانِ.

۴۲۵: علي بن عبدالله. سفیان. زهري. سائب بن یزید نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دے، ما نه دا خبره هیره نه ده، چه زهٔ ځنے هلکانو سره ثنیة الوداع پورے ذ حضور صلي الله علیه وسلّم استقبال له راغلے ووم، کوم وخت چه حضورؐ ذ تبوک نه واپس راتلو. او سفیان دے حدیث کښ کله ذ غلمان په ځائے صبیان وئیلے دي.

۴۲۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ السَّائِبِ اَذْكُرُ اَنِّيْ خَرَجْتُ مَعَ الصِّبْيَانِ نَتَلَقَّى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ مَقْدَمَهُ مِنْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ.

۴۲۶: عبدالله بن محمد. سفیان بن عیینه. زهري. حضرتِ سائب بن یزید نه روایت کوي، هغهٔ اووے، ماته یاد دي، چه زهٔ هلکانو سره ثنیة الوداع پورے ذ حضور صلي الله علیه وسلّم استقبال له تلے ووم، کوم وخت چه حضور صلي الله علیه وسلّم ذ جنګ تبوک نه واپس راتلو.

**باب۸۳: مَرَضِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ وَفَاتِهٖ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّكَ مَيِّتٌ وَ اِنَّهُمْ مَيِّتُوْنَ ثُمَّ اِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِنْدَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُوْنَ** وَ قَالَ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ يَا عَائِشَةُ مَا اَزَالُ اَجِدُ اَلَمَ الطَّعَامِ الَّذِيْ اَكَلْتُ

**باب۸۳:** ذ حضور صلي الله علیه وسلّم ذ بیماري او وفات بیان، او ذ الله تعالي ارشاد انک میّت الخ یعني اے خمونږ رسوله، بیشکه ته به هم مرے، او دوي به هم مري. بیا به د قیامت په ورځ تاسو ټول ذ خپل رب مخکښ جګړه کوے. او یونس، زهري، عروه، بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، هغے اووے، حضور صلي الله علیه وسلّم به خپلے بیمارئ کښ فرمائیل خیبر کښ چه کوم زهر ماته راکړے شوے وو، ذ هغے درد همیشه زهٔ ځیته

بِخَيْبَرَ فَهٰذَا اَوَانُ وَجَدْتُّ انْقِطَاعَ اَبْهَرِيْ مِنْ ذٰلِكَ السَّمِّ.

کښې محسوسوم' او اوس داسې معلوميږي' چه دا درد' خما رګونه پريکوي.

۴۲۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ عَنْ اُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالْمُرْسَلٰتِ عُرْفًا ثُمَّ مَا صَلّٰى لَنَا بَعْدَهَا حَتّٰى قَبَضَهُ اللّٰهُ.

۴۲۷: يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. حضرت عبدالله بن عباس. اُم فضل بنت حارث نه روايت کوی' ذ هغې بيان دے' ما د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ذ ماښام مونځ کښې سورهٔ والمرسلٰت لوستل واوريدل. دے نه پس ذ وفات پورے حضور صلي الله عليه وسلّم هيڅ مونځ (په جمع) ورنهٔ کړلو' ګويا دا ذ حضور صلي الله عليه وسلّم آخري مونځ وو.

۴۲۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِؓ يُدْنِيْ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ اِنَّ لَنَا اَبْنَاءً مِثْلَهُ فَقَالَ اِنَّهُ مِنْ حَيْثُ تَعْلَمُ فَسَاَلَ عُمَرُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ هٰذِهِ الْاٰيَةِ اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ فَقَالَ اَجَلُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْلَمَهُ اِيَّاهُ فَقَالَ مَا اَعْلَمُ مِنْهَا اِلَّا مَا تَعْلَمُ.

۴۲۸: محمد بن عرعره. شعبه. ابي بشر. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت کوي' حضرت عمرؓ به خان سره کينولم' عبدالرحمٰن اووے' خمونږ خو ذ دهٔ په شان بچي دي (يعني دے خو خمونږ ذ بچي په ځائے دے) نو بيا تاسو دے څنګه خان سره کينوئے' حضرت عمرؓ ورته اوفرمائيل دهٔ سره خما دا سلوک څکه دے' چه دے ذ علم خاوند دے. بيائے ذ ابن عباسؓ نه د: اِذَا جَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ: متعلق تپوس اوکڅ' نو هغهٔ ورته اووے' دا آيت ذ حضورؐ ذ وفات قريب کيدو په حقله نازل شولو' ګويا دا ذ حضور صلي الله عليه وسلّم وفات ته اشاره ده' او دا شان حضورؐ ته اوښودلے شو' چه اوس د وفات وخت قريب دے' نو حضرت عمرؓ اووے' خما هم دا خيال دے.

۴۲۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سُلَيْمَانَ الْاَحْوَلِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ

۴۲۹: قتيبه. سفيان. سليمان. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي' ذ هغهٔ بيان دے. ذ زيارت (جمعرات) ورځ' ذ زيارت ورځ. او په دے ورځ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَوْمُ الْخَمِيْسِ وَمَا يَوْمُ الْخَمِيْسِ اِشْتَدَّ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعُهُ فَقَالَ اِيْتُوْنِيْ اَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوْا بَعْدَهُ اَبَدًا فَتَنَازَعُوْا وَلَا يَنْبَغِيْ عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ فَقَالُوْا مَا شَانُهُ اَهَجَرَ اسْتَفْهِمُوْهُ فَذَهَبُوْا يَرُدُّوْنَ عَلَيْهِ فَقَالَ دَعُوْنِيْ فَالَّذِيْ اَنَا فِيْهِ خَيْرٌ مِّمَّا تَدْعُوْنِيْ اِلَيْهِ وَ اَوْصَاهُمْ بِثَلَاثٍ قَالَ اَخْرِجُوا الْمُشْرِكِيْنَ مِنْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ وَ اَجِيْزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ اُجِيْزُهُمْ وَ سَكَتَ عَنِ الثَّالِثَةِ اَوْ قَالَ فَنَسِيْتُهَا.

حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دَ سخت درد تکليف شولو. حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو. دَ ليکلو سامان راوړئ، زهٔ درته يَو تحرير ليکم، که تاسو په هغې عمل اوکهٔ، نو بيا به نهٔ گمراه کيږې. خلق په جگړه (تادئ مادئ) شو، او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخکښې جگړه کول ښهٔ نهٔ وو. چا اوويے، دَ بيمارئ دَ شدت دَ وجے نه حضورؐ داسے وائي، نو دوباره ترے تپوس اوکړے، خلقو دوباره تپوس شروع کهٔ، نو حضورؐ اوفرمائيل، پريږدئ، زهٔ چه کوم مقام کښې يم، هغه دَ دے نه ښه دے، چه هغے طرف ته تاسو ما بلئ. دے نه پس حضورؐ زباني درے هدايات اوفرمائيل (۱) اول: خما نه پس مشرکان دَ جزيرهٔ عرب نه اوکاږئ (۲) دوئم: سفيرانو سره حسن سلوک سره پيش راځئ. سعيد بن جبير اووے، چه ابن عباسؓ نه (۳) دريمه: خبره هيره شوه.

۴۳۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا حُضِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ فِي الْبَيْتِ رِجَالٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلُمُّوْا اَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَا تَضِلُّوْا بَعْدَهُ فَقَالَ بَعْضُهُمْ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ غَلَبَهُ الْوَجَعُ وَ عِنْدَكُمُ الْقُرْاٰنُ حَسْبُنَا كِتَابُ اللّٰهِ فَاخْتَلَفَ اَهْلُ الْبَيْتِ

۴۳۰: علي بن عبداللّٰه. عبدالرزاق. معمر. زهري. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. دَ هغهٔ بيان دے، کوم وخت چه دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ وفات وخت قريب راغے، نو حضورؐ اوفرمائيل، چه زهٔ تاسو دَ پاره يو وصيت اوليکم، دَ پاره دَ دے چه گمراه نهٔ شئ. حضرت عمرؓ اووے، دے وخت حضورؐ ته سخت تکليف دے، دَ وصيت ليکلو ضرورت نشته، تاسو سره قرآن شته، او مونږ له قرآن کافي دے. دے نه پس خلقو جگړه شروع کړه، چا وئيلے، او، اودے ليکي، ښهٔ ده چه تاسو به گمراه نهٔ شئ. چا بل څهٔ

وَاخْتَصَمُوْا فَمِنْهُمْ مَنْ يَّقُوْلُ غَيْرُ ذٰلِكَ فَلَمَّا اَكْثَرُوا اللَّغْوَ وَالْاِخْتِلَافَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُوْمُوْا قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَكَانَ يَقُوْلُ ابْنُ عَبَّاسٍ اِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَيْنَ اَنْ يَّكْتُبَ لَهُمْ ذٰلِكَ الْكِتٰبَ لِاخْتِلَافِهِمْ وَلَغَطِهِمْ.

اووې، او خبرې شروع شوې، نو حضورﷺ اوفرمائیل، خما نه لرې شئ. عبیدالله بن عبدالله وائي، حضرت ابن عباسؓ دې نه پس ډیر افسوس سره اووې، دا څنګه مصیبت دې، چه خلقو ذ حضور صلي الله علیه وسلم او ذ حضورﷺ ذ وصیت لیکلو مینځ کښې ذ خپلو اختلافاتو جګړو په وجه حائل کړلو.

۴۴۳۱: حَدَّثَنَا بُسْرَةُ بْنُ صَفْوَانَ بْنِ جَمِيْلِ اللَّخْمِيِّ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ فِيْ شَكْوَاهُ الَّذِيْ قُبِضَ فِيْهِ فَسَارَّهَا بِشَيْءٍ فَبَكَتْ ثُمَّ دَعَا فَسَارَّهَا فَضَحِكَتْ فَسَأَلْنَا عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَتْ سَارَّنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ يُقْبَضُ فِيْ وَجَعِهِ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ فَبَكَيْتُ ثُمَّ سَارَّنِيْ فَاَخْبَرَنِيْ اَنِّيْ اَوَّلُ اَهْلِهٖ يَتْبَعُهٗ فَضَحِكْتُ.

۴۴۳۱: بسره بن صفوان. ابن جمیل لخمي. ابراهیم بن سعد. سعد. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، ذ هغے بیان دے، حضور صلي الله علیه وسلم خپل وفات ته نزدے، بي بي فاطمه راوغبنتله، او رو، رو څه خبرے ئے ورسره اوکړلے، ذ هغے آوریدو سره هغه په ژړا شوله. ما ذ هغے نه (ذ حضورﷺ ذ وفات نه پس) ذ هغے ژړا، او خندا وجه اوپښتله، نو هغے اووے، نبي صلي الله علیه وسلم اول دا فرمائیلے وو، چه زۀ به هم دے بیماري کښې وفات شم، او بیائے اوفرمائیل، خما اهل بیتو کښې به ذ ټولو نه وړمبے ته ماسره یوځائے کیږے، نو بیا زۀ خوشحاله شوم.

۴۴۳۲: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اَسْمَعُ اَنَّهٗ لَا يَمُوْتُ نَبِيٌّ حَتّٰى يُخَيَّرَ بَيْنَ الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ فَسَمِعْتُ

۴۴۳۲: محمد بن بشار. غندر. شعبه. سعد. عروه بن زبیر. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، هغے اووے، ما ذ رسول الله صلي الله علیه وسلم نه آوریدلے وو، نبي ته اختیار ورکولے شي، خواه چه هغه دے جهان کښې اوسي، یا ذ آخرت قیام خوښوي، نو وفات ته نزدے

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ وَ اَخَذَتْهُ بُحَّةٌ يَّقُوْلُ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ اَلْاٰيَةَ فَظَنَنْتُ اَنَّهُ خُيِّرَ.

تېرې ما واورېدل، چه حضورﷺ دا آيت: مع الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ تلاوت كولو (يعني هغې خلقو سره، چه اللّٰه پرې انعام كړې دې) نو زهٔ پوه شوم، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته هم اختيار وركړې شو.

۴۳۳: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا مَرِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَرَضَ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ جَعَلَ يَقُوْلُ فِي الرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى.

۴۳۳: مسلم. شعبه. سعد. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي، هغهٔ اووې، كوم وخت چه حضورﷺ د وفات مرض كښې شو، نو حضورﷺ به فرمائيل: في الرفيق الاعلٰى: دَ اعلٰي مرتبې رفيقانو كښې م اوساتې.

۴۳۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ صَحِيْحٌ يَقُوْلُ اِنَّهُ لَمْ يُقْبَضْ نَبِيٌّ قَطُّ حَتّٰى يَرٰى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُحَيَّا اَوْ يُخَيَّرُ فَلَمَّا اشْتَكٰى وَ حَضَرَهُ الْقَبْضُ وَ رَاْسُهُ عَلٰى فَخِذِ عَائِشَةَ غُشِيَ عَلَيْهِ فَلَمَّا اَفَاقَ شَخَصَ بَصَرُهُ نَحْوَ سَقْفِ الْبَيْتِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ فِي الرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى فَقُلْتُ اِذًا لَّا يُجَاوِرُنَا فَعَرَفْتُ اَنَّهُ حَدِيْثُهُ الَّذِيْ كَانَ يُحَدِّثُنَا وَهُوَ صَحِيْحٌ.

۴۳۴: ابواليمان. شعيب. زهري. عروه بن زبير. بي بي عائشې نه روايت كوي، دَ هغې بيان دې، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم يو ځلې دَ تندرستئ حالت كښې فرمائيلې وو، هيڅ نبي هغه پورې نهٔ وفات كيږي، څو پورې چه جنت كښې دَ هغهٔ ځائې هغهٔ ته اونهٔ ښودلې شي. بيا هغه ته اختيار وركړې شي، كه هغه غواړي، نو دُنيا كښې دې پاتې شي، او كه غواړي، نو آخرت دې خوښ كړي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم چه كوم وخت ناروغه شو، او (دَ وفات) وخت رانزدې شو، نو حضورﷺ باندې بيهوشي راغله، او وې فرمائيل: اَللّٰهُمَّ فِي الرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى: نو ما اووې، چه حضورﷺ مونږ كښې اوسيدل نه خوښوي، او معلومه شوه، چه كومه خبره حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ تندرستي په زمانه كښې فرمائيلې وه: هغه پوره كيږي.

۴۳۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَفَّانُ عَنْ صَخْرِ بْنِ جُوَيْرِيَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ

۴۳۵: محمد بن يحيي. عفان. صخر بن جويريه. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم بن محمد. بي بي عائشې نه روايت كوي د هغې

عَنْهَا دَخَلَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِي بَكْرٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا مُسْنِدَتُهُ اِلٰى صَدْرِيْ وَ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ سِوَاكٌ رَطْبٌ يَسْتَنُّ بِهٖ فَاَبَدَّهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَصَرَهُ فَاَخَذْتُ السِّوَاكَ فَقَصَمْتُهُ وَ نَفَضْتُهُ وَ طَيَّبْتُهُ ثُمَّ دَفَعْتُهُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَنَّ بِهٖ فَمَا رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَنَّ اِسْتِنَانًا قَطُّ اَحْسَنَ مِنْهُ فَمَا عَدَا اَنْ اَفْرَغَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَهُ او اِصْبَعَهُ ثُمَّ قَالَ فِي الرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى ثَلَاثًا ثُمَّ قَضٰى وَ كَانَتْ تَقُوْلُ مَاتَ بَيْنَ حَاقِنَتِيْ وَ ذَا قِنَتِيْ.

بيان دے چې په بيمارۍ کښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خما سينې سره ډډه وهلې وه، چه عبدالرحمٰن بن ابي بكرؓ لاس کښې يو شين مسواک سره راداخل شو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوکتل نو ما د هغه نه واخستلو، غابنونو سره م نرم کړو او وم وينزلو، او حضورؐ له م ورکړلو. حضورؐ په ښه شان سره مسواک اوکړو، چه دے نه مخکښې ما په داسې ښه شان سره مسواک کولو نه وو ليدلے، بيا چه حضورؐ د هغې نه فارغ شو، نو آسمان طرف ته ئې اشاره کولو سره اوفرمائيل: اَللّٰهُمَّ فِي الرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى: دا ئې درے ځله اوفرمائيل، او وفات شولو. بي بي عائشهؓ فرمائي، دغه وخت دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سر مبارک خما دَ سينې او زنې (تھوڑی) سره قريب لګيدلے وو.

۴۴۳٦: حَدَّثَنِيْ حِبَّانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا اشْتَكٰى نَفَثَ عَلٰى نَفْسِهٖ بِالْمُعَوِّذَاتِ وَ مَسَحَ عَنْهُ بِيَدِهٖ فَلَمَّا اشْتَكٰى وَجَعَهُ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ طَفِقْتُ اَنْفُثُ عَلٰى نَفْسِهٖ بِالْمُعَوِّذَاتِ الَّتِيْ كَانَ يَنْفُثُ وَ اَمْسَحُ بِيَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۴۴۳٦: حبان. عبداللّٰه. يونس. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشې نه روايت کوي، دَ هغې بيان دے، کوم وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ناروغه شو، نو آخري دوه سورتونه به ئې په خپل لاسونو دَم کولے او په ټول جسم به ئې راښکلے. بيا چه حضورؐ دَ وفات په بيمارۍ کښې شو، نو بيا به ما دغه معوذتين دَ حضورؐ په لاسونو دَم کولے او دَ حضورؐ په بدن به م

عَنْهُ.

زا بنکلے.

۴۴۳۷: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُخْتَارٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْغَتْ اِلَيْهِ قَبْلَ اَنْ يَمُوْتَ وَهُوَ مُسْنِدٌ اِلَيَّ ظَهْرَهُ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَ اَلْحِقْنِيْ بِالرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى.

۴۴۳۷: معلي بن اسد. عبدالعزیز. هشام بن عروه. عباد بن عبدالله بن زبیر. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، ذ هغے بیان دے. کوم وخت چه ذ حضورؐ ذ وفات وخت قریب شو، حضورؐ به ماته ډډه وهلے وه، ما به ترے واوریدل، چه حضورؐ به فرمائیل: اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِىْ وَارْحَمْنِىْ وَ اَلْحِقْنِىْ بِالرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى (اے اللّٰه، ما اوبښے، رحم زابساندے اوکړے، او اوچتو ملګرو سره م یوځائے کړے).

۴۴۳۸: حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ هِلَالِ الْوَزَّانِ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ لَمْ يَقُمْ مِنْهُ لَعَنَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ اتَّخَذُوْا قُبُوْرَ اَنْبِيَآئِهِمْ مَسَاجِدَ قَالَتْ عَائِشَةُ لَوْلَا ذٰلِكَ لَاُبْرِزَ قَبْرُهُ خَشِيَ اَنْ يُتَّخَذَ مَسْجِدًا.

۴۴۳۸: صلت بن محمد. ابو عوانه. هلال بن حمید وزان. عروه بن زبیر بن عوامؓ. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، ذ هغے بیان دے، حضورؐ مرض الموت کښ ذ وفات نه مخکښ فرمائیل، اللّه دے په یهودو لعنت اوکړي، هغوي ذ خپلو نبیانو قبرونه سجده ګاه جوړ کړل. بي بي عائشةؓ فرمائي، که ذ دے خبرے اندیښنه نۀ وے، چه خلق به ذ حضورؐ قبر سجده ګاه جوړ کړي، نو ذ حضورؐ قبر به پرانستے پرېښے شوے وو.

۴۴۳۹: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمَّا ثَقُلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۴۴۳۹: سعید بن عفیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. عبیدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود. بي بي عائشےؓ ذ نبي صلي الله علیه وسلم تبر نه روایت کوي، ذ هغے بیان دے کوم وخت چه حضورؐ ذ بي بي میمونےؓ کور کښ ناروغه شو. او مرض شدت اختیار که (یعني زیات شو) نو حضورؐ ذ نورو ټولو بیبیانو

وَاشْتَدَّ وَجَعُهُ اسْتَأْذَنَ أَزْوَاجَهُ أَنْ يُمَرَّضَ فِيْ بَيْتِيْ فَأَذِنَّ لَهُ فَخَرَجَ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ تَخُطُّ رِجْلَاهُ فِي الْأَرْضِ بَيْنَ عَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَ بَيْنَ رَجُلٍ اٰخَرَ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَأَخْبَرْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بِالَّذِيْ قَالَتْ عَائِشَةُ فَقَالَ لِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبَّاسٍ هَلْ تَدْرِيْ مَنِ الرَّجُلُ الْاٰخَرُ الَّذِيْ لَمْ تُسَمِّ عَائِشَةُ قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هُوَ عَلِيٌّ وَ كَانَتْ عَائِشَةُ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُحَدِّثُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا دَخَلَ بَيْتِيْ وَاشْتَدَّ بِهٖ وَجَعُهُ قَالَ هَرِيْقُوْا عَلَيَّ مِنْ سَبْعِ قِرَبٍ لَمْ تُحْلَلْ اَوْكِيَتُهُنَّ لَعَلِّيْ اَعْهَدُ اِلَى النَّاسِ فَاَجْلَسْنَاهُ فِيْ مِخْضَبٍ لِحَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ طَفِقْنَا نَصُبُّ عَلَيْهِ مِنْ تِلْكَ الْقِرَبِ حَتّٰى طَفِقَ يُشِيْرُ اِلَيْنَا بِيَدِهٖ اَنْ قَدْ فَعَلْتُنَّ قَالَتْ ثُمَّ خَرَجَ اِلَى النَّاسِ فَصَلّٰى لَهُمْ وَ خَطَبَهُمْ وَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ عَائِشَةَ وَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ قَالَا لَمَّا نَزَلَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَفِقَ يَطْرَحُ خَمِيْصَةً لَهٗ عَلٰى وَجْهِهٖ فَاِذَا اغْتَمَّ كَشَفَهَا عَنْ وَجْهِهٖ

نه اجازت اوغوښتلو چه حضورﷺ دے خما (بي بي عائشےؓ) کور کښې وي، ټولو اجازت ورکړلو. نو حضورﷺ د حضرت عباسؓ او ذ يو بل سړي په سهارا خما کور ته تشريف راوړلو. ذ راوي بيان دے، ما ذ حضرت ابن عباسؓ نه ذ هغے بل سړي تحقيق اوکۀ، نو معلومه شوه، چه هغه حضرت عليؓ بن ابي طالب وو. بي بي عائشهؓ فرمائي، خما کور ته چه راغلو، ذ حضورﷺ تکليف نورِ هم زيات شولو، حضورﷺ اوفرمائيل، ذ اُوبو اوه (۷) مشکيزے راوړئے، او په مائے اوبهيوئے، شايد زۀ ددے قابل شم، چه څۀ وصيت اوکړے شم، بي بي عائشهؓ فرمائي، مونږ ذ حضورﷺ ذ ټبر بي بي حفصهؓ په يو لوښي کښې حضورﷺ کينولو. او په حضورﷺ مو ذ مشکيزے نه اوبه اچول شروع کړل، تر دے چه حضورﷺ منع اوفرمائيله (يعني چه بس دے) نو مونږ بس کړل. دے نه پس حضورﷺ جمات ته تشريف راوړلو، خلقو ته ئے مونځ ورکړلو. بيائے څۀ وصيتونه اوکړل، زهري وائي، ما ته عبيدالله بن عبدالله اووے، بي بي عائشےؓ او حضرت عبدالله بن عباسؓ وئيلے، حضورﷺ بيماري کښې مخ په څادر کښې پټولو، او کله چه به ئے زړۀ تنګ شو، نو مخ به ئے څرګند کړلو. او بيائے دغے حالت کښې دا ارشاد فرمائيلو، په يهود او نصاريٰ دے ذ خدائے لعنت

فَقَالَ وَهُوَ كَذٰلِكَ يَقُوْلُ لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى اتَّخَذُوْا قُبُوْرَ اَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ يُحَذِّرُ مَا صَنَعُوْا اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ قَدْ رَاجَعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ ذٰلِكَ وَمَا حَمَلَنِيْ عَلٰى كَثْرَةِ مُرَاجَعَتِهٖ اِلَّا اَنَّهٗ لَمْ يَقَعْ فِيْ قَلْبِيْ اَنْ يُحِبَّ النَّاسُ بَعْدَهٗ رَجُلًا قَامَ مَقَامَهٗ اَبَدًا وَّ اِلَّا كُنْتُ اَرٰى اَنَّهٗ لَنْ يَقُوْمَ اَحَدٌ مَقَامَهٗ اِلَّا تَشَاءَمَ النَّاسُ بِهٖ فَاَرَدْتُ اَنْ يَّعْدِلَ ذٰلِكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَبِيْ بَكْرٍ رَوَاهُ ابْنُ عُمَرَ وَ اَبُوْ مُوْسٰى وَابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

وي' هغوي ذ خپلو نبيانو ذ قبرونو نه سجده ګاه جوړ كړل. حضورؐ به خلق ذ دې خراب حركت نه منع كول. زهري وائي' عبيدالله ماته اووې بي بي عائشې ماته اوفرمائيل' كوم وخت چه خما پلار ابوبكرؓ ته حضورؐ ذ امامت حكم وركړلو' نو ما څو خله دا خبره حضورؐ ته اوكړله. خما دا خيال وو' چه كوم سړې ذ حضورؐ په ځائې امام جوړ شي' نو خلق به هيڅ كله هغۀ ته ذ محبت په نظر نۀ ګوري' بلكه هغۀ ته به په بد نظر ګوري' نو ما دا غوښتل' چه حضور صلي الله عليه وسلم هغه ذ امامت نه معاف كړي (امام بخاريؒ وائي) دا حديث عبدالله بن عمرؓ' ابو موسٰي اشعريؓ' ابن عباسؓ هم ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت كړې دې. (ګويا ټول په دې متفق دي).

۴۴۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ الْهَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اِنَّهٗ لَبَيْنَ حَاقِنَتِيْ وَ ذَاقِنَتِيْ فَلَا اَكْرَهُ شِدَّةَ الْمَوْتِ لِاَحَدٍ اَبَدًا بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۴۴۰: عبدالله بن يوسف. ليث. ابن الهاد. عبدالرحمٰن بن قاسم. قاسم بن محمد. بي بي عائشېؓ نه روايت كوي' ذ هغې بيان دې' كوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلم وفات شو' نو ذ حضورؐ سر مبارك خما سينې سره لګيدلې وو. او ذ كوم وخت نه چه ما ذ حضور زنكدن ليدلې دې' نو ذ چا ذ مرګ سختي بده نۀ ګنړم.

۴۴۱: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا بِشْرُ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اَبِيْ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ

۴۴۱: اسحاق. بشر بن شعيب بن ابي حمزه. ابي حمزه. زهري. عبدالله بن كعب بن مالك انصاري. او كعب بن مالك ذ هغې دريو

أَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ الْأَنْصَارِيُّ وَ كَانَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ أَحَدُ الثَّلَاثَةِ الَّذِيْنَ تِيْبَ عَلَيْهِمْ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِيْ طَالِبٍ خَرَجَ مِنْ عِنْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ وَجَعِهِ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ فَقَالَ النَّاسُ يَا أَبَا حَسَنٍ كَيْفَ أَصْبَحَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَصْبَحَ بِحَمْدِ اللّٰهِ بَارِئًا فَأَخَذَ بِيَدِهِ عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ لَهُ أَنْتَ وَاللّٰهِ بَعْدَ ثَلَاثٍ عَبْدُ الْعَصَا وَ إِنِّيْ وَاللّٰهِ لَأُرٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَوْفَ يُتَوَفّٰى مِنْ وَّجَعِهِ هٰذَا إِنِّيْ لَأَعْرِفُ وُجُوْهَ بَنِيْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ عِنْدَ الْمَوْتِ اِذْهَبْ بِنَا إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْنَسْأَلْهُ فِيْمَنْ هٰذَا الْأَمْرُ إِنْ كَانَ فِيْنَا عَلِمْنَا ذٰلِكَ وَ إِنْ كَانَ فِيْ غَيْرِنَا عَلِمْنَاهُ فَأَوْصٰى بِنَا فَقَالَ عَلِيٌّ إِنَّا وَاللّٰهِ لَئِنْ سَأَلْنَاهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنَعَنَاهَا لَا يُعْطِيْنَاهَا النَّاسُ بَعْدَهُ وَ إِنِّيْ وَاللّٰهِ لَا أَسْأَلُهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

نه یو وو، ذَ هغوي توبه قبوله شوه، ذَ حضرت ابن عباسؓ نه روایت دے، ذَ هغهٔ بیان دے، حضرت عليؓ ذَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم نه بهر ته راغے، نو خلقو ذَ حضرت علیؓ نه تپوس اوکهٔ، اے ابوالحسن، ذَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم مزاج څنګه دے (یعني بیماري ئے څنګه ده) هغهٔ اووے، الحمد للّٰه، اوس ښهٔ دے، نو حضرت عباسؓ ذَ حضرت علیؓ لاس ټینګ اونیولو، او ورته ئے اووے، په خدائے مِ دے قسم وي، درے ورځے پس به تاسو ذَ کوتک (لاٹھی) غلامان شئے، ځکه چه زهٔ پوهیږم، چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به دے بیماري کښې وفات شي، او زهٔ پوهیږم، چه ذَ عبدالمطلب ذَ اولاد مخ ذَ وفات په وخت څنګه کیږي، نو تهٔ او زهٔ به حضورؐ له ورشو، چه معلومه کړو، چه تاسوؐ نه پس به ستاسو جانشین څوک وي. که حضورؐ بني هاشم ته خلافت ورکوي، نو ټیک ده، او که بل چا ته ورکړي، نو هغهٔ ته به مونږ سره ذَ ښهٔ سلوک کولو وصیت اوکړي. حضرت علیؓ جواب ورکهٔ، په خدائے مِ دے قسم وي، چه زهٔ به داسے اونهٔ کړم، ځکه که حضورؐ منع اوکړله، نو خلق به هیڅ کله مونږ بیا جانشین جوړ نهٔ کړي، نو زهٔ تاسره ذَ دے خبرے معلومولو ذَ پاره نشم تلے.

۴۴۲: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ

۴۴۲: سعید بن عفیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. حضرت انس بن مالکؓ نه روایت

عُقَيْلُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ الْمُسْلِمِيْنَ بَيْنَاهُمْ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ الْاِثْنَيْنِ وَ اَبُوْ بَكْرٍ يُصَلِّيْ لَهُمْ لَمْ يَفْجَاَهُمْ اِلَّا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ كَشَفَ سِتْرَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَنَظَرَ اِلَيْهِمْ وَهُمْ فِيْ صُفُوْفِ الصَّلٰوةِ ثُمَّ تَبَسَّمَ يَضْحَكُ فَنَكَصَ اَبُوْ بَكْرٍ عَلٰى عَقِبَيْهِ لِيَصِلَ الصَّفَّ وَ ظَنَّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ اَنْ يَّخْرُجَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَقَالَ اَنَسٌ وَهَمَّ الْمُسْلِمُوْنَ اَنْ يَفْتَتِنُوْا فِيْ صَلٰوتِهِمْ فَرَحًا بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَشَارَ اِلَيْهِمْ بِيَدِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ اَتِمُّوْا صَلَاتَكُمْ ثُمَّ دَخَلَ الْحُجْرَةَ وَ اَرْخَى السِّتْرَ.

كوي، ذ هغه بيان دے، مونږ خلقو مسجد نبوي كښ حضرت ابوبكرؓ پسے ذ سحر مونځ ادا كولو. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ بي بي عائشے ذ حجرے پرده اوچته كړه، مونږ طرف ته ئے اوكتل، چه ټول مونځ كښ مشغول يو، حضورؐ مُسكے شولو. حضرت ابوبكرؓ خيال اوكه، چه حضورؐ مانځه ذ پاره تشريف راوړي، نو هغه ورستو كيدلو خو حضورؐ اشارے سره منع كړلو. حضرت انسؓ وائي، مسلمانان ډير خوشحاله شو هغوي نيت ماتول غوښتل، چه حضورؐ به ورته خپله مونځ وركړي، خو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوي طرف ته خپل لاس مبارك سره اشاره اوكړله (ذ هغے مطلب دا وو) چه خپل مونځ پوره كړے، بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم حجرے كښ داخل شو، او پرده ئے راخكته كړله.

۴۴۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ حَدَّثَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ اَبَا عَمْرٍو وَ ذَكْوَانَ مَوْلٰى عَائِشَةَ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَائِشَةَ كَانَتْ تَقُوْلُ اِنَّ مِنْ نِعَمِ اللّٰهِ عَلَيَّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ فِيْ بَيْتِيْ وَ فِيْ يَوْمِيْ وَ بَيْنَ سَحْرِيْ وَ نَحْرِيْ وَ اَنَّ اللّٰهَ جَمَعَ بَيْنَ رِيْقِيْ وَ

۴۴۳: محمد بن عبيد. عيسي بن يونس. عمر بن سعيد. ابن ابي مليكه. ابا عمر. ذكوان (ذ بي بي عائشےؓ آزاد كړده غلام) بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذ هغے بيان دے، چه دا ذ خدائے پو نعمت او عنايت دے، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم څما ذ وار په ورځ څما كور كښ څما سينے سره ډډه وهلے خپل رب پله ئے تشريف يوړلو. او ذ وفات په وخت اللّٰه تعالي څما او ذ حضورؐ لاړے (لعاب) هم يو ځائے كړے. خبره داسے

رِيقِهِ عِنْدَ مَوْتِهِ دَخَلَ عَلَيَّ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَ بِيَدِهِ السِّوَاكُ وَ اَنَا مُسْنِدَةٌ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَاَيْتُهُ يَنْظُرُ اِلَيْهِ وَ عَرَفْتُ اَنَّهُ يُحِبُّ السِّوَاكَ فَقُلْتُ اٰخُذُهُ لَكَ فَاَشَارَ بِرَاْسِهِ اَنْ نَّعَمْ فَتَنَاوَلْتُهُ فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ وَ قُلْتُ اُلَيِّنُهُ لَكَ فَاَشَارَ بِرَاْسِهِ اَنْ نَّعَمْ فَلَيَّنْتُهُ وَ بَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ اَوْ عُلْبَةٌ يَشُكُّ عُمَرُ فِيْهَا مَآءٌ فَجَعَلَ يُدْخِلُ يَدَيْهِ فِي الْمَآءِ فَيَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ يَقُوْلُ لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ اِنَّ لِلْمَوْتِ سَكَرَاتٍ ثُمَّ نَصَبَ يَدَهُ فَجَعَلَ يَقُوْلُ فِي الرَّفِيْقِ الْاَعْلٰى حَتّٰى قُبِضَ وَ مَالَتْ يَدُهُ.

وه، چه عبدالرحمٰن شین مسواک سره خمونږ کور ته راغیے، او حضورؐ ماته ډډه وهلے وه، حضورؐ هغه طرف ته اوکتل نو ما عرض اوکړ، چه تاسو مسواک غواړے حضورؐ اشارے سره اووے، او، نو ما هغه مسواک واخست، غابښونو سره مې نرم کړ، بیا مې حضورؐ له ورکړلو. نو حضورؐ ښۀ شان سره مسواک اوکړلو، او حضورؐ سره دَ اوبو یو لوښے پروت وو، حضورؐ به خپل لاس اوبو ته دننه کولو، بیا به ئے په مخ راښکلو. اوفرمائیل به ئے: لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ اِنَّ لِلْمَوْتِ سَكَرَاتٍ: یعني دَ خدائے نه سِوا بل معبود نشته، بیشکه دَ مرګ لوئے تکلیف وي. بیا حضورؐ لاس اوچت کړل، آسمان طرف ته ئے اشاره اوکړه، وے فرمائیل: اللّٰهم بالرفیق الاعلٰی: دے نه پس حضورؐ وفات شو، او لاس ئے راخکته شو.

۴۴۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ ابْنُ بِلَالٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ ابْنُ عُرْوَةَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْئَلُ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ يَقُوْلُ اَيْنَ اَنَا غَدًا اَيْنَ اَنَا غَدًا يُرِيْدُ يَوْمَ عَائِشَةَ فَاَذِنَ لَهُ اَزْوَاجُهُ يَكُوْنُ حَيْثُ شَآءَ فَكَانَ فِيْ بَيْتِ عَائِشَةَ حَتّٰى مَاتَ عِنْدَهَا قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَاتَ فِي الْيَوْمِ الَّذِيْ كَانَ يَدُوْرُ عَلَيَّ فِيْهِ فِيْ بَيْتِيْ فَقَبَضَهُ اللّٰهُ وَ اِنَّ رَاْسَهُ لَبَيْنَ نَحْرِيْ وَ

۴۴۴: اسماعیل. سلیمان بن بلال. هشام بن عروه دَ خپل پلار نه، هغه دَ بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، دَ هغے بیان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ خپل مرګ مرض کښې به بیا بیا دریافت کولو، چه: اَيْنَ اَنَا غَدًا، اَيْنَ اَنَا غَدًا: یعني صبا له به زۀ کوم ځائے یم: دَ حضورؐ مطلب دا وو، چه دَ عائشےؓ نمبر به کله راځي، دے حالت لیدو سره دَ حضورؐ بیبیانو اجازت ورکړ، چه ستاسو کوم ځائے خوښه وي، هلته قیام کوے، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ وفات پورے ځما کور کښې مقیم وو. او کوم وخت چه وفات شو، نو هغه ځما دَ نمبر ورځ وه، او اللّٰه تعالٰي په دے آخر وخت کښې هم ځما دَ

سَحۡرِیۡ وَ خَالَطَ رِيۡقُهٗ رِيۡقِيۡ ثُمَّ قَالَتۡ دَخَلَ عَبۡدُ الرَّحۡمٰنِ ابۡنُ اَبِيۡ بَكۡرٍ وَّ مَعَهٗ سِوَاكٌ يَسۡتَنُّ بِهٖ فَنَظَرَ اِلَيۡهِ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَقُلۡتُ لَهٗ اَعۡطِنِيۡ هٰذَا السِّوَاكَ يَا عَبۡدَ الرَّحۡمٰنِ فَاَعۡطَانِيۡهِ فَقَضِمۡتُهٗ ثُمَّ مَضَغۡتُهٗ فَاَعۡطَيۡتُهٗ رَسُوۡلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَاسۡتَنَّ بِهٖ وَهُوَ مُسۡتَنِدٌ اِلٰى صَدۡرِيۡ.

۵۴۴۵: حَدَّثَنَا سُلَيۡمٰنُ بۡنُ حَرۡبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بۡنُ زَيۡدٍ عَنۡ اَيُّوۡبَ عَنۡ اَبِيۡ مُلَيۡكَةَ عَنۡ عَائِشَةَ قَالَتۡ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فِيۡ بَيۡتِيۡ وَ فِيۡ يَوۡمِيۡ وَ بَيۡنَ سَحۡرِيۡ وَ نَحۡرِيۡ وَ كَانَتۡ اِحۡدَانَا تُعَوِّذُهٗ بِدُعَاءٍ اِذَا مَرِضَ فَذَهَبۡتُ اُعَوِّذُهٗ فَرَفَعَ رَاۡسَهٗ اِلَى السَّمَآءِ وَ قَالَ فِي الرَّفِيۡقِ الۡاَعۡلٰى فِي الرَّفِيۡقِ الۡاَعۡلٰى وَ مَرَّ عَبۡدُ الرَّحۡمٰنِ بۡنُ اَبِيۡ بَكۡرٍ وَ فِيۡ يَدِهٖ جَرِيۡدَةٌ رَطۡبَةٌ فَنَظَرَ اِلَيۡهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَظَنَنۡتُ اَنَّ لَهٗ بِهَاۤ حَاجَةً فَاَخَذۡتُهَا فَمَضَغۡتُ رَاۡسَهَا وَ نَفَضۡتُهَا فَدَفَعۡتُهَا اِلَيۡهِ فَاسۡتَنَّ بِهَا كَاَحۡسَنِ مَا كَانَ مُسۡتَنًّا ثُمَّ نَاوَلَنِيۡهَا فَسَقَطَتۡ يَدُهٗ اَوۡ سَقَطَتۡ مِنۡ يَدِهٖ فَجَمَعَ اللّٰهُ بَيۡنَ رِيۡقِيۡ وَ رِيۡقِهٖ فِيۡ اٰخِرِ

خولې لعاب د حضورؐ د خولې لعاب (لاړو) سره شامل کړل. خبره داسې وه، چه عبدالرحمٰن (بن ابوبکرؓ) يو شين مسواک په لاس ځمونږ کور ته راغې. حضورؐ هغه طرف ته اوکتل، نو ما اووې، اې عبدالرحمٰن، دا مسواک ماته راکړه، هغه راکړلو، نو ما خپلو غاښونو کښې پوست (نرم) کړ، بيا م رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له ورکړلو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ځما سينې سره ډډه وهلې مسواک اوکړلو.

۵۴۴۵: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ايوب. ابن ابي مليکه. بي بي عائشې نه روايت کوي، د هغې بيان دې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ځما کور کښې ځما د نمبر په ورځ ځما سينې سره ډډه وهلې وفات شولو. ځمونږ دا دستور وو، چه کله به حضورؐ ناروغه شولو، نو مونږ به حضورؐ د پاره دُعا سره شفا طلب کوله، نو ما دا کار شروع کړ. رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم آسمان طرف ته نظر اوچت کړ، او وې فرمائيل في الرفيق الاعلٰي، في الرفيق الاعلٰي، دې کښې عبدالرحمٰن راغې، د هغه لاس کښې شين مسواک وو، حضورؐ هغې مسواک ته، اوکتل، زه پوهه شومه، سمدستي م د هغه نه واخست، او غاښونو سره م پوست (نرم) کړلو. حضورؐ په ښه شان سره مسواک اوکړ، بيائې هغه مسواک ماته راکولو، چه د حضورؐ د لاس نه اوغرځيدلو. د خدائې فضل اوګورئ، چه هغه د حضورؐ په آخري ورځ ځما د

يَوْمٍ مِنَ الدُّنْيَا وَ اَوَّلِ يَوْمٍ مِنَ الْاٰخِرَةِ.

خولے لعاب هم ذ حضورؐ د خولے لعاب سره يو ځائے كړلو.

۴۴۲۶: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ عَائِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ اَقْبَلَ عَلٰى فَرَسٍ مِنْ مَّسْكَنِهٖ بِالسُّنُحِ حَتّٰى نَزَلَ فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ فَلَمْ يُكَلِّمِ النَّاسَ حَتّٰى دَخَلَ عَلٰى عَائِشَةَ فَتَيَمَّمَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُغْشًى بِثَوْبِ حِبَرَةٍ فَكَشَفَ عَنْ وَجْهِهٖ ثُمَّ اَكَبَّ عَلَيْهِ فَقَبَّلَهٗ وَ بَكٰى ثُمَّ قَالَ بِاَبِيْ اَنْتَ وَ اُمِّيْ وَاللّٰهِ لَا يَجْمَعُ اللّٰهُ عَلَيْكَ مَوْتَتَيْنِ اَمَّا الْمَوْتَةُ الَّتِيْ كُتِبَتْ عَلَيْكَ فَقَدْ مُتَّهَا قَالَ الزُّهْرِيُّ وَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ خَرَجَ وَ عُمَرُ يُكَلِّمُ النَّاسَ فَقَالَ اِجْلِسْ يَا عُمَرُ فَاَبٰى عُمَرُ اَنْ يَّجْلِسَ فَاَقْبَلَ النَّاسُ اِلَيْهِ وَ تَرَكُوْا عُمَرَ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍؓ اَمَّا بَعْدُ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يَعْبُدُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ مَاتَ وَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ يَعْبُدُ اللّٰهَ فَاِنَّ اللّٰهَ حَيٌّ لَّا يَمُوْتُ قَالَ اللّٰهُ وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ اِلٰى قَوْلِهِ الشَّاكِرِيْنَ

۴۴۲۶: يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. ابو سلمه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. ذ هغے بيان دے، حضرت ابوبكرؓ (د حضورؐ ذ وفات نه پس) د خپل كور سنح نه مدينے ته راغے، نو مسجد نبوي ته ورغے. بيا خاموشي سره خما كورته راغے. ذ حضور صلي الله عليه وسلم مخ مبارك نه ئے كپره لرے كره نو ورخكته شو، اوښكل ئے كړلو، او وے ژړل بيائے ارشاد اوفرمائيلو، خما مور پلار دے په تاسوؐ قربان وي، بيشكه الله تعالىٰ به تاسو له دوه ځله مرګ نۀ دركوي، يو رحلت مو واقع شولو. زهري وائي، ماته ابو سلمه ذ حضرت عبدالله بن عباسؓ نه دا روايت بيان كړے دے، كوم وخت چه ابوبكرؓ بهر ته راووتلو، نو وے ليدل، چه حضرت عمرؓ جمات كښ دا وائي، (حضور صلي الله عليه وسلم وفات شوے نۀ دے، او نه به هغه وخته پورے وفات شي، څو پورے چه ټول منافقان ختم نۀ كړي). حضرت ابوبكرؓ د هغۀ خاموش كول غوښتل، ورته ئے اووے، كينه خو هغۀ نۀ منله، خلق حضرت ابوبكرؓ ته راجمع شو، نو هغۀ تقرير شروع كۀ، او وے فرمائيل. اے خلقو واورئے، تاسو كښ چه چا ذ محمد صلي الله عليه وسلم عبادت كولو، نو هغه وفات شو، او څوك چه تاسو كښ د الله تعالىٰ عبادت كوي، نو الله تعالىٰ ژوندے دے، فوت كيږي نه، بيا هغۀ دا آيت اولوست: وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا

وَ قَـ وَ اللّـٰه لَكَأَنَّ النَّاسَ لَمْ يَعْلَمُوْ
نَ اللّـٰهَ أَنْزَلَ مِنْهُ الْآيَةَ حَتّٰى تَلَاهَا
بُوْبَكْرٍ فَتَلَقَّاهَا مِنْهُ النَّاسُ كُلُّهُمْ فَمَا
أَسْمَعُ بَشَرًا مِنَ النَّاسِ إِلَّا يَتْلُوْهَا
فَأَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ عُمَرَ
قَالَ وَاللّـٰهِ مَا هُوَ إِلَّا سَمِعْتُ أَبَا بَكْرٍ
تَلَاهَا فَعَقِرْتُ حَتّٰى مَا تُقِلُّنِيْ رِجْلَايَ
وَ حَتّٰى أَهْوَيْتُ إِلَى الْأَرْضِ حِيْنَ
سَمِعْتُهُ تَلَاهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ مَاتَ.

رسُوْلُ الخ: يعني محمد صلي الله عليه وسلم خو يو رسول دے، د هغوئ نه مخكښې هم رسولان تير شوي دي: د ابن عباسٌ بيان دے. كوم وخت چه حضرت ابوبكرٌ دغه آيت تلاوت كړ، نو داسے معلومه شوه لكه چه څوك د دے آيت نه هډو خبر نه وو. بيا چه څوك به ليدے شو، نو دا آيت به ئے لوستلو. زهري وائي، سعيد بن مسيب اووے. حضرت عمرٌ چه دا آيت واوريدلو، نو وے وئيل، دا آيت ما آوريدلے نه دے. دغه وخت زه اويريدلم او پښے م په رپيدو شوے. زه راؤغرځيدم، او معلومه شوه، چه حضورٌ واقعي وفات شولو.

٤٤٧: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مُوْسَى بْنِ أَبِيْ عَائِشَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ قَبَّلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَوْتِهِ.

٤٤٧: عبدالله. يحيي. سفيان. موسي. موسي بن ابي شيبه. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. بي بي عائشےٌ او حضرت ابن عباسٌ نه روايت كوي، چه حضرت ابوبكرٌ د حضورٌ د وفات نه پس حضورٌ ښكل كړلو (بوسه ليا).

٤٤٨: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى وَ زَادَ قَالَتْ عَائِشَةُ لَدَدْنَاهُ فِيْ مَرَضِهِ فَجَعَلَ يُشِيْرُ إِلَيْنَا أَنْ لَا تَلُدُّوْنِيْ فَقُلْنَا كَرَاهِيَةُ الْمَرِيْضِ لِلدَّوَاءِ فَلَمَّا أَفَاقَ قَالَ أَلَمْ أَنْهَاكُمْ أَنْ تَلُدُّوْنِيْ قُلْنَا كَرَاهِيَةُ الْمَرِيْضِ لِلدَّوَاءِ فَقَالَ لَا يَبْقٰى أَحَدٌ فِي الْبَيْتِ إِلَّا لُدَّ وَ أَنَا أَنْظُرُ إِلَّا الْعَبَّاسَ لَمْ يَشْهَدْكُمْ

٤٤٨: علي. يحيي. بي بي عائشےٌ نه روايت كوي، هغے اووے. مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دارو وركول، حضورٌ اشارے سره منع فرمائيله، خو مونږ دا سوچ اوكړ، چه داسے خو هر يو مريض كوي، نو مونږ پرے دوائي اوڅكوله، څه وخت چه حضورٌ ښه شولو، نو وے فرمائيل، ما منع كولئے، او تاسو دارو راكړل، ما اووے، خمونږ دا خيال وو، چه ستاسو منع داسے ده څنګه چه د بيمار منع كول وي، حضورٌ اوفرمائيل، ښه ده، اوس چه كور كښې څومره سړي دي،

رَوَاهُ ابْنُ اَبِي الزِّنَادِ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دَ تهولو خولو كښې دے دوائي واچولے شي، صرف عباسؓ پريږدئے، چه هغه حاضر نه وو. دا حديث عبدالرحمٰن بن ابي الزناد، دَ هشام نه هغهٔ دَ عروه نه، هغهٔ دَ بي بي عائشےؓ نه، هغے دَ حضورؐ نه روايت کړے دے.

۴۴۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا اَزْهَرُ اَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ اِبْرٰهِيمَ عَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ ذُكِرَ عِنْدَ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْصٰى اِلٰى عَلِيٍّ فَقَالَتْ مَنْ قَالَهُ لَقَدْ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اِنِّي لَمُسْنِدَتُهُ اِلٰى صَدْرِيْ فَدَعَا بِالطَّسْتِ فَانْخَنَثَ فَمَاتَ فَمَا شَعَرْتُ فَكَيْفَ اَوْصٰى اِلٰى عَلِيٍّ.

۴۴۹: عبداللّٰه بن محمد. ازهر. ابن عون. ابراهيم نخعي. حضرت اسود بن يزيد نه روايت كوي، دَ بي بي عائشےؓ مخكښې چا دا خبره اوكړله، چه حضورؐ حضرت عليؓ ځان نه پس جانشين او وصي جوړ كړے وو، هغے اوفرمائيل دا څوك وائي، زهٔ خو خپله موجود ومه. حضورؐ ځما په سينه ډډه وهلے وه حضورؐ خولے كنګالولو دَ پاره لوښے طلب كړلو. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم وفات شولو، او ماته معلومه نهٔ شوه، چه عليؓ ئے كله وصي او جانشين جوړ كړے دے.

ف: وصي: چاته چه وصيت شوے وي. دَ چا په بابت چه وصيت كړے شوے وي. په وصيت عمل كونكے. نيابت كونكے.

۴۵۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ عَنْ طَلْحَةَ قَالَ سَاَلْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِيْ اَوْفٰىؓ اَوْصَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا فَقُلْتُ كَيْفَ كُتِبَ عَلَى النَّاسِ الْوَصِيَّةُ اَوْ اُمِرُوْا بِهَا قَالَ اَوْصٰى بِكِتَابِ اللّٰهِ.

۴۵۰: ابو نعيم. مالک بن مغول. طلحه نه روايت كوي، ما دَ عبداللّٰه بن اوفٰي نه تپوس اوكهٔ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چاته وصيت كړے دے، نو هغهٔ جواب كښې اووے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چاته هيڅ وصيت نهٔ دے كړے. ما اووے، بيا خلقوله ځنګه وصيت كول پكار دي. وے فرمائيل، ځهٔ چه قرآن كښې ليكلے دي، دَ هغے مطابق عمل كول ضروري دي.

ف: دَ قرآن حكم هر چا دَ پاره كافي دے، خواه څوک وصيت اوكړي يا اونهٔ كړي.

۴۵۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ قَالَ مَا تَرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

۴۵۱: قتيبه. ابو الاحوص. ابو اسحٰق. عمرو بن حارثؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دينار پريښودل نهٔ درهم (يعني نهٔ سرهٔ زر،

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيْنَارًا وَّلَا دِرْهَمًا وَلَا عَبْدًا وَلَا اَمَةً اِلَّا بَغْلَتَهُ الْبَيْضَآءَ الَّتِيْ كَانَ يَرْكَبُهَا وَ سِلَاحَهُ وَ اَرْضًا جَعَلَهَا لِابْنِ السَّبِيْلِ صَدَقَةً.

نه سپين زر)،نه غلام نه وينزه. صرف يوه قچره ترے پاتے شوے وه، چه په هغے به ئے سورلي كوله، او څه لږه شان زمكه، چه حضورؐ خپل ژوند كښ د مسافرو د ضرورياتو د پاره وقف كړے وه.

۴۵۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ لَمَّا ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ يَتَغَشَّاهُ فَقَالَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ وَاكَرْبَ اَبَاهُ فَقَالَ لَهَا لَيْسَ عَلٰى اَبِيْكِ كَرْبٌ بَعْدَ الْيَوْمِ فَلَمَّا مَاتَ قَالَتْ يَا اَبَتَاهُ اَجَابَ رَبًّا دَعَاهُ يَا اَبَتَاهُ مَنْ جَنَّةُ الْفِرْدَوْسِ مَأْوَاهُ يَا اَبَتَاهُ اِلٰى جِبْرَئِيْلَ نَنْعَاهُ فَلَمَّا دُفِنَ قَالَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ يَا اَنَسُؓ اَطَابَتْ اَنْفُسُكُمْ اَنْ تَحْثُوْا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التُّرَابَ.

۴۵۲: سليمان بن حرب. ثابت. حضرت انسؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د مرض د زياتوالي په وجه بيهوشه شولو. نو بي بي فاطمےؓ ژړا كښ اووے، افسوس څما بابا جان ته ډير تكليف دے، حضورؐ ورته اوفرمائيل، د نن نه پس به بيا نهٔ وي. بيا چه حضورؐ وفات شولو، نو بي بي فاطمےؓ ژړا كښ اووے، اے څما بابا جانه، اللّٰه تاسو قبول كړلے، اے بابا جانه، ستاسو مقام جنت فردوس دے، هائے څما بابا جانه، زهٔ ستاسو د وفات خبر جبرائيلؑ ته آوروم. كوم وخت چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دفن كړے شو، نو بي بي فاطمےؓ انسؓ ته اوفرمائيل، تاسو خلقو دا څنګه برداشت كړے شوه، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مو په خاورو كښ پټ كړلو. (انا للّٰه و انا اليه راجعون).

**ف**: قدرتي خبره ده، چه دے حديث مبارك لوستو سره د سړي د سترګو نه بے اختياره اوښكے روانے شي. اللّٰه پاك دے څمونږ د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مكمله پيروي نصيب كړي. اللّٰهم آمين.

## بَاب ۸۴: اٰخِرُ مَا تَكَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۸۴: د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د وفات نه مخكښ آخري كلام.

۴۵۳: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ يُوْنُسُ قَالَ الزُّهْرِيُّ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ فِيْ رِجَالٍ مِنْ اَهْلِ الْعِلْمِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ

۴۵۳: بشر بن محمد. عبداللّٰه. يونس. زهري. سعيد. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، هغے د څو معززو حضراتو په موجودګي كښ اووے. حضورؐ به د صحت حالت كښ فرمائيل، هر نبي ته جنت كښ د هغه ټيكاؤنړه او مقام ښودلے شي. او بيا هغهٔ ته دا اختيار

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ وَهُوَ صَحِيْحٌ اَنَّهُ لَمْ يُقْبَضْ نَبِيٌّ حَتّٰى يُرٰى مَقْعَدُهٗ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُخَيَّرُ فَلَمَّا نَزَلَ بِهٖ وَ رَأْسُهٗ عَلٰى فَخِذِيْ غُشِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ اَفَاقَ فَاَشْخَصَ بَصَرَهٗ اِلَى سَقْفِ الْبَيْتِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ الرَّفِيْقَ الْاَعْلٰى فَقُلْتُ اِذًا لَا يَخْتَارُنَا وَ عَرَفْتُ اَنَّهُ الْحَدِيْثُ الَّذِيْ كَانَ يُحَدِّثُنَا وَهُوَ صَحِيْحٌ قَالَتْ فَكَانَتْ اٰخِرُ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا اَللّٰهُمَّ الرَّفِيْقَ الْاَعْلٰى.

ور كولے شي' كه هغه غواړي' نو دُنيا كښې دے اوسيدل خوښ كړي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه ناروغه شو' نو د حضورؐ سر مبارک څما (عائشےؓ) په زنګون پروت وو. حضورؐ ستر كے اوغړولے. آسمان طرف ته ئے اوكتل وے فرمائيل: اللّٰهم الرفيق الاعلى. زۀ پوه شومه' حضور صلي الله عليه وسلّم ته اختيار ور كړے شو. حضورؐ مونږ خلقو كښې اوسيدل نۀ خوښوي. او زۀ په دے هم پوه شومه' چه دا هغه خبره ده' چه حضورؐ به د تندرستئ په زمانه كښې كوله' او دَ حضور صلي الله عليه وسلّم آخري كلام هم دا وو: اللّٰهم الرفيق الاعلى: (يا الله بلند مرتبه ملګرو سره مِ يوځائے كړے).

## باب ۸۵: وَفَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۸۵: دَ حضور صلي الله عليه وسلّم دَ عمر شريف او وفات بيان.

۴۵۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَبِثَ بِمَكَّةَ عَشْرَ سِنِيْنَ يَنْزِلُ عَلَيْهِ الْقُرْاٰنُ وَ بِالْمَدِيْنَةِ عَشْرًا.

۴۵۴: ابو نعيم. شيبان. يحيٰي. ابي سلمه. بي بي عائشهؓ او حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' او حضور صلي الله عليه وسلّم دَ نبوّت نه پس لس كاله مكه معظمه كښې مقيم وو. دے دوران كښې قرآن كريم برابر په حضور صلي الله عليه وسلّم نازليدلو' بيا په هجرت ئے مدينے ته تشريف راوړلو' او لس كاله ئے قيام اوكړلو.

۴۵۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَّ سِتِّيْنَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ

۴۵۵: عبداللّٰه بن يوسف. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي' دَ هغے بيان دے' حضورؐ دَ درے شپيتو كالو په عمر كښې وفات شولو' دَ ابن شهاب بيان دے' حضرت سعيد بن مسيب هم دغه شان روايت ماته بيان

بْنُ الْمُسَيَّبِ مِثْلَهُ.

کړے دے.

**باب ۸۶:**

**باب ۸۶:** (د دے باب عنوان نشته).

**۴۵۶:** حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ دِرْعُهُ مَرْهُوْنَةٌ عِنْدَ يَهُوْدِيٍّ بِثَلٰثِيْنَ.

**۴۵۶:** قبيصه. سفيان. اعمش. ابراهيم. اسود بن يزيد. بي بي عائشےؓ نه روايت دے، ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم څادر يو يهودي (ابو الشحم) سره ذ ديرش صاع غلے په عوض كښ ګانړه ايښودے شوے وو، (څو حضورؐ هغه خلاص نۀ كړے شو، او وفات شولو).

**باب ۸۷:** بَعْثُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ.

**باب ۸۷:** ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مرض الموت كښ ذ اسامه بن زيدؓ ذ امير لښكر جوړولو بيان.

**۴۵۷:** حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مُخَلَّدٍ عَنِ الْفُضَيْلِ بْنِ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ اسْتَعْمَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُسَامَةَ فَقَالُوْا فِيْهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ بَلَغَنِيْ اَنَّكُمْ قُلْتُمْ فِيْ اُسَامَةَ وَ اِنَّهُ اَحَبُّ النَّاسِ اِلَيَّ.

**۴۵۷:** ابو عاصم. ضحاک بن مخلد. فضيل بن سليمان. موسيٰ بن عقبه. سالم. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم، اسامه بن زيد ذ لښكر سردار جوړ كړلو، او ملک شام طرف ته ئے اوليږلو، خلقو كښ څۀ چرچه شروع شوه، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زۀ پوهيږم څۀ چه تاسو وائے، حالانكه اسامه څما تاسو كښ ذ ټولونه زيات خوښ دے.

**۴۵۸:** حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بَعْثًا وَّ اَمَّرَ عَلَيْهِمْ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فَطَعَنَ النَّاسُ فِيْ اِمَارَتِهِ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنْ تَطْعَنُوْا فِيْ اِمَارَتِهِ فَقَدْ كُنْتُمْ

**۴۵۸:** اسمٰعيل. مالک. عبداللّٰه بن دينار. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، ذ هغۀ بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ اُسامه په سرداري كښ روم طرف ته يو لښكر اوليږلو. او دے لښكر كښ ذ حضرت ابوبكرؓ او عمرؓ په شان حضرات هم شامل وو، ذ اسامه په سردارئ بعضے خلقو خبرے شروع كړے، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خطبه ارشاد اوفرمائيله، چه ستاسو دا روش يعني اسامه بن زيد باندے اعتراض

تَطْعَنُوْنَ فِي اِمَارَةِ اَبِيْهِ مِنْ قَبْلُ وَ اَيْمُ اللّٰهِ اِنْ كَانَ لَخَلِيْقًا لِّلْاِمَارَةِ وَ اِنْ كَانَ لَمِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ وَ اِنَّ هٰذَا لَمِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ بَعْدَهٗ.

څۀ دَ تعجب قابل نۀ دے' تاسو دَ دۀ نه مخکښې دَ دۀ په پلار هم اعتراض کولو' په خدائے م دے قسم وي هغه دَ سرداري لائق وو' او څما دَ ټولونه زيات خوښ وو. دغه شان اسامه هم څما خوښ دے.

باب ۸۸:

باب ۸۸: (دا باب بے سرخئ دے).

۴۵۹: حَدَّثَنَا اَصْبَغُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو عَنِ ابْنِ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنِ الصُّنَابِحِيِّ اَنَّهٗ قَالَ لَهٗ مَتٰى هَاجَرْتَ قَالَ خَرَجْنَا مِنَ الْيَمَنِ مُهَاجِرِيْنَ فَقَدِمْنَا الْجُحْفَةَ فَاَقْبَلَ رَاكِبٌ فَقُلْتُ لَهٗ مَا الْخَبَرُ فَقَالَ دَفَنَّا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْذُ خَمْسٍ قُلْتُ هَلْ سَمِعْتَ فِيْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ شَيْئًا قَالَ نَعَمْ اَخْبَرَنِيْ بِلَالٌ مُؤَذِّنُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ فِي السَّبْعِ فِي الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ.

۴۵۹: اصبغ. ابن وهب. عمرو. ابن ابي حبيب. ابي الخير نه روايت کوي هغۀ اووے' ما دَ صنابحي نه تپوس اوکۀ' تۀ دَ کور نه په هجرت کله مدينے ته راغلے ئے' هغۀ جواب ورکۀ' مونږ دَ يمن نه دَ هجرت په نيت روان شو' او کوم وخت چه جُحفه ته اورسيدو' نو مونږ ته دَ مدينے منورے نه يو سور (سوار) راغے. مونږ چه دَ هغۀ نه حالات اُوپښتل' هغۀ اووے' زۀ دَ مدينے نه راغلے يم' او نن دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم پنځه ورځے شوے دي' چه حضورؐ وفات شوے دے. ابوالخير وائي' ما دَ صنابحي نه دا تپوس هم اوکۀ' تاته دَ شب قدر متعلق څۀ معلومات شته' هغۀ اووے' ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ مؤذن بلالؓ نه آوريدلے دي' شب قدر دَ رمضان دَ آخري عشرے په اوويشتمه شپه وي.

باب ۸۹: كَمْ غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۸۹: دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ غزاګانو او دَ هغے دَ تعداد بيان.

۴۶۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا اِسْرَائِيْلُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَاَلْتُ زَيْدَ بْنَ اَرْقَمَ كَمْ غَزَوْتَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَبْعَ عَشْرَةَ قُلْتُ كَمْ غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۴۶۰: عبداللّٰه بن رجاء. اسرائيل. ابو اسحاق نه روايت کوي' ما دَ حضرت زيد بن ارقم نه تپوس اوکۀ' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم څومره غزاګانے کړے دي' او تاته هغوي سره څومره جهادونو کښې دَ شريکيدو موقع حاصله شوے ده' هغۀ اووے' حضورؐ ټول نورلس جهادونه اوکړل' او زۀ ورسره اوولس

وَسَلَّمَ قَالَ تِسْعَ عَشْرَةَ.

جهادونو کښې شريک ووم.

۴۲۶۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحٰقَ حَدَّثَنَا الْبَرَاءُ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسَ عَشْرَةَ.

۴۲۶۱: عبدالله بن رجاء. اسرائيل. ابو اسحاق. حضرت بن عازب نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے، ما حضور صلي الله عليه وسلم سره پنځلس جهادونو کښې شرکت کړے دے.

۴۲۶۲: حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ الْحَسَنِ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلِ بْنِ هِلَالٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ كَهْمَسٍ عَنِ ابْنِ أَبِي بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ غَزَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّ عَشْرَةَ غَزْوَةً.

۴۲۶۲: احمد بن حسن. احمد بن محمد بن حنبل بن هلال. معتمر بن سليمان. کهمس. حضرت ابن بريده نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، خما پلار کهمس. حضرت ابن بريده نه رايت کوي ذ هغهٔ بيان دے، خما پلار بريده بن حصيب وئيلے، چه ما حضور صلي الله عليه وسلم سره شپاړس جهادونو کښې ذ شرکت سعادت حاصل کړے دے.

# كِتَابُ التَّفْسِيرِ

# كتاب التفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ إِسْمَانِ مِنَ الرَّحْمَةِ الرَّحِيْمُ وَالرَّاحِمُ بِمَعْنًى وَاحِدٍ كَالْعَلِيْمِ وَالْعَالِمِ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

رحمٰن او رحيم دواړه لفظونه ذ لفظ رحمت نه جوړ شوے دي، او ذ دوړه يو معني دي يعني مهربان، څنګه چه ذ عليم او عالم يو معني دي، يعني پوهيدونکے.

باب ۹۰: مَا جَاءَ فِيْ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَ سُمِّيَتْ أُمَّ الْكِتَابِ أَنَّهُ يُبْدَأُ بِكِتَابَتِهَا فِي الْمَصَاحِفِ وَ يُبْدَأُ بِقِرَآئَتِهَا فِي الصَّلٰوةِ وَالدِّيْنُ الْجَزَآءُ فِي الْخَيْرِ وَ الشَّرِّ كَمَا تَدِيْنُ تُدَانُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ بِالدِّيْنِ بِالْحِسَابِ مَدِيْنِيْنَ مُحَاسَبِيْنَ.

باب ۹۰: ذ سورهٔ فاتحه تفسير او فضيلت. دے ته أم الکتاب هم وئيلے شي، ځکه چه دا ذ ټولو سورتونو نه مخکښې ليکلے شي، او مانځه کښې هم ذ ټولو نه مخکښې دا لولي. او ذ دين معني دي جزا (ښهٔ يا بده) لکه چه وائي، چه څهٔ کړي، هغه به ريبي، مجاهد اووے، ذ "بالدين" معني دي "حساب" دغه شان ذ مدينين معني دي "حساب کړے شو".

۴۶۳: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُعَلّٰى قَالَ كُنْتُ اُصَلِّيْ فِي الْمَسْجِدِ فَدَعَانِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ اُجِبْهُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ كُنْتُ اُصَلِّيْ فَقَالَ اَلَمْ يَقُلِ اللّٰهُ اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَ لِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ ثُمَّ قَالَ لِيْ لَاُعَلِّمَنَّكَ سُوْرَةً هِيَ اَعْظَمُ السُّوَرِ فِي الْقُرْاٰنِ قَبْلَ اَنْ تَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ ثُمَّ اَخَذَ بِيَدِيْ فَلَمَّا اَرَادَ اَنْ يَّخْرُجَ قُلْتُ لَهٗ اَلَمْ تَقُلْ لَاُعَلِّمَنَّكَ سُوْرَةً هِيَ اَعْظَمُ سُوْرَةٍ فِي الْقُرْاٰنِ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْاٰنُ الْعَظِيْمُ الَّذِيْ اُوْتِيْتُهٗ.

۴۶۳: مسدد. يحيي. شعبه. خبيب بن عبدالرحمن. حفص بن عاصم. ابي سعيد بن معلي نه روايت كوي، د هغه بيان دے، ما مسجد ښې كښې يوه ورځ مونځ كولو، رسول الله صلي الله عليه وسلم زه اوغوښتلم، د مانځه نه چه فارغ شوم، زه حاضر شوم، او عرض م اوكړه، يا رسول الله ما مونځ كولو، خكه حاضريدو كښې رانه تاخير اوشولو. حضورً اوفرمائيل، آيا الله تعالي دا حكم نه دے كړے، چه كله تاسو د الله رسول اوبلي، نو سمدستي د هغه خدمت كښې حاضريږئے. بيا حضورً ارشاد اوفرمائيلو، قبل د دے نه چه زه د جُمات نه لاړ شم، تاته به د قرآن شريف يو داسے سورة اوښائم، چه د ثواب د لحاظ نه د ټولو نه لوئے دے. بيا حضورً خما لاس اونيولو او بهرته وتلو، ما ورته ياد كړلو، نو ارشاد ئے اوفرمائيلو، هغه د الحمد سورة دے. او دے كښې اوه آيتونه دي. دا هر ركعت كښې لوستے شي. دے آيتونو ته سبع مثاني وائي، او دا هغه قرآن عظيم دے، چه ماته عطا كړے شوے دے.

## بَاب ۱۹۱: غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ.

## باب ۱۹۱: د غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ تفسير.

۴۶۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قَالَ الْاِمَامُ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ فَقُوْلُوْا اٰمِيْنَ فَمَنْ وَافَقَ قَوْلُهٗ قَوْلَ الْمَلٰٓئِكَةِ غُفِرَلَهٗ مَا تَقَدَّمَ

۴۶۴: عبدالله بن يوسف. امام مالك. سمي. ابو صالح. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، كوم وخت چه امام "غير المغضوب عليهم ولا الضالين" او وائي، نو تاسوله آمين وئيل پكار دي، د چا آمين چه د ملائكو سره يوځائے شي، نو د هغه ورمبئ ګناه

مِنْ ذَنْبِهٖ.

## بَابٌ ۹۲: سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ.

## بَابٌ ۹۳: قَوْلُهٗ وَ عَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا.

۴۲۶۵: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَجْتَمِعُ الْمُؤْمِنُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَيَقُوْلُوْنَ لَوِ اسْتَشْفَعْنَا اِلٰى رَبِّنَا فَيَأْتُوْنَ اٰدَمَ فَيَقُوْلُوْنَ اَنْتَ اَبُو النَّاسِ خَلَقَكَ اللّٰهُ بِيَدِهٖ وَ اَسْجَدَ لَكَ مَلٰٓئِكَتَهٗ وَ عَلَّمَكَ اَسْمَآءَ كُلِّ شَيْءٍ فَاشْفَعْ لَنَا عِنْدَ رَبِّكَ حَتّٰى يُرِيْحَنَا مِنْ مَّكَانِنَا هٰذَا فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ ذَنْبَهٗ فَيَسْتَحْيِىْ فَيَقُوْلُ ائْتُوْا نُوْحًا فَاِنَّهٗ اَوَّلُ رَسُوْلٍ بَعَثَهُ اللّٰهُ اِلٰى اَهْلِ الْاَرْضِ فَيَأْتُوْنَهٗ فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ سُؤَالَهٗ رَبَّهٗ مَا لَيْسَ لَهٗ بِهٖ عِلْمٌ فَيَسْتَحْيِىْ فَيَقُوْلُ ائْتُوْا خَلِيْلَ الرَّحْمٰنِ فَيَأْتُوْنَهٗ فَيَقُوْلُ لَسْتُ

معاف شي.

## باب ۹۲: دَ سورهٔ بقره تفسير.

## بـاب ۹۳: وَ عَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا تفسير.

۴۲۶۵: مسلم بن ابراهيم. هشام. قتاده. حضرت انسؓ (دوئم سند) خليفه. يزيد بن زريع. سعيد. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دَ قيامت په ورځ به مسلمانان خپلو کښ وائي، چه دَ الله تعالي په بارګاه کښ دَ چا سفارش راوستل پکار دي، نو ټول به آدم عليه السلام له ورشي، او هغهٔ ته به وائي، تاسو دَ ټولو انسانانو پلار، ئې الله خپل لاس سره جوړ کړے ئې، په ملائکو ئې درته سجده اوکړله، او بيا دَ ټولو څيزونو نومونه ئې درته اوښودل نو تاسو دَ الله په بارګاه کښ څمونږ ټولو سفارش اوکړے، چه دا مصيبت ختم شي، او مونږ په آرام شو، حضرت آدمؑ به ورته فرمائي نن ماته خپله ګناه رايادېږي، ماته دَ پروردګار بارګاه ته تلو کښ حجاب معلومېږي، تاسو ټول نوح عليه السلام له ورشئ، هغه دَ الله دَ طرف نه په زمکه کښ وړمبے نبي جوړ کړے شوے دے نو ټول به دَ هغهٔ خدمت کښ حاضر شي، او خپل درخواست به پيش کړي، هغه به ورته وائي، نن ما کښ دا همت نشته، ماته خپله دَ هغهٔ بارګاه کښ شرم راځي، نو تاسو ټول دَ حضرت ابراهيم عليه السلام خدمت کښ حاضر شئ، نو ټول به خليل الله ته ورشي، او هغه ته به خپل حاجت بيان کړي، هغه به ورته فرمائي زهٔ دَ دے قابل چرته يم، تاسو ټول موسٰي عليه السلام له

مِنْكُمْ ائْتُوا مُوسٰى عَبْدًا كَلَّمَهُ
اللّٰهُ وَ اَعْطَاهُ التَّوْرٰةَ فَيَاْتُوْنَهُ فَيَقُوْلُ
لَسْتُ هُنَاكُمْ وَ يَذْكُرُ قَتْلَ نَفْسٍ
بِغَيْرِ نَفْسٍ فَيَسْتَحْيِيْ
مِنْ رَبِّهِ فَيَقُوْلُ ائْتُوْا
عِيْسٰى عَبْدَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلَهُ
وَ كَلِمَةَ اللّٰهِ وَ رُوْحَهُ
فَيَقُوْلُ لَسْتُ هُنَاكُمْ
ائْتُوْا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ عَبْدًا غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ مَا
تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَاَخَّرَ
فَيَاْتُوْنِيْ فَاَنْطَلِقُ حَتّٰى
اَسْتَاْذِنَ عَلٰى رَبِّيْ فَيُؤْذَنُ
فَاِذَا رَاَيْتُ رَبِّيْ وَقَعْتُ سَاجِدًا
فَيَدَعُنِيْ مَا شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ
يُقَالُ ارْفَعْ رَاْسَكَ وَ سَلْ
تُعْطَهْ وَ قُلْ يُسْمَعْ وَاشْفَعْ
تُشَفَّعْ فَاَرْفَعُ رَاْسِيْ فَاَحْمَدُهُ
بِتَحْمِيْدٍ يُعَلِّمُنِيْهِ ثُمَّ اَشْفَعُ
فَيَحُدُّ لِيْ حَدًّا فَاُدْخِلُهُمُ
الْجَنَّةَ ثُمَّ اَعُوْدُ اِلَيْهِ الثَّالِثَةَ
ثُمَّ اَعُوْدُ الرَّابِعَةَ فَاَقُوْلُ مَا
بَقِيَ فِي النَّارِ اِلَّا مَنْ حَبَسَهُ
الْقُرْاٰنُ وَ وَجَبَ عَلَيْهِ
الْخُلُوْدُ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ
اِلَّا مَنْ حَبَسَهُ الْقُرْاٰنُ يَعْنِيْ

ورشئ، هغه کلیم الله دے، او خدائے تعالٰي هغه ته تورات
ورکړے دے، ټول خلق چه حاضر خدمت شي، نو هغه به
ورته وائي، ما کښې دا همت نشته، ملته دَ یو سړي
د ناحق خون خیال بارګاه الهي ته دَ تلو نه مانع دے، نو
تاسو ټول عیسٰي علیه السلام له ورشئ، هغه روح الله، دَ
الله بنده او کلمة الله دے، ټول به هغۀ له ورشي، هغه به
ورته وائي، زۀ دَ دے لائق نۀ یم، تاسو ټول محمّد رسول
الله صلي الله علیه وسلّم له ورشئ، چه الله دَ هغوي
مخکښي او ورستني ټول ګناهونه معاف کړے دي، نو زه
به دَ الله په بارګاه کښې به دَ حاضریدو اجازت اوغواړم،
په اجازت موندو به زه په سجده پریوځم، او څو پورے
چه الله ته منظوره وي، زۀ به سجده کښې یم. بیا به حکم
الهي اوشي اے محمده، سر دَ سجدے نه اوچت کړه،
غواړه څۀ غواړے، مونږ به آورو، او ستا سفارش به قبلوو،
نو زۀ به سر اُوچت کړم، او دَ الله هغه تعریف به او کړم،
چه ماته به دَ هغۀ دَ طرف نه اوښودلے شي. هغے نه پس به
سفارش کوم، چه دَ هغے حد به مقرر کړے شي زۀ به یوه
ډله جنت کښې داخله کړم، بیا به راشم، په سجده به
پریوځم، او هغه کیفیت به شي، کوم چه مخکښې شوے
وو. بیا به یوه ډله جنت کښې داخله کړم، رابه شم. بیا په
دریم ځل به ئے هم داخل کړم. بیا په څلورم ځل به
هم سفارش اوکړم. بیا به خپل رب ته عرض
اوکړم، اوس هغه باقي پاتے شوے دي، چه هغه
قرآن منع کړے دي او هغوي همیشه دَ پاره دوزخ
کښې پاتے کیدونکي دي. امام بخاريؒ فرمائي،
دوزخ کښې به هغه خلق همیشه وي، چه هغوي

قَوْلَ اللّٰهِ تَعَالٰى خَالِدِيْنَ فِيْهَا.

دَ پاره قرآن کښې: خَالِدِيْنَ فِيْهَا. وارد شوے دي.

بَابُ ٩٤: قَالَ مُجَاهِدٌ اِلٰى شَيَاطِيْنِهِمْ اَصْحَابِهِمْ مِنَ الْمُنَافِقِيْنَ وَالْمُشْرِكِيْنَ مُحِيْطٌ بِالْكٰفِرِيْنَ اللّٰهُ جَامِعُهُمْ عَلَى الْخٰشِعِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ حَقًّا قَالَ مُجَاهِدٌ بِقُوَّةٍ يَّعْمَلُ بِمَا فِيْهِ وَ قَالَ اَبُو الْعَالِيَةِ مَرَضٌ شَكٌّ صِبْغَةٌ دِيْنٌ وَمَا خَلْفَهَا عِبْرَةٌ لِّمَنْ بَقِيَ لَاشِيَةَ فِيْهَا لَا بَيَاضَ وَ قَالَ غَيْرُهُ يَسُوْمُوْنَكُمْ يُوَلُّوْنَكُمْ الْوِلَايَةَ مَفْتُوْحَةٌ مَصْدَرُ الْوَلَاءِ وَ هِيَ الرَّبُوْبِيَّةُ وَ اِذَا كُسِرَتِ الْوَاوُ فَهِيَ الْاِمَارَةُ وَ قَالَ بَعْضُهُمُ الْحُبُوْبُ الَّتِيْ تُؤْكَلُ كُلُّهَا فُوْمٌ فَادَّارَأْتُمْ اخْتَلَفْتُمْ وَ قَالَ قَتَادَةُ فَبَاءُوْا فَانْقَلَبُوْا وَ قَالَ غَيْرُهُ يَسْتَفْتِحُوْنَ يَسْتَنْصِرُوْنَ شَرَوْا بَاعُوْا رَاعِنَا مِنَ الرَّعُوْنَةِ اِذَا اَرَادُوْا اَنْ يُّحَمِّقُوْا اِنْسَانًا قَالُوْا رَاعِنَا لَا تَجْزِيْ لَا تُغْنِيْ اِبْتَلٰى اِخْتَبَرَ خُطُوَاتِ مِنَ الْخَطْوِ وَالْمَعْنٰى اٰثَارُهٗ.

باب ٩٤: دَ مجاهد بيان دے' چه شياطين نه منافق او مشرک مراد دي' او د: محيط بالكافرين. مطلب دادے چه الله تعالٰي به کافر راجمع کړي. او: علي الخاشعين: نه ايمان واله مراد دي' او مجاهد وائي' بقوة: نه عمل مراد دے. او دَ ابو العاليه بيان دے' د: مرض: معني دَ شک دي' او د: صبغة: معني د دين دي' او: وَمَا خَلْفَهَا: نه مراد دا دے' چه دَ ورستو خلقو دَ پاره عبرت دے' چه قائم وي. او: لاشية فيها: مطلب دادے' دے کښې سفيدي نشته. ابو العاليه اووے' دَ: يسومونكم: معني دي چه تاسو ته ئے هميشه تکليف رسولو. او: ولاية: که دَ واو' زير سره اولوستے شي' نو معني دي اميري' او که زبر سره اولوستے شي' نو دَ: ربوبيت: معني دي' او دَ بعضو خيال دے' چه کومه غله خوړلے شي' هغے ته: فوم: وائي' او: فادارا تم: يعني تاسو اختلاف اوکړه. قتاده اووے: فَبَاءُوْا: معني دي واپس شو' يستفتحون: معني دي' مدد' ئے غوښتلو. او دَ: شَرَوْا: معني بَاعُوْا: دي. راعنا: دَ رعونت نه جوړ شوے دے به معني دَ بيوقوف' ځکه عرب احمق ته: راعن: وائي. لا تجزي: معني په هيڅ کار نهٔ راځي. ابتلا معني آزمائش. خطوات دَ: خطوه: جمع ده' معني دي' آثار' يعني دَ قدمونو نښے.

بَابُ ٩٥: قَوْلِهٖ تَعَالٰى فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا وَّ اَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ.

باب ٩٥: آيت: فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا وَّ اَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (دَ الله تعالٰي فرمان' چه الله سره څوک شريک مهٔ جوړوئے' حالانکه تاسو پوهيږئے).

۴۲۶۶: حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ اَبِي شَيْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِي وَائِلٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُرَحْبِيْلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الذَّنْبِ اَعْظَمُ عِنْدَ اللّٰهِ قَالَ اَنْ تَجْعَلَ لِلّٰهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ قُلْتُ اِنَّ ذٰلِكَ لَعَظِيْمٌ قُلْتُ ثُمَّ اَيُّ قَالَ وَ اَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ تَخَافُ اَنْ يَّطْعَمَ مَعَكَ قُلْتُ ثُمَّ اَيُّ قَالَ اَنْ تُزَانِيَ حَلِيْلَةَ جَارِكَ.

۴۲۶۶: عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. ابو وائل. عمرو بن شرحبيل. حضرت عبدالله بن مسعود نه روايت كوي، ما دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوكۀ، دَ خدائے په نزد دَ ټولونه لويه ګناه كومه ده؟ حضورٌ جواب راكړلو، دا چه ته الله سره څوک برابر كړے، حالانكه هغۀ ته پيدا كړے ئې. ما عرض اوكۀ، صحيح ده، او دے نه پس بله لويه ګناه كومه ده. حضورٌ اوفرمائيل، خپل آولاد دَ دے اندېښنے نه وژل، چه دَ هغوي خوراک او پرورش به ئې كول وي. ما اووے، صحيح ده. دے نه پس بيا كومه ګناه ده، حضورٌ اوفرمائيل، دَ خپل همسايه ښځے سره زنا كول.

باب ۹۶: قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ ظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ الْمَنُّ صَمْغَةٌ وَالسَّلْوٰى طَيْرٌ.

باب ۹۶: آيت: وَ ظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَ اَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى كُلُوْا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَمَا ظَلَمُوْنَ وَلٰكِنْ كَانُوْا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ دَ دے آيت په تفسير كښ دَ مجاهد بيان دے، چه: منّ: دَ يوے اُونے ګوند (چيز) دے (چه هغے ته ترنجبين وائي) او: سلوٰي: دَ يوے مرغئے نوم دے (چه هغے ته بټير يا مرز وائي).

۴۲۶۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ وَمَآءُ هَا شِفَآءٌ لِلْعَيْنِ.

۴۲۶۷: ابو نعيم. سفيان. عبدالملک. عمرو بن حريث. سعيد بن زيد نه روايت دے، دَ هغۀ بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، چه خرېړے هم د مَنْ نه دے، او دَ دے اُوبه دَ سترګو دَ بيمارو دَ پاره مفيد وي.

ف: معلومه شوه، چه دَ خرېړي اُوبه دَ سترګو دَ بيمارو دَ پاره مفيد وي، ډاكټرانو او حكيمانو له دا نوټ كول پكار دي.

باب ۹۷: قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ اِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوْا مِنْهَا

بـاب ۹۷: آيـت: وَ اِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا

حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَ قُولُوا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ وَ سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ رَغَدًا وَاسِعٌ كَثِيرٌ.

وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَ قُولُوا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ وَ سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ: د تفسير بيان: رَغَدًا: معنى دي فراغت، وسعت، او د ښه شان.

۴۲۶۸: حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ مَهْدِيٍّ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قِيْلَ لِبَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَ قُولُوا حِطَّةٌ فَدَخَلُوْا يَزْحَفُوْنَ عَلٰى اَسْتَاهِهِمْ فَبَدَّلُوْا فَقَالُوْا حِطَّةٌ حَبَّةٌ فِيْ شَعْرَةٍ.

۴۲۶۸: محمد. عبدالرحمٰن بن مهدي. ابن المبارک. معمر. همام بن منبه. حضرت ابو هريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، بني اسرائيلو ته حکم ورکړے شوے وو، چه د ښار په دروازه ډيرے عاجزي سره داخليږئ، او خپلے ژبے سره حطة حطة وائے، يعني ښښنه غواړئ، خو هغوي داسے اوکړل، چه په زمکه په راښکلو (ګِسي) داخل شو. او: حطة: ئے پريښودلو: حبة في شعرة: يعني (غنم وربشو کښ) وئيل ئے شروع کړل.

**ف**: الله تعالي بني اسرائيلو ته حکم کړے وو، چه حِطَّةٌ وئيلو سره ځے، يعني ځمونږ ګناه لرے کړے، معاف کړے، خو هغوي ترے ټوقه جوړه کړه، هغه دا چه وئيلے ئے، حِنْطَةٌ فِيْ شَعِيْرَةٍ (يعني غنم وربشو کښ) يا دانه وړي کښ. مطلب دا چه: حَبَّةٌ فِيْ شَعْرَةٍ: يو مهمل کلام دے، چه بني اسرائيلو وئيلو.

## بَابٌ ۹۸: قَوْلُهُ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ وَ قَالَ عِكْرِمَةُ جِبْرَ وَمِيْكَ وَ سَرَافُ عَبْدُ اِيْلُ اللّٰهُ.

باب ۹۸: آيت: مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ: تفسير عکرمه اووے، د "جبر" "ومِيک" او "سراف" معني ده بنده، او "ايل" معني الله (يعنے د ټولو معني دي د الله بنده).

۴۲۶۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ بَكْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍ قَالَ سَمِعَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ بِقُدُوْمِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ

۴۲۶۹: عبدالله بن منير. عبدالله بن بکر. حميد. حضرت انس نه روايت کوي. چه يهودي عالم عبدالله بن سلام باغيچه کښ ميوه شوکوله، هغهٔ ته د نبي صلي الله عليه وسلّم مدينے منورے ته د راتلو خبر اورسيد، هغه سمدستي حاضر خدمت شو، او رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته ئے عرض اوکهٔ، زهٔ تاسو نه درے خبرے

اَرْضٍ يَخْتَرِفُ فَأَتَى النَّبِيَّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ
اِنِّيْ سَائِلُكَ عَنْ ثَلَاثٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ
اِلَّا نَبِيٌّ فَمَا اَوَّلُ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ
وَمَا اَوَّلُ طَعَامِ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَمَا
يَنْزِعُ الْوَلَدُ اِلٰى اَبِيْهِ اَوْ اِلٰى اُمِّهٖ
قَالَ اَخْبَرَنِيْ بِهِنَّ جِبْرَئِيْلُ اٰنِفًا
قَالَ جِبْرِيْلُ قَالَ نَعَمْ قَالَ ذَاكَ
عَدُوُّ الْيَهُوْدِ مِنَ الْمَلَائِكَةِ فَقَرَأَ
هٰذِهِ الْاٰيَةَ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ
فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ اَمَّا اَوَّلُ
اَشْرَاطِ السَّاعَةِ فَنَارٌ تَحْشُرُ النَّاسَ
مِنَ الْمَشْرِقِ اِلَى الْمَغْرِبِ وَ اَمَّا
طَعَامُ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَزِيَادَةُ كَبِدِ حُوْتٍ وَ
اِذَا سَبَقَ مَاءُ الرَّجُلِ مَاءَ الْمَرْاَةِ نَزَعَ
الْوَلَدَ وَ اِذَا سَبَقَ مَاءُ الْمَرْاَةِ نَزَعَتْ
قَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ
اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّكَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ يَا رَسُوْلَ
اللّٰهِ اِنَّ الْيَهُوْدَ قَوْمٌ
بُهُتٌ وَ اِنَّ هُمْ اِنْ
يَعْلَمُوْا بِاِسْلَامِيْ قَبْلَ
اَنْ تَسْاَلَهُمْ يَبْهَتُوْنِيْ
فَجَاءَتِ الْيَهُوْدُ فَقَالَ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ اَيُّ رَجُلٍ عَبْدُ

معلوموول غوارم، هغه سِوا دَ نبي نه بل څوک نشي
ښودلے. يو دا چه دَ قيامت وړمبنے علامت څۀ دے، دويم
دا چه جنتيان به دَ ټولونه وړمبے كومه غذا خوري، دريم
دا چه بچے دَ خپل پلار يا مور مشابه په څۀ وجه وي.
حضورؐ ورته اوفرمائيل، ماته اُوس جبرائيلؑ دا خبرے
اُښودلے. ابن سلام ورته اووے، جبرائيلؑ خو دَ يهوديانو
په ټولو فريښتو كښې دَ ټولونه زيات دشمن دے. دے نه
پس حضورؐ دا آيت اولوست: مَنْ كَانَ عَدُوًّا: آخر
پورے: دے نه پس حضورؐ اوفرمائيل، دَ قيامت دَ ټولونه
وړمبنئے نښه دا ده، چه يو اُور به راپورته شي، چه خلق به
دَ مشرق نه مغرب طرف ته په تيښته كړي، او جنتيانو ته
به دَ ټولونه مخكښې دَ كب (مچھلی) ينه (کلیجی) دَ خوراک
دَ پاره وركړے شي. او دَ بچي دَ مشابه كيدو وجه داده
چه سړي او ښځه كښې دَ چا ماده منويه (مني) غالبه شي،
نو بچے دَ هغۀ مشابه وي، كه دَ مور (مني) غالبه شي، نو دَ
مور مشابه وي، او كه دَ پلار، نو دَ پلار مشابه وي.
عبدالله بن سلام دے نه پس اووے، زۀ گواهي كوم، چه
تاسو دَ الله ريښتنے رسول ئے، او دَ الله نه سِوا بل معبود
نشته. ابن سلام اووے، يا رسول الله، يهوديان ډير
دروغجن قوم دے، او ډير تهمت لږونكي دي په هغوي
به څما مسلمانيدل ډير ناخوښه پريوځي، او په ما به ډير
تهمتونه اوتړي. دے كښې يو څو يهوديان حضورؐ له
راغلل، نو ابن سلام اووے، تاسو څما متعلق دَ دوي نه
تپوس اوكړے، چه ابن سلام څنګه سړے دے (او خپله يو
طرف ته پناهي كښې شو) بيا حضورؐ دَ هغے يهوديانو نه
تپوس اوكړلو، چه تاسو ابن سلام څنګه سړے ګڼئے،

اللّٰهِ فِيْكُمْ قَالُوْا خَيْرُنَا وَابْنُ خَيْرِنَا وَ سَيِّدُنَا وَابْنُ سَيِّدِنَا قَالَ اَرَاَيْتُمْ اِنْ اَسْلَمَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ فَقَالُوْا اَعَاذَهُ اللّٰهُ مِنْ ذٰلِكَ فَخَرَجَ عَبْدُ اللّٰهِ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ فَقَالُوْا شَرُّنَا وَابْنُ شَرِّنَا وَانْتَقَصُوْهُ قَالَ فَهٰذَا الَّذِيْ كُنْتُ اَخَافُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ.

هغوي ورته اووے، هغه ډير ښهٔ سړے دے، او دَ ښهٔ سړي خوئے دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل، كه هغه مسلمان شي (نو بيا)، يهوديانو ورته اووے، خدائے دے هغهٔ له دَ دے پناه ورکړي (يعني هغه هيڅ كله مسلمانيدے نشي، دا دَ نـهٔ كيدو خبره ده) دے آوريدو سره ابن سلام بهرته رااووتلو، او، وے وئيل: اشهد ان لا اله الّا اللّٰه واشهد ان محمدًا عبدهٗ و رسوله: يهوديانو چه دا اوليدل، نو وے وئيل، ابن سلام مونږ كښې ډير ذليل دے، او دَ ذليل سړي خوئے دے. او په هغهٔ ئے بد رد وئيل شروع كړل. عبداللّٰه بن سلام اووے، يا رسول اللّٰه، ماسره دَ مخكښې نه دا ويره وَه، چه دا خلق به په ما بد رد وائي.

## بَابُ ۹۹: قَوْلِهٖ مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا.

باب ۹۹: آيت: مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا تفسير (هر كله چه مونږ يو آيت منسوخ كوو، نو دَ هغے نه بهتر يا دَ هغے په مثل حكم ورکوو).

۴۲۷۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ حَبِيْبٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُؓ اَقْرَؤُنَا اُبَيٌّ وَّ اَقْضَانَا عَلِيٌّ وَ اِنَّا لَنَدَعُ مِنْ قَوْلِ اُبَيٍّ وَ ذَاكَ اَنَّ اُبَيًّا يَقُوْلُ لَا اَدَعُ شَيْئًا سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا.

۴۲۷۰: عمرو بن علي. يحيٰي. سفيان. حبيب. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، حضرت عمرؓ به وئيلے. مونږ ټولو كښې دَ قرآن بهترين قاري ابي بن كعب دے، او مقدمو فيصلو باندے حضرت عليؓ زيات پوهيږي، خو دَ دے باوجود مونږ دَ ابي بن كعب دا خبره نهٔ شو تسليمولے، چه زهٔ به دَ قرآن كريم دَ هيڅ آيت تلاوت نهٔ پريږدم، كوم چه ما دَ حضورؐ نه آوريدلے دے[۱]، حالانكه خپله اللّٰه پاک: مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ الخ فرمائيلو سره دا ثابت كړل، چه دَ سابق كتابونو تنسيخ سره ئے قرآن كريم نازل كړے دے.

۱. حضرت اُبي بن كعب رضي اللّٰه عنه د آيتونو د نسخ قائل نه وو، حالانكه دا يو منلے شوے مسئله ده (چه نسخ شته دے) غالبًا هغوئ ته به د آيتونو د نسخ متعلق روايتونه معلوم شوي نه وُو.

**باب ۱۰۰: قَوْلِهٖ وَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحَانَهٗ.**

**باب ۱۰۰: آيت: وَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ:** ارشاد باري تعالي' دے يهوديانو عيسي عليه السلام ذ خدائے خوئے جوړ كړے دے' ذ دے تفسير.

۴۷۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حُسَيْنٍ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ كَذَّبَنِيُ ابْنُ اٰدَمَ وَلَمْ يَكُنْ لَهٗ ذٰلِكَ وَ شَتَمَنِيُ وَلَمْ يَكُنْ لَهٗ ذٰلِكَ فَاَمَّا تَكْذِيْبُهٗ اِيَّايَ فَزَعَمَ اَنِّيُ لَا اَقْدِرُ اَنْ اُعِيْدَهٗ كَمَا كَانَ وَ اَمَّا شَتْمُهٗ اِيَّايَ فَقَوْلُهٗ لِيُ وَلَدٌ فَسُبْحَانِيُ اَنْ اَتَّخِذَ صَاحِبَةً اَوْ وَلَدًا.

۴۷۱: ابواليمان. شعيب. عبدالله بن ابي حسين. نافع بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' ذ هغه بيان دے' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' الله تعالي فرمائي بني آدم ما دروغجن كوي' او هغه له داسے كول نه وو پكار' او بني آدم ماته كنځل كوي' او هغه له داسے كول نه وو پكار' خما دروغجن كول خو دادي' هغه وائي' چه زهٔ ذ مرګ نه پس ژوندي كول نشم كولے' او كنځل دادي' چه بني آدم وائي' چه ذ خدائے اولاد شته' حالانكه خما ذات ذ دے نه بالكل پاک دے' چه څوک ښځه يا اولاد جوړ كړم.

**باب ۱۰۱: قَوْلِهٖ وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى مَثَابَةً يَثُوْبُوْنَ يَرْجِعُوْنَ.**

**باب ۱۰۱: آيت: وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى:** تفسير. د مَثَابَةً معني دي ذ مرجع' يعني ذ واپس كيدو ځائے.

۴۷۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيَى ابْنِ سَعِيْدٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ وَافَقْتُ اللّٰهَ فِيْ ثَلَاثٍ اَوْ وَافَقَنِيْ رَبِّيْ فِيْ ثَلَاثٍ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوِ اتَّخَذْتَ مَقَامَ اِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى وَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ يَدْخُلُ عَلَيْكَ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ فَلَوْ اَمَرْتَ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِالْحِجَابِ

۴۷۲: مسدد. يحيٰي بن سعيد. حميد. حضرت انسؓ نه روايت كوي' حضرت عمرؓ اوفرمائيل' خما درے خبرے داسے دي' چه ذ وحي الٰهي موافق شولے. يا داسے ئے اووے' اللّٰه تعالي خما درے خبرو سره اتفاق اوفرمائيلو وړمبئ خبره خو داده' چه ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوكړ' چه تاسو ذ طواف نه پس مقام ابراهيم كښ مونځ ادا كوئے' نو ذ دے موافق: واتَّخَذُوْا الخ كښ ذ مونځ حكم اوشولو' دويمه خبره داده' ما اووے يا رسول اللّٰهؐ' تاسوله منافق او نور غير خلق هم راځي' ښهٔ به وي' كه تاسو خپلو بيبيانو ته ذ پردے كولو

فَـأَنْـزَلَ اللّٰـهُ آيَةَ الْحِجَابِ قَالَ وَ بَـلَـغَـنِيْ مُعَاتَبَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ بَعْضَ نِسَائِهٖ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِنَّ قُلْتُ إِنِ انْتَهَيْتُنَّ أَوْ لَيُبَدِّلَنَّ اللّٰـهُ رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرًا مِنْكُنَّ حَتّٰى أَتَيْتُ إِحْدٰى نِسَائِهٖ قَالَتْ يَا عُمَرُ أَمَا فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَعِظُ نِسَاءَهٗ حَتّٰى تَعِظُهُنَّ أَنْتَ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَسٰى رَبُّهٗ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُّبْدِلَهٗ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمٰتٍ الْآيَةَ وَ قَالَ ابْنُ أَبِيْ مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوْبَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدٌ سَمِعْتُ أَنَسًا عَنْ عُمَرَ رضی اللہ عنه.

حکم ورکړے، نو اللّٰه پاک دَ پردے آيت نازل کړو ... دريمه دا چه ماته معلومه شوه، چه حضورﷺ دَ بيبيانو ... ناراض ئے، نو زهٔ هغوي له ورغلم، ورته مې اووې، که ... چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ناراضه نه کړئ کي ... اللّٰه تعالي ستاسو نه بهترے ښځے خپل رسول ته عطا ... کولے شي. خو يوے بي بيؓ صاحبے اووے، اے عمرؓ آيا ... حضورؐ مونږ ته خپله نصيحت نشي کولے، چه ته ... نصيحت کولو له راغلے ئے. نو هغه وخت دا آيت: عَسٰى رَبُّهٗ إِنْ طَلَّقَكُنَّ الخ: نازل شو، يعني هيڅ تعجب نشته، که رسول تاسو له طلاق درکړي او اللّٰه تعالي ستاسو بدله کښې ستاسو نه هم بهترے بيبيانے حضورؐ له ورکړي. (دوئيم سند) ابن ابي مريم وائي، دا حديث يحيٰي بن ايوب، حميد، حضرت انسؓ نه، او هغه دَ حضرت عمرؓ نه روايت کوي.

## باب ١٠٢ : قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ إِذْ يَرْفَعُ إِبْرَاهِيْمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَ إِسْمَاعِيْلُ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ الْقَوَاعِدُ أَسَاسُهٗ وَاحِدَتُهَا قَاعِدَةٌ وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ وَاحِدُهَا قَاعِدٌ.

## باب ١٠٢ : آيت: وَ إِذْ يَرْفَعُ إِبْرَاهِيْمُ الْقَوَاعِدَ الخ: کوم وخت چه حضرت ابراهيمؑ او اسمٰعيلؑ دَ کعبے تعمير اوکهٔ، نو بارګاهِ الٰهي کښې ئے عرض اوکهٔ، اے خمونږ اللّٰه، خمونږ دَ طرف نه دا قبول کړے، بيشکه ته آوريدونکے او پوهيدونکے ئے.

٤٧٣ : حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِيْ بَكْرٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَلَمْ تَرَيْ أَنَّ

٤٧٣ : اسمٰعيل. مالک. ابن شهاب. سالم بن عبداللّٰه. عبداللّٰه بن محمد بن ابي بکر. عبدالله بن عمر. دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم تېر، بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، دَ هغے بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ماته اوفرمائيل، آيا تاته دَ دے خبر علم نشته، چه ستا دَ قوم سرو يعني قريشو

قَوْمَكِ بَنَوُا الْكَعْبَةَ وَاقْتَصَرُوْا عَلٰى قَوَاعِدِ اِبْرَاهِيْمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا تَرُدُّهَا عَلٰى قَوَاعِدِ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ لَوْلَا حِدْثَانُ قَوْمِكِ بِالْكُفْرِ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ لَئِنْ كَانَتْ عَائِشَةُ سَمِعَتْ هٰذَا مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اُرٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرَكَ اسْتِلَامَ الرُّكْنَيْنِ الَّذِيْنَ يَلِيَانِ الْحِجْرَ اِلَّا اَنَّ الْبَيْتَ لَمْ يُتَمَّمْ عَلٰى قَوَاعِدِ اِبْرٰهِيْمَ.

چه خپل وخت کښې کعبه تعمير کړله، نو د حضرت ابراهيمؑ د بنيادونو نه هغه وړه کړله، ما عرض اوکړ، يا رسول الله، تاسو ئې بيا هغه شان جوړه کړئ، حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو، ما به هغسې کړې وې، خو ستا قوم نوې نوې اسلام قبول کړې دې، حضرت عبدالله بن عمر د دې حديث آوريدو نه پس اووې، که بي بي عائشېؓ د حضورؐ نه دغه خبره اوريدلې وي، نو زۀ خيال کوم، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم دغه دواړه کُنجونه نۀ ښکلول (دونوں کونوں کو بوسہ نہیں دیتے تھے) چه حطيم سره دي، ځکه چه هغه کُنجونه ابراهيمي بنياد باندې نۀ وو جوړ شوې.

باب ۱۰۳ : قَوْلُهٗ تَعَالٰى قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا.

باب ۱۰۳ : آيت: قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا اُنْزِلَ اِلَيْنَا: ارشاد باري تعالٰي، تاسو اووائې چه مونږ په الله ايمان راوړلو، او څۀ چه مونږ طرف ته نازل شوې دي، په هغې مو هم ايمان راوړلو.

۴۷۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ اَهْلُ الْكِتٰبِ يَقْرَءُوْنَ التَّوْرٰةَ بِالْعِبْرَانِيَّةِ وَ يُفَسِّرُوْنَهَا بِالْعَرَبِيَّةِ لِاَهْلِ الْاِسْلَامِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُصَدِّقُوْا اَهْلَ الْكِتٰبِ وَلَا تُكَذِّبُوْهُمْ وَ قُوْلُوْا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا اُنْزِلَ الْاٰيَةَ.

۴۷۴: محمد بن بشار. عثمان بن عمر. علي بن مبارک. يحيٰي بن ابي کثير. ابي سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، هغۀ اووې، اهل کتابو، يعني يهوديانو به تورات عبراني ژبه کښې لوستلو، او بيا به ئې مسلمانانوته عربي ژبه کښې ترجمه باندې هغوي پوهيول، نو حضور صلي الله عليه وسلم مسلمانانو ته ارشاد اوفرمائيلو، چه تاسو دې ته مۀ ريښتيا وايئ، مۀ دروغ، بلکه تاسو داسې وايئ، چه مونږ په الله ايمان راوړې دې، او په هغې چه هغۀ مونږ طرف ته نازل کړې دې.

باب ۱۰۴ : قَوْلُهٗ تَعَالٰى

باب ۱۰۴ : آيت: سَيَقُوْلُ السُّفَهَآءُ: د الله تعالٰي

سَيَقُوْلُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِيْ كَانُوْا عَلَيْهَا قُلْ لِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ.

فرمائيل، بيوقوفان خلق به زر اووائي، چه كوم څيز مسلمانان دَ پخوانئے قبلے دَ طرف نه اوګرځول. اے خمونږ رسولهٌ، ته ورته اووايه هغه قبله او دا قبله يعنې مشرق او مغرب ټول دَ اللّٰه دي، چاته چه غواړي دَ هدايت لار ورته ښائي. دَ دے تفسير.

۴۷۵: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ سَمِعَ زُهَيْرًا عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى اِلٰى بَيْتِ الْمُقَدَّسِ سِتَّةَ عَشَرَ شَهْرًا اَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا وَّ كَانَ يُعْجِبُهُ اَنْ تَكُوْنَ قِبْلَتُهُ قِبَلَ الْبَيْتِ وَ اَنَّهُ صَلّٰى اَوْ صَلَّاهَا صَلٰوةَ الْعَصْرِ وَ صَلّٰى مَعَهُ قَوْمٌ فَخَرَجَ رَجُلٌ مِمَّنْ كَانَ صَلّٰى مَعَهُ فَمَرَّ عَلٰى اَهْلِ الْمَسْجِدِ وَهُمْ رَاكِعُوْنَ قَالَ اَشْهَدُ بِاللّٰهِ لَقَدْ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ مَكَّةَ فَدَارُوْا كَمَا هُمْ قِبَلَ الْبَيْتِ وَ كَانَ الَّذِيْ مَاتَ عَلَى الْقِبْلَةِ قَبْلَ اَنْ تُحَوَّلَ قِبَلَ الْبَيْتِ رِجَالٌ قُتِلُوْا لَمْ نَدْرِ مَا نَقُوْلُ فِيْهِمْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ.

۴۷۵: ابو نعيم. زهير. ابو اسحٰق. حضرت براء بن عازب نه روايت كوي. حضورٌ دَ هجرت نه ورستو مدينه منوّره كښې شپاړس يا اولس مياشتے بيت المقدس طرف ته مونځ اوكړهٔ، خو كعبے طرف ته دَ مونځ كولو خيال ئے په زړهٔ كښې ځائے نيولے وو. آخر يوه ورځ دَ خدائے په حكم حضورٌ دَ مازيګر مونځ قبلے طرف ته مخ كړے اوكړلو، ټولو خلقو هم دَ حضورٌ اقتدا اوكړله، يو سړے بشير بن عباد چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ئے مونځ ادا كړے وو، مسجد قبا طرف ته لاړلو، هلته ئے اوليدل چه خلق بيت المقدس طرف ته مونځ كوي، هغے سړي داسے حالت كښې، چه هغوي ركوع كښې وو، په چغه ئے هغوي ته اووے، زه خدائے ګواه كوم، او وائم چه ما اوس حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره كعبے طرف ته مخ كړے مونځ كړے دے دے آوريدو سره ټول كعبے طرف ته تاؤ شولو. البته خلقو سره دا تشويش وو، چه كومو خلقو بيت المقدس طرف ته مونځ كړے دے، او وفات شوے دي، دَ هغوي مونځونه اوشو، يا نه. نو اللّٰه پاك دا آيت: وَمَا كَانَ اللّٰهُ الخ: اللّٰه داسے نهٔ دے، چه ستاسو عبادت ضائع كړي، بلكه اللّٰه په خپلو بنديانو مهربانه او رحم كونكے دے.

بَابٌ ۱۰۵ : وَ كَذٰلِكَ

باب ۱۰۵ : آيت: وَ كَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا

جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَسَطًا لِتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَ يَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا.

الخ: دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه دا شان مونږ تاسو اُمت وسط جوړ كړلئ، چه دَ قيامت په ورځ به نوړو تاسو ګواهي وركړئ، او رسول به تاسو ګواهي او كړي (چه څوك انكار اونه كړيشي).

۴۷۶: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِي صَالِحٍ وَ قَالَ اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُدْعٰى نُوْحٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُوْلُ لَبَّيْكَ وَ سَعْدَيْكَ يَا رَبِّ فَيَقُوْلُ هَلْ بَلَّغْتَ فَيَقُوْلُ نَعَمْ فَيُقَالُ لِاُمَّتِهٖ هَلْ بَلَّغَكُمْ فَيَقُوْلُوْنَ مَا اَتَانَا مِنْ نَذِيْرٍ فَيَقُوْلُ مَنْ يَشْهَدُ لَكَ فَيَقُوْلُ مُحَمَّدٌ وَ اُمَّتُهٗ فَيَشْهَدُوْنَ اَنَّهٗ قَدْ بَلَّغَ وَ يَكُوْنُ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا فَذٰلِكَ قَوْلُهٗ جَلَّ ذِكْرُهٗ وَ كَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَ يَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا وَ الْوَسَطُ الْعَدْلُ.

۴۷۶: يوسف بن راشد. جرير. ابو اسامه. اعمش. ابو صالح (دوېم سند) ابو اسامه. ابو صالح. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي: دَ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دَ قيامت په ورځ به اللّٰه تعالٰي نوح عليه السلام راوغواړي، هغه به راشي، او عرض به اوكړي، اے څما ربه، زهٔ حاضر يم، اللّٰه تعالٰي به ورته اوفرمائي، آيا تا څمونږ احكامات خلقوته رسولي وو، هغه به اووائي، جي، او. بيا به دَ هغهٔ دَ اُمت نه تپوس اوشي، چه تاسو ته دَ خدائے احكامات چا رسول را رسولي وو، يا نه، هغه اُمت به وائي چه نه، رب العزّت به اوفرمائي، ستاسو ګواه څوك دے، هغوي به وائي، حضرت محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم او دَ هغويّ اُمت، دغه وخت به څما اُمت ګواهي وركوي، چه بيشكه نوح عليه السلام دَ احكام الٰهي تبليغ كړے وو، او زهٔ به وائم چه دا ټول خلق ريښتينے دي. دَ راوي بيان دے، چه دَ اللّٰه تعالٰي دَ دے قول مطلب دغه دے او دَ وسط معني دَ عدل دي.

بَابٌ ۱۰۶: قَوْلُهٗ وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَا اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَ اِنْ كَانَتْ لَكَبِيْرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى

باب ۱۰۶: آيت: وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَا الخ دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه كومے قبلے ته تهٔ پاتے شوے ئے، هغه خو دے دَ پاره وه چه مونږ ته معلومه شي، چه څوك دَ رسول اتباع كوي، او څوك په ورستو كيږي، او دَ قبلے دا بدليدل په خلقو ډير ګران دي، خو

اللّٰهُ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيعَ إِيْمَانَكُمْ إِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ.

چا ته چه الله تعالٰي هدايت کړے دے او الله پاک داسے نهٔ دے، چه ستاسو ايمان ضائع کړي، او واقعي الله خو په داسے خلقو ډير شفيق او مهربانه دے.

۴۷۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ بَيْنَا النَّاسُ يُصَلُّوْنَ الصُّبْحَ فِيْ مَسْجِدِ قُبَاءٍ إِذْ جَآءَ جَاءٍ فَقَالَ أَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرْاٰنًا أَنْ يُسْتَقْبَلَ الْكَعْبَةَ فَاسْتَقْبِلُوْهَا فَتَوَجَّهُوْا إِلَى الْكَعْبَةِ.

۴۷۷: مسدد. يحيٰي. سفيان. عبدالله بن دينار. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، خنر سړو مسجد قباء کښې دَ سحر مونځ کولو. دے کښې يو سړے راغے، او نعره ئے کړه، اے خلقو الله، قرآن کښې خپل نبي صلي الله عليه وسلّم ته حکم کړے دے چه خپل مخ کعبے طرف ته کړه، نو دے آواز آوريدو سره خلقو دَ مونځ حالت کښې کعبے طرف ته مخ اوګرځولو.

## بَابُ ۱۰۷: قَوْلُهُ قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ (إِلٰى) عَمَّا تَعْمَلُوْنَ.

باب ۱۰۷: آيت: قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ الخ ارشاد باري تعالٰي، چه مونږ بار بار ستا مخ آسمان طرف ته اوچتيدونکے ليدلو، آخر پورے.

۴۷۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَنَسٍؓ قَالَ لَمْ يَبْقَ مِمَّنْ صَلَّى الْقِبْلَتَيْنِ غَيْرِيْ.

۴۷۸: علي بن عبدالله. معتمر. سليمان. حضرت انسؓ نه روايت کوي، ټولو صحابهؓ کښې اوس صرف زهٔ يو سړے باقي پاتے شوے يم، چه دواړو قبلو طرف ته مِ مونځ ادا کړے دے.

## بَابُ ۱۰۸: قَوْلُهُ وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ بِكُلِّ اٰيَةٍ مَّا تَبِعُوْا قِبْلَتَكَ (إِلٰى قَوْلِهٖ) إِنَّكَ إِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ.

باب ۱۰۸: آيت: وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ الخ: دَ الله تعالٰي قول، که ته دے اهل کتابو ته ټول دلائيل او نښے پيش کړے، خو بيا هم دوي ستا قبله نهٔ مني، آخر پورے: تفسير.

۴۷۹: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ بَيْنَمَا النَّاسُ فِي الصُّبْحِ بِقُبَاءٍ جَآءَهُمْ رَجُلٌ

۴۷۹: خالد بن مخلد. سليمان. عبدالله بن دينار. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، چه خلقو مسجد قبا کښې دَ سحر مونځ کولو،

فَقَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ قُرْاٰنٌ وَّ اُمِرَ اَنْ يَّسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ اَلَا فَاسْتَقْبِلُوْهَا وَ كَانَ وَجْهُ النَّاسِ اِلَى الشَّامِ فَاسْتَدَارُوْا بِوُجُوْهِهِمْ اِلَى الْكَعْبَةِ.

چه يو سړي بشير بن عباد اووے، نن شپه په رسول كريم صلي اللّٰه عليه وسلّم قرآن نازل شوے دے، او غـۀ ته حكم وركړے شوے دے، چه خپل مخ كعبے طرف ته اوګرځوه، (حالانكه مخكښ ئے رُخ شام طرف ته وو).

باب ١٠٩ : قَوْلِهٖ اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَاءَ هُمْ وَ اِنَّ فَرِيْقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ (اِلٰى قَوْلِهٖ) مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ.

باب ١٠٩ : آيت: اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ الخ: ارشاد باري تعالٰي كومو خلقو ته چه مونږ كتاب وركړے دے هغوي رسول داسے پيژني، څنګه چه خپل ځامن پيژني، او بعضے هغوي كښ امر واقعي ښۀ پيژني، او اخفا (پټوونه) كوي، نو تۀ دَ شک كونكو نه مۀ كيږه. دَ دے تفسير.

٤٨٠: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قُزْعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ بَيْنَا النَّاسُ بِقُبَآءٍ فِيْ صَلٰوةِ الصُّبْحِ اِذْ جَآءَ هُمْ اٰتٍ فَقَالَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ قُرْاٰنٌ وَقَدْ اُمِرَ اَنْ يَّسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ فَاسْتَقْبِلُوْهَا وَ كَانَتْ وُجُوْهُهُمْ اِلَى الشَّامِ فَاسْتَدَارُوْا اِلَى الْكَعْبَةِ.

٤٨٠: يحيٰي بن قزعه. مالک. عبداللّٰه بن دينار. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي. مسجد قبا كښ خلقو دَ سحر مونځ كولو، چه يو سړي نعره كړے اے خلقو نن شپه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم باندے قرآن نازل شوے دے، او حضورؐ ته كعبے طرف ته دَ مخ كولو حكم شوے دے، نو تاسو حضرات هم خپل مخ كعبے طرف ته اوګرځوئے، دغه وخت ټولو بيت المقدس طرف ته مونځ كولو، نو دے خبر آوريدو سره ټولو كعبے ته (مانځه كښ) مخ اوګرځولو.

باب ١١٠ : قَوْلِهٖ وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيْهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ اَيْنَمَا تَكُوْنُوْا يَاْتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ.

باب ١١٠ : آيت: وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيْهَا الخ: ارشاد باري تعالٰي، هر يو دَ پاره يوه قبله مقرر ده، چه هغے طرف ته هغه مخ كوي، نو تاسو نيک كارونو كښ سبقت كوئے، تاسو چه كوم ځائے ئے، اللّٰه به تاسو راجمع كړي، بيشكه هغه په هر څيز قادر دے.

۴۸۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِي أَبُو إِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ قَالَ صَلَّيْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ سِتَّةَ عَشَرَ أَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا ثُمَّ صَرَفَهُ نَحْوَ الْقِبْلَةِ.

۴۸۱: محمد بن مثني. يحيي. سفيان. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازب نه روايت كوي، مدينه منوره كښې مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره شپاړس يا اولس مياشتې برابر بيت المقدس طرف ته مونځ كړے دے. دے نه پس حضورٌ خپل مخ كعبې طرف ته اوګرځولو، (نو مونږ هم اوګرځولو).

باب ۱۱۱: وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ إِنَّهُ لَلْحَقُّ مِنْ رَبِّكَ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ شَطْرَهُ تِلْقَآءَهُ.

باب ۱۱۱: آيت: وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ الخ: ارشاد باري تعالىٰ، كوم خوا، چه ته ځې، مونځ كښې خپل مخ مسجد حرام يعني كعبې طرف ته كوه، او دا بالكل د اللّٰه تعالىٰ د طرف نه حق ده. او اللّٰه ستاسو د كارونو نه بې خبره نه دے. او د شطر معني د طرف دي.

۴۸۲: حَدَّثَنَا مُوسَى ابْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَؓ يَقُولُ بَيْنَا النَّاسُ فِي الصُّبْحِ بِقُبَآءٍ إِذْ جَآءَهُمْ رَجُلٌ فَقَالَ أُنْزِلَ اللَّيْلَةَ قُرْاٰنٌ فَأُمِرَ أَنْ يَسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ فَاسْتَقْبِلُوهَا وَاسْتَدَارُوا كَهَيْئَتِهِمْ فَتَوَجَّهُوا إِلَى الْكَعْبَةِ وَ كَانَ وَجْهُ النَّاسِ إِلَى الشَّامِ.

۴۸۲: موسي بن اسماعيل. عبدالعزيز بن مسلم. عبداللّٰه بن دينار. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، هغه اووے، خبره داسې وه، چه څه خلقو مسجد قبا كښې د سحر مونځ كولو، يو سړي په چغه اووے، چه نن شپه په نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم قرآن نازل شوے دے، او حضورٌ ته كعبې طرف ته د مخ كولو حكم شوے دے، نو تاسو خلق هم خپل مخ كعبې طرف ته اوګرځوئ، دے آوريدو سره ټولو خلقو كعبې طرف ته مخ اوګرځولو، دغه وخت ټولو بيت المقدس طرف ته مونځ كولو.

باب ۱۱۲: قَوْلُهُ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ حَيْثُ مَا

باب ۱۱۲: آيت: وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ الخ: ارشاد باري تعالىٰ، چه كوم خوا ته ځې مونځ كښې خپل مخ مسجد حرام طرف ته ساته، او تاسو خلق چه كوم ځائے يئ، خپل مخ كعبې طرف ته ساتئ،

كُنْتُمْ (اِلٰى قَوْلِهٖ) لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ.

چه خلقو نه ستاسو مقابله کښې د خبرو کولو مجال نه وي، آخر آیت پورې تفسیر.

۴۸۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ بَيْنَمَا النَّاسُ فِيْ صَلٰوةِ الصُّبْحِ بِقُبَاءٍ اِذْ جَآءَ هُمْ اٰتٍ فَقَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ وَ قَدْ اُمِرَ اَنْ يَّسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ فَاسْتَقْبِلُوْهَا وَ كَانَتْ وُجُوْهُهُمْ اِلَى الشَّامِ فَاسْتَدَارُوْا اِلَى الْقِبْلَةِ.

۴۸۳: قتیبه بن سعید. امام مالک. عبداللّٰه بن دینار. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي: هغه اوویې: مسجد قبا کښې مونږ خلقو د سحر مونځ کولو، یو سړي نعرې کړې چې شپه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ته د خدائې دا حکم راغلې دې، چه کعبه خپله قبله جوړه کړه، تاسو ټول هم خپل مخ کعبې طرف ته اوګرځوئې، نو مونږ ټولو خلقو مخ کعبې ته اوګرځولو.

باب۱۱۱۳: قَوْلِهٖ اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَاِنَّ اللّٰهَ شَاكِرٌ عَلِيْمٌ ○ شَعَائِرُ عَلَامَاتٌ وَاحِدَتُهَا شَعِيْرَةٌ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الصَّفْوَانُ الْحَجَرُ وَ يُقَالُ الْحِجَارَةُ الْمُلْسُ الَّتِيْ لَا تُنْبِتُ شَيْئًا وَالْوَاحِدَةُ صَفْوَانَةٌ بِمَعْنَى الصَّفَا وَالصَّفَا لِلْجَمْعِ.

باب۱۱۱۳: آیت: اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ الخ ارشاد باري تعالي چه صفا او مروه دَ اللّٰه ذ نښو نه دي. بیا څوک چه ذَ کعبې طواف اوکړي، یا ذَ عمرې اراده اوکړي، که څوک ذَ دې دواړو مینځ کښې سعي اوکړي (منډې اووهي) نو هیڅ حرج نشته. شعائر، ذَ شعیره جمع ده، ذَ دې معنې دي: نښې، علامتونه. ابن عباسؓ وائي ذَ صفوان لفظ مطلب دې کاڼړې. او ذَ بعضو قول دې، چه ذَ صفوان معني دي: غوړ کاڼړې او ذَ دې واحد صفوانه دې، څنګه چه صفایه جمع ده. او ذَ دې مفرد صفا دې.

۴۸۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهٗ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا يَوْمَئِذٍ

۴۸۴: عبداللّٰه بن یوسف. امام مالک. هشام بن عروه. عروه بن زبیر. بي بي عائشېؓ نه روایت کوي، بي بي عائشېؓ ذ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم تبر نه تپوس اوشو، او زهٔ هغه وخت بچې ووم، ذَ اللّٰه تعالي ارشاد دې، چه صفا مروه ذَ اللّٰه تعالي ذ نښو نه دي، یو سړې چه د

حَدِيثُ السِّنِّ اَرَاَيْتَ قَوْلَ اللّٰهِ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا فَمَا اَرٰى عَلٰى اَحَدٍ شَيْئًا اَنْ لَّا يَطَّوَّفَ بِهِمَا فَقَالَتْ عَائِشَةُ كَلَّا لَوْ كَانَتْ كَمَا تَقُوْلُ كَانَتْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ لَّا يَطَّوَّفَ بِهِمَا اِنَّمَا اُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ فِي الْاَنْصَارِ كَانُوْا يُهِلُّوْنَ لِمَنَاةٍ وَّ كَانَتْ مَنَاةُ حَذْوَ قُدَيْدٍ وَّ كَانُوْا يَتَحَرَّجُوْنَ اَنْ يَّطَّوَّفُوْا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا.

حج يا عمرے اراده او کړي، ذ هغې طواف کولو کښې څۀ مضائقه يعني ګناه نشته، نو دے نه خو دا ثابتيږي، که يو سړے ذ صفا مروه طواف اونۀ کړي، نو هم په هغۀ څۀ ګناه نشته بي بي عائشې ورته او فرمائيل، خبره داسے نۀ ده، که خبره دغسے وے، نو اللّٰه تعالي به داسے فرمائيلے وو، که څوک ذ هغې طواف هم اونۀ کړي، نو په هغۀ څۀ ګناه نشته. حقيقت کښې دا آيت ذ انصارو په حق کښې نازل شوے وو، ځکه چه هغوي به ذ احرام حالت کښې ذ منات بُت نوم اخستلو، چه قديد (مقام) سره ايښے شوے وو. انصاروته ذ صفا مروه طواف ښۀ نۀ معلوميدلو. کوم وخت چه اسلام راغے، نو هغوي په دے حقله ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس او کۀ، نو هغه وخت اللّٰه تعالي دا آيت نازل کړلو، چه صفا او مروه ذ اللّٰه تعالي ذ نښنو نه دي، څوک چه حج يا عمره کوي، نو ذ دے په طواف کولو پرے څۀ مضائقه نشته.

۴۸۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَاصِمِ بْنِ سُلَيْمَانَ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَقَالَ كُنَّا نُرٰى اَنَّهُمَا مِنْ اَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ فَلَمَّا كَانَ الْاِسْلَامُ اَمْسَكْنَا عَنْهُمَا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ اِلٰى قَوْلِهٖ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا.

۴۸۵: محمد بن يوسف. سفيان. عاصم بن سليمان نه روايت کوي، ذ هغۀ بيان دے، ما ذ حضرت انس بن مالکؓ نه تپوس او کۀ، د صفا او مروه سعي څۀ څيز دے، هغۀ جواب راکۀ، مونږ ذ اسلام ابتدائي زمانه کښې دا طريقه ذ جاهليت يو رسم ګڼړلو، او په دے وجه مونږ دا پريښے وو، آخر اللّٰه پاک دا آيت نازل کړلو، چه بيشکه صفا او مروه ذ اللّٰه ذ نښنو نه دي، آخر آيت پورے.

**باب ۱۱۴: وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا، اَضْدَادًا وَاحِدُهَا**

**باب ۱۱۴:** آيت: وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا الـخ: د اللّٰه تعالي قول، بعضے خلق داسے دي، چه ذ اللّٰه نه بغير نور کارساز جوړوي. انداذا ذ ند جمع

لِلّٰه.

۴۸۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِیْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَةً وَ قُلْتُ أُخْرٰی قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ وَهُوَ يَدْعُوْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ نِدًّا دَخَلَ النَّارَ وَ قُلْتُ اَنَا مَنْ مَاتَ وَهُوَ لَا يَدْعُوْ لِلّٰهِ نِدًّا دَخَلَ الْجَنَّةَ.

ده. او د "ند" معني دي: همسر يا شريک.

۴۸۶: عبدان. ابي حمزه. اعمش. شقيق. حضرت عبدالله بن مسعود نه روايت کوي، د هغه بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو: چاچه الله سره څوک شريک جوړ کړلو، او بيا مړ شولو نو هغه به دوزخ ته ځي، ما عرض اوکړ، او چا چه الله سره شريک جوړ نه کړلو، او مړ شولو، نو حضورؐ او فرمائيل، هغه به جنت له ځي.

باب ۱۱۵: قَوْلِهٖ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِی الْقَتْلٰی اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ (اِلٰی قَوْلِهٖ) عَذَابٌ اَلِيْمٌ عُفِیَ: تُرِكَ.

باب ۱۱۵: آيت: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِی الْقَتْلٰی الخ: دَ الله تعالٰي فرمائيل، اے ايمان والو، په تاسو قصاص دَ مقتولين باره کښې فرض شوے دے. دَ آزاد په بدله کښې آزاد، عذاب اليم پورے. عُفِیَ: معني دي تُرِکَ: يعني معاف کړے شو.

۴۸۷: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِیُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍؓ يَقُوْلُ كَانَ فِیْ بَنِیْ اِسْرَائِيْلَ الْقِصَاصُ وَلَمْ تَكُنْ فِيْهِمُ الدِّيَةُ فَقَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی لِهٰذِهِ الْاُمَّةِ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِی الْقَتْلٰی اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰی بِالْاُنْثٰی فَمَنْ عُفِیَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَیْءٌ فَالْعَفْوُ اَنْ يَّقْبَلَ الدِّيَةَ فِی الْعَمَدِ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ وَ اَدَاءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ يَّتَّبِعُ

۴۸۷: حميدي. سفيان. عمرو. مجاهد. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، بني اسرائيلو کښې صرف دَ قصاص قانون وو، خو دَ ديت رواج په کښې نهٔ وو، اُمت محمديه باندے الله تعالٰي خپلے مهربانئے سره دَ ديت حکم نازل کړلو، څوک چه څوک قتل کړي، په هغهٔ قصاص واجب دے، دَ ځان (نفس) په بدله کښې ځان، دَ آزاد په بدله کښې ښځه، او که دَ ديت دَ ادا کولو خيال وي، نو دَ مقتول وارثانو له پکار دي، چه خپلو کښې سره مقرر کړي او قبول ئے کړي، او قاتل له به ښهٔ شان سره ديت ادا کول پکار دي، چه دَ ديت ادا

بِالْمَعْرُوْفِ وَ يُؤَدِّيْ بِإِحْسَانٍ ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ مِنْ رَبِّكُمْ وَ رَحْمَةٌ مِمَّا كُتِبَ عَلٰى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ اَلِيْمٌ، قَتَلَ بَعْدَ قَبُوْلِ الدِّيَةِ.

حکم ذ اللّه تعالى يوه مهرباني او تخفيف دے. په مخکنو خلقو د قصاص حکم وو، او تاسو ته ذ ديت هم رعايت درکړے شو. دے نه پس هم که څوک زياتے اوکړي، نو هغه د پاره دردناک عذاب دے (يعني ديت قبلولو نه پس قتل).

ف: (۱) قصاص: بدل، ذ مرګ بدل، ذ مرې پور. د مسلمانانو ذ قانون مطابق ذ سترګے په بدل کښ سترګه، ذ پوزے په بدل کښ پوزه او ذ سر په بدل کښ سر اخستل. (۲) ديت: خون بها.

۴۸۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كِتَابُ اللّٰهِ الْقِصَاصُ.

۴۸۸: محمد بن عبداللّه انصاري. حميد. حضرت انسؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ اللّه کتاب ذ قصاص حکم ورکوي، خو په شرط ذ دے چه وارث ديت قبول نۀ کړي.

۴۸۹: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ بَكْرٍ السَّهْمِيَّ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ الرُّبَيِّعَ عَمَّتَهُ كَسَرَتْ ثَنِيَّةَ جَارِيَةٍ فَطَلَبُوْا اِلَيْهَا الْعَفْوَ فَاَبَوْا فَعَرَضُوا الْاَرْشَ فَاَبَوْا فَاَتَوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقِصَاصِ فَقَالَ اَنَسُ ابْنُ نَضْرٍ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتُكْسَرُ ثَنِيَّةُ الرُّبَيِّعِ لَا وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا تُكْسَرُ ثَنِيَّتُهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اَنَسُ كِتَابُ اللّٰهِ الْقِصَاصُ فَرَضِيَ الْقَوْمُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنْ عِبَادِ اللّٰهِ مَنْ لَوْ اَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ

۴۸۹: عبداللّٰه بن منير. عبداللّٰه بن بکر سهمي. حضرت انسؓ نه روايت کوي، خما ترور (پھوپھی) ربيع ذ يوے ښځے غاښ مات کړلو، چه ذ مخامخ غاښ وو، ذ ربيع رشته دارانو ذ معافي کوشش اوکۀ، خو ذ ښځے رشته دارانو معاف نۀ کړله آخر مقدمه ئے ذ حضورؐ خدمت کښ پيش کړله او ذ قصاص مطالبه اوشوه. حضورؐ ذ قصاص حکم جاري کړلو، ذ ربيع ورور انس بن نضر اووے يا رسول اللّٰه، آيا واقعي به ذ ربيع غاښ ماتولے شي، زۀ په هغے اللّٰه قسم خورم، چه تاسو ئے په ريښتيا نبي راليږلے ئے، زه به ذ ربيع غاښ ماتولو له ورنۀ کړم، حضورؐ ورته اوفرمائيل، اے انسؓ، ذ اللّٰه کتاب ذ قصاص حکم ورکوي، بيا داسے اوشو، چه ذ هغے رشته داران په معافئ راضي شو، نو حضورؐ اوفرمائيل، ذ اللّٰه ځنے بنديان داسے هم وي، که په اللّٰه قسم اوخوري نو

لَأٓبَرَّهٗ.

اللّٰه تعالٰي ذ هغوي قسم پوره کوي.

**باب ۱۱۶: قَوْلِهٖ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ.**

**باب ۱۱۶:** آيت: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ الخ: ارشاد باري تعالٰي: اے ايمان والو! په تاسو روژے فرض شوے دي، څنګه چه تاسو نه مخکښو خلقو باندے فرض شوے وے د پاره د دے چه تاسو پرهيزګاري اوکړئے.

**۴۹۰:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ كَانَ عَاشُوْرَآءُ يَصُوْمُهُ اَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ قَالَ مَنْ شَآءَ صَامَهٗ وَمَنْ شَآءَ لَمْ يَصُمْهُ.

**۴۹۰:** مسدد. يحيٰي. عبيدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، د جاهليت زمانه کښ ذ عاشورے روژه فرض وه. دے نه پس اسلام کښ ذ رمضان روژے فرض شوے، نو حضورؐ مسلمانانو ته ارشاد اوفرمائيلو، اوس ذ عاشورے روژه ستاسو په مرضي ده، که زړۀ مو غواړي، نو وے نيسئے او که نۀ غواړي، نو مۀ نيسے.

**۴۹۱:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ كَانَ عَاشُوْرَآءُ يُصَامُ قَبْلَ رَمَضَانَ فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ قَالَ مَنْ شَآءَ صَامَ وَمَنْ شَآءَ اَفْطَرَ.

**۴۹۱:** عبدالله بن محمد. ابن عيينه. زهري. عروه. بي بي عائشےؓ روايت کوي، ذ رمضان روژے چه فرض نۀ وے، نو خلقو به ذ عاشورے روژه نيوله. کوم وخت چه ذ رمضان روژے فرض شوے، نو حضورؐ اوفرمائيل، اوس څوک چه غواړي ذ عاشورے روژه دے اونيسي، او څوک چه نۀ غواړي، نۀ دے نيسي.

**۴۹۲:** حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ دَخَلَ عَلَيْهِ الْاَشْعَثُ وَهُوَ يَطْعَمُ فَقَالَ الْيَوْمَ عَاشُوْرَآءُ فَقَالَ كَانَ يُصَامُ قَبْلَ اَنْ يَّنْزِلَ رَمَضَانُ فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ تُرِكَ فَادْنُ

**۴۹۲:** محمود. عبيدالله. اسرائيل. منصور. ابراهيم نخعي. علقمه. حضرت عبدالله نه روايت کوي، ذ عاشورے په ورځ اشعث بن قيس ماته راغے، ما هغه وخت ډوډي خوړله. اشعث اووے، نن خو ذ عاشورے ورځ ده، ابن مسعود جواب ورکۀ، ذ رمضان روژو نه مخکښ به ذ عاشورے روژه نيولے شوه، خو ذ رمضان نه پس ذ عاشورے روژه ختمه شوه، راځه تۀ هم

فَكُلْ.

اُوخوره.

۴۹۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ يَوْمُ عَاشُوْرَاءُ تَصُوْمُهٗ قُرَيْشٌ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُوْمُهٗ فَلَمَّا قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ صَامَهٗ وَ اَمَرَ بِصِيَامِهٖ فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ كَانَ رَمَضَانُ الْفَرِيْضَةَ وَ تُرِكَ عَاشُوْرَآءُ فَكَانَ مَنْ شَآءَ صَامَهٗ وَمَنْ شَآءَ لَمْ يَصُمْهُ.

۴۹۳: محمد بن مثني. هشام. عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي، ذ هغې بيان دے ذ جاهليت زمانه كښې به قريش خلقو ذ عاشورے روژه نيوله، او نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به هم دا روژه نيوله، كوم وخت چه حضورﷺ په هجرت مدينې ته راغے، نو هم ئے روژه اونيوله، او مسلمانانو ته ئے هم ذ روژے نيولو حكم اوكړ خو كوم وخت چه ذ رمضان روژے فرض شوے، نو ذ عاشورے روژه ترک كړے شوه. او اوفرمائيلے شو، چه ذ چا زړه غواړي (ذ عاشورے) روژه دے اونيسي، او څوک چه نۀ غواړي نۀ دے نيسي.

باب۱۱۷: اَيَّامًا مَّعْدُوْدَاتٍ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ وَ عَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ وَ اَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ. وَ قَالَ عَطَآءٌ يُفْطِرُ مِنَ الْمَرَضِ كُلِّهٖ كَمَا قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَ قَالَ الْحَسَنُ وَ اِبْرٰهِيْمُ فِي الْمُرْضِعِ وَالْحَامِلِ اِذَا خَافَتَا عَلٰى اَنْفُسِهِمَا اَوْ وَلَدِهِمَا تُفْطِرَانِ ثُمَّ تَقْضِيَانِ وَ اَمَّا الشَّيْخُ الْكَبِيْرُ اِذَا لَمْ يُطِقِ الصِّيَامَ فَقَدْ اَطْعَمَ اَنَسٌ بَعْدَ مَا كَبِرَ عَامًا اَوْ عَامَيْنِ كُلَّ

باب۱۱۷: آيت: اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا الخ: ذ اللّٰه تعالٰي قول ذ څو مقرره ورځو روژے فرض شوے دي، بيا چه تاسو كښې څوک ناروغه وي، يا په سفر وي، نو هغه دے نورو ورځو كښې اونيسي، او ذ چا چه ذ روژے طاقت نۀ وي، ذ هغوي په ذمه بدله كښې ذ يو فقير طعام دے. بيا چه څوک په خوښې نيكي اوكړي، نو ذ هغۀ ذ پاره ښۀ ده. او روژه ستاسو ذ پاره بهتره ده، كه تاسو پوهيږئ عطاء وائي، هرے بيماري كښې روژه پريښودے شي، څنگه چه ذ اللّٰه تعالٰي ارشاد دے. حسن بصري او ابراهيم وائي، كه يوے پئے وركونكے يا حاملے ښځے ته ذ خپل ځان يا ذ بچي ذ ځان تلو انديښنه وي، نو هغه روژه پريښودے شي بيا ورستو دے قضا اوكړي، او ډير ضعيف يعنے شيخ كبير كه روژه نشي نيوے، نو هغۀ له پكار دي، چه فديه ادا كړي، حضرت انسؓ چه ډير بوډا شو، او ذ روژے نيولو طاقت ئے پاتے نۀ شو، نو يو

يَوْمٍ مِسْكِيْنًا خُبْزًا وَ لَحْمًا وَ أَفْطَرَ قِرَآءَةُ الْعَامَّةِ يُطِيْقُوْنَهُ وَهُوَ أَكْثَرُ.

كال يا دوه كاله هغهٔ روژه اونه نيوله، او دَ فديے په طور به ئے په يو مسكين غوښه ډوډي خوروله. دے آيت كښې تولو خلقو يُطِيْقُوْنَهُ لوستے دے.

۴۹۴: حَدَّثَنِيْ إِسْحٰقُ أَخْبَرَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ إِسْحٰقَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ عَطَاءٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍؓ يَقْرَأُ وَ عَلَى الَّذِيْنَ يُطَوَّقُوْنَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَيْسَتْ بِمَنْسُوْخَةٍ هُوَ الشَّيْخُ الْكَبِيْرُ وَالْمَرْأَةُ الْكَبِيْرَةُ لَا يَسْتَطِيْعَانِ أَنْ يَّصُوْمَا فَلْيُطْعِمَانِ مَكَانَ كُلِّ يَوْمٍ مِسْكِيْنًا.

۴۹۴: اسحاق. روح. زكريا. عمرو بن دينار. عطاء روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے. ما دَ حضرت ابن عباسؓ نه دا آيت داسے لوستل اوْريدلے دي: وَ عَلَى الَّذِيْنَ يُطَوَّقُوْنَهُ: يعني كوم خلق چه دَ روژے طاقت نهٔ لري، دَ هغوي په يو غريب باندے طعام خوړل دي. ابن عباسؓ وائي، دا آيت منسوخ نهٔ دے، بلكه ددے حكم دَ ضعيف سړو او بوډے ښځو په حق كښې دے چه روژه نشي نيولے، نو هغوي دے هره ورځ يو مسكين باندے ډوډي خوروي.

## بَابٌ ۱۱۸: قَوْلُهُ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ.

باب ۱۱۸: آيت: فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ: دَ الله تعالىٰ قول، چه كوم سړي باندے رمضان راشي، هغه دے دَ تولے مياشتے روژے اونيسي.

۴۹۵: حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلٰى حدثنا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ قَرَأَ فِدْيَةٌ طَعَامُ مَسَاكِيْنَ قَالَ هِيَ مَنْسُوْخَةٌ.

۴۹۵: عياش بن وليد. عبدالاعلىٰ عبيدالله. حضرت نافع نه روايت كوي، هغهٔ اووے، ابن عمرؓ اوفرمانيل، دا پوره آيت يعني: وَ عَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهُ، الخ دَ دے ايت يعني فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ سره منسوخ شوى دے

۴۹۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ مَوْلَى سَلَمَةَ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَ عَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ كَانَ مَنْ أَرَادَ أَنْ يُفْطِرَ وَ يَفْتَدِيَ

۴۹۶: قتيبه. بكر بن مضر. عمرو بن حارث بكير بن عبدالله. يزيد بن ابي عبيد دَ حضرت سلمه بن اكوع نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، كوم وخت چه دا آيت نازل شولو: وَ عَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهُ فِدْيَةٌ: يعني تندرست سړے هم كه غواړي روژه دے نهٔ نيسي، او فديه دے ادا كړي نو دے نه پس بيا دا آيت نازل شولو:

حَتّٰى نَزَلَتْ اٰيَةُ الَّتِيْ بَعْدَهَا فَنَسَخَتْهَا مَاتَ بُكَيْرٌ قَبْلَ يَزِيْدَ.

فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ: نو دے آیت سره هغه مخکنے آیت منسوخ کړے شو.

**بَابُ ۱۱۹: قَوْلِهٖ اُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ اِلٰى نِسَآءِكُمْ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَ اَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَ عَفَا عَنْكُمْ فَالْاٰنَ بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ.**

**باب ۱۱۹: آیت: اُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ اِلٰى نِسَآئِكُمْ الخ:** دَ اللّٰه تعالٰي فرمائيل، دَ روژو په شپو کښې خپلو ښځو سره بے حجابه کیدل په تاسو حلال شو، هغه ستاسو پوشاک دے، او تاسو دَ هغوي پوشاک ئے. اللّٰه ته معلومه ده، چه تاسو خپل ځانونو سره خیانت کولو، نو تاسو ئے معاف کړلئے. بیا تاسو خپلو ښځو سره یو ځائے کیږئے، او طلب کوئے، څه چه اللّٰه تعالٰي تاسو دَ پاره لیکلے دي.

۴۹۷: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ اِسْرَآءِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَاءِ ح وَ حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ لَمَّا نَزَلَ صَوْمُ رَمَضَانَ كَانُوْا لَا يَقْرَبُوْنَ النِّسَآءَ رَمَضَانَ كُلَّهٗ وَ كَانَ رِجَالٌ يَخُوْنُوْنَ اَنْفُسَهُمْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَ عَفَا عَنْكُمْ.

۴۹۷: عبیداللّٰه اسرائیل. ابو اسحاق. براء بن عازب (دویم سند) احمد بن عثمان. شریح بن مسلمه. ابراهیم بن یوسف. حضرت براء بن عازب نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، دَ رمضان روژے چه فرض شوے، نو خلق به دَ شپے هم دَ خپلو ښځو نه جدا اوسیدل تردے چه ټول رمضان به تیر شولو، نو هغه وخت اللّٰه تعالٰي دا آیت نازل کړلو: عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ: یعني اللّٰه ته معلومه ده، چه تاسو ځان سره خیانت کولو، نو تاسو نے معاف کړلئے.

**بَابُ ۱۲۰: قَوْلِهٖ وَ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى**

**باب ۱۲۰: آیت: كُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ:** ارشاد باري تعالٰي چه خورئے، څکئے تردے چه تاسو ته دَ صبا سپینه لیکه دَ تورے لیکے نه جدا صفا په نظر راشي، بیا دَ شپے پورے روژه پوره کړئے، او خو پورے چه تاسو جمات کښې اعتکاف کښې یئے، نو

اللَّيْلِ وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَ اَنْتُمْ عَاكِفُوْنَ فِي الْمَسَاجِدِ اِلَى قَوْلِهٖ يَتَّقُوْنَ' اَلْعَاكِفُ الْمُقِيْمُ.

خپلو بيبيانو سره صحبت مه كوي' دا د الله حدونه دي' نو دې ته نږدې مه ورځئ' دا شان الله خپل آيتونه خلقو ته بيانوي چه ځان بچ ساتي. د عاكف معنی دي مقيم اقامت واله.

۴۹۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيٍّ قَالَ اَخَذَ عَدِيٌّ عِقَالًا اَبْيَضَ وَ عِقَالًا اَسْوَدَ حَتّٰى كَانَ بَعْضُ اللَّيْلِ نَظَرَ فَلَمْ يَسْتَبِيْنَا فَلَمَّا اَصْبَحَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ جَعَلْتُ تَحْتَ وِسَادَتِيْ قَالَ اِنَّ وِسَادَتَكَ اِذًا لَعَرِيْضٌ اِنْ كَانَ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ وَالْاَسْوَدُ تَحْتَ وِسَادَتِكَ.

۴۹۸: موسي بن اسماعيل' ابو عوانه' حصين' عامر شعبي. حضرت عدي بن حاتمؓ نه روايت كوي' هغه اووې' ما دوه تارونه تور او سپين اوساتل' او د شپې م كتل' او څو پورې چه هغې كښې څه فرق راته معلوم نه شو' نو خوراک م كولو' سحر ته م د حضور صلي الله عليه وسلم په خدمت كښې عرض اوكه' يا رسول الله' د شپې ما داسې داسې اوكړل' دوه تور او سپين تارونه (يا' مزي) م ذ خپل بالښت لاندې ايښې وو' حضورؐ د عدي خبرې آوريدو سره خندا كښې اوفرمائيل' ستا بالښت ډير لوئې دې' چه ذ سحر سپينه كرښه او د شپې توره كرښه ذ هغې لاندې راغله.

۴۹۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مُطَرِّفٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ ابْنِ اَبِيْ حَاتِمٍؓ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ اَهُمَا الْخَيْطَانِ قَالَ اِنَّكَ لَعَرِيْضُ الْقَفَا اِنْ اَبْصَرْتَ الْخَيْطَيْنِ ثُمَّ قَالَ لَا بَلْ هُوَ سَوَادُ اللَّيْلِ وَ بَيَاضُ النَّهَارِ.

۴۹۹: قتيبه بن سعيد. جرير. مطرف. شعبي. حضرت عدي بن حاتمؓ نه روايت كوي' هغه اووې' ما ذ حضورؐ نه تپوس اوكه' دې آيت كښې د تور او سپين تار نه څه مطلب دې' آيا ما چه څه اوكړل' دغه ترې مطلب دې. حضورؐ ورته اوفرمائيل' ته هم عجيبه نادان ئې' چه ذ شپې تور او سپين مزي گورې' حالانكه ذ دې نه د شپې توروالې او ذ سحر سپين والې مراد دې.

۵۰۰: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ غَسَّانَ مُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ

۵۰۰: سعيد بن ابي مريم. ابو غسان. محمد بن مطرف. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت كوي' ذ هغه بيان دې' كوم وخت چه د

سَعْدٍ قَالَ وَ اُنْزِلَتْ وَ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ وَلَمْ يُنْزَلْ مِنَ الْفَجْرِ وَ كَانَ رِجَالٌ اِذَا اَرَادُوا الصَّوْمَ رَبَطَ اَحَدُهُمْ فِيْ رِجْلَيْهِ الْخَيْطَ الْاَبْيَضَ وَالْخَيْطَ الْاَسْوَدَ وَلَا يَزَالُ يَاْكُلُ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهٗ رُؤْيَتُهُمَا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ بَعْدَهٗ مِنَ الْفَجْرِ فَعَلِمُوْا اِنَّمَا يَعْنِي اللَّيْلَ مِنَ النَّهَارِ.

كُلُوْا وَاشْرَبُوْا: آيت نازل شولو، نو ځنې خلقو خپله پښه كښې تور او سپين تار اوتړلو او د شپې چه څو پورې دې تارونو كښې ورته څۀ فرق په نظر نۀ راتلو، نو خوراك څكاك به ئې كولو، بيا دې نه پس د (من الفجر) الفاظ نازل شو، نو ټولو ته پته اولګيدله، چه د تور تار نه مراد شپه او د سپين تار نه مراد ورځ ده (يعني د صبح صادق د رڼا پورې د خوراك څكاك اجازت دے).

**بَابُ ۱۲۱: قَوْلِهٖ وَلَيْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى وَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ.**

**باب ۱۲۱:** آيت: وَلَيْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا الخ: د اللّٰه تعالٰي ارشاد، دا څۀ نيكي نۀ ده، چه كورونو ته د شا د طرف نه په ديوال راټوپ سره داخل شئ. بلكه نيكي داده، چه سړے پرهيزګاري اوكړي، او كورته په دروازه راشي، او د اللّٰه نه ويره كوئ، چه خلاصي بيامومئ، د دے تفسير.

۵۰۱: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰي عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ كَانُوْا اِذَا اَحْرَمُوْا فِي الْجَاهِلِيَّةِ اَتَوُا الْبَيْتَ مِنْ ظَهْرِهٖ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَيْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى وَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا.

۵۰۱: عبيدالله بن موسٰي. اسرائيل. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازب نه روايت كوي، د هغۀ بيان دے، د جاهليت زمانه كښې چه عرب خلق به د احرام حالت كښې خپل كور ته راتلل، نو د مكان د شا د طرف نه په ديوال راټوپ كولو سره يا د چهت طرف نه به راتلل، دے د پاره اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل كړلو.

**بَابُ ۱۲۲: قَوْلِهٖ وَقَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ فَاِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ.**

**باب ۱۲۲:** آيت: قَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ الخ تفسير. د اللّٰه تعالٰي قول، او تاسو دوي قتلوئ تر دے چه د فتنې او فساد خاتمه اوشي، او دين خالص د اللّٰه غالب شي، او زياتے مۀ كوئ، خو په ظالمانو.

۵۰۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَتَاهُ رَجُلَانِ فِيْ فِتْنَةِ ابْنِ الزُّبَيْرِؓ فَقَالَا اِنَّ النَّاسَ صَنَعُوْا وَ اَنْتَ ابْنُ عُمَرَ وَ صَاحِبُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا يَمْنَعُكَ اَنْ تَخْرُجَ فَقَالَ يَمْنَعُنِيْ اَنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ دَمَ اَخِيْ فَقَالَا اَلَمْ يَقُلِ اللّٰهُ وَ قَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ فَقَالَ قَاتَلْنَاهُمْ حَتّٰى لَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ وَ كَانَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ وَ اَنْتُمْ تُرِيْدُوْنَ اَنْ تُقَاتِلُوْا حَتّٰى تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّ يَكُوْنَ الدِّيْنُ لِغَيْرِ اللّٰهِ وَ زَادَ عُثْمَانُ بْنُ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ فُلَانٌ وَ حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ عَنْ بَكْرِ بْنِ عَمْرٍو الْمُعَافِرِيِّ اَنَّ بُكَيْرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَهُ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ رَجُلًا اَتَى ابْنَ عُمَرَؓ فَقَالَ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ مَا حَمَلَكَ عَلٰى اَنْ تَحُجَّ عَامًا وَّ تَعْتَمِرَ عَامًا وَ تَتْرُكَ الْجِهَادَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ قَدْ عَلِمْتَ مَا رَغَّبَ اللّٰهُ فِيْهِ قَالَ يَا ابْنَ اَخِيْ بُنِيَ الْاِسْلَامُ عَلٰى خَمْسٍ اِيْمَانٍ بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ الصَّلٰوةِ الْخَمْسِ وَ صِيَامِ

۵۰۲: محمد بن بشار. عبدالوهاب. عبیدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، دَ ابن زبیرؓ دَ فتنے زمانه کښې دوه سړي ماله راغلل، او ونیلے، تاسو وینئے، خلقو کښې څنګه فتنه او فساد راپورته شوے دے حالانکه تاسو دَ حضرت عمرؓ خوئے او دَ رسول اکرم صلي الله علیه وسلم صحابي یئے دے وخت ولے نهٔ راپاسئے، او دا فتنه او فساد ولے نهٔ بندوئے. ما ورته اووے زهٔ ځکه خاموش یم، چه الله مسلمان دَ مسلمان دَ خون کولو نه منع کړے دے، هغه اووے، آیا الله دا نهٔ دي فرمائیلے، چه دوي سره جنګیږئے. تردے چه فتنه ختمه شي، هغهٔ اووے، دا کار مونږ دَ حضور صلي الله علیه وسلم په زمانه مبارکه کښې کړے دے، او دے پورے مو کړے دے، چه دَ شرک او کفر فتنه ختمه شوه او خالص دَ الله دین پاتے شو، اوس تهٔ دا غواړے، چه جنګ سره فتنه زیاته شي، عثمان بن صالح وائي، عبدالله بن وهب دا هدیث دغسے بیان کړے دے. عبدالله بن لهیعه، حیوة بن شریح، بکر بن عمرو معافري، بکیر بن عبدالله، نافع نه روایت کوي، یو سړے عبدالله بن عمرؓ له راغے، او وئیلے اے ابا عبدالرحمٰن، دا په تاسو څهٔ اوشو، چه یو کال حج کوئے، او یو کال عمره کوئے، او جهاد في سبیل الله مو ترک کړے دے، حالانکه تاسو ته معلومه ده، چه الله تعالٰي دَ جهاد لوئے فضیلت بیان کړے دے. او دَ جهاد کولو رغبت ئے ورکړے دے. هغوي ورته اوفرمائیل، اے خما وراره، دَ اسلام بنیاد په پنځو څیزونو دے: اول دَ توحید او رسالت اقرار کول، دویم پنځه وخته مونځ، دریم دَ رمضان روژے، څلورم زکٰوة ادا کول، پنځم حج.

رَمَضَانَ وَ اَدَاءِ الزَّكٰوةِ وَ حَجِّ الْبَيْتِ قَالَ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَلَا تَسْمَعُ مَا ذَكَرَ اللّٰهُ فِيْ كِتَابِهٖ وَ اِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا (اِلٰى قَوْلِهٖ) اَمْرِ اللّٰهِ وَ قَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ قَالَ فَعَلْنَا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ الْاِسْلَامُ قَلِيْلًا فَكَانَ الرَّجُلُ يُفْتَنُ فِيْ دِيْنِهٖ اِمَّا قَتَلُوْهُ وَ اِمَّا يُعَذِّبُوْهُ حَتّٰى كَثُرَ الْاِسْلَامُ فَلَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ قَالَ فَمَا قَوْلُكَ فِيْ عَلِيٍّ وَّ عُثْمَانَ قَالَ اَمَّا عُثْمَانُ فَكَانَ اللّٰهُ عَفَا عَنْهُ وَ اَمَّا اَنْتُمْ فَكَرِهْتُمْ اَنْ تَعْفُوْا وَ اَمَّا عَلِيٌّ فَابْنُ عَمِّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَخَتَنُهٗ وَ اَشَارَ بِيَدِهٖ فَقَالَ هٰذَا بَيْتُهٗ حَيْثُ تَرَوْنَ.

دے نه پس هغے سړي اووے، آیا تا دَ الله دا حکم نۀ دے اوریدلے، که دَ مسلمانانو دوه ډلے خپلو کښې جنګ کوي، نو هغوي کښې صلح کوئے، او که یوه ډله اونۀ مني، او په بله ډله زیاتے کوي، نو بیا هغوي سره هغه وخته پورے جنګیږئے، تردے چه هغوي دَ الله حکم اومني، عبدالله بن عمرؓ ورته اووے مونږ دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم زمانه کښې دا کار کړے دے، حالانکه هغه وخت مسلمانان ډیر کم او کافر ډیر زیات وو. دغه کافرو به مسلمانان پریشانه کول، او دَ هغوي دین به ئے خرابولو. آخر دَ مسلمانانو تعداد زیات شو، فتنه ختمه شوه. هغے سړي بیا اووے، بنه دا خو اوفرمائے، چه دَ علیؓ او عثمانؓ متعلق ستاسو څۀ خیال دے، عبدالله بن عمرؓ جواب ورکه، دَ حضرت عثمانؓ قصور الله تعالیٰ معاف کړے دے، او تاسو اوس هم هغۀ ته بد وائے، او حضرت علیؓ خو دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ ترۀ خوئے او زوم دے، دَ هغۀ کور دَ حضورؐ کور سره لږیدلے وو، دَ هغۀ په حقله دَ څۀ وئیلو ګنجائش نشته.

## بَابٌ ۱۲۳ : قَوْلِهٖ وَ اَنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ وَ اَحْسِنُوْا اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ التَّهْلُكَةِ وَالْهَلَاكُ وَاحِدٌ.

**باب ۱۲۳ :** آیت: وَ اَنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ الخ تفسیر: دَ الله تعالیٰ ارشاد، دَ الله په لار کښې خرچ کوئے، او دَ خپله لاسه هلاکت کښې مۀ غورځیږئے، او احسان کوئے، الله تعالیٰ احسان کونکو سره محبت کوي. تهلکه او هلاکت یو معني دي، یعني هلاکت، بربادي.

۵۰۳ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا النَّضْرُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا وَائِلٍ عَنْ

۵۰۳ : اسحٰق. نضر. شعبه. سلیمان. حضرت ابو وائلؒ نه روایت کوي، دَ هغۀ بیان دے، ما دَ حذیفه بن یمان نه واوریدل دا آیت: انفقوا فی سبیل الله الخ یعني دَ

حَنِيفَةَ وَ اَنْفِقُوا فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا تُلْقُوا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ قَالَ نَزَلَتْ فِي النَّفَقَةِ.

الله په لار کښې خرچ کوئ' او د خپله لاسه هلاکت کښې مه غرځېږئ' د الله په لار کښې د خرچ کولو متعلق نازل شوې دے.

بَابُ ۱۲۴ : قَوْلُهُ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيْضًا اَوْ بِهِ اَذًى مِنْ رَّأْسِهِ.

باب ۱۲۴ : آيت: فمن كان منكم مريضا' او به اذى الخ تفسير: د الله تعالي ارشاد' كه تاسو كښې څوک ناروغه وي' يا د هغه سر كښې تكليف وي.

۵۰۴ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْاَصْبَهَانِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَعْقِلٍ قَالَ قَعَدْتُ اِلٰى كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ فِيْ هٰذَا الْمَسْجِدِ يَعْنِي مَسْجِدَ الْكُوْفَةِ فَسَاَلْتُهُ عَنْ فِدْيَةٍ مِنْ صِيَامٍ فَقَالَ حُمِلْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقَمْلُ يَتَنَاثَرُ عَلٰى وَجْهِيْ فَقَالَ مَا كُنْتُ اُرٰى اَنَّ الْجَهْدَ قَدْ بَلَغَ بِكَ هٰذَا اَمَا تَجِدُ شَاةً قُلْتُ لَا قَالَ صُمْ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اَوْ اَطْعِمْ سِتَّةَ مَسَاكِيْنَ لِكُلِّ مِسْكِيْنٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ طَعَامٍ وَ اَحْلِقْ رَأْسَكَ فَنَزَلَتْ فِيَّ خَاصَّةً وَّ هِيَ لَكُمْ عَامَّةً.

۵۰۴ : آدم. شعبه. عبدالرحمن بن اصبهاني نه روايت كوي' عبدالله بن مغفل نه ما واوريدل' زۀ د كوفې جمات كښې كعب بن عجره سره ناست ووم' ما د هغه نه د روژې د فديې باره كښې تپوس او كۀ' هغه اوفرمائيل' زۀ خلقو د نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې پيش كړم' هغه وخت خما د سر نه سپږې (جوئيں) په مخ راپريوتلې. ليدو سره حضور صلي الله عليه وسلّم راته اوفرمائيل تۀ خو ډير تكليف كښې ئې' تا سره څۀ چيلئې نشته' ما عرض اوكۀ' نه' حضورﷺ ارشاد اوفرمائيلو' بنۀ دۀ' درې روژې اونيسه يا شپږ مسكينانو باندې طعام اوخوروه' چه هر مسكين ته نيم صاع غله اورسي. او خپل سر اوخريه' كعب وائي' دا آيت (يعني فمن كان منكم مريضًا) خاص ما د پاره نازل شوې وو' خو د دې حكم تاسو ټولو د پاره يكسان (يو شان) دې.

بَابُ ۱۲۵ : قَوْلُهُ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ.

باب ۱۲۵ : آيت: فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ: تفسير: كوم سړې چه د عمرې نه پس د حج احرام اوتړي.

۵۰۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عِمْرَانَ اَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رض

۵۰۵ : مسدد. يحيي. عمران. ابي بكر. ابو رجاء. عمران بن حصين نه روايت كوي' د هغه بيان دې' كوم وخت چه تمتع آيت نازل شو' نو مونږ رسول

قَالَ اُنْزِلَتْ اٰيَةُ الْمُتْعَةِ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فَفَعَلْنَاهَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَنْزِلْ قُرْاٰنٌ يُحَرِّمُهُ وَلَمْ يَنْهَ عَنْهَا حَتّٰى مَاتَ قَالَ رَجُلٌ بِرَأْيِهِ مَا شَآءَ.

الله صلي الله عليه وسلم سره تمتع او كړله بيا دے نه پس څۀ داسے آيت رانغے چه د هغے د رو نه د تمتع نه منع شوے وي ترديے چه حضورؐ د دے دُنيا نه تشريف يوړلو صرف حضرت عمرؓ دے چه خپله رائے جدا لري.

## بَابُ ۱۲٦ : قَوْلِهٖ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِنْ رَّبِّكُمْ.

باب ۱۲٦ : آيت: لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِنْ رَّبِّكُمْ: تفسير: د حج زمانه كښې په تاسو ګناه نشته، چه دَ خپل رب فضل تلاش كړئے.

۴۰۵٦ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ كَانَتْ عُكَاظُ وَ مَجِنَّةُ وَ ذُوا الْمَجَازِ اَسْوَاقًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَتَاَثَّمُوْا اَنْ يَّتَّجِرُوْا فِي الْمَوَاسِمِ فَنَزَلَتْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِنْ رَّبِّكُمْ فِيْ مَوَاسِمِ الْحَجِّ.

۴۰۵٦ : محمد. سفيان بن عيينه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي هغۀ اووے د جاهليت زمانه كښې درے بازارونه وو عكاظ. مجنه. ذوالمجاز. دَ حج زمانه كښې دے بازارونو كښې خلقو تجارت كولو، خو دَ مسلمانيدو نه پس ئے دا معيوب ګڼړلو، نو هغه وخت دا آيت نازل شو، چه دَ حج زمانه كښې تجارت كولو كښې څۀ ګناه نشته.

## بَابُ ۱۲۷ : قَوْلِهٖ ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ.

باب ۱۲۷ : آيت: ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ: تفسير: دَ اللّٰه تعالي قول دَ كوم ځائے نه چه خلق واپس كيږي، دَ هغے ځائے نه تاسو هم واپس كيږئے.

۴۰۵۷ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَازِمٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ كَانَتْ قُرَيْشٌ وَّمَنْ دَانَ دِيْنَهَا يَقِفُوْنَ بِالْمُزْدَلِفَةِ وَ كَانُوْا يُسَمَّوْنَ الْحُمُسَ وَ كَانَ سَآئِرُ الْعَرَبِ يَقِفُوْنَ بِعَرَفَاتٍ فَلَمَّا جَآءَ الْاِسْلَامُ اَمَرَ اللّٰهُ نَبِيَّهُ

۴۰۵۷ : علي بن عبدالله. محمد بن حازم. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، دَ هغے بيان دے، قريش او دَ هغوي هم خياله خلقو به مزدلفه كښې وقوف كولو، او هغے ته به ئے حمس وئيلے او دَ عربو نورو قبائلو به عرفات كښې قيام كولو. دَ اسلام راتلو نه پس اللّٰه تعالي رسول اللّٰه ته حكم او كړلو، چه ټولو له

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّأْتِيَ عَرَفَاتٍ ثُمَّ يَقِفُ بِهَا ثُمَّ يَفِيضُ مِنْهَا فَذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالٰى ثُمَّ اَفِيْضُوا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ.

عرفات كښې وقوف پكار دي، او واپسي كښې دې مزدلفه كښې ايساريږي، نو دا آيت (ثُمَّ افيضوا من حيث افاض الناس) دې مقصد ذ پاره نازل شوې وو.

۵۰۸: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ اَخْبَرَنِيْ كُرَيْبٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ يَطَوَّفُ الرَّجُلُ بِالْبَيْتِ مَا كَانَ حَلَالًا حَتّٰى يُهِلَّ بِالْحَجِّ فَاِذَا رَكِبَ اِلٰى عَرَفَةَ فَمَنْ تَيَسَّرَ لَهُ هَدِيَّةٌ مِّنَ الْاِبِلِ اَوِ الْبَقَرِ اَوِ الْغَنَمِ مَا تَيَسَّرَ لَهُ مِنْ ذٰلِكَ اَيَّ ذٰلِكَ شَاءَ غَيْرَ اِنْ لَّمْ يَتَيَسَّرْ لَهُ فَعَلَيْهِ ثَلٰثَةُ اَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَ ذٰلِكَ قَبْلَ يَوْمِ عَرَفَةَ فَاِنْ كَانَ اٰخِرُ يَوْمٍ مِّنَ الْاَيَّامِ الثَّلٰثَةِ يَوْمَ عَرَفَةَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ ثُمَّ لِيَنْطَلِقْ حَتّٰى يَقِفَ بِعَرَفَاتٍ مِنْ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلٰى اَنْ يَكُوْنَ الظَّلَامُ ثُمَّ لِيَدْفَعُوْا مِنْ عَرَفَاتٍ اِذَا اَفَاضُوْا مِنْهَا حَتّٰى يَبْلُغُوْا جَمْعًا الَّذِيْ يَبِيْتُوْنَ بِهٖ ثُمَّ لِيَذْكُرِ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّ اَكْثِرُوا التَّكْبِيْرَ وَالتَّهْلِيْلَ قَبْلَ اَنْ تُصْبِحُوْا ثُمَّ اَفِيْضُوْا فَاِنَّ النَّاسَ كَانُوْا يَفِيْضُوْنَ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُو اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ،

۵۰۸: محمد بن ابي بكر. فضيل بن سليمان. موسي بن عقبه. كريب. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې كوم سړې چه تمتع اوكړي، نو ذ عمرې كولو نه پس دې احرام كوز كړي، او بيا دې ذ حج احرام تړلو پورې ذ بيت اللّٰه طواف كوي بيا دې ذ حج احرام اوتړي، عرفات ته دې لاړ شي، او ذ حج نه پس چه كوم څناور ورته حاصل شي لكه اُوښ، غوا يا چيلئې وغيره، نو قرباني دې كړي، او ذ چا چه ذ قرباني طاقت نهٔ وي، هغهٔ له ذ حج نه مخكښې درې روژې نيول پكار دي، او كه دريمه روژه ذ عرفات په ورځ راشي، نو هيڅ حرج نشته، عرفات ته چه اورسي، نو ذ مازيگر نه واخله ذ شپې ذ تاريكي پورې دې ايسار شي. بيا دې تولو سره واپس شي. بيا دې تولو سره مزدلفه كښې ذ شپې وقوف اوكړي (ايسار شي) او ذ شپې دې يادِ الٰهي او تكبير (اللّٰه اكبر) او تهليل (لا اله الا اللّٰه) كښې مشغول اوسي. بيا دې سحر ته مزدلفې نه منٰي ته تولو سره واپس راشي، څنگه چه ذ اللّٰه تعالٰي ارشاد دې: ثم افيضوا من حيث افاض الناس: يعني بيا د هغې ځائې نه واپس شې، ذ كوم ځائې نه چه نور خلق واپس كيږي، او اللّٰه نه معافي غواړې، بيشكه اللّٰه تعالٰي بښونكې مهربانه دې، بيا د شيطان

حَتّٰى تَرْمُوا الْجَمْرَةَ.

كانږي اولئے.

بـــاب ۱۲۸: قَـــوْلـــــهٖ وَ مِـنْهُـمْ مَـنْ يَّـقُـوْلُ رَبَّـنَـا اٰتِـنَـا فِـــى الـدُّنْـيَـــا حَسَـنَـةً وَّ فِـــى الْاٰخِــرَةِ حَـسَــنَــةً وَّقِـنَـا عَـذَابَ النَّارِ.

باب ۱۲۸: آيت: وَ مِـنْـهُـمْ مَّنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً الـخ تفسير: دَ اللّٰه تعالٰي قول، دوي كښې څۀ خلق داسے دي، چه وائي، اے خمونږ ربه، خمونږ دُنيا هم ښۀ كړے او آخرت هم ښۀ كړے، او مونږ دَ دوزخ دَ اُور نه اوساتے.

ف: يا اللّٰه خمونږ هم دَ ټولو دواړه جهانه خائسته كړے. اللّٰهم آمين.

۵۰۹: حَـدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْـوَارِثِ عَـنْ عَبْـدِ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَـسٍؓ قَـالَ كَانَ النَّبِـيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّمَ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا اٰتِنَا فِـي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ.

۵۰۹: ابـو مـعـمـر. عـبـدالـوارث. عبدالعـزيـز. حـضـرت انـسؓ نـه روايـت كوي، دَ هغه بيان دے، رسول اللّٰـه صـلـي اللّٰه عليه وسلّم به هميشه دا شان دُعا كوله، اے الـلّٰــه مـونـږ تـه پـه دُنيا او آخرت دواړه ځايه نيكۍ عـنــايـت كـړے، او مـونـږ دَ دوزخ دَ عذاب نـه محفوظ كړے.

ف: مـونـږ هـم دَ الـلّٰـه پـاك نـه دغه سوال كوو، چه پاكه ربه خمونږ هم دواړه جهانه خائسته كړے. اللّٰهم آمين.

بـاب ۱۲۹: قَـوْلُـهٗ وَهُـوَ اَلَدُّ الْـخِـصَـامِ وَ قَـالَ عَـطَـآءٌ النَّـسْـلُ الْحَيْوَانُ.

باب ۱۲۹: آيت: وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ الخ تفسير: دَ اللّٰـه تـعـالٰي ارشاد، چه هغه سخت جګړمار دے. عطاء اوفرمائيل چه دَ نسل نه مراد حيوان دے.

۵۱۰: حَـدَّثَـنَـا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُـفْيَـانُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ اَبِىْ مُـلَيْـكَةَ عَنْ عَائِشَةَ تَرْفَعُهٗ قَالَ اَبْغَضُ الرِّجَالِ اِلَى اللّٰهِ الْاَلَدُّ الْخَصِمُ وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِي ابْنُ جُـرَيْـجٍ عَـنِ ابْـنِ اَبِــىْ مُـلَيْـكَةَ عَنْ عَـائِشَةَ عَـنِ الـنَّبِـيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۱۰: قبيـــصـــه. ســـفـيـــان ثـوري. ابـن جـريـج. ابـن ابـي مـلـيـكـه. بـي بـي عـائشےؓ نـه روايـت كـوي، الـلّٰـــه تـعـالٰـي دَ ټـولـو نـه زيـات هغـه څـوک نـاخـوښـوي، چـه خـصـومـت (دشمني كـوونـكے) او جـګـړه كـونـكے وي. سـفـيـان ثـوري، ابـن جـريـج، ابـن ابي مليـكـه، بـي بي عـائشےؓ، حضور صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّم نـه پـورتـنے حديث روايت كوي.

**بـــاب ۱۳۰ : قَـــوْلُـــهٗ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ (اِلٰى) قَرِيْبٌ.**

**باب ۱۳۰ : آيت: اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ** الخ: دَ الله تعالي قول، آيا ستاسو دا خيال دے، چه تاسو به (بغير څۀ مشقت نه) جنت کښې داخل شئے، حالانکه په تاسو هغه وخت نۀ دے راغلے، کوم چه په مخکنو خلقو راغلے وو، هغوي سختۍ او تکليفونه برداشت کول.

**۴۱۱۵ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ اَبِيْ مُلَيْكَةَ يَقُوْلُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ حَتّٰى اِذَا سْتَيْأَسَ الرُّسُلُ وَ ظَنُّوْا اَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوْا خَفِيْفَةً ذَهَبَ بِهَا هُنَاكَ وَ تَلَا حَتّٰى يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ اَلَا اِنَّ نَصْرَ قَرِيْبٌ فَلَقِيْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ فَذَكَرْتُ لَهٗ ذٰلِكَ فَقَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ مَعَاذَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ مَا وَعَدَ اللّٰهُ رَسُوْلَهٗ مِنْ شَيْءٍ قَطُّ اِلَّا عَلِمَ اَنَّهٗ كَائِنٌ قَبْلَ اَنْ يَّمُوْتَ وَلٰكِنْ لَمْ يَزَلِ الْبَلَاءُ بِالرُّسُلِ حَتّٰى خَافُوْا اَنْ يَّكُوْنَ مَنْ مَّعَهُمْ يُكَذِّبُوْنَهُمْ فَكَانَتْ تَقْرَؤُهَا وَ ظَنُّوْا اَنَّهُمْ قَدْ كُذِّبُوْا مُثَقَّلَةً.**

**۴۱۱۵** : ابراهيم بن موسي. هشام. ابن جريج. ابن ابي مليکه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، دَ دے آيت: حَتّٰى اِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ الخ: مطلب دا دے، چه رسولان نااُميده شو، نو دا خيال ئے راغے، چه خلقو سره دَ مدد کومه وعده شوے ده دَ هغے خلاف ورزي کيږي، نو هغه وخت دَ الله مدد راغے. دے نه پس ئے دا آيت اولوست: حَتّٰى يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ الخ: ابن ابي مليکه اووے، ما عروه ته دا خبره بيان کړه، هغۀ اووے. بي بي عائشےؓ فرمائيلے دي، الله خپل رسولانو سره هيڅ کله غلطه وعده نۀ ده فرمائيلے، البته انبيائے کرامو ته دا پريشاني ضرور اورسيده چه دَ هغوي دَ قوم خلقو هغوي دروغجن گنڑل نو کله چه هغوي ته مايوسي اوشوه، او دا خيال ئے اوکۀ، چرته داسے نۀ وي، چه دروغجن ثابت شو، نو هغه وخت الله تعالي ورته فتح عنايت کړله. بي بي عائشهؓ به دے آيت کښې د "كذبوا" دال مشدد ونيلو، او ابن عباسؓ به بلا تشديد ونيلو.

**بـاب ۱۳۱ : قَـوْلُـهٖ تَـعَالٰى نِسَاۤؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوْا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ وَ قَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ الاٰية.**

**باب ۱۳۱ : آيت: نِسَاۤؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ** الخ د الله تعالي فرمان، ښځے ستاسو، پټي (کهيتياں) دي، خپلو پټو کښې چه څنګه غوارئے، راځئے، مباشرت کوئے. ليکن ځان دَ پاره دَ مخکښې خيال مدِنظر ساتئے.

**۴۱۲۵ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا**

**۴۱۲۵** : اسحٰق. نضر. عبدالله بن عون. نافع مولي

النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ اِذَا قَرَءَ الْقُرْاٰنَ لَمْ يَتَكَلَّمْ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهُ فَاَخَذْتُ عَلَيْهِ يَوْمًا فَقَرَأَ سُوْرَةَ الْبَقَرَةِ حَتّٰى انْتَهٰى اِلٰى مَكَانٍ قَالَ تَدْرِيْ فِيْمَا اُنْزِلَتْ قُلْتُ لَا قَالَ اُنْزِلَتْ فِيْ كَذَا وَ كَذَا ثُمَّ مَضٰى. وَ عَنْ عَبْدِ الصَّمَدِ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ حَدَّثَنِيْ اَيُّوْبُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ فَأْتُوْا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ قَالَ يَأْتِيْهَا فِيْ. رَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيٰى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

ابن عمرؓ نه روايت کوي، ابن عمرؓ به د قرآن د تلاوت مينځ کښې چا سره خبرې نه کولې، يوه ورځ زهٔ هغهٔ له ورغلم، هغهٔ سورهٔ بقره لوستلو، کوم وخت چه دې آيت ته راورسيدلو: نساؤكم حرث لَّكُمْ: نو وې فرمائيل، تاته معلومه ده، چه دا آيت کوم وخت نازل شو، ما د لاعلمي اظهار اوکهٔ، نو هغه د نازليدو وجه بيان کړه، او بيا تلاوت کښې مشغول شولو (دويم سند) عبدالصمد، عبدالوارث، ايوب، نافع نه هغه د حضرت ابن عمرؓ نه بيان کوي چه: فَأْتُوْا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ: نه مطلب دا دې، چه سړې ښځې سره جماع اوکړي. بعضې خلقو به اغلام کولو. نو دې آيت کښې د دې فعل نه منع کړې شوې ده. دا حديث يحيي قطان، عبيدالله، نافع، ابن عمرؓ نه روايت کوي.

ف: اغلام: بچه بازي، هلک سره بدفعلي، يا دا چه ښځې سره د هلک په شان بدفعلي نه ده روا.

**۴۱۵۳:** حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ سَمِعْتُ جَابِرًا قَالَ كَانَتِ الْيَهُوْدُ تَقُوْلُ اِذَا جَامَعَهَا مِنْ وَّرَآئِهَا جَآءَ الْوَلَدُ اَحْوَلُ فَنَزَلَتْ نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوْا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ.

**۴۱۵۳:** ابو نعيم. سفيان. ابن منکدر. حضرت جابرؓ نه روايت کوي، د يهوديانو دا عقيده وه، چه کوم سړې خپلې ښځې سره د ورستو طرف نه کور والې کوي، نو د هغهٔ اولاد احول يعنې بهينګا وي، نو هغه وخت الله تعالي دا آيت نازل کهٔ. او د يهودو دا عقيده او خيال يې غلط اوګرځولو. او وې فرمائيل، چه څنګه غواړې، جماع کولې شې. خو لاره به مخکښې والا وي.

## بَابٌ ۱۳۲: قَوْلُهٗ وَ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ.

**باب ۱۳۲:** آيت: و اذا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فبلغن اجلهن الخ: د الله تعالي ارشاد، هر کله چه تاسو ښځو له طلاق ورکړې. بيا هغوي خپل عدت پوره کړي، نو بيائې ددې نه مهٔ منع کوي، چه خپلو خاوندانو سره نکاح اوکړي، هر کله چه خپلو کښې راضي شي.

ف: عدت: هغه موده چه ښځې ته د دويمې نکاح کولو اجازت په کښې نه وي د طلاقې ښځې د پاره درې مياشتې، ګنلو د پاره څلور مياشتې او لس ورځې، او اميدوارې د پاره تر زېږګون يا لنګون، د عدت حد مقرر دې.

۵۱۴: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ قَالَ حَدَّثَنِي مَعْقِلُ بْنُ يَسَارٍ قَالَ قَالَ كَانَتْ لِيْ أُخْتٌ تُخْطَبُ إِلَيَّ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ إِبْرٰهِيمُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الْحَسَنِ حَدَّثَنِيْ مَعْقِلُ بْنُ يَسَارٍ حَدَّثَنَا أَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ الْحَسَنِ أَنَّ أُخْتَ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ طَلَّقَهَا زَوْجُهَا فَتَرَكَهَا حَتّٰى انْقَضَتْ عِدَّتُهَا فَخَطَبَهَا فَأَبٰى مَعْقِلٌ فَنَزَلَتْ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ أَنْ يَّنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ.

۵۱۴: عبيدالله بن سعيد. ابو عامر عقدي. عباد بن راشد. حضرت حسن نه روايت کوي: د هغه بيان دې، د معقل بن يسار د تره لور (چچازاد بہن) ته د هغې خاوند طلاق ورکړ، او د عدت تيريدلو نه پس ئې ورسره نکاح کول اوغوښتل، نو معقل منع کړه، او ورته ئې اووې، ته داسې نه شې کولې، نو هغه وخت الله پاک ذکر شوې آيت نازل کړلو (دويم سند) ابراهيم بن طهمان، يونس، حسن، معقل بن يسار (دريم سند) امام بخاريؒ، ابو معمر، عبدالوارث، يونس، حسن بصري، معقل بن يسار نه روايت کوي، د هغۀ خور ته د هغې خاوند طلاق ورکړ، او ټول حديث ئې روايت کړې دې.

بَابُ ۱۳۳۳: قَوْلُهُ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا (الى) بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ، يَعْفُوْنَ يَهَبْنَ.

باب ۱۳۳۳: آيت: وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ أَزْوَاجًا الخ: د الله تعالٰي فرمان د کومو ښځو چه خاوندان مړۀ شي، هغوي له پکار دي، چه څلور مياشتې لس ورځې عدت پوره کړي، او کوم وخت چه عدت پوره شي، آخر پورې، يعفون معني دي، چه معاف ئې کړي.

۵۱۵: حَدَّثَنِيْ أُمَيَّةُ بْنُ بُسْطَامٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ حَبِيْبٍ عَنِ ابْنِ أَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ قُلْتُ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ

۵۱۵: اُميه بن بسطام. يزيد بن زريع. حبيب. ابن ابي مليکه. حضرت زبيرؓ نه روايت کوي، ما حضرت عثمان ته اووې، دا آيت: وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ الخ بل آيت سره منسوخ شوې دې، تاسو دا مصحف کښې ولې درج کوئې، هغۀ اوفرمائيل، اې ورارۀ، زۀ چه څۀ نازل

يَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا قَالَ قَدْ نَسَخَتْهَا الْاٰيَةُ الْاُخْرٰى فَلِمَ تَكْتُبُهَا اَوْ تَدَعُهَا قَالَ يَا ابْنَ اَخِيْ لَا اُغَيِّرُ شَيْئًا مِنْهُ مِنْ مَكَانِهٖ.

شوې دي، هغه ليکم، او هيڅ څيز به نه بدلوم (دَ آيت مطلب دا دې، چه متوفي له دَ خپلې ښځې دَ پاره دَ يو کال دَ خرچ وصيت کول پکار دي، او که هغه خپله دې موده کښې لاړه شي، نو بيا په تاسو څه ګناه نشته).

ف: (١) مصحف: کتاب، قرآن مجيد. (٢) متوفي: مړ شوې، وفات شوې.

٥١٦: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا شِبْلٌ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا قَالَ كَانَتْ هٰذِهِ الْعِدَّةُ تَعْتَدُّ عِنْدَ اَهْلِ زَوْجِهَا وَاجِبٌ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ فِيْ اَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَّعْرُوْفٍ قَالَ جَعَلَ اللّٰهُ لَهَا تَمَامَ السَّنَةِ سَبْعَةَ اَشْهُرٍ وَ عِشْرِيْنَ لَيْلَةً وَّصِيَّةً اِنْ شَآءَتْ سَكَنَتْ فِيْ وَصِيَّتِهَا وَ اِنْ شَآءَتْ خَرَجَتْ وَهُوَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى غَيْرَ اِخْرَاجٍ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فَالْعِدَّةُ كَمَا هِيَ وَاجِبٌ عَلَيْهَا زَعَمَ ذٰلِكَ عَنْ مُجَاهِدٍ وَ قَالَ عَطَآءٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَسَخَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ عِدَّتَهَا عِنْدَ اَهْلِهَا فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَآءَتْ وَهُوَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى غَيْرَ اِخْرَاجٍ قَالَ عَطَآءٌ اِنْ شَآءَتْ اِعْتَدَّتْ عِنْدَ اَهْلِهٖ وَ

٥١٦: اسحاق. روح. شبل. ابن ابي نجيح. مجاهد نه روايت کوي: وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ: نه مخکښې يعني دَ جاهليت زمانه کښې دَ يو کال عدّت ښځې له خپل کور کښې پوره کول ضروري ګڼړلې شو، هغه وخت دا آيت نازل شو، چه: غَيْرَ اِخْرَاجٍ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ: يعني که دا ښځې څلور مياشتې او، لس ورځې نه پس دَ خپلو خاوندانو دَ کورونو نه اوځي، نو دَ خاوندانو په وارثانو هيڅ ګناه نشته. دې آيت کښې يو کال پوره کولو دَ پاره اوه مياشتې او شل ورځې زياتې دَ خاوند په کور کښې دَ پوره کولو چه کوم حکم وو، هغه منسوخ شوې دې، که هغه غواړي، نو بل چرته هم عدّت پوره کولې شي، او دَ اللّٰه تعالٰي دَ دې قول: غير اخراج: دا مطلب دې، عطاء وائي، که هغه غواړي، نو دَ خپل خاوند کور والو کښې دې عدّت پوره کړي، او دَ خاوند دَ وصيت مطابق دې، دَ هغهٔ کور کښې اوسي. او که اوځي، او دَ دستور مطابق کار اوکړي، نو په تاسو هيڅ ګناه نشته، عطاء وائي. دې نه پس دَ ميراث آيت نازل شولو، او

سَكَنَتْ فِيْ وَصِيَّتِهَا وَ اِنْ شَآءَ تْ خَرَجَتْ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ قَالَ عَطَاءٌ ثُمَّ جَاءَ الْمِيْرَاثُ فَنَسِخَ السُّكْنٰى فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَآءَ تْ وَلَا سُكْنٰى لَهَا وَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا وَرْقَاءُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ بِهٰذَا وَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ نَسَخَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ عِدَّتَهَا فِيْ اَهْلِهَا فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَآءَ تْ لِقَوْلِ اللّٰهِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ نَحْوَهٗ.

ښځې ته حکم اوشو، چه کوم ځائے غواړي، خپل عدّت دې پوره کړي، اوس نان نفقه ذَ هغوي په ذمه ده. دا حديث محمد بن يوسف، ورقاء بن عمر، ابن ابي نجيح، مجاهد نه، او ابن ابي نجيح، عطاء بن ابي رباح، حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، دے آيت سره دَ ښځے دَ خپل خاوند کور کښې دَ عدّت پوره کولو حکم منسوخ شوے دے، او هغے ته اختيار ورکړے شو، چه کوم ځائے غواړي، عدّت دے تير کړي. د اللّٰه د قول غير اخراج په رڼړا کښې.

۵۱۷۷: حَدَّثَنَا حِبَّانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَوْنٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ جَلَسْتُ اِلٰى مَجْلِسٍ فِيْهِ عُظْمٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ وَ فِيْهِمْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِيْ لَيْلٰى فَذَكَرْتُ حَدِيْثَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ فِيْ شَاْنِ سُبَيْعَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَلٰكِنْ عَمَّهٗ كَانَ لَا يَقُوْلُ ذٰلِكَ فَقُلْتُ اِنِّيْ لَجَرِيْءٌ اِنْ كَذَبْتُ عَلٰى رَجُلٍ فِيْ جَانِبِ الْكُوْفَةِ وَ رَفَعَ صَوْتَهٗ قَالَ ثُمَّ خَرَجْتُ فَلَقِيْتُ مَالِكَ بْنَ عَامِرٍ اَوْ مَالِكَ بْنَ عَوْفٍ قُلْتُ كَيْفَ كَانَ قَوْلُ ابْنِ مَسْعُوْدٍ فِي الْمُتَوَفّٰى عَنْهَا زَوْجُهَا وَهِيَ حَامِلٌ فَقَالَ قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ اَتَجْعَلُوْنَ

۵۱۷۷: حبان بن موسٰي. عبداللّٰه بن مبارک. عبداللّٰه بن عون. حضرت بن سيرين نه روايت کوي، زهٔ يو مجلس کښې موجود ووم، دَ انصارو لوئے لوئے خلق او عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي ناست وو. ما هغه حديث بيان کهٔ، چه عبداللّٰه بن عتبه دَ سبيعه بنت حارث متعلق روايت کړے وو. عبدالرحمٰن اوويے، دَ عبداللّٰه بن عتبه تره (چچا) ابن مسعود خو دَ دے قائل نهٔ وو. ما لږ اوچت آواز سره اوويے، بيا خو ما دروغ ونيلو کښې لوئے جرات کړے دے، چه کوم سړے کوفه کښې ناست دے، په هغه دروغ ترم، دے نه پس زهٔ بهر اووتلم، نو عامر بن مالک يا مالک بن عوف (راوي ته شک دے) سره ملاقات اوشو، ما دَ هغهٔ نه دا تپوس اوکهٔ، او وايه، عبداللّٰه بن مسعود دَ هغے حامله ښځے متعلق څهٔ وائي چه دَ هغے خاوند مړ شي، هغهٔ جواب

عَلَيْهَا التَّغْلِيظَ وَلَا تَجْعَلُوْنَ لَهَا الرُّخْصَةَ لَنَزَلَتْ سُوْرَةُ النِّسَآءِ الْقُصْرٰى بَعْدَ الطُّوْلٰى وَ قَالَ اَيُّوْبُ عَنْ مُحَمَّدٍ لَقِيْتُ اَبَا عَطِيَّةَ مَالِكَ بْنَ عَامِرٍ.

او كۀ دَ ابن مسعود قول دے، چۀ حامله دَ وضع حمل نه پس دَ عدت نه خارج شي، ځكه چه دا آيت: و اولات الاحمال الخ وَالذين يتوفون: نه پس نازل شوے دے. ابو ايوب وائي، دَ محمد بيان دے، چه ما، مالک بن عامر سره ملاقات كړے وو.

## بـــاب ۱۳۴: قَـــوْلُــــهٗ حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى.

## باب ۱۳۴: آيت: حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَ الصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى: دَ اللّٰه تعالٰي ارشاد، مونځونه هميشكي سره كوئے خاص طور سره مينځنے مونځ، دَ دے تفسير.

۴۵۱۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ هِشَامٌ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَلِيٍّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ حَبَسُوْنَا عَنْ صَلٰوةِ الْوُسْطٰى حَتّٰى غَابَتِ الشَّمْسُ مَلَاَ اللّٰهُ قُبُوْرَهُمْ وَ بُيُوْتَهُمْ اَوْ اَجْوَافَهُمْ شَكَّ يَحْيٰى نَارًا.

۴۵۱۸: عبداللّٰه بن محمد. يزيد بن هارون. هشام. محمد. عبيده. حضرت علي بن ابي طالبؓ نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل (دوئيم سند) عبدالرحمٰن. يحيٰي. هشام. ابن سيرين. عبيده. حضرت عليؓ نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم جنګ خندق په ورځ اوفرمائيل، دے كافرو مونږ دَ منځني مونځ نه ايسار كولو، تر دے چه نمر ډوب شو، اللّٰه تعالٰي دے دَ هغوي قبرونه، او دَ هغوي كورونه يا دَ هغوي خيټے (يحيٰي راوي ته شک دے چه حضورؐ كوم لفظ اووئيلو) دَ اُور نه ډک كړي.

## بـــاب ۱۳۵: قَـــوْلُــــهٗ وَ قُـــوْمُـــوْا لِـلّٰـــهِ قَـــانِتِيْـــنَ مُطِيْعِيْنَ.

## باب ۱۳۵: آيت: وَ قُوْمُوْا لِلّٰهِ قَانِتِيْنَ الخ دَ اللّٰه تعالٰي قول، دَ اللّٰه مخكښې ادب سره اودريږئے. قانتين معني دي: فرمانبردار.

۴۵۱۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنِ الْحَارِثِ ابْنِ شُبَيْلٍ عَنْ اَبِيْ

۴۵۱۹: مسدد. يحيٰي. اسمٰعيل بن ابي خالد. حارث بن شبيل. ابو عمرو شيباني. حضرت زيد بن ارقمؓ نه روايت كوي، د هغۀ بيان

باب ۱۵۸ : قَوْلِهِ اَمَنَةً نُعَاسًا.

باب ۱۵۸ : آیت: اَمَنَةً نُعَاسًا: ذ الله تعالیٰ قول: په تاسو امن یعنې پرکالي راغله.

۵۴۶ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَبُوْ يَعْقُوْبَ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسٌ اَنَّ اَبَا طَلْحَةَ قَالَ غَشِيَنَا النُّعَاسُ وَ نَحْنُ فِيْ مَصَافِنَا يَوْمَ اُحُدٍ قَالَ فَجَعَلَ سَيْفِيْ يَسْقُطُ مِنْ يَدِيْ وَ اٰخُذُهُ وَ يَسْقُطُ وَ اٰخُذُهُ.

۵۴۶ : اسحاق بن ابراهیم بن عبدالرحمن. ابو یعقوب. حسین بن محمد. شیبان. قتاده. انس. حضرت ابو طلحهؓ نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے. ذ جنګ اُحد په ورځ چه مونږ میدان جنګ کښې موجود وو، مونږ له داسے خوب راغے، چه څو ځله خما ذ لاسه توره اوغورځیدله، خو ما هر ځل هغه راونیوله.

باب ۱۵۹ : قَوْلِهِ اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ مِنْۢ بَعْدِ مَآ اَصَابَهُمُ الْقَرْحُ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا اَجْرٌ عَظِيْمٌ اَلْقَرْحُ الْجِرَاحُ اسْتَجَابُوْا اَجَابُوْا يَسْتَجِيْبُ، يُجِيْبُ.

باب ۱۵۹ : آیت: اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ الخ: ذ الله تعالیٰ ارشاد، کومو خلقو چه ذ الله او رسول حکم اومنلو، حالانکه هغوي زخمي شوي وو، نو کومو خلقو چه نیک کارونه اوکړل، او ذ الله تعالیٰ نه ئے ویره اوکړله، هغوي ذ پاره لوئے ثواب دے. ذ "قرح" معني دي زخم. "استجابوا" او "اجابوا" یو معني دي، یعني حکم مو واوریدلو، او ومو منلو.

باب ۱۶۰ : قَوْلِهِ اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمُ الْاٰيَةَ.

باب ۱۶۰ : آیت: اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا الخ: ذ الله تعالیٰ قول خلق تاسو د پاره جمع شو، ددے تفسیر

۵۴۷ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ اُرَاهُ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ حَسْبُنَا اللّٰهُ وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ قَالَهَا اِبْرٰهِيْمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ حِيْنَ اُلْقِيَ فِي النَّارِ وَ قَالَهَا مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَالُوْا اِنَّ النَّاسَ قَدْ.

۵۴۷ : احمد بن یونس. ابوبکر. ابو حصین. ابو الضحي. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، ذ هغه بیان دے، دا آیت یعني: حسبنا الله و نعم الوکیل: حضرت ابراهیم علیه السلام هغه وخت ونیلے وو، کوم وخت چه هغه اُور کښې غورځولے شوے وو، او دا آیت حضور صلي الله علیه وسلم هغه وخت ونیلے وو، چه منافقانو ذ مسلمانانو ذ ویرولو ذ

جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا وَّقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ.

پاره ونيلے وو' چه تاسو سره جنګ كولو ډ پاره ډير خلق راجمع شوي دي.

ف: دغسے سختئ كښ "حسبنا الله و نعم الوكيل" بهترينه وظيفه او مدد ډ پاره اكسير دُعا ده. الله پاك دے ډدے دُعا په بركت خمونږ هم په ظاهر او په باطن مدد ګار شي. اللّٰهم آمين.

۵۴۸: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ اٰخِرُ قَوْلِ اِبْرٰهِيْمَ حِيْنَ اُلْقِيَ فِي النَّارِ حَسْبِيَ اللّٰهُ وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ.

۵۴۸: مالک بن اسماعيل. اسرائيل. ابي حصين. ابي الضحي. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' حضرت ابراهيم عليه السلام چه كوم وخت اُور كښ اُوغرځولے شو' نو ډ هغهٔ آخري كلمه دا وه' حَسْبُنَا اللّٰهُ وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ.

باب ۱۶۱: وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَا اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهِ الْاٰيَةِ سَيُطَوَّقُوْنَ كَقَوْلِكَ طَوَّقْتُهُ بِطَوْقٍ.

باب ۱۶۱: آيت: وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَا اٰتٰهُمُ اللّٰهُ الخ: ډ اللّٰه تعالٰي قول' خداداد (خدائے وركړے) مال كښ چه څوک شومتيا كوي' نو تاسو ډ هغوي شومتيا هغوي ډ پاره ښهٔ مهٔ ګڼړئ' آخر پورے تفسير.

۵۴۹: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ اَبَا النَّضْرِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ هُوَ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَلَمْ يُؤَدِّ زَكٰوتَهُ مُثِّلَ لَهُ مَالُهُ شُجَاعًا اَقْرَعَ لَهُ زَبِيْبَتَانِ يُطَوَّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَأْخُذُ بِلِهْزِمَتَيْهِ يَعْنِيْ بِشِدْقَيْهِ يَقُوْلُ اَنَا مَالُكَ اَنَا كَنْزُكَ ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْاٰيَةَ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَا

۵۴۹: عبداللّٰه بن منير. ابو نضر. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن دينار. ډ هغهٔ پلار. ابو صالح. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' ډ هغهٔ بيان دے' حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو' چاته چه اللّٰه مال وركړے وي' او ډ هغے زكٰوة نے ورنه كړ' نو ډ قيامت په ورځ به ډ هغهٔ مال ډ هغهٔ ډ پاره مار جوړ شي' چه ډ هغهٔ په سر به ويښته او ستركو باندے دوه نقطے وي' بيا به دغه مار ډ هغهٔ په غاړه كښ واچولے شي او هغه مار به خپلے ژبے سره وائي' زهٔ ستا هغه مال يم' زهٔ ستا هغه جمع كړے شوے خزانه يم. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دا آيت تلاوت كړلو: وَلَا

اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ.

يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ آخر پورې.

## باب ۱۶۲: قَوْلِهٖ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا اَذًى كَثِيْرًا.

## باب ۱۶۲: وَلَتُسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ

الخ: تاسو به د هغې خلقونه خپلې ډيرې بدئ واورئ، چه هغوي ته تاسونه مخکښ كتاب وركړې شوې وو، او د هغوي نه هم، چه كافر او مشرک دي، د دې تفسير.

۵۵۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ عَلٰى حِمَارٍ عَلٰى قَطِيْفَةٍ فَدَكِيَّةٍ وَّ اَرْدَفَ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَرَآءَهٗ يَعُوْدُ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ فِيْ بَنِيْ الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ قَبْلَ وَقْعَةِ بَدْرٍ قَالَ حَتّٰى مَرَّ بِمَجْلِسٍ فِيْهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيِّ ابْنِ سَلُوْلٍ وَ ذٰلِكَ قَبْلَ اَنْ يُّسْلِمَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيٍّ فَاِذَا فِي الْمَجْلِسِ اَخْلَاطٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَ عَبَدَةِ الْاَوْثَانِ وَالْيَهُوْدَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَ فِي الْمَجْلِسِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ فَلَمَّا غَشِيَتِ الْمَجْلِسَ عَجَاجَةُ الدَّابَّةِ خَمَّرَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيٍّ اَنْفَهٗ بِرِدَآئِهٖ ثُمَّ قَالَ لَا تُغَبِّرُوْا عَلَيْنَا فَسَلَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثُمَّ وَقَفَ فَنَزَلَ فَدَعَاهُمْ اِلَى اللّٰهِ وَ قَرَاَ عَلَيْهِمُ الْقُرْاٰنَ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۵۵۰: ابواليمان. شعيب. زهري. عروه بن زبير. حضرت اسامه بن زيد نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دې، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په خپل خر سور وو، هغې د پاسه د فدكيه ښار څادر پروت وو. حضورٌ زهٔ ځان پسې ورستو سور كړم، بيا حضورٌ د سعد بن عباده ليدو د پاره تشريف يوړلو، او دا د جنګ بدر نه د مخكښ واقعه ده. لار كښ حضورٌ په څنې خلقو تيريدلو، هغوي كښ مشهور منافق عبداللّٰه بن ابي بن سلول هم ناست وو، او دغه وخته پورې هغه ظاهرًا هم اسلام نهٔ وو راوړلې، دغې مجلس كښ مسلمانان، مشرک او يهوديان هم ناست وو، او هغوي كښ عبداللّٰه بن رواحهٌ هم ناست وو، چه مسلمان او صحابي وو، د خر تلو سره ګرد اوچت شو، چه په هغوي پريوتلو، نو عبداللّٰه بن اُبي خپله پوزه څادر سره پټه كړله، او وې وئيل، دوړې مهٔ كوه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سلام اوكړلو، بيا د سورلي نه راكوز شولو. د قرآن تلاوت ئې شروع كهٔ، او هغوي ټولوته ئې اللّٰه تعالٰي طرف ته د رابللو دعوت وركهٔ، عبداللّٰه بن ابي اووې، كه ته ريښتنې ئې، او ستا خبره هم ښهٔ وي، خو

أُبَيّ ابْنِ سَلُوْلٍ أَيُّهَا الْمَرْءُ اِنَّهُ لَا
أَحْسَنَ مِمَّا تَقُوْلُ اِنْ كَانَ حَقًّا فَلَا
تُؤْذِيْنَا بِهٖ فِيْ مَجْلِسِنَا اِرْجِعْ اِلٰى
رَحْلِكَ فَمَنْ جَاءَكَ فَاقْصُصْ عَلَيْهِ
فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ بَلٰى يَا
رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاغْشَنَا بِهٖ فِيْ مَجَالِسِنَا
فَاِنَّا نُحِبُّ ذٰلِكَ فَاسْتَبَّ الْمُسْلِمُوْنَ
وَالْمُشْرِكُوْنَ وَالْيَهُوْدُ حَتّٰى كَادُوْا
يَتَثَاوَرُوْنَ فَلَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَفِّضُهُمْ حَتّٰى
سَكَنُوْا ثُمَّ رَكِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَآبَّتَهٗ فَسَارَ حَتّٰى دَخَلَ
عَلٰى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا سَعْدُ اَلَمْ
تَسْمَعْ مَا قَالَ اَبُوْ حُبَابٍ يُرِيْدُ عَبْدَ
اللّٰهِ بْنَ اُبَيٍّ قَالَ كَذَا وَ كَذَا قَالَ
سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اعْفُ
عَنْهُ وَاصْفَحْ عَنْهُ فَوَالَّذِيْ اَنْزَلَ عَلَيْكَ
الْكِتٰبَ لَقَدْ جَاءَ اللّٰهُ بِالْحَقِّ الَّذِيْ
اَنْزَلَ عَلَيْكَ لَقَدِ اصْطَلَحَ اَهْلُ هٰذِهِ
الْبُحَيْرَةِ عَلٰى اَنْ يُتَوِّجُوْهُ فَيُعَصِّبُوْنَهٗ
بِالْعِصَابَةِ فَلَمَّا اَبَى اللّٰهُ ذٰلِكَ بِالْحَقِّ
الَّذِيْ اَعْطَاكَ اللّٰهُ شَرِقَ بِذٰلِكَ فَذٰلِكَ
فَعَلَ بِهٖ مَا رَاَيْتَ فَعَفَا عَنْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ

خمونږ غوږونه مه خوره خپل کور ته ځه، او
هلته چه څوک تاله درځي، هغوي ته ئې آوروه،
عبدالله بن رواحه رضي اووے، او، يا رسول الله، تاسو
خمونږ کورته راځئ، او مونږ ته ئې آوروئ، ځکه
چه په مونږ دا خبرے ډيرے ښے لږي. دے نه
پس مسلمانانو او کافرو کښې څه ترخے خبرے
شروع شوے، تردے چه وهلو ټکولو ته
تيار شو. آخر معامله رفع دفع شوه، او
حضور صلي الله عليه وسلم په خپله سورلي سور
شولو. او سعد بن عبادة رضي پلے ئې تشريف يوړلو،
او حضرت سعد رضي ته ئې اوفرمائيل، اے سعد، آيا
تا د ابو حباب خبرے آوريدلے دي، يعني عبدالله
بن ابي د د دے قسم خبرے کړے دي. دے آوريدو
سره حضرت سعد بن عبادة رضي عرض اوکړ، يا
رسول الله، تاسو فکر مه کوے، او د هغه د
خبرو هيڅ خيال مه ساتئے، هغه د خپل حسد د
وجے نه په داسے خبرو کولو مجبور دے، زه په
هغه ذات قسم خورم، چه په تاسو ئې قرآن
نازل کړے دے، څه چه په تاسو نازليږي، هغه
برحق او صحيح دي، او تاسو د الله رښتنے
نبي او رسول ئې. خبره داده، د مدينے خلقو
ستاسو د راتلو نه مخکښې دا فيصله کړے وه، چه
مونږ به عبدالله بن أبي خپل سردار جوړوو، او هغه
ته به تاج په سرَوو، بيا تاسو تشريف راوړلو، او په
هغه دا خبره بده اولږيده، په دے وجه هغه ستاسو
په شان کښې ګستاخي کوي. نبي صلي الله

اَصْحَابُهُ يَعْفُوْنَ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ وَ اَهْلِ الْكِتٰبِ كَمَا اَمَرَهُمُ اللّٰهُ وَ يَصْبِرُوْنَ عَلَى الْاَذٰى قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَ مِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا اَذًى كَثِيْرًا اَلْاٰيَةَ قَالَ اللّٰهُ وَدَّ كَثِيْرٌ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يَرُدُّوْنَكُمْ مِنْ بَعْدِ اِيْمَانِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِهِمْ اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَاَوَّلُ الْعَفْوَ مَا اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖ حَتّٰى اَذِنَ اللّٰهُ فِيْهِمْ فَلَمَّا غَزَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَدْرًا فَقَتَلَ اللّٰهُ بِهٖ صَنَادِيْدَ كُفَّارِ قُرَيْشٍ قَالَ ابْنُ اُبَيِّ ابْنِ سَلُوْلَ وَمَنْ مَعَهُ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَ عَبَدَةِ الْاَوْثَانِ هٰذَا اَمْرٌ قَدْ تَوَجَّهَ فَبَايِعُوا الرَّسُوْلَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْاِسْلَامِ فَاَسْلَمُوْا.

عليه وسلّم هغه معاف کړلو، څکه چه ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم او ذَ صحابهٌ ؤ دا عادت وو، چه هميشه به ئے ذَ کافرو ګستاخئ معاف کولے، لکه چه اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل، او مخکښې آيت: وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا اَذًى كَثِيْرًا الاٰية: تير شولو او اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل: وَدَّ كَثِيْرٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يَرُدُّوْنَكُمْ مِنْ بَعْدِ اِيْمَانِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِهِمْ الاٰية: حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به هميشه ذَ کافرو ذَ تکليف باره هغه کول، کوم چه به اللّٰه تعالٰي ارشاد فرمائيلو، تر دے چه اللّٰه تعالٰي کافرو سره ذَ جهاد کولو حکم نازل کړلو. دے نه پس حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ بدر جنګ اوکۀ. او ذَ مکے لوئے لوئے کفار ذَ مسلمانانو ذَ لاسه قتل شو. دغه وخت به عبداللّٰه بن اُبي خپلو ملګروته وئيلے، اوس دا دين غالب شوے دے، او دے کښې ذَ شريکيدو وخت راغلے دے نو مسلمانان شئے. او ظاهر کښې ذَ حضورٌ نه بيعت اوکړئے، او ځان مسلمانان ظاهروے ګويا منافق اوسئے.

## بـاب ۱٦٣: قَوْلُهٗ لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ بِمَا اَتَوْا.

**باب ۱٦٣:** آيت: لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ بِمَا اَتَوْا: ذَ اللّٰه تعالٰي قول، کومو خلقو چه د معاهدے خلاف ورزي اوکړه، او خوشحاله شو، او دا خبره ئے ښۀ اوګنړله، چه څمونږ دے هم هغوي سره تعريف اوشي.

۱۵۵۱: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ ن الْخُدْرِيِّ

۱۵۵۱: سعيد بن ابي مريم. محمد بن جعفر. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. حضرت ابو سعيد خدريٌ نه روايت کوي، ذَ هغهٔ بيان دے، ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم زمانه کښې

انَّ رِجَالًا مِنَ الْمُنَافِقِيْنَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْغَزْوِ تَخَلَّفُوْا عَنْهُ وَ فَرِحُوْا بِمَقْعَدِهِمْ خِلَافَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَذَرُوْا اِلَيْهِ وَ حَلَفُوْا وَ اَحَبُّوْا اَنْ يُحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا فَنَزَلَتْ لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ الْاٰيَة.

خنې خلق منافق وو، كوم وخت چه حضور جهاد ته اووتلو نو دا خلق جُدا شو، او ډير خوشحاله شو، چه مونږ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره لانه ړلو، بيا چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم واپس تشريف راوړلو، نو دا خلق حاضر شو، عذر ئې اوکړه، قسم ئې اوخوړ، او وئيلې، مونږ ستاسو دَ كاميابي دَ پاره كوشش كولو، او هغوي غوښتل، چه جهاد كونكو سره دَ هغوي هم تعريف اوشي، نو دغه وخت دا آيت نازل شولو: لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ.

۵۵۲: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ عَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ مَرْوَانَ قَالَ لِبَوَّابِهٖ اذْهَبْ يَا رَافِعُ اِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقُلْ لَئِنْ كَانَ كُلُّ امْرِئٍ فَرِحَ بِمَا اُوْتِيَ وَ اَحَبَّ اَنْ يُحْمَدَ بِمَا لَمْ يَفْعَلْ مُعَذَّبًا لَنُعَذَّبَنَّ اَجْمَعُوْنَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَمَا لَكُمْ وَلِهٰذِهٖ اِنَّمَا دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَهُوْدَ فَسَاَلَهُمْ عَنْ شَيْءٍ فَكَتَمُوْهُ اِيَّاهُ وَ اَخْبَرُوْهُ بِغَيْرِهٖ فَاَرَوْهُ اَنْ قَدِ اسْتَحْمَدُوْا اِلَيْهِ بِمَا اَخْبَرُوْهُ عَنْهُ فِيْمَا سَاَلَهُمْ وَ فَرِحُوْا بِمَا اُوْتُوْا مِنْ كِتْمَانِهِمْ ثُمَّ قَرَاَ ابْنُ

۵۵۲: ابراهيم بن موسٰي. هشام. ابن جريج. ابن ابي مليكه. حضرت علقمه بن وقاص نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، يو ورځ مروان بن حكم خپل خادم ته اووے، لاړ شه، او دَ حضرت ابن عباسؓ نه معلومه كړه، چه كوم سړے دے خيز سره خوشحاله شي، چه دَ اللّٰه تعالي دَ طرف نه هغه ته په طور دَ نعمت وركړے شوے دے، او بغير دَ څهٔ كار كولو نه خپل تعريف ښهٔ اوګنړي، نو هغهٔ ته به آخرت كښې عذاب وي، كه دا صحيح وي، نو بيا خو به مونږ ضرور عذاب كښې واچولے شو، ابن عباسؓ اووے، ستا دے خبرے سره څهٔ كار دے، تهٔ چه كوم آيت سره دا خيال زړهٔ كښې راولے، هغه خبره خو داده، چه يو ځلے نبي عليه السلام ځنې يهوديان راوغښتل چه دَ څهٔ خبرے تپوس ترے اوكړي، نو هغوي اصلي خبره پټه كړه، او غلطه خبره ئې اوښودله او دا خيال ئې اوكړهٔ چه څه يره، مفتو كښې به څمونږ نيک

عَبَّاسٍ وَ اِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتَابَ كَذٰلِكَ حَتّٰى قَوْلِهٖ يَفْرَحُوْنَ بِمَا اُوْتُوْا وَ يُحِبُّوْنَ اَنْ يُحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا تَابَعَهٗ عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ.

نامي اوشي' او هغوي په دې خبره ډير خوشحاله شو' دې نه پس حضرت ابن عباسؓ آيت: وَ اِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ نه آيت: وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ: پورې اولوست. هشام سره عبدالرزاق هم ابن جريج نه دا حديث روايت کړې دې.

۵۵۳: حَدَّثَنَا ابْنُ مَقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا الْحَجَّاجُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِي ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّهٗ اَخْبَرَهٗ اَنَّ مَرْوَانَ بِهٰذَا.

۵۵۳: مقاتل. حجاج. ابن جريج دا حديث ابن ابي مليکه نه د حميد بن عبدالرحمٰن بن عوف نه هم بيان کړې دې' چه مروان دا حديث مانه نقل کړې دې.

## بَابُ ۱۶۴: قَوْلِهٖ اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْاٰيَةَ.

باب ۱۶۴: آيت: اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ: دَ اللّٰه تعالٰي فرمان' دَ آسمان او زمکې پيدائش کښې. آخر آيت پورې تفسير.

۵۵۴: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ شَرِيْكُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ نَمِرٍ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِيْ مَيْمُوْنَةَ فَتَحَدَّثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ اَهْلِهٖ سَاعَةً ثُمَّ رَقَدَ فَلَمَّا كَانَ ثُلُثُ اللَّيْلِ الْاٰخِرُ قَعَدَ فَنَظَرَ اِلَى السَّمَاءِ فَقَالَ اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ثُمَّ قَامَ فَتَوَضَّاَ وَاسْتَنَّ فَصَلّٰى اِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً ثُمَّ اَذَّنَ بِلَالٌ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ.

۵۵۴: سعيد بن ابي مريم. محمد بن جعفر. شريک بن عبداللّٰه بن ابي نمر. کريب. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي' د هغهٔ بيان دې' يوه شپه زهٔ خپلې ترور بي بي ميمونېؓ کره پاتې شوې ووم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو' څهٔ وخته پورې ئې بي بي ميمونېؓ سره خبرې کولې. بيا اوده شو. دې نه پس دَ شپې آخري حصه کښې بيدار شولو' آسمان طرف ته ئې اوکتل' او دا آيت ئې اولوست: اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ الخ: يعني دَ آسمان او زمکې پيدائش کښې' دَ شپې او ورځې اختلاف کښې دَ عقلمندانو دَ پاره نښې دي. دې نه پس ئې اودس اوکهٔ. مسواک ئې اوکړلو. بيائې ديارلس رکعاته مونځ ادا کړلو. حضرت بلالؓ اذان اوکهٔ' او حضورؐ دوه رکعاته مونځ ادا کهٔ. بيائې جمات ته تشريف راوړلو' او فرض مونځ ئې جماعت ته ورکړلو.

باب ۱۶۵ : قَوْلِهٖ اَلَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيَامًا وَّقُعُوْدًا وَّ عَلٰى جُنُوْبِهِمْ وَ يَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ.

۵۵۵ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ مَهْدِيٍّ عَنْ مَالِكِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِيْ مَيْمُوْنَةَ فَقُلْتُ لَاَنْظُرَنَّ اِلٰى صَلٰوةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطُرِحَتْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وِسَادَةٌ فَنَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ طُوْلِهَا فَجَعَلَ يَمْسَحُ النَّوْمَ عَنْ وَجْهِهٖ ثُمَّ قَرَاَ الْاٰيٰتِ الْعَشْرَ الْاَوَاخِرَ مِنْ اٰلِ عِمْرٰنَ حَتّٰى خَتَمَ ثُمَّ اَتٰى شَنًّا مُعَلَّقًا فَاَخَذَهٗ فَتَوَضَّاَ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ فَقُمْتُ فَصَنَعْتُ مِثْلَ مَا صَنَعَ ثُمَّ جِئْتُ فَقُمْتُ اِلٰى جَنْبِهٖ فَوَضَعَ يَدَهٗ عَلٰى رَاْسِيْ ثُمَّ اَخَذَ بِاُذُنِيْ فَجَعَلَ يَفْتِلُهَا ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ اَوْتَرَ.

باب ۱۶۵ : آيت: اَلَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيَامًا وَّ قُعُوْدًا الخ: ذَ اللّٰه تعالىٰ قول، كوم خلق چه اللّٰه تعالىٰ په ولاړه، په ناسته او اړخ بدلولو كښې يادوي، او ذَ آسمان او زمكې پيدائش كښې ذَ اللّٰه په حكمتونو غور كوي.

۵۵۵ : علي بن عبداللّٰه. عبدالرحمٰن بن مهدي. امام مالک بن انس. مخرمه بن سليمان. كريب. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دے، يو خل زهٔ ذَ خپلې ترور بي بي ميمونېؓ كور ته ورغلم، او ذَ شپې هلته پاتې شوم، او خيال مِ اوكړ، نن به ګورم، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ شپې مونځ څنګه كوي. آخر حضورؐ ذَ پاره بالښت او څادر اوغوړولے شو، حضورؐ سملاستلو زهٔ هم پښو طرف ته سملاستم. نيمه شپه حضورؐ پاسيدلو، په مخ مبارک ئې لاس راښكلو، دے نه پس ئې ذَ سورة آل عمران آخري لس اياتونه تلاوت كړل، چه هغې كښې دغه آيت هم راځي، بيا حضورؐ ذَ يوې مشكيزې نه اُوبه واخستې، اودس ئې اوكړلو. بيائې ذَ مونځ نيت اوتړلو، زهٔ هم هغه وخت راپاسيدم، او هغسې مِ كول، څنګه چه حضورؐ كول. بيا زهٔ ذَ حضورؐ اړخ كښې اودريدم، نو حضورؐ محبت سره خما په سر لاس راښكلو، او خپا غوږونه ئې مس كړل. بيا حضورؐ دوه ركعاته اوكړل، بيا دوه ركعاته، بيا دوه ركعاته، بيا دوه ركعاته، بيا دوه ركعاته، بيائې وتر اوكړل (يعني كل يولس ركعاته).

باب ۱۶۶ : قَوْلِهٖ رَبَّنَا

باب ۱۶۶ : آيت: رَبَّنَا اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ

اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ اَخْزَيْتَهُ وَمَا لِلظَّالِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ.

اَخْزَيْتَهُ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول' اے خمونږ ربه' تا چه څوک اُور كښې داخل كړل' بيشكه هغه دِ ذليل كړلو' او دَ ظالمانو هيڅوک مددګار نشته.

۵۵۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيْسٰى حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ بَاتَ عِنْدَ مَيْمُوْنَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هِيَ خَالَتُهُ قَالَ فَاضْطَجَعْتُ فِي عَرْضِ الْوِسَادَةِ وَاضْطَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَهْلُهُ فِيْ طُوْلِهَا فَنَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى انْتَصَفَ اللَّيْلُ اَوْ قَبْلَهُ بِقَلِيْلٍ اَوْ بَعْدَهُ بِقَلِيْلٍ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يَمْسَحُ النَّوْمَ عَنْ وَجْهِهٖ بِيَدِهٖ ثُمَّ قَرَاَ الْعَشْرَ الْاٰيَاتِ الْخَوَاتِمَ مِنْ سُوْرَةِ اٰلِ عِمْرَانَ ثُمَّ قَامَ اِلٰى شَنٍّ مُعَلَّقَةٍ فَتَوَضَّاَ مِنْهَا فَاَحْسَنَ وُضُوْءَهُ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ فَصَنَعْتُ مِثْلَ مَا صَنَعَ ثُمَّ ذَهَبْتُ فَقُمْتُ اِلٰى جَنْبِهٖ فَوَضَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى رَاْسِيْ وَ اَخَذَ بِاُذُنِيْ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى يَفْتِلُهَا فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ

۵۵۶: علي بن عبداللّٰه. معن بن عيسٰي. مالک. مخرمه بن سليمان. كريب (دَ حضرت عبداللّٰه بن عباسؓ آزاد كرده غلام) حضرت عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت كوي' دَ هغهٔ بيان دے' يوه شپه زهٔ خپلے ترور بي بي ميمونےؓ دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تېر كره پاتے شوم. او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په بستره يو طرف ته اُودهٔ شوم' او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اُودهٔ شو' چه نيمه شپه شوه' يا دَ نيمے شپے نه لږ مخكښې يا دَ نيمے شپے نه څهٔ زيات وخت اوشو' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم بيدار شولو. سترګے مباركے ئے اُومږلے' بيائے دَ سورهٔ آل عمران آخري لس آيتونه تلاوت كړل (چه هغے كښې پورته ذكر شوے آيت هم شامل دے) بيا مشكيزے پله ورغے' هغے نه ئے اُوبهٔ واخستے' اودس ئے اوكړلو' او ډير په ښهٔ شان ئے اودس اوكړلو' دے نه پس حضورؐ مانځه دَ پاره اودريدلو' زهٔ هم پاسيدم او څهٔ چه به حضورؐ كول' هغه به ما هم كول. بيا زهٔ دَ حضورؐ آړخ كښې اودريدم' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل ښے لاس خما په سر كيښودلو. او خما غوږونه ئے اُومروړل. بيا حضورؐ دوه ركعاته مونځ اوكړ' بيا دوه ركعاته' بيا دوه ركعاته' بيا دوه ركعاته. بيائے درے ركعاته

ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ اَوْتَرَ ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتّٰى جَآءَهُ الْمُؤَذِّنُ فَقَامَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ.

وتر اوکړل. بیا لږ ساعت سملاستلو. بیا بانګي بانګ اوونیلو (یعني مؤذن آذان اوکړلو) حضورﷺ راپاسیدلو، او خفیف (مختصر) دوه رکعاته مونځ ئې اوکړه (یعني د سحر سنت ئې اوکړل) بیا جمات ته لاړلو، او د سحر مونځ ئې ورکړلو.

بَابٌ ۱۶۷ : قَوْلُهُ رَبَّنَا اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِىْ لِلْاِيْمَانِ الْاٰيَةَ.

باب ۱۶۷ : آیت: رَبَّنَا اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِىْ لِلْاِيْمَانِ: د اللّٰه تعالیٰ قول، اے ربه، مونږ د یو آواز کونکي نه واوریدل، چه ایمان پله ئې بلنه کوله.

۵۵۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ بَاتَ عِنْدَ مَيْمُوْنَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ خَالَتُهُ قَالَ فَاضْطَجَعْتُ فِيْ عَرْضِ الْوِسَادَةِ وَاضْطَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَهْلُهُ فِيْ طُوْلِهَا فَنَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اِذَا انْتَصَفَ اللَّيْلُ اَوْ قَبْلَهُ بِقَلِيْلٍ اَوْ بَعْدَهُ بِقَلِيْلٍ اسْتَيْقَظَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَلَسَ يَمْسَحُ النَّوْمَ عَنْ وَجْهِهٖ بِيَدِهٖ ثُمَّ قَرَاَ الْعَشْرَ الْاٰيَاتِ الْخَوَاتِمَ مِنْ سُوْرَةِ اٰلِ عِمْرَانَ ثُمَّ قَامَ اِلٰى شَنٍّ مُعَلَّقَةٍ فَتَوَضَّاَ مِنْهَا فَاَحْسَنَ وُضُوْئَهُ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ

۵۵۷ : قتیبه بن سعید. مالک. مخرمه بن سلیمان. کریب (د حضرت ابن عباسؓ آزاد کړے غلام) حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، د هغه بیان دے، یوه شپه زه خپلے ترور بي بي میمونےؓ کره د حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم کور کښې پاتے شوم. زه د شپے د حضورﷺ د بسترے په پرتو (عرض) سملاستم، او حضورﷺ د بسترے اوږود والي (طول) کښې سملاستلو، تردے نیمه شپه شوه، یا لږ د دے نه مخکښې یا لږ ددے نه پس، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم بیدار شولو، په خپل مخ مبارک ئې لاس راښکلو. بیائے د سوره ال عمران لس رکعاته تلاوت کړل (هغې کښې ذکر شوے آیت هم شامل دے) بیا حضورﷺ یو آویزانده مشکیزے طرف ته ورغے، د هغې نه ئې اُوبه واخستے اودس ئې اوکړلو، او ډیر په ښه شان اودس ئې اوکړلو، بیا حضورﷺ مانځه د پاره اودریدلو، حضرت ابن عباسؓ وائي، زه هم راپاسیدم، او څه چه حضورﷺ کول، هغسے ما هم کول، بیا د

فَقُمْتُ فَصَنَعْتُ مِثْلَ مَا صَنَعَ ثُمَّ ذَهَبْتُ فَقُمْتُ اِلَى جَنْبِهٖ فَوَضَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى رَأْسِيْ وَ اَخَذَ بِأُذُنِي الْيُمْنٰى يَفْتِلُهَا فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ اَوْتَرَ ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتّٰى جَآءَهُ الْمُؤَذِّنُ فَقَامَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ.

حضورؐ اړخ كښې (مانځه ته) اودريدم، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم (ذَ محبت نه ډكې) خپل ښي لاس خما په سر رابنكلو. بيائے خما غوږ اُومروړلو. بيا حضورؐ دوه ركعاته مونځ اوكړ، بيا دوه ركعاته، بيا دوه ركعاته، بيا دوه ركعاته، بيا دوه ركعاته، بيا دوه ركعاته (يعني دولس ركعاته مونځ ئے اوكړ) بيائے (درے ركعاته) وتر مونځ اوكړ، بيائے لږ آرام اوكړلو. بيا مؤذّن آذان اوكړ، نو حضورؐ پاسيدلو، ذَ سحر دوه ركعاته سنت ئے اوكړل. بيائے جمات ته تشريف راوړلو، ذَ سحر فرض مونځ ئے جماعت سره ادا كړلو.

## سُوْرَةِ النِّسَآءِ

## ذَ سُورهٔ نسيءِ تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَسْتَنْكِفُ يَسْتَكْبِرُ، قِوَامًا قِوَامُكُمْ مِنْ مَّعَايِشِكُمْ، لَهُنَّ سَبِيْلًا يَعْنِي الرَّجْمَ لِلثَّيِّبِ وَالْجَلْدَ لِلْبِكْرِ وَ قَالَ غَيْرُهُ مَثْنٰى وَ ثُلَاثَ يَعْنِيْ ثِنْتَيْنِ وَ ثَلَاثًا وَّ اَرْبَعًا وَلَا تُجَاوِزُ الْعَرَبُ رُبَاعَ.

ابن عباسؓ وائي، ذَ "يَسْتَنْكِفُ" معني ذَ غرور كولو دي. او ذَ "قِوَامًا" معني ذَ معاش دي. "لَهُنَّ سَبِيْلًا" نه مراد دا دے، چه وادهٔ شوے سنګسارول، ناوادهٔ په دُرّو وهل. ابن عباسؓ علاوه ذ نورو خلقونه ذَ "مثنٰي و ثلٰث" معني دوه دوه، درے درے، او څلور څلور، څلور كړے دي اهل عرب ذَ دے نه زيات نهٔ وائي.

بَابُ ۱۶۸ : قَوْلُهُ وَ اِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى الْاٰيَةَ.

باب ۱۶۸ : آيت: و اِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى: ذَ اللّٰه تعالٰي قول، كه تاسو سره ويره وي، چه ذَ يتيمو جينكو باره كښې به انصاف اُونهٔ كړے شے.

۵۵۸ : حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَجُلًا كَانَتْ لَهٗ يَتِيْمَةٌ

۵۵۸ : ابراهيم بن موسي. هشام. ابن جريج. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، يو سړي ذ يوے يتيمے جينۍ پرورش كولو، او ذَ هغے جينۍ ذَ قجورو يو باغ وو، ذَ هغے باغ

فَنَكَحَهَا وَ كَانَ لَهَا عَذْقٌ وَ كَانَ يُمْسِكُهَا عَلَيْهِ وَلَمْ يَكُنْ لَهَا مِنْ نَفْسِهٖ شَيْءٌ فَنَزَلَتْ فِيْهِ وَ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى اَحْسِبُهٗ قَالَ كَانَتْ شَرِيْكَتَهٗ فِيْ ذٰلِكَ الْعَذْقِ وَ فِيْ مَالِهٖ.

۵۵۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّهٗ سَاَلَ عَائِشَةَ عَنْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتَامٰى فَقَالَتْ يَا ابْنَ اُخْتِيْ هٰذِهِ الْيَتِيْمَةُ تَكُوْنُ فِيْ حَجْرِ وَلِيِّهَا تَشْرَكُهٗ فِيْ مَالِهٖ وَ يُعْجِبُهٗ مَالُهَا وَ جَمَالُهَا فَيُرِيْدُ وَلِيُّهَا اَنْ يَتَزَوَّجَهَا بِغَيْرِ اَنْ يُقْسِطَ فِيْ صَدَاقِهَا فَيُعْطِيُهَا مِثْلَ مَا يُعْطِيْهَا غَيْرُهٗ فَنُهُوْا عَنْ اَنْ يَنْكِحُوْهُنَّ اِلَّا اَنْ يُقْسِطُوْا لَهُنَّ وَ يَبْلُغُوْا لَهُنَّ اَعْلٰى سُنَّتِهِنَّ فِي الصَّدَاقِ فَاُمِرُوْا اَنْ يَنْكِحُوْا مَا طَابَ لَهُمْ مِنَ النِّسَآءِ سِوَاهُنَّ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ وَ اِنَّ النَّاسَ اسْتَفْتَوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ هٰذِهِ الْاٰيَةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَ يَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ قَالَتْ عَائِشَةُ وَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى فِيْ اٰيَةٍ

په لالچ هغې سړي ورسره نكاح اوكړله، خو زړه كښې ئې خوښه نه وه. په دې حقله دا آيت نازل شولو، كوم چه مخكښې ذكر شو. ابراهيم وائي، شايد هشام ماته دا ونيلې وو، چه هغې جينۍ د هغې سړي باغ او نور مال وغيره كښې د شريک حيثيت لرلو (يعني ورسره شريكه وه).

۵۵۹: عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. صالح بن كيسان. ابن شهاب. عروه بن زبير نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دې، ما د بي بي عائشې نه د دې آيت متعلق تپوس اوكهٔ، نو هغې جواب راكهٔ، اې خما د خور بچيه، هغه يتيمه جينۍ چه د خپل ولي په مال كښې شريكه وه، نو د ولي د هغې مال او حُسن خوښ وو، او هغهٔ به سوچ كولو، چه نكاح سره به مال او جينۍ دواړه په لاس راشي. د مهر باره كښې ئې نيت ټيک نهٔ وو، د هغهٔ دا خيال وو، چه د بلې نه به كم مهر ادا كړم، په دې وجه داسې جينكو سره د نكاح كولو نه منع اوشوه، خو هغې صورت كښې چه مال او مهر كښې انصاف مد نظر وي، او دا حكم وركړې شو، چه د دې يتيمو جينكو نه علاوه كومې ستاسو خوښې وي، هغوي سره نكاح اوكړې. عروه وائي، بي بي عائشې دا هم اوفرمائيل، د دې آيت د نازليدلو نه پس خو سړو د حضور صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكهٔ، نو الله تعالي آيت: يَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَاءِ الخ: نازل كړلو، بي بي عائشه وائي، وَ تَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ الخ: نه هغه ښځې مراد دي، چه مال او حُسن كښې كمې

أُخْرٰى وَ تَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ رَغْبَةَ اَحَدِكُمْ عَنْ يَتِيْمَتِهٖ حِيْنَ تَكُوْنُ قَلِيْلَةَ الْمَالِ وَالْجَمَالِ قَالَتْ فَنُهُوْا اَنْ يَنْكِحُوْا عَنْ مَّنْ رَغِبُوْا فِيْ مَالِهٖ وَ جَمَالِهٖ فِيْ يَتَامَى النِّسَآءِ اِلَّا بِالْقِسْطِ مِنْ اَجْلِ رَغْبَتِهِمْ عَنْهُنَّ اِذَا كُنَّ قَلِيْلَاتِ الْمَالِ وَالْجَمَالِ.

وي، او ذ دې خبرو په وجه خلق هغوي ته متوجې كيدل، نو اللّٰه تعالىٰ دا حكم اوفرمائيلو، چه كومې جينكې يتيمې دي، او مال او حسن كښې كمې دي، او ستاسو ورته رغبت نۀ وي، نو بيا تاسو مال او حُسن والو سره نكاح نه شئې كولې، ځو پورې چه تاسو مال او ذ هغوي ذ مهر وغيره سلسله كښې انصاف پيش نظر اونۀ ساتې.

## باب ۱۶۹: قَوْلِهٖ وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ فَاِذَا دَفَعْتُمْ اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَيْهِمْ الْاٰيَة وَ بِدَارًا مُبَادَرَةً اَعْتَدْنَا اَعْدَدْنَا اَفْعَلْنَا مِنَ الْعَتَادِ.

باب ۱۶۹: وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ: ذ اللّٰه تعالىٰ قول، كوم سړې چه فقير (غريب) وي، نو هغه ذ دې (يتيم) ذ مال نه دومره قدر اخستلې شي، څومره چه ئې ذ هغۀ په پرورش خرچ كړې وي، او هر كله چه هغې يتيمانو له مال وركوئې، نو په هغوي ګواه اوساتئې، الاٰية "بِدَارًا" معني په تادئ، تادئ. "اعتدنا" مونږ تيار كړې دې، "عتاد" نه وتلې دې.

۴۵۶۰: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ اَنَّهَا نَزَلَتْ فِيْ مَالِ الْيَتِيْمِ اِذَا كَانَ فَقِيْرًا اَنَّهٗ يَاْكُلُ مِنْهُ مَكَانَ قِيَامِهٖ عَلَيْهِ بِالْمَعْرُوْفِ.

۴۵۶۰: اسحق. عبداللّٰه بن نمير. هشام بن عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي، ذ هغې بيان دې، دا آيت: وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا الخ: يعني څوک چه غني وي، هغه دې ذ معافي نه كار واخلي او څوک چه فقير (غريب) وي، نو ذ دستور مطابق دې خوري. دا آيت خاص ذ يتيمانو ذ مال په حق كښې نازل شوې دې، داسې حالت كښې چه پالونكې غريب وي، نو ذ هغې يتيم ذ مال نه څومره چه ئې خرچ كړې وي، هغومره اخستلې شي.

## باب ۱۷۰: قَوْلِهٖ وَ اِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ اُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتَامٰى وَ الْمَسَاكِيْنُ (الْاٰيَة).

باب ۱۷۰: آيت: وَ اِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ اُولُوا الْقُرْبٰى الخ: ذ اللّٰه تعالىٰ قول، هر كله چه ذ تركه (ميراث) تقسيمولو په وخت رشته دار، يتيمان او مسكينان حاضر شي، الاٰية.

**۵۶۱: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ حُمَيْدٍ اَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ الْاَشْجَعِيُّ عَنْ سُفْيَانَ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ وَ اِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ اُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتَامٰى وَالْمَسَاكِيْنُ قَالَ هِيَ مُحْكَمَةٌ وَ لَيْسَتْ بِمَنْسُوْخَةٍ تَابَعَهُ سَعِيْدٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.**

۵۶۱: احمد بن حميد. عبدالله اشجعي سفيان. شيباني. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي: د هغه بيان دے: دا آيت: و اذا حضر القسمة الخ: يعني "څه وخت چه د ميراث د تقسيم په وخت رشته دار، يتيمان او مسکينان حاضر شي" منسوخ شوے نه دے، بلکه محکم دے سعيد بن جبير هم دا حديث د ابن عباسؓ نه روايت کړے دے.

**باب ۱۷۱: قَوْلِهٖ يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ.**

**باب ۱۷۱: آيت: يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ: دَ اللّٰه تعالٰي قول، اللّٰه تاسو ته ستاسو دَ اولاد متعلق وصيت کوي.**

**۵۶۲: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍؓ قَالَ عَادَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ فِيْ بَنِيْ سَلِمَةَ مَاشِيَيْنِ فَوَجَدَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا اَعْقِلُ فَدَعَا بِمَآءٍ فَتَوَضَّاَ مِنْهُ ثُمَّ رَشَّ عَلَيَّ فَاَفَقْتُ فَقُلْتُ مَا تَاْمُرُنِيْ اَنْ اَصْنَعَ فِيْ مَالِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَنَزَلَتْ يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْ اَوْلَادِكُمْ.**

۵۶۲: ابراهيم بن موسٰي. هشام. ابن جريج. محمد بن منکدر. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت کوي. حضور صلي الله عليه وسلّم او حضرت ابوبکرؓ دواړه بني سلمه ته ورتلل، لار کښ خما تپوس له راغلل، خما حال ئے معلوم کۀ، زۀ بيهوشه پروت ووم، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوبۀ راوغبنتلے، اوبۀ ئے خما دَ پاسه اونوستے، زۀ هوش کښې راغلم، ما عرض اوکۀ، يا رسول اللّٰه، زۀ دَ خپل مال متعلق څۀ اوکړم؟ نو [illegible] يوصيکم اللّٰه الخ: دغه رسانه کښې [illegible]

**بَابُ ۱۷۲: قَوْلِهٖ وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ اَزْوَاجُكُمْ.**

باب ۱۷۲: آيت: ولکم نصف ما ترك [illegible] اَزْوَاجُكُمْ دَ اللّٰه تعالٰي قول، ستاسو دَ پاره نيم مال دے څه چه ستاسو ښځو (بيبيانو) پرېښې وي؛

**۵۶۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ وَرْقَآءَ**

۵۶۳: محمد بن يوسف. ورقاء. ابن ابي نجيح عطاء. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، د هغه بيان

عَنِ ابْنِ نَجِيْحٍ عَنْ عَطَآءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ الْمَالُ لِلْوَلَدِ وَ كَانَتِ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ فَنَسَخَ مِنْ ذٰلِكَ مَا اَحَبَّ فَجَعَلَ لِلذَّكَرِ مِثْلَ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ وَ جَعَلَ لِلْاَبَوَيْنِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا السُّدُسُ وَالثُّلُثُ وَ جَعَلَ لِلْمَرْاَةِ الثُّمُنُ وَالرُّبُعُ وَ لِلزَّوْجِ الشَّطْرَ وَالرُّبُعَ.

دے، دَ اسلام شروع کښې ټول مال به خوئ ته ورکيدلو، او مور پلار ته به هغه ورکيدے شو، چه دَ هغې به وصيت شوے وو اللّٰه تعالٰي چه څۀ اوغوښتل، هغه ئې منسوخ کړل او سري دَ پاره ئې دَ ښځې نه دوچند حصه مقرر کړله، دَ مور پلار هر يو دَ پاره ئې شپږمه حصه يا دريمه حصه مقرر کړله، او ښځې دَ پاره ئې اتمه يا څلورمه حصه مقرر کړله، او خاوند ته ئې نيمه حصه يا څلورمه حصه عطاء کړله. (يعني زياته حصه به هغه وخت اخلي، چه اولاد ئې نۀ وي. په دے حقله دَ باب لاندے حديث ښۀ واضحه دے).

بَابُ ١٧٤٣: قَوْلِهٖ لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرْهًا الْاٰية. وَ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ لَا تَعْضُلُوْهُنَّ لَا تَقْهَرُوْهُنَّ حُوْبًا اِثْمًا، تَعُوْلُوْا، تَمِيْلُوْا نِحْلَةً النِّحْلَةُ الْمَهْرُ.

باب ١٧٤٣: آيت: لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرْهًا: دَ اللّٰه تعالٰي ارشاد، ستاسو دَ پاره حلال نۀ دي، چه په زبردستي دَ ښځو وارثان شئے، الْاٰية، ابن عباسؓ وائي "لا تعضلوهن" معني دي: په هغوي جبر او قهر مۀ کوئ. "حُوْبًا" معني يو طرف ته خکته کيدل. او "نحله" معني دي، مَهر.

٥٦٤: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ حَدَّثَنَا اَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ الشَّيْبَانِيُّ وَ ذَكَرَهُ اَبُو الْحَسَنِ السَّوَائِيُّ وَلَا اَظُنُّهُ ذَكَرَهُ اِلَّا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرْهًا وَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ مَا اٰتَيْتُمُوْهُنَّ قَالَ كَانُوْا اِذَا مَاتَ الرَّجُلُ كَانَ

٥٦٤: محمد بن مقاتل. اسباط بن محمد. شيباني. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، شيباني اووے، دا روايت ابوالحسن سوائي هم نقل کړے دے. او خما خيال دے، هغه هم دَ حضرت ابن عباسؓ نه روايت کړے دے، هغۀ اووے، دا آيت يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا الخ: "يعني اے ايمان والو، ستاسو دَ پاره حلال نۀ دي، چه په زبردستي دَ ښځو وارثان شئے، او، مه ئې په دے وجه بندے ساتئے، چه تاسو څۀ ورکړے دي، دَ هغې نه واپس واخلئے" دا آيت هغه وخت نازل شو، چه کله به يو سړے مړ شو، نو دَ هغۀ وارثان به دَ هغۀ دَ ښځې مالکان

أَوْلِيَاءُهُ أَحَقُّ بِامْرَأَتِهِ إِنْ شَاءَ بَعْضُهُمْ تَزَوَّجَهَا وَإِنْ شَاءُوا لَمْ يُزَوِّجُوهَا فَهُمْ أَحَقُّ بِهَا مِنْ أَهْلِهَا فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ فِي ذٰلِكَ.

جوړ شو، كه خوښه به ئې وه، نو خپله به ئې ورسره نكاح اوكړله، او كه خوښه به ئې وه، نو بل چا سره به ئې د هغې نكاح اوكړله، او كه خوښه به ئې وه، نو دغسې بغير نكاح به ئې هغه پريښوده، نو دا آيت دې معامله كښې نازل شوې دې.

## بَابُ ۱۷۴: قَوْلِهِ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ

الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ الْآيَةَ مَوَالِيَ أَوْلِيَاءَ وَرَثَةً عَاقَدَتْ هُوَ مَوْلَى الْيَمِينِ وَهُوَ الْحَلِيفُ وَالْمَوْلَى أَيْضًا ابْنُ الْعَمِّ وَالْمَوْلَى الْمُنْعِمُ الْمُعْتِقُ وَالْمَوْلَى الْمُعْتَقُ وَالْمَوْلَى الْمَلِيكُ وَالْمَوْلَى مَوْلًى فِي الدِّينِ.

باب ۱۷۴: آيت: وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا موالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ: د اللّٰه تعالٰي قول، هر هغه څيز چه مور پلار، يا رشته دارانو او خاوندانو پريښې وي، مونږ د هغې وارثان مقرر كړې دي. "موالى" نه مراد، د هغۀ اولياء وارثان دي. "عاقدت" نه مراد هغه خلق دي، چه هغه د قسم په ذريعه خپل وارث جوړ كړي، يعني حليف، او د "مولٰى" ډيرې معنې راغلې دي: د ترۀ خوئې، غلام يا د وينځې مالک، چه احسان ورسره اوكړي، او آزاد ئې كړي. خپله هغه غلام، چه آزاد كړې شي. د دين پيشوا.

۵۶۵: حَدَّثَنِي الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ إِدْرِيسَ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ قَالَ وَرَثَةً وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ كَانَ الْمُهَاجِرُونَ لَمَّا قَدِمُوا الْمَدِينَةَ يَرِثُ الْمُهَاجِرُ الْأَنْصَارِيَّ دُونَ ذَوِي رَحِمِهِ لِلْأُخُوَّةِ الَّتِي آخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمْ فَلَمَّا نَزَلَتْ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ نُسِخَتْ ثُمَّ قَالَ وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ مِنَ النَّصْرِ وَالرِّفَادَةِ وَالنَّصِيحَةِ وَقَدْ ذَهَبَ

۵۶۵: صلت بن محمد. ابو اسامه. ادريس. طلحه بن مصرف. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، د هغۀ بيان دې، د دې آيت: وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ آخر پورې د تفسير تفصيل دا دې، چه كوم وخت د مكې نه مهاجرين مدينې ته راغلل، نو هغوي به د خپل انصاري ورونړو وارث كيدل. او د انصارو رشته دار او ذوي الارحام به نۀ وارث كيدل، خكه چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مهاجرينو او انصارو كښې ورور ولي قائمه كړې وه، نو هر كله چه دا آيت: وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ الآية نازل شو، نو د سابقه بهائي بندي د ميراث سلسله منسوخ شوله. ابن عباسؓ اووې، چا چه قسمونو سره عهد كړې وو، هغوي د پاره تركه يعني ميراث پاتې نۀ

الْمِيْرَاثُ وَ يُوْصِيُ لَهُ سَمِعَ أَبُوْ أُسَامَةَ إِدْرِيْسَ وَ سَمِعَ إِدْرِيْسُ طَلْحَةَ.

باب ۱۷۵ : قَوْلِهِ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ يَعْنِيُ زِنَةَ ذَرَّةٍ.

۵۶۶ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ حَدَّثَنَا أَبُوْ عُمَرَ حَفْصُ بْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِ أَنَّ أُنَاسًا فِيْ زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلْ نَرٰى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ هَلْ تُضَارُّوْنَ فِيْ رُؤْيَةِ الشَّمْسِ بِالظَّهِيْرَةِ ضَوْءٌ لَيْسَ فِيْهَا سَحَابٌ قَالُوْا لَا قَالَ وَ هَلْ تُضَارُّوْنَ فِيْ رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ ضَوْءٌ لَيْسَ فِيْهَا سَحَابٌ قَالُوْا لَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تُضَارُّوْنَ فِيْ رُؤْيَةِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا كَمَا تُضَارُّوْنَ فِيْ رُؤْيَةِ أَحَدِهِمَا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ يَتَّبِعُ كُلُّ أُمَّةٍ مَا كَانَتْ تَعْبُدُ فَلَا يَبْقٰى مَنْ

شو. البته وصيت باقي دے. دا حديث ابو اسامه ذ ادريس نه او ادريس ذ ذ طلحه نه آوريدلے دے.

باب ۱۷۵ : آيت: إِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ: ذ اللّٰه تعالىٰ قول چه اللّٰه تعالىٰ ذره قدرے هم ظلم نه کوي.

۵۶۶ : محمد بن عبدالعزيز. ابو عمر حفص بن ميسره. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته څو کسانو عرض اوکړ، يا رسول اللّٰه، آيا ذ قيامت په ورځ به مونږ اللّٰه تعالىٰ وينو، حضورؐ ورته اوفرمائيل، او، وينئ به، ذ غرمے وخت کښې چه وريځ وغيره هيڅ نه وي، صفا رڼا خوره شوے وي، نو آيا ذ نمر په ليدو کښې تاسو ته څه اختلاف شته، هغوي عرض اوکړ، نه. دے نه پس حضورؐ اوفرمائيل، په څوارلسمه شپه چه وريځ وغيره نه وي، نو ذ سپوږمۍ په ليدو کښې ستاسو څه اختلاف شته. هغوي عرض اوکړ، نه، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، بس دغه شان به ذ قيامت په ورځ تاسو اللّٰه تبارک و تعالىٰ وينئ. او هيڅ تکليف به نه وي، څنګه چه ذ نمر يا سپوږمۍ ليدو کښې څه تکليف نه وي. او ذ قيامت ورځ به داسے ورځ وي. چه څوک آواز کونکے به آواز اوکړي، اے خلقو، تاسو کښې چه کوم سړي ذ چا عبادت کولو، هغه دے هغه سرے شي، ذ اللّٰه نه سوا عبادت کونکے به هيڅوک باقي پاتے نشي، ټول دروغجن پوجاريان (پرستش کونکي) به خپلو دروغجنو معبودانو سره دوزخ کښې اوغورځيږي. او صرف هغه به باقي پاتے شي، چه ذ اللّٰه تعالىٰ عبادت ئے کولو. هغوي کښې به ښه بد ټول وي. بيا به څه اهل

كَانَ يَعْبُدُ غَيْرَ اللّٰهِ مِنَ
الْاَصْنَامِ وَالْاَنْصَابِ اِلَّا يَتَسَاقَطُوْنَ
فِي النَّارِ حَتّٰى اِذَا لَمْ يَبْقَ
اِلَّا مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللّٰهَ بَرٌّ اَوْ
فَاجِرٌ وَغُبَّرَاتُ اَهْلِ الْكِتَابِ
فَتُدْعَى الْيَهُوْدُ فَيُقَالُ لَهُمْ مَنْ
كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ قَالُوْا كُنَّا نَعْبُدُ
عُزَيْرَ بْنَ اللّٰهِ فَيُقَالُ لَهُمْ كَذَبْتُمْ
مَا اتَّخَذَ اللّٰهُ مِنْ صَاحِبَةٍ وَّلَا وَلَدٍ
فَمَا ذَا تَبْغُوْنَ فَقَالُوْا عَطِشْنَا
رَبَّنَا فَاسْقِنَا فَيُشَارُ اَلَا تَرِدُوْنَ
فَيُحْشَرُوْنَ اِلَى النَّارِ كَاَنَّهَا
سَرَابٌ يَحْطِمُ بَعْضُهَا بَعْضًا
فَيَتَسَاقَطُوْنَ فِي النَّارِ ثُمَّ
يُدْعَى النَّصَارٰى فَيُقَالُ لَهُمْ مَنْ
كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ قَالُوْا كُنَّا نَعْبُدُ
الْمَسِيْحَ ابْنَ اللّٰهِ فَيُقَالُ لَهُمْ كَذَبْتُمْ
مَا اتَّخَذَ اللّٰهُ مِنْ صَاحِبَةٍ وَّلَا وَلَدٍ
فَيُقَالُ لَهُمْ مَاذَا تَبْغُوْنَ كَذٰلِكَ مِثْلَ
الْاَوَّلِ حَتّٰى اِذَا لَمْ يَبْقَ اِلَّا مَنْ كَانَ
يَعْبُدُ اللّٰهَ مِنْ بَرٍّ اَوْ فَاجِرٍ اَتَاهُمْ رَبُّ
الْعٰلَمِيْنَ فِيْ اَدْنٰى صُوْرَةٍ مِنَ الَّتِيْ
رَاَوْهُ فِيْهَا فَيُقَالُ مَاذَا تَنْتَظِرُوْنَ يَتَّبِعُ
كُلُّ اُمَّةٍ مَا كَانَتْ تَعْبُدُ قَالُوْا فَارَقْنَا
النَّاسَ فِي الدُّنْيَا عَلٰى اَفْقَرِ مَا كُنَّا
اِلَيْهِمْ وَلَمْ نُصَاحِبْهُمْ وَنَحْنُ نَنْتَظِرُ

كتاب يعني يهوديان راوغوښتلې شي، او هغوي ته به اُوونيلې شي، آيا تاسو دَ خدائے نه علاوه دَ بل چا هم عبادت کړے وو، هغوي به جواب ورکړي، او، مونږ به دَ حضرت عزيز عليه السلام هم عبادت کولو، هغهٔ دَ خدائے خوئے وو، نو هغوي ته به اوونيلې شي، تاسو دروغ وائي. دَ خدائے نهٔ ښځه شته او نهٔ خوئے. بيا به دَ هغوي نه تپوس اوشي. تاسو څهٔ غواړئ، نو هغوي به وائي، مونږه تږي يُو، که لږے اُوبهٔ راکړے شي، نو هغوي دَ پاره به دَ شړو يو ميدان جوړ کړيشي، چه دَ اُوبو په شان به ځليږي، حالانکه هغه به دوزخ وي، هغې ته به واستولې شي، او هغې کښې به دوي اوسوزي. دے نه پس به نصارئ راوغښتلې شي، او هغوي نه به هم دغه تپوس اوشي، تاسو دَ اللّٰه نه سِوا دَ چا عبادت کړے دے، هغوي به وائي، مونږ خو دَ يسوع مسيحٔ عبادت کولو، هغه دَ خدائے فرزند دے، جواب به ورکړے شي، تاسو دروغجن ئې، ځکه چه دَ اللّٰه هيڅ اولاد يا ښځه نشته. بيا به ترے تپوس اوشي، ښهٔ ده تاسو څهٔ غواړئ، هغوي به هم هغه جواب ورکړي، کوم چه يهوديانو ورکړے وو، بيا به روان شي، او دوزخ کښې به اُوغرځيږي، بيا به ميدان کښې صرف هغه خلق پاتې شي، چا چه يوازے دَ اللّٰه عبادت کولو. دوي کښې به هم ښهٔ او بد ټول وي، خو اللّٰه به هغوي ته په هغې صورت په نظر رانشي، کوم چه دَ هغوي خيال وي، نو هغوي ته به اوونيلې شي، تاسو دَ چا انتظار کښئ ئې، حالانکه هره فرقه خپل ځائے ته اورسيده، هغوي به جواب ورکړي مونږ دَ هغې معبود برحق انتظار کښئ يو، چه دَ هغهٔ مو عبادت کولو. بيا به

رَبَّنَا الَّذِىْ كُنَّا نَعْبُدُ فَيَقُوْلُ اَنَا رَبُّكُمْ فَيَقُوْلُوْنَ لَا نُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلَاثًا.

ورته الله تعالىٰ اوفرمائي زهٔ ستاسو رب يم، بيا به ټول خلق اووائي، مونږ الله سره هيڅوک شريک او برابر نه جوړوو، دا جمله به دوه يا درې خله اووائي.

## بَابٌ ۱۷۶۱: قَوْلِهٖ فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍۭ بِشَهِيْدٍ وَ جِئْنَابِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيْدًا اَلْمُخْتَالُ وَالْخَتَّالُ وَاحِدٌ نَطْمِسُ نُسَوِّيْهَا حَتّٰى تَعُوْدَ كَاَقْفَائِهِمْ طَمَسَ الْكِتَابَ مَحَاهُ سَعِيْرًا وَّ قُوْدًا.

باب ۱۷۶۱: آيت: فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍۭ بِشَهِيْدٍ: دَ الله تعالىٰ قول، نو څهٔ حال به وي، کوم وخت چه مونږ په هره فرقه يو ګواه جوړ کړو، او اے محمد صلى الله عليه وسلّم، تا به په هغوي ګواه جوړ کړو. "مختال" او "ختال" يو معنى دي، يعنې مغرور. "نطمس" مطلب دادے، چه مونږ به هغوي وران کړو، ختم کړو. او "سعيرًا" معنې دي خاشاک يا خشاک.

۵۶۷: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ يَحْيٰى بَعْضُ الْحَدِيْثِ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ قَالَ قَالَ لِىَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِقْرَاْ عَلَىَّ قُلْتُ اَقْرَاُ عَلَيْكَ وَ عَلَيْكَ اُنْزِلَ قَالَ فَاِنِّىْ اُحِبُّ اَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِىْ فَقَرَاْتُ عَلَيْهِ سُوْرَةَ النِّسَآءِ حَتّٰى بَلَغْتُ فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍۭ بِشَهِيْدٍ وَ جِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيْدًا قَالَ اَمْسِكْ فَاِذَا عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ.

۵۶۷: صدقه بن فضل. يحيٰى بن سعيد. سفيان ثوري. سليمان. ابراهيم نخعي. عبيده بن عمرو سلماني. حضرت عبدالله بن مسعود نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، حضور صلى الله عليه وسلّم ماته اوفرمائيل، ماته قرآن واوروه. ما حضورؐ ته عرض اوکهٔ، قرآن خو په تاسو نازل شوے دے، او زهٔ ئے درته واوروم، وے فرمائيل، او ماته دَ نورو دَ ژبے نه آوريدل خوند راکوي، نو ما دَ سورهٔ نساء تلاوت شروع کړلو، کوم وخت چه دے آيت ته راورسيدم: فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا الخ: يعنې څهٔ حال به وي، هر کله چه دَ هرے فرقے نه مونږ يو ګواه اوغواړو، او تا په هغوي ګواه کړو، نو دَ حضورؐ زړهٔ دومره نرم شولو، چه دَ سترګو نه ئے اوښکے توئے شوے او وے فرمائيل، بس دے.

## بَابٌ ۱۷۷۱: قَوْلِهٖ وَ اِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰى اَوْ عَلٰى سَفَرٍ اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ صَعِيْدًا وَجْهُ

باب ۱۷۷۱: آيت: وَ اِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰى اَوْ عَلٰى سَفَرٍ الخ: دَ الله تعالىٰ قول، که تاسو ناروغه ئے، يا سفر کښ ئے، يا تاسو کښ څوک رفع حاجت دَ پاره راشي، يا

الْأَرْضِ وَ قَالَ جَابِرٌ كَانَتِ الطَّوَاغِيْتُ الَّتِيْ يَتَحَاكَمُوْنَ اِلَيْهَا فِيْ جُهَيْنَةَ وَاحِدٌ وَّ فِيْ اَسْلَمَ وَاحِدٌ وَّ فِيْ كُلِّ حَيِّ وَاحِدٌ كُهَّانٌ يَنْزِلُ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ وَ قَالَ عُمَرُ الْجِبْتُ السِّحْرُ وَالطَّاغُوْتُ الشَّيْطَانُ وَ قَالَ عِكْرِمَةُ الْجِبْتُ بِلِسَانِ الْحَبَشَةِ شَيْطَانٌ وَالطَّاغُوْتُ الْكَاهِنُ.

ښخے سره نے کور والے کړے وي. "صَعِيْدًا" معني دي ذَ زمکے سطح. جابر وائي "طَاغُوْت" هغه خلق دي' چه هغوي ته به کافرو خپلے مقدمے اوړلے. ذَ جاهلیت زمانه کښې به هرے قبیلہ کښې کاهن وو' چه ذَ هغوي به شیطانان هم وو' ابن عمرؓ وائي ذَ "جبت" معني ذَ جادو دي. او "طاغوت" نه مراد شیطان دے' او عکرمه اووے' ذَ "جبت" معني حبشي ژبه کښې ذَ شیطان دي' او "طاغوت" نه مراد کاهن دے.

۵۶۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ هَلَكَتْ قِلَادَةٌ لِاَسْمَآءَ فَبَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ طَلَبِهَا رِجَالًا فَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ وَ لَيْسُوْا عَلٰى وُضُوْءٍ وَّلَمْ يَجِدُوْا مَآءً فَصَلُّوْا وَهُمْ عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ يَعْنِيْ اٰيَةَ التَّيَمُّمِ.

۵۶۸: محمد. عبده. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي' ذَ هغے بیان دے' یو خل سفر کښې خما هار ورک شولو' چه ما ذَ خپلے خور اسماءؓ نه غوښتلے وو' حضورؐ خو کسان تلاش ذَ پاره اولیږل' هغے خلقو تلاش کولو' چه ذَ مونځ وخت راغے' ذَ هغوي اودس نۀ وو او اوبۀ هم لرے پورے نۀ وے' نو بے اودسه ئے مونځ اوکړلو' هغه وخت دا آیت نازل شولو (یعني ذَ تیمم آیت).

بَابٌ ۱۷۸: قَوْلُهٗ أُولِى الْاَمْرِ مِنْكُمْ ذَوِى الْاَمْرِ.

باب ۱۷۸: آیت: أُولِى الْاَمْرِ مِنْكُمْ: ذَ اللّٰه تعالیٰ قول' ذَ خپلو حاکمانو اطاعت کوئے' یعني کوم چه صاحب امر دي.

۵۶۹: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ يَعْلَى بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ اُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ قَالَ نَزَلَتْ فِيْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حُذَافَةَ بْنِ قَيْسِ بْنِ عَدِيٍّ اِذْ

۵۶۹: صدقه بن فضل. حجاج بن محمد. ابن جریج. یعلي بن مسلم. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي' چه ذکر شوے آیت ذَ عبداللّٰه بن حذافه بن قیس بن عدي باره کښې نازل شوے دے' حضورؐ هغه ذَ یو فوج سردار په حیثیت اولیږلو' (هغه ذَ فوځ امتحان اخستو ذَ پاره لار کښې اُور بل کړلو' او فوځ ته ئے اووے' دے اُور

بَعَثَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَرِيَّةٍ.

كښې داخل شي، نو ډيرو خلقو انكار اوكړ، او څنې راضي هم شو).

بَابٌ ۱۷۹: قَوْلِهِ فَلَا وَ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ.

باب ۱۷۹: آيت: فَلَا وَ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ: دَ الله تعالىٰ ارشاد، ستا په رب قسم دے، چه دا خلق ايمان نۀ راوړي، څو پورے چه خپلو اختلافاتو كښې تا حاكم جوړ نۀ كړي.

۴۵۷۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ خَاصَمَ الزُّبَيْرُ رَجُلًا مِنَ الْاَنْصَارِ فِيْ شَرِيْجٍ مِنَ الْحَرَّةِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ اَرْسِلِ الْمَآءَ اِلٰى جَارِكَ فَقَالَ الْاَنْصَارِيُّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنْ كَانَ ابْنَ عَمَّتِكَ فَتَلَوَّنَ وَجْهُهُ ثُمَّ قَالَ اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ احْبِسِ الْمَآءَ حَتّٰى يَرْجِعَ اِلَى الْجُدُرِ ثُمَّ اَرْسِلِ الْمَآءَ اِلٰى جَارِكَ وَاسْتَوْعَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ حَقَّهُ فِيْ صَرِيْحِ الْحُكْمِ حِيْنَ اَحْفَظَهُ الْاَنْصَارِيُّ كَانَ اَشَارَ عَلَيْهِمَا بِاَمْرٍ لَهُمَا فِيْهِ سَعَةٌ قَالَ الزُّبَيْرُ فَمَا اَحْسِبُ هٰذِهِ الْاٰيَاتِ اِلَّا نَزَلَتْ فِيْ ذٰلِكَ فَلَا وَ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ.

۴۵۷۰: علي بن عبدالله. محمد بن جعفر. معمر. زهري. حضرت عروه نه روايت كوي، هغۀ اووے، دَ حضرت زبيرؓ يو څل يو انصاري سره جګړه پيښه شوه، چه اول دے څوک پټے (كهيت) اُوبۀ كړي، حضورؐ اوفرمائيل، اے زبيرهؓ اول تۀ خپل پټے اُوبۀ كړه، بيا ګوانډي دَ پاره اُوبه پريږده. انصاري اووے، اے دَ الله رسوله، تاسوٗ داسے شايد په دے وجه اوفرمائيل، چه دے ستاسو دَ ترور ځوئے دے. دے آوريدو سره دَ حضور صلي الله عليه وسلم مخ مبارک دَ غصے نه سُر (سرخ) شولو، او حضورؐ دوباره حضرت زبيرؓ ته اوفرمائيل، اول تۀ خپل باغ اُوبۀ كړه او پولے (بَلَيْ، دَ ديوال سر، ډبه، چجه، پولے، بيزه) پورے ئے اُوبۀ كړه. بيائے ګوانډي دَ پاره پريږده. زهري وائي، حضرت زبيرؓ ته حضورؐ پوره حق وركړلو، كني وړمبني حكم كښې دَ دواړو رعايت شوے وو. داسے څكه اوشو، چه انصاري حضورؐ په غصه كړلو. حضرت زبيرؓ وائي، څما خيال دے، دا آيت: فَلَا وَ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ الخ دے واقعے دَ پاره نازل شوے دے.

بَابٌ ۱۸۰: قَوْلِهِ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ

باب ۱۸۰: آيت: فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّيْنَ: هغه خلق هغوي سره دي، چه په هغوي

النَّبِيِّيْنَ.

۱۵۷۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَوْشَبٍ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَا مِنْ نَبِيٍّ يَمْرَضُ اِلَّا خُيِّرَ بَيْنَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَ كَانَ فِيْ شَكْوَاهُ الَّذِيْ قُبِضَ فِيْهِ اَخَذَتْهُ بُحَّةٌ شَدِيْدَةٌ فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّيْنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصَّالِحِيْنَ فَعَلِمْتُ اَنَّهُ خُيِّرَ.

اللّٰه انعام كړے دے' نبيُّون نه آخر پورے تفسير

۱۵۷۱: محمد بن عبداللّٰه بن حوشب. ابراهيم بن سعد. د هغه پلار. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي' ذ هغے بيان دے' ما ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل' فرمائيل ئے' هر نبي ته اختيار وركولے شي' چه هغه دُنيا او آخرت كښې اوسيدو د پاره يو غوره كړي' او كله چه هغه آخرت غوره كړي' نو بيا هغه له بيماري راشي' او ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم آواز ذ مرګ په مرض كښې سخت شوے وو. حضورؐ فرمائيل: مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ: نو زهٔ پوه شوم' چه حضورؐ ته هم اختيار وركړے شو' او حضورؐ آخرت له ترجيح وركړله.

باب ۱۸۱: قَوْلِهٖ وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اِلَى الظَّالِمِ اَهْلُهَا.

باب ۱۸۱: آيت: مَالَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ: ذ اللّٰه تعالٰي قول' تاسوله څهٔ شوے دي چه ذ خدائے په لار كښې نهٔ جنګيږئ. الظالم اهلها پورے.

۱۵۷۲: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ كُنْتُ اَنَا وَ اُمِّيْ مِنَ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ.

۱۵۷۲: عبداللّٰه بن محمد. سفيان. عبيداللّٰه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' هغهٔ اوريے زهٔ او خپله مور (اُم فضل) ذ كمزورونه وو.

۱۵۷۳: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍؓ تَلَا اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ قَالَ كُنْتُ اَنَا وَ اُمِّيْ مِمَّنْ عَذَرَ اللّٰهُ وَ يُذْكَرُ عَنِ

۱۵۷۳: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ايوب. ابن ابي مليكه نه روايت كوي' ذ هغهٔ بيان دے' ابن عباسؓ دا آيت: اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ الأية اولوست' او وے فرمائيل' زهٔ او خپله مور (اُم فضل) كمزورو كښې شامل يُو' اللّٰه مونږ دواړه معذور اوګڼړلو. حضرت ابن عباسؓ وائي: حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ: معني دا دي' چه ذ هغوي زړونه

ابْنِ عَبَّاسٍ حَصِرَتْ ضَاقَتْ، تَلْوُوا أَلْسِنَتَكُمْ بِالشَّهَادَةِ وَ قَالَ غَيْرُهُ الْمُرَاغَمُ الْمُهَاجَرُ رَاغَمْتُ هَاجَرْتُ قَوْمِيْ مَوْقُوتًا مُوَقَّتًا وَقْتَهُ عَلَيْهِمْ.

تنگ دي، او: تَلْوُوا أَلْسِنَتَكُمْ: معني دي، چه ژبه راتاؤ کړئے، گواهي ور کړئے، او نورو خلقو اووے، چه: مراغم: معني دي د هجرت مقام. او "موقوتًا" معنے دي مقرره وخت.

**باب ۱۸۲ : قَوْلِهِ فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ أَرْكَسَهُمْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بَدَّدَهُمْ فِئَةٌ جَمَاعَةٌ.**

**باب ۱۸۲ :** آيت: فَمَالَكُمْ فِي الْمُنَافِقِيْنَ فِئَتَيْنِ: د اللّٰه تعالي قول، تاسو د منافقانو باره کښې ولے دوه ډلے شوے، حالانکه اللّٰه هغوي گمراه کړل. ابن عباسؓ وائي، هغوي منتشرل کړل. "فِئَة" مطلب دے ډله او جماعت.

**۵۷۴ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ وَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ قَالَا حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيٍّ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِيْنَ فِئَتَيْنِ رَجَعَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أُحُدٍ وَّ كَانَ النَّاسُ فِيْهِمْ فِرْقَتَيْنِ فَرِيْقٌ يَقُوْلُ اقْتُلْهُمْ وَ فَرِيْقٌ يَقُوْلُ لَا فَنَزَلَتْ فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَ قَالَ إِنَّهَا طَيِّبَةٌ تَنْفِي الْخَبَثَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْفِضَّةِ.**

**۵۷۴ :** محمد بن بشار. غندر. عبدالرحمٰن. شعبه. عدي. عبداللّٰه بن يزيد. حضرت زيد بن ثابت نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے، دا آيت: فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِيْنَ الخ هغه وخت نازل شو، چه جنګ اُحد کښې د حضورؐ د اصحابو نه څهٔ خلقو حضورؐ پريښودلو او جدا شول. هغه وخت د مسلمانانو د دوي متعلق دوه رائے شوے وے، يو فريق وئيلے، دوي قتل کړئے، او څنو وئيلے، چه نه داسے مهٔ کوئے، رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل. د مدينے نوم طيّبه دے. دا ناپاکي او خباثت داسے لرے کوي، څنګه چه اُور د چاندي نه خيرے لرے کوي.

**باب ۱۸۳ : وَ إِذَا جَآءَ هُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوْا بِهٖ أَفْشَوْهُ كَافِيًا إِلَّا إِنَاثًا الْمَوَاتَ حَجَرًا أَوْ مَدَرًا وَمَا أَشْبَهَهُ مَرِيْدًا مُتَمَرِّدًا فَلَيُبَتِّكُنَّ**

**باب ۱۸۳ :** آيت: وَ إِذَا جَآءَ هُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ: د اللّٰه تعالي ارشاد، هر کله چه هغوي ته د امن يا سلامتي څهٔ خبر راشي، نو هغه فاش (خرکند) کړي. "يستنبطونه" معني دي، تحقيق دے اوکړي. او "حَسِيبًا" معني دي کافي. "اناثًا" وائي غير جاندار څيزونو ته، مثلاً کانړي وغيره. "مريد" وائي سرکش، دلير، بيباک ته. او

بَتَّكَهُ قَطَعَهُ قِيْلًا وَقَوْلًا وَاحِدٌ طُبِعَ خُتِمَ.

"يبتكن" مطلب دے پريكول. د "قيلاً" او "قولاً" يو معني دي. او "طبع" معني دي، مُهر لے كړلو (مُهر ئے پرے اووهلو).

## بَابُ ۱۸۴ : قَوْلِهِ وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءُ هُ جَهَنَّمُ.

باب ۱۸۴ : آيت: وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا: ذَ اللّٰه تعالىٰ قول، څوک چه يو مسلمان قصدًا اووژني، ذ هغهٔ سزا دا ده، چه هميشه به دوزخ كښې وي.

۵۷۵ : حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُغِيْرَةُ بْنُ النُّعْمَانِ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ اخْتَلَفَ فِيْهَا أَهْلُ الْكُوْفَةِ فَرَحَلْتُ فِيْهَا إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَسَأَلْتُهُ عَنْهَا فَقَالَ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءُ هُ جَهَنَّمُ هِيَ اٰخِرُ مَا نَزَلَ وَمَا نَسَخَهَا شَيْءٌ.

۵۷۵ : آدم بن ابي اياس. شعبه. مغيره بن نعمان. حضرت سعيد بن جبير نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، اهل كوفه ته ذ دے آيت په حكم كښې اختلاف وو، څكه چه بعضو به منسوخ او بعضو به غير منسوخ ګنړلو، ما ذ دے خبرے ذ حضرت ابن عباسؓ نه تپوس او كړ، هغهٔ اوفرمائيل، دا آيت: وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا الخ ذ قتل وغيره متعلق ذ ټولونه آخر كښې نازل شوے دے، او منسوخ نهٔ دے.

## بَابُ ۱۸۵ : قَوْلِهِ وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ أَلْقٰى إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا السِّلْمُ وَالسَّلَمُ وَالسَّلَامُ وَاحِدٌ.

باب ۱۸۵ : آيت: وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ أَلْقٰى إِلَيْكُمُ السَّلَامَ: ذَ اللّٰه تعالىٰ قول، ذ ملاقات په وخت چه څوک دربانديے سلام واچوي، هغهٔ ته دا مهٔ وائے چه تهٔ مؤمن نهٔ ئے. او ذ "سِلْمٌ" "سَلَمٌ" او "سَلَامٌ" يو معني دي، يعني سلامتي.

۵۷۶ : حَدَّثَنِيْ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ أَلْقٰى إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا قَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَانَ رَجُلٌ فِيْ غُنَيْمَةٍ لَهُ فَلَحِقَهُ الْمُسْلِمُوْنَ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ فَقَتَلُوْهُ وَ أَخَذُوْا غُنَيْمَتَهُ

۵۷۶ : علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بن دينار. عطاء. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے: وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ أَلْقٰى إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا: واله آيت شان نزول دا دے، څنے مسلمانان ذ جهاد نه واپس راتلل، لار كښې ورسره يو ګډبه يوڅائے شو، هغه مسلمانانو ته "السَّلام عليكم" اووے، نو مسلمانانو هغه قتل كهٔ،

فَأَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْ ذٰلِكَ اِلٰى قَوْلِهٖ عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا تِلْكَ الْغُنَيْمَةُ قَالَ قَرَأَ ابْنُ عَبَّاسٍ السَّلاَمُ.

او ذَ هغه تـولـو چيلـئـے نے واخستے' نو هغه وخت دا آيت نازل شو. ابن عباسؓ دے آيت كښ ذَ سلام لفظ وئيلے دے.

بَابُ ١٨٦: لَا يَسْتَوِى الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

باب ١٨٦: آيت: لَا يَسْتَوِى الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ: ذَ اللّٰه تعالىٰ قول' كورونو كښ ناست مؤمنان او ذَ اللّٰه لار كښ جهاد كونكي برابريدے نشي. ذَ دے تفسير.

٥٧٧: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَهْلُ بْنُ سَعْدِ نِ السَّاعِدِيُّ اَنَّهُ رَاٰى مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ فِي الْمَسْجِدِ فَاَقْبَلْتُ حَتّٰى جَلَسْتُ اِلٰى جَنْبِهٖ فَاَخْبَرَنَا اَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمْلٰى عَلَيْهِ لَا يَسْتَوِى الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَجَآءَهُ ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ وَهُوَ يُمِلُّهَا عَلَيَّ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ لَوْ اَسْتَطِيْعُ الْجِهَادَ لَجَاهَدْتُ وَ كَانَ اَعْمٰى فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ فَخِذُهٗ عَلٰى فَخِذِيْ ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ غَيْرُ اُولِى الضَّرَرِ.

٥٧٧: اسماعيل بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. صالح بن كيسان. ابن شهاب. حضرت سهل بن سعد ساعديؓ نه روايت كوي' هغه بيانوي' ما مروان بن حكم جمات كښ اوليد' زه راغلم' ذَ هغهٔ خوا كښ كيناستم' هغه حضرت زيد بن ثابت نه دا روايت كه' ذَ هغهٔ بيان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دا آيت: ماته اوليكلو: لَا يَسْتَوِى الْقَاعِدُوْنَ: يعني كورونو كښ ناست ايماندار ذَ اللّٰه لار كښ ذَ جهاد كونكو برابريدے نشي' دے كښ ابن ام مكتومؓ راغے' هغهٔ عرض اوكهٔ' اے ذَ اللّٰه رسوله' كه ما كښ ذَ جهاد طاقت وے' نو ضرور به م جهاد كړے وے' او هغه نابينا (ړوند) وو' حضورؐ خپل پتون ځما پتون سره دباؤ كړے ناست وو. دے وخت كښ په حضورؐ وحي راغلے' او ځما په پتون دومره بوج او وزن اوغرځيدلو ځما خيال راغے' چرته ځما هډوكے مات نشي. كوم وخت چه دا وزن كم شو' نو دا الفاظ نازل شو' "غير اولى الضرر" يعني چه دردمند او معذور نه وي.

٥٧٨: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ

٥٧٨: حفص بن عمرو. شعبه. ابي اسحاق.

حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا فَكَتَبَهَا فَجَاءَ ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ فَشَكَا ضَرَارَتَهُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ.

حضرت براء بن عازبؓ نه روايت كوي' هغه وائي' كوم وخت چه دا آيت: لا يستوي القاعدون من المؤمنين: نازل شو' نو حضورؐ زيد بن ثابتؓ راوغښتلو' او هغهٔ ته ئے دَ ليكلو حكم وركړلو' دے كښې ابن اُم مكتومؓ راغے' او دَ خپل نابينا كيدو عذر ئے اوكړلو' نو دغه وخت اللّٰه تعالىٰ "غير اولي الضرر" نازل كړلو.

۵۷۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ادْعُوْا فُلَانًا فَجَآءَهُ وَ مَعَهُ الدَّوٰةُ وَاللَّوْحُ اَوِ الْكَتِفُ فَقَالَ اكْتُبْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَخَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَا ضَرِيْرٌ فَنَزَلَتْ مَكَانَهَا لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

۵۷۹: محمد بن يوسف. اسرائيل. ابي اسحاق. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت كوي' دَ هغهٔ بيان دے' كوم وخت چه دا آيت نازل شولو' نو حضورؐ اوفرمائيل' زيد بن ثابتؓ راوغوارئے' هغه قلم' مشوانړے او هډوكي سره راغے' حضورؐ ورته اوفرمائيل' دا آيت اوليكه: لا يستوى القاعدون من المؤمنين والمجاهدون في سبيل اللّٰه: ابن ام مكتومؓ دَ حضورؐ شاته ناست وو' هغهٔ اووے' اے دَ اللّٰه رسوله' زهٔ خو يو نابينا سړے يم' او دَ جهاد قابل نهٔ يم' نو هغه وخت دا الفاظ نازل شو' چه خپلو كورونو كښې ناست (سوا دَ معذورانونه) او دَ اللّٰه په لار كښې جهاد كونكي برابريدے نشي (يعني دَ مجاهد درجه ډيره اوچته ده).

۵۸۰: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ ح وَ حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الْكَرِيْمِ اَنَّ مِقْسَمًا مَوْلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنَ الْحَارِثِ اَخْبَرَهُ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ لَا يَسْتَوِي

۵۸۰: ابراهيم بن موسي. هشام. ابن جريج. ح. اسحاق. عبدالرزاق. ابن جريج. عبدالكريم. مِقسَم. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' دَ هغهٔ بيان دے' دا آيت: لا يستوى القاعدون من المؤمنين: دَ هغے خلقو باره كښې نازل شوے وو' كوم چه بدر كښې نهٔ وو شريک شوي. او مجاهدين نه هغه

الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ عَنْ بَدْرٍ وَالْخَارِجُوْنَ اِلٰى بَدْرٍ.

خلق مراد دي، چه جنګ بدر کښې شريک شوي وو.

بـــاب۱۸۷ : قـــولـــه اِنَّ الَّـذِيْـنَ تَـوَفّٰهُـمُ الْـمَـلٰٓـئِـكَةُ ظَـالِـمِـيْ اَنْـفُسِهِمْ قَـالُوْا فِيْمَ كُنْتُمْ قَـالُوْا كُنَّـا مُسْتَضْعَفِيْنَ فِـــي الْاَرْضِ قَـــــالُـــوْا اَلَـــمْ تَـــكُـــنْ اَرْضُ الـــلّٰـــهِ وَاسِـــعَةً فَتُهَـــاجِـــرُوْا فِيْهَـــا. الاٰية.

باب۱۸۷ : آيت: اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْ اَنْفُسِهِمْ: دَ اللّٰه تعالٰي قول، هغه خلق چه دَ هغوي روحونه فريښتنې قبض كوي، كوم حالت كښې چه دا خلق په ځان ظلم كونكي وي، نو فريښتې به ترې تپوس اوكړي، تاسو كوم حال كښې وئې، دوي به وائي، مونږ زمكه كښې كمزوري وو، هغوي به جواب وركړي، آيا تاسو چرته بل ځائې نۀ بيامندلو، چه هلته مو هجرت كړې وې.

۱۵۸۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيْدَ الْمُقْرِئُ حَدَّثَنَا حَيْوَةُ وَ غَيْرُهٗ قَالَا حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَبُو الْاَسْوَدِ قَالَ قُطِعَ عَلٰى اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ بَعْثٌ فَاكْتُتِبْتُ فِيْهِ فَلَقِيْتُ عِكْرِمَةَ مَوْلٰى ابْنِ عَبَّاسٍ فَاَخْبَرْتُهٗ فَنَهَانِيْ عَنْ ذٰلِكَ اَشَدَّ النَّهْيِ ثُمَّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ عَبَّاسٍ اَنَّ نَاسًا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ كَانُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ يُكَثِّرُوْنَ سَوَادَ الْمُشْرِكِيْنَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي السَّهْمُ فَيُرْمٰى بِهٖ فَيُصِيْبُ اَحَدَهُمْ فَيَقْتُلُهٗ اَوْ يُضْرَبُ فَيُقْتَلُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِيْ اَنْفُسِهِمُ الْاٰيَةَ. رَوَاهُ اللَّيْثُ عَنْ اَبِي الْاَسْوَدِ.

۱۵۸۱ : عبداللّٰه بن يزيد مقرئ. حيوه بن شريح. محمد بن عبدالرحمٰن ابو الاسود. هغوي اووې مدينې والو ته دَ يو فوج ويستلو حكم وركړې شو، په هغه فوج كښې ځما نامه هم اوليكلې شوه، بيا زۀ عكرمه له ورغلم چه دَ ابن عباسؓ غلام وو، او هغۀ ته مې دَ دې ذكر اوكړۀ. هغوي زۀ منع كړم، ډير، ئې منع كړم، بيائې اُووې، ماته ابن عباسؓ خبر راكړو، چه څۀ خلق دَ مسلمانانو نه مشركانو سره وو. دَ هغوي شمير ئې زياتولو دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په زمانه كښې بيا به يو غشې راغلو، دَ هغوي نه به څوك مړ شو، يا دَ تورې (تلوار) په وهلو به قتلولې كيدو. هغه وخت دا آيت نازل شو: اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْ اَنْفُسِهِمْ آخر آيت پورې. دا حديث ليث بن سعد هم ابو الاسود نه روايت كړو.

باب۱۸۸ : قَوْلِهٖ اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ حِيْلَةً وَّلَا يَهْتَدُوْنَ سَبِيْلًا.

باب۱۸۸ : آيت: اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ. ذَ اللّٰه تعالىٰ ارشاد: خو كمزورے سړے ښځے او بچي چه هيڅ حيله ئے نه لرله او نه ئے ذَ تلو طاقت وو (يعني ذَ هغوي ځائے دوزخ نه دے).

۵۸۲ : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ قَالَ كَانَتْ اُمِّيْ مِمَّنْ عَذَرَ اللّٰهُ.

۵۸۲ : ابو النعمان. حماد. ايوب. ابن ابي مليكه نه روايت كوي، ذَ هغهٔ بيان دے، حضرت ابن عباسؓ دے روايت سره اووے، خما مور هغے خلقو كښې شامله وه، چه هغه اللّٰه ذَ هجرت نه معذوره ساتلے وه.

باب۱۸۹ : قَوْلِهٖ فَعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّعْفُوَ عَنْهُمْ وَ كَانَ اللّٰهُ عَفُوًّا غَفُوْرًا.

باب۱۸۹ : آيت: فَعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّعْفُوَ عَنْهُمْ: ذَ اللّٰه تعالىٰ قول، نزدے ده، چه اللّٰه تعالىٰ هغوي معاف كړي، او اللّٰه تعالىٰ معاف كونكے او ښنونكے دے.

۵۸۳ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّى الْعِشَآءَ اِذْ قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ ثُمَّ قَالَ قَبْلَ اَنْ يَسْجُدَ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ اَبِيْ رَبِيْعَةَ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ الْوَلِيْدَ بْنَ الْوَلِيْدِ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْاَتَكَ عَلٰى مُضَرَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا سِنِيْنَ كَسِنِيْ يُوْسُفَ.

۵۸۳ : ابو نعيم. شيبان. يحيي. ابي سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذَ هغهٔ بيان دے، يو ځلے حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ ماسختن مونځ كولو، حضورؐ ذ "سمع اللّٰه لمن حمده" نه پس ذَ سجدے نه مخكښې داسے دُعا اوكړله يا اللّٰه، عياش بن ربيعه له ذَ كافرو ذَ ظلم او لاس نه نجات وركړے. يا اللّٰه سلمه بن هشام له نجات (خلاصي) وركړے، يا اللّٰه وليد بن وليدله خلاصي وركړے، يا اللّٰه، كمزورو مسلمانانو له نجات وركړے، يا اللّٰه ذَ مضر كافرو له سخته سزا وركړے، او په هغوي ذَ يوسف عليه السلام ذَ زمانے په شان اوږد قحط راولے.

باب۱۹۰ : قَوْلِهٖ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ كَانَ بِكُمْ اَذًى مِّنْ مَّطَرٍ

باب۱۹۰ : آيت: وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ كَانَ بِكُمْ اَذًى مِّنْ مَّطَرٍ: ذَ اللّٰه تعالىٰ قول، كه تاسو ذَ باران ذَ

اَوْ كُنْتُمْ مَرْضٰى اَنْ تَضَعُوْا اَسْلِحَتَكُمْ.

تكليف نه يا ذ څه زخم په وجه وسله كيږدئ نو په تاسو څۀ ګناه نشته.

**۵۸۴**: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَبُو الْحَسَنِ اَخْبَرَنَا حَجَّاجٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ يَعْلٰى عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اِنْ كَانَ بِكُمْ اَذًى مِنْ مَطَرٍ اَوْ كُنْتُمْ مَرْضٰى قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ كَانَ جَرِيْحًا.

**۵۸۴**: محمد بن مقاتل. ابوالحسن. حجاج. ابن جريج. يعلي. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے. حضرت عبدالرحمٰن بن عوفؓ زخمي شوے وو، نو ذ هغه متعلق دا آيت: اِنْ كَانَ بِكُمْ اَذًى مِنْ مَطَرٍ او كُنْتُمْ مَرْضٰى: نازل شولو.

**باب ۱۹۱**: قَوْلُهٗ وَ يَسْتَفْتُوْنَكَ فِى النِّسَآءِ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِى الْكِتَابِ فِىْ يَتَامَى النِّسَآءِ.

**باب ۱۹۱**: آيت: وَ يَسْتَفْتُوْنَكَ فِى النِّسَآءِ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، اے رسوله، خلق تانه ذ ښځو ذ ميراث متعلق تپوس كوي، ورته اووايه، اللّٰه دے باره كښې حكم دركوي، او كوم څيز چه په تاسو كتاب الٰهي ذ يتيمانو جينكو (ښځو) باره كښې لوستے شي.

**۵۸۵**: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ وَ يَسْتَفْتُوْنَكَ فِى النِّسَآءِ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ تَرْغَبُوْنَ قَالَتْ هُوَ الرَّجُلُ تَكُوْنُ عِنْدَهُ الْيَتِيْمَةُ هُوَ وَلِيُّهَا وَ وَارِثُهَا فَاَشْرَكَتْهُ فِىْ مَالِهٖ حَتّٰى فِى الْعَذْقِ فَيَرْغَبُ اَنْ يَنْكِحَهَا وَ يَكْرَهُ اَنْ يُزَوِّجَهَا رَجُلًا فَيُشْرِكُهُ فِىْ مَالِهٖ بِمَا شَرِكَتْهُ فَيَعْضُلُهَا فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ.

**۵۸۵**: عبيده بن اسماعيل. ابو اسامه. هشام بن عروه. عروه بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذ هغے بيان دے، دے آيت: و يستفتونك فى النساء الخ نه مراد هغه سړے دے، چه ذ يوے يتيمے جينئ (ښځے) وارث وي، او ذ هغے په څه مال كښې شريك هم وي، او بيا هغے سره نكاح كول هم غواړي. او بل سره نكاح كول بد ګنړي. په دے چه هغه غير سړے به ورسره مال كښې شريك شي، په دے بنا ښځه بل چا سره ذ نكاح كولو نه منع كړي، نو دے ذ پاره دا آيت نازل شولو.

**باب ۱۹۲**: قَوْلُهٗ وَ اِنِ

**باب ۱۹۲**: آيت: و اِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا

امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا اَوْ اِعْرَاضًا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ شِقَاقٌ تَفَاسُدٌ وَاُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ الشُّحَّ هَوَاهُ فِي الشَّيْءِ يَحْرِصُ عَلَيْهِ كَالْمُعَلَّقَةِ لَاهِيَ اَيِّمٌ وَلَا ذَاتُ زَوْجٍ نُشُوزًا بُغْضًا.

نُشُوْزًا: دَ اللّٰه تعالىٰ قول، كومه ښځه چه د خاوند د جنګ يا مخ اړولو نه ويريږي. ابن عباسؓ وائي. د "شقاق" معني دَ فساد او جنګ دي. دَ "شح" مطلب حرص او خواهش نفساني دے. او "كالمعلقة" مطلب دے، چه مينځ كښ آويزانده وي، ګويا نهٔ كُنده وي، نهٔ خاوند واله. او "نشوز" مطلب دے، ناراضګي، خفګي او بُغض وغيره.

۵۸۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُقَاتِلِ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَؓ وَ اِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا قَالَتِ الرَّجُلُ تَكُوْنُ عِنْدَهُ الْمَرْاَةُ لَيْسَ بِمُسْتَكْثِرٍ مِنْهَا يُرِيْدُ اَنْ يُفَارِقَهَا فَتَقُوْلُ اَجْعَلُكَ مِنْ شَانِيْ فِيْ حِلٍّ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ فِيْ ذٰلِكَ.

۵۸۶: محمد بن مقاتل. عبداللّٰه. هشام بن عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، دَ هغے بيان دے، يو سړي خپلے ښځے سره دَ محبت سلوک نهٔ كولو او غوښتل ئے، چه هغه جُدا كړي، ښځے اووے، ښه ده. زهٔ خپله نان نفقه معاف كوم، خو تهٔ ماله طلاق مهٔ راكوه، هغه وخت دا آيت نازل شولو، يعني تاسو خپلو كښ صلح اوكړئے، دا خبره ښه ده.

بَابُ ۱۹۳: قَوْلُهٗ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ اَسْفَلَ النَّارِ نَفَقًا سَرَبًا.

باب ۱۹۳: آيت: اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول، منافقان به دَ دوزخ لاندے طبقه كښ وي. ابن عباسؓ وائي يعني دَ دوزخ دَ لاندے اور "نفقًا" سُرنګ او زمين دوز لارے ته وائي.

۵۸۷: حَدَّثَنَا عُمَرُو بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ عَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ كُنَّا فِيْ حَلْقَةِ عَبْدِ اللّٰهِ فَجَآءَ حُذَيْفَةُ حَتّٰى قَامَ عَلَيْنَا فَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ لَقَدْ اُنْزِلَ النِّفَاقُ عَلٰى قَوْمٍ خَيْرٍ مِنْكُمْ قَالَ الْاَسْوَدُ سُبْحَانَ اللّٰهِ اِنَّ

۵۸۷: عمرو بن حفص. حفص بن غياث. اعمش. ابراهيم. اسود نه روايت كوي، مونږ او څهٔ نور خلق عبداللّٰه بن مسعود سره ناست وو. دے كښ يو صحابي حذيفه بن يمان راغے، او سلام ئے اوكهٔ، بيائے اووے، نفاق يو داسے بلا ده، چه تاسونه په ښو خلقو نازله شوے ده ما لږ تعجب سره اووے، سبحان اللّٰه، اللّٰه تعالىٰ خو فرمائي، چه منافق به دَ دوزخ لاندينئے حصه كښ

اللّٰهَ يَقُوْلُ اِنَّ الْمُنَافِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ فَتَبَسَّمَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ جَلَسَ حُذَيْفَةُ فِيْ نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ فَقَامَ عَبْدُ اللّٰهِ فَتَفَرَّقَ اَصْحَابُهٗ فَرَمَانِيْ بِالْحِصَا فَاَتَيْتُهٗ فَقَالَ حُذَيْفَةُ عَجِبْتُ مِنْ ضِحْكِهٖ وَقَدْ عَرَفَ مَا قُلْتُ لَقَدْ اُنْزِلَ النِّفَاقُ عَلٰى قَوْمٍ كَانُوْا خَيْرًا مِنْكُمْ ثُمَّ تَابُوْا فَتَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ.

وي، عبدالله بن مسعود مُسکے شولو، او حذيفه پاسيد، دَ جماعت يو گوټ کښې کيناستلو. دَ عبدالله شاګرد هم پاسيدلو، حذيفه يو ټُتکانړے ما پله راوويشتلو، او اشارے سره ئے خان پله اوبللم، او ويلے، زهٔ دَ عبدالله بن مسعودؓ مُسکے کيدو سره تعجب کښې اوګرځيدم ځکه چه ما څهٔ اووے، په هغے هغه ښهٔ پوه شولو بيشکه نفاق په هغه قوم راغلے، چه ستاسو نه بهتر وو. بيا دَ اسلام نه اوګرځيدل. بيائے توبه کړه، نو الله تعالىٰ دَ هغوي خطا معاف کړله.

باب ۱۹۴ : قَوْلِهٖ اِنَّا اَوْحَيْنَا اِلَيْكَ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ يُوْنُسَ وَ هَارُوْنَ وَ سُلَيْمَانَ.

باب ۱۹۴ : آيت: اِنَّا اَوْحَيْنَا اِلَيْکَ: دَ الله تعالىٰ قول، مونږ تاته وحي راوليږله، څنګه چه نوحؑ او نورو نبيانو طرف ته مو ليږلے وه، آخر آيت پورے.

۵۸۸ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ اَنْ يَقُوْلَ اَنَا خَيْرٌ مِنْ يُوْنُسَ بْنِ مَتّٰى.

۵۸۸ : مسدد. يحيي. سفيان. اعمش. ابو وائل. حضرت ابن مسعود نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو، ماته په يونس بن متي فضيلت مهٔ راکوئے (ځکه چه ممکنه ده تاسو دا اوګنړے، چه هغه دَ بے صبري په وجه څه موده پورے دَ کب په خيټه کښې وو).

۵۸۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالٌ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِنْ يُوْنُسَ بْنِ مَتّٰى فَقَدْ كَذَبَ.

۵۸۹ : محمد بن سنان. فليح بن سليمان. هلال بن علي. عطاء بن يسار. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، هغه وائي، رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو، کوم سړے چه دا اووائي، چه زهٔ يونس بن متي نه افضل يم، نو هغهٔ دروغ اووے.

باب ۱۹۵ : قَوْلِهٖ يَسْتَفْتُوْنَكَ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلَالَةِ

باب ۱۹۵ : آيت: يَسْتَفْتُوْنَکَ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْکُمْ: دَ الله تعالىٰ قول، تانه دَ کلاله متعلق تپوس کوي، ورته

اِنِ امْرُؤٌا هَلَكَ لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ وَّلَهُ اُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ وَهُوَ يَرِثُهَا اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَهَا وَلَدٌ وَالْكَلَالَةُ مَنْ لَّمْ يَرِثُهُ اَبٌ اَوْ اِبْنٌ هُوَ مَصْدَرٌ مِنْ تَكَلَّلَهُ النَّسَبُ.

او وايه، الله تاسو ته د كلاله باره كښې فتوي در كوي، كه يو سړے مړ شي او د هغه اولاد نه وي، صرف يوه خور ئے وي نو د هغه د مال نيمه حصه د خور ده، او هغه د خپلے خور وارث دے. كه د خور اولاد ئے نه وي. "كلاله" هغے چاته وائي، چه نه ئے پلار وي، نه خوئے. دا لفظ تَكَلَّلَهُ نه اُوتے دے.

**۵۹۰**: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ سَمِعْتُ الْبَرَآءِ قَالَ اٰخِرُ سُوْرَةٍ نَزَلَتْ بَرَآءَةٌ وَ اٰخِرُ اٰيَةٍ نَزَلَتْ يَسْتَفْتُوْنَكَ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلَالَةِ.

**۵۹۰**: سليمان بن حرب. شعبه. ابي اسحاق. حضرت براء بن عازب نه روايت كوي، د ټولونه آخر كښې چه كوم سورت نازل شو، هغه سورهٔ برأت دے. او آخر كښې چه كوم آيت نازل شو، هغه دا آيت دے: يستفتونک قل الله تفتيكم الخ.

# سُوْرَةُ الْمَائِدَةِ

# دَ سُوره مائده تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

حُرُمٌ وَاحِدُهَا حَرَامٌ فَبِمَا نَقْضِهِمْ بِنَقْضِهِمُ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ جَعَلَ اللّٰهُ، تَبُوْءَ تَحْمِلُ دَآئِرَةٌ دَوْلَةٌ وَ قَالَ غَيْرُهُ الْاِغْرَآءُ التَّسْلِيْطُ اُجُوْرَهُنَّ مُهُوْرَهُنَّ، اَلْمُهَيْمِنُ اَلْاَمِيْنُ الْقُرْاٰنُ اَمِيْنٌ عَلٰى كُلِّ كِتَابٍ قَبْلَهُ قَالَ سُفْيَانُ مَا فِي الْقُرْاٰنِ اٰيَةٌ اَشَدُّ عَلَيَّ مِنْ لَّسْتُمْ عَلٰى شَيْءٍ حَتّٰى تُقِيْمُوا التَّوْرٰةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَا اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِنْ رَّبِّكُمْ مَخْمَصَةٌ مَجَاعَةٌ مَنْ اَحْيَاهَا يَعْنِيْ مَنْ حَرَّمَ قَتْلَهَا اِلَّا بِحَقٍّ حَيِيَ النَّاسُ مِنْهُ جَمِيْعًا شِرْعَةً وَّ مِنْهَاجًا

"حُرُمٌ" جمع د حرام ده. او "فبما نقضهم" معني دي، د عهد ماتولو په وجه. "كتب الله" هغه معني دي، كومے چه د "جعل الله" دي. "تبوء" ته اوچت كړے. "دائره" د زمانے كردش "اغرا" معني دي لړول. د ابو عبيده په نزد "اجورهن" معني دي، د هغوي حق مهر. "المهيمن" معني امانتدار. قرآن ګويا د مخكنو كتابونو محافظ دے. سفيان وائي، څما خيال كښې د دے نه سخت آيت بل نشته، چه تاسو به هيڅ كښې نه ئے، څو پورے چه تورات، انجيل، او قرآن باندے پوره عمل اونه كړئے. "مخمصه" معني د لوږے دي. "من احياها" معني دي، چا چه قتل انساني حرام اوګنړلو، علاوه د حق شرعي نه. "شرعة" شريعت ته وائي "منهاجا" سنت

سَبِيْلًا وَ سُنَّةً.

محمدي ته وائي.

بـــاب١٩٦: قَـوْلِـهٖ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَخْمَصَةٌ مَجَاعَةٌ.

باب١٩٦: آيت: اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ: د الله تعالي قول' نن ما ستاسو دين مكمل كړلو' او ابن عباسؓ اووې' "مخمصه" معني د لوږې دي.

١٥٩١: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ قَيْسٍ عَنْ طَارِقِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَتِ الْيَهُوْدُ لِعُمَرَ اِنَّكُمْ تَقْرَءُوْنَ اٰيَةً لَوْ نَزَلَتْ فِيْنَا لَا تَّخَذْنَاهَا عِيْدًا فَقَالَ عُمَرُؓ اِنِّيْ لَاَعْلَمُ حَيْثُ اُنْزِلَتْ وَ اَيْنَ اُنْزِلَتْ وَ اَيْنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ اُنْزِلَتْ يَوْمَ عَرَفَةَ وَ اِنَّا وَاللّٰهِ بِعَرَفَةَ قَالَ سُفْيٰنُ وَ اَشُكُّ كَانَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اَمْ لَا اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ.

١٥٩١: محمد بن بشار. عبدالرحمٰن. سفيان. قيس. طارق بن شهاب نه روايت کوي' د هغه بيان دې' حضرت عمرؓ ته يهوديانو اووې' دا آيت چه تاسو وائې' که خمونږ متعلق نازل شوې وې' نو مونږ به هغه ورځ' په کومه چه دا نازل شوې دې' د اختر ورځ مقرر کړې وه. حضرت عمرؓ جواب ورکړ' ماته ښۀ معلومه ده' چه دا آيت کله او څۀ وخت نازل شوې وو' او حضور صلي الله عليه وسلم هغه وخت کوم ځائې تشريف لرلو. په خدائې مې دې قسم وي' کوم وخت چه دا آيت نازل شو' نو مونږ عرفات کښې وو' سفيان وائي' ماته دا په ښۀ شان ياد نۀ دي' چه هغه د جمعې ورځ وه' يا بله څۀ ورځ وه.

بـــاب١٩٧: قَـوْلِـهٖ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا تَيَمَّمُوْا تَعَمَّدُوْا اٰمِّيْنَ عَامِدِيْنَ' اَمَّمْتُ وَ تَيَمَّمْتُ وَاحِدٌ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَمَسْتُمُ وَ تَمَسُّوْهُنَّ وَاللَّاتِيْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ وَالْاِفْضَاءُ النِّكَاحُ.

باب١٩٧: آيت: فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا: د الله تعالي قول' که سفر کښې تاسو اوبۀ بيانۀ مومئې' نو پاکې خاورې سره تيمم کوئې' "تَيَمَّمُوْا" معني قصد' اراده. "آمين" قصد کونکې. "اممت" او "تيممت" د دوي يو معني دي' ابن عباسؓ اووې' "لا مستم" او "تمسوهن" او "دخلتم بهن" او "افضا" د دې ټولو معني د مباشرت' جماع دي.

١٥٩٢: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ

١٥٩٢: اسماعيل. مالک. عبدالرحمٰن بن محمد. بي بي عائشې ؓ تېر د حضور صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي' د هغې بيان دې' يو خل رسول الله صلي الله عليه وسلم سره په سفر

خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ اَسْفَارِهٖ حَتّٰى اِذَا كُنَّا بِالْبَيْدَآءِ اَوْ بِذَاتِ الْجَيْشِ انْقَطَعَ عِقْدٌ لِّيْ فَاَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى الْتِمَاسِهٖ وَ اَقَامَ النَّاسُ مَعَهٗ وَلَيْسُوْا عَلٰى مَآءٍ وَ لَيْسَ مَعَهُمْ مَآءٌ فَاَتَى النَّاسُ اِلٰى اَبِيْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِؓ فَقَالُوْا لَا تَرٰى مَا صَنَعَتْ عَائِشَةُؓ اَقَامَتْ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِالنَّاسِ وَلَيْسُوْا عَلٰى مَآءٍ وَ لَيْسَ مَعَهُمْ مَآءٌ فَجَاءَ اَبُوْبَكْرٍ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاضِعٌ رَّاْسَهٗ عَلٰى فَخِذِيْ قَدْ نَامَ فَقَالَ حَبَسْتِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسَ وَ لَيْسُوْا عَلٰى مَآءٍ وَ لَيْسَ مَعَهُمْ مَآءٌ قَالَتْ عَائِشَةُ فَعَاتَبَنِيْ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ قَالَ مَا شَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّقُوْلَ وَ جَعَلَ يَطْعُنُنِيْ بِيَدِهٖ فِيْ خَاصِرَتِيْ وَلَا يَمْنَعُنِيْ مِنَ التَّحَرُّكِ اِلَّا مَكَانُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اَصْبَحَ عَلٰى غَيْرِ مَآءٍ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اٰيَةَ التَّيَمُّمِ فَقَالَ اُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ مَا هِيَ بِاَوَّلِ بَرَكَتِكُمْ يَا اٰلَ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ فَبَعَثْنَا الْبَعِيْرَ الَّذِيْ كُنْتُ عَلَيْهِ فَاِذَا الْعِقْدُ تَحْتَهٗ.

لارم. کوم وخت چه مقام بیداء ته اورسیدو نو خما هار چرته ورک شولو. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم هغه خائے ایسار شولو او خلقو هار کتلو. او هغه خائے داسے وو چه د اوبو چرته نوم نشان نه وو. او خوا کښې هم چرته اوبه موجود نه وے. څه خلق حضرت ابوبکرؓ له راغلل. ورته ئے اووے. عجیبه خبره ده چه د بي بي عائشےؓ په وجه رسول الله صلي الله عليه وسلم او نور خلق ایسار شولو. نه دا خائے د اوبو دے اونه ورسره خوا کښې اوبه شته. دغه وخت حضورؐ خما په پتون سر مبارک ایښے وو. اوده وو. دے کښې حضرت ابوبکرؓ راغے او وئیلے. اے عائشےؓ تا رسول الله صلي الله عليه وسلم او ټول خلق داسے خائے کښې ایسار کړے دي. چه هلته اوبه هم نشته. او نه خوا کښې ورسره چرته اوبه موجود دي. نو ماته هغه سختے خبرے اوکړلے. زه په دے وجه خاموش ووم. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم خما په ورونړ (یا زنګون) سر ایښے اوده وو. حالانکه هغه (ابوبکرؓ) خما تشے هم اوخکنډلو. آخر سحر ته حضور صلي الله عليه وسلم بیدار شولو. خو اوبه موجود نه وے هغه وخت الله پاک دا آیت نازل کړلو. (یعني د تیمم آیت). حضرت اسید بن حضیر اووے. د دے آیت د نازلیدو سبب د حضرت ابوبکرؓ د اولاد بزرګي او کرامت دے. بي بي عائشہؓ فرمائي. کوم وخت چه خما اوښ پاسید. نو هار ترے لاندے بر آمد شولو.

۵۹۳ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِى ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِى عَمْرٌو اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ حَدَّثَهُ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ سَقَطَتْ قِلَادَةٌ لِّي بِالْبَيْدَاءِ وَ نَحْنُ دَاخِلُوْنَ الْمَدِيْنَةَ فَاَنَاخَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَزَلَ فَثَنٰى رَاْسَهُ فِيْ حَجْرِيْ رَاقِدًا اَقْبَلَ اَبُوْ بَكْرٍ فَلَكَزَنِيْ لَكْزَةً شَدِيْدَةً وَ قَالَ حَبَسْتِ النَّاسَ فِيْ قِلَادَةٍ فَبِيَ الْمَوْتُ لِمَكَانِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ اَوْجَعَنِيْ ثُمَّ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَيْقَظَ وَ حَضَرَتِ الصُّبْحُ فَالْتُمِسَ الْمَآءُ فَلَمْ يُوْجَدْ فَنَزَلَتْ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ الْاٰيَةَ فَقَالَ اُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ لَقَدْ بَارَكَ اللّٰهُ لِلنَّاسِ فِيْكُمْ يَا اٰلَ اَبِيْ بَكْرٍ مَا اَنْتُمْ اِلَّا بَرَكَةٌ لَّهُمْ.

۵۹۳ : يحيي بن سليمان. ابن وهب. عمرو بن حارث. عبدالرحمٰن بن قاسم بن محمد. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، د هغې بيان دے، مونږ مدينې ته واپس راتلو، چه لار كښې مقام بيداء كښې څما هار ورک شولو، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته چه معلومه شوه، نو خپله اُوښه ئے كينوله او هلته آرام دَ پاره ايسار شولو. او خپل سر مبارک ئے څما په غيږ كښې كيښودلو. لږ ساعت پس څما پلار حضرت ابوبكرؓ راغے، زۀ ئے په سينه په لاس اووهلم، چه تا ټول خلق دلته لويه پريشاني كښې اچولے دي، ماته ډير تكليف اوشو نو د حضورؐ دَ وجے نه م برداشت كړلو، او خاموش شوم، سحر ته چه حضورؐ بيدار شو، نو اُوبۀ ئے طلب كړے، خو اُوبۀ موجود نه وے، دغه وخت دا آيت نازل شولو: يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ: آخر پورے نازل شولو، په دغه موقعه اسيد بن حضير اووے اے د ابوبكرؓ آولاده، ستاسو دَ پاره دے دَ بركت او رحمت باعث وي، چه ستاسو په وجه دَ تيمم آيت نازل شولو.

بَاب ۱۹۸ : قَوْلِهِ فَاذْهَبْ اَنْتَ وَ رَبُّكَ فَقَاتِلَا اِنَّا هٰهُنَا قَاعِدُوْنَ.

باب ۱۹۸ : آيت: فَاذْهَبْ اَنْتَ وَ رَبُّكَ فَقَاتِلَا: د اللّٰه تعالي قول، ته او ستا رب لاړ شئے، جنگ اوكړئے، مونږ خو به دلته ناست يُو (تماشه به كوو) دَ دے تفسير.

۵۹۴ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ مُخَارِقٍ عَنْ طَارِقِ ابْنِ شِهَابٍ سَمِعْتُ ابْنَ مَسْعُوْدٍ قَالَ شَهِدْتُ مِنَ الْمِقْدَادِ ح وَ حَدَّثَنِيْ حَمْدَانُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا اَبُو النَّضْرِ

۵۹۴ : ابو نعيم. اسرائيل. مخارق. طارق بن شهاب. حضرت عبداللّٰه بن مسعود. حضرت مقداد. ح. حمدان بن عمر. ابوالنضر. اشجعي. سفيان. مخارق. طارق. حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دے، كوم وخت

حَدَّثَنَا الْاَشْجَعِيُّ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مُخَارِقٍ عَنْ طَارِقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ الْمِقْدَادُ يَوْمَ بَدْرٍ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا لَا نَقُوْلُ لَكَ كَمَا قَالَتْ بَنُوْ اِسْرَآئِيْلَ لِمُوْسٰى فَاذْهَبْ اَنْتَ وَ رَبُّكَ فَقَاتِلَا اِنَّا هٰهُنَا قَاعِدُوْنَ وَلٰكِنِ امْضِ وَ نَحْنُ مَعَكَ فَكَاَنَّهٗ سُرِيَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَوَاهُ وَكِيْعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مُخَارِقٍ عَنْ طَارِقٍ اَنَّ الْمِقْدَادَ قَالَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

چه حضور بدر ته تشریف اوړلو نو تولو صحابه ؤ سره ئې مشوره اوکړله. مقداد اووئې اې د الله رسوله! بني اسرائيلو موسى عليه السلام ته اووې: ته او ستا رب لاړ شئې جنګ اوکړئې مونږ به هيڅ کله دغسې اونه کړو، بلکه مونږ خو وايو چه تاسو فکر مه کوئې مونږ هر حال کښې تاسو سره يو، دې خبرې سره حضور صلي الله عليه وسلّم ډير خوشحاله شو. وكيع، سفيان، مخارق، طارق نه روايت کوي، چه حضرت مقداد دا خبره د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې عرض کړې وه.

**بَابُ ۱۹۹ : قَوْلِهٖ اِنَّمَا جَزَآءُ الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ يَسْعَوْنَ فِي الْاَرْضِ فَسَادًا اَنْ يُّقَتَّلُوْا اَوْ يُصَلَّبُوْا اِلٰى قَوْلِهٖ اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ الْمُحَارَبَةُ لِلّٰهِ الْكُفْرُ بِهٖ.**

**باب ۱۹۹ :** آيت: اِنَّما جَزَآءُ الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ: د الله تعالى قول، چا چه د الله او د هغهٔ د رسول خبره اونه منله او زمکه کښې د فساد خورولو کوشش اوکهٔ د هغوي سزا داده، چه قتل کړے شي، يا په سولئ کړے شي، يا لاس پښې ئې پريکړے شي، يا جلا وطن کړے شي (يعني بې وطنه کړے شي). "محاربة" معني دي کفر.

**۵۹۵ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَلْمَانُ اَبُوْ رَجَآءٍ مَوْلٰى اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ اَنَّهٗ كَانَ جَالِسًا خَلْفَ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ فَذَكَرُوْا وَ ذَكَرُوْا فَقَالُوْا وَ قَالُوْا قَدْ اَقَادَتْ بِهَا الْخُلَفَآءُ**

**۵۹۵ :** علي بن عبدالله. محمد بن عبدالله انصاري. ابن عون. سليمان. ابو رجاء (د ابن قلابه آزاد کړده غلام) ابو قلابه. حضرت عبدالله بن زيد نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دې، زهٔ عمر بن عبدالعزيز سره ناست ووم، څنې خلقو د قسامت (قسم خوړلو) ذکر اوچيړلو، او وئيلې، قسامت کښې قصاص لازميږي، څکه چه خلفاؤ هم د قصاص حکم ورکړلو، عمر بن عبدالعزيز چه تاؤ شو، نو وې ليدل، چه ابو قلابه شاته ناست وو، عمر بن

فَالْتَفَتَ إِلَى أَبِي قِلَابَةَ وَهُوَ خَلْفَ ظَهْرِهِ فَقَالَ مَا تَقُولُ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ زَيْدٍ أَوْ قَالَ مَا تَقُولُ يَا أَبَا قِلَابَةَ قُلْتُ مَا عَلِمْتُ نَفْسًا حَلَّ قَتْلُهَا فِي الْإِسْلَامِ إِلَّا رَجُلٌ زَنٰى بَعْدَ إِحْصَانٍ أَوْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ حَارَبَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا أَنَسٌ بِكَذَا وَ كَذَا قُلْتُ إِيَّايَ حَدَّثَنَا أَنَسٌ قَالَ قَدِمَ قَوْمٌ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمُوْهُ فَقَالُوْا قَدِ اسْتَوْخَمْنَا هٰذِهِ الْأَرْضَ فَقَالَ هٰذِهِ نَعَمٌ لَنَا تَخْرُجُ فَاخْرُجُوْا فِيْهَا فَاشْرَبُوْا مِنْ أَلْبَانِهَا وَ أَبْوَالِهَا فَخَرَجُوْا فِيْهَا فَشَرِبُوْا مِنْ أَبْوَالِهَا وَ أَلْبَانِهَا وَاسْتَصَحُّوْا وَمَالُوْا عَلَى الرَّاعِيْ فَقَتَلُوْهُ وَاطَّرَدُوا النَّعَمَ فَمَا يُسْتَبْطَأُ مِنْ هٰؤُلَاءِ قَتَلُوا النَّفْسَ وَ حَارَبُوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ وَ خَوَّفُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ فَقُلْتُ تَتَّهِمُنِيْ قَالَ حَدَّثَنَا بِهٰذَا أَنَسٌ قَالَ وَ قَالَ يَا أَهْلَ كَذَا إِنَّكُمْ لَنْ تَزَالُوا بِخَيْرٍ مَا أُبْقِيَ هٰذَا فِيْكُمْ وَ مِثْلُ هٰذَا.

عبدالعزيز هغهٔ ته اُوكتل، ورته ئې اووے، هيڅوک مسلمان سِوا دَ دې درې سرو نه واجب القتل نهٔ دے. اول چه محصن واده كړے وي، او زنا اوكړي، دويم چه په ناحقه ئې څوک وژلے وي، دريم چه الله او رسول سره ئې كفر كړے وي (يعني الله او رسول نه منكر وي) دې خبرے آوريدو سره عنبسه بن سعيد اووے مونږ خو دَ انس بن مالک نه آوريدلے دي، قصاص كيدل پكار دي. بيائې دا حديث بيان كړلو، دَ عرينه څنې سړي دَ حضور اكرمؐ په خدمت كښې حاضر شو، او ونيلے، دَ مدينې آب و هوا څمونږ موافق رانغله، او بدهضمي راته شوے ده. حضورؐ ورته اوفرمائيل، ښهٔ ده، څمونږ اُوښان څنګل له څرند دَ پاره څي، تاسو هم ورسره لاړ شئې، او د هغوي پئې وغيره څكئې. هغوي ورسره لاړل، او تندرست شو، بيا هغوي ګوارچي او وژلو، او اُوښان ئې ځان سره اوتښتول، آيا دَ داسې خلقو قتل كښې څهٔ ډيل كيدے شي، چه هغوي يو سړے اووژلو، الله او رسول سره ئې جنګ او نافرماني اوكړله، او دا شان هغوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خوفزده كړلو، دې آوريدو سره عنبسه سبحان الله اووے ما ورته اووے، ته ما دروغجن ګنړے، هغهٔ اووے، بلكه حضرت انس دا حديث ماته هم بيان كړے دے. ماته خو تعجب اوشو، چه تاته حديث ښهٔ ياد وي، دې نه پس عنبسه اووے، اے اهل شام، تاسو به هميشه خوشحاله ئې، څو پورے چه تاسو كښې دَ ابو قلابه شان عالم موجود وي.

## بَابٌ ۲۰۰ : قَوْلِهٖ وَالْجُرُوْحُ قِصَاصٌ.

## باب ۲۰۰ : آيت: وَالْجُرُوْحُ قِصَاصٌ: دَ الله تعالي قول، دَ هرې خبرې بدله به دَ هغې په مثل آخستے شي.

۵۹۶: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا الْفَزَارِيُّ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَسَرَتِ الرُّبَيِّعُ وَ هِيَ عَمَّةُ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ثَنِيَّةَ جَارِيَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَطَلَبَ الْقَوْمُ الْقِصَاصَ فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقِصَاصِ فَقَالَ أَنَسُ بْنُ النَّضْرِ عَمُّ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ لَا وَاللَّهِ لَا تُكْسَرُ سِنُّهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَنَسُ كِتَابُ اللَّهِ الْقِصَاصُ فَرَضِيَ الْقَوْمُ وَ قَبِلُوا الْأَرْشَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللَّهِ لَأَبَرَّهُ.

۵۹۶: محمد بن سلام. فزاری. حمید حضرت انس بن مالک نه روایت کوی. د هغه بیان دے چه خلمے خمنا ترور ربیع د یوے انصاریه دوه غابنونه مات کړل نو د هغے قوم والو د قصاص مطالبه اوکړله. حضور د قصاص حکم اوکړلو، خمنا ترهٔ انس بن نضر اووے، یا رسول الله، په الله مې دے قسم وي، د دے غابنونه نشي ماتیدے، رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل: اے انس دا د الله بعضے حکم دے. دا خبره کیدله چه د انصاریه رشته داران راضي شو او دیت اخستل ئے منظور کړل. حضور اوفرمائیل د الله نیک بنده چه د یوے خبرے قسم اوخوري، نو الله د هغهٔ خبره پوره کوي او هغه نهٔ دروغجن کوي.

باب ۱۰۲: قَوْلِهِ يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ.

باب ۱۰۲: آیت: يَا أَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَآ أُنْزِلَ إِلَيْکَ مِنْ رَبِّکَ: د الله تعالي قول، اے رسوله، اورسوه څهٔ چه ستا رب په تا نازل کړے دي.

۵۹۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَنْ حَدَّثَكَ أَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَمَ شَيْئًا مِمَّا أُنْزِلَ عَلَيْهِ فَقَدْ كَذَبَ وَاللَّهُ يَقُولُ يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ الْآيَة.

۵۹۷: محمد بن یوسف. سفیان. اسمعیل. شعبي. مسروق. بي بي عائشے نه روایت کوي، د هغے بیان دے، کوم سړے چه دا اووائي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم د خدائے یو حکم پټ کړے دے، نو هغه دروغجن دے. الله تعالي د دے آیت په ذریعه د تبلیغ حکم فرمائیلے دے، او انبیائے کرام د خدائے د حکم مطابق تعلیم ورکوي.

بـــاب ۲۰۲: قَـــوْلُـــهٗ لَا يُـؤَاخِـذُكُـمُ الـلّـٰهُ بِـالـلَّـغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ.

باب ۲۰۲: آیت: لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ: دَ اللّٰه تعالٰي قول، اللّٰه تعالٰي تاسو د بے مطلبه قسمونو په وجه نهٔ نیسي.

۵۹۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ سُعَيْرٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ فِيْ قَوْلِ الرَّجُلِ لَا وَاللّٰهِ وَ بَلٰى وَاللّٰهِ.

۵۹۸: علي بن سلمه. مالک بن سعیر. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي ذ هغې بیان دے، دا آیت: لا يؤاخذكم اللّٰه الخ ذ هغې سړي متعلق نازل شوے، چه ذ خپل عادت نه مجبور وي، او بلا قصده قسم خوري، څنګه چه خلق خبرو کښې والله بالله وائي.

ف: بلا وجے ذ قسم خوړلو عادت ښهٔ نه دے. ذ دے ترک کول پکار دي.

۵۹۹: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ رَجَآءٍ حَدَّثَنَا النَّضْرُ عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ اَبَاهَا كَانَ لَا يَحْنَثُ فِيْ يَمِيْنٍ حَتّٰى اَنْزَلَ اللّٰهُ كَفَّارَةَ الْيَمِيْنِ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ لَا اَرٰى يَمِيْنًا اُرٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا اِلَّا قَبِلْتُ رُخْصَةَ اللّٰهِ وَ فَعَلْتُ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ.

۵۹۹: احمد بن ابي رجاء. نضر. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، ذ هغې بیان دے، څما پلار ابوبکر به ذ خپل قسم خلاف هیڅ کله نه کولو، تردے چه ذ کفارے دا آیت نازل شولو. نو حضرت ابوبکرؓ اوفرمائیل، دے نه پس ما هر هغه قسم مات کړلو، چه هغے کښې ما خیر اونه لیدلو، او کفاره م ادا کړله، او ښهٔ کارم اختیار کړلو.

بـــاب ۲۰۳: قَـــوْلُـــهٗ لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ.

باب ۲۰۳: آیت. لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، اے ایمان والو، څهٔ چه اللّٰه تعالٰي تاسو ذ پاره حلال کړي دي. هغه په خان مهٔ حراموئے.

۶۰۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِؓ قَالَ كُنَّا نَغْزُوْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَيْسَ مَعَنَا

۶۰۰: عمرو بن عون. خالد. اسمٰعیل. قیس. عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روایت کوي، مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم سره په جهاد لاړلو، او ښځے مونږ سره نهٔ وے، مونږ ذ خپل حرارت او خواهش نه مجبور شو، عرض مو

نِسَآءٌ فَقُلْنَا اَلَا نَخْتَصِی فَنَهَانَا عَنْ ذٰلِكَ فَرَخَّصَ لَنَا بَعْدَ ذٰلِكَ اَنْ نَتَزَوَّجَ الْمَرْاَةَ بِالثَّوْبِ ثُمَّ قَرَاَ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ.

او کڅ آيا مونږ دے حصي نه شو. حضورؐ او فرمانيل داسے مه کونے. او وے فرمانيل چه لږو يا کمو ورخو د باره چه په هغے ښخه راضي شي نکاح ورسره او کړئ. بيا حضورؐ دا آيت تلاوت کړلو: يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا: الخ.

## باب ۲۰۴: قَوْلُهٗ اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْاَزْلَامُ الْقِدَاحُ يَقْتَسِمُوْنَ بِهَا فِي الْاُمُوْرِ وَالنُّصُبُ اَنْصَابٌ يَذْبَحُوْنَ عَلَيْهَا وَقَالَ غَيْرُهٗ اَلزَّلَمُ الْقِدْحُ لَارِيْشَ لَهٗ وَهُوَ وَاحِدُ الْاَزْلَامِ وَالْاِسْتِقْسَامُ اَنْ يُّجِيْلَ الْقِدَاحَ فَاِنْ نَهَتْهُ انْتَهٰى وَ اِنْ اَمَرَتْهُ فَعَلَ مَا تَاْمُرُهٗ وَقَدْ اَعْلَمُوا الْقِدَاحَ اَعْلَامًا بِضُرُوْبٍ يَسْتَقْسِمُوْنَ بِهَا وَ فَعَلْتُ مِنْهُ قَسَمْتُ وَالْقُسُوْمُ الْمَصْدَرُ.

## باب ۲۰۴: آيت: اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، شراب، جواري، بُت او د فال تيرونه ټول ناپاک او شيطاني کارونه دي. ابن عباسؓ وائي. "ازلام نه مراد ذ فال اوښکلو تيرونه دي، چه ذ هغے نه به ئے ذ قسمت حال معلومولو. او ذ "نُصب" نه تهان مراد دي، چه په هغے به کافرو قربانئے کولے. نورو خلقو اووے، چه "ازلام" ذ "زلم" جمع ده. زلم نه مراد بے وزرو غشے الوخول دي. که ذ منع فال به راوختلو نو هغه کار به ئے نۀ کولو، او که ذ حکم فال به راوختلو نو هغه کار به ئے کولو. مشرکانو په دے غشو قسم قسم تصويرونه جوړ کړے وو، چه ذ هغے نه به ئے ذ خپل خپل قسمت حال معلومولو. "استقسام" معني چه ذ متکلم صيغے ته بوځے، نو وايو به "قسمتُ" او "قسوم" مصدر دے.

۱۰۱: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَزَلَ تَحْرِيْمُ الْخَمْرِ وَ اِنَّ فِي الْمَدِيْنَةِ يَوْمَئِذٍ لَخَمْسَةَ اَشْرِبَةٍ وَمَا فِيْهَا شَرَابُ

۱۰۱: اسحاق بن ابراهيم. محمد بن بشر. عبدالعزيز بن عمر بن عبدالعزيز. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، ذ هغه بيان دے، ذ شرابو ذ حرام کيدو چه په کومه ورخ دا آيت نازل شو، يعني اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ: الخ نو مدينه کښ به هغه وخت پنځه قسمه شراب وو، خو انګوري

الْعِنَبِ.

نه وو.

۶۰۲: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ قَالَ قَالَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ مَا كَانَ لَنَا خَمْرٌ غَيْرَ فَضِيْخِكُمْ هٰذَا الَّذِيْ تُسَمُّوْنَهُ الْفَضِيْخَ فَاِنِّيْ لَقَائِمٌ اَسْقِيْ اَبَا طَلْحَةَ وَ فُلَانًا وَ فُلَانًا اِذْ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ وَ هَلْ بَلَغَكُمُ الْخَبَرُ فَقَالُوْا وَمَا ذَاكَ قَالَ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ قَالُوْا اَهْرِقْ هٰذِهِ الْقِلَالَ يَا اَنَسُ قَالَ فَمَا سَأَلُوْا عَنْهَا وَلَا رَاجَعُوْهَا بَعْدَ خَبَرِ الرَّجُلِ.

۶۰۲: يعقوب بن ابراهيم. ابن عليه. عبدالعزيز بن صهيب. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، يوه ورخ خما كور كښې سوا ذ فجورو د شرابو نه بل شراب نه وو ما په طلحه او نورو خلقو.فضيخ يعني ذ فجورو شراب څكول، دے كښې يو سړے راغے، او ونيلے، آيا تاسو ته معلومه نه ده، تپوس ترے اوشو، ذ څه، نو ونيل، چه شراب حرام كړے شو، نو هغه اووے، اے انسؓ، دا چاټے (مټكے) اوبهيوه. انسؓ وائي، بيا چا ذ هيڅ خبرے تپوس اونه كه، اونه ئے ذ دے خبرے خلاف كار اوكړلو.

۶۰۳: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ قَالَ صَبَّحَ اُنَاسٌ غَدَاةَ اُحُدٍ الْخَمْرَ فَقُتِلُوْا مِنْ يَوْمِهِمْ جَمِيْعًا شُهَدَآءَ وَ ذٰلِكَ قَبْلَ تَحْرِيْمِهَا.

۶۰۳: صدقه بن فضل. ابن عيينه. عمرو. حضرت جابرؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، څنے خلقو جنګ احد كښې سحر وخت كښې شراب اوڅكل، بيا ټول ميدان جنګ كښې اووژلے شو، دا واقعه هغه وخت پيښه شوے وه، چه ذ شرابو ذ حرام كيدو حكم لا نه وو نازل شوے.

۶۰۴: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ الْحَنْظَلِيُّ اَخْبَرَنَا عِيْسٰى وَابْنُ اِدْرِيْسَ عَنْ اَبِيْ حَيَّانٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ عَلٰى مِنْبَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَمَّا بَعْدُ اَيُّهَا النَّاسُ اِنَّهُ نَزَلَ تَحْرِيْمُ الْخَمْرِ وَ هِيَ مِنْ خَمْسَةٍ مِنَ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ وَالْعَسَلِ

۶۰۴: اسحاق بن ابراهيم الحنظلي. عيسٰي او ابن ادريس. ابي حيان. شعبي. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، ما ذ خپل پلار حضرت عمرؓ نه ذ خلافت زمانه كښې ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په منبر تقرير كولو كښې واوريدل، چه خلقو ذ شرابو ذ حرام كيدو حكم نازل شوے دے، او دا ذ پنځو څيزونو نه تياريږي، انګور،

وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ.

غنم، قجورے، شهد او وربشو نه او شراب هر هغه مشروب دے چه عقل زائل كوي.

بَابٌ ٢٠٥: قَوْلِهٖ لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْا اِلٰى قَوْلِهٖ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ.

باب ٢٠٥: آيت: لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول په هغے خلقو څۀ ګناه نشته، چه ايمان ئے راوړلو او نيک اعمال ئے اوكړل، په هغے څيز كښ، چه هغوي اوخوړلو، اوڅكلو، وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ: پورے.

٥٠٦: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّ الْخَمْرَ الَّتِيْ اُهْرِيْقَتِ الْفَضِيْخُ وَ زَادَنِيْ مُحَمَّدٌ عَنْ اَبِي النُّعْمَانِ قَالَ كُنْتُ سَاقِيَ الْقَوْمِ فِيْ مَنْزِلِ اَبِيْ طَلْحَةَ فَنَزَلَ تَحْرِيْمُ الْخَمْرِ فَاَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادٰى فَقَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ اخْرُجْ فَانْظُرْ مَا هٰذَا الصَّوْتُ قَالَ فَخَرَجْتُ فَقُلْتُ هٰذَا مُنَادٍ يُنَادِيْ اَلَا اِنَّ الْخَمْرَ قَدْ حُرِّمَتْ فَقَالَ لِيْ اِذْهَبْ فَاهْرِقْهَا قَالَ فَجَرَتْ فِيْ سِكَكِ الْمَدِيْنَةِ قَالَ وَ كَانَتْ خَمْرُهُمُ الْفَضِيْخُ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ قُتِلَ قَوْمٌ وَ هِيَ فِيْ بُطُوْنِهِمْ قَالَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْا.

٥٠٦: ابوالنعمان. حماد بن زيد. ثابت. حضرت انسؓ نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دے، كوم وخت چه شراب تونے كړے (واړولے) شو، نو ما ابو طلحه سره ټولو باندے شراب څكول، هغه وخت دَ شرابو دَ حرمت (حراميدو) حكم نازل شوے وو، اوشوه، داسے، چه رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم يو سړي ته حكم وركړلو، چه اعلان اوكړي، هغه اعلان كولو سره هلته راغے، نو ابو طلحه اوورے، اوكوره، دا څۀ وائي. زۀ چه بهرته راووتم، نو اُومِ ليدل، چه يو اعلان كونكے په زوره، زوره لګيا دے، چه اے خلقو، خبردار شئے، دَ نن نه شراب حرام كړے شوے دي، دے نه پس ابو طلحه اوفرمائيل، څئے، شراب واړوئے. دَ حضرت انسؓ بيان دے، په هغه ورځ دَ مدينے په لارو كښ شراب بهيدل، او په هغه ورځ شراب فضيخ يعني دَ قجورو شراب وو، يهوديانو ونيلے، چه مسلمانان داسے حال كښ اووژلے شو، چه دَ هغوي خيټے دَ شرابو نه ډكے وے، نو هغه وخت دا آيت: لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ: نازل شولو.

بَابٌ ٢٠٦: قَوْلِهٖ لَا

باب ٢٠٦: آيت: لَا تَسْاَلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ: دَ اللّٰه

تَسْأَلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ.

تعالى قول: د داسې خبرو تپوس مه کوئ چه د هغې ظاهريدو سره تاسو ته خفګان اورسي.

۶۰۶: حَدَّثَنَا مُنْذِرُ بْنُ الْوَلِيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْجَارُوْدِيُّ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُوْسَى بْنِ اَنَسٍ قَالَ خَطَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُطْبَةً مَا سَمِعْتُ مِثْلَهَا قَطُّ قَالَ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا اَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا فَغَطّٰى اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُجُوْهَهُمْ لَهُمْ حَنِيْنٌ فَقَالَ رَجُلٌ مَنْ اَبِيْ قَالَ فُلَانٌ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ لَا تَسْأَلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ رَوَاهُ النَّضْرُ وَ رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ عَنْ شُعْبَةَ.

۶۰۶: منذر بن وليد بن عبدالرحمٰن الجارودي. د هغهٔ پلار. شعبه. موسٰي بن انس. حضرت انسؓ نه روايت کوي، يو ځل حضورؐ داسې خطبه اولوسته، چه مخکښې ما نه وه آوريدلې، حضورؐ اوفرمائيل، څهٔ چه ماته معلوم دي، که تاسو ته معلوم وې، نو ډير کم به مو خاندل، او زيات به مو ژړل، دې آوريدو سره صحابهٔؓ خپل مخونه څادرونو سره پټ کړل، او د هغوي د ژړا آواز راغې، يو سړي تپوس اوکهٔ، حضورؐ څما پلار څوک دې، حضورؐ ورته اوفرمائيل، فلانې سړې ستا پلار دې، (څکه چه هغهٔ ته به خلقو حرامي وئيلې) حضورؐ د هغهٔ په تپوس ورته هغه نوم اوښودلو، چاته چه منسوب کيدلو، (دې آوريدو سره هغه ډير خفه شو) بيا دا آيت نازل شو، دا نضر، روح بن عباده، شعبه نه روايت کوي.

۶۰۷: حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ سَهْلٍ حَدَّثَنَا اَبُو النَّضْرِ حَدَّثَنَا اَبُوْ خَيْثَمَةَ حَدَّثَنَا اَبُو الْجُوَيْرِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ قَوْمٌ يَسْأَلُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتِهْزَآءً فَيَقُوْلُ الرَّجُلُ مَنْ اَبِيْ وَ يَقُوْلُ الرَّجُلُ تَضِلُّ نَاقَتُهُ اَيْنَ نَاقَتِيْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِمْ هٰذِهِ الْاٰيَةَ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْأَلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ حَتّٰى فَرَغَ مِنَ

۶۰۷: فضل بن سهل. ابوالنضر. ابو خيثمه. ابوالجويريه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دې، څنې خلقو د مذاق په طور د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه څنې خبرې اوپښتلې، يو سړې اووې، څما پلار څوک دې، يو اووې، څما اُوښه ورکه شوې ده، کوم ځائې به وي، نو هغه وخت دا آيت: يا ايها الذين اٰمنوا الخ نازل شولو، يعني اې ايمان والو، داسې خبرې مه پښتنې که ظاهرې کړې شي، نو په تاسې به بدې

الْآيَةَ.

## باب ٢٠٧: قَوْلِهِ مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ

وَ اِذْ قَالَ اللّٰهُ يَقُوْلُ قَالَ اللّٰهُ وَ اِذْ هٰهُنَا صِلَةٌ اَلْمَآئِدَةُ اَصْلُهَا مَفْعُوْلَةٌ كَعِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ وَ تَطْلِيْقَةٍ بَآئِنَةٍ وَالْمَعْنٰى مِيْدَ بِهَا صَاحِبُهَا مِنْ خَيْرٍ يُقَالُ مَادَنِيْ يَمِيْدُنِيْ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مُتَوَفِّيْكَ مُمِيْتُكَ.

٦٠٨: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ الْبَحِيْرَةُ الَّتِيْ يُمْنَعُ دَرُّهَا لِلطَّوَاغِيْتِ فَلَا يَحْلُبُهَا اَحَدٌ مِنَ النَّاسِ وَالسَّآئِبَةُ كَانُوْا يُسَيِّبُوْنَهَا لِاٰلِهَتِهِمْ لَا يُحْمَلُ عَلَيْهَا شَيْءٌ قَالَ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ عَمْرَو بْنَ عَامِرِ الْخُزَاعِيَّ يَجُرُّ قُصْبَهُ فِي النَّارِ كَانَ اَوَّلَ مَنْ سَيَّبَ السَّوَآئِبَ وَالْوَصِيْلَةُ النَّاقَةُ الْبِكْرُ تُبَكِّرُ فِيْ اَوَّلِ نِتَاجِ الْاِبِلِ ثُمَّ تُثَنِّيْ بَعْدُ بِاُنْثٰى وَ كَانُوْا يُسَيِّبُوْنَهَا لِطَوَاغِيْتِهِمْ اِنْ وَصَلَتْ اِحْدٰهُمَا بِالْاُخْرٰى لَيْسَ بَيْنَهُمَا ذَكَرٌ وَالْحَامُ فَحْلُ الْاِبِلِ يَضْرِبُ الضِّرَابَ الْمَعْدُوْدَ فَاِذَا قَضٰى

اولري.

## باب ٢٠٧: آيت: ما جعل الله من بحيرة ولا سآئبة:

د الله تعالى قول: الله بحيره، سائبه، وصيله، او حام جائز کړے نه دي، د دے تفسير. "اذ قال الله" کښې "يقول" معنې مستقبل د پاره دي. او "اذ" زائد دے "مائده" کښې مائده اسم فاعل په معني د مفعول دے "راضية" (عيشة راضية) کښې د مرضيه معني مراد دي. او "بائنة" هم په معني د مفعول دے. ابن عباسؓ وائي "متوفيک" معني دي، زۀ تاته مرګ درکونکے يم.

٦٠٨: موسى بن اسماعيل. ابراهيم بن سعد. صالح بن کيسان. ابن شهاب. حضرت سعيد بن مسيب نه روايت کوي، د هغۀ بيان دے بحيره هغے اُوښے ته وائي، چه هغه به کفارو د يو بُت نذر کړله، او آزاده به ئے پرېښودله، او هيڅ کار به ئے ترے نۀ آخستلو. ابن مسيب وائي حضرت ابوهريرهؓ اُووے، رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو، ما عمرو بن عامر خزاعي دوزخ کښې اوليد، چه سوزيدلو، د هغۀ کولمے بهرته راوتلے وے، او هغه هغۀ راښکلے. دا هغه سړے دے، چه هغه د ټولونه مخکښې د بُتانو په نوم اُوښه پرېښې وه. او وصيله هغے اُوښے ته وائي، چه په اول او دويم ځل ماده (ښځه) راوړي او هغه د بُت په نوم پرېږدي (يعني متصل دوه ځله ښځه اُوښه راوړي، چه د هغے مينځ کښې نر نۀ وي) او حام هغے ته وائي، چه هغے د پاره به کفارو وئيلے، که څمونږ د اُوښے لس يا شل

ضرابه و دَعَوْهُ لِلطَّوَاغِيتِ وَ اَعْفَوْهُ مِنَ الْحَمْلِ فَلَمْ يَحْمَلْ عَلَيْهِ شَيْءٌ وَ سَمُّوهُ الْحَامِيَ وَ قَالَ اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ سَمِعْتُ سَعِيْدًا قَالَ يُخْبِرُهُ بِهٰذَا قَالَ وَ قَالَ اَبُو هُرَيْرَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ وَ رَوَاهُ ابْنُ الْهَادِ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

(مقرره تعداد) بجي بيدا شي' نو مونږ د پاره به وي' اوكه زيات وي نو خمونږ د بُتانو به وي. بيا چه به زيات شو' نو هغه به نې د بُتانو په نوم پريښودل' او هغې نه به نې هيڅ كار نه اخستلو. د بخاري بيان دے چه دا حديث ابواليمان په واسطه د شعيب' هغه د زهري نه' هغه د سعيد بن مسيب نه بيان كړے دے. هغه اووے' ابوهريره رضي اللّٰه تعالٰي عنه وائي' ما د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل.

٦٠٩: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ يَعْقُوْبَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الْكَرْمَانِيُّ حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ جَهَنَّمَ يَحْطِمُ بَعْضُهَا بَعْضًا وَ رَاَيْتُ عَمْرًوا يَجُرُّ قُصْبَهُ وَهُوَ اَوَّلُ مَنْ سَيَّبَ السَّوَائِبَ.

٦٠٩: محمد بن ابي يعقوب. ابو عبداللّٰه الكرماني. حسان بن ابراهيم. يونس. زهري. عروه. بي بي عائشے نه روايت كوي' ذ هغے بيان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' ما دوزخ اُوليد' چه بعضو حصو ئے بعضے حصے خوړلے' او ما هغے كښ عمرو بن لحي اوليد' چه خپلے كولمے ئے راښكلے ذ ټولو نه مخكښ هغه ذ بُتانو په نوم سانډ پريښے وو. (د سائبے رسم ئے ايجاد كړے وو).

## بَاب ٢٠٨: قَوْلِهٖ وَ كُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِيْ كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ وَ اَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ.

باب ٢٠٨: آيت: وَ كُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ: ذ اللّٰه تعالٰي قول' زه به هغوي. ګواه ووم' څو پورے چه زه هغوي كښ ووم' او هر كله چه تا زه اوچت كړم' نو ذ هغوي نګهبان او ګواه ته ئے' او ته هر څيز وينے ګورے.

٦١٠: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ اَخْبَرَنَا الْمُغِيْرَةُ بْنُ

٦١٠: ابوالوليد. شعبه. مغيره بن نعمان. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباس نه روايت كوي'

النُّعْمَانِ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَطَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا اَيُّهَا النَّاسُ اِنَّكُمْ مَحْشُوْرُوْنَ اِلَى اللّٰهِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا ثُمَّ قَالَ كَمَا بَدَاْنَا اَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيْدُهٗ وَعْدًا عَلَيْنَا اِنَّا كُنَّا فَاعِلِيْنَ اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ ثُمَّ قَالَ اَلَا وَ اِنَّ اَوَّلَ الْخَلَائِقِ يُكْسٰى يَوْمَ الْقِيَامَةِ اِبْرٰهِيْمُ اَلَا وَ اِنَّهٗ يُجَآءُ بِرِجَالٍ مِنْ اُمَّتِيْ فَيُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ فَاَقُوْلُ يَا رَبِّ اُصَيْحَابِيْ فَيُقَالُ اِنَّكَ لَا تَدْرِيْ مَا اَحْدَثُوْا بَعْدَكَ فَاَقُوْلُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ وَ كُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِيْ كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ فَيُقَالُ اِنَّ هٰؤُلَاءِ لَمْ يَزَالُوْا مُرْتَدِّيْنَ عَلٰى اَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ.

د هغهٔ بیان دے. حضورﷺ خپله خطبه کښې اوفرمائیل: اے خلقو، تاسو به اللّٰه تعالٰي طرف ته پښې ابله پښې، بربنډ بدن، او ناسنته پاسولے شئے. بیا حضورﷺ دا آیت تلاوت کړلو: كما بدانا اول خلق الخ یعني کوم حال کښې چه ئے تاسو پیدا کړے ئے، په هغے حال کښې د قیامت په ورځ به مو اُوچتوي (پاسوي) د هغے وعدے مطابق چه مونږ کړے ده، او مونږ ددے کار کونکي یو. دے نه پس ئے اوفرمائیل. د ټولو نه مخکښې به حضرت ابراهیمؑ ته لباس واغستولے شي، بیا به څو سړي خما د اُمت راوستے شي، او فرښتے به هغوي دوزخ ته بوځي، نو زهٔ به عرض اوکړم، اے ربه، دا خو خما اُستیان دي. اللّٰه تعالٰي به اوفرمائي. او، خو تاته نهٔ دہ معلومه، چه دوي ستانه پس څهٔ څهٔ کارونه اوکړل، هغه وخت به زهٔ د حضرت عیسٰي په شان عرض اوکړم: وكنت عليهم شهيدًا مادمت فيهم: آخر آیت پورے. بیا به ارشاد باري اوشي، دا هغه خلق دي، چه ستا جُدا کیدو سره د دین نه کرخیدلي وو.

## بَـــابُ ۲۰۹: قَوْلُهٗ اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَ اِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ.

باب ۲۰۹: آیت: اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ: د اللّٰه تعالٰي قول، که تهٔ دوي له عذاب ورکړے، نو دا ستا بندیان دي، او که ته ئے معاف کړے، نو تهٔ غالب او دانا ئے.

۴۲۱۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الْمُغِيْرَةُ بْنُ النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّكُمْ

۴۲۱۱: محمد بن کثیر. سفیان. مغیره بن نعمان. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل، اے خلقو، تاسو به د قیامت په ورځ اللّٰه تعالٰي طرف ته پاسولے شئے.

مَحْشُوْرُوْنَ وَ اِنَّ نَاسًا يُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ فَاَقُوْلُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ وَ كُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَادُمْتُ فِيْهِمْ اِلٰى قَوْلِهٖ اِلْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ.

بيا به تاسو کښې څه خلق دوزخ کښې واچولے شي، دغه وخت به زه د حضرت عيسیٰ په شان هغه اووايم، څه چه هغه وئيلے وو، چه زه په دوي ګواه ووم، څو پورے چه زه دوي کښې ووم. العزيز الحكيم پورے.

# سُوْرَةُ الْاَنْعَامِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِتْنَتَهُمْ مَعْذِرَتَهُمْ مَعْرُوْشَاتٍ مَا يُعْرَشُ مِنَ الْكَرْمِ وَ غَيْرِ ذٰلِكَ، حَمُوْلَةً مَا يُحْمَلُ عَلَيْهَا، وَ لَلَبَسْنَا لَشَبَّهْنَا، يَنْأَوْنَ يَتَبَاعَدُوْنَ، تُبْسَلُ تُفْضَحُ، اُبْسِلُوْا اُفْضِحُوْا بَاسِطُوْا اَيْدِيْهِمُ الْبَسْطُ الضَّرْبُ اِسْتَكْثَرْتُمْ ثُمَّ اَضْلَلْتُمْ كَثِيْرًا، ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ، جَعَلُوْا لِلّٰهِ مِنْ ثَمَرَاتِهِمْ وَمَالِهِمْ نَصِيْبًا وَ لِلشَّيْطَانِ وَالْاَوْثَانِ نَصِيْبًا اَكِنَّةً وَاحِدُهَا كِنَانٌ، اَمَّا اشْتَمَلَتْ يَعْنِيْ هَلْ تَشْتَمِلُ اِلَّا عَلٰى ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى فَلِمَ تُحَرِّمُوْنَ بَعْضًا وَ تُحِلُّوْنَ بَعْضًا مَسْفُوْحًا مُهْرَاقًا صَدَفَ اَعْرَضَ اُبْلِسُوْا اُوْيِسُوْا وَ اُبْسِلُوْا اُسْلِمُوْا سَرْمَدًا

# دَ سورۀ انعام تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

ابن عباسؓ وائي، د "فتنتهم" معني عذر او بهانه "مَعْرُوْشَاتٍ" هغه زيلئے چه ديوالونو او څپرونو باندې خوريږي، لکه انګور وغيره. "حمولة" هغه ځناور چه بوج پرے اچولے شي يعني باردار. "للبسنا" معني مونږ به شبه اوغرځوو. "ينأون" معني لرے اوسيږي. "تبسل" معني رسوا او خوار کړے شي، "تبسلوا" هلاکت کښې اوغرځولے شو. 'باسطوا ايديهم" خپل لاس به ور اُوږدۀ کوي. "بسط" معني وهل. "استكثرتم" تا ډير انسان ګمراه کړل. "ذرأ من الحرث" يعني هغوي خپلو مالونو او ميوو کښې يوه حصه خو د الله د پاره اوګرځوله او بله حصه ئے خپلو بتانو د پاره مقرر کړله. "اكنة" معني پرده. دا د کنان جمع ده. "اما اشتملت" يعني د نر او ماده نه سوا په بل جنس مشتمل نۀ وي، بيا ولے تاسو يو حلال او بل حرام ګرځوئے. "مسفوحًا" بهيدونکے. "صَدَفَ" هغے نه اوګرځيدل. "اُبلسوا" نااميده شو. "ابسلوا" ګير شولو. هلاکت ته حواله کړے شو. "سرمدًا" هميشه قائم پاتے کيدونکے. "استهوته" هغه نے اوغرځولو، "تمترون" تاسو شبه کوئے. "وقر" په

ذَرِيَّتَنَا اسْتَهْوَتْهُ اَضَلَّتْهُ تَمْتَرُوْنَ تَشُكُّوْنَ وَقْرٌ صَمَمٌ وَ اَمَّا الْوِقْرُ الْحِمْلُ اَسَاطِيْرُ وَاحِدُهَا اُسْطُوْرَةٌ وَّاَسْطَارَةٌ وَهِيَ التُّرَهَاتُ الْبَاْسَآءُ مِنَ الْبَاْسِ وَ يَكُوْنُ مِنَ الْبُؤْسِ جَهْرَةً مُعَايَنَةً الصُّوَرُ جَمَاعَةُ صُوْرَةٍ كَقَوْلِهِ سُوْرَةٌ وَّ سُوَرٌ مَلَكُوْتٌ مُلْكٌ مِثْلُ رَهَبُوْتٌ خَيْرٌ مِنْ رَحَمُوْتٍ وَّ يَقُوْلُ تُرْهَبُ خَيْرٌ مِنْ اَنْ تُرْحَمَ جَنَّ اَظْلَمَ يُقَالُ عَلَى اللّٰهِ حُسْبَانُهُ اَيْ حِسَابُهُ وَ يُقَالُ حُسْبَانًا مَرَامِيَ وَ رُجُوْمًا لِلشَّيَاطِيْنِ مُسْتَقَرٌّ فِي الصُّلْبِ وَ مُسْتَوْدَعٌ فِي الرَّحِمِ اَلْقِنْوُ الْعِذْقُ وَالْاِثْنَانِ قِنْوَانٌ وَالْجَمَاعَةُ اَيْضًا قِنْوَانٌ مِثْلُ صِنْوٍ وَ صِنْوَانٍ.

معنى د ډاټ "صم" معنى بهرا پن كونړ توب "حمل" په معنى د وزن. "اساطير" يې سنده خبرې چه د هغې واحد "اسطورة" او "اسطارة" بمعنى قصه وغيره "الباساء" محتاجي او سختي "باس" او "بؤس" معنى محتاجي او سختي. "جهرة" مخامخ روبرو. "الصور" صورتونه څنګه چه صور. "سورة" سورتونه څنګه چه سور. "ملكوت" مطلب دے بادشاهت. "رهبوت" ډيره ويره. "رحموت" مهرباني، او وئيلې شي، چه ستا ويرول په تا د مهرباني كولو نه بهتر دي. "جنّ" د شپې تياره په هغه خوره شوله. "حسبانا" معنى حسابًا. او د حسبان معنى هم دغه دي. او "حسبان" معنى د شيطان په لير وهلو هم دي. "مستقر" مطلب دے، د اوسيدو ځائے. "صلب" په معنى د شا. "مستودع" د ښځې رحم. "القنو" غنچک. وږے. د دے تثنيه او جمع "قنوان" دے. او دغه شان "صنو" جمع "صنوان" ده يعنى جوړے يو ځائے شوے اُونې.

باب ٢١٠: قَوْلُهٗ وَ عِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا اِلَّا هُوَ.

باب ٢١٠: آيت: وَ عِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا اِلَّا هُوَ: د الله تعالىٰ قول، د غيب خزانې هغه سره دي، په هغې يې د خدايه بل څوک نه پوهيږي.

٢١٢: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ وَ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَ يَعْلَمُ مَا فِي الْاَرْحَامِ

٢١٢: عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. سالم بن عبدالله. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، حضورؐ اوفرمائيل. د غيب پنځه خزانې دي، چه هغه سوا د خدائے نه چاته نه وي معلومې (١) د قيامت علم (٢) د باران علم، چه كله به كيږي (٣) رحم كښې څه دي نر يا ماده (٤) صبا به

وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ مَا ذَا تَكْسِبُ غَدًا وَّمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ بِأَيِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ.

څه کوي (۵) مرګ به کوم ځائے او کله راځي، بیشکه الله تعالیٰ به هر څه پوهیدونکے او خبردار دے.

باب ۲۱۱: قَوْلِهٖ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ الْاٰيَةَ يَلْبِسَكُمْ يَخْلِطَكُمْ مِنَ الْاِلْتِبَاسِ يَلْبِسُوْا يَخْلِطُوْا شِيَعًا فِرَقًا.

باب ۲۱۱: آیت: قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ: ذَ الله تعالیٰ قول، ته ورته اووایه، چه الله په دے خبره قادر دے، چه په تاسو ذَ پاسه نه عذاب نازل کړي، آخر پورے. "یلبسکم" معني نه وتلے دے. "شیعًا" ډلے ډلے، فِرقے فِرقے.

۶۱۳: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعُوْذُ بِوَجْهِكَ قَالَ اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ قَالَ اَعُوْذُ بِوَجْهِكَ اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَّ يُذِيْقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا اَهْوَنُ اَوْ اَيْسَرُ.

۶۱۳: ابوالنعمان. حماد بن زيد. عمرو بن دينار. حضرت جابر بن عبدالله نه روایت کوي، ذَ هغه بیان دے، کوم وخت چه دا آیت: قل هو القادر علٰى ان يّبعث عليكم عذابًا الخ نازل شو، نو حضورﷺ ارشاد اوفرمائیلو: اعوذ بوجهك الخ: زهٔ ستا د ذات پناه اخلم، یعني ذَ هغے عذاب په حقله حضورﷺ معافي اوغښتله. بیا الله تعالیٰ ارشاد اوفرمائیلو: او یلبسکم شیعًا الخ: نو حضورﷺ اوفرمائیل، او دا ذَ دے نه آسان دے، چه په هغوي دا عذاب مسلط کړے شي.

باب ۲۱۲: قَوْلِهٖ وَلَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ.

باب ۲۱۲: آیت: وَلَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ: ذَ الله تعالیٰ قول، څوک چه ایمان راوړي، او خپل ایمان ظلم سره ګډوَډ نهٔ کړي.

۶۱۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَلَمْ يَلْبِسُوْا

۶۱۴: محمد بن بشار. ابن ابي عدي. شعبه. سليمان. ابراهيم. علقمه. حضرت عبدالله بن مسعود نه روایت کوي، کوم وخت چه دا آیت نازل شو (ولم يلبسوا ايمانهم بظلم) نو د حضورﷺ صحابهؓ ؤ عرض اوکهٔ،

يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ قَالَ أَصْحَابُهُ وَ أَيُّنَا لَمْ يَظْلِمْ فَنَزَلَتْ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ.

مونږ كښې داسې څوک دے، چه هغه ظلم نه وي كړے، نو دے نه پس دا آيت نازل شولو: إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ: يعني دَ ظلم نه مراد شرک دے.

باب ۲۱۳: قَوْلِهِ وَ يُونُسَ وَلُوطًا وَ كُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعٰلَمِيْنَ.

باب ۲۱۳: آيت: وَ يُوْنُسَ وَ لُوْطًا وَ كُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعٰلَمِيْنَ: دَ الله تعالىٰ قول، مونږ يونس، لوط او ټولو انبياؤ ته په تمام عالم فضيلت ور كړے دے.

۲۱۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ عَمِّ نَبِيِّكُمْ يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتّٰى.

۲۱۵: محمد بن بشار. عبدالرحمٰن بن مهدي. شعبه. قتاده. ابو العاليه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، هيڅ سړي دَ پاره دا مناسب نهٔ دي، چه هغه دا اووائي، چه زهٔ (محمدؐ) دَ يونس بن متي نه بهتر يم.

۲۱۶: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ أَخْبَرَنَا سَعْدُ بْنُ إِبْرٰهِيمَ قَالَ سَمِعْتُ حُمَيْدَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتّٰى.

۲۱۶: آدم. ابن ابي اياس. شعبه. سعد بن ابراهيم. حميد بن عبدالرحمٰن بن عوف. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو، هيڅ بنده دَ پاره دا مناسب نهٔ دي، چه هغه ما دَ يونس بن متي نه افضل اوګنړي.

باب ۲۱۴: قَوْلِهِ أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدٰهُمُ اقْتَدِهْ.

باب ۲۱۴: آيت: أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدٰهُمُ اقْتَدِهْ: دَ الله تعالىٰ ارشاد، چه دے نبيانو ته الله تعالىٰ هدايت ښبلے وو، اے رسوله، ته هم د هغوئ پيروي كوه.

۲۱۷: حَدَّثَنِي إِبْرٰهِيمُ بْنُ مُوسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ

۲۱۷: ابراهيم بن موسي. هشام. ابن جريج. سليمان احول. مجاهد نه روايت كوي، هغهٔ اووے، ما دَ حضرت ابن عباسؓ نه تپوس اوكهٔ، چه سوره صٓ كښې

اَخْبَرَنِىْ سُلَيْمَانُ الْاَحْوَلُ اَنَّ مُجَاهِدًا اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَاَلَ ابْنَ عَبَّاسٍ اَفِىْ صٓ سَجْدَةٌ فَقَالَ نَعَمْ ثُمَّ تَلَا وَ وَهَبْنَا اِلٰى قَوْلِهٖ فَبِهُدٰهُمُ اقْتَدِهْ ثُمَّ قَالَ هُوَ مِنْهُمْ زَادَ يَزِيْدُ بْنُ يُوْسُفَ عَنِ الْعَوَّامِ عَنْ مُجَاهِدٍ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ اُمِرَ اَنْ يَقْتَدِىَ بِهِمْ.

سجده شته؟ هغه اوفرمائيل' او' شته. بيائے دا آيت اولوست' اولٰئک الذين الخ: يعني دَ انبياؤ پيروي ضروري ده' هغوي کښ حضرت داؤدؑ دے' چه دَ هغهٔ دَ سجدے دے سورت کښ ذکر دے. دا حديث يزيد بن هارون او محمد بن عبيد او سهل بن يوسف' عوام بن حوشب نه او هغه دَ مجاهد نه روايت کړے دے. ما دَ ابن عباسؓ نه معلومه کړه' هغهٔ اوفرمائيل' پيغمبر صلي الله عليه وسلّم ته هم د مخکنو انبياؤ دَ پيروئ حکم ورکړے شوے دے.

## بَابٌ ۲۱۵: قَوْلِهٖ وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِىْ ظُفُرٍ وَّمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُوْمَهُمَا الْاٰيَةَ

وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ كُلَّ ذِىْ ظُفُرٍ الْبَعِيْرُ وَالنَّعَامَةُ الْحَوَايَا الْمَبْعَرُ وَ قَالَ غَيْرُهُ هَادُوْا صَارُوْا يَهُوْدًا وَ اَمَّا قَوْلُهُ هُدْنَا تُبْنَا هَائِدٌ تَائِبٌ.

باب ۲۱۵: آيت: وَ عَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِىْ ظُفُرٍ: دَ اللّٰه تعالٰي قول' کوم خلق چه يهوديان شو' مونږ په هغوي نوک دار ځناور حرام کړل. او دَ غوا' چيلئے وازده (چربي) مو پرے حرام کړله' آخر آيت پورے. حضرت ابن عباسؓ وائي' چه: ذي ظفر: نه شتر مرغ او اوښ مراد دے. او دَ "حوايا" مطلب دے' هغه کولمے چه هغے کښ پچے (مينګنې) وي. او دَ بعضو وينا ده' چه "هادوا" مطلب يهوديان شو. او سورهٔ اعراف کښ دَ دے معني دي: توبه کونکي.

۶۱۸: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِىْ حَبِيْبٍ قَالَ عَطَاءٌ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ سَمِعْتُ النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاتَلَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ لَمَّا حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ شُحُوْمَهَا جَمَلُوْهُ ثُمَّ بَاعُوْهُ فَاَكَلُوْهَا وَ قَالَ اَبُوْ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ كَتَبَ اِلَىَّ عَطَاءٌ سَمِعْتُ

۶۱۸: عمرو بن خالد. ليث. يزيد بن ابي حبيب. عطاء. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت کوي' هغه اووے' ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل' فرمائيل ئے' الله تعالٰي دے يهود برباد کړي' هر کله چه وازده (چربي) هغوي دَ پاره حرام کړے شوه' نو هغوي ويلے کړه او خرڅه ئے کړه' او دَ هغے قيمت ئے وصول کړه' او هغے ته ئے تيل وئيل شروع کړل' او دا شان ئے هغهٔ اوخوړله (دويم سند) ابو عاصم' عبدالحميد' يزيد'

جَابِرًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

عطاء، حضرت جابرؓ نبي صلي الله عليه وسلّم نه دا حديث روايت کوي.

**بَابُ ۲۱۶: قَوْلُهُ وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ.**

**باب ۲۱۶:** آيت: وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ ذَ اللّٰه تعالٰي قول، فحش څيزونوته مهٔ نزدې کيږئ، کوم چه ظاهر دي او کوم چه باطن دي (يعني ښکاره او پټ يو فحش کارته هم نزدې مهٔ ورځئ).

۶۱۹: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَا أَحَدُ أَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ وَلِذٰلِكَ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَلَا شَيْءَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْمَدْحُ مِنَ اللّٰهِ وَلِذٰلِكَ مَدَحَ نَفْسَهُ قُلْتُ سَمِعْتَهُ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ وَرَفَعَهُ قَالَ نَعَمْ وَكِيْلٌ حَفِيْظٌ، مُحِيْطٌ بِهِ قُبُلًا جَمْعُ قَبِيْلٍ وَالْمَعْنٰى أَنَّهُ ضُرُوْبٌ لِلْعَذَابِ كُلُّ ضَرْبٍ مِنْهَا قَبِيْلٌ زُخْرُفُ كُلُّ شَيْءٍ حَسَّنْتَهُ وَوَشَّيْتَهُ وَهُوَ بَاطِلٌ فَهُوَ زُخْرُفٌ وَحَرْثٌ حِجْرٌ حَرَامٌ وَكُلُّ مَمْنُوْعٍ فَهُوَ حِجْرٌ مَحْجُوْرٌ وَالْحِجْرُ كُلُّ بِنَاءٍ بَنَيْتَهُ وَيُقَالُ لِلْأُنْثٰى مِنَ الْخَيْلِ حِجْرٌ وَيُقَالُ لِلْعَقْلِ حِجْرٌ وَحِجًى وَأَمَّا الْحِجْرُ فَمَوْضِعُ ثَمُوْدَ وَمَا حَجَّرْتَ عَلَيْهِ مِنَ الْأَرْضِ فَهُوَ حِجْرٌ وَمِنْهُ سُمِّيَ حَطِيْمُ الْبَيْتِ حِجْرًا كَأَنَّهُ مُشْتَقٌّ مِنْ

۶۱۹: حفص بن عمر. شعبه. عمر. ابو وائل. حضرت عبدالله بن مسعود نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دې، اللّٰه تعالٰي نه زيات هيڅوک غير ناک نشته، دغه وجه ده، چه هغه تمامي ظاهر او باطن (پټ او ښکاره) فحش څيزونه حرام کړې دي. او اللّٰه تعالٰي ذ ټولونه زيات تعريف خوښوي. دغه وجه ده، چه هغه خپل تعريف اوفرمائيلو، او مونږ ته ئې هم حکم راکړلو لکه الحمد للّٰه. عمرو بن مره وائي، ما چه ذ خپل استاذ ابو وائل نه دا حديث واوريدلو، نو ما اووې، آيا تاسو دا حديث د حضرت ابن مسعود نه آوريدلې دې، هغهٔ اووې، او، دې نه پس ما اووې، ذ دې سلسله رسول اکرم ته رسي، نو وې فرمائيل، او. بخاري وائي. د "وكيل" معني "حفيظ" او "محيط" دي. "قبلا" نه مراد هر قسم عذاب دې. "زخرف" معني دي بيکاره څيز، چه هغې ته ظاهري طور سره خوبصورته وئيلې شي. او "حرث حجر" کښې "حجر" معني ممنوع،...... حرام، عمارت، ماده آس (مادہ گھوڑی) او د عقل دي. او "اصحاب حجر" کښې "حجر" نه مراد ذ قوم ثمود بستي ده، او ممنوعه علاقې ته هم وئيلې شي، او ذ خانه کعبې حطيم ته هم "حجر" وئيلې شي. حطيم په معني ذ

مَحْظُوْرٍ مِثْلُ قَتِيْلٍ مِنْ مَقْتُوْلٍ وَ اَمَّا حِجْرُ الْيَمَامَةِ فَهُوَ مَنْزِلٌ.

محظور دہ، خنګه چه "قتيل" دَ "مقتول" په معني کښې دے او "حجر اليمامه" دَ يو مقام يا دَ يو منزل نوم دے.

بَابٌ ٢١٧: قَوْلُهُ هَلُمَّ شُهَدَآءَكُمْ لُغَةُ اَهْلِ الْحِجَازِ هَلُمَّ لِلْوَاحِدِ وَالْاِثْنَيْنِ وَالْجَمِيْعِ.

باب ٢١٧: هَلُمَّ شُهَدَآءَكُمْ: دَ اللّٰه تعالیٰ قول، تاسو خپل ګواهان راولئ. "هلم" دَ اهل حجاز محاوره ده. واحد تثنيه او جمع ټولو دَ پاره شي.

٤٢٠: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ زُرْعَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا فَاِذَا رَاٰهَا النَّاسُ اٰمَنَ مَنْ عَلَيْهَا فَذَاكَ حِيْنَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ.

٤٢٠: موسىٰ بن اسماعيل. عبدالواحد. ابو زرعه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، هغه وخت پورے به قيامت نهٔ راځي، څو پورے چه نمر دَ مغرب نه طلوع نشي، بيا چه خلق دا اويني نو ټول به ايمان راوړي، خو هغه وخت به داسے وي، چه دَ هغے وخت ايمان راوړل به هيڅ فائده نهٔ ورکوي، لکه چه فرمائيلے دي: لا ينفع نفسًا ايمانها لم تکن امنت من قبل آخر آيت پورے.

٤٢١: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا فَاِذَا طَلَعَتْ وَرَاٰهَا النَّاسُ اٰمَنُوْا اَجْمَعُوْنَ وَ ذٰلِكَ حِيْنَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا ثُمَّ قَرَاَ الْاٰيَةَ.

٤٢١: اسحٰق. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو، قيامت به هغے پورے نهٔ راځي، څو پورے چه نمر دَ مغرب نه راونه خيژي. بيا دے حال ليدو سره به ټول خلق ايمان راوړي، خو دغه وخت به داسے وي چه مخکښې چا ايمان نهٔ وي راوړے نو دَ دغے وخت ايمان به ورته هيڅ فائده ورنه کړے شي.

## سُوْرَةُ الْاَعْرَافِ

## دَ سورهٔ اعراف تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَ رِيَاشًا الْمَالُ لَا

حضرت ابن عباسؓ وائي چه "وريشا" کښې بعضے قران

يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ فِي الدُّعَاءِ وَ فِيْ
غَيْرِهِ عَفَوْا كَثُرُوْا وَ كَثُرَتْ اَمْوَالُهُمْ
الْفَتَّاحُ الْقَاضِيْ افْتَحْ بَيْنَنَا اقْضِ
بَيْنَنَا نَتَقْنَا رَفَعْنَا انْبَجَسَتْ انْفَجَرَتْ
مُتَبَّرٌ خُسْرَانٌ اٰسٰى اَحْزَنُ تَأْسَ تَحْزَنْ
وَ قَالَ غَيْرُهُ مَا مَنَعَكَ اَنْ لَّا تَسْجُدَ
يَخْصِفَانِ اَخَذَا الْخِصَافَ مِنْ وَرَقِ
الْجَنَّةِ يُؤَلِّفَانِ الْوَرَقَ يَخْصِفَانِ الْوَرَقَ
بَعْضَهُ اِلٰى بَعْضٍ سَوْاٰتِهِمَا كِنَايَةٌ عَنْ
فَرْجَيْهِمَا وَ مَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ هٰهُنَا اِلٰى
الْقِيَامَةِ وَالْحِيْنُ عِنْدَ الْعَرَبِ مِنْ
سَاعَةٍ اِلٰى مَالَا يُحْصٰى عَدَدُهَا الرِّيَاشُ
وَالرِّيْشُ وَاحِدٌ وَّهُوَ مَا ظَهَرَ مِنَ
اللِّبَاسِ قَبِيْلُهُ جِيْلُهُ الَّذِيْ هُوَ مِنْهُمْ
ادَّارَكُوْا اجْتَمَعُوْا وَ مَشَاقُّ الْاِنْسَانِ
وَالدَّآبَّةِ كُلُّهُمْ يُسَمّٰى سُمُوْمًا وَاحِدُهَا
سَمٌّ وَ هِيَ عَيْنَاهُ وَ مَنْخِرَاهُ وَ فَمُهُ وَ
اُذُنَاهُ وَ دُبُرُهُ وَ اِحْلِيْلُهُ غَوَاشٍ مَا
غُشُّوْا بِهٖ نُشُرًا مُتَفَرِّقَةً نَكِدًا قَلِيْلًا
يَغْنَوْا يَعِيْشُوْا حَقِيْقٌ حَقٌّ
اسْتَرْهَبُوْهُمْ مِنَ الرَّهْبَةِ تَلْقَفُ تَلْقَمُ
طٰٓئِرُهُمْ حَظُّهُمْ طُوْفَانٌ مِنَ السَّيْلِ وَ
يُقَالُ لِلْمَوْتِ الْكَثِيْرِ الطُّوْفَانُ الْقُمَّلُ
الْحُمْنَانُ يُشْبِهُ صِغَارَ الْحَلَمِ عُرُوْشٌ وَ
عَرِيْشٌ بِنَاءٌ سُقِطَ كُلُّ مَنْ نَدِمَ فَقَدْ
سُقِطَ فِيْ يَدِهٖ الْاَسْبَاطُ قَبَائِلُ بَنِيْ

”رياشا“ هم راغلے دے، چه دَ هغے معني دَ ريشا، دي،
يعني مال. ”معتدين“ معني دا دي چه الله تعالٰي هغوي
سره محبت نهٔ کوي، چه دُعا کښې دَ حد نه زيات شي.
”عفوًا“ معني دي دَ مال زياتے. ”فتاح“ معني دي: فيصله
کونکے، لکه: ”افتح بيننا“ څمونږ مينځ کښې فيصله
اوکړه ”نتقنا“ معني دي: مولږ اوچت کړلو، ”انبجست“
معني دي: جاري شوے، يا، ختکيدے. ”متبر“ خساره،
نقصان بيامندونکي. دَ ”اسٰي“ معني دي، غم او کړم. دے
نه علاوه نور وائي ”ما منعک ان لا تَسْجُدَ“ کښې ”لا“
زائد دے، او معني ئے دے، کوم څيز تهٔ دَ سجدے نه منع
کړے. او ”يخصفان“ معني دي، چه آدمؑ او حواؑ دَ جنت
په پانړو خپل شرم گاه پټ کړل. ”مَتَاع الٰی حين“. کښې
”حين“. نه مراد قيامت دے. او ”رياش“ او ”ريش“ معني
دي، لباس ”قبيله“ نه ذات واله مراد دي. ”اداركوا“
معني دي، ټول به يوځائے شي. ”مسام“ او ”مَشَاق“
معني دَ سوراخ (سورے) دي لکه ستر کهٔ، غوږ، پوزه، او
قبل او دُبر وغيره. ”غواش“ غلاف ته وائي. ”نشرًا“
معني دي متفرق. ”نكدًا“ معني قليل يعني لږ دَ ”يغنوا“
معني دي، ژوند، ئے تير که. دَ ”حقيق“ معني دي، حق او
ريښتيا. ”استرهبوهم“ رهبة معني دي، هغوي ئے
اويرول. دَ ”تلقف“ معني دي، هغوي به نوړلے جوړه
کړي. ”طائر“ معنے دي، قسمت، تقدير. ”طوفان“ معني
دي، باران، مرگ. ”قمل“ سپږے. ”اسباط“ دَ بني
اسرائيل قبائل. ”يعدون“ دَ شريعت دَ حد نه زيات شوے
وو. ”تعد“ معني دَ حد نه تير دي. ”شرعًا“ معني دي دَ
اوبو په سطح ظاهر. ”بئيس“ معني دي، ډير شديد.

اِسْرَآئِيلَ يَعْدُوْنَ فِي السَّبْتِ يَتَعَدُّوْنَ لَهُ يَتَجَاوَزُوْنَ تَعْدُ تُجَاوِزُ شُرَّعًا شَوَارِعَ بَئِيْسٍ شَدِيْدٍ اَخْلَدَ قَعَدَ وَ تَقَاعَسَ سَنَسْتَدْرِجُهُمْ نَأْتِيْهِمْ مِنْ مَأْمَنِهِمْ كَقَوْلِهِ تَعَالٰى فَاَتَاهُمُ اللّٰهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوْا مِنْ جِنَّةٍ مِنْ جُنُوْنٍ فَمَرَّتْ بِهِ اسْتَمَرَّ بِهَا الْحَمْلُ فَاَتَمَّتْهُ يَنْزَغَنَّكَ يَسْتَخِفَّنَّكَ طَيْفٌ مُلِمٌّ بِهٖ لَمَمٌ وَ يُقَالُ طَائِفٌ وَهُوَ وَاحِدٌ يَمُدُّوْنَهُمْ يُزَيِّنُوْنَ وَ خِيْفَةً خَوْفًا وَ خُفْيَةً مِنَ الْاِخْفَآءِ وَالْاٰصَالُ وَاحِدُهَا اَصِيْلٌ مَا بَيْنَ الْمَغْرِبِ اِلَى الْعَصْرِ كَقَوْلِهٖ بُكْرَةً وَّ اَصِيْلًا.

"اخلد اِلى الارض" كيناستلو. وخت ئے تير كۀ، يعني پستئ طرف تـه خكتـه شـو، او خـواهش ئے او كۀ، چه هميشه بـه دلتـه يم. "سنستدرجهم" معني دي، مونږ به هغوي ذَ امن ذَ ځـائے نـه راولو. "جنة" ديوانگي، ليونتوب. "فمرت" معني دي هغے ذَ خپلے خيتے موده پوره كړه. "ينزغنک" چه تا اوغلوي. "طائف" جمع "طيف" چـه ذَ هغے معنـي دي، مجمع، گنړه، وغيره. "فاتاهم اللّٰه من حيث لم يحتسبوا" يعني ذَ اللّٰه تعالٰي عذاب ذَ هغے طرف نه راغے، ذَ كوم ځائے نه چه هغوي ته ذَ عذاب وهم او گمان هم نه وو. "يمدونهم" هغه هغوي تـه خوبصورته بنائي. "خيفة" "خوف" او "خفيه" ذَ ټولو يو معنـي دي، يعنـي خـوف او ويره. "اصـال" جمع ذَ "اصيـل" ده، چـه ذَ هغے معنـي دي، مـازيگر نه مابنامه پورے وخت، لكه ذَ اللّٰه قول "بكرة و اصيلا".

بَابُ ۲۱۸ : قَوْلِهٖ عَزَّ وَ جَلَّ قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ.

باب ۲۱۸ : آيت: قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ: ذَ اللّٰه تعالٰي قول، تهٔ ورته اُووايه، چه خما رب فواحشات حرام كړے دي، هغه څرگند، وي يا پټ.

۶۲۲ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ اَبِيْ وَآئِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قُلْتُ اَنْتَ سَمِعْتَ هٰذَا مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ وَ رَفَعَهُ قَالَ لَا اَحَدَ اَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ فَلِذٰلِكَ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَلَا اَحَدٌ اَحَبُّ اِلَيْهِ الْمِدْحَةُ مِنَ اللّٰهِ فَلِذٰلِكَ مَدَحَ نَفْسَهُ.

۶۲۲ : سليمان بن حرب. شعبه. عمرو بن مره. ابو وائل. حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دے، ذَ ټولو نه زيات عزت مند ذَ اللّٰه ذات دے، دغه وجه ده چه هغه ذَ بے حيائي كارونه، خواه څرگند وي يا پټ حرام كړے دي، او اللّٰه تعالٰي خپل تعريف ذَ ټولو نه زيات خوښوي، په دے وجه هغه خپل تعريف كړے دے.

بَابُ ۲۱۹ : قَوْلِهٖ وَلَمَّا

باب ۲۱۹ : آيت: وَلَمَّا جَآءَ مُوْسٰى لِمِيْقَاتِنَا: ذَ

جَآءَ مُوْسٰى لِمِيْقَاتِنَا وَ كَلَّمَهُ رَبُّهُ قَالَ رَبِّ اَرِنِيْ اَنْظُرْ اِلَيْكَ قَالَ لَنْ تَرَانِيْ وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِيْ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهُ لِلْجَبَلِ جَعَلَهُ دَكًّا وَّ خَرَّ مُوْسٰى صَعِقًا فَلَمَّا اَفَاقَ قَالَ سُبْحَانَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ وَ اَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَرِنِيْ اَعْطِنِيْ.

الله تعالیٰ قول، کوم وخت چه موسیٰ خمونږ په ښودلے شوي وخت راغے، او د هغه رب هغه سره خبرے اوکړے، نو هغه اووے اے ربه، ماله قوت راکړے، چه زهٔ ستا طرف ته اوګورم، الله ورته اووے، تهٔ کتلے نه شے، خو دے غر ته اوګوره، که دے په خپل ځائے قائم پاتے شو، نو شاید چه تهٔ هم ما اولیدے شے. بیا چه الله په غر تجلّي اوغورځوله، نو هغه ټکړے ټکړے شو. او موسیٰؑ بیهوشه اوغورځیدلو، چه هوش کښ راغے، نو وے وئیل، تهٔ پاک ئې. زهٔ توبه کوم، او ورمبے ایمان راوړونکے یم ابن عباسؓ وائي. "اَرِنِيْ" نه مراد دا دے، ما په خپل دیدار مشرف کړے.

۶۲۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيٰى الْمَازِنِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُوْدِ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ لُطِمَ وَجْهُهٗ وَ قَالَ يَا مُحَمَّدُ اِنَّ رَجُلًا مِنْ اَصْحَابِكَ مِنَ الْاَنْصَارِ لَطَمَ فِيْ وَجْهِيْ قَالَ اُدْعُوْهُ فَدَعَوْهُ قَالَ لِمَ لَطَمْتَ وَجْهَهٗ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ مَرَرْتُ بِالْيَهُوْدِ فَسَمِعْتُهٗ يَقُوْلُ وَالَّذِيْ اصْطَفٰى مُوْسٰى عَلَى الْبَشَرِ فَقُلْتُ وَ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَ اَخَذَتْنِيْ غَضْبَةٌ فَلَطَمْتُهٗ قَالَ لَا تُخَيِّرُوْنِيْ مِنْ بَيْنِ الْاَنْبِيَآءِ فَاِنَّ النَّاسَ يُصْعَقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَاَكُوْنُ

۶۲۳: محمد بن یوسف. سفیان. عمرو بن یحیٰي مازني. د هغهٔ پلار. حضرت ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي، یو خل یو یهودي د حضور صلي الله علیه وسلّم خدمت کښ فریاد اوکهٔ، چه ستاسو یو صحابي زهٔ په مخ په څپیړه وهلے یم، او د هغے نښه راښاندے پرته ده. حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، صحابي راوغواړئے. کوم وخت چه هغه راغے، نو حضورؐ ترے تپوس اوکهٔ، چه تا ولے دے په څپیړه وهلے دے. صحابي اووے، کوم وخت چه زهٔ د دے یهودي خوا کښ تیر شوم، نو دهٔ وئیلے، قسم دے په هغه ذات چه هغهٔ موسیٰ علیه السلام له په ټولو انسانانو فضیلت ورکړے دے. ما زړهٔ کښ سوچ اوکهٔ، چه دهٔ خو په تاسوؐ هم موسیٰؑ افضل کړلو، ماته غصه راغله، او ما پرق ورکړلو. حضورؐ ورته اوفرمائیل، ماله په نورو انبیاؤ فضیلت مهٔ راکوئ، ځکه چه د قیامت په ورځ به ټول خلق بیهوشه شي، او بیا د

أَوَّلَ مَنْ يُفِيقُ فَإِذَا أَنَا بِمُوسَىٰ اٰخِذٌ بِقَائِمَةٍ مِنْ قَوَائِمِ الْعَرْشِ فَلَا أَدْرِيْ أَفَاقَ قَبْلِيْ أَمْ جُزِيَ بِصَعْقَةِ الطُّوْرِ.

تـولـونـه مـخـکـښ بـه زهٔ بـه هـوش کـښ راشم، نو زهٔ به اُووينم، چه حضرت موسیٰ دَ عرش پايه نيولے ولاړ دے. اوس زهٔ نشم وئيلے، چه هغه خما نه مخکښ هوش کښ راغلے، يا بيهوشه شوے نهٔ وو.

باب ٢٢٠: قَوْلِهٖ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى.

باب ٢٢٠: آيت: اَلْمَنَّ وَالسَّلْوٰى: دَ اللّٰه تعالىٰ قول "من او سلوىٰ" يعني ترنجبين او بټېرې (مرزان).

٦٢٤: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ وَمَاءُهَا شِفَاءٌ الْعَيْنِ.

٦٢٤: مسلم. شعبه. عبدالملک. عمرو بن حريث. حضرت سعيد بن زيد نه روايت کوي، ما دَ حضورﷺ نه واوريدل چه کهنبي (خريړے) دَ منّ دَ قسم نه دے، خود، رو، دے او دَ دے اُوبه دَ سترګو دَ پاره فائده منده دي.

باب ٢٢١: قَوْلِهٖ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا ۨالَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَ يُمِيْتُ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ الَّذِيْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَ كَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ.

باب ٢٢١: آيت: يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول، اے خلقو، زهٔ تاسو ټولوته رسول راغلے يم، دَ هغے اللّٰه دَ طرف نه، چه دَ هغهٔ حکومت زمکه او آسمان کښ دے. دَ هغهٔ نه سِوا هيڅوک معبود نشته، هغه ژوندي کول او مړهٔ کول کوي، تاسو په اللّٰه او دَ هغهٔ په رسول ايمان راوړئ، چه اُمي دے، او اللّٰه او دَ هغهٔ په خبرو يقين لري، دَ هغهٔ اطاعت کوئ، چه نيغه لار بيامومئ.

٦٢٥: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ مُوْسَى بْنُ هَارُوْنَ قَالَا حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْعَلَاءِ بْنِ زَبْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ بُسْرُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ اِدْرِيْسَ الْخَوْلَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الدَّرْدَاءِ يَقُوْلُ كَانَتْ

٦٢٥: عبداللّٰه. سليمان بن عبدالرحمٰن. موسىٰ بن هارون. وليد بن مسلم. عبداللّٰه بن العلاء بن زر. بسر بن عبيداللّٰه. ابو ادريس خولاني. حضرت ابو داؤد نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، دَ حضرت ابوبکرؓ او حضرت عمرؓ مينځ کښ بحث اوشو، نو حضرت ابوبکرؓ بانديے حضرت عمرؓ غصه اوکړله، او حضرت عمرؓ لرے

بَيْنَ اَبُوْبَكْرٍ وَ عُمَرَ مُحَاوَرَةٌ فَاَغْضَبَ اَبُوْبَكْرٍ عُمَرَ فَانْصَرَفَ عَنْهُ عُمَرُ مُغْضَبًا فَاتَّبَعَهُ اَبُوْ بَكْرٍ يَسْأَلُهُ اَنْ يَسْتَغْفِرَ لَهُ فَلَمْ يَفْعَلْ حَتّٰى اَغْلَقَ بَابَهُ فِيْ وَجْهِهٖ فَاَقْبَلَ اَبُوْ بَكْرٍ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبُو الدَّرْدَاءِ وَ نَحْنُ عِنْدَهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَّا صَاحِبُكُمْ هٰذَا فَقَدْ غَامَرَ قَالَ وَ نَدِمَ عُمَرُ عَلٰى مَا كَانَ مِنْهُ فَاَقْبَلَ حَتّٰى سَلَّمَ وَ جَلَسَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَصَّ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَبَرَ قَالَ اَبُو الدَّرْدَاءِ وَ غَضِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ جَعَلَ اَبُوْ بَكْرٍ يَقُوْلُ وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَاَنَا كُنْتُ اَظْلَمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ اَنْتُمْ تَارِكُوْلِيْ صَاحِبِيْ اِنِّيْ قُلْتُ يٰاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا فَقُلْتُمْ كَذَبْتَ وَ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ صَدَقْتَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ غَامَرَ سَبَقَ بِالْخَيْرِ.

روان شولو، حضرت ابوبكرؓ هم ورپسې روان شو. او معافي لې اُوغوښتله، خو حضرت عمرؓ معاف نهٔ كړلو، او د كور دروازه لې بنده كړه. حضرت ابوبكرؓ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغې. حضرت ابو درداء والي، مونږ هم حضورؐ سره ناست وو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. دا ستاسو دوست چا سره جنګ كړے راروان دے. بيا حضرت عمرؓ هم راغې او تولہ قصه لې بيان كړله، او نادم شولو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تا ولې معاف نهٔ كړلو. او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په غصه شو. حضرت ابوبكرؓ اووے، يا رسول اللّٰه، قسم په خدائے قصوروار زهٔ يم، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل خما داسے صحابي خما نه جُدا كول غواړئے. حضورؐ دا خبره دوه ځله اوفرمائيله. بيائے ارشاد اوفرمائيلو، هر كله چه ما دا وئيلے وو، چه: يا ايّها النّاس اني رسول اللّٰه اليكم جميعًا: الخ يعني اے خلقو، زهٔ تاسو ټولو خلقو ته د اللّٰه رسول راغلے يم، نو تاسو ټولو زهٔ دروغجن اوګنړلم، او صرف يو ابوبكرؓ وو، چه هغهٔ خما تصديق كړے وو. ابو عبداللّٰه امام بخاريؒ وائي څوك چه جنګ اوكړي، او مخكښ معافي اوغواړي، هغهٔ نيكي كولو كښ سبقت اوكړ.

## بَابٌ ۲۲۲: قَوْلِهٖ وَ قُوْلُوْا حِطَّةٌ.

## باب ۲۲۲: آيت: وَ قُوْلُوْا حِطَّةٌ. دَ اللّٰه تعالي قول، چه: مونږ ته معافي اوكړے.

۴۲۲۶: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا

۴۲۲۶: اسحٰق. عبدالرزاق. معمر. همام بن منبه.

عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَؓ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِيْلَ لِبَنِيْ اِسْرَآءِيْلَ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَ قُوْلُوْا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ فَبَدَّلُوْا فَدَخَلُوْا يَزْحَفُوْنَ عَلٰى اَسْتَاهِهِمْ وَ قَالُوْا حَبَّةٌ فِيْ شَعْرَةٍ.

حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، الله بني اسرائيلو ته حكم وركړے وو، چه تاسو ذ بيت المقدس په دروازه عاجزئ سره حطّة وئيلو سره داخل شئے، نو مونږ به ستاسو ګناه معاف كړو. خو بني اسرائيلو دا حكم اونهٔ منلو، او په زمكه كناتو رابنكلو سره داخل شو. او ذ حطة په ځائے "حبة في شعرة" يعني ذ غلے دانه، وئيلو سره داخل شو..

## بَابُ ۲۲۳ : قَوْلِهٖ خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ وَ اَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِيْنَ الْعُرْفُ الْمَعْرُوْفُ.

باب ۲۲۳ : آيت: خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ: ذ الله تعالىٰ قول، اے رسوله، عفوه اختيار كړه، او ذ ښو خبرو حكم كوه، او ذ جاهلانو نه چشم پوشي كوه. ذ "عرف" معني دي "معروف" يعني ښهٔ كار.

۲۲۷ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ عُيَيْنَةُ بْنُ حِصْنِ بْنِ حُذَيْفَةَ فَنَزَلَ عَلَى ابْنِ اَخِيْهِ الْحُرِّ بْنِ قَيْسٍ وَ كَانَ مِنَ النَّفَرِ الَّذِيْنَ يُدْنِيْهِمْ عُمَرُ وَ كَانَ الْقُرَّآءُ اَصْحَابَ مَجَالِسِ عُمَرَ وَ مُشَاوَرَتِهٖ كُهُوْلًا كَانَ اَوْ شُبَّانًا فَقَالَ عُيَيْنَةُ لِابْنِ اَخِيْهِ يَا ابْنَ اَخِيْ لَكَ وَجْهٌ عِنْدَ هٰذَا الْاَمِيْرِ فَاسْتَاْذِنْ لِيْ عَلَيْهِ قَالَ سَاَسْتَاْذِنُ لَكَ عَلَيْهِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَاسْتَاْذَنَ الْحُرُّ لِعُيَيْنَةَ فَاَذِنَ لَهٗ عُمَرُ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ قَالَ هِيْ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ فَوَاللّٰهِ مَا تُعْطِيْنَا الْجَزْلَ وَلَا

۲۲۷ : ابواليمان. شعيب. زهري. عبيدالله بن عبدالله بن عتبه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، عيينه بن حِصن بن حذيفه خپل وراره حر بن قيس له راغے، حر بن قيس هغه خلقو كښ وو، چه ذ حضرت عمرؓ مقرب وو. ذ حضرت عمرؓ دا عادت وو، چه هغه به مقرب هغه خوک جوړولو، چه هغه به عالم او قاري وو. غرض داسے خلق به ذ هغهٔ په مجلس كښ شامليدل. ذ بوډا، ځوان څهٔ پابندي نهٔ وه. عيينه بن حِصن خپل وراره ته اووے، چه ستا خو حضرت عمرؓ ته رسائي شته. لږ ما هم هغهٔ له بوځه. حر بن قيس ورته اووے ښهٔ ده، اجازت ترے غواړم، آخر حر، عيينه ذ پاره اجازت حاصل كړهٔ، عيينه چه حضرت عمرؓ له راغے نو وئيلے، اے ذ خطاب ځويه، نهٔ خو تهٔ انصاف كوے،

تَحْكُمُ بَيْنَنَا بِالْعَدْلِ فَغَضِبَ عُمَرُ حَتّٰى هَمَّ بِهٖ فَقَالَ لَهُ الْحُرُّ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى قَالَ لِنَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ وَ اَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِيْنَ وَ اِنَّ هٰذَا مِنَ الْجَاهِلِيْنَ وَاللّٰهِ مَا جَاوَزَهَا عُمَرُ حِيْنَ تَلَاهَا عَلَيْهِ وَ كَانَ وَقَّافًا عِنْدَ كِتَابِ اللّٰهِ.

او نـهٔ مونږ سره ذ سخاوت نه کار آخلې. حضرت عمرؓ دې آوريدو سره غُصه شو. او قريب وه، چه هغه نې وهلې وې. دغه وخت حُر اووې، اې امير المؤمنين، اللّٰه تعالٰي خپل پيغمبرؐ ته اوفرمائيل "خذ العفو و امر بالعرف واعرض عن الجاهلين: او بيشکه دې هم ذ جاهلانو نه دې. ذ حضرت ابن عباسؓ بيان دې، کوم وخت چه "حر" دا آيت تلاوت کۀ، نو حضرت عمرؓ سمدستي سوړ شولو.

۴۲۲۸: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ قَالَ مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَّا فِيْ اَخْلَاقِ النَّاسِ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ بَرَّادٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ اَمَرَ اللّٰهُ نَبِيَّهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّاْخُذَ الْعَفْوَ مِنْ اَخْلَاقِ النَّاسِ اَوْ كَمَا قَالَ.

۴۲۲۸: يحيٰي. وکيع. هشام. عروه. عبداللّٰه بن زبيرؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دې، اللّٰه تعالٰي دا آيت: (يعني خذ العفو الخ) اخلاق انساني ذ پاره نازل فرمائيلې دې. عبداللّٰه بن براء وائي، ماته دا حديث ابو اسامه روايت کۀ، او ونيلې، هشام ذ خپل پلار نه او هغهٔ ذ ابن زبيرؓ په ذريعه وائي، اللّٰه تعالٰي خپل نبي او ټولو انسانانو ته ذ اخلاق ذ درستي ذ پاره ذ عفوې اختيارولو حکم کړې دې. يا ذ دې قسم څۀ بله خبره ئې اوکړله.

# سُوْرَةُ الْاَنْفَالِ

# ذ سورهٔ انفال تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بَابٌ ۲۲۴ : قَوْلُهٗ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ اَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَلْاَنْفَالُ الْمَغَانِمُ قَالَ قَتَادَةُ رِيْحُكُمُ الْحَرْبُ يُقَالُ نَافِلَةٌ

باب ۲۲۴ آيت: يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، اې رسوله، تانه ذ مال غنيمت متعلق تپوس کوي، تـهٔ ورته اووايه، چه ذ مال غنيمت تقسيم ذ اللّٰه او رسول لاس کښې دې، او تاسو ذ اللّٰه نه اويريږئې، او خپلو کښې صلح اوکړئې. ابن عباسؓ وائي، ذ انفال نه ذ لوټ مال مراد دې. قتاده وائي "ريحکم" نه جنګ مراد

عَطِيَّةٌ.

دے. "نافلة" معني عطيه.

٦٢٩: حَدَّثَنِيُ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ سُلَيْمَانَ اَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ سُوْرَةُ الْاَنْفَالِ قَالَ نَزَلَتْ فِيْ بَدْرٍ الشَّوْكَةُ الْحَدُّ مُرْدِفِيْنَ فَوْجًا بَعْدَ فَوْجٍ رَدِفَنِيْ وَ اَرْدَفَنِيْ جَآءَ بَعْدِيْ ذُوْقُوْا بَاشِرُوْا وَ جَرِّبُوْا وَ لَيْسَ هٰذَا فِيْ ذَوْقِ الْفَمِ فَيَرْكُمَهُ يَجْمَعَهُ شَرِّدْ فَرِّقْ وَ اِنْ جَنَحُوْا طَلَبُوْا يُثْخِنَ يَغْلِبَ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مُكَآءً اِدْخَالُ اَصَابِعِهِمْ فِيْ اَفْوَاهِهِمْ وَ تَصْدِيَةً الصَّفِيْرُ لِيُثْبِتُوْكَ لِيَحْبِسُوْكَ.

٦٢٩: محمد بن عبدالرحيم. سعيد بن سليمان. هشيم. ابو بشر. حضرت سعيد بن جبيرؒ روايت كوي، ما دَ حضرت ابن عباسؓ نه تپوس اوكړ، دَ سورهٔ انفال شانِ نزول څهٔ دے نو هغهٔ اوفرمائيل، دا سورت جنګ بدر کښې نازل شوے وو. "شوكة" معني تيز دهارا. "مردفين" فوج در فوج. "ردفني" او "اردفني" ماله پس راغے. "ذوقوا" عذاب اوڅکئے. "فيركمه" معني دي، جمع كړي هغه "شرد" مطلب جدا كړي. "جنحوا" معنے دي، طلب كړي. "يثخن" معني دي، غالب وي. مجاهد وائي "مكاء" معني دي، ګوتے په خوله کښې داخلول. او "تصديه" معني دي: شپيلے وهل. او "ليثبتوك" معني دي، چه تا قيد كړي. بند كړي.

بَابُ ٢٢٥: قَوْلِهٖ اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِيْنَ لَا يَعْقِلُوْنَ.

باب ٢٢٥: آيت: اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِيْنَ لَا يَعْقِلُوْنَ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول، دَ اللّٰه په نزد، دَ حيواناتو نه هم هغه خلق خراب دي، چه ګونګيان او كانړهٔ دي او عقل نهٔ لري.

٦٣٠: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا وَرْقَآءُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِيْنَ لَا يَعْقِلُوْنَ قَالَ هُمْ نَفَرٌ مِّنْ بَنِيْ عَبْدِ الدَّارِ.

٦٣٠: محمد بن يوسف. ورقاء. ابن ابي نجيح. مجاهد. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الخ اللّٰه تعالىٰ دَ بني عبدالدار دَ يو ډلے په حق کښې نازل كړے دے. او دے نه بدكردار خلق مراد دي.

بَابُ ٢٢٦: قَوْلِهٖ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا

باب ٢٢٦: آيت: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول، اے ايمان والو، اللّٰه او رسول طرف

لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيْكُمْ وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوْلُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَ قَلْبِهٖ وَ اَنَّهٗ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ اسْتَجِيْبُوْا اَجِيْبُوْا لِمَا يُحْيِيْكُمْ يُصْلِحُكُمْ.

ته راشئ، هر كله چه ستاسو د اصلاح د پاره تاسو اوبلي، او پوه شئ، چه الله د سړي او د هغهٔ د زړهٔ تر مينځه حائل دے، او بيشكه تاسو ټول به هغهٔ طرف ته جمع كولے شئ. "اسْتَجِيْبُوْا" معني قبول كړئ. "يُحْيِيْكُمْ" تاسو به ژوندي كړي. "يُصْلِحُكُمْ" چه ستاسو اصلاح او كړي.

۱۳۱ ۴: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ سَمِعْتُ حَفْصَ بْنَ عَاصِمٍ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُعَلّٰى قَالَ كُنْتُ اُصَلِّيْ فَمَرَّ بِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَانِيْ فَلَمْ اٰتِهٖ حَتّٰى صَلَّيْتُ ثُمَّ اَتَيْتُهٗ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ اَنْ تَاْتِيَ اَلَمْ يَقُلِ اللّٰهُ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَ لِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ ثُمَّ قَالَ لَاُعَلِّمَنَّكَ اَعْظَمَ سُوْرَةٍ فِي الْقُرْاٰنِ قَبْلَ اَنْ اَخْرُجَ فَذَهَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَخْرُجَ فَذَكَرْتُ لَهٗ وَ قَالَ مُعَاذٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خُبَيْبٍ سَمِعَ حَفْصًا سَمِعَ اَبَا سَعِيْدٍ رَجُلًا مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا وَ قَالَ هِيَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ السَّبْعُ الْمَثَانِيْ.

۱۳۱ ۴: اسحٰق. روح بن عباده. شعبه. خبيب بن عبدالرحمٰن. حفص بن عاصم. حضرت ابو سعيد بن معلّٰي نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دے، يو ځل ما مونځ كولو، حضورؐ خما خوا كښ تير شولو، او زهٔ ئے اوبللم، ما بدستور مونځ كولو، چه فارغ شوم، نو خدمت كښ حاضر شوم، او عرض م اوكهٔ، زهٔ راغلم، حضورؐ اوفرمائيل، تهٔ څهٔ څيز ماته د راتلو نه منع كړے، آيا د الله تعالٰي دا ارشاد تاته معلوم نهٔ دے: يٰايها الذين استجيبوا لله و للرسول اذا دعاكم: كوم وخت چه تاسو الله او د الله رسول اوبلي، نو سمدستي د هغوي حكم منئے. بيا حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو، د جمات نه وتلو نه مخكښ به زهٔ تاته يو عظيم الشان سورت اوښائم. كوم وخت چه حضورؐ د جمات نه بهر وتلو، نو ما عرض اوكهٔ او وريادم كړلو. نو حضورؐ اوفرمائيل، هغه سورة الحمد دے. او دے ته سبع مثاني هم وئيلے شي. او يو بل سند كښ د حضرت ابو سعيد نوم هم ددے حديث په آوريدونكو كښ راځي.

## بَابُ ۲۲۷: قَوْلِهٖ وَ اِذْ قَالُوا

## باب ۲۲۷: آيت: وَ اِذْ قَالُوا اللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ هٰذَا

اللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ مَا سَمَّى اللّٰهُ تَعَالٰى مَطَرًا فِي الْقُرْاٰنِ اِلَّا عَذَابًا وَ تُسَمِّيهِ الْعَرَبُ الْغَيْثَ وَهُوَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا.

هُوَ الْحَقُّ: دَ الله تعالىٰ قول، (كافرو اووے) اے الله كه دا قرآن ستا دَ طرف نه حق وي، نو بيا په مونږ كاڼړي اوورووه، يا مونږ له سخت عذاب راكړه. ابن عيينه وائي، چه اللّٰه تعالىٰ قرآن شريف كښې "مطر" نه عذاب مراد اخستے دے. دَ "غيث" معني دَ رحمت باران دے، لكه چه عرب وائي، او دے آيت كښې هم دي: و ينزل الغيث من بعد ما قنطوا.

۶۳۲: حَدَّثَنِيْ أَحْمَدُ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيْدِ هُوَ ابْنُ كُرْدِيْدٍ صَاحِبُ الزِّيَادِيِّ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ أَبُوْ جَهْلٍ اللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ فَنَزَلَتْ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَ أَنْتَ فِيهِمْ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ وَمَا لَهُمْ أَنْ لَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمْ يَصُدُّوْنَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الْاٰيَة.

۶۳۲: احمد. عبيدالله بن معاذ. معاذ بن معاذ. شعبه. عبدالحميد بن كرديد. صاحب الزيادي. حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے. كوم وخت چه ابو جهل دا اووے، اے اللّٰه، كه دا قرآن ستا دَ طرف نه حق وي، نو په مونږ دَ آسمان كاڼړي اُورَوے، يا مونږ له دردناك عذاب راكړے. نو هغه وخت الله تعالىٰ دا آيت نازل كړلو: وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ الخ: يعني اللّٰه هغوي له عذاب نهٔ وركوي څو پورے چه تاسو دوي كښې موجود ئے. او الله تعالىٰ به عذاب ورنهٔ كړي، څكه چه دوي استغفار كوي او الله به مشركانو له عذاب ولے ورنهٔ كړي، چه هغوي خو خلق دَ مسجد حرام نه منع كوي.

باب ۲۲۸: قَوْلِهٖ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَ أَنْتَ فِيهِمْ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ.

باب ۲۲۸: آيت: وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ دَ اللّٰه تعالىٰ قول، اللّٰه تعالىٰ به دوي له عذاب نهٔ وركوي، څو پورے چه تاسو دوي كښې ئے، او اللّٰه دوي له عذاب نهٔ وركوي، چه هغوي استغفار كوي.

۶۳۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ النَّضْرِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيْدِ

۶۳۳: محمد بن نضر. عبيدالله بن معاذ. دَ هغهٔ پلار. شعبه. عبدالحميد. صاحب الزيادي. حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے. ابو جهل چه

صَاحِبِ الزِّيَادِيِّ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَالَ اَبُوْ جَهْلٍ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَاَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ، فَنَزَلَتْ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَ اَنْتَ فِيْهِمْ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ وَمَا لَهُمْ اَنْ لَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمْ يَصُدُّوْنَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الْاٰيَةَ.

کوم وخت دا اووے، اے اللّٰه، که ستا قرآن ريښتيا وي، او ستا ذ طرف نه وي، (او مونږ دروغجن کوو) نو بيا خمونږ دَ پاسه دَ آسمانه کانړي راو وَرَوه. يا څۀ لوئے دردناک عذاب په مونږ راوليږه، نو هغه وخت دا آيت نازل شولو، چه اللّٰه تعالٰي دوي له عذاب نۀ ورکوي، خکه چه تاسو دوي کښې اوسيږئ، او اللّٰه به دوي عذاب نه راولي، خکه چه استغفار کوي (بښنه غواړي). او اللّٰه به هغوي له عذاب ولے ورنۀ کړي، حالانکه هغوي خلق دَ مسجد حرام نه منع کوي.

## بَـــابٌ ۲۲۹: قَـــوْلُـــهٗ وَقَـــاتِـلُـــوْهُـــمْ حَتّٰـــى لَا تَـكُـوْنَ فِتْنَةٌ.

باب ۲۲۹: آيت: وَ قَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ: دَ اللّٰه تعالٰي قول، دوي سره جنګ کوئ، حتٰي چه فتنه باقي پاتې نشي، او دين خالص دَ اللّٰه پاتے شي.

۶۳۴: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا حَيْوَةُ عَنْ بَكْرِ بْنِ عُمَرَ عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَجُلًا جَآءَهٗ فَقَالَ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَلَا تَسْمَعُ مَا ذَكَرَ اللّٰهُ فِيْ كِتَابِهٖ وَ اِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ فَمَا يَمْنَعُكَ اَنْ لَّا تُقَاتِلَ كَمَا ذَكَرَ اللّٰهُ فِيْ كِتَابِهٖ فَقَالَ يَا ابْنَ اَخِيْ اَغْتَرُّ بِهٰذِهِ الْاٰيَةِ وَلَا اُقَاتِلُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْ اَنْ اَغْتَرَّ بِهٰذِهِ الْاٰيَةِ الَّتِيْ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا اِلٰى اٰخِرِهَا قَالَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَقُوْلُ وَ قَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ قَالَ

۶۳۴: حسن بن عبدالعزيز. عبداللّٰه بن يحيٰي. حيوة. بكر بن عمرٗ. بكير. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، چه ماله يو سړے راغے، او هغۀ اووے، کوره، دا وخت ذ مسلمانانو دوه ډلے حضرت عليؓ او امير معاويهؓ جنګيږي، آيا تا د اللّٰه دا فرمان نۀ دے آوريدلے، چه دَ مسلمانانو دوه ډلے جنګيږي، نو هغوي کښې صلح کوئ. او که هغوي نۀ مني، نو زياتي کونکو سره جنګ او کړئ، او هغوي درست کړئ، نو بيا تاسوته کوم څيز مانع دے، چه تاسو خاموش ئے. ما ورته اووے، اے وراره، که زۀ ذ دے حکم تاويل او کړم، مسلمانانو سره او نۀ جنګيږم، نو دا ماته بنۀ لږي د دے خبرے نه، چه زۀ ذ: ومن يقتل مومنا متعمدا: تاويل او کړم. بيا هغۀ اووے، بنۀ ده، تاسو به دے آيت سره څۀ کوئ وقاتلوهم حتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَة الخ:

ابْنُ عُمَرَ فَعَلْنَا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ الْاِسْلَامُ قَلِيْلًا فَكَانَ الرَّجُلُ يُفْتَنُ فِيْ دِيْنِهٖ اِمَّا يَقْتُلُوْهُ وَ اِمَّا يُوْثِقُوْهُ حَتّٰى كَثُرَ الْاِسْلَامُ فَلَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ فَلَمَّا رَاٰى اَنَّهٗ لَا يُوَافِقُهٗ فِيْمَا يُرِيْدُ قَالَ فَمَا قَوْلُكَ فِيْ عَلِيٍّ وَ عُثْمَانَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ مَا قَوْلِيْ فِيْ عَلِيٍّ وَ عُثْمَانَ اَمَّا عُثْمَانُ فَكَانَ اللّٰهُ قَدْ عَفَا عَنْهُ فَكَرِهْتُمْ اَنْ تَعْفُوْا عَنْهُ وَ اَمَّا عَلِيٌّ فَابْنُ عَمِّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ خَتَنُهٗ وَ اَشَارَ بِيَدِهٖ وَ هٰذِهٖ ابْنَتُهٗ اَوْ بِنْتُهٗ حَيْثُ تَرَوْنَ.

هغوئ ورته اووے، دا جنګ خو مونږ ذَ حضورؐ په زمانه كښې كړے دے. او كوم سړي چه به فتنه رابرسيره كوله، هغه به مونږ وژلو، يا قيد كولو، ترديے چه اسلام خور شولو، او ذَ مسلمانانو تعداد زيات شو. اوس ذَ دے آيت واله فتنه كوم ځائے باقي پاتے ده، هر كله چه هغے سړي خما رائے ذَ خپلے رائے موافق بيانه مونده، نو ذَ حضرت عليؓ او حضرت عثمانؓ متعلق ئے اووے، چه دوي خو ذَ اُحد نه تښتيدلے وو، ذَ دوي متعلق ستاسو څۀ خيال دے. ما ورته اووے، حضرت عثمان ته اللّٰه تعالٰي معافي وركړله، خو تاسو ذَ هغۀ معاف كيدل بد ګڼړے. پاتے شو حضرت علي، نو هغه ذَ حضورؐ زوم او ذَ ترۀ ځوئے دے. ذَ راوي بيان دے، دومره وئيلو سره حضرت ابن عمرؓ ذَ لاس اشارے سره اوفرمائيل، ګوره، ذَ هغۀ خو مكان هم ذَ حضورؐ مكان سره لږيدلے دے.

۶۳۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا بَيَانٌ اَنَّ وَبْرَةَ حَدَّثَهٗ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا اَوْ اِلَيْنَا ابْنُ عُمَرَؓ فَقَالَ رَجُلٌ كَيْفَ تَرٰى فِيْ قِتَالِ الْفِتْنَةِ فَقَالَ وَ هَلْ تَدْرِيْ مَا الْفِتْنَةُ كَانَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَاتِلُ الْمُشْرِكِيْنَ وَ كَانَ الدُّخُوْلُ عَلَيْهِمْ فِتْنَةٌ وَ لَيْسَ كَقِتَالِكُمْ عَلَى الْمُلْكِ.

۶۳۵: احمد بن يونس. زهير. بيان بن بشر. وبره بن عبدالرحمٰن. سعيد بن جبير نه روايت كوي، ذَ هغۀ بيان دے، يو ځل عبداللّٰه بن عمرؓ مونږ ته راغے، نو يو سړي اووے، ګوره، دا فتنه او فساد كيږي، تاسو ذَ دے متعلق څۀ وائے، ابن عمرؓ جواب وركۀ، تاته څۀ معلومه ده، چه فتنه څۀ ته وائي، فتنه خو ذَ مشركانو وه، او حضورؐ هغوي سره جنګيدلو، او ذَ هغوي جنګ كول ستاسو په شان نۀ وو، چه مال او حصه باندے وي، بلكه صرف دين ذَ پاره به جنګيدل.

باب ۲۳۰: قَوْلِهٖ يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلَى الْقِتَالِ اِنْ

باب ۲۳۰: آيت: يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلَى الْقِتَالِ: ذَ اللّٰه تعالٰي قول، اے نبي، مسلمانانو ته

يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُوْنَ صٰبِرُوْنَ يَغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ وَ اِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ يَغْلِبُوْا اَلْفًا مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَفْقَهُوْنَ.

كافرو سره د جنګ کولو ترغيب ورکړه، که تاسو شل ثابت قدم يئ، نو تاسو به دوه دوه سوه کافرو باندې غالب راشئ، او که تاسو سل ثابت قدم يئ، نو په يو زر كافرو به غالب راځئ، ځکه چه دغه كافر پوهه نۀ لري.

۴۳۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ لَمَّا نَزَلَتْ اِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُوْنَ صَابِرُوْنَ يَغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ فَكُتِبَ عَلَيْهِمْ اَنْ لَا يَفِرَّ وَاحِدٌ مِنْ عَشَرَةٍ فَقَالَ سُفْيَانُ غَيْرَ مَرَّةٍ اَنْ لَا يَفِرَّ عِشْرُوْنَ مِنْ مِائَتَيْنِ ثُمَّ نَزَلَتْ اَلْاٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمُ الْاٰيَةَ فَكَتَبَ اَنْ لَا يَفِرَّ مِائَةٌ مِنْ مِائَتَيْنِ زَادَ سُفْيَانُ مَرَّةً نَزَلَتْ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلَى الْقِتَالِ اِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُوْنَ صَابِرُوْنَ قَالَ سُفْيَانُ وَ قَالَ ابْنُ شُبْرُمَةَ وَ اُرَى الْاَمْرَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْيَ عَنِ الْمُنْكَرِ مِثْلَ هٰذَا.

۴۳۶: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، کوم وخت چه دا آيت نازل شو، که شل صبرناک مسلمانان وي، نو د دوو سوو کافرو نه دې نۀ تښتي، نو بيا هغه وخت دا خبره لازم کړې شوه، که يو مسلمان وي، نو د لسو كافرو نه به نۀ تښتي. بيا دې نه پس دا آيت نازل شولو، چه الله اوس ستاسو د پاره تخفيف اوکړلو، او هغۀ ته معلومه ده، چه اوس تاسو څۀ قدرې کمزورې شوې يئ، نو اووئيلې شو، چه سل دې د دوو سوو نه نۀ تښتي. سفيان وائي، عبدالله بن شبرمه چه د کوفې قاضي وو، وئيل ئې، څما خيال دې، امر بالمعروف او نهي عن المنكر کښې هم دا حکم بيامندې شي.

باب ۲۳۱: قَوْلِهٖ اَلْاٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَ عَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا الْاٰيَةَ اِلٰى قَوْلِهٖ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ.

باب ۲۳۱: آيت: اَلْئٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ: د الله تعالٰي قول، اوس الله تعالٰي په تاسو تخفيف اوکۀ، او ورته معلومه ده، چه تاسو کښې څۀ کمزوري پيدا شوې ده، والله مع الصابرين پورې.

۴۳۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ السُّلَمِيُّ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُبَارَكِ اَخْبَرَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ قَالَ اَخْبَرَنِي الزُّبَيْرُ بْنُ خِرِّيْتٍ عَنْ عِكْرِمَةَ

۴۳۷: يحيي بن عبدالله سلمي. عبدالله بن مبارک. جرير بن حازم. زبير بن خريت. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، د هغۀ بيان دې، کوم وخت چه الله تعالٰي دا آيت نازل کۀ:

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ اِنْ يَّكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُوْنَ صَابِرُوْنَ يَغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ شَقَّ ذٰلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ حِيْنَ فُرِضَ عَلَيْهِمْ اَنْ لَّا يَفِرَّ وَاحِدٌ مِنْ عَشَرَةٍ فَجَاءَ التَّخْفِيْفُ فَقَالَ اَلْاٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَ عَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا فَاِنْ يَّكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ قَالَ فَلَمَّا خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْهُمْ مِنَ الْعِدَّةِ نَقَصَ مِنَ الصَّبْرِ بِقَدْرِ مَا خُفِّفَ عَنْهُمْ.

**إن يكن منكم عشرون الخ**: يعني كه تاسو كښې شل صبرناک سړي وي، نو په دوه سوه (كافرو) به غالب راځي، نو مسلمانانو باندې دا خبره ډيره گرانه شوه، چه يو مسلمان دې د لس كافرو ذ مقابلې نه، نهٔ تښتي، نو اللّٰه ذ تخفيف آيت نازل كړلو، يعني: **الأن خفف اللّٰه و علم ان فيكم ضعفا الخ**: چه اوس اللّٰه آساني پيدا كړه، او هغهٔ ته معلومه وه، چه تاسو كښې كمزوري پيدا شوې ده. اوس كه تاسو كښې سل صبرناک وي، نو په دوه سوه به غالب راځي. حضرت ابن عباس وائي، دې تخفيف سره د مسلمانانو استقلال كښې هم فرق راغې.

## الحمد للّٰه والشكر للّٰه اتلسمه پاره ختمه شوه

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۱۹

شارح: مولانا ظهورالباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه مولانا محمد امین درانی

نظر ثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

# تاج البخاري پاره ۱۹ دمضامینو فهرست



| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۳۲. | کومو مشرکانو سره چه تاسو لوظ کړے وو | ۲۹۴۴ |
| ۲۳۳. | اے مشرکانو تاسو څلور میاشتو پورے په ملک کښے ګرځیدل اوکړئ | ۲۹۴۴ |
| ۲۳۴. | د حج اکبر د ورځے ذکر | ۲۹۴۵ |
| ۲۳۵. | کومو مشرکانو سره چه تاسو د صلحے لوظ کړے وو | ۲۹۴۶ |
| ۲۳۶. | تاسو د کافرانو لیډرانو سره اوجنګیږئ | ۲۹۴۶ |
| ۲۳۷. | کوم خلق چه سره زر او چاندي جمع کوي | ۲۹۴۷ |
| ۲۳۸. | په کومه ورځ چه به سره زر او چاندی به اؤر سره کړے شي | ۲۹۴۸ |
| ۲۳۹. | د اللّٰه په کتاب کښے د میاشتو شمار دولس دے | ۲۹۴۸ |
| ۲۴۰. | کله چه په غار کښے دوؤ تنانو کښے یو حضورؐ وو | ۲۹۴۹ |
| ۲۴۱. | د زړونو تالیف د پاره خرچ کول | ۲۹۵۲ |
| ۲۴۲. | کوم خلق چه خیرات ورکونکو مومنانو له پیغور ورکوي | ۲۹۵۲ |
| ۲۴۳. | که نه دوی د پاره د بخنے دعا کوے او که نه کوے | ۲۹۵۳ |
| ۲۴۴. | ته د دوی د جنازے مونځ مه کوه | ۲۹۵۵ |
| ۲۴۵. | دوی به تاته بهانے جوړوي | ۲۹۵۶ |
| ۲۴۶. | څه خلق په خپلو ګناهونو باندے شرمنده دي | ۲۹۵۷ |
| ۲۴۷. | ته او مومنان مشرکانو د پاره استغفار مه کوئ | ۲۹۵۸ |
| ۲۴۸. | اللّٰه په تا باندے مهرباني کړے ده | ۲۹۵۸ |
| ۲۴۹. | د دریو سړو ذکر | ۲۹۵۹ |
| ۲۵۰. | ایماندارو! رشتینو خلقو سره اوسئ | ۲۹۶۲ |
| ۲۵۱. | ستاسو د اصل نه رسول راغلے دے | ۲۹۶۲ |
| ۲۵۲. | د غني ذکر | ۲۹۶۵ |
| ۲۵۳. | مونږه بني اسرائیل د دریاب نه پورے وېستل | ۲۹۶۵ |
| | سورت هود | |
| ۲۵۴. | دوی خپلے سینے راغبرګوي | ۲۹۶۶ |
| ۲۵۵. | د اللّٰه تخت په اوبو باندے وو | ۲۹۶۸ |
| ۲۵۶. | ګواهان به اواني چه دا هغه خلق دي الخ | ۲۹۷۰ |
| ۲۵۷. | کله چه ستا رب د ظالمانو ښارے راونیسي | ۲۹۷۱ |
| ۲۵۸. | رسول اللّٰه ته خطاب چه ته ډیر مونځ کوه | ۲۹۷۱ |
| | سورت یوسف | |
| ۲۵۹. | اللّٰه په تا باندے خپل نعمت تماموڵ غواړي | ۲۹۷۳ |
| ۲۶۰. | د حضرت یوسفؑ په قصه کښے نخښے دي | ۲۹۷۴ |
| ۲۶۱. | دا تاسو خپل ځان د پاره یو حیله جوړه کړے ده | ۲۹۷۵ |
| ۲۶۲. | هغه ښځے یوسفؑ له [illegible]طه بلنه ورکړه | ۲۹۷۶ |
| ۲۶۳. | یوسفؑ له د بادشاه قاصد ورغے | ۲۹۷۷ |
| ۲۶۴. | کله چه مسلمانان نااُمیده شو | ۲۹۷۸ |
| | سورتِ رعد | |
| ۲۶۵. | د هرے مادے حمل اللّٰه ته معلومه دے | ۲۹۸۱ |
| | سورتِ ابراهیم | |
| ۲۶۶. | د اللّٰه تعالیٰ ارشاد هغه پاکیزه اونے | ۲۹۸۲ |
| | سورتِ حجر | |
| ۲۶۷. | اللّٰه [illegible]ن والا ثابت قلم ساتي | ۲۹۸۳ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۶۸. | چا چه د الله نعمت کفر سره بدل کړ | ۲۹۸۴ |
| ۲۶۹. | شیطان خبرے پټوي | ۲۹۸۵ |
| ۲۷۰. | د حجر خلقو پیغمبران دروغژن کړي | ۲۹۸۶ |
| ۲۷۱. | اوه ذهرا ویدونکي آیتونه | ۲۹۸۷ |
| ۲۷۲. | کوم خلقو چه قرآن ټکړے کړو | ۲۹۸۸ |
| ۲۷۳. | تر مرګه پورے د رب عبادت کوه | ۲۹۸۸ |
| | سورت نمل | |
| ۲۷۴. | بعضے خلق بیکاره عمر ته رسوي | ۲۹۹۰ |
| ۲۷۵. | باب | ۲۹۹۲ |
| ۲۷۶. | کله چه مونږه یو ښاریه هلاکول غواړو | ۲۹۹۳ |
| ۲۷۷. | دا د هغوی نسل دے | ۲۹۹۴ |
| ۲۷۸. | مونږه داوُد ته زبور ورکړے وو | ۲۹۹۷ |
| ۲۷۹. | اوایه چه تاسو هغوی راؤبلی | ۲۹۹۸ |
| ۲۸۰. | کومو خلقو لره چه مشرکان رابلي | ۲۹۹۸ |
| ۲۸۱. | اِے پیغمبره کوم خوب چه مونږه تاته ښودلے وو الخ | ۲۹۹۹ |
| ۲۸۲. | د سحر وخت قرآن ته حاضري کولے شي | ۲۹۹۹ |
| ۲۸۳. | نزدے ده چه ستا رب تا مقام محمود ته اورسوي | ۳۰۰۰ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۸۴. | حق راغلے او باطل لاړو | ۳۰۰۱ |
| ۲۸۵. | تاسه د روح باره کښے تپوس کوي | ۳۰۰۱ |
| ۲۸۶. | مونځ مه په زوره کوه او مه ئے بالکل په مزه کوه | ۳۰۰۲ |
| | سورت کهف | |
| ۲۸۷. | انسان اکثر جهګړه کونکے دے | ۳۰۰۴ |
| ۲۸۸. | کله چه موسیٰ خپل خادم ته اووے | ۳۰۰۵ |
| ۲۸۹. | کله چه هغه مجمع البحرین ته اورسیدو | ۳۰۰۹ |
| ۲۹۰. | کله چه موسیٰ د هغه ځائے نه واوړیدو | ۳۰۱۳ |
| ۲۹۱. | آیا زه تاسو ته هغه خلق اوښایم چا چه د خپل رب ښیرته دروغ اووے | ۳۰۱۷ |
| ۲۹۲. | چه د خپل رب ښیے ئے دروغ اوګڼړل | ۳۰۱۷ |
| | سورتِ مریم | |
| ۲۹۳. | دوی د افسوس د ورځے نه اویروه | ۳۰۱۹ |
| ۲۹۴. | د رب د حکم نه بغیر هیڅ نشي کولے | ۳۰۱۹ |
| ۲۹۵. | آیا تا لیدلي دي؟ | ۳۰۲۰ |
| ۲۹۶. | آیا دے په غیبو خبردار شوے دے؟ | ۳۰۲۱ |
| ۲۹۷. | څه چه هغه وائي مونږه ئے لیکو | ۳۰۲۱ |
| ۲۹۸. | مونږ ئے وینو | ۳۰۲۲ |

| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| | سورتِ طٰهٰ | |
| ۲۹۹. | اے موسیٰ ته ما د پاره ئے | ۳۰۲۴ |
| ۳۰۰. | مونږه موسیٰ ته وحي اوکړه الخ | ۳۰۲۵ |
| ۳۰۱. | چرته مو شیطان د جنت نه اونه باسي | ۳۰۲۶ |
| | سورت انبیاء | |
| ۳۰۲. | څرنګ چه مونږه مخکښے پیدا کړي | ۳۰۲۷ |
| ۳۰۳. | د قیامت په ورځ به داسے ښکاري | ۳۰۲۹ |
| ۳۰۴. | څه خلق په تذبذب کښے د الله عبادت کوي | ۳۰۳۰ |
| ۳۰۵. | دا دلے د رب باره کښے جګړه کوي | ۳۰۳۱ |
| | سورت مومنون | |
| | سورة نور | |
| ۳۰۶. | کوم خلق چه په خلقو ښځو تهمت لګوي | ۳۰۳۴ |
| ۳۰۷. | په پنځم ځل د ښځے داسے اوائي | ۳۰۳۶ |
| ۳۰۸. | ملزمه په دغه شان د سزا نه بچ کیدے شي | ۳۰۳۷ |
| ۳۰۹. | په پنځم ځل د ښځه داسے اوائي | ۳۰۳۸ |
| ۳۱۰. | کومو خلقو چه دا دروغ راویستي دي | ۳۰۳۹ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۱۱. | کله چه تاسو دا خبرے واورېده | ۳۰۴۰ |
| ۳۱۲. | د الله د فضل ذکر | ۳۰۴۹ |
| ۳۱۳. | تاسو خپل خولو سره دا خبره کوله | ۳۰۴۹ |
| ۳۱۴. | کله چه تاسو دا دروغ خبره واورېده | ۳۰۵۰ |
| ۳۱۵. | الله تاسو ته نصیحت کوي | ۳۰۵۱ |
| ۳۱۶. | الله تاسو ته خپل آیتونه بیانوي | ۳۰۵۱ |
| ۳۱۷. | کوم خلق چه د بے حیائي خبرے خورول خوښوي | ۳۰۵۲ |
| ۳۱۸. | کوم خلق چه مالدار دي | ۳۰۵۲ |
| ۳۱۹. | د مسلمانو ښځو ذمه واري | ۳۰۵۷ |
| | **سورت فرقان** | |
| ۳۲۰. | کوم خلق چه به د قیامت په ورځ پرمخے جهنم ته غورزولے شي | ۳۰۵۹ |
| ۳۲۱. | کوم خلق چه الله سره شریک نه نیسي | ۳۰۶۰ |
| ۳۲۲. | کومو خلقو ته به چه زیات عذاب کیږي | ۳۰۶۲ |
| ۳۲۳. | چاچه توبه کولو سره ایمان راوړو | ۳۰۶۲ |
| ۳۲۴. | عنقریب به ستاسو دا عمل هم ضائع شي | ۳۰۶۳ |
| | **سورت شعراء** | |
| ۳۲۵. | ما مهٔ رسوا کوه | ۳۰۶۴ |
| ۳۲۶. | خپل خپلوان د ویروه | ۳۰۶۴ |
| | **سورت نمل** | |
| | **سورت قصص** | |
| ۳۲۷. | ته چه چاته غوارے هدایت نشے کولے | ۳۰۶۷ |
| ۳۲۸. | چاچه تا باندے قرآن فرض کړے دے | ۳۰۶۹ |
| | **سورت عنکبوت** | |
| | **سورت روم** | |
| ۳۲۹. | فطرة الله کښے بدلي نه راځي | ۳۰۷۱ |
| | **سورت لقمان** | |
| ۳۳۰. | الله سره شریک مه جوړوئ | ۳۰۷۲ |
| ۳۳۱. | د قیامت علم صرف الله ته دے | ۳۰۷۳ |
| | **سورت تنزیل سجده** | |
| ۳۳۲. | د سترګو یخوالي ذکر | ۳۰۷۴ |
| | **سورت احزاب** | |
| ۳۳۳. | نبي په مومنانو باندے د هغوئ د ځانونو نه زیات حق لري | ۳۰۷۶ |
| ۳۳۴. | هغوئ د پلرونو نامو سره رابلئ | ۳۰۷۶ |
| ۳۳۵. | مومنانو کښے داسے هم شته الخ | ۳۰۷۷ |
| ۳۳۶. | اے نبي! خپلو بیبیانو ته اُوایه | ۳۰۷۸ |
| ۳۳۷. | که چرے تاسو پیغمبر او آخرت خوښوئ | ۳۰۷۸ |
| ۳۳۸. | تا به خپل زړه کښے هغه خبره پټه ساتلے وه | ۳۰۸۰ |
| ۳۳۹. | ته به خپلو بیبیانو کښے چه کومه غوارے الخ | ۳۰۸۰ |
| ۳۴۰. | که چرے تاسو د پیغمبر کورته خوراک د پاره لاړ شئ | ۳۰۸۱ |
| ۳۴۱. | که تاسو څه څیز پټ کړئ یائے ښکاره کړئ | ۳۰۸۶ |
| ۳۴۲. | پیغمبر باندے الله او فرښتے درود لیکي | ۳۰۸۷ |
| ۳۴۳. | د هغه خلقو پشان مه کیږئ | ۳۰۸۹ |
| | **سورت سبا** | |
| ۳۴۴. | کله چه د هغوئ د زړونو نه ویره لرے شي | ۳۰۹۰ |
| ۳۴۵. | دا هغه پیغمبر دے الخ | ۳۰۹۱ |

# نولسمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سُوْرَةُ بَرَاءَةٍ

وَلِيْجَةٌ كُلُّ شَيْءٍ اَدْخَلْتَهُ فِيْ شَيْءٍ الشُّقَّةُ السَّفَرُ الْخَبَالُ الْفَسَادُ وَالْخَبَالُ الْمَوْتُ وَلَا تَفْتِنِّيْ وَلَا تُوَبِّخْنِيْ كَرْهًا وَ كُرْهًا وَاحِدٌ مُدَّخَلًا يَدْخُلُوْنَ فِيْهِ يَجْمَحُوْنَ يُسْرِعُوْنَ وَالْمُؤْتَفِكَاتُ ائْتَفَكَتِ انْقَلَبَتْ بِهَا الْاَرْضُ اَهْوٰى اَلْقَاهُ فِيْ هُوَّةٍ عَدْنٍ خُلْدٍ عَدَنْتُ بِاَرْضٍ اَيْ اَقَمْتُ وَ مِنْهُ مَعْدِنٌ وَّ يُقَالُ فِيْ مَعْدِنِ صِدْقٍ فِيْ مَنْبِتِ صِدْقٍ الْخَوَالِفُ الْخَالِفُ الَّذِيْ خَلَفَنِيْ فَقَعَدَ فِي الْغَابِرِيْنَ وَ يَجُوْزُ اَنْ يَّكُوْنَ النِّسَآءُ مِنَ الْخَالِفَةِ وَ اِنْ كَانَ الْجَمْعُ الذُّكُوْرُ فَاِنَّهٗ لَمْ يُوْجَدْ عَلٰى تَقْدِيْرِ جَمْعِهٖ اِلَّا حَرْفَانِ فَارِسٌ وَّ فَوَارِسُ وَ هَالِكٌ وَ هَوَالِكُ الْخَيْرَاتُ وَاحِدُهَا خَيْرَةٌ وَ هِيَ الْفَوَاضِلُ مُرْجَوْنَ مُؤَخَّرُوْنَ الشَّفَا شَفِيْرٌ وَهُوَ حَدُّهٗ وَالْجُرُفُ مَا تَجَرَّفَ مِنَ السُّيُوْلِ وَالْاَوْدِيَةِ هَارٍ هَائِرٌ يُقَالُ تَهَوَّرَتِ الْبِئْرُ اِذَا انْهَدَمَتْ وَانْهَارَ مِثْلُهٗ لَاَوَّاهٌ شَفَقًا

## دَ سورهٔ براءة تفسير

"وليْجه" يو شيز بل شيز كښې داخلول. "الشفه" نه مراد سفر دے. "خبال" معني ذ فساد او مرګ دواړو راځي. "ولا تفتنی" په ما ملامته مهٔ کوه. "کَرْهًا و کُرْهًا" يعني زبردستي ذ دواړو يو مطلب دے. "مدّخلًا" ذ داخليدو ځائے. "يجمحون" په منډه ځي. "مؤتفكات" هغه بستئ (كلي) چه عذاب سره واړولے شو. "اهوٰی" كنده كښې ئے ور اُوديكلو. "عدن" ذ هميشه ځائے، يعني جنتونه چه هغے ته بهشت هم وائي. معدن د دے نه وتلے دے. ذ عربو مقوله ده "معدن صدق" كرم ځائے چه صدق پيدا كيږي. معدن نه منبت هم مراد اخلي. "خوالف" ذ خالف جمع ده، چه د هغے معني دي، ورستو كيناستونكے. "يخلفه فی الغابرين" دے نه وتے دے، يعني هغه ئے ورستو پاتے كيدونكو كښې پريښودلو. او كه خوالف ذ خالفه جمع اومنلے شي، نو دے نه به مراد ښځے وي. "خيرات" فائدے. نيكئ. ښيګڼے. ذ دے واحد "خيرة" راځي. "مرجون" مهلت وركړے شو، لكه "موخرون" تاخير كښې واچولے شو. ملتوي كړے شو. "الشفا" معني "شفير" دي، يعني كناره، "جُرف" نالے. "هار" غرځيدونكے. "تهوّرت البئر" او انهارت دے نه اُوتے دے، يعني كوهے اوغرځيدلو. "اواه" نرم زړے كيدل. دَ خدائے دَ طرف نه ويريدونكے. آه او زاري

وَ فَرَقًا وَ قَالَ:

إِذَا مَا قُمْتُ أَرْحَلُهَا بِلَيْلٍ
تَأَوَّهُ آهَةَ الرَّجُلِ الْحَزِيْنِ ٠

کونکے لکه یو شاعر وائي: ترجمه:

ذ شپې چه زهٔ پاسم او خپله اوښه کَس کوم
نو هغه ذ غم ژبلې سَرو په شان آه کوي

باب ۲۳۲: قَوْلِهِ بَرَاءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهِ إِلَى الَّذِيْنَ عَاهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أُذُنٌ يُصَدِّقُ تُطَهِّرُهُمْ وَ تُزَكِّيْهِمْ وَ نَحْوُهَا كَثِيْرٌ وَالزَّكَاةُ الطَّاعَةُ وَالْإِخْلَاصُ لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ لَا يَشْهَدُوْنَ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ يُضَاهِئُوْنَ يُشَبِّهُوْنَ.

باب ۲۳۲: آيت: بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ: ذ الله تعالٰي قول، کومو مشرکانو سره چه تاسو عهد کړے وو ۴ورځ هغوي ته ذ الله او رسول ذ طرف نه صاف جواب ورکه. ابن عباسؓ وائي، "اذن" دا دے، چه ذ چا خبره واوري، او هغه ريښتنے اوګڼړي. "تطهرهم" او "تزکيهم" يو معني دي. چه هغه پاکوي. ذ "زکوة" معني اخلاص او طاعت دي. "لا يؤتون الزکوة" يعني ذ کلمه طيبه: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰه تصديق نهٔ کوي. "يضاهئون" معني: داسے خبرے کوي، څنګه چه به مخکنو کافرو جوړولے.

۶۳۸: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِيْ إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ يَقُوْلُ اٰخِرُ اٰيَةٍ نَّزَلَتْ يَسْتَفْتُوْنَكَ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلَالَةِ وَ اٰخِرُ سُوْرَةٍ نَزَلَتْ بَرَاءَةٌ.

۶۳۸: ابوالوليد. شعبه. ابي اسحاق. حضرت براء بن عازب نه روايت کوي. ذ هغهٔ بيان دے، ذ ټولو نه آخر کښې دا آيت: يستفتونک قل الله يفتيکم في الکلالة: نازل شو. دغه شان آخري سورت برأت دے چه ذ ټولو نه آخر کښې نازل شولو.

باب ۲۳۳: قَوْلِهِ فَسِيْحُوْا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَّاعْلَمُوْا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ وَ أَنَّ اللّٰهَ مُخْزِي الْكَافِرِيْنَ سِيْحُوْا سِيْرُوْا.

باب ۲۳۳: ايت: فَسِيْحُوْا فِي الْأَرْضِ: ذ الله تعالٰي قول، اے مشرکانو، تاسو څلور مياشتے (ذي قعده، ذي الحجه، محرم او رجب کښې) آمن او امان سره ملک کښې ګرځئے، او ياد ساتئے، چه تاسو خدائے پاک عاجزه کولے نهٔ شئے، او الله تعالٰي به کافر ذليل کړي. "فسيحوا" مطلب دے: ګرځي سيل کوی.

۶۳۹: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَ أَخْبَرَنِيْ

۶۳۹: سعيد بن عفير. ليث. عقيل. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، ۹ ه کښې حج کښې

حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَنِيْ اَبُوْ بَكْرٍ فِيْ تِلْكَ الْحَجَّةِ فِيْ مُؤَذِّنِيْنَ بَعَثَهُمْ يَوْمَ النَّحْرِ يُؤَذِّنُوْنَ بِمِنًى اَنْ لَّا يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوْفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ قَالَ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ثُمَّ اَرْدَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ وَ اَمَرَهٗ اَنْ يُّؤَذِّنَ بِبَرَاءَةٍ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَاَذَّنَ مَعَنَا عَلِيٌّ يَوْمَ النَّحْرِ فِيْ اَهْلِ مِنًى بِبَرَاءَةٍ وَ اَنْ لَّا يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَّلَا يَطُوْفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ.

حضرت ابوبکرؓ د حاجیانو سالار جوړ کړے شوے وو. او زهٔ په دے خبره مقرر کړے شوے ووم چه زهٔ یوم نحر کښې د دے امر اعلان او کړم. چه د دے کال د حج نه پس به اوس هیڅ مشرک حج نهٔ کوي. او دغه شان هیڅوک به په بربنډه د کعبے طواف نشي کولے. حمید وائي. حضورؐ حضرت عليؓ اولیږلو، چه ته د سورة برأت د احکاماتو اعلان او کړه، نو هغه هم مونږ سره منی کښې موجود وو، او اعلان ئے کولو، چه هیڅ مشرک اوس حج نشي کولے، او نهٔ په بربنډه طواف کولے شي. (ابو عبدالله وائي، د اعلان غرض دا دے، چه خلق په ښهٔ شان سره خبردار کړے شي).

**باب ۲۳۴:** قَوْلِهٖ وَ اَذَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖٓ اِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْاَكْبَرِ اَنَّ اللّٰهَ بَرِيْٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَ رَسُوْلُهٗ فَاِنْ تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَ اِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِى اللّٰهِ وَ بَشِّرِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ اٰذَنَهُمْ اَعْلَمَهُمْ.

**باب ۲۳۴:** آیت: وَ اَذَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ: د الله تعالیٰ قول: د حج اکبر په ورځ خلق د الله او د هغهٔ د رسولؐ د حکم نه آگاه کولے شي، چه الله او د هغه رسولؐ د مشرکانو نه دست بردار دے. که تاسو منع شوئے، نو تاسو د پاره بهتره ده. او که تاسو مخ واړولو (اومونه منله) نو پوه شئ چه تاسو الله تعالیٰ عاجزه کولے نهٔ شئ، او اے پیغمبره، تهٔ کافروته د دردناک عذاب خبر ورکړه. "اذنهم" معني دي، هغوي لره ئے اطلاع ورکړه.

۶۴۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَاَخْبَرَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَنِيْ اَبُوْبَكْرٍ فِيْ تِلْكَ الْحَجَّةِ فِي الْمُؤَذِّنِيْنَ بَعَثَهُمْ يَوْمَ النَّحْرِ يُؤَذِّنُوْنَ بِمِنًى اَنْ

۶۴۰: عبدالله بن یوسف. لیث. عقیل. ابن شهاب. حمید بن عبدالرحمن. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دے. حضرت ابوبکرؓ زهٔ د قربانۍ په ورځ اعلان کونکو سره اولیږلم. او وئیلے، اعلان او که، چه سخکال نه پس به هیڅ مشرک نهٔ حج کوي، او نه به په بربنډه د

لَا يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوْفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ قَالَ حُمَيْدٌ ثُمَّ اَرْدَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ فَاَمَرَهُ اَنْ يُّؤَذِّنَ بِبَرَاءَةٍ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَاَذَّنَ مَعَنَا عَلِيٌّ فِيْ اَهْلِ مِنًى يَوْمَ النَّحْرِ بِبَرَاءَةٍ وَ اَنْ لَّا يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوْفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ.

كعبې طواف كوي. حميد وائي حضور صلي الله عليه وسلم حضرت علي ورستو اوليږلو او ارشاد نې ورته اوفرمانيلو چه لاړ شه كافروته د سورۀ برأت احكام واوروه. حضرت ابوهريرة وائي. حضرت علي هم مونږ سره يوم النحر كښې دا اعلان اوكړلو چه دې كال نه پس به هيڅ مشرك نه حج كوي او نه به په بربنډه د كعبې طواف كوي.

## باب ٢٣٥ : قَوْلُهٗ اِلَّا الَّذِيْنَ عَاهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ.

باب ٢٣٥ : آيت: اَلَّا الَّذِيْنَ عَاهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ: د الله تعالي قول، نو كومو مشركانو سره چه تاسو د صلح عهد كړې وو.

١٣٦١ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ حُمَيْدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ بَعَثَهُ فِي الْحَجَّةِ الَّتِيْ اَمَّرَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهَا قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فِيْ رَهْطٍ يُّؤَذِّنُ فِي النَّاسِ اَنْ لَّا يَحُجَّنَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوْفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ فَكَانَ حُمَيْدٌ يَقُوْلُ يَوْمُ النَّحْرِ يَوْمُ الْحَجِّ الْاَكْبَرِ مِنْ اَجْلِ حَدِيْثِ اَبِيْ هُرَيْرَةَ.

١٣٦١ : اسحٰق يعقوب بن ابراهيم. صالح. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمن. حضرت ابوهريرة نه روايت كوي، هغۀ اووې حجة الوداع نه مخكښې واله حج كښې حضور صلي الله عليه وسلم، حضرت ابوبكر صديق امير حج جوړ كړې وو، نو ابوبكر زۀ او څۀ نور خلق دې اعلان د پاره اوليږلو، چه دې كال نه پس به هيڅ مشرك نۀ حج له راځي او نه به څوك په بربنډه د بيت الله طواف كوي. حميد بن عبدالرحمن وائي د حضرت ابوهريرة د حديث نه ثابتيږي چه د ذي الحجه لسم ورځ يوم النحر (د قرباني ورځ) ده.

## باب ٢٣٦ : قَوْلُهٗ فَقَاتِلُوْا اَئِمَّةَ الْكُفْرِ اِنَّهُمْ لَا اَيْمَانَ

باب ٢٣٦ : آيت: فَقَاتِلُوْا اَئِمَّةَ الْكُفْرِ اِنَّهُمْ لَا اَيْمَانَ لَهُمْ: د الله تعالي قول، تاسو د كفارو مشرانو سره بنه اُجنګيږئ، ځكه چه د هغوي د معاهدو هيڅ اعتبار او

لَهُمْ.

٦٤٢ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ حُذَيْفَةَ فَقَالَ مَا بَقِيَ مِنْ اَصْحَابِ هٰذِهِ الْاٰيَةِ اِلَّا ثَلٰثَةٌ وَلَا مِنَ الْمُنَافِقِيْنَ اِلَّا اَرْبَعَةٌ فَقَالَ اَعْرَابِيٌّ اِنَّكُمْ اَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُخْبِرُوْنَا فَلَا نَدْرِيْ فَمَا بَالُ هٰؤُلَآءِ الَّذِيْنَ يَبْقُرُوْنَ بُيُوْتَنَا وَ يَسْرِقُوْنَ اَعْلَاقَنَا قَالَ اُولٰٓئِكَ الْفُسَّاقُ اَجَلْ لَمْ يَبْقَ مِنْهُمْ اِلَّا اَرْبَعَةٌ اَحَدُهُمْ شَيْخٌ كَبِيْرٌ لَوْ شَرِبَ الْمَآءَ الْبَارِدَ لَمَا وَجَدَ بَرْدَهٗ.

بهروسه نشته.

٦٤٢ : محمد بن مثنى. اسمعيل. زيد بن وهب. حضرت حذيفه نه روايت كوي، دے آيت سره تعلق لرونكي يعني مخاطبينو كښې صرف درے مسلمانان او څلور منافقان ژوندي دي. دے كښې يو ديهاتي (بانډيسي) اووے، تاسو ټول ذ رسول پاك صحابه يئ، مونږ ته ذ هغے خلقو حال اووائے، چه خمونږ ذ كورونو كنډر به ئے كولو، او ذ ښو ښو څيزونو غلا به ئے كوله، ځكه چه مونږ ته ذ هغوي حال نۀ دے معلوم. حضرت حذيفه ورته اوفرمائيل، هغوي ټول فاسق او بدكار دي، او هغوي كښې څلور سړي اوس هم ژوندي دي، زۀ هغوي پيژنم، او هغوي كښې يو خو دومره بوډا شوے دے، چه ذ يخو اُوبو ذ يخوالي هم هغۀ ته احساس نۀ كيږي (يعني ذ بوډا توب په وجه ذ هغۀ عقل بيكاره شوے دے).

باب ٢٣٧ : قَوْلِهٖ وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ.

باب ٢٣٧ : آيت: وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ: ذ الله تعالىٰ قول، كوم خلق چه سرۀ سپين زر جمع كوي، او هغه ذ الله په لار كښې نۀ خرچ كوي، نو تۀ هغوي ته ذ دردناك عذاب بشارت واوروه.

٦٤٣ : حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ الْاَعْرَجِ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَكُوْنُ كَنْزُ اَحَدِكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ شُجَاعًا اَقْرَعَ.

٦٤٣ : حكم بن نافع. شعيب. ابو الزناد. عبدالرحمٰن اعرج. حضرت ابو هريرةؓ نه روايت كوي، ذ هغۀ بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّمؐ اوفرمائيل، ذ قيامت په ورځ به تاسو كښې ذ چا خزانه چه ذ هغے نه ئے زكوة نۀ وي وركړے، ذ ګنجي مار په شان به جوړه شي (ذ كوم مار ذ سر نه چه ويښتۀ اُوغرځيږي، ذ هغۀ زهرو كښې ډيره تيزي پيدا كيږي).

۶۴۴ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ قَالَ مَرَرْتُ عَلٰى اَبِيْ ذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ فَقُلْتُ مَا اَنْزَلَكَ بِهٰذِهِ الْاَرْضِ قَالَ كُنَّا بِالشَّامِ فَقَرَأْتُ وَ الَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ قَالَ مُعَاوِيَةُ مَا هٰذِهٖ فِيْنَا مَا هٰذِهٖ اِلَّا فِيْ اَهْلِ الْكِتَابِ قَالَ قُلْتُ اِنَّهَا لَفِيْنَا وَ فِيْهِمْ.

۶۴۴ : قتیبه بن سعید. جریر بن حصین. زید بن وهب نه روایت کوي، د هغه بیان دے. ما مقام ربذه کښې د ابو ذر غفاريؓ نه تپوس او کړو، ته دلته ځنګل کښې څه د پاره آباد شوے، زے فرمائیل، زه ملک شام کښې ووم، او خما معاویه سره جګړه اوشوه، نو ما دا آیت اولوست: والذین یکنزون الذهب والفضة الخ نو معاویه اووے. دا آیت خمونږ په حقله نه دے، بلکه یهودو، نصاري د پاره نازل کړے شوے دے. ما اووے نه، دا ټولو د پاره دے. (نو د دے جګړے په وجه ما ټول پریښودل، او دلته راغلم).

باب ۲۳۸ : قَوْلِهٖ عَزَّ وَ جَلَّ يَوْمَ يُحْمٰى عَلَيْهَا فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَ جُنُوْبُهُمْ وَ ظُهُوْرُهُمْ هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِاَنْفُسِكُمْ فَذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ وَ قَالَ اَحْمَدُ بْنُ شُبَيْبِ بْنِ سَعِيْدٍ.

باب ۲۳۸ : آیت: یوم یحمی علیها فی نار جهنم: د الله تعالي قول، په کومه ورځ چه جمع شوے چاندي او سره (زر) دوزخ کښې ګرم کړے شي، او بیا هغے سره د هغوي آړخونه، تندي او شاګانے داغلے شي، او هغوي ته به وئیلے شي دا هغه سرمایه ده چه تاسو به خان د پاره جمع کوله نو اوس د هغے مال مزه اوڅکئ.

۶۴۵ : حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ اَسْلَمَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ فَقَالَ هٰذَا قَبْلَ اَنْ تُنْزَلَ الزَّكَاةُ فَلَمَّا اُنْزِلَتْ جَعَلَهَا اللّٰهُ طُهْرًا لِّلْاَمْوَالِ.

۶۴۵ : احمد بن شعیب بن سعید. یونس. ابن شهاب. خالد بن اسلم. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، د هغهٔ بیان دے، دا حکم د زکٰوة نه مخکښې دے. بیا چه د زکٰوة حکم نازل شولو، نو الله تعالي دا زکٰوة د مال د پاکیزګي سبب جوړ کړلو.

باب ۲۳۹ : قَوْلِهٖ اِنَّ عِدَّةَ الشُّهُوْرِ عِنْدَ اللّٰهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ مِنْهَا اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ الْقَيِّمُ هُوَ الْقَائِمُ.

باب ۲۳۹ : آیت: ان عدة الشهور عند الله: د الله تعالي قول، د الله په نزد د هغهٔ کتاب کښې د زمکے او آسمان د پیدائش د ورځے نه د میاشتو شمیر (ګنتي) دولس دے. دے کښې څلور حرمت واله میاشتے دي. "قیم" معني قائم. مستقیم یعني د درست او نیغ دي.

۲۴۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الزَّمَانَ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهٖ يَوْمَ خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ السَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا مِنْهَا اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ثَلٰثٌ مُتَوَالِيَاتٌ ذُو الْقَعْدَةِ وَذُو الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ وَ رَجَبُ مُضَرَ الَّذِيْ بَيْنَ جُمَادٰى وَ شَعْبَانَ.

۲۴۶: عبدالله بن عبدالوهاب. حماد بن زيد. ايوب. محمد. ابن ابي بكره. رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي. حضور ارشاد اوفرمائيلو. كورے. زمانه بيا په هغه نقشه راغله، په كومه ورځ چه الله تعالي زمكه او آسمان پيدا كړے وو. يو كال كښې دولس مياشتے وي. دے كښې خلور مياشتے د حرمت دي. چه هغے كښې درے مسلسل (پرله پسے) دي. يعني ديقعده. دي الحجه. محرم. او يوه د رجب مياشت ده. چه د جمادي الأخر او ماه شعبان مينځ كښې راځي.

بَابٌ ۲۴۰: قَوْلُهٗ ثَانِيَ اثْنَيْنِ اِذْهُمَا فِي الْغَارِ مَعَنَا نَاصِرُنَا السَّكِيْنَةُ فَعِيْلَةٌ مِنَ السُّكُوْنِ.

باب ۲۴۰: آيت: ثاني اثنين اذهما في الغار: د الله تعالي قول: هر كله چه غار كښې د دوو نه يو حضور وو. "معنا" معني ناصرنا يعني الله خمونږ مددګار دے. "سكينة" بر وزن فعيلة، په معني د سكون او اطمينان.

۲۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ حَدَّثَنَا اَنَسٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ بَكْرٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغَارِ فَرَاَيْتُ اٰثَارَ الْمُشْرِكِيْنَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ اَنَّ اَحَدَهُمْ رَفَعَ قَدَمَهٗ رَاٰنَا قَالَ مَا ظَنُّكَ بِاثْنَيْنِ اللّٰهُ ثَالِثُهُمَا.

۲۴۷: عبدالله بن محمد. حبان. همام. ثابت. انس. حضرت ابوبكر صديق نه روايت كوي. هغه اووے. زه نبي صلي الله عليه وسلّم سره غار كښې موجود ووم. چه د مشركانو د راتلو آثار راته ښكاره شولو، ما حضور صلي الله عليه وسلّم ته عرض اوكړ، كه چا قدم اوچت كړ، نو مونږ به اووينې. دغه وخت حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اے ابوبكر! ته د هغے دوو سړو متعلق څه خيال كوے، چه هغوي سره دريم الله تعالي دے.

۲۴۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عُيَيْنَةُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ

۲۴۸: عبدالله بن محمد. ابن عيينه. ابن جريج. ابن ابي مليكه نه روايت كوي، هغه اووے، هر كله چه خما او د ابن عباسؓ مينځ كښې د ابن زبير په بيعت خبرے

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ قَالَ حِيْنَ وَقَعَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ ابْنِ الزُّبَيْرِ قُلْتُ اَبُوْهُ الزُّبَيْرُ وَ اُمُّهُ اَسْمَاءُ وَ خَالَتُهُ عَائِشَةُ وَ جَدُّهُ اَبُوْ بَكْرٍ وَجَدَّتُهُ صَفِيَّةُ فَقُلْتُ لِسُفْيَانَ اِسْنَادُهُ فَقَالَ حَدَّثَنَا فَشَغَلَهُ اِنْسَانٌ وَلَمْ يَقُلِ ابْنُ جُرَيْجٍ.

٦٤٩: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ مَعِيْنٍ حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ وَ كَانَ بَيْنَهُمَا شَيْءٌ فَغَدَوْتُ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقُلْتُ اَتُرِيْدُ اَنْ تُقَاتِلَ ابْنَ الزُّبَيْرِ فَتُحِلَّ حَرَمَ اللّٰهِ فَقَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ ابْنَ الزُّبَيْرِ وَ بَنِيْ اُمَيَّةَ مُحِلِّيْنَ وَ اِنِّيْ وَاللّٰهِ لَا اُحِلُّهُ اَبَدًا قَالَ قَالَ النَّاسُ بَايِعْ لِابْنِ الزُّبَيْرِ وَ بَنِيْ اُمَيَّةَ مُحِلِّيْنَ وَ اِنِّيْ وَاللّٰهِ لَا اُحِلُّهُ اَبَدًا قَالَ قَالَ النَّاسُ بَايِعْ لِابْنِ الزُّبَيْرِ فَقُلْتُ وَ اَيْنَ بِهٰذَا الْاَمْرِ عَنْهُ اَمَّا اَبُوْهُ فَحَوَارِيُّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ الزُّبَيْرَ وَ اَمَّا جَدُّهُ فَصَاحِبُ الْغَارِ يُرِيْدُ اَبَا بَكْرٍ وَ اُمُّهُ فَذَاتُ النِّطَاقِ يُرِيْدُ اَسْمَاءَ وَ اَمَّا خَالَتُهُ فَاُمُّ الْمُؤْمِنِيْنَ يُرِيْدُ عَائِشَةَ وَ اَمَّا عَمَّتُهُ فَزَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

اوشوے. او ما ذ بیعت نه انکار او کهٔ نو ابن عباسؓ اووے، هغه ډیر ښهٔ سړے دے. د هغهٔ پلار زبیر ابن عوام عشره مبشره کښې داخل دے، ذ هغهٔ مور ذ حضرت ابوبکرؓ لور او ذ بي بي عائشےؓ خور ده. چه ذات النطاقین ده. او د هغهٔ ترور بي بي عائشهؓ ده، او نیکهٔ ئے ابوبکرؓ دے، او نیا (دادي) ئے بي بي صفیهؓ ده. چه ذ عبدالمطلب لور او ذ حضور صلي الله علیه وسلّم ترور ده.

٦٤٩ : عبدالله بن محمد. یحیي بن معین. حجاج. ابن جریج. ابن ابي ملیکه نه روایت کوي، هغهٔ اووے. کوم وخت چه ابن عباسؓ او ابن زبیرؓ کښې ذ خلافت متعلق اختلاف شو. نو ما ابن عباسؓ سره ملاقات او کهٔ. او ورته م اووے. آیا ته دا خبره خوښوے چه ابن زبیرؓ سره جنګ او کړے، او دا شان د الله د حرم توهین (بے عزتي) اوشي. ابن عباسؓ اوفرمائیل. د خدائے پناه غواړم. دا کار خو د ابن زبیر او بني أمیه په حصه کښې لیکلے شوے دے. زه خو، خدائے ګواه دے. هیڅ کله به دا کار اونه کړم. ابن ابي ملیکه وائي. کوم وخت چه خلقو ابن عباسؓ ته اووے. تاسو د ابن زبیرؓ نه بیعت او کړئ. نو هغهٔ اووے. دے کښې څه حرج دے. هغه ذ دے قابل دے، ځکه چه د هغهٔ پلار د حضور صلي الله علیه وسلّم معاون (مددګار) وو، او د هغهٔ نیکهٔ ذ حضور صلي الله علیه وسلّم د غار یار وو. او ذ هغهٔ مور ته ذ ذات النطاقین کیدو شرف حاصل دے، او ذ هغهٔ ترور (خاله) أم المؤمنین ده، د هغهٔ ترور (پھوپھی) بي بي خدیجه ذ حضور صلي الله علیه وسلّم بي بي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ خَدِيْجَةَ وَ اَمَّا عَمَّةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَدَّتُهُ يُرِيْدُ صَفِيَّةَ ثُمَّ عَفِيْفٌ فِي الْاِسْلَامِ قَارِئٌ لِّلْقُرْاٰنِ وَاللّٰهِ اِنْ وَصَلُوْنِيْ وَصَلُوْنِيْ مِنْ قَرِيْبٍ وَ اِنْ رَبُّوْنِيْ رَبَّنِيْ اَكْفَاءٌ كِرَامٌ فَاٰثَرَ التُّوَيْتَاتِ وَالْاُسَامَاتِ وَالْحُمَيْدَاتِ يُرِيْدُ اَبْطُنًا مِّنْ بَنِيْ اَسَدٍ بَنِيْ تُوَيْتٍ وَبَنِيْ اُسَامَةَ وَ بَنِيْ اَسَدٍ اِنَّ ابْنَ اَبِي الْعَاصِ بَرَزَ يَمْشِي الْقُدَمِيَّةَ يَعْنِي عَبْدَ الْمَلِكِ بْنِ مَرْوَانَ وَ اِنَّهُ لَوَّى ذَنَبَهُ يَعْنِي ابْنَ الزُّبَيْرِ.

٢٥٠ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ مَيْمُوْنٍ حَدَّثَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ دَخَلْنَا عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ اَلَا تَعْجَبُوْنَ لِابْنِ الزُّبَيْرِ قَامَ فِيْ اَمْرِهِ هٰذَا فَقُلْتُ لَاُحَاسِبَنَّ نَفْسِيْ لَهُ مَا حَاسَبْتُهَا لِاَبِيْ بَكْرٍ وَلَا لِعُمَرَ وَلَهُمَا كَانَ اَوْلٰى بِكُلِّ خَيْرٍ مِّنْهُ وَ قُلْتُ ابْنُ عَمَّةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَابْنُ الزُّبَيْرِ وَابْنُ اَبِيْ بَكْرٍ وَابْنُ اَخِيْ خَدِيْجَةَ وَابْنُ اُخْتِ عَائِشَةَ فَاِذَا هُوَ يَتَعَلّٰى عَنِّيْ وَلَا يُرِيْدُ ذٰلِكَ فَقُلْتُ مَا كُنْتُ اَظُنُّ اَنِّيْ اَعْرِضُ هٰذَا مِنْ نَفْسِيْ فَيَدَعُهُ وَمَا اُرَاهُ يُرِيْدُ خَيْرًا وَ

ورد. د هغه نیا (دادي) بي بي صفیهٔ بنت عبدالمطلب ده. چه د رسول الله صلي الله علیه وسلّم ترور (پھوپھی) ده. بیا هغه خپله هم همیشه پاک دامن پاتے شوے دے او د قرآن قاری دے. قسم په خدائے که هغه مونږ سره ښه سلوک اوکړي. او پکار هم دي. چه هغه خمونږ نزدے رشته دار دے. او که هغه په مونږ حاکم وي. نو خمونږ د برابری دے. خو عبدالله بن زبیر. بني اسد. بني تویت او بني اسامه خمونږ نه زیات خپل مقرب او نزدے جوړ کړے دي. ګوره. عبدالملک خپل چال کښې غرور پیدا کړے دے. خو ابن زبیر دا کار ښه نه دے کړے چه بیانے هغه خلق خپل دوست او مقرب جوړ کړے دي.

٢٥٠ : محمد بن عبید بن میمون. عیسي بن یونس. عمر بن سعید. ابن ابي ملیکه نه روایت کوي. زه ابن عباسؓ سره یو خائے شوم. نو وئیلے. آیا تا اونه لیدل. ابن زبیر خلافت د پاره ولاړ دے. ما زړه کښې اووے. زه به غور کوم. چه آیا هغه ذ دے مستحق دے. یا نه. او ما د ابوبکرؓ او عمرؓ د خلافت معامله کښې هیڅ کله څه غور نه دے کړے. ځکه چه هغوي هر شان د دے لائق وو. بیا ما زړه کښې سوچ اوکړ. چه هغه خو د نبي صلي الله علیه وسلّم د ترور (پھوپھی) خوئے او ذ زبیر بن عوام خوئے دے چه عشره مبشره کښې داخل دے. او ذ حضور صلي الله علیه وسلّم ذ یار غار نوسے دے. او د بي بي خدیجے د وررور خوئے (وراره) او د بي بي اسماءؓ خوئے دے. دغه وجه ده چه هغه خپل خان خما نه افضل ګنړي. او ذ دے خبرے کوشش نه کوي. چه زه ذ هغهٔ مقرّب جوړ شم. زه

اِنْ كَانَ لَابُدَّ لِاَنْ يُرَبِّيَنِيْ بَنُوْ عَمِّيْ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْ اَنْ يُرَبَّنِيْ غَيْرُهُمْ.

خپل زړه کښې د هغهٔ نه اعراض نهٔ کوم. خو زبير ما پله توجه نهٔ کوي. زهٔ به اُوس بيعت او کړم. خکه چه د غير حاکم کيدو نه دا بهتره ده چه خمونږ عزيز حاکم وي.

بَابُ ٢٤١: قَوْلِهٖ وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ قَالَ مُجَاهِدٌ يَتَأَلَّفُهُمْ بِالْعَطِيَّةِ.

باب ٢٤١: آيت: وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ: د الله تعالي قول. چه تاليف قلب د پاره هم خرچ کول پکار دي. مجاهدوائي. حضور صلي الله عليه وسلم به تاليف قلب د پاره خرچ کولو.

ف: تاليف قلوب: د زړونو يو خائے کول. زړه يا زړونه ساتل. نور رضا ساتل.

١٦٥١: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نُعْمٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ بُعِثَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْءٍ فَقَسَمَهُ بَيْنَ اَرْبَعَةٍ وَ قَالَ اَتَأَلَّفُهُمْ فَقَالَ رَجُلٌ مَّا عَدَلْتَ فَقَالَ يَخْرُجُ مِنْ ضِئْضِيءِ هٰذَا قَوْمٌ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ.

١٦٥١: محمد بن کثير. سفيان. د هغهٔ پلار. ابن ابي نعم. حضرت ابو سعيد نه روايت کوي. د نبي صلي الله عليه وسلم خدمت کښې څهٔ څيز راوړے شو. حضور صلي الله عليه وسلم هغه خلورو سړو کښې تقسيم کړلو. ارشاد ئے اوفرمائيلو. ما د هغوي د تاليف قلوب د پاره داسے اوکړل. يو سړى اووے. تاسو انصاف اونهٔ کهٔ. حضور اوفرمائيل. د دهٔ د نسل نه به داسے خلق پيدا شي. چه دين به پريږدي. او به تښتي.

بَابُ ٢٤٢: قَوْلِهٖ اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ يَلْمِزُوْنَ يَعِيْبُوْنَ وَ جُهْدَهُمْ وَ جَهْدَهُمْ طَاقَتَهُمْ.

باب ٢٤٢: آيت: اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ: د الله تعالي قول. کوم خلق چه خيرات کونکو مؤمنانو ته طعنه ورکوي. "يلمزون" معني. عيب پرے لګوي. "جهدهم" او "جُهدهم" معني دي: د خپل کوشش او طاقت موافق.

١٦٥٢: حَدَّثَنِيْ بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ اَبُوْ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَمَّا اُمِرْنَا بِالصَّدَقَةِ كُنَّا نَتَحَامَلُ فَجَاءَ اَبُوْ عَقِيْلٍ بِنِصْفِ صَاعٍ وَّ

١٦٥٢: بشر بن خالد. ابو محمد. محمد بن جعفر. شعبه. سليمان. ابو وائل. حضرت ابي مسعود نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے. کوم وخت چه د خيرات کولو حکم راغے. نو مونږ به مزدوري بوج اوچتولو. بيا ورځے ابو عقيل نيم صاع قجورے راوړے. او يو سړي (يعني عبدالرحمن بن عوف) ډير زيات مال راوړلو. نو

جَاءَ اِنْسَانٌ بِاَكْثَرَ مِنْهُ فَقَالَ الْمُنَافِقُوْنَ اِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ عَنْ صَدَقَةِ هٰذَا وَمَا فَعَلَ هٰذَا الْاٰخَرُ اِلَّا رِيَاءً فَنَزَلَتْ اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ اِلَّا جُهْدَهُمْ الْاٰيَةَ.

منافقانو ونيلي: الله د دې حقير (معمولي) خيرات نه بې پروا دې. او دا زيات مال د ښودنې د پاره راوړلې شوې دې. دغه وخت دا آيت نازل شولو: چه منافقان به خيرات کونکو عيب لګوي. څوک چه کم ورکړي هغې ته حقير وائي، اوچه زيات ورکړي نو هغه په رياکارئ محمول کوي.

٦٥٣ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ قُلْتُ لِاَبِيْ اُسَامَةَ اَحَدَّثَكُمْ زَائِدَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ شَقِيْقٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدِ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ بِالصَّدَقَةِ فَيَحْتَالُ اَحَدُنَا حَتّٰى يَجِيْئَ بِالْمُدِّ وَ اِنَّ لِاَحَدِهِمُ الْيَوْمَ مِائَةَ اَلْفٍ كَاَنَّهُ يُعَرِّضُ بِنَفْسِهِ.

٦٥٣ : اسحاق بن ابراهيم. ابو اسامه. زائده. سليمان. شقيق. حضرت ابي مسعود انصاري نه روايت کوي، ذ هغه بيان دې، حضور صلي الله عليه وسلم به مونږ ته د خيرات حکم راکولو، نو مونږ به ډير کوشش سره ذ غنمو يا وربشو يو مُد راوړلې شو، يعني ډير کم خيرات به مو کولې شو. ليکن نن مونږ ذ يو لاکه ورکولو طاقت لرو. بيا حضرت ابو مسعودؓ خپل ځان طرف ته اشاره اوکړله.

ف: (١) صاع: د (٣٣٢) تولو يو وزن (کانړې). کاسه. يوه پيمانه. (٢) مُد: يو پيمانه چه عراق کښې دوه رطل وي (رطل: د نيم سير پيمانه. نيم سير وزن دې).

بَابُ ٢٤٣ : قَوْلُهُ اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً.

باب ٢٤٣ : آيت: اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ د الله تعالي قول، که ته هغوي د پاره ذ مغفرت دعا اوکړې يا اونۀ کړې که اويا ځله هم دعا اوکړې (نو هم الله هغوي نۀ ښنې).

٦٥٤ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ اللّٰهِ جَاءَ اِبْنُهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

٦٥٤ : عبيد بن اسمٰعيل. ابو اسامه. عبيدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، کوم وخت چه عبدالله بن ابي سلول (منافق) مړ شو، نو ذ هغۀ ځوئې ذ حضور صلي الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو، او حضور صلي الله عليه وسلم ته ئې عرض اوکۀ چه خپل قميص د هغۀ ذ کفن د پاره راکړئې، حضور صلي

وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ اَنْ يُعْطِيَهُ قَمِيْصَهُ يُكَفِّنُ فِيْهِ اَبَاهُ فَاَعْطَاهُ ثُمَّ سَأَلَهُ اَنْ يُصَلِّيَ عَلَيْهِ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُصَلِّيَ فَقَامَ عُمَرُ فَاَخَذَ بِثَوْبِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تُصَلِّيْ عَلَيْهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا خَيَّرَنِيَ اللّٰهُ فَقَالَ اسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً وَ سَأَزِيْدُهُ عَلَى السَّبْعِيْنَ قَالَ اِنَّهُ مُنَافِقٌ قَالَ فَصَلّٰى عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَاتَ اَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ.

اللّٰه عليه وسلّم قميص ورکړلو، بيا هغهٔ اووې، تاسو دَ دهٔ دَ جنازې مونځ هم اوکړئ. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ ورتلو اراده اوکړه. حضرت عمرؓ دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم لمن اونيوله، او عرض ئې اوکهٔ، اې دَ اللّٰه رسولهٔ، تاسوّ دَ منافق (دَ جنازې) مونځ کوئې، او دَ مغفرت دُعا ورته کوئې، اللّٰه تعالي خو دَ دې نه منع فرمائيلې ده. حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو. خدائې تعالي ماله اختيار راکړې دې، چه زهٔ هغهٔ دَ پاره دَ مغفرت دُعا اوغواړم يا اونهٔ غواړم او اللّٰه تعالي خو فرماني، که دوي دَ پاره اويا ځله هم دَ مغفرت (ببښنې) دعاګانې اوکړې شي، نو بيا هم زهٔ دوي نهٔ ببښم. نو زه دَ دهٔ دَ پاره دَ اويا ځله نه زيات مغفرت غواړم. حضرت عمرؓ عرض اوکهٔ، هغه خو منافق دې آخر حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونځ اوکړلو، نو هغه وخت دا آيت نازل شولو: وَلَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ: الخ يعني اې رسولهٔ، دې منافقانو کښې چه څوک هم مړ شي، نو مهٔ پرې د جنازې مونځ کوه، او مهٔ ئې قبر له ورځه.

۲۵۵ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ اَنَّهُ قَالَ لَمَّا مَاتَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيِّ بْنِ سَلُوْلٍ دُعِيَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُصَلِّيَ عَلَيْهِ فَلَمَّا قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ثَبْتُ اِلَيْهِ

۲۵۵ : يحيي بن بکير. ليث. عقيل. (دويم سند) ليث. عقيل. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه. حضرت ابن عباسؓ. حضرت عمرؓ بن خطاب نه روايت کوي. کوم وخت چه عبداللّٰه بن ابي (دَ منافقانو مشر) مړ شو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته دَ جنازې دَ مونځ دَ پاره اووئيلې شو. حضورصلي اللّٰه عليه وسلّم چه مونځ دَ پاره روان شو نو ما (عمرؓ) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ لمن نه اونيولو، او عرض م اوکهٔ، اې دَ اللّٰه رسولهٔ، تاسو دَ داسې

فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَتُصَلِّيْ عَلٰى ابْنِ اُبَيٍّ وَقَدْ قَالَ يَوْمَ كَذَا كَذَا وَ كَذَا قَالَ اُعَدِّدُ عَلَيْهِ قَوْلَهٗ فَتَبَسَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ اَخِّرْ عَنِّيْ يَا عُمَرُ فَلَمَّا اَكْثَرْتُ عَلَيْهِ قَالَ اِنِّيْ خُيِّرْتُ فَاخْتَرْتُ لَوْ اَعْلَمُ اَنِّيْ اِنْ زِدْتُّ عَلَى السَّبْعِيْنَ يُغْفَرُ لَهٗ لَزِدْتُّ عَلَيْهَا فَصَلّٰى عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ انْصَرَفَ فَلَمْ يَمْكُثْ اِلَّا يَسِيْرًا حَتّٰى نَزَلَتِ الْاٰيَتَانِ مِنْ بَرَاءَةٍ وَلَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا اِلٰى قَوْلِهٖ وَهُمْ فَاسِقُوْنَ قَالَ فَعَجِبْتُ بَعْدُ مِنْ جُرْاَتِيْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ.

سړي مونځ کوئے، چه هغه يوه ورځ دا دا خبرے کړے وے. غرض ما د هغه حرکات حضور صلي الله عليه وسلّم ته راياد کړل، نو حضور صلي الله عليه وسلّم څه قدرے مُسکے شولو، او ارشاد ئے اوفرمائيلو، اے عمرؓ، پريږده چه ورشم، الله تعالٰي ماله اختيار راکړے دے، که ماته دا معلومه شي چه يو سرے به اويا خله نه زيات استغفار سره اوبښلے شي، نو زۀ به هغۀ د پاره د اويا خله نه زيات استغفار اوغواړم، حضورؐ د هغۀ د جنازے مونځ ورکړلو، او واپس ئے تشريف راوړلو، نو سمدستي د سورۀ برأت دا آيتونه نازل شولو، وَلَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ الخ هغوي کښې په هيڅا د جنازے مونځ مۀ کوه، چه مړ شي، مۀ ئے قبر له ورځه: هم الفاسقون: پورے. حضرت عمرؓ دے نه پس وئيل، ماته په خپل جرأت حيرت راځي، چه ما حضور صلي الله عليه وسلّم د جنازے د مونځ نه ايسارولو، حالانکه الله تعالٰي او د هغۀ رسول ښۀ پوهيږي.

بَابُ ٢٤٤: قَوْلِهٖ وَلَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا وَّلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ.

باب ٢٤٤: آيت: وَلَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْهُمْ: د الله تعالٰي قول: که دوي (يعني منافقانو) کښې څوک مړ شي، نو نۀ پرے د جنازے مونځ کول پکار دي، و نه ئے قبر ته ورتلل پکار دي (چه دُعا ورته او کړي).

٦٥٦: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عَيَّاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيٍّ جَآءَ ابْنُهٗ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

٦٥٦: ابراهيم بن منذر. انس بن عياض. عبيدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، د هغۀ بيان دے، کوم وخت چه عبدالله بن ابي مړ شو، نو د هغۀ خوئے عبدالله، حضور صلي الله عليه وسلّم له راغے او حضور صلي الله عليه وسلّم نه ئے د خپل پلار د کفن کولو د پاره قميص اوغښتلو، حضور صلي الله عليه

فَأَعْطَاهُ قَمِيصَهُ وَ أَمَرَهُ أَنْ يُكَفِّنَهُ فِيهِ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّيْ عَلَيْهِ فَأَخَذَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِؓ بِثَوْبِهِ فَقَالَ تُصَلِّيْ عَلَيْهِ وَهُوَ مُنَافِقٌ وَقَدْ نَهَاكَ اللّٰهُ أَنْ تَسْتَغْفِرَ لَهُمْ قَالَ إِنَّمَا خَيَّرَنِيَ اللّٰهُ أَوْ أَخْبَرَنِيْ فَقَالَ اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ فَقَالَ سَأَزِيْدُهُ عَلٰى سَبْعِيْنَ قَالَ فَصَلّٰى عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَلَّيْنَا مَعَهُ ثُمَّ أَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلَا تُصَلِّ عَلٰى أَحَدٍ مِّنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَّلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ إِنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَمَاتُوْا وَهُمْ فَاسِقُوْنَ.

وسلم قميص ورکړلو، نو حضرت عمرؓ د حضور صلي الله عليه وسلم لمن اونيوله، او عرض ئے اوکړ، چه هغه خو منافق وو، تاسوٓ د منافق د جنازے مانځه له څنګه ځئ (يعني مه ځئ) حالانکه الله تعالي خو منافقانو ته د دُعا کولو نه منع فرمائيلے ده. حضور صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، اے عمرؓ، الله تعالي ماته اختيار راکړے دے. منع ئے نه ده کړے. يا خبردار کړے يم (راوي ته شک دے حضورؐ کوم لفظ اوفرمائيلو) که زهٔ غواړم، نو استغفار به اوکړم يا اونه کړم، او الله خو دا فرمائيلے دي: چه اويا ځله استغفار نه پس هم منافق نشي بښلے. خو زهٔ به د دے نه زيات ځله استغفار اوکړم، بيا مونږ حضور صلي الله عليه وسلم سره د هغهٔ (عبدالله بن ابي) د جنازے مونځ اوکړلو. دے نه پس الله تعالي دا آيت نازل کړلو: وَلَا تُصَلِّ عَلٰى أَحَدٍ الخ.

**باب ۲۴۵: قَوْلِهٖ سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ إِذَا انْقَلَبْتُمْ إِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوْا عَنْهُمْ فَأَعْرِضُوْا عَنْهُمْ إِنَّهُمْ رِجْسٌ وَمَأْوٰهُمْ جَهَنَّمُ جَزَاءً بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ.**

**باب ۲۴۵:** آيت: سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ إِذَا انْقَلَبْتُمْ: د الله تعالي قول، کله چه تاسو واپس راشئ، نو هغوي به بهانے کوي او قسمونه به خوري، چه تاسو ترے مخ واړوئ نو مخ ترينه واړوئ، ځکه چه هغوي پليت دي، او د هغوي ټيکاونړه جهنم دے. دا د هغوي د کارونو سزا ده.

۴۵۷: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ حِيْنَ تَخَلَّفَ عَنْ تَبُوْكَ وَاللّٰهِ مَا أَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ

۴۵۷: يحيي. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبدالرحمن بن عبدالله. عبدالله بن کعب بن مالک. حضرت کعب بن مالکؓ نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے، کوم وخت چه زهٔ غزوهٔ تبوک کښې حاضر نه شوم، او حضور صلي الله عليه وسلم د هغې نه واپس راغلو، نو الله تعالي ماته دا نعمت عطا کړلو،

مِنْ نِعْمَةٍ بَعْدَ اِذْ هَدٰنِيْ اَعْظَمُ مِنْ صِدْقِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ لَّا اَكُوْنَ كَذَبْتُهُ فَاَهْلِكَ كَمَا هَلَكَ الَّذِيْنَ كَذَبُوْا حِيْنَ اُنْزِلَ الْوَحْيُ سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ اِذَا انْقَلَبْتُمْ اِلَيْهِمْ اِلَى الْفَاسِقِيْنَ.

**باب ٢٤٢ : قَوْلِهِ وَ اٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ خَلَطُوْا عَمَلًا صَالِحًا وَّ اٰخَرَ سَيِّئًا عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْهِمْ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ.**

**٤٢٥٨ :** حَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ هُوَ ابْنُ هِشَامٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ ابْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا سَمُرَةُ بْنُ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنَا اَتَانِي اللَّيْلَةَ اٰتِيَانِ فَابْتَعَثَانِيْ فَانْتَهَيْنَا اِلٰى مَدِيْنَةٍ مَبْنِيَّةٍ بِلَبِنِ ذَهَبٍ وَلَبِنِ فِضَّةٍ فَتَلَقَّانَا رِجَالٌ شَطْرٌ مِّنْ خَلْقِهِمْ كَاَحْسَنِ مَا اَنْتَ رَاءٍ وَ شَطْرٌ كَاَقْبَحِ مَا اَنْتَ رَاءٍ قَالَا لَهُمْ اذْهَبُوْا فَقَعُوْا فِيْ ذٰلِكَ النَّهْرِ فَوَقَعُوْا فِيْهِ ثُمَّ رَجَعُوْا اِلَيْنَا قَدْ ذَهَبَ ذٰلِكَ السُّوْءُ عَنْهُمْ فَصَارُوْا فِيْ اَحْسَنِ صُوْرَةٍ قَالَا لِيْ هٰذِهٖ جَنَّةُ عَدْنٍ وَّ هٰذَاكَ مَنْزِلُكَ قَالَا اَمَّا الْقَوْمُ الَّذِيْنَ

چه ذ مسلمانیدو نه پس اوسه پورے راته نه وو حاصل شوے، هغه دا چه حضور صلي الله عليه وسلّم ته م دروغ اونه ونيل او ذ هلاک کيدو نه بچ شوم. او نور چه منافق وو، دروغ نے اوونيل، او هلاک شولو، نو الله تعالٰي په دے موقع دا آيت نازل کړلو: سَيَحْلِفُوْن بِاللّٰهِ الخ فَاسِقِين: پورے.

**باب ٢٤٢ :** آيت: و اٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ: ذ الله تعالي قول: نور هغه خلق دي چه خپلو باندے شرمنده شو. او هغوي خپل نيک کارونه نے بدو کارونو سره يو خائے کړل، نزدے ده، چه الله تعالٰي ذ هغوي توبه قبوله کړي، بيشکه الله تعالٰي بخنونکے او مهربانه دے.

**٤٢٥٨ :** مؤمل بن هشام. اسمٰعيل بن ابراهيم. عوف. ابو رجاء. حضرت سمره بن جندب نه روايت کوي: ذ هغه بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. ذ شپے دوه فريښتے راغلے، او زه نے ‌و داسے مکان ته بوتلم، چه د سرو او سپينو (زرو) ذ بنختو نه جوړ شوے وو. هلته ما خنے داسے خلق اوليدل چه ذ هغوي نيم بدن ډير خوبصورته او نيم بدن ډير بدصورته وو، داسے چه تاسو به هيڅ کله نه وي ليدلي. هغے فريښتو هغوي ته اووے. دے نهر کښ ورننوزے، هغوي وردننه شو، بيا بهر ته راووتل، نو ذ هغوي ټوله بدصورتي ختمه شوے وه، او هغوي خوبصورته شوي وو. فريښتو ماته اووے، دا جنت عدن دے، او ستاسو دا مقام او ټيکاونړه ده. بيا فريښتو اووے. ذ کومو خلقو چه دے نيم بدن خوبصورته او نيم بدن بدصورته ليدلے وو، دا

كَانُوا شَطْرٌ مِنْهُمْ حَسَنٌ وَ شَطْرٌ مِنْهُمْ قَبِيحٌ فَإِنَّهُمْ خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَ اٰخَرَ سَيِّئًا تَجَاوَزَ اللّٰهُ عَنْهُمْ.

هغه خلق دي، چه هغوي دُنيا كښې ښه او بد دواړه كارونه كړي وو، اللّٰه تعالٰي هغوي اوبښل، او هغوي پاک او خوبصورته شو.

ف: اللّٰه پاک دے مونږ هم اوبښي. اللّٰهم آمين.

**باب ۲۴۷ : قَوْلِهٖ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ.**

**باب ۲۴۷ :** آيت: ما كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا: دَ اللّٰه تعالٰي قول، پيغمبر او ايماندارو له دَ مشركينو دَ پاره استغفار كول نه دي پكار.

**۶۵۹ :** حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَمَّا حَضَرَتْ اَبَا طَالِبِ الْوَفَاةُ دَخَلَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عِنْدَهٗ اَبُوْ جَهْلٍ وَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ اُمَيَّةَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيْ عَمِّ قُلْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اُحَاجُّ لَكَ بِهَا عِنْدَ اللّٰهِ فَقَالَ اَبُوْ جَهْلٍ وَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُمَيَّةَ يَا اَبَا طَالِبٍ اَتَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ مَالَمْ اُنْهَ عَنْكَ فَنَزَلَتْ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْا اُولِيْ قُرْبٰى مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ اَصْحَابُ الْجَحِيْمِ.

**۶۵۹ :** اسحٰق بن ابراهيم. عبدالرزاق. معمر. زهري. سعيد بن مسيب خپل پلار نه روايت كوي: كوم وخت چه ابو طالب مړ كيدلو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورغے، دغه وخت هغهٔ سره ابوجهل او عبداللّٰه بن ابي اُميه هم ناست وو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، اے خما تره، ته دا اقرار اوكړه، چه دَ اللّٰه نه سوا بل معبود نشته، او زهٔ به دَ هغهٔ بندگي كوم نو زهٔ به دے دَ خدائے نه ببښنه اوغوارم. ابوجهل او عبداللّٰه چه دا واوريدل، نو وے وئيل، اے ابو طالبه: آيا دَ مرگ په وخت دَ خپل پلار نيكهٔ دين پريږدے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، زهٔ به ستا دَ پاره دَ خدائے نه استغفار كوم، خو پورے چه هغه ما دَ دے كار نه منع نهٔ كړي، نو هغه وخت دا آيت: مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْا اُولِيْ قُرْبٰى مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ نازل شولو.

**باب ۲۴۸ : قَوْلِهٖ لَقَدْ تَّابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ**

**باب ۲۴۸ :** آيت: لَقَدْ تَّابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ: دَ اللّٰه تعالٰي قول، اللّٰه په نبي مهرباني اوكړه، او په مهاجرينو

الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيْغُ قُلُوْبُ فَرِيْقٍ مِّنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ اِنَّهُ بِهِمْ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ.

او انصارو، چه هغوي د نبي مشکل او پريشانۍ وخت کښې پيروي او کړله، حالانکه هغوي کښې د يوې ډلې زړه کږيدونکې وو، اللّٰه تعالیٰ په هغوي خپله مهرباني او کړله، بيشکه اللّٰه تعالیٰ بېنونکې مهربانه دې.

٤٢٧٠ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ ح قَالَ اَحْمَدُ وَ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ كَعْبٍ وَ كَانَ قَائِدَ كَعْبٍ مِنْ بَنِيْهِ حِيْنَ عَمِيَ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ فِيْ حَدِيْثِهٖ وَ عَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا قَالَ فِيْ اٰخِرِ حَدِيْثِهٖ اِنَّ مِنْ تَوْبَتِيْ اَنْ اَنْخَلِعَ مِنْ مَّالِيْ صَدَقَةً اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمْسِكْ بَعْضَ مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكَ.

٤٢٧٠ : احمد بن صالح. ابن وهب. يونس. احمد. عنبسه. يونس. ابن شهاب. عبدالرحمٰن بن كعب. عبداللّٰه بن كعبؓ نه روايت کوي (او دا عبداللّٰه هغه دې، چه کوم وخت حضرت کعبؓ نابينا شو، نو دې به د هغهٔ په سهارا تلو) د هغهٔ بيان دې، ما د خپل پلار نه آوريدلې دي، هغهٔ به دا آيت: وَ عَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا: باره کښې بيان کولو. او د تېولونه آخر کښې به ئې دا خبره فرمائيله، ما د خپلې توبې د قبليدو په خوشحالي کښې خپل ټول مال د اللّٰه په لار کښې خرچ کول غوښتلې وو. خو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل، ټول مال مه صدقه کوه، څه صدقه کړه، او څه خان د پاره اوساته. هغه به ستا د پاره مفيد شي.

## باب ٢٤٩ : قَوْلِهٖ وَ عَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا حَتّٰى اِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَ ضَاقَتْ عَلَيْهِمْ اَنْفُسُهُمْ وَ ظَنُّوْا اَنْ لَّا مَلْجَاَ مِنَ اللّٰهِ اِلَّا اِلَيْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوْبُوْا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ.

باب ٢٤٩ : آيت: وَ عَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا: د اللّٰه تعالیٰ قول، اللّٰه به هغې درې سړو هم مهرباني او کړله، چه ورستو پاتې شوې وو، تردې چه زمکه پرې باوجود د فراخي تنګه شوې وه، او هغوي باندې خپل خانونه بوج شوې وو، او هغوي ته معلومه شوه، چه بېوا د اللّٰه نه بل چرته پناه نشته، نو اللّٰه په هغوي مهرباني او کړه، چه هغوي په خپله توبه قائم پاتې شي، بيشکه اللّٰه توبه قبلونکې مهربانه دې.

۱۲۲۱: حَدَّثَنِی مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِی شُعَیْبٍ حَدَّثَنَا مُوْسَی بْنُ اَعْیَنَ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ رَاشِدٍ اَنَّ الزُّهْرِیَّ حَدَّثَهُ قَالَ اَخْبَرَنِیْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ کَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِیْهِ قَالَ سَمِعْتُ اَبِیْ کَعْبَ بْنَ مَالِكٍ وَهُوَ اَحَدُ الثَّلَاثَةِ الَّذِیْنَ تِیْبَ عَلَیْهِمْ اَنَّهُ لَمْ یَتَخَلَّفْ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فِیْ غَزْوَةٍ غَزَاهَا قَطُّ غَیْرَ غَزْوَتَیْنِ غَزْوَةِ الْعُسْرَةِ وَ غَزْوَةِ بَدْرٍ قَالَ فَجَمَعْتُ صِدْقَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ضُحًی وَ کَانَ قَلَّمَا یَقْدَمُ مِنْ سَفَرٍ سَافَرَهُ اِلَّا ضُحًی وَ کَانَ یَبْدَاُ بِالْمَسْجِدِ فَیَرْکَعُ رَکْعَتَیْنِ وَ نَهَی النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَنْ کَلَامِیْ وَ کَلَامِ صَاحِبَیَّ وَلَمْ یَنْهَ عَنْ کَلَامِ اَحَدٍ مِنَ الْمُتَخَلِّفِیْنَ غَیْرِنَا فَاجْتَنَبَ النَّاسُ کَلَامَنَا فَلَبِثْتُ کَذٰلِكَ حَتّٰی طَالَ عَلَیَّ الْاَمْرُ وَمَا مِنْ شَیْءٍ اَهَمَّ اِلَیَّ مِنْ اَنْ اَمُوْتَ فَلَا یُصَلِّیْ عَلَیَّ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَوْ یَمُوْتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَاَکُوْنَ مِنَ النَّاسِ بِتِلْكَ الْمَنْزِلَةِ فَلَا یُکَلِّمُنِیْ اَحَدٌ مِنْهُمْ وَلَا یُصَلِّیْ عَلَیَّ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ

۱۲۲۱: محمد، احمد بن ابی شعیب، موسی بن اعین، اسحق بن راشد، زهری، عبدالرحمن بن عبدالله بن کعب بن مالک خپل پلار نه او هغه د خپل پلار کعب بن مالک نه روایت کوي، د هغه بیان دے، زه هیڅ غزا کښې د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه هیڅ کله ورسنو نه یم پاتے شوے سوا د دوو غزاګانو نه یو جنګ بدر او بل جنګ تبوک. کوم وخت چه حضور صلي الله علیه وسلم د جنګ تبوک نه په واپسي د چاشت وخت کښې مدینے ته تشریف راوړلو نو ما د رښتیا وئیلو پخه اراده کړے وه. حضور صلي الله علیه وسلم چه به د سفر نه واپس تشریف راوړلو نو اکثر به ئے د چاشت په وخت تشریف راوړلو او د ټولو نه مخکښې به جمات ته لاړلو، دوه رکعاته (نفل) مونځ به ئے اوکړلو. حضور صلي الله علیه وسلم خلق ما سره او خما نورو دوو ملګرو سره د خبرو کولو نه منع کړے وو. لیکن نورو پاتے کیدونکو سره ئے د خبرو کولو نه، نۀ وو منع کړے، خلق مونږ درے واړو نه جدا اوسیدل، او خبرے ورسره نه کولے. ما سره د دے خبرے سخت غم وو، چه دے حال کښې چرته مړ نشم، او حضور صلي الله علیه وسلم به په ما د جنازے مونځ هم اونۀ کړي یا خدائے مۀ کړه (خدانخواسته) چرته حضور صلي الله علیه وسلم خپله د دنیا نه سفر اونۀ کړي او بیا به ټولو سره دغه سلوک وي، چه نۀ به راسره څوک خبرے کوي، اونۀ به راباندے د جنازے مونځ کوي.

تُوْبَتِنَا عَلٰى نَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ بَقِيَ الثُّلُثُ الْاٰخِرُ مِنَ اللَّيْلِ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ اُمِّ سَلَمَةَ وَ كَانَتْ اُمُّ سَلَمَةَ مُحْسِنَةٌ فِيْ شَأْنِيْ مَعْنِيَّةً فِيْ اَمْرِيْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا اُمَّ سَلَمَةَ تِيْبَ عَلٰى كَعْبٍ قَالَتْ اَفَلَا اُرْسِلُ اِلَيْهِ فَاُبَشِّرَهٗ قَالَ اِذًا يَحْطِمُكُمُ النَّاسُ فَيَمْنَعُوْنَكُمُ النَّوْمَ سَائِرَ اللَّيْلَةِ حَتّٰى اِذَا صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةَ الْفَجْرِ اٰذَنَ بِتَوْبَةِ اللّٰهِ عَلَيْنَا وَ كَانَ اِذَا اسْتَبْشَرَ اسْتَنَارَ وَجْهُهٗ حَتّٰى كَاَنَّهٗ قِطْعَةٌ مِنَ الْقَمَرِ وَ كُنَّا اَيُّهَا الثَّلٰثَةُ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا عَنِ الْاَمْرِ الَّذِيْ قُبِلَ مِنْ هٰؤُلَاءِ الَّذِيْنَ اعْتَذَرُوْا حِيْنَ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَنَا التَّوْبَةَ فَلَمَّا ذُكِرَ الَّذِيْنَ كَذَبُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمُتَخَلِّفِيْنَ وَاعْتَذَرُوْا بِالْبَاطِلِ ذُكِرُوْا بِشَرٍّ مَا ذُكِرَ بِهٖ اَحَدٌ قَالَ اللّٰهُ سُبْحَانَهٗ يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلَيْهِمْ قُلْ لَّا تَعْتَذِرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّاَنَا اللّٰهُ مِنْ اَخْبَارِكُمْ وَ سَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَ رَسُوْلُهٗ الْاٰيَةَ.

آخر پنځوس ورځے پس الله تعالي په مونږ کرم او کړلو، او يوه ورځ سحر صبا رسول الله صلي الله عليه وسلّم باندے خمونږ ذَ توبے ذَ قبليدو متعلق وحي نازله شوه. په دغه شپه حضور صلي الله عليه وسلّم بي بي اُم سلمهؓ کره وو. حضورؐ هغے ته اوفرمائيل چه د کعب توبه قبوله شوه. اُم سلمهؓ اووے، زهٔ هغهٔ له څوک اوليږم، چه هغه خبر کړي. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دے وخت به ټول خلق راجمع شي، او بيا به دے ټوله شپه خوب هم نصيب نهٔ شي، نو ذَ سحر ذ مانځه نه پس حضور صلي الله عليه وسلّم خلقوته ذَ دے خبرے خبر ورکړلو. ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم مخ مبارک دغسے چمک کولو. مونږ درے واړه سړي ذَ منافقانو نه توبے قبليدو کښ ورستو پاتے شوے وو، خو پورے چه الله تعالي خمونږ توبه قبوله کړے نهٔ وه، نو وحي ئے نهٔ وه نازله کړے. خو الله ذ هغے ټولو (منافقانو) په حقله داسے بد رَد اوونيل، چه بل چا ذَ پاره داسے نهٔ وو ونيلے. او دا آيت ذَ هغوي په حق کښ نازل شولو: يعتذرون اليكم اذا رجعتم اليهم قل لا تعتذروا الخ: يعني کله چه تهٔ هغوي ته واپس ورشے، نو هغوي به ذَ دروغو بهانے جوړے کړي. اے رسوله، تهٔ ورته اووايه، اے منافقانو، عذر مهٔ کوئے مونږ هيڅ کله تاسو ريښتينے نهٔ ګڼړو. الله ستاسو ذَ ټولو خبرو نه مونږ خبر کړي يُو، الله او رسول به اوس ستاسو اعمال ګوري.

**باب ۲۵۰: قَوْلِهٖ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ**

**باب ۲۵۰: آيت: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ**

اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ كُوْنُوْا مَعَ الصّادِقِيْنَ.

كُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول، اے ايمان والو! اللّٰه نه ويريږئ او رينبتينې خلقو سره شئ.

٦٦٢: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ وَ كَانَ قَائِدَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ يُحَدِّثُ حِيْنَ تَخَلَّفَ عَنْ قِصَّةِ تَبُوْكٍ فَوَاللّٰهِ مَا اَعْلَمُ اَحَدًا اَبْلَاهُ اللّٰهُ فِيْ صِدْقِ الْحَدِيْثِ اَحْسَنَ مِمَّا اَبْلَانِيْ مَا تَعَمَّدْتُ مُنْذُ ذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى يَوْمِيْ هٰذَا كَذِبًا وَّ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ تَابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِيْنَ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ كُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ.

٦٦٢: يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن كعب بن مالك. عبداللّٰه بن كعب بن مالكؓ (او دا هغه عبداللّٰه دے، چه دَ كعب بن مالك نابينا كيدو سره به هغهٔ سره ګرځيدلو) دَ خپل پلار نه روايت كوي. هغه غزوه تبوك كښې دَ روستو پاتے كيدو واقعه بيانولو سره اووے، خدائے ګواه دے، چه شايد اللّٰه تعالىٰ په چا دَ رينبتيا وئيلو په بدله دومره لوئے انعام نهٔ وي كړے، څومره چه په مائے عنايت كړے دے. هر كله چه ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته غزوه تبوك كښې دَ ورستو پاتے كيدو ټيك ټيك سبب بيان كه، نو دَ هغې وخت نه واخله ننه پورے دَ دروغ وئيلو قصد مې هم نه دے كړے. ترديے چه اللّٰه په خپل رسولٌ دا آيت نازل كړلو: لَقَدْ تَابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ الخ كُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ پورے.

بَابُ ١٥٢: قَوْلِهٖ لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَؤُفٌ رَّحِيْمٌ مِّنَ الرَّاْفَةِ.

باب ١٥٢: آيت: لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ الخ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول، تحقيق سره تاسو ته يو رسول راغلے له جنس ستاسے نه، چه په هغهٔ ستاسو تكليف ګران تيريږي، او هغه ستاسو دَ ښېګړے حريص دے (يعني ستاسو په ښيګړه ډير مين دے). اهل ايمان باندے ډيږ مهربانه او رحم كونكے دے. "رؤف" رأفة نه وتے دے، معني ډير مهربان.

٦٦٣: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ

٦٦٣: ابواليمان. شعيب. زهري. ابن سباق. حضرت زيد بن ثابت انصاري (چه كاتب

اَخْبَرَنِي ابْنُ السَّبَّاقِ اَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ
الْاَنْصَارِيَّ وَ كَانَ مِمَّنْ يَّكْتُبُ الْوَحْيَ
قَالَ اَرْسَلَ اِلَيَّ اَبُوْ بَكْرٍ مَقْتَلَ اَهْلِ
الْيَمَامَةِ وَ عِنْدَهُ عُمَرُ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ اَنَّ
عُمَرَ اَتَانِيْ فَقَالَ اِنَّ الْقَتْلَ قَدِ اسْتَحَرَّ
يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِالنَّاسِ وَ اِنِّيْ اَخْشٰى اَنْ
يَّسْتَحِرَّ الْقَتْلُ بِالْقُرَّآءِ فِي الْمَوَاطِنِ
فَيَذْهَبُ كَثِيْرٌ مِّنَ الْقُرْاٰنِ اِلَّا اَنْ
تَجْمَعُوْهُ وَ اِنِّيْ لَاَرٰى اَنْ تَجْمَعَ الْقُرْاٰنَ
قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ قُلْتُ لِعُمَرَ كَيْفَ اَفْعَلُ
شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عُمَرُ هُوَ
وَاللّٰهِ خَيْرٌ فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَاجِعُنِيْ
فِيْهِ حَتّٰى شَرَحَ اللّٰهُ لِذٰلِكَ صَدْرِيْ وَ
رَاَيْتُ الَّذِيْ رَاٰى عُمَرُ قَالَ زَيْدُ بْنُ
ثَابِتٍ وَ عُمَرُ عِنْدَهُ جَالِسٌ لَا يَتَكَلَّمُ
فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ اِنَّكَ رَجُلٌ شَابٌّ عَاقِلٌ
وَلَا نَتَّهِمُكَ كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ
لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَتَتَبَّعِ الْقُرْاٰنَ فَاجْمَعْهُ فَوَاللّٰهِ لَوْ
كَلَّفَنِيْ نَقْلَ جَبَلٍ مِّنَ الْجِبَالِ مَا
كَانَ اَثْقَلَ عَلَيَّ مِمَّا اَمَرَنِيْ بِهٖ مِنْ
جَمْعِ الْقُرْاٰنِ قُلْتُ كَيْفَ تَفْعَلَانِ شَيْئًا
لَمْ يَفْعَلْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ هُوَ وَاللّٰهِ خَيْرٌ
فَلَمْ اَزَلْ اُرَاجِعُهُ حَتّٰى شَرَحَ اللّٰهُ

وحي وو) نه روايت کوي، هغهٔ اووے. حضرت ابوبکرؓ
ذ خپل خلافت زمانه کښې ماته څوک راوليږل،
هغه وخت جنګ يمامه کيدلو، زهٔ هغه له ورغلم،
نو هغه اوفرمائيل، حضرت عمرؓ ماته وئيلي دي،
ذ يمامه جنګ په زور دے، داسے نه چه
حافظان (حفاظت) شهيدان شي، او ذ قرآن اکثره
حصه ضائع شي، نو زهٔ دا مناسب ګنړم چه قرآن
يوځائے راجمع کړے شي، ما دا جواب ورکړلو،
زهٔ دا کار څنګه اوکړم، هر کله چه حضور صلي الله
عليه وسلّم داسے نهٔ دي کړے، خو حضرت عمرؓ
اصرار اوکړلو، او وئيلے، راجمع کول ئے پکار دي،
آخر خما رائے هم ورسره يو شوه، زيد وائي،
حضرت عمرؓ دا تقرير خاموشي سره آوريدلو.
دے نه پس حضرت ابوبکرؓ ماته اووے. ګوره،
تهٔ ځلمے او عقل واله سړے ئے، مونږ تا ريښتنے
ګنړو، ځکه چه تا ذ نبي صلي الله عليه وسلّم په
زمانه کښې هم قرآن ليکلو، نو تهٔ دا کار سرته اُورسوه.
په خدائے م دے قسم وي، ماته دا کار دومره ګران
معلوم شو، چه يو غر ذ يو ځائے نه بل ځائے ته منتقل
کول ذ دے مقابله کښې راته آسانه ښکاره شو، ما
جواب کښې اووے، هر کله چه يو کار نبي صلي الله
عليه وسلّم نهٔ دے کړے، نو زهٔ ئے څنګه اوکړم.
ذ حضرت ابوبکرؓ ذ اصرار کولو نه پس حضرت
زيد بن ثابت اووے، ښه ده، اوس دا راز په ما
څرګند شولو، او خما هم هغسے رائے شوه، ځکه
چه ذ حضرت عمرؓ او ابوبکرؓ ده. بيا زهٔ ذ قرآن

صَدْرِيْ لِلَّذِيْ شَرَحَ اللّٰهُ لَهُ صَدْرَ أَبِيْ بَكْرٍ وَ عُمَرَ فَقُمْتُ فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْاٰنَ اَجْمَعُهُ مِنَ الرِّقَاعِ وَالْاَكْتَافِ وَالْعُسُبِ وَ صُدُوْرِ الرِّجَالِ حَتّٰى وَجَدْتُ مِنْ سُوْرَةِ التَّوْبَةِ اٰيَتَيْنِ مَعَ خُزَيْمَةَ الْاَنْصَارِيِّ لَمْ اَجِدْهُمَا مَعَ اَحَدٍ غَيْرِهٖ لَقَدْ جَاءَ كُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ اِلٰى اٰخِرِهِمَا وَ كَانَتِ الصُّحُفُ الَّتِيْ جُمِعَ فِيْهَا الْقُرْاٰنُ عِنْدَ اَبِيْ بَكْرٍ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ ثُمَّ عِنْدَ حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَؓ تَابَعَهُ عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ وَاللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ مَعَ اَبِيْ خُزَيْمَةَ الْاَنْصَارِيِّ وَ قَالَ مُوْسٰى عَنْ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ مَعَ اَبِيْ خُزَيْمَةَ وَ تَابَعَهُ يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَبِيْهِ وَ قَالَ اَبُوْ ثَابِتٍ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ وَ قَالَ مَعَ خُزَيْمَةَ اَوْ اَبِيْ خُزَيْمَةَ.

تلاش پسے اولیدم، چرته په هډوکي، چرته په خرمن چرته د قجورے د ښاخ په پټ، او چرته د خلقو زړونو کښې م محفوظ بيامند. بيا تر لړم حضرت خزيمه انصاري سره جمع كړ، هغهٔ سره م د سورهٔ توبه دوه آيتونه ليكلے اوليدل، چه بل چا سره نه وو، يو خو دا چه: لَقَدْ جَاءَ كُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ: او دويم دا آيت: فان تولوا فقل حسبى الله لا اله الا هو الخ: او د قرآن جمع كړه حصه حضرت ابوبكرؓ سره وه چه هغه وفات شو نو بيا د حضرت عمرؓ لور حفصےؓ سره دا صحيفے موجود وے. شعيب سره دا حديث عثمان بن عمرؓ او ليث بن سعد هم د يونس نه او هغهٔ د ابن شهاب نه روايت كړے دے. ليث وائي، ماته عبدالرحمن بن خالد بيان اوكړ، هغهٔ د ابن شهاب نه روايت كړ، دے كښې د خزيمه په ځائے ابو خزيمه انصاري دے. او موسي د ابراهيم نه روايت اوكړ، موږته ابن شهاب بيان كړه. دے كښې هم ابو خزيمه دے. موسي سره دا يعقوب بن ابراهيم هم د خپل پلار نه روايت كړه. د ابو ثابت بيان دے، ابراهيم اووے دے حديث كښې صرف د خزيمه يا ابو خزيمه شك دے.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

## سُوْرَةُ يُوْنُس

## دَ سورهٔ يونس تفسير

وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَاخْتَلَطَ فَنَبَتَ بِالْمَاءِ مِنْ كُلِّ لَوْنٍ.

ابن عباسؓ وائي، د "فاختلط" معني دي، د باران كيدو په وجه په زمكه د هر قسمه سبزه راؤتو كيدله.

**باب ۲۵۲:** وَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحَانَهُ هُوَ الْغَنِيُّ وَ قَالَ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ اَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ خَيْرٌ يُقَالُ تِلْكَ اٰيَاتُ يَعْنِيْ هٰذِهٖ اَعْلَامُ الْقُرْاٰنِ وَ مِثْلُهُ حَتّٰى اِذَا كُنْتُمْ فِي الْفُلْكِ وَ جَرَيْنَ بِهِمْ اَلْمَعْنٰى بِكُمْ دَعْوَاهُمْ دُعَاؤُهُمْ اُحِيْطَ بِهِمْ دَنَوْا مِنَ الْهَلَكَةِ اَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْئَتُهٗ فَاَتْبَعَهُمْ وَ اَتْبَعَهُمْ وَاحِدٌ عَدْوًا مِنَ الْعُدْوَانِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ يُعَجِّلُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ بِالْخَيْرِ قَوْلُ الْاِنْسَانِ لِوَلَدِهٖ وَمَالِهٖ اِذَا غَضِبَ اللّٰهُمَّ لَا تُبَارِكْ فِيْهِ وَالْعَنْهُ لَقُضِيَ اِلَيْهِمْ اَجَلُهُمْ لَاُهْلِكَ مَنْ دُعِيَ عَلَيْهِ وَلَاَمَاتَهٗ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى مِثْلُهَا حُسْنٰى وَ زِيَادَةٌ مَغْفِرَةٌ وَقَالَ غَيْرُهُ النَّظَرُ اِلٰى وَجْهِهٖ اَلْكِبْرِيَاءُ الْمُلْكُ.

**باب ۲۵۳:** قَوْلِهٖ وَ جَاوَزْنَا بِبَنِيْۤ اِسْرَآئِيْلَ الْبَحْرَ فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَ جُنُوْدُهٗ بَغْيًا وَّ عَدْوًا حَتّٰى اِذَا اَدْرَكَهُ الْغَرَقُ قَالَ اٰمَنْتُ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِيْۤ اٰمَنَتْ بِهٖ بَنُوْۤا اِسْرَآئِيْلَ وَ اَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ نُنَجِّيْكَ نُلْقِيْكَ عَلٰى

**باب ۲۵۲:** آيت: وَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ: کښې دَ "سُبْحٰنَهٗ" مطلب دے، هغه پاک دے، هغه غني دے. زيد بن اسلم وائي: "قدم صدق" نه مراد د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذات مبارک دے. مجاهد وائي دے نه خير و فلاح مراد دے. "تلک ايات" يعني دا دَ قرآن نښې، لکه "جرين بهم" معني هغه کشتئ چه تاسو بوخي "دعواهم" معني: دَ هغوي دُعا. "اُحيط بهم" مراد هغوي ئے راګير کړل، يعني هلاکت ته نزدے شو. لکه "احاطت بهم خطيئته" معني دي، چه ګناهونو هغوي دَ هر طرف نه راګير کړے دي. "فاتبعهم" معني دي، چه شفه هغوي پسے لاړ. "عدوًا" معني دي دَ زياتے په طور. مجاهد وائي "يجعل اللّٰه للناس الشّرَّ استعجالهم بالخير" نه مراد دا دے، انسان عصّه کښې خپل اولاد او مال ته خيرے کوي، چه اے اللّٰه، دے کښې برکت مهٔ اچوے، اوپه ده لعنت اوکړے. "لَقُضِيَ اِلَيْهِمْ اَجَلُهُمْ" دَ هغوي ميعاد پوره شوے دے، هغه چه چاته خيرے کوي، تباه شي. "للّذين احسنوا الحسنٰى" چا چه نيکي اوکړه، هغوي دَ پاره زيات مغفرت او رضامندي ده، نور وائي، زيات نه مراد دَ اللّٰه تعالٰي ديدار دے. "الکبرياء" نه مراد بزرګي او بدشاهت دے.

**باب ۲۵۳:** آيت: وَ جٰوَزْنَا بِبَنِيْۤ اِسْرَآئِيْلَ الْبَحْرَ: دَ اللّٰه تعالٰي قول: مونږ بني اسرائيل دَ درياب نه پوريباسل، فرعون او دَ هغهٔ فوځ دَ سرکشئ په طور دَ هغوي تعاقب اُوکړ، تردے چه کوم وخت هغه په ډوبيدو شو، نو هغهٔ اووے، ما په هغے ير معبود ايمان راوړلو، چه په هغه بني اسرائيلو ايمان راوړے، او زهٔ دَ فرمانبردارو نه

نَجْوَةٍ مِنَ الْاَرْضِ وَهُوَ النَّشْزُ الْمَكَانِ الْمُرْتَفِعِ.

يم. "ننجيك" معني دي، مونږ ستا لاش په اوچت ځائے اړدو، چه خلق ئے ويني، او عبرت ترے اخلي.

٤٦٦٤: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَالْيَهُوْدُ تَصُوْمُ عَاشُوْرَآءَ فَقَالُوْا هٰذَا يَوْمٌ ظَهَرَ فِيْهِ مُوْسٰى عَلٰى فِرْعَوْنَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَصْحَابِهٖ اَنْتُمْ اَحَقُّ بِمُوْسٰى مِنْهُمْ فَصُوْمُوْا.

٤٦٦٤: محمد بن بشار. غندر. شعبه. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم چه مدينے ته تشريف راوړلو، نو ټولو يهوديانو دَ عاشورے روژه نيوله، او وجه ئے دا بيانوله، چه حضرت موسيٰؑ ته په فرعون غلبه حاصله شوه، او فرعون سره دَ لښكره درياب كښې ډوب شو. نو حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته اوفرمائيل، دَ حضرت موسيٰؑ معامله كښې تاسو دَ دوي نه زيات مستحق ئے، نو تاسو هم دَ عاشورے روژه اونيسئے.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سُوْرَةُ هُوْدٍ

# دَ سورهٔ هود تفسير

وَ قَالَ اَبُوْ مَيْسَرَةَ لَاَوَّاهٌ اَلرَّحِيْمُ بِالْحَبْشَةِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بَادِيَ الرَّأْيِ مَا ظَهَرَ لَنَا وَ قَالَ مُجَاهِدُ الْجُوْدِيُّ جَبَلٌ بِالْجَزِيْرَةِ وَ قَالَ الْحَسَنُ اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ يَسْتَهْزِءُوْنَ بِهٖ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَقْلِعِيْ اَمْسِكِيْ عَصِيْبٌ شَدِيْدٌ لَا جَرَمَ بَلٰى وَ فَارَ التَّنُّوْرُ نَبَعَ الْمَآءُ وَ قَالَ عِكْرِمَةُ وَجْهُ الْاَرْضِ.

ابو ميسره وائي. "اواه" معني: حبشي ژبه كښې دَ مهربان دي. ابن عباسؓ اووے. "بادي الرأي" معني، چه مونږ ته ظاهر شو. دَ مجاهد بيان دے، چه "جودى" جزيره كښې دَ يو غر نوم دے. حسنؒ وائي، "لانت الحليم" معني بردبار دا به په طور دَ استهزا كافرو وئيلے. ابن عباسؓ وائي، "اقلعى" معني دي، اودريږه، ايسار شه. او "عصيب" معني دي شديد. "لا جرم" معني دي، ولے نه يعني ضرور. او "فار التنور" معني دي، اوبو جوش اووهلو (جوش كښې راغلے) عكرمه وائي، تنور نه مراد دَ زمكے سطح ده.

باب ۲۵۴: قَوْلِهٖ اَلَا اِنَّهُمْ يَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ لِيَسْتَخْفُوْا مِنْهُ

باب ۲۵۴: آيت: اَلَا اِنَّهُمْ يَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ: دَ اللّٰه تعالي قول، گوره، دوي خپلے سينے غبرگے كړي،

اَلَا حِيْنَ يَسْتَغْشُوْنَ ثِيَابَهُمْ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ اِنَّهٗ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ وَ قَالَ غَيْرُهٗ وَ حَاقَ نَزَلَ يَحِيْقُ يَنْزِلُ يَئُوْسٌ فَعُوْلٌ مِنْ يَئِسْتُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ تَبْتَئِسْ تَحْزَنْ يَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ شَكٌّ وَ امْتِرَاءٌ لِيَسْتَخْفُوْا مِنْهُ مِنَ اللّٰهِ اِنِ اسْتَطَاعُوْا.

چه الله نه ذ راز خبرے پټے کړي، واوره، الله تعالي خو، چه کپړو کښې پټ ئے نو هم ستاسو ذ پټو خبرونه خبر دے، او هغه ذ زړونو په رازونو پوه دے. نورو خلقو اووے "حاق" معني گير ئے کړلو، او "نزول" معني نازل شرلو. "يئوس" بر وزن فعول په معني ذ نااُميد مجاهد اووے "فلا تبتئس" معني دي افسوس مهٔ کوه. "يثنون صدورهم" مطلب دے، سينے غبرگے کړي. "ليستخفوا منه" يعني که ممکنه وي، نو چه ذ الله نه ئے پټه کړي.

٢٦٥: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبَّادِ بْنِ جَعْفَرٍ اَنَّهٗ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقْرَأُ اَلَا اِنَّهُمْ يُثْنُوْنِيْ صُدُوْرُهُمْ قَالَ سَاَلْتُهٗ عَنْهَا فَقَالَ اُنَاسٌ كَانُوْا يَسْتَحْيُوْنَ اَنْ يَتَخَلَّوْا فَيُفْضُوْا اِلَى السَّمَآءِ وَ اَنْ يُجَامِعُوْا نِسَآءَهُمْ فَيُفْضُوْا اِلَى السَّمَآءِ فَنَزَلَ ذٰلِكَ فِيْهِمْ.

٢٦٥: حسن بن محمد بن صباح. حجاج. ابن جريج. محمد بن عباد بن جعفر نه روايت کوي، ما ذ ابن عباسؓ نه داسے لوستل آوريدلے دي: الا انّهم يثنونی صدورهم: نو ما ذ هغهٔ نه معلومه کړه، چه دا آيت څهٔ سلسله کښې نازل شولو، هغهٔ اووے، څنے خلقو به وارهٔ يا لوئے بول يا ذ جماع په وخت پرانستے ځائے کښې ذ آسمان لاندے دا کار کولو، نو ويريدل او شرميدل به ذ هغے په وجه ئے په ټيټه ټيټه دا ټول کارونه کول، نو دا آيت نازل شولو.

٢٦٦: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ وَ اَخْبَرَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبَّادِ بْنِ جَعْفَرٍ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَرَاَ اَلَا اِنَّهُمْ تَثْنُوْنِيْ صُدُوْرُهُمْ قُلْتُ يَا اَبَا الْعَبَّاسِ مَا تَثْنُوْنِيْ صُدُوْرُهُمْ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ يُجَامِعُ امْرَاَتَهٗ فَيَسْتَحْيِيْ فَنَزَلَتْ اَلَا اِنَّهُمْ تَثْنُوْنِيْ صُدُوْرُهُمْ.

٢٦٦: ابراهيم بن موسي. هشام. ابن جريج. محمد بن عباد بن جعفر نه روايت کړي، حضرت ابن عباسؓ: الا انّهم تثنونی صدورهم: اولوست، ما عرض او کهٔ، يا ابا العباس ددے مطلب څهٔ دے، هغهٔ اوفرمائيل، څنے خلقو به خپلو ښځو سره ذ کور والي (صحبت کولو په وخت (يا ذ وړو بولو او لويو بولو په وخت) بربنړ کيدو کښې شرم کولو. ذ هغوي خيال وو، چه مونږ ته پروردگار گوري، نو دا آيت دغه وخت نازل شولو.

٢٦٧: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ

٢٦٧: حميدي. سفيان. عمرو نه روايت کوي،

حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ قَرَأَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَلَا إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ لِيَسْتَخْفُوا مِنْهُ أَلَا حِينَ يَسْتَغْشُونَ ثِيَابَهُمْ وَ قَالَ غَيْرُهُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ يَسْتَغْشُونَ يُغَطُّونَ رُؤُسَهُمْ سِيءَ بِهِمْ سَاءَ ظَنُّهُ بِقَوْمِهِ وَ ضَاقَ بِهِمْ بِأَضْيَافِهِ بِقِطْعٍ مِنَ اللَّيْلِ بِسَوَادٍ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ أُنِيبُ أَرْجِعُ.

حضرت ابن عباسؓ دا آيت داسې اولوست: الا انهم يثنون صدورهم ليستخفوا منه الا حين يستغشون ثيابهم. دَ عمرو بن دينار نه علاوه د نورو خلقو بيان دے' ابن عباسؓ د "يستغشون" معني د سر پټولو فرمائي' "سيء بهم" دَ خپل قوم نه بدگمانه شو. او "ضاق بهم" يعني خپلو ميلمنو ليدو سره خفه شو. "بقطع من الليل" معني د شپے تيارة كښې' دَ مجاهد بيان دے "أُنيبُ" رجوع كوم.

## بَابٌ ۲۵۵ : قَوْلِهِ وَ كَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَآءِ.

باب ۲۵۵ : آيت: وَ كَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَآءِ: دَ الله تعالي قول' دَ الله تعالي تخت' حكومت په اوبو باندے وو.

۲۶۸ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَ جَلَّ أَنْفِقْ أُنْفِقْ عَلَيْكَ وَ قَالَ يَدُ اللَّهِ مَلْأَى لَا تَغِيضُهَا نَفَقَةٌ سَحَّآءُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَ قَالَ أَرَأَيْتُمْ مَا أَنْفَقَ مُنْذُ خَلَقَ السَّمَآءَ وَالْأَرْضَ فَإِنَّهُ لَمْ يَغِضْ مَا فِي يَدِهِ وَ كَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ وَ بِيَدِهِ الْمِيزَانُ يَخْفِضُ وَ يَرْفَعُ اعْتَرَاكَ افْتَعَلْتَ مِنْ عَرَوْتُهُ أَيْ أَصَبْتُهُ وَ مِنْهُ يَعْرُوهُ وَاعْتَرَانِي أَخَذَ بِنَاصِيَتِهَا أَيْ فِي مِلْكِهِ وَ سُلْطَانِهِ عَنِيدٌ وَ عَنُودٌ وَ عَانِدٌ وَاحِدٌ هُوَ تَأْكِيدُ التَّجَبُّرِ

۲۶۸ : ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' الله تعالي فرمائي' اے خما بنده ته ماله راكړه' زه به تاله دركړم' ځكه چه دَ الله تعالي خزانه ډكه ده. كه شپه او ورځ خرچ كوي' بياهم خالي كيږي نه' آيا تاسو دا نه وينے' دَ كله نه يے چه زمكه او آسمان جوړ كړے دي' څومره يے خرچ كړے دے' خو بيا هم دَ هغهٔ هيڅ نعمت كم شوے نه دے' او د الله تعالي عرش (يعني تخت) په اوبو دے' د هغهٔ په لاس كښې دَ رزق تله ده كوم خوا چه غواړي ښكته يے كړي' او چا د پاره چه هغه مناسب خيال كوي' اوچته يے كړي. "اعتراك" مطلب دے' په تا پريوتل اوشو. "عرَوْتهٔ" معني ما هغه بيامند. "يعروه" د مضارع صيغه ده. "بناصيتها" يعني دَ هغهٔ حكومت او قبضه كښې دے. "عنيد" "عنود" "عاند" دَ ټولو يو معني دي' يعني سخت تكبر او سركشي والا "استعمركم" تاسوئے آباد كړئے. عرب وائي: اعمرته

اسْتَعْمَرَكُمْ جَعَلَكُمْ عُمَّارًا أَعْمَرْتُهُ
الدَّارَ فَهِيَ عُمْرَى جَعَلْتُهَا لَهُ نَكِرَهُمْ
وَ أَنْكَرَهُمْ وَاسْتَنْكَرَهُمْ وَاحِدٌ حَمِيدٌ
مَجِيدٌ كَأَنَّهُ فَعِيلٌ مِنْ مَاجِدٍ مَحْمُودٌ
مِنْ حَمِدَ سِجِّيلٌ الشَّدِيدُ الْكَبِيرُ
سِجِّيلٌ وَ سِجِّينٌ وَاللَّامُ وَالنُّونُ
أُخْتَانِ وَ قَالَ تَمِيمُ بْنُ مُقْبِلٍ:

وَ رَجْلَةٍ يَضْرِبُونَ الْبَيْضَ ضَاحِيَةً
ضَرْبًا تَوَاصَى بِهِ الْأَبْطَالُ سِجِّينَا

وَ إِلَى مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا
إِلَى أَهْلِ مَدْيَنَ لِأَنَّ مَدْيَنَ
بَلَدٌ وَ مِثْلُهُ وَاسْئَلِ الْقَرْيَةَ
وَاسْئَلِ الْعِيرَ يَعْنِي أَهْلَ الْقَرْيَةِ
وَ الْعِيرِ وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا يَقُولُ
لَمْ تَلْتَفِتُوا إِلَيْهِ وَ يُقَالُ إِذَا
لَمْ يَقْضِ الرَّجُلُ حَاجَتَهُ
ظَهَرْتَ بِحَاجَتِي وَ جَعَلْتَنِي
ظِهْرِيًّا وَالظِّهْرِيُّ هٰهُنَا أَنْ تَأْخُذَ
مَعَكَ دَابَّةً أَوْ وِعَاءً تَسْتَظْهِرُ بِهِ
أَرَاذِلُنَا سُقَّاطُنَا إِجْرَامِي هُوَ
مَصْدَرٌ مِنْ أَجْرَمْتُ وَ بَعْضُهُمْ
يَقُولُ جَرَمْتُ الْفُلْكُ وَالْفُلْكُ وَاحِدٌ
أَوْ جَمْعٌ وَ هِيَ السَّفِينَةُ وَالسُّفُنُ
مُجْرَاهَا مَدْفَعُهَا وَهُوَ مَصْدَرُ
أَجْرَيْتُ وَ أَرْسَيْتُ حَبَسْتُ وَ
يُقْرَأُ مَرْسَاهَا مِنْ رَسَتْ هِيَ

الدار فهي عمرى: يعني دا كور ما هغه له تړول ژوند د پاره وركړلو. "نكرهم" "انكرهم" او "استنكرهم" د ټولو يو معني دي، يعني هر ملک واله پرديسي. "حميد مجيد" دا په وزن د فعيل دے. ماجد نه په معني د كرم كونكے "محمود" معني ستائلے شوے. "سجيل" او سجين يو معني دي. "سجين" كښې لام او نون دواړه راخي، تميم بن مقبل اووے:

و رجلة يضربون البيض ضاحية
ضربا تضربون به الأبطال سجينا

بعض پیدل دن دہاڑے خود پر ضربیں مارتے ہیں
پہلوان جن کی وصیت کرتے ہیں لیکن لگانا چاہئے

"و الى مدين" معني دي، مدين طرف ته، او دا شان دا ونيلے شوے دي چه "واسئل القرية" يعني بستي والو نه تپوس وكړے. او "واسئل العير" معني دي، قافلے والو نه تپوس اوكړے "وراءكم ظهريا" معني دي، يعني پس پشت نے اوغرخولو، هغه پله نے توجه اونه كړله، د چا نه چه د چا مقصد پوره نشي، نو عرب واله وائي "ظهرت بحاجتي" او "جعلني ظهريا" دلته د ظهري نه هغه څناور مراد دے چه كار د پاره ساتلے شي. "اراذلنا" خمونږ كسينه او رذيل "اجرامي" خما گناه. بعضے وائي، دا د "اجرمت" مصدر دے يا د جرمت چه ثلاثي مجرد دے. "الفلک" واحد او جمع دواړو كښې مستعمل دے، يعني كشتي او كشتيانے. "مجراها" د كشتي تلل. دا مصدر دے د اجريت. دغه شان "مرسها" مصدر دے، د ارست، يعني ما كشتي لنگرانداز كړله. بعضو "مرسها" بفتح ميم لوستے دے، چه "رست" نه جوړ شوے دے. دغه

مَجْرَاهَا مِنْ جَرَتْ هِيَ وَ مُجْرِيْهَا وَ مُرْسِيْهَا مِنْ فُعِلَ بِهَا الرَّاسِيَاتُ ثَابِتَاتٌ.

شان "مجراها" هم "جرت" نه دے بعضو "مجريها" او "مرسيها" لوستے دے، د هغے مطلب دے چه الله تعالي د هغے چلونکے او اُودرونکے دے. "الراسيات" معني دي لنګر انداز او "ثابتات" معني دي، ولاړ، ايسار.

باب ۲۵۶: قَوْلِهِ وَ يَقُوْلُ الْاَشْهَادُ هٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلٰى رَبِّهِمْ اَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ وَاحِدُ الْاَشْهَادِ شَاهِدٌ مِثْلُ صَاحِبٍ وَ اَصْحَابٍ.

باب ۲۵۶: آيت: وَ يقُوْلُ الْاَشْهَادُ: د الله تعالي قول: او ګواهان به وائي، دا هغه خلق دي، چه په الله تعالي ئے دروغ تړلے وو. خبردار شئ، په ظالمانو د الله تعالي لعنت دے. "اشهاد" د "شاهد" جمع ده، څنګه د صاحب جمع اصحاب ده.

۲۲۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ وَ هِشَامٌ قَالَا حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ قَالَ بَيْنَا ابْنُ عُمَرَ يَطُوْفُ اِذَا عَرَضَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَوْ قَالَ يَا ابْنَ عُمَرَ سَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يُدْنَى الْمُؤْمِنُ مِنْ رَبِّهِ وَ قَالَ هِشَامٌ يَدْنُوا الْمُؤْمِنَ حَتّٰى يَضَعَ عَلَيْهِ كَنَفَهُ فَيُقَرِّرُهُ بِذُنُوْبِهِ تَعْرِفُ ذَنْبَ كَذَا يَقُوْلُ رَبِّ اَعْرِفُ يَقُوْلُ اَعْرِفُ مَرَّتَيْنِ فَيَقُوْلُ سَتَرْتُهَا فِي الدُّنْيَا وَ اَغْفِرُهَا لَكَ الْيَوْمَ ثُمَّ تُطْوٰى صَحِيْفَةُ حَسَنَاتِهِ وَ اَمَّا الْاٰخَرُوْنَ اَوِ الْكُفَّارُ فَيُنَادٰى عَلٰى رُؤُسِ الْاَشْهَادِ هٰٓؤُلَاءِ الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلٰى [illegible] وَ قَالَ شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ

۲۲۹: مسدد. يزيد بن زريع. سعيد. هشام. قتاده. صفوان بن محرز نه روايت دے. يو ورځ ما حضرت ابن عمرؓ سره طواف کولو. يو سړے راغے او ابن عمرؓ ته ئے اووے، اے ابن عمرؓ، يا اے ابا عبدالرحمٰن، آيا تا د حضور صلي الله عليه وسلّم نه د قيامت باره کښې څۀ آوريدلے دي، حضرت عمرؓ جواب ورکړ، او ما آوريدلے دي، حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائيل، د قيامت په ورځ به مومن الله تعالي ته دومره نزدے راوستے شي چه الله تعالي به د هغه په اوږو لاس کيږدي، د ګناهونو اقرار به پرے او کړي. هغۀ به عرض او کړي، جي، او، زه د خپلو ګناهونو اقرار او اعتراف کوم، بيشکه ما نه ګناه شوے ده، نو دوه خله به داسے اقرار او کړي. دے نه پس به الله تعالي ارشاد اوفرمائي، ما دُنيا کښې ستا ګناهونه او قصورونه پټ کړے وو، او نن د بښنم او تاته ستا د نيکو بدله او جزا درکوم (الحمد لله والشکر لله) خو د کافرو د پاره به اوفرمائي، دا هغه خلق دي چه په الله ئے دروغ تړل، دا اعلان به تمام اهل

حَدَّثَنَا صَفْوَانُ.

محشر آوري.

باب ۲۵۷: قَوْلِهِ وَ كَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ اِذَا اَخَذَ الْقُرٰى وَ هِيَ ظَالِمَةٌ اِنَّ اَخْذَهٗ اَلِيْمٌ شَدِيْدٌ الرِّفْدُ الْمَرْفُوْدُ الْعَوْنُ الْمُعِيْنُ رَفَدْتُهٗ اَعَنْتُهٗ تَرْكَنُوْا تَمِيْلُوْا فَلَوْلَا كَانَ فَهَلَّا كَانَ اُتْرِفُوْا اُهْلِكُوْا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ زَفِيْرٌ وَ شَهِيْقٌ صَوْتٌ شَدِيْدٌ وَ صَوْتٌ ضَعِيْفٌ.

باب ۲۵۷: آيت: وَ كَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ اِذَا اَخَذَ الْقُرٰى: دَ اللّٰه تعالىٰ قول' دا شان كله چه ستا' رب دَ ظالمانو بستي (كلي) اونيسي' نو دَ هغهٔ نيول دردناک او سخت وي. "الرفد المرفود" يعني مدد چه ورکړے شي. دَ عربو مقوله ده "رفدته" ما دَ هغهٔ مدد اوکړ. "تركنوا" مطلب دے' مائل شه' ښکته شه. "فَلَوْلَا كَانَ" ولے نهٔ شو. "اترفوا" هغوي هلاک شو. حضرت ابن عباسؓ فرمائي "زفير" معني دي تيز آواز. او "شهيق" معني دي سپک آواز (ہلکی آواز).

۴۷۰: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ لَيُمْلِيْ لِلظَّالِمِ حَتّٰى اِذَا اَخَذَهٗ لَمْ يُفْلِتْهُ قَالَ ثُمَّ قَرَاَ وَ كَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ اِذَا اَخَذَ الْقُرٰى وَ هِيَ ظَالِمَةٌ اِنَّ اَخْذَهٗ اَلِيْمٌ شَدِيْدٌ.

۴۷۰: صدقه بن فضل. ابو معاويه. بريد بن ابي برده. ابي برده. حضرت ابو موسٰي اشعري روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو' اللّٰه تعالىٰ ظالمانو ته مهلت ورکوي' خو کله چه هغوي اونيسي' نو بيائے نهٔ پريږدي. دے نه پس حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ دے آيت تلاوت اوفرمائيلو: وَ كَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ الخ: يعني دا شان ستا رب دَ ظالمانو بستئ (کلي) نيسي' او دَ هغهٔ نيول ډير سخت دي.

باب ۲۵۸: قَوْلِهِ وَ اَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَ زُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ اِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ وَ زُلَفًا سَاعَاتٍ بَعْدَ سَاعَاتٍ وَ مِنْهُ سُمِّيَتِ الْمُزْدَلِفَةُ الزُّلَفُ مَنْزِلَةٌ بَعْدَ مَنْزِلَةٍ وَ اَمَّا زُلْفٰى فَمَصْدَرٌ

باب ۲۵۸: آيت: وَ اَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول' اے رسولهٔ' دَ ورځے اول او آخر حصو کښې او دَ شپے وخت کښې زيات مونځ کوه' بيشکه نيکئ ګناهونه لرے کوي' دا دَ ياد ساتونکو دَ پاره يو يادګار دے. "زلفا" معني ساعت په ساعت او دَ دے نه ده "مزدلفه" چه خلق هلته دَ شپے په ساعتونو کښې راځي. "زلف" معني دي منزل' او "زلفٰي" مصدر دے قربت.

مِنَ اللَّيْلِ زُلَفًا سَاعَاتٍ بَعْدَ سَاعَاتٍ [illegible]

١٧٦ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ هُوَ ابْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَجُلًا أَصَابَ مِنَ امْرَأَةٍ قُبْلَةً فَأَتَى رَسُوْلَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ فَأُنْزِلَتْ عَلَيْهِ أَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَ زُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذَّاكِرِيْنَ قَالَ الرَّجُلُ أَلِيَ هٰذِهِ قَالَ لِمَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ أُمَّتِيْ.

[illegible] زلفاً" معنی [illegible] جمع [illegible] دے.

١٧٦ : مسدد، يزيد بن زريع، سليمان تيمي، ابو عثمان، حضرت ابن مسعود نه روايت کوي، د هغه بيان دے، يو حلقے يو عبـر سـرى د يوے ښځے نه بوسه واخستـه. بيا راغـے دا خبره ئے د حضور صلى الله عليه وسلم مخکښې بيان کره، او د معافي د پاره ئے خواست او کړ، نو هغه وخت دا ايت نازل شولو: اقم الصلوٰة طرفي النهار الخ هغے سړي عرض او کړ: يا رسول الله! دا حکـم صـرف خـما د پاره دے، يا د ټولو د پاره. حضور صلي الله عليه وسلم ورته ارشاد او فرمايلو: خما امت کښې چه کـوم نيک خلق دي، د هغوي نيکي د هغوي د ګناهونـو کـفـاره ګرځـي، ځـکه چه خما په امت کښې دے، هغهٔ دَ پاره دا حکم دے.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سُوْرَةُ يُوْسُفَ

وَ قَالَ فُضَيْلٌ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ مُجَاهِدٍ مُتَّكَأً اَلْاُتْرُجُّ قَالَ فُضَيْلٌ اَلْاُتْرُجُّ بِالْحَبْشَةِ مُتْكًا وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ رَجُلٍ عَنْ مُجَاهِدٍ مُتْكًا كُلُّ شَيْءٍ قُطِعَ بِالسِّكِّيْنِ وَ قَالَ قَتَادَةُ لَذُوْ عِلْمٍ عَامِلٌ بِمَا عَلِمَ وَ قَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ صُوَاعٌ مَكُّوْكُ الْفَارِسِيِّ الَّذِيْ يَلْتَقِيْ طَرَفَاهُ كَانَتْ تَشْرَبُ بِهِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# دَ سورهٔ يوسف تفسير

فضيل، حصين نه او هغه د مجاهد د حوالے نه وائي، د "متکأ" معني د ليمو (نيمبو) دي. او خپله فضيل هم وائي، چه "متکأ" حبشي ژبـه کښې نيمبو ته وائي. ابن عيينه په واسطه د يو سړي مجاهد نه بيان کوي، چه "متکأ" هر چاقو سره تراشيدونکي خيز ته وائي. قتاده وائي "لذو علم" نه مراد عالم با عمله دے. ابن جبير اوږي، "صواع" ته فارسي کښې مکوک يعني پيالے وائي، او شراب دے کښې څکلے شي، او دَ دے غاړے جنګيدلے وي. د عجم حلق دے کښې اوبه څکي. ابن

الْأَعَاجِمُ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ
تُفَنِّدُوْنَ تُجَهِّلُوْنَ وَ قَالَ غَيْرُهٗ
غَيَابَةٌ كُلُّ شَيْءٍ غَيَّبَ عَنْكَ شَيْئًا
فَهُوَ غَيَابَةٌ وَالْجُبُّ الرَّكِيَّةُ الَّتِيْ
لَمْ تُطْوَ بِمُؤْمِنٍ لَنَا بِمُصَدِّقٍ
أَشُدَّهٗ قَبْلَ أَنْ يَأْخُذَ فِي النُّقْصَانِ
يُقَالُ بَلَغَ أَشُدَّهٗ وَ بَلَغُوْا أَشُدَّهُمْ
وَقَالَ بَعْضُهُمْ وَاحِدُهَا شَدٌّ
وَالْمُتَّكَأُ مَا اتَّكَأْتَ عَلَيْهِ لِشَرَابٍ
أَوْ لِحَدِيْثٍ أَوْ لِطَعَامٍ وَ أَبْطَلَ
الَّذِيْ قَالَ الْأُتْرُجُّ وَ لَيْسَ فِيْ
كَلَامِ الْعَرَبِ الْأُتْرُجُّ فَلَمَّا
احْتُجَّ عَلَيْهِمْ بِأَنَّهُ الْمُتَّكَأُ مِنْ
نَمَارِقَ فَرُّوْا إِلَى شَرٍّ مِنْهُ فَقَالُوْا
إِنَّمَا هُوَ الْمُتْكُ سَاكِنَةَ التَّاءِ وَ
إِنَّمَا الْمُتْكُ طَرَفُ الْبَظْرِ وَمِنْ ذٰلِكَ
قِيْلَ لَهَا مُتْكَاءُ وَابْنُ الْمُتْكَاءِ
فَإِنْ كَانَ ثَمَّ أُتْرُجٌّ فَإِنَّهُ بَعْدَ
الْمُتَّكَأِ شَغَفَهَا يُقَالُ بَلَغَ إِلَى
شِغَافِهَا وَهُوَ غِلَافُ قَلْبِهَا وَ أَمَّا
شَعَفَهَا فَمِنَ الْمَشْعُوْفِ أَصْبُ
أَمِيْلُ أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ مَا لَا تَأْوِيْلَ
لَهٗ وَالضِّغْثُ مِلْءُ الْيَدِ مِنْ
حَشِيْشٍ وَمَا أَشْبَهَهٗ وَ مِنْهُ وَ
خُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا لَا مِنْ قَوْلِهٖ أَضْغَاثُ
أَحْلَامٍ وَاحِدُهَا ضِغْثٌ نَمِيْرُ مِنَ الْمِيْرَةِ

عباسؓ فرمائي "تفندون" مطلب دے، ماته جاهل مه وائي. بعضے وائي "غيابة" معنى هغه خيز چه د بل نه ئے پټ ساتي. او "جب" هغے كوهى ته وائي چه كچه وي او بندش ئے نه وے شوے. "بمؤمن لنا" معنى دي ته خمونږ خبره ريښتينے كنړونكے نه ئے. "اشده" هغه عمر چه د انحطاط (زوال) د زمانے نه مخكښ وي. د عربو مقوله ده "بلغ اشده" يا "بلغوا اشدهم" يعني هغه خپلے خوانئے ته اورسيد. وائي چه "اشد" د "شد" جمع ده. بعضے وائي "متكا" هغے تكيه يا مسند ته وائي چه د خبرو كولو يا د خوراک څکاک په وخت په هغے سهارا آخستلے شي او د "اترج" معني غلطے دے. څوک چه د دے معني ترنج ښائي، د دے هيڅ دليل نشته. هغه وائي د تكيه معني ئے دي "متک" يعني "ت" ساكن ده. او د ترنج په معني كښې "ت" مشدد ده. دا خبره ډيره سپكه (بلکل) ده، ځكه چه "ت" ساكن سره د دے معني د فرج دي. په دے وجه د كنځلو په وخت ونيلے شي "ابن المتكا" غرض د مسند معني صحيح دي، ځكه چه زليخے چه كوم ترنج د ښځو لاس كښې وركړے وو، هغه به ئے د تكيه لږولو نه ورستو د ښځو لاس كښې وركړے وو، "شغفها" د هغے زړه يوړلو. "مشغوف" معني د چا زړه چه محبت سوزولے وي. "اصب" مائل به شم، "اضغاث" معني دي: منتشر، پراكنده خيالات. "ضغث" د ډكو موټے چه لاس كښې راشي، لكه چه مخكښې آيت كښې دي "خذ بيدک ضغثا" خپل لاس كښې جارو اونيسه. "نمير" ميرة نه وتلے دے. مطلب دے مونږ به اوخورو. "نزداد كيل بعير" د يو اوښ وزن يا پيمانه مراد

وَ نَزْدَادُ کَیْلَ بَعِیْرٍ مَا یَحْمِلُ بَعِیْرٌ اٰوٰی اِلَیْهِ ضَمَّ اِلَیْهِ السِّقَایَةَ مِکْیَالٌ تَفْتَأُ لَا تَزَالُ اسْتَیْأَسُوْا یَئِسُوْا لَا تَیْأَسُوْا مِنْ رَوْحِ اللّٰهِ مَعْنَاهُ الرَّجَاءُ خَلَصُوْا نَجِیًّا اعْتَزَلُوْا نَجِیًّا وَالْجَمِیْعُ اَنْجِیَةٌ یَتَنَاجَوْنَ الْوَاحِدُ نَجِیٌّ وَ الْاِثْنَانِ وَالْجَمِیْعُ نَجِیٌّ وَ اَنْجِیَةٌ حَرَضًا مُحْرَضًا یُذِیْبُكَ الْهَمُّ تَحَسَّسُوْا تَخَبَّرُوْا مُزْجَاةٍ قَلِیْلَةٍ غَاشِیَةٌ مِنْ عَذَابِ عَامَّةٌ مُجَلِّلَةٌ.

ده، ''اٰوٰی اِلَیْهِ'' خان سره نې خانې ورکړلو یعني خان سره نې اوساتلو. ''السقایه'' مطلب دې، کټورې، یا لوښې یا ذ غلې ناپ کولو پیمانه. ''تفتؤ'' همیشه به وینې ''تجسوا'' تلاش کړې، جستجو نو کړې. خبر راوړې. ''ولا تیأسوا من روح اللّٰه'' ذ اللّٰه د رحمت نه مه نااُمیده کیږئې. ''خلصوا نجیا'' جدا شو، مشوره ئې اوکړه. ذ نجي معني مشوره کونکې. دا تثنیه او جمع دواړو ذ پاره مستعمل کیږي. ''حرضا'' ویلې کړې شو. ''مزجاة'' لږ ''غاشیة من عذاب اللّٰه'' معني دي، ذ اللّٰه تعالٰي عذاب ټول ګیره کښې آخستې دي.

**باب ۲۵۹ : قَوْلِهٖ وَ یُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَیْكَ وَ عَلٰی اٰلِ یَعْقُوْبَ کَمَا اَتَمَّهَا عَلٰی اَبَوَیْكَ مِنْ قَبْلُ اِبْرٰهِیْمَ وَ اِسْحٰقَ.**

**باب ۲۵۹ :** آیت: وَ یُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَیْكَ وَ عَلٰی اٰلِ یَعْقُوْبَ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، چه اللّٰه به تا خپل نعمت تمامول غواړي، خنګه چه ستا پلار یعقوبؑ او نیکۀ ابراهیمؑ او اسحٰقؑ باندې پوره کړې دې.

۶۷۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِیْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ الْکَرِیْمُ بْنُ الْکَرِیْمِ بْنِ الْکَرِیْمِ بْنِ الْکَرِیْمِ یُوْسُفُ بْنُ یَعْقُوْبَ بْنِ اِسْحٰقَ بْنِ اِبْرٰهِیْمَ.

۶۷۲ : عبداللّٰه بن محمد. عبدالصمد. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن دینار. خپل پلار نه، او هغهٔ ذ حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دې، حضورؐ ارشاد اوفرمائیلو عزت واله، ذ عزت واله ځوئې ذ عزت واله نوسې، ذ عزت واله کړوسې، حضرت یوسفؑ دې. ذ هغهٔ پلار یعقوبؑ نیکهٔ اسحاقؑ قرنیکهٔ ابراهیمؑ چه ټول پیغمبران وو.

**باب ۲۶۰ : قَوْلِهٖ لَقَدْ کَانَ فِیْ یُوْسُفَ وَ اِخْوَتِهٖۤ اٰیٰتٌ لِّلسَّآئِلِیْنَ.**

**باب ۲۶۰ :** آیت: لَقَدْ کَانَ فِیْ یُوْسُفَ وَ اِخْوَتِهٖ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، بیشکه حضرت یوسفؑ او ذ هغهٔ ذ وروڼړو قصه کښې دریافت کونکو ذ پاره نښې دي.

۶۷۳ : حَدَّثَنِیْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَیْدِ اللّٰهِ عَنْ

۶۷۳ : محمد. عبدة. عبیداللّٰه. سعید بن ابي سعید. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، خلقو ذ حضور

سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ النَّاسِ اَكْرَمُ قَالَ اَكْرَمُهُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقَاهُمْ قَالُوْا لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَاَكْرَمُ النَّاسِ يُوْسُفُ نَبِيُّ اللّٰهِ ابْنِ خَلِيْلِ اللّٰهِ قَالُوْا لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَعَنْ مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُوْنِيْ قَالُوْا نَعَمْ قَالَ فَخِيَارُكُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُكُمْ فِي الْاِسْلَامِ اِذَا فَقُهُوْا تَابَعَهُ اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ.

صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس او كړ چه د اللّٰه په نزد څوک زيات عزت واله دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، څوک چه زيات متّقي (پرهيزګار) دے. خلقو عرض او كړ، مونږ دا تپوس نه كوو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، نو بيا د خاندان د اعتبار نه د ټولونه زيات صاحب عزت حضرت يوسفؑ دے، د پيغمبر خوئے، د پيغمبر نمسے، د حضرت خليل اللّٰه كړوسے. هغوي عرض او كړ، خمونږ دا مطلب نه دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، څوک چه جاهليت كښې شريف وو، هغوي اسلام كښې شريف دي، هر كله چه صاحب علم وي، او نورو ته فائده رسوي. ابو اسامه هم د ابو عبيداللّٰه نه روايت كوي.

## باب ١٢٦١ : قَوْلِهٖ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا سَوَّلَتْ زَيَّنَتْ.

باب ١٢٦١ : آيت: بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا: د اللّٰه تعالي قول، دا تاسو خان د پاره يوه حيله جوړه كړے ده. "سوّلت" معني دي، ښه جوړول او ښكاره كول.

٦٧٣ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ ح قَالَ وَ حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ بْنُ يَزِيْدُ الْاَيْلِيُّ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ وَ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ وَ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ وَ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ حَدِيْثِ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَالَ لَهَا اَهْلُ الْاِفْكِ مَا قَالُوْا فَبَرَّاَهَا اللّٰهُ كُلُّ حَدَّثَنِيْ

٦٧٣ : عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. ح. حجاج. عبداللّٰه بن عمر نميري. يونس بن يزيد الايلي. زهري. عزوه بن زبير او سعيد بن مسيب او علقمه بن وقاص او عبيداللّٰه بن عبداللّٰه نه روايت كوي، هغه اوويے، ما د بي بي عائشہؓ نه هغه حديث چه د افک متعلق دے، پوره نه دے آوريدلے، بلكه د هر يو نه مې جدا جدا د هغے څه حصے آوريدلے دي، د هغے يوه حصه دا هم ده، هر كله تهمت ترونكو تهمت اوتړلو، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم بي بي عائشہؓ ته اوفرمائيل، اے عائشه، كه ته بے قصوره ئے، نو اللّٰه تعالي به ستا د برئ والي،

بمنزلة مِنَ الْحَدِيْثِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ كُنْتِ بَرِيْئَةً فَسَيُبَرِّئُكِ اللّٰهُ وَ اِنْ كُنْتِ اَلْمَمْتِ بِذَنْبٍ فَاسْتَغْفِرِي اللّٰهَ وَ تُوْبِي اِلَيْهِ قُلْتُ اِنِّي وَاللّٰهِ لَا اَجِدُ مَثَلًا اِلَّا اَبَا يُوْسُفَ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْا بِالْاِفْكِ الْعَشْرَ الْاٰيَاتِ.

اعلان اوکړي اوکه تاته دا ګناه شوې وي نو بيا د الله نه توبه او معافي غوښتل پکار دي. بي بي عائشې جواب ورکړ: والله ما ته دې قصې د پاره ځه مثال په نظر نه راځي سوا د حضرت يعقوبؑ چه هغه دا وئيلي وو او زه هم دا وايم چه فصبر جميل والله المستعان على ما تصفون الخ. اخر الله تعالى حما د بې قصورۍ په سلسله کښې لس آيتونه نازل کړل چه د هغې ابتدائي آياتونه دادي: ان الذين جاء وا بالافک.

٦٧٥: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَسْرُوْقُ بْنُ الْاَجْدَعِ قَالَ حَدَّثَتْنِيْ اُمُّ رُوْمَانَ وَ هِيَ اُمُّ عَائِشَةَ قَالَتْ بَيْنَا اَنَا وَ عَائِشَةُ اَخَذَتْهَا الْحُمّٰى فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّ فِيْ حَدِيْثٍ تُحُدِّثَ قَالَتْ نَعَمْ وَ قَعَدَتْ عَائِشَةُ قَالَتْ مَثَلِيْ وَ مَثَلُكُمْ كَيَعْقُوْبَ وَ بَنِيْهِ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ.

٦٧٥: ابو عوانه. حصين. ابى وائل. مسروق بن الاجدع. بي بي ام رومان مور د بي بي عائشې نه روايت کوي: د هغې بيان دې بي بي عائشه ځما سره په کور کښې وه، د هغې تبه وه. حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: شايد د دې تهمت د غمه ورته تبه راغلې ده. بي بي عائشې اووې او پاسيده کيناسته اووې وئيل ځما او ستاسو مثال بيخي د حضرت يعقوبؑ او د هغه خوى حضرت يوسف عليه السلام په شان دې. (چه د هغه خامنو بهانه جوړه کړه او حضرت يعقوبؑ واوريدله) نو ئې فرمائيل: فصبر جميل الخ.

بَابٌ ٢٦٢: قَوْلِهٖ وَرَاوَدَتْهُ الَّتِيْ هُوَ فِيْ بَيْتِهَا عَنْ نَّفْسِهٖ وَ غَلَّقَتِ الْاَبْوَابَ وَ قَالَتْ هَيْتَ لَكَ وَ قَالَ عِكْرِمَةُ هَيْتَ لَكَ بِالْحَوْرَانِيَّةِ هَلُمَّ وَ قَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ تَعَالَهْ.

باب ٢٦٢: آيت: وراودته التي هو في بيتها: د الله تعالى قول: هغې ښځې چه په کور کښې يوسفؑ سره فريب اوکړ، چه هغه د هغې کور کښې وو، هغې دروازې بندې کړې او يوسفؑ ته ئې راوبلل "هيت" معني راځه. دا عکرمه وئيلي دي، سعيد هم دا وائي "هيت" د حوراني ژبې لفظ دې.

٦٧٦: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا

٦٧٦: احمد بن سعيد. بشر بن عمر. شعبه. سليمان. ابو وائل. حضرت ابن مسعود نه روايت کوي:

شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اَبِىْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ هَيْتَ لَكَ قَالَ وَ اِنَّمَا نَقْرَاُهَا كَمَا عُلِّمْنَاهَا مَثْوَاهُ مَقَامُهُ وَ اَلْفَيَا وَجَدَا اَلْفَوْا اٰبَاءَهُمْ اَلْفَيْنَا وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ بَلْ عَجِبْتَ وَ يَسْخَرُوْنَ.

هغه به "هيت" د "ها" فتح سره لوستلو. ابن مسعود فرماني چه موږ به دا لفظ څنګه ښودلے شوے دے هغسے ئے وايو. مثوي "مقام" "الفينا" لکه چه دي او "الفوا اباؤهم" د دے نه دے. دغه شان "بل عجبت او يسخرون" کښې ناء پيش سره بيان شوے دے او لوستلے ئے.

٧٧٦ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ قُرَيْشًا لَمَّا اَبْطَؤُا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْاِسْلَامِ قَالَ اَللّٰهُمَّ اكْفِنِيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوْسُفَ فَاَصَابَتْهُمْ سَنَةٌ حَصَّتْ كُلَّ شَيْءٍ حَتّٰى اَكَلُوا الْعِظَامَ حَتّٰى جَعَلَ الرَّجُلُ يَنْظُرُ اِلَى السَّمَآءِ فَيَرٰى بَيْنَهُ وَ بَيْنَهَا مِثْلَ الدُّخَانِ قَالَ اللّٰهُ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَاْتِى السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ قَالَ اللّٰهُ اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيْلًا اِنَّكُمْ عَائِدُوْنَ اَفَيُكْشَفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ قَدْ مَضَى الدُّخَانُ وَ مَضَتِ الْبَطْشَةُ.

٧٧٦ : حميدي. سفيان. اعمش. مسلم. مسروق. حضرت ابن مسعود نه روايت کوي کوم وخت چه قريشو د حضور صلي الله عليه وسلم خبره اونه منله نو حضور الله ته عرض اوکه اے الله! څنګه چه تا د حضرت يوسف عليه السلام په زمانه کښې اووه کاله قحط راوستے وو، دغسے قحط په دوي هم راولېږے او ما ترے بچ کړے. نو هغسے قحط پرے راغے چه هر څيز تباه شولو. خلقو مردار څيزونو پورے اوخوړل. لوږے خلق دومره کمزوري کړل چه آسمان ته به ئے کتل نو بس لوګے لوګے به ورته په نظر راتلو. الله تعالي فرماني: فارتقب يوم تاتي السماء بدخان مبين. او فرمائيلے دي: انا کاشفوا العذاب الخ نو عذاب نه دا قحط مراد دے، ځکه چه د آخرت عذاب د کافرو نه لرے کيدونکے نه دے. او د دخان او بطشه ذکر مخکښې تير شوے دے.

بَابُ ٢٦٣ : قَوْلُهٗ فَلَمَّا جَآءَهُ الرَّسُوْلُ قَالَ ارْجِعْ اِلٰى رَبِّكَ فَاسْاَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِىْ قَطَّعْنَ اَيْدِيَهُنَّ اِنَّ رَبِّىْ بِكَيْدِهِنَّ عَلِيْمٌ قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ

باب ٢٦٣ : آيت: فلما جاءه الرسول قال ارجع الى ربك. د الله تعالي قول: کوم وخت چه حضرت يوسف ته د بادشاه سړے راغے او ونيلے چه ته د قيد نه خلاصيږے. يوسف ورته اووے: اول د بادشاه نه د هغې ښځو حالات معلوم کړه چه هغوي خپل لاسونه

اِذْ رَاوَدْتُنَّ يُوْسُفَ عَنْ نَفْسِهٖ قُلْنَ حَاشَا لِلّٰهِ وَ حَاشَ وَ حَاشٰى تَنْزِيْهٌ وَ اِسْتِثْنَاءٌ حَصْحَصَ وَضَحَ.

پريکړي (غسن) کړي وو. خما پروردګار ته د هغوي فريب ښه معلوم دے. "حاشا لله" هغه (يعني يوسفؑ) بيخي بے قصوره دے. "حاش" تنزيه او استثناء د پاره هم راځي. "حصحص" واضحه شوه.

٦٧٨ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ تَلِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْقَاسِمِ عَنْ بَكْرِ بْنِ مُضَرٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ عَنْ يُوْنُسَ بْنِ يَزِيْدَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَ اَبِىْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْحَمُ اللّٰهُ لُوْطًا لَقَدْ كَانَ يَأْوِىْ اِلٰى رُكْنٍ شَدِيْدٍ وَّلَوْ لَبِثْتُ فِى السِّجْنِ مَا لَبِثَ يُوْسُفُ لَاَجَبْتُ الدَّاعِىَ وَ نَحْنُ اَحَقُّ مِنْ اِبْرٰهِيْمَ اِذْ قَالَ لَهٗ اَوَلَمْ تُؤْمِنْ قَالَ بَلٰى وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِىْ.

٦٧٨ : سعيد بن تليد. عبدالرحمن بن قاسم. بکر بن مضر. عمرو بن حارث. يونس بن يزيد. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. ابي سلمه بن عبدالرحمن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي: رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله تعالیٰ دے په حضرت لوطؑ رحم او کړي هغه د قوم د دښمني نه مجبور شو، نو د محفوظ کيدو، دعائے غوښتلے وه، او خومره موده چه حضرت يوسفؑ قيد کښ وو، که زهٔ وے، نو د خلاصيدو (رباني) حکم به مِ منلے وے، او استازي سره به سمدستي تلے وے، او مونږ له د حضرت ابراهيمؑ نه زيات شک کول مناسب دي هر کله چه الله هغه ته اوفرمائيل آيا ستا په دے يقين نشته چه مونږ مړي ژوندي کوو، هغه اووے يقين مِ ضرور شته، خو دا د زړه د اطمينان د پاره کوم.

بَابُ ٢٦٤ : قَوْلِهٖ حَتّٰى اِذَا اسْتَيْئَسَ الرُّسُلُ.

باب ٢٦٤ : آيت. حَتّٰى اِذَا سْتَيْاَسَ الرُّسُلُ. د الله تعالیٰ قول: تردے چه کوم وخت رسولان نااميده شو.

٦٧٩ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَهٗ وَهُوَ يَسْاَلُهَا عَنْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى حَتّٰى اِذَا سْتَيْاَسَ الرُّسُلُ قَالَ قُلْتُ اَكُذِبُوْا اَمْ كُذِّبُوْا قَالَتْ عَائِشَةُ

٦٧٩ : عبدالعزيز بن عبدالله. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. عمرو بن زبير نه روايت کوي، هغه اووے، ما د بي بي عائشےؓ نه تپوس اوکهٔ لفظ "کذبوا" تشديد سره دے، يا بلا تشديد وے فرمائيل، مشدد دے. ما عرض اوکهٔ، هر کله چه انبيائے کرامو يقين کړے وو، چه اوس به قوم هغوي دروغجن اوګڼي، نو بيا د "ظنوا" څه

كُذِبُوْا قُلْتُ فَقَدِ اسْتَيْقَنُوْا اَنَّ قَوْمَهُمْ كَذَّبُوْهُمْ فَمَاهُوَ بِالظَّنِّ قَالَتْ اَجَلْ لَعَمْرِيْ لَقَدِ اسْتَيْقَنُوْا بِذٰلِكَ فَقُلْتُ لَهَا وَ ظَنُّوْا اَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوْا قَالَتْ مَعَاذَ اللّٰهِ لَمْ تَكُنِ الرُّسُلُ تَظُنُّ ذٰلِكَ بِرَبِّهَا قُلْتُ فَمَا هٰذِهِ الْاٰيَةُ قَالَتْ هُمْ اَتْبَاعُ الرُّسُلِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِرَبِّهِمْ وَ صَدَّقُوْهُمْ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْبَلَآءُ وَاسْتَاْخَرَ عَنْهُمُ النَّصْرُ حَتّٰى اِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ مِمَّنْ كَذَّبَهُمْ مِنْ قَوْمِهِمْ وَ ظَنَّتِ الرُّسُلُ اَنَّ اَتْبَاعَهُمْ قَدْ كَذَّبُوْهُمْ جَآءَ هُمْ نَصْرُ اللّٰهِ عِنْدَ ذٰلِكَ.

مطلب دے. وے فرمائیل: او قسم دے. چه هغوي يقين كړے وو. څنګه چه ظن د يقين معني ور كوي. ما عرض او كړ: "كذبوا" سره د تشديد معني څه جوړيږي. وے فرمائيل، معاذ الله، رسولانو هيڅ كله الله طرف ته د دروغو ګمان نه كړلو. ما اووے: نو بيا دے صورت كښې به معني څه وي هغے اوفرمائيل: كومو خلقو چه د الله رسولان اومنل، او د هغوي د خبرے تصديق ئے او كړ، بيا هغوي ته كافرو تكليف اورسولو، او يوے مودے پورے په هغوي مصيبت راتلو، او د الله مدد راتلو كښې تاخير اوشو، او رسولان د دروغ ګڼړونكو د ايمان راوړلو نه نااُميده شو، او هغوي سره دا خيال پيدا شو، چه دا ايمان راوړونكي به هم اوس مونږ دروغجن خيال كړي، نو دغه وخت الله تعالى خپل مدد نازل كړلو.

۰ ۲۸ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ فَقُلْتُ لَعَلَّهَا كُذِبُوْا مُخَفَّفَةٌ قَالَتْ مَعَاذَ اللّٰهِ.

۰ ۲۸ : ابواليمان. شعيب. زهري. عروه نه روايت كوي، ما بي بي عائشےؓ ته اووے، چه شايد "كذبوا" مخفف دے. وے فرمائيل، معاذ الله، داسے نه ده، بلكه "كذبوا" يعني ذال مشدد سره دے.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

# سُوْرَةُ الرَّعْدِ

# دَ سورهٔ رعد تفسير

وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ مَثَلُ الْمُشْرِكِ الَّذِيْ عَبَدَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا غَيْرَهُ كَمَثَلِ الْعَطْشَانِ الَّذِيْ يَنْظُرُ اِلٰى خَيَالِهٖ فِي الْمَآءِ مِنْ بَعِيْدٍ وَهُوَ يُرِيْدُ اَنْ يَّتَنَاوَلَهُ وَلَا يَقْدِرُ وَ قَالَ غَيْرُهُ سَخَّرَ ذَلَّلَ مُتَجَاوِرَاتٌ مُتَدَانِيَاتٌ الْمَثُلَاتُ

ابن عباسؓ فرمائي "كباسط كفيه الى الماء" څنګه چه اوبو طرف ته چا لاس وړاندے كړے وي. دا د مشرك مثال دے، چه د الله نه سوا، د بل چا پرستش او عبادت كوي، څنګه چه اوبه، تږي ته نهٔ حاصليږي، دغه شان غير الله د هغهٔ حاجت روائي نشي كولے. د بعضو بيان دے، چه سخر معني مسخر كه، تابعدار كه. "ذلل" محكوم

وَاحِدُهَا مَثُلَةٌ وَهِيَ الْأَشْبَاهُ وَالْأَمْثَالُ وَقَالَ إِلَّا مِثْلَ أَيَّامِ الَّذِينَ خَلَوْا بِمِقْدَارٍ بِقَدَرٍ مُعَقِّبَاتٌ مَلَائِكَةٌ حَفَظَةٌ تُعَقِّبُ الْأُولَى مِنْهَا الْأُخْرَى وَمِنْهُ قِيلَ الْعَقِيبُ يُقَالُ عَقَّبْتُ فِي أَثَرِهِ الْمِحَالُ الْعُقُوبَةُ كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ إِلَى الْمَاءِ لِيَقْبِضَ عَلَى الْمَاءِ رَابِيًا مِنْ رَبَا يَرْبُو أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ الْمَتَاعُ مَا تَمَتَّعْتَ بِهِ جُفَاءً أَجْفَأَتِ الْقِدْرُ إِذَا غَلَتْ فَعَلَاهَا الزَّبَدُ ثُمَّ تَسْكُنُ فَيَذْهَبُ الزَّبَدُ بِلَا مَنْفَعَةٍ فَكَذَلِكَ يُمَيِّزُ الْحَقَّ مِنَ الْبَاطِلِ الْمِهَادُ الْفِرَاشُ يَدْرَءُونَ يَدْفَعُونَ دَرَأْتُهُ دَفَعْتُهُ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ أَيْ يَقُولُونَ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ وَإِلَيْهِ مَتَابِ تَوْبَتِي أَفَلَمْ يَيْأَسْ لَمْ يَتَبَيَّنْ قَارِعَةٌ دَاهِيَةٌ فَأَمْلَيْتُ أَطَلْتُ مِنَ الْمَلِيِّ وَالْمِلَاوَةِ وَمِنْهُ مَلِيًّا وَيُقَالُ لِلْوَاسِعِ الطَّوِيلِ مِنَ الْأَرْضِ مَلًى مِنَ الْأَرْضِ أَشَقُّ أَشَدُّ مِنَ الْمَشَقَّةِ مُعَقِّبَ مُغَيِّرَ وَقَالَ مُجَاهِدٌ مُتَجَاوِرَاتٌ طَيِّبُهَا وَخَبِيثُهَا السِّبَاخُ صِنْوَانٌ النَّخْلَتَانِ أَوْ أَكْثَرُ فِي أَصْلٍ وَاحِدٍ وَغَيْرُ صِنْوَانٍ وَحْدَهَا بِمَاءٍ وَاحِدٍ كَصَالِحِ بَنِي آدَمَ وَخَبِيثِهِمْ أَبُوهُمْ وَاحِدٌ السَّحَابُ الثِّقَالُ الَّذِي فِيهِ الْمَاءُ كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ يَدْعُو الْمَاءَ بِلِسَانِهِ وَ

جوړ کړلو. "متجاورات" معني یو بل ته قریب شوې. "مثلات" جمع ذ مثله په معني د نظیر، مقدار، آندازه. "عقبات" نګهبان یعني کومې فریښتې چه سحر ماښام څي راځي. "المحال" عذاب. "رابیا" جوړ دې. ربا، یربوا نه زیاتیدونکې، لکه "زبد" ژګ (جهاګ) "متاع" د فائدې څیز. "جفاء" کټوئ جوش اووهلو. ژګ راغې. او د کټوئ په پخیدو ژګ ختم شو. دغه شان حق ذ باطل نه جدا شي. "المهاد" بچونړې، بسترې، "یدرء ون" لرې کوي. "درانته" جوړ دې، ذ هغې مطلب دې، هغه نې لرې کړل یعني دفع نې کړل. "السلام علیکم" تاسو سلامت اوسئ. دا قول به د فریښتو ذ مسلمانانو د پاره وي. "و الیه متاب" زهٔ ذ دې نه توبه کوم. "افلم ییاس" آیا هغوي پوهٔ نهٔ شو، مایوسه نه شو. "لم یتبیّن" آیا په هغوي ظاهره نه شوه. "قارعة" ویرونکې، زور ورکونکې. "داهیة" مصیبت. "فاملیت" مهلت م ورکړلو. دا د "ملیّ" او "ملاوة" نه جوړ شوې دې. دې نه "ملیّا" "اشق" اسم تفضیل دې. ډیر سخت. "معقب" بدلیدونکې. "متجاورات" متعلق ذ مجاهد بیان دې، چه ذ زمکې بعضې قطعات زرخیز وي او بعضې ناقابل کاشت. "صفوان" جرړې یوځائې شوې ذ قجورو اُونې. جُدا جدا اُونې. دغه حال د سړو دې. ښوک نیک ښوک بد، حالانکه ټول د آدم علیه السلام اولاد دې. "السحاب الثقال" د اوبو نه ډکې وریځې. "کباسط کَفّیه" تږې چه لاس او ژبې سره اشارې سره اوبه غواړي، هغه همیشه محروم وي. "سالت اودیة بقدرها" یعني نالې ذ خپلې اندازې مطابق بهیږي. "قدر"

يُخْبِرُ اَلْيَهِ بِيَدِهٖ فَلَا يَأْتِيْهِ اَبَدًا سَالَتْ اَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا تَمْلَاُ بَطْنَ وَادٍ زَبَدًا رَابِيًا زَبَدَ السَّيْلِ خُبْثُ الْحَدِيْدِ وَالْحِلْيَةِ.

اندزه "زبدا رابيا" د زګ نه ډک. د زګ نه پرسيدلے. "زبد السيل" د سيلاب زګ. څنګه چه د اوسپنے يا د يو بل دهات ګرم کيدو سره د دننه نه ميل (خيرے) بهر ته راوځي.

باب ۲۶۵ : قَوْلِهٖ اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى وَمَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ غِيْضَ نُقِصَ.

باب ۲۶۵ : آيت: اَللّٰهُ تحمل كُلُّ اُنْثٰى: د تعالٰي قول. هره ماده ئے اوچتوي. او چه رَحَم ئے کم کوي. "غيض" کم شو. کم کړے شو.

۱۸۱ : حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ ابْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مَعْنٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَفَاتِيْحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ لَا يَعْلَمُهَا اِلَّا اللّٰهُ لَا يَعْلَمُ مَا فِيْ غَدٍ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا يَعْلَمُ مَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا يَعْلَمُ مَتٰى يَاْتِي الْمَطَرُ اَحَدٌ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا تَدْرِيْ نَفْسٌ بِاَيِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ وَلَا يَعْلَمُ مَتٰى تَقُوْمُ السَّاعَةُ اِلَّا اللّٰهُ.

۱۸۱ : ابراهيم بن منذر. معن بن عيسي. امام مالک. عبداللّٰه بن دينار. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، د غيب پنځه خبرے يا قنجيانے دي، چه د اللّٰه تعالٰي نه سوا بل چاته نۀ دي معلومے: (۱) يو خو دا چه صبا له څۀ کيدونکے دي. (۲) دويم دا چه د ښځو او ځناورو په رحمونو کښ څۀ دي، يعني نر دے يا ماده يا بل څۀ. (۳) دريم دا چه باران به کله کيږي. (۴) څلورم دا چه سړے به کله مري. (۵) پنځم دا چه قيامت به کله راځي. دا خبرے صرف اللّٰه ته معلومے دي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة اِبْرَاهِيْمَ

## دَ سورۀ ابراهيم تفسير

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَادٍ دَاعٍ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ صَدِيْدٌ قَيْحٌ وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اَيَادِيَ اللّٰهِ عِنْدَكُمْ وَ اَيَّامَهٗ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مِنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ

ابن عباسؓ فرمائي "هاد" بلونکے. مجاهد وائي "صديد" معني دي زوې او ابن عيينه وئيلي. د اللّٰه هغه نعمتونه ياد کړے چه تاسو سره دي. او د قدرت نه چه څۀ حاصل شوے دي. هغه ياد کړے. چه تاسو څۀ څۀ رغبت کړے وو. "تبغونها عوجا" دے کښ کوږوالے (کجي)

رَغِبْتُمْ إِلَيْهِ فِيْهِ يَبْغُوْنَهَا عِوَجًا يَلْتَمِسُوْنَ لَهَا عِوَجًا وَ إِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكُمْ اَعْلَمَكُمْ آذَنَكُمْ رُدُّوْا اَيْدِيَهُمْ فِيْ اَفْوَاهِهِمْ هٰذَا مَثَلٌ كَفُّوْا عَمَّا اُمِرُوْا بِهٖ مَقَامِيْ حَيْثُ يُقِيْمُهُ اللّٰهُ بَيْنَ يَدَيْهِ مِنْ وَّرَآئِهٖ قُدَّامِهٖ لَكُمْ تَبَعًا وَاحِدُهَا تَابِعٌ مِثْلُ غَيَبٍ وَ غَائِبٍ بِمُصْرِخِكُمْ اسْتَصْرَخَنِيْ اِسْتَغَاثَنِيْ يَسْتَصْرِخُهُ مِنَ الصُّرَاخِ وَلَا خِلَالَ مَصْدَرُ خَالَلْتُهُ خِلَالًا وَ يَجُوْزُ اَيْضًا جَمْعُ خُلَّةٍ وَّ خِلَالٍ اُجْتُثَّتْ اُسْتُؤْصِلَتْ.

پيدا كول غواړي. "و اذ تاذن ربكم" ستاسو مالک تاسوته ذ مخكښې نه بنودلے وو. "ردوا ايديهم في افواههم" دا يو عربي مقوله ده. مطلب ئے دادے چه ذ حكم نه او كرځي، الله به ئے خان ته پيش كړي. "من ورائه" ذ مخے نه "قدامه" وړاندے يا مخكښې. "لكم تبعا" ذ تابع جمع ده، لكه "غيب" ذ غائب جمع ده "بمصرخكم" ستاسو فرياد رسي. عرب والا وائي "استصرخي" هغه خما فرياد واوريدلو. "يستصرخه" ذ هغه فرياد. دا د صُراخ نه جوړ شوے دے "ولا خلال" او نه دوستي او محبت. دا د "خاللته" مصدر دے او دا هم كيدے شي، چه "خُلّه" د "خلال" جمع وي. "اجتثت" د جرړ نه اوښكلے شوے، يا ذ جرړے نه وتلے.

## بَابٌ ۲۶۶: قَوْلُهٗ كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ اَصْلُهَا ثَابِتٌ وَ فَرْعُهَا فِي السَّمَآءِ تُؤْتِيْ اُكُلَهَا كُلَّ حِيْنٍ.

## باب ۲۶۶: آيت: كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ اَصْلُهَا ثَابِتٌ:

د الله تعالي قول: هغے پاكيزه اُونے په شان چه ذ هغے جرړے مضبوطے او كلكے وي، او ذ هغے ښاخونه آسمان كښې وي او هغه د خپل رب حكم سره هميشه ميوه كوي.

**ف**: كه په چا سپږنړے وي، نو دا آيت دے پرے هر سحر او ماښام درے خله ځف كوي، انشاء الله روغ به شي. دے ذ پاره خما فقير محمد عباس قادريه كتابونه "دم درُود" او "شفاء للنّاس" او كورئے.

۷۸۲: حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَخْبِرُوْنِيْ بِشَجَرَةٍ تُشْبِهُ اَوْ كَالرَّجُلِ الْمُسْلِمِ لَا يَتَحَاتُّ وَرَقُهَا وَلَا وَلَا وَلَا تُؤْتِيْ

۷۸۲: عبيد بن اسماعيل. ابي اُسامه. عبيدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، مونږ د حضور صلي الله عليه وسلّم په مجلس كښې ناست وو، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمانيل، هغه كومه اُونه ده، چه ذ هغے پانړے نه غُرځيږي، او هغے كښې ميوه هم هميشه كيږي. ذ مسلمان مثال د هغے اُونے دے، چه داسے هم نه، او داسے هم نه، او داسے هم نه، يعني هميشه وَذه

أُكُلَهَا كُلَّ حِيْنٍ قَالَ ابْنُ عُمَرَ فَوَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ أَنَّهَا النَّخْلَةُ وَ رَأَيْتُ أَبَا بَكْرٍ وَ عُمَرَ لَا يَتَكَلَّمَانِ فَكَرِهْتُ أَنْ أَتَكَلَّمَ فَلَمَّا لَمْ يَقُوْلُوْا شَيْئًا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ النَّخْلَةُ فَلَمَّا قُمْنَا قُلْتُ لِعُمَرَ يَا أَبَتَاهُ وَاللّٰهِ لَقَدْ كَانَ وَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ أَنَّهَا النَّخْلَةُ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَكَلَّمَ قَالَ لَمْ أَرَكُمْ تَكَلَّمُوْنَ فَكَرِهْتُ أَنْ أَتَكَلَّمَ أَوْ أَقُوْلَ شَيْئًا قَالَ عُمَرُ لَأَنْ قُلْتَهَا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ كَذَا وَ كَذَا.

كوي. ذ ابن عمرؓ بيان دے. خما زړه كښ وو، چه اووايم، چه هغه ذ قجورے اُونه ده، خو ما اوليدل چه ابوبكرؓ او عمرؓ ټول خاموش دي، څوک خبره نۀ كوي، نو زۀ څنګه خبره اوكړم. آخر حضور صلي الله عليه وسلّم خپله اوفرمائيل هغه ذ قجورے اُونه ده. بيا چه مجلس ختم شو، او ټول پاسيدل نو ما خپل پلار حضرت عمرؓ ته اووے خما زړه كښ راغلي وو، چه اووايم، هغه ذ قجورے اُونه ده، خو ما تاسو ټول خاموش اوليدئے، نو زۀ هم خاموش پاتے شوم. حضرت عمرؓ اووے، كه تا وئيلے وے، نو په الله ماته به د زيات نه زيات مال په حاصليدو دومره خوشحالي نۀ وه حاصله شوے، څومره چه ستا دا جواب م آوريدلے وے.

## بَابُ ٢٦٧: قَوْلِهِ يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ.

باب ٢٦٧: آيت: يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا: ذ الله تعالٰي قول، الله تعالٰي هغه ايمان واله ثابت قدم ساتي، چه پخه خبره كوي.

٢٨٣: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَلْقَمَةُ بْنُ مَرْثَدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُسْلِمُ إِذَا سُئِلَ فِي الْقَبْرِ يَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ فَذٰلِكَ قَوْلُهُ يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ فِي الْاٰخِرَةِ.

٢٨٣: ابوالوليد. شعبه. علقمه بن مرثد. سعد بن عبيده. حضرت براء بن عازب نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. قبر كښ چه مسلمان نه كوم وخت سوال كولے شي، نو هغه ګواهي وركوي، چه: لا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحمد رَسول الله. يعني ذ الله تعالٰي نه سِوا هيڅوک ذ عبادت لائق نۀ دے، او محمدؐ ذ الله رسول دے، نو دے آيت كښ ذ قول ثابت نه دا مراد دے، چه الله تعالٰي ايمان واله (ايماندار) دُنيا او آخرت دوارو كښ ثابت قدم ساتي.

ف: الله پاک دے مونږ ټول په ايمان دُنيا او آخرت دوارو كښ ثابت قدم لري. اَللّٰهُمَّ اٰمِيْن.

بَابُ ۲۶۸: قَوْلِهِ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ كُفْرًا أَلَمْ تَعْلَمْ كَقَوْلِهِ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا الْبَوَارُ الْهَلَاكُ بَارَ يَبُوْرُ بَوْرًا قَوْمًا بُوْرًا هَالِكِيْنَ.

۴۶۸۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عَطَاءٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ كُفْرًا قَالَ هُمْ كُفَّارُ أَهْلِ مَكَّةَ.

باب ۲۶۸: آيت: الم تر الى الّذين بدّلوا نعمة اللّه: د اللّه تعالىٰ قول: چا چه د اللّه نعمت كفر سره بدل كهٔ. "الم تر" معني دي: آيا تا اونه ليدل؟ څنګه چه "الم تر كيف" كښې دي: چه آيا تا اونهٔ ليدل، يا، د "الم تر الى الذين" معنى ئې دي. "بوار" معني هلاكت. ماريږو نه جوړ دے. "قوما بورا" هلاكيدونكي.

۴۶۸۴: على بن عبداللّه. سفيان. عمرو. عطاء. حضرت ابن عباس نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے د دے آيت كښې: الم تر الى الّذين بدّلوا نعمة اللّه كفرا: نه مراد د مكے كافر دي.

# سُوْرَةُ الْحِجْرِ

# دَ سورهٔ حجر تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيْمٌ الْحَقُّ يَرْجِعُ إِلَى اللّٰهِ وَ عَلَيْهِ طَرِيْقُهُ لَبِإِمَامٍ مُبِيْنٍ عَلَى الطَّرِيْقِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَعَمْرُكَ لَعَيْشُكَ قَوْمٌ مُنْكَرُوْنَ أَنْكَرَهُمْ لُوْطٌ وَ قَالَ غَيْرُهُ كِتَابٌ مَعْلُوْمٌ أَجَلٌ لَوْ مَا تَأْتِيْنَا هَلَّا تَأْتِيْنَا شِيَعٌ أُمَمٌ وَ لِلْأَوْلِيَاءِ أَيْضًا شِيَعٌ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يُهْرَعُوْنَ مُسْرِعِيْنَ لِلْمُتَوَسِّمِيْنَ لِلنَّاظِرِيْنَ سُكِّرَتْ غُشِيَتْ بُرُوْجًا مَنَازِلَ لِلشَّمْسِ وَالْقَمَرِ لَوَاقِحَ مَلَاقِحَ مُلْقِحَةً حَمَإٍ جَمَاعَةُ حَمْأَةٍ وَهُوَ الطِّيْنُ الْمُتَغَيِّرُ

مجاهد واني "صراط علىّ مستقيم" مطلب دا دے هغه ريښتنيے لاره چه اللّه ته رسي. "لبامام مبين" په پرانستے لاره. ابن عباس واني. "لعمرك" ستا په خان قسم. "قوم منكرون" يعني لوط هغوي اجنبي او ګڼړل. "كتاب معلوم" مطلب مقرره موده "لوما تاتينا" ولے مونږ ته نه راوړي. "شيع" امتونه. او كله دوستانو ته هم واني. ابن عباس وئيلي دي. "يهرعون" معني هغوي منډے وهي جلتي كوي تادى كوي. "للمتوسمين" ليدونكو د پاره. "سكرت" مست كړے شو. "بروجا" د نمر سپوږمۍ منزلونه "لواقح" ملاقح ملحقه د دے ټولو يو معني دي يعني بوج اچونكے "حماء" د "حماة" جمع ده معني د ختو دي "مسنون" قالب كښې اچولے شوے "لا توجل"

وَالْمَسْنُوْنُ الْمَصْبُوْبُ تَوْجَلْ تَخَفْ دَابِرَ اٰخِرَ لَبِاِمَامٍ مُّبِيْنٍ اَلْاِمَامُ كُلُّ مَا ائْتَمَمْتَ وَاهْتَدَيْتَ بِهٖ اَلصَّيْحَةُ الْهَلَكَةُ.

مه ويريږه "دابر" آخري حصه يعني جرړ يا لكي "امام مبين" كښې د امام معنيٰ دي چه د هغه پيروي كولے شي چه د هغۀ نه لار بيا مومي "صيحته" معنيٰ هلاكت او بربادي وغيره.

**باب ۲۶۹ : قَوْلِهٖ اِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ مُّبِيْنٌ.**

**باب ۲۶۹ :** ايت: اِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ: ذ الله تعالیٰ قول: خو هغه شيطان چه ذ خبرو غلا كوي نو ذ اُور شغلے هغه پسے شي.

۲۸۵ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عِكْرَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قَضَى اللّٰهُ الْاَمْرَ فِي السَّمَآءِ ضَرَبَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ بِاَجْنِحَتِهَا خُضْعَانًا لِقَوْلِهٖ كَالسِّلْسِلَةِ عَلٰى صَفْوَانٍ قَالَ عَلِيٌّ وَ قَالَ غَيْرُهٗ صَفْوَانٌ يَنْفُذُهُمْ ذٰلِكَ فَاِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوْا لِلَّذِيْ قَالَ الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ فَيَسْمَعُهَا مُسْتَرِقُوا السَّمْعِ وَ مُسْتَرِقُوا السَّمْعِ هٰكَذَا وَاحِدٌ فَوْقَ اٰخَرَ وَ وَصَفَ سُفْيَانُ بِيَدِهٖ وَ فَرَّجَ بَيْنَ اَصَابِعِ يَدِهِ الْيُمْنٰى نَصَبَهَا بَعْضَهَا فَوْقَ بَعْضٍ فَرُبَمَا اَدْرَكَ الشِّهَابُ الْمُسْتَمِعَ قَبْلَ اَنْ يَّرْمِيَ بِهَا اِلٰى صَاحِبِهٖ فَيُحْرِقَهٗ وَ رُبَمَا لَمْ يُدْرِكْهُ حَتّٰى يَرْمِيْ بِهَا اِلَى الَّذِيْ يَلِيْهِ اِلَى الَّذِيْ هُوَ اَسْفَلَ مِنْهُ حَتّٰى يُلْقُوْهَا اِلَى الْاَرْضِ وَ رُبَمَا قَالَ

۲۸۵ : علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. عكرمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، هر كله چه الله تعالیٰ په آسمان فريښتو ته څۀ حكم وركوي، نو هغوي عاجزئ سره خپل پَر وهي، او غور سره آوري. او ذ زنځير په شان آواز (شنړار) كيږي. هر كله چه فريښتے ذ حكم الٰهي ذ خوف نه څۀ قدرے بے غمه شي، نو خپلو كښې يو بل نه تپوس كوي، الله تعالي څۀ حكم كړے دے، نورے ورته وائي، څۀ چه فرمائي، هغه حق دي، او الله تعالیٰ لوئے بلند برتر دے. علي وائي، سفيان اووے، ذ فريښتو خبرے شيطانان اوتښتوي، او دا شيطانان داسے لاندے باندے وي، او ذ ګوتو اشاره كولو سره ئے اوښودل، بيا كله چه فريښتے پرے خبر شي، نو ذ اُور شعله ور اُولي، او هغه شعله خبرے آوريدونكے قبل ذ دے نه چه هغه ئے خپل ملګري ته واوروي، اوسوزوي. او كله ذ هغے شعلے هغۀ ته ذ رسيدو نه مخكښې هغه ئے خپل ملګري ته اوښائي، (يعني واوروي) او دا شان خبرے زمكے پورے راورسي. بيا دا خبرے ذ نجومي په خوله كښې واچولے شي، او هغه

سُفْيٰنُ حَتّٰى تَنْتَهِيَ اِلَى الْاَرْضِ فَتُلْقٰى عَلٰى فَمِ السَّاحِرِ فَيَكْذِبُ مَعَهَا مِائَةَ كَذِبَةٍ فَيُصَدَّقُ فَيَقُوْلُوْنَ اَلَمْ يُخْبِرْنَا يَوْمَ كَذَا وَ كَذَا يَكُوْنُ كَذَا وَ كَذَا فَوَجَدْنَاهُ حَقًّا لِلْكَلِمَةِ الَّتِيْ سُمِعَتْ مِنَ السَّمَآءِ.

ورسره سل نورے دروغ حبرے يوځائے كړي او خلقونه ئے بيانوي. كله كله خسے خبره د دے نجومي يعني جادوګر ريښتيا اوخيژي، نو خلق وائي، ګوره، دے نجومي مونږ ته دا، دا حبرے کړے وه، د هغه خبره ريښتيا اوختله، حالانكه دا هغه خبره ده، چه د آسمان نه ئے غلا شوے ده.

۶۸۶ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اِذَا قَضَى اللّٰهُ الْاَمْرَ وَ زَادَ الْكَاهِنَ وَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ فَقَالَ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ عِكْرَمَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ اِذَا قَضَى اللّٰهُ الْاَمْرَ وَ قَالَ عَلٰى فَمِ السَّاحِرِ قُلْتُ لِسُفْيٰنَ اَنْتَ سَمِعْتَ عَمْرٌو قَالَ سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ لِسُفْيٰنَ اِنَّ اِنْسَانًا رَوٰى عَنْكَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَ يَرْفَعُهٗ اَنَّهٗ قَرَاَ فُزِّعَ قَالَ سُفْيٰنُ هٰكَذَا قَرَاَ عَمْرٌو فَلَا اَدْرِيْ سَمِعَهٗ هٰكَذَا اَمْ لَا قَالَ سُفْيَانُ وَ هِيَ قِرَاءَ تُنَا.

۶۸۶ : علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. عكرمه. حضرت ابوهريرهؓ نه دا حديث داسے روايت كوي چه ساحر نه پس د كاهن لفظ زيات كړے دے، سفيان، عمرو نه، هغهٔ عكرمه نه، هغهٔ حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، هر كله چه الله تعالي څه حكم كوي. او دے روايت كښې "على فم الساحر" لفظ دے. علي بن عبدالله وائي. ما دَ سفيان نه تپوس اوكهٔ، آيا تا عمرو نه واوريدل هغهٔ وئيلے، ما د عكرمه نه واوريدل هغهٔ وئيلے ما دَ ابوهريرهؓ نه واوريدل، هغهٔ اووے، او علي سفيان ته اووے چه يو سړي تانه داسے روايت اوكړ. عمرو، عكرمه، حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووے چه رسول اكرم صلي الله عليه وسلَم "فزع" لوستے وو. سفيان وائي، ما دَ عمرو نه دغسے واوريدل. اوس معلومه نهٔ ده، چه هغهٔ دَ عكرمه نه آوريدلے وو، يا نه، خو زهٔ ئے داسے لولم.

## بَاب ۲۷۰ : قَوْلِهٖ وَلَقَدْ كَذَّبَ اَصْحٰبُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِيْنَ.

باب ۲۷۰ : ايت: ولقد كذّب اصحٰب الحجر المُرسَلِيْنَ: دَ الله تعالي قول، بيشكه حجر والو پيغمبران دروغجن اوكنړل.

۶۸۷ : حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مَعْنٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ

۶۸۷ : ابراهيم بن منذر. معني. مالک. عبدالله بن دينار. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي،

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِاَصْحٰبِ الْحِجْرِ لَا تَدْخُلُوْا عَلٰى هٰٓؤُلَاءِ الْقَوْمِ اِلَّا اَنْ تَكُوْنُوْا بَاكِيْنَ فَاِنْ لَّمْ تَكُوْنُوْا بَاكِيْنَ فَلَا تَدْخُلُوْا عَلَيْهِمْ اَنْ يُّصِيْبَكُمْ مِثْلُ مَا اَصَابَهُمْ.

ذ هغه بيان دے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه د حجر په مقام تيريدلو' نو حضورﷺ خپلو صحابهؓ ته اوفرمائيل' دے مقام نه تاسو له ژړا سره تيريدل پکار دي. که ژړا نه درځي' نو مه ځئ چرته داسے نه وي' چه کوم عذاب په هغوي نازل شوے وو' هغه په تاسو نازل شي.

## بَاب ۲۷۱: قَوْلِهِ وَلَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْاٰنَ الْعَظِيْمَ.

باب ۲۷۱: وَلَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ: ذ اللّٰه تعالي قول: مونږ تاته اوه ذهراؤ كيدونكي اٰيتونه او قرآن عظيم عطا كړے دے.

۲۸۸: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُعَلّٰى قَالَ مَرَّ بِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا اُصَلِّيْ فَدَعَانِيْ فَلَمْ اٰتِهٖ حَتّٰى صَلَّيْتُ ثُمَّ اَتَيْتُ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ اَنْ تَاْتِيَ فَقُلْتُ كُنْتُ اُصَلِّيْ فَقَالَ اَلَمْ يَقُلِ اللّٰهُ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَ لِلرَّسُوْلِ ثُمَّ قَالَ اَلَا اُعَلِّمُكَ اَعْظَمَ سُوْرَةٍ فِي الْقُرْاٰنِ قَبْلَ اَنْ اَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَذَهَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَذَكَّرْتُهٗ فَقَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْاٰنُ الْعَظِيْمُ الَّذِيْ اُوْتِيْتُهٗ.

۲۸۸: محمد بن بشار. غندر. شعبه. خبيب بن عبدالرحمٰن. حفص بن عاصم. ابي سعيد بن معلٰي نه روايت كوي' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم څما خوا كښې تير شو' او' ما مونځ كولو' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم زۀ اُوغبنتلم. زۀ لانۀ رم' مانځه نه پس لاړم' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' چه ما اوغبنتلے' نو ته ولے رانغلے' ما عرض اوكۀ' ما مونځ كولو' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' آيا اللّٰه تعالي دا نه دي فرمائيلے' چه اے ايمان والو' كوم وخت چه تاسو ذ اللّٰه رسول اوبلي' نو ورشئ' دے نه پس حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو' ځمات نه ذ وتلو نه مخكښې به زۀ تاته ذ قرآن يو لوئے بزرگ او برتر سورت اوښايم. بيا چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم روان شو' ما ورته ياد كړل' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' هغه سورۀ الحمد دے. دے كښې اوه آيتونه دي' چه سبع مثاني دي' او قرآن عظيم چه ماته راكړے شوے دے.

٦٨٩ : حَـدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِـيْ ذِئْبٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ اُمُّ الْقُرْاٰنِ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْاٰنُ الْعَظِيْمُ.

٦٨٩ : آدم. ابـن ابـي ذئـب. سـعـيـد مقبـري. حـضـرت ابـوهـريـرةؓ نـه روايـت كـوي' د هـغـهٔ بيـان دے' رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عليـه وسلّم اوفرمائيل' اُمّ الـقـرآن چـه سـورة فـاتـحـه دے. دے ته سبع مثاني او قرآن عظيم وائي.

بـاب ٢٧٢ : قَـوْلِـهٖ الَّـذِيْـنَ جَـعَـلُـوا الْـقُـرْاٰنَ عِـضِيْـنَ الْـمُـقْتَسِمِيْـنَ الَّـذِيْـنَ حَـلَـفُـوْا وَ مِـنْـهُ لَا اُقْسِمُ اَيْ اُقْسِمُ وَ تُـقْـرَاُ لَاُقْسِمُ قَـاسَمَهُمَـا حَـلَفَ لَهُـمَـا وَلَـمْ يَـحْـلِـفَـا لَـهُ وَ قَـالَ مُـجَـاهِـدُ تَقَـاسَـمُـوْا تَحَالَفُوْا.

باب ٢٧٢ : آيت: اَلَّذِيْنَ جعلُوا الْقُرْاٰن عِضِيْن: د اللّٰـه تعالٰي قول' هغه خلق چه قرآن ئے ټكړے ټكړے كړ "مـقتسـميـن" هـغـه كـافـر مراد دي' چه هغوي د شپے د حضـرت صـالـح عـلـيـه السلام د وژلو قسم خوړلے وو. "مـقتسـميـن" معني حلف او چتونكي. قسم خوړونكي. "لا اقسم" پـه مـعـنـي كـښې. او "لا" زائد دے. مجاهد وائي. "تـقـاسـمـوا" معني "تحالفوا" يعني هغوي حلف او چت كړ. قسم ئے اوخوړلو.

٦٩٠ : حَـدَّثَـنِـيْ يَـعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بِشْرٍ عَـنْ عَـنْ سَعِيْـدِ بْـنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّـاسٍ اَلَّـذِيْـنَ جَعَلُوا الْقُرْاٰنَ عِضِيْنَ قَـالَ هُـمْ اَهْـلُ الْـكِتَابِ جَزَّءُ وْهُ اَجْزَاءً فَاٰمَنُوْا بِبَعْضِهٖ وَ كَفَرُوْا بِبَعْضِهٖ.

٦٩٠ : يـعـقـوب بـن ابـراهـيـم. هشيم. ابو بشر. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' دَ هغهٔ بيان دے' دے ايت اَلَّـذِيـن جعلُوا الْقُرْاٰن عِضِيْن: نه اهل كتـاب يـعـنـي يهود مراد دي' هغوي قرآن ټكړے ټكړے كـړ' چـه د تـورات مـوافـق وو' هـغـه ئـے اومنلو' كوم چه مخالف وو' هغه ئے اونه منلو.

٦٩١ : حَـدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ ظَبْيَانَ عَـنِ ابْـنِ عَبَّـاسٍؓ كَـمَـا اَنْزَلْنَـا عَلَى الْـمُقْتَسِمِيْـنَ قَـالَ اٰمَنُوْا بِبَعْضٍ وَ كَفَرُوْا بِبَعْضِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى.

٦٩١ : عبـيـدالـلّٰـه بـن مـوسٰـي. اعـمـش. ابي ظبيـان. حـضـرت ابـن عـبـاسؓ نـه روايـت كوي' هغهٔ اووے. "كـمـا انـزلـنـا عـلى المقتسمين" نه مراد يهود او نـصـاري دي' څـه قـرآن خو هـغـوي قبـول كـړ او څه ئے قبول نه كړ.

بـاب ٢٧٣ : قَـوْلِهٖ وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰـى يَـاْتِيَكَ الْيَـقِيْـنُ قَـالَ سَالِمٌ

باب ٢٧٣ : آيت: واعْبُـدْ ربّك حَتّٰي يَاْتِيك الْيَقِيْنُ: دَ اللّٰـه تـعـالٰي قـول' د مركه پورے د خپل رب

نُبُوْتُ.

عبادت كوه. سالم وائي "يقين" نه مراد مرگ دے.

# سُوْرَةُ النَّحْلِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

رُوْحُ الْقُدُسِ جِبْرِيْلُ نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ فِيْ ضَيْقٍ يُقَالُ اَمْرٌ ضَيْقٌ وَ ضَيِّقٌ مِثْلُ هَيْنٍ وَ هَيِّنٍ وَلَيْنٍ وَّ لَيِّنٍ وَمَيْتٍ وَ مَيِّتٍ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِيْ تَقَلُّبِهِمْ اِخْتِلَافِهِمْ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ تَمِيْدُ تَكَفَّأُ مُفْرَطُوْنَ مَنْسِيُّوْنَ وَ قَالَ غَيْرُهُ فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ هٰذَا مُقَدَّمٌ وَ مُؤَخَّرٌ وَّ ذٰلِكَ اَنَّ الْاِسْتِعَاذَةَ قَبْلَ الْقِرَاءَةِ وَ مَعْنَاهَا الْاِعْتِصَامُ بِاللّٰهِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تُسِيْمُوْنَ تَرْعَوْنَ شَاكِلَتِهِ نَاحِيَتِهِ قَصْدُ السَّبِيْلِ الْبَيَانُ الدِّفْءُ مَا اسْتَدْفَأْتَ تُرِيْحُوْنَ بِالْعَشِيِّ وَ تَسْرَحُوْنَ بِالْغَدَاةِ بِشِقِّ يَعْنِى الْمَشَقَّةَ عَلٰى تَخَوُّفٍ تَنَقُّصٍ الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً وَ هِيَ تُؤَنَّثُ وَ تُذَكَّرُ وَ كَذٰلِكَ النَّعَمُ لِلْاَنْعَامِ جَمَاعَةُ النَّعَمِ سَرَابِيْلَ قُمُصٌ تَقِيْكُمُ الْحَرَّ وَ سَرَابِيْلَ تَقِيْكُمْ بَاْسَكُمْ فَاِنَّهَا الدُّرُوْعُ دَخَلًا بَيْنَكُمْ كُلُّ شَيْءٍ لَمْ يَصِحَّ فَهُوَ دَخَلٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ حَفَدَةٌ مِنْ وَلَدِ الرَّجُلِ السَّكَرُ مَا حُرِّمَ مِنْ ثَمَرَتِهَا وَالرِّزْقُ

# دَ سورۀ نحل تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

"روح القدس" جبرائيل ته وائي. "ضيق" او "ضيّق" معني يو دي، څنګه چه "ميْت" او "ميّت" يا "هيْن" او "هيّن" يا "لين" او "ليّن" ابن عباسؓ وائي، "فی تقلبهم" معني دي، ذ هغوي په ګرځيدو کښې. مجاهد وائي "تميد" معني خکته شي (جهک جائے) اونخلي، آړولے شي. او "مفرطون" معني مخکښې کړے شوے بعضو اووے "فاذا قرات القرآن فاستعذ بالله" کښې عبارت مخکس ورستو شوے دے، خکه چه اعوذ بالله مخکښې لوستل پکار دي. "استعاذه" پناه غوارم. ابن عباسؓ اووے. "تسيمون" څاروي څروئ "شاکلته" په خپله خپله طريقه. "قصد السبيل" ذ ريښتنے لارے بيان. "الدِف" هغه څيز چه هغے سره يخني لرے شي. "ماستدفات" هغه څيز چه هغے سره ګرمي حاصليږي. "تريحون" مابنام ته راولئے "تسرحون" سحر کښې ئے څرند ذ پاره بوځئے. "بشق" تکليف اوچتولو سره. "تخوف" نقصان. "انعام" ذَ نعم جمع ده، او نر او ماده دواړو ذ پاره ونيلے شي. "اکنان" پناګاهونه. "سرابيل تقيکم الحر" نه قميصونه مراد دي او "سرابيل تقيکم باسکم" نه زغرے مراد دي. "دخل" ناجائز خبرے ته وائي، يعني خيانت. حضرت ابن عباسؓ وائي، "حفدة" معني نوسی يا نوسے، يعني ذ سړي اولاد. "السکر" معني نشته، نشے والا شراب. "رزقًا حسنًا" چه هغه الله حلال کړے وي. ابن عيينه، صدقه نه نقل کوي، ذ

الْحَسَنُ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ صَدَقَةَ اَنْكَاثًا هِيَ خَرْقَآءُ كَانَتْ اِذَا اَبْرَمَتْ غَزْلَهَا نَقَضَتْهُ وَ قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ الْاُمَّةُ مُعَلِّمُ الْخَيْرِ وَالْقَانِتُ الْمُطِيْعُ.

"انكاثا" معني ټكړے ټكړے. دا د مكے معظمے يوه ښځه وه چه د سحر به نے سپنړسي اودل، او د غرمے به نے ټكړے ټكړے كول. ابن مسعود وائي "الامة" معني منت. امام معلم الخير ته وائي، يعني نيكي ښودونكے. "قانت" فرمانبردار.

بَابُ ۲۷۴: قَوْلُهُ وَ مِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ اِلٰى اَرْذَلِ الْعُمُرِ.

باب ۲۷۴: آيت: و منكم من يرد الى ارذل العمر: د الله تعالى قول، او تاسو كښې بعضے پريوتے عمر طرف ته كرخولے شي.

۶۹۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا هَارُوْنُ بْنُ مُوْسٰى اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَعْوَرُ عَنْ شُعَيْبٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُوْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَالْكَسَلِ وَ اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ وَ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ.

۶۹۲: موسي بن اسماعيل. هارون بن موسي. ابو عبدالله الاعور. شعيب. حضرت انس بن مالك نه روايت كوي، د هغه بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلم به هميشه دا دُعا كوله "اعوذبك من البخل والكسل و ارذل العمر و عذاب القبر و فتنة الدجال و فتنة المحيا والممات" يا الله زه د بخيلي، سستي، پريوتي عمر نه، د قبر د عذاب نه، د دجال د فتنے نه او د ژوند او مرګ د فتنے نه ستا پناه غواړم.

# سُوْرَةُ بَنِىْ اِسْرَآئِيْل

# دَ سورهٔ بني اسرآئيل تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

۶۹۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ مَسْعُوْدٍ قَالَ فِيْ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ وَالْكَهْفِ وَ مَرْيَمَ اِنَّهُنَّ مِنَ الْعِتَاقِ الْاُوَلِ وَ هُنَّ مِنْ

۶۹۳: ادم. شعبه. ابو اسحاق. عبدالرحمن بن مسعود فرمائي، چه سورهٔ بني اسرآئيل، كهف او مريم د اعلي درجے سورتونه دي. او دا ما ډير مخكښې ياد كړے وو. ابن عباسؓ فرمائي، "فسينغضون" معني دي، چه خپل سر به رقوي. د خنو خلقو وينا ده، چه دا د "نغضت سنك" نه وتلے دے چه د هغے معني دي، ستا غاښ

تلاوىٰ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَسَيُنْغِضُوْنَ
يَهُزُّوْنَ وَ قَالَ غَيْرُهٗ نَغَضَتْ سِنُّكَ
اَىْ تَحَرَّكَتْ وَ قَضَيْنَا اِلٰى بَنِىٓ
اِسْرَآئِيْلَ اَخْبَرْنَاهُمْ اَنَّهُمْ سَيُفْسِدُوْنَ
وَالْقَضَآءُ عَلٰى وُجُوْهٍ وَّ قَضٰى
رَبُّكَ اَمَرَ رَبُّكَ وَ مِنْهُ الْحُكْمُ اِنَّ
رَبَّكَ يَقْضِىْ بَيْنَهُمْ وَ مِنْهُ الْخَلْقُ
فَقَضَاهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ نَفِيْرًا مَنْ
يَّنْفِرُ مَعَهٗ وَلِيُتَبِّرُوْا يُدَمِّرُوْا مَا
عَلَوْا حَصِيْرًا مَحْبَسًا مَحْصَرًا
حَقَّ وَجَبَ مَيْسُوْرًا لَيِّنًا خِطْأً اِثْمًا
وَهُوَ اسْمٌ مِنْ خَطِئْتُ وَ الْخَطَاءُ
مَفْتُوْحٌ مَصْدَرُهٗ مِنَ الْاِثْمِ
خَطِئْتُ بِمَعْنٰى اَخْطَأْتُ تَخْرِقَ
تَقْطَعَ وَ اِذْهُمْ نَجْوٰى مَصْدَرٌ
مِنْ نَاجَيْتُ فَوَصَفَهُمْ بِهَا وَالْمَعْنٰى
يَتَنَاجَوْنَ رُفَاتًا حُطَامًا وَاسْتَفْزِزْ
اسْتَخِفَّ بِخَيْلِكَ الْفُرْسَانِ
وَالرَّجْلُ وَالرَّجَالَةُ وَاحِدُهَا رَاجِلٌ
مِثْلُ صَاحِبٍ وَ صَحْبٍ وَّ تَاجِرٍ وَّ
تَجْرٍ حَاصِبًا الرِّيْحُ الْعَاصِفُ وَالْحَاصِبُ
اَيْضًا مَا تَرْمِىْ بِهِ الرِّيْحُ وَ مِنْهُ
حَصَبُ جَهَنَّمَ يُرْمٰى بِهٖ فِىْ جَهَنَّمَ
وَهُوَ حَصَبُهَا وَ يُقَالُ حَصَبَ فِى
الْاَرْضِ ذَهَبَ وَالْحَصَبُ مُشْتَقٌّ مِنَ
الْحَصْبَآءِ وَالْحِجَارَةِ تَارَةً مَرَّةً وَ

اوخوزيدلو. "و قضينا الى بنى اسرائيل" او مونږ بني اسرائيلو ته خبر ورکړے وو' چه هغوي به فساد کوي. د "قضا" ډير معني راغلے دي' لکه "و قضا ربک الا تعبدوا الا اياه" کښ د حکم معني راخي' او د فيصلے معني هم راخي' لکه "انّ ربّک يقضى بينهم" يعني د هغوي په مينځ کښ به فيصله اوکړي. او د پيدا کولو په معني کښ هم راخي لکه "قضاهنّ سبع سمٰوٰت" هغه ئے اوه آسمانونه پيدا کړل. "نفيرا" معني دي لښکر. "من ينفر معه" چه چاسره خي. "وليتبروا" معني دي برباد کړي. "حصيرًا" معني قيد خانه. "فحق" ثابت شو. "وجب" واجب شو. "ميسُورًا" معني دي نرم. "خِطأً" گناه. دا اسم مصدر دے. "خطئت" نه. او "خطا" مصدر دے. "لن تخرق" نشي شلولے. "لن تقطع" ته هيڅ کله نه شے پريکولے. "نجوىٰ" خپلو کښ مشوره کوي. "رفاتا" چوره چوره يا ريزه ريزه کړي. "واستفزز" سپک کړي' بيوقوف جوړ کړي. "بخيلک" خپلو سوارونه. "رجال" معني پياده. مفرد' ئے راجل راخي' لکه "صاحب" او "صحب" او "تاجر" او "تجر" "حاصبا" سيلئ او "حاصب" هغے هوا ته هم وائي. چه خيز غرخري نو ددے نه دے "حصب جهنم" کښ به اوغرخولے شي. د عربو مقوله ده چه "حصب فى الارض" زمکه کښ ننوتلو. دا "حصبا" نه دے. معني د کنړو دي. "تارة" معني يو وار. ددے جمع "تارات" او "تيرة" راخي. "لا حتنکن" ذ جړ نه به ئے راو کاږم. تباه به ئے کړم' د عربو مقوله ده' "احتنک فلان ما عند فلان" يعني هغه ته چه څومره خبرے معلومے نه وے' هغه تولے

جَمَاعَتُهُ تِمْرَةٌ وَ تَارَتُ لَاَحْتَنِكَنَّ لَاَسْتَأْصِلَنَّهُمْ يُقَالُ احْتَنَكَ فُلَانٌ مَا عِنْدَ فُلَانٍ مِنْ عِلْمٍ اِسْتَقْصَاهُ طَائِرَهُ حَظُّهُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كُلُّ سُلْطَانٍ فِي الْقُرْآنِ فَهُوَ حُجَّةٌ وَلِيٌّ مِنَ الذُّلِّ لَمْ يُحَالِفْ اَحَدًا.

هغه معلومے کړے "طائره" معني د هغه نصيبه ده ابن عباسؓ فرمائي، قرآن کښ چه کوم ځاى د "سلطان" لفظ راغلے دے نو د هغے معني د دليل او حجت دي. "وليّ من الذل" معني دي، خدائے چاسره داسے دوستي نه ده کړے، چه هغه د ذلت نه هغه محفوظ اوساتي. ځکه چه خدائے د چا محتاج نه دے.

**باب ۲۷۵:**

**باب ۲۷۵:** (دا باب بے سُرخي دے).

۶۹۴: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ ح وَ حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اُتِيَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ اُسْرِىَ بِهٖ بِاِيْلِيَاءَ بِقَدَحَيْنِ مِنْ خَمْرٍ وَلَبَنٍ فَنَظَرَ اِلَيْهِمَا فَاَخَذَ اللَّبَنَ قَالَ جِبْرَئِيْلُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِىْ هَدَاكَ لِلْفِطْرَةِ لَوْ اَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ اُمَّتُكَ.

۶۹۴: عبدان. عبدالله. يونس. (دويم سند) احمد بن صالح. عنبسه. يونس. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے. په کومه شپه چه حضور صلي الله عليه وسلّم بيت المقدس ته تشريف يوړلو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ته دوه پيالے پيش کړے شوے. يوے کښ شراب وو، او بلے کښ پئيے. حضور صلي الله عليه وسلّم دواړو ته اوکتل. بيائے د پئو پيالے واخسته. حضرت جبرئيل عرض اوکړ، چه الحمدلله، خدائے تاسو ته پيدائشي لار يعني اسلام اوښودلو، که تاسو د شرابو پيالے لاس کښ آخستے وے، نو ستاسو اُمت به ګمراهي کښ آخته شوے وے.

۶۹۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِىْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَمَّا كَذَّبَنِىْ قُرَيْشٌ قُمْتُ فِى الْحِجْرِ فَجَلَّ اللّٰهُ لِىَ بَيْتَ

۶۹۵: احمد بن صالح. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. ابو سلمه. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، فرمائيل ئے کوم وخت چه کافرو معراج دروغ اوګڼړلو، نو زهٔ کعبه کښ مقام حجر ته ورغلم، الله تعالي بيت المقدس ښما مخے ته کړلو، ما هغے ته کتل، نښے مِ ښودلے. يعقوب بن ابراهيم داسے

الْمَقْدِسِ فَطَفِقْتُ أُخْبِرُهُمْ عَنْ اٰيَاتِهٖ وَ اَنَا اَنْظُرُ اِلَيْهِ زَادَ يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهٖ لَمَّا كَذَّبَنِيْ قُرَيْشٌ حِيْنَ اُسْرِيَ بِيْ اِلٰى بَيْتِ الْمَقْدِسِ نَحْوَهٗ قَاصِفًا رِيْحٌ تَقْصِفُ كُلَّ شَيْءٍ كَرَّمْنَا وَ اَكْرَمْنَا وَاحِدٌ ضِعْفَ الْحَيَاةِ عَذَابَ الْحَيَاةِ وَ ضِعْفَ الْمَمَاةِ عَذَابَ الْمَمَاةِ خِلَافَكَ وَ خَلْفَكَ سَوَآءٌ وَ نَاٰى تَبَاعَدَ شَاكِلَتِهٖ نَاحِيَتِهٖ وَ هِيَ مِنْ شَكْلِهٖ صَرَّفْنَا وَجَّهْنَا قَبِيْلًا مُعَايَنَةً وَ مُقَابَلَةً وَ قِيْلَ الْقَابِلَةُ لِاَنَّهَا مُقَابِلَتُهَا وَ تَقْبَلُ وَلَدَهَا خَشْيَةَ الْاِنْفَاقِ اَنْفَقَ الرَّجُلُ اَمْلَقَ وَ نَفِقَ الشَّيْءُ ذَهَبَ قَتُوْرًا مُقَتِّرًا لِلْاَذْقَانِ مُجْتَمَعَ اللَّحْيَيْنِ وَالْوَاحِدُ ذَقَنٌ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مَوْفُوْرًا وَّافِرًا تَبِيْعًا ثَائِرًا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَصِيْرًا خَبَتْ طَفِئَتْ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَا تُبَذِّرْ لَا تُنْفِقْ فِي الْبَاطِلِ ابْتِغَآءَ رَحْمَةٍ رِزْقٍ مَثْبُوْرًا مَلْعُوْنًا لَا تَقْفُ لَا تَقُلْ فَجَاسُوْا تَيَمَّمُوْا يُزْجِي الْفُلْكَ يُجْرِي الْفُلْكَ يَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ لِلْوُجُوْهِ.

اووے چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: بيت المقدس ته څما بوتلل چه كافرو دروغ اوګڼرل. "قاصفا" هغه سيلئ چه هر څيز تباه کړي، "ضعف الحيات" معنٰي ذ ژوند عذاب. "ضعف الممات" معنٰي ذ مرګ عذاب. "كرمنا" او "اكرمنا" ذ دواړو يو معنٰي دي. يعني مونږ بزرګي ورکړه "خلافک" او "خلفک" ذ دواړو يو معنٰي دي. يعني ستا ورستو. "تباعد" معنٰي لرے شو. "شاكلة" معنٰي په خپله طريقه. "صرفنا" مونږ واضحه کړه. "قبيلاً" معنٰي مقابله، يعني ذ سترګو مخ کښې. "الانفاق" خرچ کول. "قتوراً" تنګ دله. لنډ پارے. "اذقان" ذ ذقن جمع ده، د دے معنٰي دي زنه (تھوڑی). "موفوراً" ډک (بھرپور) دا، د مجاهد بيان دے. "تبيعًا" بدله اخستونکے. خو حضرت ابن عباسؓ وائي، چه مددګار "خبت" معنٰي دي، مړ به شي (بجھ جائے گی) د حضرت ابن عباسؓ بيان دے "لا تبذر" معنٰي دا دي، خرابو كارونو كښې مه خرچ کوے "ابتغاء رحمة" ذ روزي تلاش كښې. "مثبورًا" معنٰي لعنت پرے کړے شوے. "لا تقف" ورپسے مه لګه. ورپسے کيږه مه. "لا تقل" مه وايه. "فجاسوا" ورننوتل. قصد ئے اوکه. "يزجي الفلک" کشتي چلوي. "يخرّون لِلاذقان" پر مخے اوغرځيږي، دلته ذ مخ نه مراد زنے (ٹھوڑیاں) دي.

**باب ۲۷۶: قَوْلِهٖ وَ اِذَا اَرَدْنَا اَنْ نُّهْلِكَ قَرْيَةً اَمَرْنَا مُتْرَفِيْهَا الْاٰيَةَ.**

**باب ۲۷۶: آيت: وَ اِذَا اَرَدْنَا اَنْ نُّهْلِكَ قَرْيَةً: ذ اللّٰه تعالٰي قول، هر کله چه مونږ يوه بستي هلاکول غواړو، نو ذ هغے اميرانو ته حكم ورکوو، آخر پورے.**

۶۹۶ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ اَخْبَرَنَا مَنْصُوْرٌ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا نَقُوْلُ لِلْحَيِّ اِذَا كَثُرُوْا فِي الْجَاهِلِيَّةِ اَمِرَ بَنُوْ فُلَانٍ.

۶۹۷ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ وَ قَالَ اَمِرَ.

بَابُ ۲۷۷ : قَوْلِهٖ ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ اِنَّهٗ كَانَ عَبْدًا شَكُوْرًا.

۶۹۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا اَبُوْ حَيَّانَ التَّيْمِيُّ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيْرٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ فَرُفِعَ اِلَيْهِ الذِّرَاعُ وَ كَانَتْ تُعْجِبُهٗ فَنَهَسَ مِنْهَا نَهْسَةً ثُمَّ قَالَ اَنَا سَيِّدُ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ هَلْ تَدْرُوْنَ مِمَّ ذٰلِكَ يُجْمَعُ النَّاسُ الْاَوَّلِيْنَ وَالْاٰخِرِيْنَ فِيْ صَعِيْدٍ وَاحِدٍ يُسْمِعُهُمُ الدَّاعِيُ وَ يَنْفُذُهُمُ الْبَصَرُ وَ تَدْنُوا الشَّمْسُ فَيَبْلُغُ النَّاسَ مِنَ الْغَمِّ وَالْكَرْبِ مَا لَا يُطِيْقُوْنَ وَلَا يَحْتَمِلُوْنَ فَيَقُوْلُ النَّاسُ اَلَا تَرَوْنَ مَا قَدْ بَلَغَكُمْ

۶۹۶ : علي بن عبدالله. سفيان. منصور. ابي وائل. حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روايت كوي، هغهٔ اوويے، ذ جاهليت زمانه كښې چه ذ يوے قبيلے خلق بـه زيات شو، نو مونږ بـه وئيلے، چه چه "اَمِرَ بَنُوْ فُلَانٍ".

۶۹۷ : عبدالله بن زبير حميدي. سفيان نه روايت كوي، چه امر كښې ذ ميم كسره ده.

باب ۲۷۷ : آيت: ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ: ذ الله تعالي قول، دا ذ هغوي نسل دے، چه مونږ نوحؑ سره كشتئ كښې سواره كړي وو.

۶۹۸ : محمد بن مقاتل. عبدالله. ابو حيان التيمي. ابو زرعه بن عمرو بن جرير. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، يو ځل ذ حضور صلي الله عليه وسلم خدمت كښې غوښه پيش كړے شوه، نو حضور صلي الله عليه وسلم ته يو پتون وركړے شو، ځكه چه د پتون غوښه د حضور صلي الله عليه وسلم ډيره خوښه وه. حضور صلي الله عليه وسلم هغه اوخوړله بيائے ارشاد اوفرمائيلو: زهٔ به ذ قيامت په ورځ ذ ټولو سردار يم، آيا تاسو ته معلومه ده، چه ذ قيامت په ورځ بـه ټول اولين او آخرين يو ميدان كښې راجمع كړے شي، هغه ميدان به داسے هموار او وسيع وي، چه د يو آواز كونكي آواز به ټول آوريدے شي، او ليدونكے بـه ټول ليدے شي. نمر به ډير قريب راشي. خلقو ته به داسے تكليف وي چه برداشت كولے به ئے نشي (الله پاک دے ترے مونږ په آمان كړي. اللّهم آمين) هغوي بـه وائي، گورے څومره لوئے تكليف دے څوک

اَلَا تَنْظُرُوْنَ مَنْ يَّشْفَعُ لَكُمْ اِلٰى رَبِّكُمْ فَيَقُوْلُ بَعْضُ النَّاسِ لِبَعْضٍ عَلَيْكُمْ بِاٰدَمَ فَيَأْتُوْنَ اٰدَمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَيَقُوْلُوْنَ لَهٗ اَنْتَ اَبُو الْبَشَرِ خَلَقَكَ اللّٰهُ بِيَدِهٖ وَ نَفَخَ فِيْكَ مِنْ رُوْحِهٖ وَ اَمَرَ الْمَلٰٓئِكَةَ فَسَجَدُوْا لَكَ اشْفَعْ لَنَا اِلٰى رَبِّكَ اَلَا تَرٰى اِلٰى مَا نَحْنُ فِيْهِ اَلَا تَرٰى اِلٰى مَا قَدْ بَلَغَنَا فَيَقُوْلُ اٰدَمُ اِنَّ رَبِّيْ قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهٗ مِثْلَهٗ وَلَنْ يَّغْضَبَ بَعْدَهٗ مِثْلَهٗ وَ اِنَّهٗ نَهَانِيْ عَنِ الشَّجَرَةِ فَعَصَيْتُهٗ نَفْسِيْ نَفْسِيْ نَفْسِيْ اِذْهَبُوْا اِلٰى غَيْرِيْ اِذْهَبُوْا اِلٰى نُوْحٍ فَيَأْتُوْنَ نُوْحًا فَيَقُوْلُوْنَ يَا نُوْحُ اِنَّكَ اَنْتَ اَوَّلُ الرُّسُلِ اِلٰى اَهْلِ الْاَرْضِ وَقَدْ سَمَّاكَ اللّٰهُ عَبْدًا شَكُوْرًا اشْفَعْ لَنَا اِلٰى رَبِّكَ اَلَا تَرٰى اِلٰى مَا نَحْنُ فِيْهِ فَيَقُوْلُ اِنَّ رَبِّيْ عَزَّ وَ جَلَّ قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهٗ مِثْلَهٗ وَلَنْ يَغْضَبَ بَعْدَهٗ مِثْلَهٗ وَ اِنَّهٗ قَدْ كَانَتْ لِيْ دَعْوَةٌ دَعَوْتُهَا عَلٰى قَوْمِيْ نَفْسِيْ نَفْسِيْ نَفْسِيْ اِذْهَبُوْا اِلٰى اِبْرٰهِيْمَ فَيَأْتُوْنَ اِبْرٰهِيْمَ فَيَقُوْلُوْنَ يَا

سفارشي تلاش كړئي. د بعضو به دا رائے وي' چه حضرت آدم عليه السلام له ورشئ' ټول به هغه له ورشي' ورته به وائي' تاسو ابوالبشر يئ. اللّٰه تعالٰي تاسو خپل لاس سره جوړ كړي يئ او خپل روح ئے تاسو كښې پو كلے دے. او په ملائكو ئے تاسوته سجده كړے ده' نو خمونږ سفارش اوكړے' گورے كنه' مونږ څومره تكليف كښې آخته يو. حضرت آدم عليه السلام به جواب وركړي' نن خما رب ډير غصه كښې دے هغه زه يوې اُونے ته ذَ نزدے كيدو نه منع كړے ووم' ليكن ما د هغهٔ نافرماني كړے وه' هغوي به نفسي نفسي وائي او فرمائي به' تاسو ټول حضرت نوحؑ له ورشئ ټول به نوحؑ له ورشي ورته به عرض اوكړي تاسو وړومبے نبي يئ' او خدائے تاسو' ذَ خپل شكر گزار بنده په نوم ياد كړے يئ' نو تاسو خمونږ سفارش اوكړئ' څكه چه خمونږ حالت ډير خراب دے. حضرت نوحؑ به ورته اوفرمائي' نن اللّٰه تعالٰي ډيره غصه كښې دے' چه دے نه مخكښې چرے داسے غصه شوے نه دے او نه به روستو داسے غصه شي' هغهٔ ماته يوه دُعا قبوله كړے وه' چه هغه ما ذَ خپل اُمت ذَ پاره غوښتلے ده. بيا به هغه نفسي نفسي وائي. او خلقوته به وائي' چه حضرت ابراهيم عليه السلام له ورشے' ټول به هغه له ورشي' او ورته به عرض اوكړي' چه تاسو خليل اللّٰه او ذ اللّٰه پيغمبر يئ' مونږ ذَ پاره شفاعت اوكړے' هغه به هم دغه جواب وركړي' نن اللّٰه تعالٰي سخت غصه دے داسے نۂ مخكښې غصه وو' او نۂ ورستو او ما دُنيا كښې دا خطا كړے وه' چه درے دروغ م ونيلے وو ابو حيان ذ دے درے دروغو هم بيان

اِبْرٰهِيْمُ اَنْتَ نَبِيُّ اللّٰهِ وَ خَلِيْلُهٗ
مِنْ اَهْلِ الْاَرْضِ اشْفَعْ لَنَا اِلٰى رَبِّكَ
اَلَا تَرٰى اِلٰى مَا نَحْنُ فِيْهِ فَيَقُوْلُ
لَهُمْ اِنَّ رَبِّيْ قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ
غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهٗ مِثْلَهٗ
وَلَنْ يَغْضَبَ بَعْدَهٗ مِثْلَهٗ وَ اِنِّيْ
قَدْ كُنْتُ كَذَبْتُ ثَلَاثَ كَذِبَاتٍ
فَذَكَرَهُنَّ اَبُوْ حَيَّانَ فِي الْحَدِيْثِ
نَفْسِيْ نَفْسِيْ اِذْهَبُوْا اِلٰى غَيْرِيْ
اِذْهَبُوْا اِلٰى مُوْسٰى فَيَأْتُوْنَ
مُوْسٰى فَيَقُوْلُوْنَ يَا مُوْسٰى
اَنْتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَضَّلَكَ اللّٰهُ
بِرِسَالَتِهٖ وَ بِكَلَامِهٖ عَلَى النَّاسِ
اشْفَعْ لَنَا اِلٰى رَبِّكَ اَلَا تَرٰى
اِلٰى مَا نَحْنُ فِيْهِ فَيَقُوْلُ اِنَّ
رَبِّيْ قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا
لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهٗ مِثْلَهٗ وَلَنْ
يَّغْضَبَ بَعْدَهٗ مِثْلَهٗ وَ اِنِّيْ قَدْ
قَتَلْتُ نَفْسًا لَمْ اُوْمَرْ بِقَتْلِهَا
نَفْسِيْ نَفْسِيْ نَفْسِيْ اِذْهَبُوْا اِلٰى
غَيْرِيْ اِذْهَبُوْا اِلٰى عِيْسٰى فَيَأْتُوْنَ
عِيْسٰى فَيَقُوْلُوْنَ يَا عِيْسٰى
اَنْتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ كَلِمَتُهٗ اَلْقَاهَا اِلٰى
مَرْيَمَ وَ رُوْحٌ مِّنْهُ وَ كَلَّمْتَ النَّاسَ
فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا اشْفَعْ لَنَا اَلَا تَرٰى اِلٰى
مَا نَحْنُ فِيْهِ فَيَقُوْلُ عِيْسٰى اِنَّ رَبِّيْ

كړے دے بيا به هغه هم نفسي ونيل شروع كړي او
خلقو ته به فرمائي چه تاسو حضرت موسي عليه السلام
له ورشئ نو خلق به د موسي عليه السلام خدمت كښې
حاضر شي ورته به عرض اوكړي چه تاسو د الله تعالي
پيغمبر ئے خدائے تعالي تاسو سره خبرے كړے دي او
تاسو ته ئے په خلقو بزرګي عطا كړے ده تاسو خمونږ
شفاعت اوكړئ او ګورئ مونږ څومره مصيبت كښې
مبتلا يو. موسي عليه السلام به ورته اوفرمائي نن خو
خما رب ډير غصه دے دومره نه چرته مخكښې غصه
وو او نه ورستو ما نه دُنيا كښې يو خطا شوے وه چه يو
سړے م د لاسه مړ شولو چه د هغه د مړ كولو حكم نه
وو. نن زه خپله نفسي نفسي وايم تاسو حضرت عيسيٰ
عليه السلام له ورشئ نو خلق به د عيسي عليه السلام
خدمت كښې حاضر شي عرض به اوكړي چه تاسو د
الله رسول ئے او د هغه كلمه ئے چه الله مريم ته وركړے
وه تاسو د الله روح ئے تاسو ماشوموالي كښې خلقو سره
خبرے كړے دي نو خمونږ سفارش اوكړئ اوګورئ
مونږ څومره مصيبت كښې پراته يو هغه به ورته
اوفرمائي نن خما رب ډير غصه دے چه نه داسے
مخكښې وو او نه ورستو وي بيا به هغه د دُنيا څه ګناه
بيان نه كړي صرف نفسي نفسي به اووائي او فرمائي به
نن تاسو حضرت محمد صلي الله عليه وسلم له ورشئ
نو خلق به د حضرت محمد صلي الله عليه وسلم خدمت
كښې حاضر شي او عرض به ورته اوكړي اے د الله
رسوله تاسو خاتم الانبياء ئے الله تعالي ستاسو ټول
مخكښني او ورستني ګناهونه معاف كړے دي تاسو

قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهُ مِثْلَهُ وَلَنْ يَغْضَبَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ ذَنْبًا نَفْسِيْ نَفْسِيْ نَفْسِيْ اِذْهَبُوْا اِلٰى غَيْرِيْ اِذْهَبُوْا اِلٰى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَأْتُوْنَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُوْلُوْنَ يَا مُحَمَّدُ اَنْتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ خَاتِمُ الْاَنْبِيَآءِ وَقَدْ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَاَخَّرَ اشْفَعْ لَنَا اِلٰى رَبِّكَ اَلَا تَرٰى اِلٰى مَا نَحْنُ فِيْهِ فَاَنْطَلِقُ فَاٰتِيْ تَحْتَ الْعَرْشِ فَاَقَعُ سَاجِدًا لِّرَبِّيْ عَزَّ وَ جَلَّ ثُمَّ يَفْتَحُ اللّٰهُ عَلَيَّ مِنْ مَّحَامِدِهٖ وَ حُسْنِ الثَّنَاءِ عَلَيْهِ شَيْئًا لَمْ يَفْتَحْهُ عَلٰى اَحَدٍ قَبْلِيْ ثُمَّ يُقَالُ يَا مُحَمَّدُ اِرْفَعْ رَاْسَكَ سَلْ تُعْطَهُ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَاَرْفَعُ رَاْسِيْ فَاَقُوْلُ اُمَّتِيْ يَا رَبِّ فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ اَدْخِلْ مِنْ اُمَّتِكَ مَنْ لَّا حِسَابَ عَلَيْهِمْ مِنَ الْبَابِ الْاَيْمَنِ مِنْ اَبْوَابِ الْجَنَّةِ وَهُمْ شُرَكَآءُ النَّاسِ فِيْمَا سِوٰى ذٰلِكَ مِنَ الْاَبْوَابِ ثُمَّ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنَّ مَا بَيْنَ الْمِصْرَاعَيْنِ مِنْ مَّصَارِيْعِ الْجَنَّةِ كَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَ حِمْيَرَ اَوْ كَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَ بُصْرٰى.

خمونږ شفاعت اوفرمائے، تاسو وینئے، چه مونږ څومره تکلیف کښې یو. دغه وخت به زهٔ (محمدٌ) دَ عرش دَ لاندے په سجده پریوځم، خدائے تعالي به دَ خپل حمد و تعریف داسے طریقه ماته ځرګنده کړي، چه دے نه مخکښې به چاته نهٔ وي ښودلے شوے. نو زهٔ به هغه شان دَ اللّٰه تعالي حمد په ځائے راوړم بیا به حکم باري اوشي، چه اے محمد (صلي اللّٰه علیه وسلّم) خپل سر اوچت کړه، اوغواړه، څهٔ چه غواړے. کوم شفاعت چه کنے هغه به قبلیږي. زهٔ به دَ سجدے نه سر اوچت کړم، اُمتي اُمتي به وائم (نور انبیاء به نفسي نفسي وائي، او حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به اُمتي اُمتي) حکم به اوشي، اے محمدٌ خپل اُمت کښې هغه اویا زره خلق چه څوک سره به حساب کتاب نه وي، دَ ښي دروازے نه جنت کښې داخل کړه، او هغوي ته هم اختیار دے، په کومه دروازه چه غواړي، داخل دے شي (اللّٰه پاک دے مونږ هم دَ دوي نه کړي. اللّٰهم آمین) دے نه پس حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل دَ جنت دَ یوے دروازے پلن والے (چوړائی) دومره دے، لکه دَ مکے او حمیر مینځ کښې فاصله، یا دَ مکے او بصري مینځ کښې مسافت.

**باب ۲۷۸ : قَوْلِهٖ وَ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا.**

**باب ۲۷۸ : آیت: وَ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا: دَ اللّٰه تعالي قول، مونږ داؤدٌ ته زبور عطا کړلو.**

۶۹۹: حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خُفِّفَ عَلٰى دَاوُدَ الْقِرَاءَةُ فَكَانَ يَأْمُرُ بِدَابَّتِهِ لِتُسْرَجَ فَكَانَ يَقْرَأُ قَبْلَ اَنْ يَفْرُغَ يَعْنِي الْقُرْاٰنَ.

۶۹۹: اسحٰق بن نصر. عبدالرزاق. معمر. همام بن منبه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيل، حضرت داؤد عليه السلام باندے د زبور قرات دومره آسان كړے شوے وو، چه هغه به د اس د كَس كولو حكم وركړلو، خادم به د كَس كولو نه لا فارغ شوے هم نه وو، چه هغه به زبور لوستو نه فارغ شوے وو.

بَابُ ۲۷۹: قَوْلِهِ قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِهِ فَلَا يَمْلِكُوْنَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيْلًا.

باب ۲۷۹: آيت: قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ: د اللّٰه تعالٰي قول، اے نبيّ ورته اووايه، تاسو هغه خوک راوعواړے، چه د اللّٰه نه سِوا، مو معبود جوړ كړے دي، نه هغوي تاسو نه دا عذاب لرے كولے شي، او نهٔ ستاسو حالت بدلولے شي.

۷۰۰: حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اِلٰى رَبِّهِمُ الْوَسِيْلَةَ قَالَ كَانَ نَاسٌ مِنَ الْإِنْسِ يَعْبُدُوْنَ نَاسًا مِنَ الْجِنِّ فَأَسْلَمَ الْجِنُّ وَ تَمَسَّكَ هٰؤُلَاءِ بِدِيْنِهِمْ زَادَ الْاَشْجَعِيُّ عَنْ سُفْيَانَ عَنِ الْاَعْمَشِ قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ.

۷۰۰: عمرو بن علي. يحيٰي. سفيان. سليمان. ابراهيم. ابو معمر. حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دے، چه دا آيت: الٰي ربهم الوسيلة: د هغے خلقو حق كښې دے، چه د پيريانو عبادت به ئے كولو. جنات مسلمانان شو، خو دوي هم هغسے (بے اسلامه) پاتے شو. اشجعي د سفيان نه او سفيان د اعمش نه چه كوم روايت كړے دے، هغے كښې هغهٔ دومره زيات بيان كوي چه د دے آيت شان نزول هم دغه دے.

بَابُ ۲۸۰: قَوْلِهِ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ يَبْتَغُوْنَ اِلٰى رَبِّهِمُ الْوَسِيْلَةَ الْاٰيَةَ.

باب ۲۸۰: آيت: اُولٰئک الَّذِيْنَ يدْعُوْن: د اللّٰه تعالٰي قول، مشرک چه خوک بلي، هغوي خپله اللّٰه سره وسيله لټوي.

۷۰۱: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ سُلَيْمَانَ

۷۰۱: بشر بن خالد. محمد بن جعفر. شعبه. سليمان. ابراهيم. ابو معمر. حضرت عبداللّٰه بن مسعود

عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ فِيْ هٰذِهِ الْاٰيَةِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ يَبْتَغُوْنَ اِلٰى رَبِّهِمُ الْوَسِيْلَةَ قَالَ نَاسٌ مِنَ الْجِنِّ يَعْبُدُوْنَ فَاَسْلَمُوْا.

نـه روايـت كـوي: ذ هغـهٔ بيان دے، چـه دا آيت: الَّـذين يـدعـون الخ: ذ هغـے چـا حق كـښ دے چـه ذ جنّـاتو (پيريانو) عبادت به ئے كولو. نو جنات مسلمانان شو، او هغه خلق دغسے پاتے شو.

## بـاب ۲۸۱: قَـوْلُـهٗ وَمَـا جَـعَـلْـنَـا الـرُّؤْيَـا الَّتِـيْ اَرَيْـنٰـكَ اِلَّا فِتْـنَـةً لِّلنَّاسِ.

بـاب ۲۸۱: آيـت: وَمَـا جَـعَـلْـنَـا الـرُّؤْيَـا الَّتِـيْ اَرَيْنٰاكَ: دَ اللّٰـه تـعـالي قول، اے رسوله، كوم خوب چه مـونـږ تـاتـه ښـودلے وو، هغه مونږ خلقو دَ پاره دَ امتحان باعث جوړ كړلو.

۴۷۰۲: حَـدَّثَـنَـا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَـدَّثَـنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عِكْرِمَةَ عَـنِ ابْـنِ عَبَّاسٍ وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِـيْ اَرَيْنَاكَ اِلَّا فِتْنَةً لِلنَّاسِ قَالَ هِـيَ رُؤْيَا عَيْنٍ اُرِيَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ اُسْرِيَ بِهٖ وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُوْنَةَ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ.

۴۷۰۲: عـلي بن عبدالله. سفيان. عمرو. عكرمه. حـضـرت ابـن عـبـاسؓ نـه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، چـه دا رؤيـا خـوب نـهٔ دے، بـلكـه دے نـه مراد ستركو سـره ليـدل دي، چـه حـضـور صـلـي اللّٰـه عليه وسلّم ته دَ مـعـراج پـه شپـه ښـودلے شـوے وو. او دَ بيـداري حـالـت كښ وو، او دے آيت كښ شجره ملعونه نه مراد د زقوم اُونه ده.

## بـاب ۲۸۲: قَـوْلُـهٗ اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَـانَ مَشْهُـوْدًا قَـالَ مُجَـاهِدٌ صَلٰوةُ الْفَجْرِ.

باب ۲۸۲: آيت: اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا: ذ اللّٰـه تـعـالـي قـول، چـه قـرآن د فـجر حـاضر كړے شوے دے. مراد ترے د صبا مونځ دے.

۴۷۰۳: حَـدَّثَـنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَـدَّثَـنَـا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَـرٌ عَـنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ وَابْـنِ الْـمُسَيَّـبِ عَـنْ اَبِـيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَـضْلُ صَـلٰـوةِ الْجَمِيْعِ عَلٰى صَلٰوةِ الْـوَاحِـدِ خَـمْـسٌ وَّ عِشْرُوْنَ دَرَجَةً وَّ تَجْتَمِعُ مَلَائِكَةُ اللَّيْلِ وَ مَلَائِكَةُ النَّهَارِ

۴۷۰۳: عـبـدالـلّٰـه بـن محمد. عبدالرزاق. معمر. زهـري. ابـو سـلـمه. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نـه روايـت كـوي، ذ هـغـهٔ بـيـان دے، رسول اللّٰـه صلي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّـم ارشـاد اوفرمـائيلو. جـمـاعـت سره مـونـځ كـول ذ يـوازے (خـان لـه) مونـځ كـولـو نـه پـنـځـويشـت درجـے زيـات فـضيـلـت لـري. او ذ سـحـر مـونـځ لـوئـے فـضيـلـت والـه دے. ځكـه چه دے كـښ ذ ورځے او شپـے فـريـښتـے جـمـع

فِي صَلٰوةِ الصُّبْحِ يَقُوْلُ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اِقْرَءُ وْا اِنْ شِئْتُمْ وَ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ اِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا.

كيږي. حضرت ابوهريرةؓ اووې، كه تاسو غواړئ نو دا آيت اولولئ: اِنَّ قُرْاٰنَ الفجر كان مشهودًا.

باب ۲۸۳: قَوْلِهٖ عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا.

باب ۲۸۳: آيت: عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا: دَ اللّٰه تعالیٰ قول، نزدې ده چه ستا رب تا مقام محمود كښې اُودروي.

۴۰۷: حَدَّثَنِيْ اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اَبَانَ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ عَنْ اٰدَمَ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ اِنَّ النَّاسَ يَصِيْرُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ جُثًا كُلُّ اُمَّةٍ تَتْبَعُ نَبِيَّهَا يَقُوْلُوْنَ يَا فُلَانُ اشْفَعْ حَتّٰى تَنْتَهِيَ الشَّفَاعَةُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذٰلِكَ يَوْمَ يَبْعَثُهُ اللّٰهُ الْمَقَامَ الْمَحْمُوْدَ.

۴۰۷: اسماعيل بن ابان. ابوالاحوص. آدم بن علي. حضرت ابن عمر رضي اللّٰه عنه نه روايت كوي، دَ هغه بيان دې، دَ قيامت په ورځ به هره ډله خپل خپل پيغمبر له ورشي، نو ټول به جواب وركړي، او آخر به شفاعت په رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اودريږي. او دا به هغه ورځ وي، په كومه ورځ چه اللّٰه تعالیٰ حضور صلي الله عليه وسلّم په مقام محمود اودروي.

۴۰۵: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَالَ حِيْنَ يَسْمَعُ النِّدَآءَ اللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَ نِالْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَا نِالَّذِيْ وَعَدْتَّهٗ حَلَّتْ لَهٗ شَفَاعَتِيْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ رَوَاهُ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۴۰۵: علي بن عياش. شعيب بن ابي حمزه. محمد بن منكدر. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دې، رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، څوك چه آذان واوري، او دا دعا اوكړي: اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ الخ: (اې اللّٰه دَ دې دعوت تامه ربه، او دَ اوريدونكي مونځ مالكه، محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم ته وسيله او بزرګي عطا كړې، او مقام محمود كښې ئې اودروې، چه دَ هغې تا هغهٔ سره وعده كړې ده) نو هغهٔ دَ پاره څما شفاعت حلال شو. دا حديث حمزه بن عبداللّٰه دَ خپل پلار نه او هغهٔ د نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړې دې.

**باب ۲۸۴: قَوْلِهٖ وَ قُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَ زَهَقَ الْبَاطِلُ اِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوْقًا يَزْهَقُ يَهْلِكُ.**

**باب ۲۸۴:** آیت: و قُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَ زَهَقَ الْبَاطِلُ: د الله تعالي قول: اے نبي ورته اُووایه: حق راغے او باطل لاړ، بیشکه باطل خو د تلو څیز دے. "زهق" معني دي هلاک شو، نابود شو.

**۷۰۶:** حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ وَ حَوْلَ الْبَيْتِ سِتُّوْنَ وَ ثَلٰثُ مِائَةِ نُصُبٍ فَجَعَلَ يَطْعَنُهَا بِعُوْدٍ فِيْ يَدِهٖ وَ يَقُوْلُ جَآءَ الْحَقُّ وَ زَهَقَ زَهُوْقًا جَآءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيْدُ.

**۷۰۶:** حمیدي. سفیان. ابن ابي نجیح. مجاهد. ابو معمر. حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روایت کوي. د هغه بیان دے، د مکے د فتح په وخت چه حضور صلي الله علیه وسلّم مکے ته راغلو، نو کعبه کښې درے سوه شپیته بُتان پراته وو، د حضور صلي الله علیه وسلّم په لاس کښې یو لرګے وو. حضور صلي الله علیه وسلّم هغے لرګي سره هر یو بُت له ګزار ورکړلو، او پورته ذکر شوے آیت به ئے تلاوت کولو، او دا آیت به ئے هم نوستلو جاء الحق وما یبدئ الباطل وما یعید: حق راغے باطل ورک شو، او اوس به باطل واپس نه راځي.

**باب ۲۸۵: وَ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ.**

**باب ۲۸۵:** وَ یَسْئَلُوْنَکَ عَنِ الرُّوْحِ: د الله تعالي قول، چه تاته د روح متعلق پُښتنه کوي.

**۷۰۷:** حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَيْنَا اَنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَرْثٍ وَهُوَ مُتَّكِئٌ عَلٰى عَسِيْبٍ اِذْ مَرَّ الْيَهُوْدُ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ سَلُوْهُ عَنِ الرُّوْحِ فَقَالَ مَا رَاْيُكُمْ اِلَيْهِ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ لَا يَسْتَقْبِلُكُمْ بِشَيْءٍ

**۷۰۷:** عمر بن حفص. حفص بن غیاث. اعمش. ابراهیم. علقمه. حضرت عبدالله بن مسعود نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم سره یو پټي (کهیت) کښې موجود ووم. حضور صلي الله علیه وسلّم د قجورے اونے سره ډډه وهلے وه. دے کښې یو څو یهودیان په هغه طرف تیر شو، او وئیلې راځئ چه د دهٔ (حضورؐ) نه د روح متعلق تپوس او کړو، نو بعضو اووے، څهٔ له تپوس کوئے؟ آیا دے (حضورؐ) به ستاسو موافق جواب در کړي، بعضو اووے چه هسے نه داسے جواب در کړي چه تاسو ئے بد او ګڼئ. آخر هغوي د حضور

تَكْرَهُوْنَهُ فَقَالُوْا سَلُوْهُ فَسَأَلُوْهُ عَنِ الرُّوْحِ فَأَمْسَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِمْ شَيْئًا فَعَلِمْتُ اَنَّهُ يُوْحٰى اِلَيْهِ فَقُمْتُ مَقَامِيْ فَلَمَّا نَزَلَ الْوَحْيُ قَالَ وَ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ وَمَا اُوْتِيْتُمْ مِنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا.

صلي اللّٰه علیه وسلّم نه تپوس او کۀ. حضور صلي الله علیه وسلّم خاموش ناست وو. زۀ پوهه شوم چه وحي به نازلیږي. ما انتظار کولو کوم وخت چه وحي ختم شوه نو حضور صلي الله علیه وسلّم دا آیت تلاوت کړلو: و یسئلونک عن الروح الخ: اے رسولهٔ خلق تا نه دَ روح متعلق تپوس کوي ورته اووایه روح خما دَ رب دَ حکم نه دے او تاسو ته دَ علم نه ډیره لږه حصه درکړے شوے ده.

### بَابُ ۲۸۶: قَوْلِهِ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا.

باب ۲۸۶: آیت: وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ: دَ الله تعالي قول مونځ مۀ بالکل په زوره کوه او نۀ بالکل رو بلکه درمیاني آواز سره ئے کوه.

۴۰۸: حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا قَالَ نَزَلَتْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُخْتَفٍ بِمَكَّةَ كَانَ اِذَا صَلّٰى بِاَصْحَابِهٖ رَفَعَ صَوْتَهُ بِالْقُرْاٰنِ فَاِذَا سَمِعَ الْمُشْرِكُوْنَ سَبُّوا الْقُرْاٰنَ وَمَنْ اَنْزَلَهُ وَمَنْ جَآءَ بِهٖ فَقَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى لِنَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ اَيْ بِقِرَاءَ تِكَ فَيَسْمَعُ الْمُشْرِكُوْنَ فَيَسُبُّوا الْقُرْاٰنَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا عَنْ اَصْحَابِكَ فَلَا تُسْمِعُهُمْ وَ ابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا.

۴۰۸: یعقوب بن ابراهیم. هشیم. ابو بشر. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي دَ هغهٔ بیان دے دا آیت: وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا الخ: مکه کښې هغه وخت نازل شو چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم به مونځ او چت آواز سره کولو. مشرکانو به چه آوریدلو نو قرآن دَ دے نازونکي او په چا چه نازلیدلو تولو ته به ئے بدرد وئیلے نو اللّٰه تعالي په خپل رسول دا آیت نازل کۀ: وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا الآية دا چه قرأت نه زیات په او چت آواز پکار دے چه مشرکین ئے واوري او بکواس شروع کړي او نه دومره رو پکار دے چه ورسره خلق (یعني مقتدیان) ئے هم وانه ریدے شي بلکه قرأت درمیاني آواز سره پکار دے.

۴۰۹: حَدَّثَنِيْ طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ

۴۰۹: طلق بن غنام. زائده. هشام. عروه.

حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهَا قَالَتْ اُنْزِلَ ذٰلِكَ فِي الدُّعَآءِ.

بي بي عائشې نه روايت كوي، هغې اووې، دا آيت دَ دُعا متعلق نازل شوې دې، چه دُعا درمياني آواز سره پكار ده.

## سُوْرَةُ الْكَهْفِ

## دَ سورۀ كَهف تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ تَقْرِضُهُمْ تَتْرُكُهُمْ وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ ذَهَبٌ وَّ فِضَّةٌ وَ قَالَ غَيْرُهُ جَمَاعَةُ الثَّمَرِ بَاخِعٌ مُهْلِكٌ اَسَفًا نَدَمًا اَلْكَهْفُ الْفَتْحُ فِي الْجَبَلِ وَالرَّقِيْمُ. اَلْكِتَابُ مَرْقُوْمٌ مَكْتُوْبٌ مِنَ الرَّقْمِ رَبَطْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَلْهَمْنَا هُمْ صَبْرًا لَوْلَا اَنْ رَبَطْنَا عَلٰى قَلْبِهَا شَطَطًا اِفْرَاطًا مَرْفَقًا كُلُّ شَيْءٍ اِرْتَفَقْتَ بِهِ تَزَاوَرُ تَمِيْلُ مِنَ الزَّوْرِ وَالْاَزْوَرُ اَلْاَمْيَلُ فَجْوَةٌ مُتَّسَعٌ وَالْجَمِيْعُ فَجَوَاتٌ وَّ فِجَآءٌ مِثْلُ زَكْوَةٍ وَّ رِكَاءُ الْوَصِيْدُ الْفِنَآءُ جَمْعُهُ وَ صَائِدُ وَ وُصُدٌ وَّ يُقَالُ الْوَصِيْدُ الْبَابُ الْمُؤْصَدَةُ مُطْبَقَةٌ اَصَدَ الْبَابَ وَ اَوْصَدَ بَعَثْنَاهُمْ اَحْيَيْنَاهُمْ اَزْكٰى اَكْثَرُ وَ يُقَالُ اَحَلُّ وَ يُقَالُ اَكْثَرُ رَيْعًا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِمْ لَمْ تَنْقُصْ وَ قَالَ سَعِيْدٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ الرَّقِيْمُ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد واني "تقرضهم" معني، دَ هغوي نه پريكولې شي. "و كان له ثمر" مطلب سره او سپين (زر) دي. بعضې واني، مراد ترې ميوه ده. "باخع" معني هلاک كونكې. "اسفا" ندامت. "كهف" غر كښې غار. "الرقيم" مرقوم يعني ليكلې شوې دَ رقم نه دې. "ربطنا على قلوبهم" مونږ دَ هغوي په زړونو كښې صبر اوغرځولو، څنګه چه "ربطنا على قلبها" دلته هم صبر مراد دې. "شططا" معني دَ حد نه تيريدل. "يرفق" هغه څيز چه په هغې تكيه لږوي. "تزور" زور نه مشتق دې، يعني خكته كيدلو به (جهک جاتا تها). او دَ دې نه "ازور" جوړ شوې دې، ډير خكته. "فجوة" جمع فجوات ده. "فِجَاء" هم راځي، څنګه چه دَ "ركوة" "ركاء" ده "وصيد" معني صحن. دې جمع وصاء، او وُصُدٌ ده. څنې واني دَ "وصيد" معني دروازه. "موصد" بنده شوې. عرب واني "اصد الباب" او "اوصد الباب" يعني دروازه ئې بنده كړه. "بعثناهم" معني مونږ ژوندي كړل. "ازكى طعاما" دَ بستي والو عام خوراک، يا هغه چه حلال وي يا چه پوخ شي، نو زيات شي. "اكلها" دَ هغې ميوه دَ ابن عباسؓ قول دې. "لم تظلم" معني دي، ميوه كمه نه شوه. سعيد ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه "رقيم" يوه تختي وه، چه دَ تانبې وه، په

اللَّوْحُ مِنْ رَّصَاصٍ كَتَبَ عَامِلُهُمْ أَسْمَاءَهُمْ ثُمَّ طَرَحَهُ فِيْ خَزَانَتِهِ فَضَرَبَ اللَّهُ عَلٰى اٰذَانِهِمْ فَنَامُوْا وَ قَالَ غَيْرُهُ وَ اَلَتْ تَئِلُ تَنْجُوْا وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مَوْئِلًا مَحْرِزًا لَّا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَمْعًا لَّا يَعْقِلُوْنَ.

هغې حاكم وخت د اصحاب كهف نومونه كنده كړل او خزانه كښې جمع كړل. "ضرب الله على اذانهم" يعني اُوده شو. نور وائي چه "مونلا" جائے پناه، د پناه ځائے او دا د آل نيل نه جوړ دے. مجاهد وائي "مونل" محفوظ مقام. "لا يستطيعون سمعا" يعني هغوي د عقل نه كار نه آخلي.

بَابٌ ٢٨٧: قَوْلِهٖ وَ كَانَ الْإِنْسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا.

باب ٢٨٧: آيت: و كان الانسان اكثر شئ جدلا: د الله تعالى قول: انسان اكثرو څيزونو كښې جګړه كونكے دے.

٤٧١٠: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ سَعْدٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ اَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ اَخْبَرَهُ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَرَقَهُ وَ فَاطِمَةَ قَالَ اَلَا تُصَلِّيَانِ رَجْمًا بِالْغَيْبِ لَمْ يَسْتَبِنْ فُرُطًا نَدَمًا سُرَادِقُهَا مِثْلُ السُّرَادِقِ وَالْحُجْرَةِ الَّتِيْ تَطِيْفُ بِالْفَسَاطِيْطِ يُحَاوِرُهُ مِنَ الْمُحَاوَرَةِ لٰكِنَّا هُوَ اللّٰهُ رَبِّيْ اَيْ لٰكِنْ اَنَا هُوَ اللّٰهُ رَبِّيْ ثُمَّ حَذَفَ الْاَلِفَ وَ اَدْغَمَ اِحْدَى النُّوْنَيْنِ فِي الْاُخْرٰى زَلَقًا لَا يَثْبُتُ فِيْهِ قَدَمٌ هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ مَصْدَرُ الْوَلِيِّ

٤٧١٠: علي بن عبدالله. يعقوب بن ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. علي بن حسين. حسين بن علي. حضرت عليّ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم ما او بي بي فاطمې پله د د شپې تشريف راوړلو، او وې فرمائيل: تاسو د تهجد مونځ نه كوئ. ما عرض او كړه: يا رسول الله مونږ الله پانه سولو. دے خبرے آوريدو سره حضور صلي الله عليه وسلم واپس شولو، او دا آيت ئے لوستلو: و كان الانسان اكثر شئ جدلا: "رجما بالغيب" معنى دى: ليدلے آوريدلے خبره كول. "فرطا" د حد نه زيات تيرے. "ندما" افسوس. "سرادقها" پردے او قناتونه، ګويا اُوربه د پردو او قناتونو په شان ترې چاپيره وي. "يحاوره" محاورے نه مشتق دے. ګفتګو يعني خبرے اترے كول: تكرار كول. "لكنا هو الله ربي" خو خما رب هغه الله دے. د دے اصل دا دے چه "لكن انا هو الله ربي" الف ئے اُوغرځولو، او نون ئے نون كښې ادغام كړلو. "زلقا" خويدانړے چه هغې سره قدم او خويږي، "هنالك

عُقُبًا عَاقِبَةٌ وَ عُقْبَى وَ عُقْبَةٌ وَاحِدٌ وَ هِيَ الْاٰخِرَةُ قِبَلًا وَ قُبُلًا وَ قَبَلًا اسْتِئْنَافًا لِيُدْحِضُوْا لِيُزِيْلُوْا الدَّحْضُ الزَّلَقُ.

"الولاية" ولاية د ولي مصدر دے٬ په معني د وارث "عقبا" عاقبة٬ عقبى٬ عقبة٬ د ټولو معني د آخرت دي. "ليدحضو" معني چه وړے غورلوي. دا د "دحض" نه وتلے دے٬ يعني ذ حق نه ئے اخوا کړي.

بَابٌ ٢٨٨: قَوْلِهٖ وَ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِفَتٰهُ لَآ اَبْرَحُ حَتّٰى اَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ اَوْ اَمْضِيَ حُقُبًا زَمَانًا وَ جَمْعُهٗ اَحْقَابٌ.

باب ٢٨٨: آيت: وَ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِفَتٰهُ لَآ اَبْرَحُ: د الله تعالي قول٬ کوم وخت چه موسیٰ خپل خادم ته اووے٬ زۀ به دغسے روان يم٬ څو پورے چه ذ دوو دريابونو سنگهم ته اونۀ رسم يا څه زمانے پورے به دغسے روان يم. "حُقُبًا" اوږده زمانه. "احقاب" ذ هغے جمع ده.

٤٧١١: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ نَوْفًا الْبَكَالِيَّ يَزْعَمُ اَنَّ مُوْسٰى صَاحِبَ الْخَضِرِ لَيْسَ هُوَ مُوْسٰى صَاحِبَ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَذَبَ عَدُوُّ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ اُبَيُّ كَعْبٍ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ مُوْسٰى قَامَ خَطِيْبًا فِيْ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ فَسُئِلَ اَيُّ النَّاسِ اَعْلَمُ فَقَالَ اَنَا فَعَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ اِذْ لَمْ يَرُدَّ الْعِلْمَ اِلَيْهِ فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلَيْهِ اِنَّ لِيْ عَبْدًا بِمَجْمَعِ الْبَحْرَيْنِ هُوَ اَعْلَمُ مِنْكَ قَالَ مُوْسٰى

٤٧١١: حميدي. سفيان. عمرو بن دينار. سعيد بن جبير نه روايت کوي٬ ما ابن عباسؓ ته اووے٬ نوف بکالي وائي٬ چه خضر سره ملاقات کونکے موسیٰ بني اسرائيلو واله موسیٰ نۀ وو ابن عباسؓ وائي٬ هغه ذ الله دشمن دروغ وائي. ماته ابي بن کعب بيان اوکۀ٬ ما خپله د حضور صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلے دي٬ موسیٰ چه ذ بني اسرائيلو نبي وو ذ هغۀ نه تپوس اوشو٬ چه ټولو خلقو کښې ذ ټولو نه زيات عالم څوک دے٬ نو حضرت موسیٰ جواب ورکۀ٬ زۀ يم٬ الله دا خبره خوښه نۀ کړه٬ او عتاب ئے اوفرمائيلو٬ هغۀ له داسے وئيل پکار وو٬ چه الله ښۀ پوهيږي. بيا الله هغه طرف ته وحي اوليږله٬ او وے فرمائيل٬ څمونږ يَو بنده ذ دوو سمندرونو ذ يرخائے کيدو په مقام دے٬ هغه تا نه زيات علم لري. موسیٰ عرض اوکۀ٬ اے مولا٬ زۀ به هغۀ ته څنگه اورسم. ورته اوفرمائيلے شو٬ يَو کب خپلے تهيلۍ کښې واچوه٬ کوم خائے چه دا کب ورک شي نو پوه شه٬ چه هغه بنده هلته

يَا رَبِّ فَكَيْفَ لِيُ بِهٖ قَالَ تَأْخُذُ مَعَكَ
حُوْتًا فَتَجْعَلُهُ فِيُ مِكْتَلٍ فَحَيْثُمَا
فَقَدْتَّ الْحُوْتَ فَهُوَ ثَمَّ فَاَخَذَ حُوْتًا
فَجَعَلَهُ فِيُ مِكْتَلٍ ثُمَّ انْطَلَقَ وَانْطَلَقَ
مَعَهُ فَتَاهُ يُوْشَعُ بْنُ نُوْنٍ حَتّٰى اِذَا اَتَيَا
الصَّخْرَةَ وَضَعَا رُءُ وْسَهُمَا فَنَامَا
وَاضْطَرَبَ الْحُوْتُ فِي الْمِكْتَلِ فَخَرَجَ
مِنْهُ فَسَقَطَ فِي الْبَحْرِ فَاتَّخَذَ سَبِيْلَهُ
فِي الْبَحْرِ سَرَبًا وَ اَمْسَكَ اللّٰهُ عَنِ
الْحُوْتِ جِرْيَةَ الْمَاءِ فَصَارَ عَلَيْهِ مِثْلَ
الطَّاقِ فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ نَسِيَ صَاحِبُهُ اَنْ
يُخْبِرَهُ بِالْحُوْتِ فَانْطَلَقَا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا
وَ لَيْلَتَهُمَا حَتّٰى اِذَا كَانَ مِنَ الْغَدِ قَالَ
مُوْسٰى لِفَتَاهُ اٰتِنَا غَدَآءَ نَا لَقَدْ لَقِيْنَا
مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا قَالَ وَلَمْ يَجِدْ
مُوْسَى النَّصَبَ حَتّٰى جَاوَزَ الْمَكَانَ
الَّذِيْ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖ فَقَالَ لَهُ فَتَاهُ اَرَاَيْتَ
اِذْ اَوَيْنَا اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ
الْحُوْتَ وَمَا اَنْسَانِيْهُ اِلَّا الشَّيْطَانُ اَنْ
اَذْكُرَهُ وَاتَّخَذَ سَبِيْلَهُ فِي الْبَحْرِ عَجَبًا
قَالَ فَكَانَ لِلْحُوْتِ سَرَبًا وَلِمُوْسٰى وَ
لِفَتَاهُ عَجَبًا فَقَالَ مُوْسٰى ذٰلِكَ مَا كُنَّا
نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلٰى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا
يَقُصَّانِ اٰثَارَهُمَا حَتّٰى اِنْتَهَيَا اِلَى
الصَّخْرَةِ فَاِذَا رَجُلٌ مُسَجًّى ثَوْبًا فَسَلَّمَ
عَلَيْهِ مُوْسٰى فَقَالَ الْخَضِرُ وَ اَنّٰى

دے. حضرت موسىٰ کَب تهيلۍ کښې کيښودلو، او روان
شولو. هغوي سره يو خلمے يوشع بن نون هم وو، کوم
وخت چه د درياب غاړے ته اورسيدل، نو يو کاڼړي سره
ئے سر اولګولو، اُوده شول. کَب د تهيلۍ نه راؤدانګل او
په خويدو خويدو درياب ته لاړلو. موسىٰ چه د خوب نه
راپاسيد، نو ملګري ورته هم دا حال اونۀ وے، او مخ په
وړاندے روان شو. کَب چه درياب ته تلے وو، الله تعالىٰ
د هغے خائے نه د درياب اوبه منع کړے، او يوه نالي شان
ئے جوړ کړه. غرض حضرت موسىٰ خپل ملګري سره
يوه ورځ شپه روان وو، په دوئمه ورځ حضرت موسىٰ
يوشع ته اووے، زۀ ستړے شوم، ناشته خو راوړه. حضور
صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل: کوم حد چه الله ښودلے
وو، هغے خائے پورے ستړے والے ئے نۀ وو محسوس
کړے. دغه وخت يوشع ته راياد شو، او هغۀ اووے چه
دے کاڼړي سره هغه کب ورک شوے دے. خو ما نه
شيطان دا خبره هيره کړله، چه تاته ئے ذکر اوکړم. هغه
په عجيبه طريقه درياب ته ورګډ شو. او خپله لار ئے
جوړه کړه، او هغه نښه ئے ورته اوښودله، چه حضرت
موسىٰ او يوشع ته ډيره تعجّب خيزه معلومه شوه، نو
دواړه هغے خائے ته د قدم نښه ليدو سره واپس شو. او
کوم وخت چه موسىٰ هغے کاڼړي ته راورسيدلو، نو وے
ليدل چه يو سړي د خان نه کپړا راچاپيره کړے موجود
دے، حضرت موسىٰ هغۀ ته سلام اوکه، خضرؑ اووے چه
دے خائے کښې سلام د کومه راغے خضرؑ تپوس اوکۀ، څۀ
نوم دِ دے، هغۀ ورته اوفرمائيل، څما نوم موسىٰ دے، هغۀ
تپوس اوکۀ، آيا د بني اسرائيلو نبي، موسىٰ ئے، حضرت

بِأَرْضِكَ السَّلَامُ قَالَ اَنَا مُوْسٰى قَالَ
مُوْسٰى بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ قَالَ نَعَمْ اَتَيْتُكَ
لِتُعَلِّمَنِيْ مِمَّا عُلِّمْتُ رُشْدًا قَالَ اِنَّكَ
لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا يَا مُوْسٰى اِنِّيْ
عَلٰى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللّٰهِ عَلَّمَنِيْهِ لَا
تَعْلَمُهُ اَنْتَ وَ اَنْتَ عَلٰى عِلْمٍ مِنْ
عِلْمِ اللّٰهِ عَلَّمَكَ اللّٰهُ لَا اَعْلَمُهُ فَقَالَ
مُوْسٰى سَتَجِدُنِيْ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ صَابِرًا
وَّلَا اَعْصِيْ لَكَ اَمْرًا فَقَالَ لَهُ الْخَضِرُ
فَاِنِ اتَّبَعْتَنِيْ فَلَا تَسْئَلْنِيْ عَنْ شَيْءٍ
حَتّٰى اُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا فَانْطَلَقَا
يَمْشِيَانِ عَلٰى سَاحِلِ الْبَحْرِ فَمَرَّتْ
سَفِيْنَةٌ فَكَلَّمُوْهُمْ اَنْ يَّحْمِلُوْهُمْ
فَعَرَفُوا الْخَضِرَ فَحَمَلُوْهُ بِغَيْرِ نَوْلٍ فَلَمَّا
رَكِبَا فِي السَّفِيْنَةِ لَمْ يَفْجَأْ اِلَّا
وَالْخَضِرُ قَدْ قَلَعَ لَوْحًا مِنْ اَلْوَاحِ
السَّفِيْنَةِ بِالْقَدُوْمِ فَقَالَ لَهُ مُوْسٰى
قَوْمٌ حَمَلُوْنَا بِغَيْرِ نَوْلٍ عَمَدْتَ اِلٰى
سَفِيْنَتِهِمْ فَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ اَهْلَهَا لَقَدْ
جِئْتَ شَيْئًا اِمْرًا قَالَ اَلَمْ اَقُلْ اِنَّكَ لَنْ
تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِيْ
بِمَا نَسِيْتُ وَلَا تُرْهِقْنِيْ مِنْ اَمْرِيْ
عُسْرًا قَالَ وَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَتِ الْاُوْلٰى مِنْ
مُوْسٰى نِسْيَانًا قَالَ وَ جَآءَ عُصْفُوْرٌ
فَوَقَعَ عَلٰى حَرْفِ السَّفِيْنَةِ فَنَقَرَ فِي

موسیٰ ورته اوفرمائیل' او' زهٔ موسیٰ د بني اسرائیلو نبي
یم. او تاسوله راغلے یم' چه ماته خپل علم اوښائے
حضرت خضرؑ ورته اووے' تهٔ به ما سره صبر اونهٔ کړے
شے. حضرت موسیٰ ورته اوفرمائیل' که خدائے ته
منظوره وي' نو تاسو به ما صابره بیا مومنے زهٔ به هیڅ
خبره کښې ستاسو خلاف نهٔ کوم. حضرت خضرؑ ورته
اوفرمائیل' که تهٔ ماسره پاتے کیدل غواړے نو ګوره' زهٔ
چه هر څه کار کوم' ته به هغه پورے تپوس نهٔ کوے' څو
پورے چه زهٔ درته خپله اونهٔ وائیم' دے نه پس حضرت
موسیٰ او خضرؑ د دریاب په غاړه غاړه روان شو. یوه
کشتئ ئے په نظر راغله. خضرؑ ماڼګیانو ته اووئیل' چه
مونږ کشتئ کښې کینوئے' هغوي خضرؑ اوپیژندلو' کشتئ
کښې ئے کینول' او څهٔ معاوضه ئے ترے وانخسته. هر
کله چه حضرت موسیٰ او خضرؑ کشتئ کښې کیناستل' نو
خضرؑ تبر سره د کشتئ یوه تخته اووهله. موسیٰ چه دا
کیفیت اولید' نو وے وئیل' دوي خو مونږ مفت کینولے
یو' او تا ورله کشتئ ماته کړه' ټول خلق به ډوب شي دا
خو ډیر بدکار اوشولو. خضرؑ ورته اوفرمائیل' ګوره ما
درته وئیلے وو' چه زهٔ څهٔ کوم' په هغے صبر کوه' خو تا
صبر اونهٔ کړے شو. حضرت موسیٰ ورته اوفرمائیل بنهٔ
ده. دا خل معافي راکړه' مخکښې د پاره به داسے نهٔ کوم'
ماته هیره اوشوله. رسول الله صلي الله علیه وسلم
فرمائي' دا خبره د موسیٰ علیه السلام نه په هیره اوشوله.
دے نه پس یو چرچڼړه راغله' د کشتئ په غاړه کیناسته.
او خپلے مخوکے سره ئے اوبه اوڅکلے حضرت خضرؑ
اووے اے موسیٰ' خما او ستا علم د الله تعالیٰ مخکښې

الْبَحْرِ نَقْرَةً فَقَالَ لَهُ الْخَضِرُ مَا عِلْمِيْ وَ عِلْمُكَ مِنْ عِلْمِ اللّٰهِ اِلَّا مِثْلُ مَا نَقَصَ هٰذَا الْعُصْفُوْرُ مِنْ هٰذَا الْبَحْرِ ثُمَّ خَرَجَا مِنَ السَّفِيْنَةِ فَبَيْنَمَا هُمَا يَمْشِيَانِ عَلَى السَّاحِلِ اِذْ اَبْصَرَ الْخَضِرُ غُلَامًا يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ فَاَخَذَ الْخَضِرُ رَاْسَهُ بِيَدِهٖ فَقَتَلَهُ فَقَالَ لَهُ مُوْسٰى اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُكْرًا قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا قَالَ وَ هٰذَا اَشَدُّ مِنَ الْاُوْلٰى قَالَ اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِيْ قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا فَانْطَلَقَا حَتّٰى اِذَا اَتَيَا اَهْلَ قَرْيَةِ ۨاسْتَطْعَمَا اَهْلَهَا فَاَبَوْا اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ قَالَ مَائِلٌ فَقَامَ الْخَضِرُ فَاَقَامَهُ بِيَدِهٖ فَقَالَ مُوْسٰى قَوْمٌ اَتَيْنَاهُمْ فَلَمْ يُطْعِمُوْنَا وَلَمْ يُضَيِّفُوْنَا لَوْ شِئْتَ لَا تَّخَذْتَ عَلَيْهِ اَجْرًا قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ وَ بَيْنِكَ اِلٰى قَوْلِهٖ ذٰلِكَ تَاْوِيْلُ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ عَلَيْهِ صَبْرًا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدِدْنَا اَنَّ مُوْسٰى كَانَ صَبَرَ حَتّٰى يَقُصَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا مِنْ خَبَرِهِمَا قَالَ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقْرَاُ وَ كَانَ

دومره دے، څومره چه دے مرغنے په مخوکه اوبه واخستلے. دے نه پس ذ کشتۍ نه راکوز شولو. او ذ هغې درياب په غاړه روان شولو. لار کښې حضرت خضرؑ يو ماشوم چه نورو ماشومانو سره ئے لوبے کولے راونيولو، او ذ هغه سر ئے ذ جسم نه جُدا کړلو. موسٰي عليه السلام ورته اووے، تا بلا وجے يو بچے دا شان قتل کړلو، دا خو دے ډير بد کار اوکړو. خضرؑ ورته اووے، ما خو درته د مخکښې نه وئيلے، چه ته ماسره صبر نه شے کولے. د دے حديث يو راوي سفيان وائي، چه دا کار ذ وړمبني کار نه هم زيات سخت وو، موسٰي عليه السلام ورته اوفرمائيل. بنه ده اوس به زهٔ هيڅ تپوس نه کوم، او که اوکړم، نو ما خان سره مهٔ ساته، بيشکه تا بنهٔ صبر اوکړلو. دے نه پس دواړه حضرات يو کلي ته ورغلل. ذ کلي والو نه ئے ډوډئ اوغښتله، خو هغوي ذ څهٔ خوړلو نه انکار اوکه. هغے کلي کښې خضر عليه السلام ته يو ديوال په نظر راغے. چه غُرځيدو ته نزدے وو. خضر عليه السلام هغه خپل لاس سره نيغ کړلو، موسٰي عليه السلام ورته اووے، اول خو کلي والو خمونږ ميلمستيا اونهٔ کړله. بيا تا ورسره دا ښيګړه اوکړه، چه ذ هغوي ديوال دے نيغ کړلو، څهٔ مزدوري ترے آخستل پکار وو: ذلک تاويل مالم تستطع عليه صبرًا الخ. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. ماته دا بنهٔ لږي، چه موسٰي عليه السلام ذ خضرؑ په کارونو صبر کړے وے، او دا شان اللّٰه تعالٰي ذ هغه نورو کارونو هم خبر راکړے وے. سعيد بن جبير وائي. حضرت ابن عباسؓ دے آيت کښې: وَ كَانَ وراهم الخ په ځائے "امامهم" او ذ "سفينه" مخکښې ئے

اَمَامَهُمْ مَلِكٌ يَأْخُذُ كُلَّ سَفِيْنَةٍ صَالِحَةٍ غَصْبًا وَّ كَانَ يَقْرَأُ وَ اَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ كَافِرًا وَّ كَانَ اَبَوَاهُ مُؤْمِنِيْنَ.

"صالحة" لوستلو. او دا آیت: و اما الغلام فكان ابواه مومنين الخ دا شان لوستلو: و اما الغلام فكان كافرا و كان ابواه مؤمنين الخ.

بَاب ۲۸۹: قَوْلِهِ فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوْتَهُمَا فَاتَّخَذَ سَبِيْلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا مَذْهَبًا يَسْرُبُ يَسْلُكُ وَ مِنْهُ سَارِبٌ بِالنَّهَارِ.

باب ۲۸۹: آيت: فلما بلغا مجمع بينهما: ذ الله تعالى قول، كوم وخت چه مجمع البحرين ته اورسيدل، نو خپل كب ترے هير شولو، او كب درياب كښ د خپلو تلو نښه جوړه كړله. "سربًا" ذ تلو نښه "يسرب" معني ذ لارے راخي، "سارب بالنّهار" دے نه وتے دے، يعني ذ ورځے لار وهونكے.

۷۱۲: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يَعْلَى بْنُ مُسْلِمٍ وَعَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ يَزِيْدُ اَحَدُهُمَا عَلٰى صَاحِبِهِ وَ غَيْرُهُمَا قَدْ سَمِعْتُهُ يُحَدِّثُهُ عَنْ سَعِيْدٍ قَالَ اَنَا لَعِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيْ بَيْتِهِ اِذْ قَالَ سَلُوْنِيْ قُلْتُ اَيْ اَبَا عَبَّاسٍ جَعَلَنِيَ اللّٰهُ فِدَاكَ بِالْكُوْفَةِ رَجُلٌ قَاصٌّ يُقَالُ لَهُ نَوْفٌ يَزْعَمُ لَيْسَ بِمُوْسٰى بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ اَمَّا عَمْرٌو فَقَالَ لِيْ قَالَ قَدْ كَذَبَ عَدُوُّ اللّٰهِ وَ اَمَّا يَعْلٰى فَقَالَ لِيْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنِيْ اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

۷۱۲: ابراهيم بن موسى. هشام بن يوسف. ابن جريج. يعلي بن مسلم. عمرو بن دينار. سعيد بن جبيرؓ نه روايت كوي. مونږ ابن عباسؓ سره ذ هغه كور كښ ناست وو، هغه اوفرمائيل چه مانه تپوس اوكړئ ما ذ هغهٔ نه تپوس اوكهٔ، الله دے ما په تاسو قربان كړي، ذ كوفے ذ يو واعظ نوف بيان دے چه موسىٰ ذ بني اسرائيلو نبي بل وو، او كوم چه خضر سره پاتے وو، هغه بل وو، آيا دا درست ده ابن عباسؓ اووے، ذ خدائے دغے دشمن دروغ ونيلے دي. ذ ابن جريج بيان دے، يعلي بن مسلم ماته كوم حديث بيان كهٔ، هغے كښ دا وو، چه ابن عباسؓ سعيد ته دا اووے، چه ذ خدائے هغے دشمن دروغ اووے، بلكه ابن عباسؓ سعيد ته دا ونيلے وو، چه ابي بن كعب ماته ونيلے وو، حضور صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، يو ورځے موسىٰ وعظ اوكهٔ په خلقو ذ هغے اثر اوشو، او ډير په ژړا شو، نو يو سړي عرض اوكهٔ، اے موسىٰ ذ الله پيغمبره، آيا دے سرزمين كښ ستاسو نه هم زيات پوهيدونكے څوک عالم موجود دے موسىٰ عليه السلام

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
مُوسٰىٓ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ ذَكَّرَ النَّاسَ
يَوْمًا حَتّٰى اِذَا فَاضَتِ الْعُيُوْنُ
وَرَقَّتِ الْقُلُوْبُ وَلّٰى فَاَدْرَكَهُ
رَجُلٌ فَقَالَ اَىْ رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلْ
فِى الْاَرْضِ اَحَدٌ اَعْلَمُ مِنْكَ قَالَ لَا
فَعَتَبَ عَلَيْهِ اِذْ لَمْ يَرُدَّ الْعِلْمَ اِلَى اللّٰهِ
قِيْلَ بَلٰى قَالَ اَىْ رَبِّ فَاَيْنَ قَالَ
بِمَجْمَعِ الْبَحْرَيْنِ قَالَ اَىْ رَبِّ اجْعَلْ
لِّىْ عَلَمًا اَعْلَمُ ذٰلِكَ بِهٖ فَقَالَ لِىْ عَمْرٌو
وَ قَالَ حَيْثُ يُفَارِقُكَ الْحُوْتُ وَ قَالَ
لِىْ يَعْلٰى خُذْ نُوْنًا مَيِّتًا حَيْثُ يُنْفَخُ
فِيْهِ الرُّوْحُ فَاَخَذَ حُوْتًا فَجَعَلَهٗ فِىْ
مِكْتَلٍ فَقَالَ لِفَتَاهُ لَا اُكَلِّفُكَ اِلَّا اَنْ
تُخْبِرَنِىْ بِحَيْثُ يُفَارِقُكَ الْحُوْتُ قَالَ
مَا كَلَّفْتَ كَثِيْرًا فَذٰلِكَ قَوْلُهٗ جَلَّ ذِكْرُهٗ
وَ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِفَتَاهُ يُوْشَعَ بْنَ نُوْنٍ
لَيْسَتْ عَنْ سَعِيْدٍ قَالَ فَبَيْنَمَا هُوَ فِىْ
ظِلِّ صَخْرَةٍ فِىْ مَكَانٍ ثَرْيَانَ اِذْ
تَضَرَّبَ الْحُوْتُ وَ مُوْسٰى نَائِمٌ فَقَالَ
فَتَاهُ لَا اُوْقِظُهٗ حَتّٰى اِذَا اسْتَيْقَظَ نَسِىَ
اَنْ يُخْبِرَهٗ وَ تَضَرَّبَ الْحُوْتُ حَتّٰى
دَخَلَ الْبَحْرَ فَاَمْسَكَ اللّٰهُ عَنْهُ جِرْيَةَ
الْبَحْرِ حَتّٰى كَاَنَّ اَثَرَهٗ فِىْ حَجَرٍ وَ
حَلَّقَ بَيْنَ اِبْهَامَيْهِ وَاللَّتَيْنِ تَلِيَانِهِمَا

ورته اوفرمائيل، نه، ذَ اللّٰه تعالیٰ دا خبره خوښه نهٔ شوه،
څکه چه هغهٔ دا اُو، نهٔ وے چه اللّٰه زيات پوهيږي، نو اللّٰه
تعالیٰ ارشاد اوفرمائيلو اے موسیٰ، خمونږ بعضے بندګان
ستا نه زيات علم والا دي. موسیٰ عليه السلام عرض
اوکړ، اے مولا، ماته ذَ هغوي پته اوښائے، چه زهٔ ورله
ورشم، او علم ترے حاصل کړم. ابن جريج وائي، عمرو
بن دينار ماته دا شان اُووے، ذَ اللّٰه ذَ طرف نه ارشاد اوشو،
ذَ هغهٔ پته داده، کوم وخت چه ستا کَب ورک شي، هلته
به تهٔ خضر بيامومے، ذَ يعلي بيان دے، اللّٰه تعالیٰ داسے
فرمائيلے وو، يو مړ کب واخله، کوم ځائے چه هغه ژوندے
شي بس هغه ځائے به هغه سړے (يعني خضرؑ) تهٔ بيامومے
نو موسیٰ عليه السلام يو کب تهيلۍ کښې واچولو، او خپل
خادم يوشع ئے ځان سره کړلو، او هغهٔ ته ئے اووے، تاته
صرف دومره تکليف درکوم، چه کوم ځائے دا کب
ورک شي، نو ماته ياد کړه. يوشع عرض اوکړ، دا څهٔ
غټه خبره نه ده. ذَ سعيد روايت کښې ذَ يوشع بن نون نوم
نشته. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هر کله چه
موسیٰ عليه السلام خپل ملګري سره ذَ درياب غاړے
سره ذَ کاڼړي يو چتان ته اورسيدلو، نو موسیٰ اوده شولو،
نو کب درياب ته اودانګل، هغے خلمي ملګري خيال
اوکړ، چه بيدارول ئے نهٔ دي پکار، چه راپاسي، نو حال به
ورته اووايم، خو ذَ هغهٔ ذَ پاسيدو نه پس ترے هير شولو،
اللّٰه ذَ کَب ذَ تلو په وجه اوبه منع کړلے، او اُوبو کښې ذَ
سُرنګ په شان يو خاص نښه جوړه شوه. راوي وائي،
عمرو بن دينار دا وئيلے وو، چه هغے کَب اُوبو کښې يو
سوراخ شان پرينودلو. بيا عمرو، ذَ خپلو دواړو ګتو

قَدْ لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا قَالَ قَدْ
قَطَعَ اللّٰهُ عَنْكَ النَّصَبَ لَيْسَتْ هٰذِهٖ
عَنْ سَعِيْدٍ اَخْبَرَهُ فَرَجَعَا فَوَجَدَا خَضِرًا
قَالَ لِيْ عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ سُلَيْمَانَ
عَلٰى طِنْفِسَةٍ خَضْرَآءَ عَلٰى كَبِدِ
الْبَحْرِ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ مُسَجًّى
بِثَوْبِهٖ قَدْ جَعَلَ طَرَفَهُ تَحْتَ رِجْلَيْهِ وَ
طَرَفَهُ تَحْتَ رَاْسِهٖ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ
مُوْسٰى فَكَشَفَ عَنْ وَجْهِهٖ وَ قَالَ هَلْ
بِاَرْضِيْ مِنْ سَلَامٍ مَنْ اَنْتَ قَالَ اَنَا
مُوْسٰى قَالَ مُوْسٰى بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ قَالَ
نَعَمْ قَالَ فَمَا شَاْنُكَ قَالَ جِئْتُ
لِتُعَلِّمَنِيْ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا قَالَ اَمَا
يَكْفِيْكَ اَنَّ التَّوْرَاةَ بِيَدَيْكَ وَ اَنَّ
الْوَحْيَ يَاْتِيْكَ يَا مُوْسٰى اِنَّ لِيْ عِلْمًا
لَا يَنْبَغِيْ لَكَ اَنْ تَعْلَمَهُ وَ اِنَّ لَكَ عِلْمًا
لَا يَنْبَغِيْ لِيْ اَنْ اَعْلَمَهُ فَاَخَذَ طَآئِرٌ
بِمِنْقَارِهٖ مِنَ الْبَحْرِ وَ قَالَ وَاللّٰهِ مَا
عِلْمِيْ وَمَا عِلْمُكَ فِيْ جَنْبِ عِلْمِ
اللّٰهِ اِلَّا كَمَا اَخَذَ هٰذَا الطَّآئِرُ بِمِنْقَارِهٖ
مِنَ الْبَحْرِ حَتّٰى اِذَا رَكِبَا فِي السَّفِيْنَةِ
وَجَدَا مَعَابِرَ صِغَارًا تَحْمِلُ اَهْلَ هٰذَا
السَّاحِلِ اِلٰى اَهْلِ هٰذَا السَّاحِلِ الْاٰخَرِ
عَرَفُوْهُ فَقَالُوْا عَبْدُ اللّٰهِ الصَّالِحُ قَالَ
قُلْنَا لِسَعِيْدٍ خَضِرٌ قَالَ نَعَمْ لَا نَحْمِلُهُ
بِاَجْرٍ فَخَرَقَهَا وَ وَتَدَ فِيْهَا وَتَدًا قَالَ

کوتو او هغې سره ذ کوتو نه حلقه جوړه کړله' وې بنودله (چه دغسې سُرنګ نې جوړ کړلو) دې نه پس دواړه حضرات مخ په وړاندې لاړل' څه مزل نې چه او کړ' نو موسیٰ اوفرمائیل ماته سفر نه ستوماني معلومیږي. یوشع ورته اووې' اللّٰه دې ستا ستوماني لرې کړي. بیا یوشع اووې' کب خو فلاني ځائې کښې ورک شوې دې او مانه هیر شو' چه تاسوته نې یاد کړم' موسیٰ چه واپس هغې چتهان ته نزدې راغې' نو وې لیدل چه خضرٌ ولاړ دې. ابن جریج اووې. ذَ عثمان بن ابي عثمان قول دې' چه هغه خضرٌ دریاب کښې په شنه بستره ناست اُولید. سعید واني' چه کپړه نې اغُستلې وَه' او ذ کپړې یوه څنډه نې ذ پښو لاندې دباؤ کړې وَه. او بله غاړه نې په سَر وه. موسیٰ علیه السلام ورته سلام او کړ. خضرٌ اووې' آیا ذ بني اسرائیلو موسیٰ نې. موسیٰ اووې' او' خضرٌ اووې. بیا دلته څهٔ ذَ پاره راغلې نې. موسیٰ ورته اووې' دې ذ پاره چه تهٔ ماته خپل علم اوبنائې' خضرٌ اووې' آیا تورات او وحي ستا ذ پاره کافي نهٔ دي. اې موسیٰ' څما علم تاسره نه بنائي' او ستا علم ماسره نه بنائي' خضرٌ دا خبره کوله' چه دې کښې یوې مرغئې ذ دریاب نه په مخوکه لبړې اوبه واخستې خضرٌ ورته اووې' اې موسیٰ' څما او ستا علم ذ خدائې په مخکښې داسې دې' لکه دا اوبه چه مرغئې مخوکه باندې واخستې. بیا هغوي یوه وړه شان کشتئ کښې کیناستل' چه خلق به نې ذ دې ځائې نه هلته بوتلل. کشتي والو هغوي اوپیژندل. او بې پیسې (بې کرائې) نې کشتئ کښې کینول. خضرٌ ذ کشتي یوه تخته ماته کړله' موسیٰ ورته اووې' دا خو دې ډیر بد او کړل'

مُوسى أخرقتها لتغرق أهلها لقد جئت شيئا إمرا قال مجاهد منكرا قال ألم أقل إنك لن تستطيع معي صبرا كانت الأولى نسيانا والوسطى شرطا والثالثة عمدا قال لا تؤاخذني بما نسيت ولا ترهقني من أمري عسرا لقيا غلاما فقتله قال يعلى قال سعيد وجد غلمانا يلعبون فأخذ غلاما كافرا ظريفا فأضجعه ثم ذبحه بالسكين قال أقتلت نفسا زكية بغير نفس لم تعمل بالحنث وكان ابن عباس قرأها زكية زاكية مسلمة كقولك غلاما زكيا فانطلقا فوجدا جدارا يريد أن ينقض فأقامه قال سعيد بيده هكذا ورفع يده فاستقام قال يعلى حسبت أن سعيدا قال فمسحه بيده فاستقام لو شئت لا تخذت عليه أجرا قال سعيد أجرا نأكله وكان وراءهم وكان أمامهم قرأها ابن عباس أمامهم ملك يزعمون عن غير سعيد أنه هدد بن بدد والغلام المقتول اسمه يزعمون جيسور ملك يأخذ كل سفينة غصبا فأردت إذا هي مرت به أن يدعها لعيبها فإذا جاوزوا أصلحوها فانتفعوا بها ومنهم من

دے سره خو بــه كشتي والـــه ډوب شي. خضرٌ اووے: كوره: تاته ما د مخكښ نه وئيلے وو، چه ته به ما سره صبر اونه كړے شے. حقيقت كښ دا ورومبے اعتراض موسیٰ په هيره كړے وو. او په دويم وار موسیٰ خپل شرط اولږولو، كه بيا داسے اوشو، نو ما خان سره مه ساته او دريم اعتراض ئے عمدًا اوكړلو. موسیٰ اووے: ماته هير شولو، په هيره معافي پكار ده. دے نه پس ورمخكښ شو. يو ماشوم ئے اوليد. خضرٌ هغه اووژلو، او سر ئے ترے پريكړلو. موسیٰ اووے. دا خو تا بلا وجه يو خون اوكړلو. بے ګناه دے اووژلو. ابن عباسؓ دے آيت كښ: نفسا زكية، زاكية: دواړه شان وائي. "زاكية" معني بنه نيک مسلمان، لكه چه وائي: "غلاما زكيا" دے نه پس دواړه يو كلي ته اورسيدل. يو ديوال غرخيدونكے او كوږ وو. خضرٌ هغے باندے لاس رابنكلو، نيغ ئے كړلو. سعيد دَ لاس اشارے سره اوښودلو، چه ديوال ئے داسے نيغ كړلو. يعلي وائي. خما خيال دے، سعيد داسے وئيلے وو، چه خضرٌ په ديوال لاس رابنكلو، نو هغه نيغ شولو. موسيٰ عليه السلام اعتراض اوكه، او وے وئيل، كه تا غوښتلے، نو دَ دے مزدوري دے اخستلے شوه، او په هغے خوراک څكاک كيدے شو او دا چه: وَ كان وراءهم معني دي "امامهم" ابن عباسؓ دغه شان لوستے دي. ابن جريج اووے. دَ سعيد نه سِوا، نورو راويانو بادشاه هُدَد بن بُدَد بيان كړے دے. او هغه هلک چه خضرٌ وژلے وو، جيسور، وو. او دَ كشتي دَ ماتولو وجه خضرٌ دا اوښودله چه هغه بادشاه چه دَ درياب بل آړخ ته وو، هغه ظالم وو. او كشتئ ئے بيګار كښ نيولے، چه دا بيكاره اوګنړي، نو

يَقُولُ سَدُّوهَا بِقَارُورَةٍ وَ مِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ بِالْقَارِ كَانَ اَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ وَ كَانَ كَافِرًا فَخَشِيْنَا اَنْ يُرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَ كُفْرًا اَنْ يَحْمِلَهُمَا حُبُّهُ عَلٰى اَنْ يَتَابِعَاهُ عَلٰى دِيْنِهِ فَاَرَدْنَا اَنْ يُبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكٰوةً لِقَوْلِهِ اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً وَ اَقْرَبَ رُحْمًا هُمَا بِهِ اَرْحَمُ مِنْهُمَا بِالْاَوَّلِ الَّذِيْ قَتَلَ خِضْرُ وَ زَعَمَ غَيْرُ سَعِيْدٍ اَنَّهُمَا اُبْدِلَا جَارِيَةً وَ اَمَّا دَاوُدُ بْنُ اَبِيْ عَاصِمٍ فَقَالَ غَيْرُ وَاحِدٍ اَنَّهَا جَارِيَةٌ.

پرے به نې ړدي. کشتي واله به دا تيک کړي. او کار به ترے آخلي. بعضو ونيلي دي چه سکه (سيسه) ويلے کولو سره نې کشتئ مرمت کړه. او بعضو ونيلي دي چه لاک او روغن سره نې ورَوسته. او هغه هلک کافر وو. او مور پلار نې مؤمنان وو. ما سره دا خيال پيدا شو چه د دۀ محبت د دۀ مور پلار تباه نه کړي. په دے وجه ما هغه او وژلو. اللّه تعالي به د دۀ بدله کښې ورله نيک اولاد ورکړي، چه د دۀ نه هر حالت کښې نيک او ښۀ وي. او بعضو ونيلي دي د دے مطلب دا دے چه د هلک بدله کښې اللّه تعالي يوه نيکه لور ورکړي. او داود بن عاصم واني چه جينۍ ترے مراد ده.

۱ ابن عباس رضي اللّه عنه د هغۀ متعلق دا لفظ محض د تنبيه او توبيخ په طور ونيلو. دا مقصد نې نه وو چه واقعي هغۀ د اللّه دښمن دے.

باب ۲۹۰: قَوْلِهٖ فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتَاهُ اٰتِنَا غَدَآئَنَا لَقَدْ لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا اِلٰى قَوْلِهٖ عَجَبًا صُنْعًا عَمَلًا حِوَلًا تَحَوُّلًا قَالَ ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلٰى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا اِمْرًا وَ نُكْرًا دَاهِيَةً يَنْقَضَّ يَنْقَاضُ كَمَا يَنْقَاضُ السِّنُّ لَتَخِذْتَ وَلَا تَّخَذْتَ وَاحِدٌ رُحْمًا مِنَ الرُّحْمِ وَ هِيَ اَشَدُّ مُبَالَغَةً مِنَ الرَّحْمَةِ وَ نَظُنُّ اَنَّهُ مِنَ الرَّحِيْمِ وَ تُدْعٰى مَكَّةُ اُمَّ رُحْمٍ اَيِ الرَّحْمَةُ تَنْزِلُ بِهَا.

باب ۲۹۰: آيت: فلمّا جاوزا قال لفتهُ: د اللّه تعالي قول. کوم وخت چه موسیٰ د هغے ځائے نه ورمخکښې شو نو خپل ملګري ته نې اوويے طعام راوړه. مونږ خو دے سفر کښې ستړے شو: عجبا: پورے "صنعا" معني دي عمل. "حولا" بدليدل، لرے کيدل. "قال ذلک ما کنّا نبغ فارتدا على اثارهما قصصا". "امرًا" او "نكرًا" د دواړو يو معني دي، يعني بد کار. "ينقض" معني اوغرځيږي. "لتخذت" او "اتّخذت" د دواړو يو معني دي. مشدد او مخفف دواړه شان معنی نې يو دي "رحما" رحم نه جوړ دے معني دي ډير زيات رحمت او همدردي. بعضے دا د رحيم نه مشتق ګڼړي. مکے ته "ام رحمة" واني ځکه چه رحمت هلته نازليږي

۴۷۱۳: حَدَّثَنِيْ قُتَيْبَةُ بْنُ

۴۷۱۳: قتيبه بن سعيد. سفيان بن عيينه. عمرو بن

سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُفْيَانُ بْنُ
عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ
سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ
لِابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ نَوْفًا نِ الْبَكَالِيَّ
يَزْعَمُ اَنَّ مُوْسٰى بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ
لَيْسَ بِمُوْسَى الْخَضِرِ فَقَالَ
كَذَبَ عَدُوُّ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اُبَيُّ بْنُ
كَعْبٍ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَامَ
مُوْسٰى خَطِيْبًا فِيْ بَنِيْ
اِسْرَآئِيْلَ فَقِيْلَ لَهٗ اَيُّ النَّاسِ
اَعْلَمُ قَالَ اَنَا فَعَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ
اِذْ لَمْ يَرُدَّ الْعِلْمَ اِلَيْهِ وَ اَوْحٰى
اِلَيْهِ بَلٰى عَبْدٌ مِّنْ عِبَادِيْ
بِمَجْمَعِ الْبَحْرَيْنِ هُوَ اَعْلَمُ مِنْكَ
قَالَ اَيْ رَبِّ كَيْفَ السَّبِيْلُ اِلَيْهِ
قَالَ تَاْخُذُ حُوْتًا فِيْ مِكْتَلٍ
فَحَيْثُمَا فَقَدْتَّ الْحُوْتَ فَاتَّبِعْهُ
قَالَ فَخَرَجَ مُوْسٰى وَ مَعَهٗ فَتَاهُ
يُوْشَعُ بْنُ نُوْنٍ وَ مَعَهُمَا الْحُوْتُ
حَتّٰى انْتَهَيَا اِلَى الصَّخْرَةِ فَنَزَلَا عِنْدَهَا
قَالَ فَوَضَعَ مُوْسٰى رَاْسَهٗ فَنَامَ
قَالَ سُفْيَانُ وَ فِيْ حَدِيْثِ غَيْرِ
عَمْرٍو قَالَ وَ فِيْ اَصْلِ الصَّخْرَةِ
عَيْنٌ يُقَالُ لَهُ الْحَيٰوةُ لَا يُصِيْبُ مِنْ
مَّآئِهَا شَيْءٌ اِلَّا حَيِيَ فَاَصَابَه

دينار. سعيد بن جبير نه روايت کوي، ما ابن عباسؓ ته
اووے، نوف بکالي وائي، چه موسیٰ دَ بني اسرائيلو نبي
بل وو. او خضر واله موسیٰ بل. ابن عباسؓ جواب ورکړ،
هغه دَ اللّٰه دشمن دروغ وائي، ځکه چه دَ ابن کعب بيان
دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، موسیٰ عليه
السلام خپل اُمت ته وعظ اوکړ، نو هغوي ترے تپوس
اوکړ، چه ټولو خلقو کښ لوئے عالم څوک دے، موسیٰ
اووے، زهٔ يم، او دائے اونهٔ وے، چه اللّٰه زيات
پوهيدونکے دے، نو اللّٰه پاک دا خبره خوښه نهٔ کړله. او
وحي ئے نازله کړه، چه ځما بنديانو کښ يو بنده دے، چه
مجمع البحرين کښ دے، او ستا نه زيات عالم دے
موسیٰ اووے، اے اللّٰه، زهٔ به هغهٔ سره څنګه يوځائے شم،
ماته دَ هغهٔ پته اوښائے. ارشاد اوشو، خپلے تهيلئ کښ يو
کب واچوه، او، څه. کوم ځائے چه دا کب ورک شي، نو
بس هغه په هغه ځائے کښ دے. موسیٰ عليه السلام هم
دغسے اوکړل، او خپل خادم يوشع ئے ځان سره کړلو.
او يو چټان سره قريب په کاڼړي ئے سر کيښودلو، اودهٔ
شولو. سفيان وائي، دَ قتاده په روايت کښ دي، دَ دے
چټان په ويخ کښ يوه چينه وَه، چه هغے ته ئے چشمهٔ
آب حيات (د هميشه ژوندون چينه) وے، په کوم مړي
چه به هغه اوبه پريوتے، هغه به ژوندے شولو، په دے کب
هم هغه اوبه پريوتے، او هغه ژوندے شولو. او سمندر ته
ئے وراُودانګل. موسیٰ عليه السلام چه دَ خوب نه
راپاسيد، نو خپل خادم سره مخ په وړاندے روان شولو.
څه مزل نه پس ئے خپل خادم ته اووے، خمونږ هغه
خوراکه راوړه. دغه وخت موسیٰ ته معلومه شوه، چه

الْحُوْتُ مِنْ مَّآءِ تِلْكَ الْعَيْنِ قَالَ فَتَحَرَّكَ وَانْصَلَّ مِنَ الْمِكْتَلِ فَدَخَلَ الْبَحْرَ فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ مُوْسٰى قَالَ لِفَتَاهُ اٰتِنَا غَدَآئَنَا الاٰية وَلَمْ يَجِدِ النَّصَبَ حَتّٰى جَاوَزَ مَا اُمِرَ بِهٖ قَالَ لَهٗ فَتَاهُ يُوْشَعُ بْنُ نُوْنٍ اَرَاَيْتَ اِذْ اَوَيْنَا اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ الاٰية قَالَ فَرَجَعَ يَقُصَّانِ فِيْ اٰثَارِهِمَا فَوَجَدَا فِي الْبَحْرِ كَالطَّاقِ مَمَرَّ الْحُوْتِ فَكَانَ لِفَتَاهُ عَجَبًا وَ لِلْحُوْتِ سَرَبًا قَالَ فَلَمَّا انْتَهَيَا اِلَى الصَّخْرَةِ اِذْهُمَا بِرَجُلٍ مُسَجًّى بِثَوْبٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ مُوْسٰى قَالَ وَ اَنّٰى بِاَرْضِكَ السَّلَامُ فَقَالَ اَنَا مُوْسٰى قَالَ مُوْسٰى بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ قَالَ نَعَمْ قَالَ هَلْ اَتَّبِعُكَ عَلٰى اَنْ تُعَلِّمَنِيْ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا قَالَ الْخَضِرُ يَا مُوْسٰى اِنَّكَ عَلٰى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللّٰهِ عَلَّمَكَهُ اللّٰهُ لَا اَعْلَمُهٗ وَ اَنَا عَلٰى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللّٰهِ عَلَّمَنِيْهِ اللّٰهُ لَا تَعْلَمُهٗ قَالَ بَلْ اَتَّبِعُكَ قَالَ فَاِنِ اتَّبَعْتَنِيْ فَلَا تَسْاَلْنِيْ عَنْ شَيْءٍ حَتّٰى اُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا فَانْطَلَقَا يَمْشِيَانِ عَلَى السَّاحِلِ فَمَرَّتْ

مونږ ذ خپل مطلوبه ځائے نه مخکښې راغلے يو. نو ذ قدمونو په نښه واپس راو ګرځيدل. خادم ورته اووے. مانه تاسو ته يادول هير شو، چه هغے کانړي سره نزدے کَب درياب کښې ورک شوے وو، اوپه کوم ځائے چه هغه تير شولو هلته ئے ذ تاخ شان نښه جوړه کړے وه. غرض راواپس شو. اوچه هغے ځائے ته راورسيدل، نو يو بزرګ ئے اوليدلو، چه کپړے ئے اغستے وے. موسٰي عليه السلام ورته سلام او که، بزرګ اووے. څوک ئے، او ذ کوم ځائے نه راغلے ئے. هغهٔ ورته اووے، زهٔ موسٰيؑ يم. خضرؑ ورته اووے، ذ بني اسرائيلو موسٰيؑ ئے. موسٰيؑ ورته اووے، جي، او، زهٔ ذ بني اسرائيلو موسٰيؑ يم. بيا موسٰيؑ اووے، آيا زهٔ تا سره پاتے کيدے شم، چه تهٔ ماته خپل علم اوښائے. خضرؑ ورته اووے. اے موسٰيؑ، اللّٰه تعالٰي چه تاته کوم علم درکړے دے، په هغے زهٔ نشم پوهيدے، او ماته چه ئے کوم علم راکړے دے، په هغے تهٔ نهٔ شے پوهيدلے. خضر عليه السلام ورته اووے په دے شرط تـه ماسره پاتے کيدے شے، چه زهٔ څهٔ کوم، ذ هغے بالکل تپوس نهٔ کوے، څو پورے چه زهٔ ئے خپله درته اُونهٔ ښايم. آخر موسٰيؑ او خضرؑ روان شو. ذ يو درياب په غاړه غاړه تلل چه يوه کشتئ ئے اوليده. ماڼ ګيانو حضرت خضرؑ اوپيژندلو، او بے کيرائے ئے دواړه کشتي کښې کينول. بيا يوه مرغئ راغله، او هغے خپلے مخوکے سره ذ درياب نه اوبه راواخستے. حضرت خضرؑ اووے اے موسٰيؑ ذ اللّٰه ذ علم مخکښې څما او ستا علم داسے حيثيت لري، لکه ذ دے مرغئ ذ مخوکے اوبه. دے نه پس خضرؑ ذ کشتئ ذ يو ځائے نه تخته ماته کړه. حضرت

بِهِمَا سَفِيْنَةٌ فَعُرِفَ الْخَضِرُ
فَحَمَلُوْهُمْ فِيْ سَفِيْنَتِهِمْ بِغَيْرِ
نَوْلٍ يَقُوْلُ بِغَيْرِ اَجْرٍ فَرَكِبَا
فِي السَّفِيْنَةِ قَالَ وَ وَقَعَ عُصْفُوْرٌ
عَلٰى حَرْفِ السَّفِيْنَةِ فَغَمَسَ
مِنْقَارَهُ الْبَحْرَ فَقَالَ الْخَضِرُ لِمُوْسٰى
مَا عِلْمُكَ وَ عِلْمِيْ وَ عِلْمُ الْخَلَائِقِ
فِيْ عِلْمِ اللّٰهِ اِلَّا مِقْدَارَ مَا غَمَسَ
هٰذَا الْعُصْفُوْرُ مِنْقَارَهُ قَالَ فَلَمْ يَفْجَأْ
مُوْسٰى اِذْ عَمَدَ الْخَضِرُ اِلٰى قَدُوْمٍ
فَخَرَقَ السَّفِيْنَةَ فَقَالَ لَهُ مُوْسٰى قَوْمٌ
حَمَلُوْنَا بِغَيْرِ نَوْلٍ عَمَدْتَّ اِلٰى
سَفِيْنَتِهِمْ فَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ اَهْلَهَا لَقَدْ
جِئْتَ الْاٰيَةَ فَانْطَلَقَا اِذَا هُمَا بِغُلَامٍ
يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ فَاَخَذَ الْخَضِرُ
بِرَاْسِهٖ فَقَطَعَهُ قَالَ لَهُ مُوْسٰى اَقَتَلْتَ
نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ لَقَدْ جِئْتَ
شَيْئًا نُكْرًا قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَكَ اِنَّكَ لَنْ
تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا اِلٰى قَوْلِهٖ فَاَبَوْا اَنْ
يُضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُرِيْدُ
اَنْ يَنْقَضَّ فَقَالَ بِيَدِهٖ هٰكَذَا فَاَقَامَهُ
فَقَالَ لَهُ مُوْسٰى اِنَّا دَخَلْنَا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ
فَلَمْ يُضَيِّفُوْنَا وَلَمْ يُطْعِمُوْنَا لَوْ شِئْتَ
لَا تَّخَذْتَ عَلَيْهِ اَجْرًا قَالَ هٰذَا فِرَاقُ
بَيْنِيْ وَ بَيْنِكَ سَاُنَبِّئُكَ بِتَاْوِيْلِ مَا لَمْ
تَسْتَطِعْ عَلَيْهِ صَبْرًا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

موسیٰ ته ډیر تعجب اوشو. او خضرؑ ته ئې اوويل:
دے خوارانو خو مونږ بې کيرائے کشتئ کښې کينولو
او تا ورله هغه ماته کړه. دا خو تا د ټولو د غرق
کولو کار اوکړلو. بس دے اونه کړل حضرت خضرؑ
ورته اووے، ما خو درته مخکښې وئيلي وو چه ته
ماسره صبر نه شې کولے. بيا روان شو، تر دے
چه يو هلک له راغلل، چه نورو هلکانو سره ئې
لوبې کولې. خضرؑ هغه اونيولو او وے وژلو. او
د هغه سر ئې د تن نه جدا کړلو. موسي عليه السلام
ورته اووے، دا د بې قصوره ولې قتل کړلو. خضرؑ
ورته اووے، گوره کنه، ما خو تاته مخکښې وئيلي
وو چه ته به ماسره صبر اونه کړے شې.
موسي عليه السلام ورته اووے خير بيا که م درنه
تپوس اوکړ نو خان سره م نور مه ساته. بيا يو
کلي ته اورسيدل، د هغې خائې د خلقونه ئې
طعام طلب کړلو، خو کلي والو د ميلمستيا نه
انکار اوکړلو. هغې کلي کښې خضرؑ يو ديوال
اوليد، چه غر خيدونکے وو، خضرؑ پرے خپل
لاس راښکلو، او هغه ئې نيغ کړلو. حضرت
موسیٰ ورته اووے، تا خو ورله ديوال نيغ
کړلو، حالانکه هغوي په مونږ ډوډي هم اونه
خوړله، که تا غوښتلے نو د هغې اجرت به دې
اخستلے وے. خضرؑ دے خل موسیٰ ته اووے.
بس اوس ته رانه جدا شه، څکه چه ته خما په
خبرو صبر نه شې کولے، او اوس زهٔ تاته
د دے خبرو حقيقت بنائم. دے نه پس حضور

صلى الله عليه وسلم وددنا ان موسى صبر حتى يقص علينا من امرهما قال و كان ابن عباس يقرأ و كان امامهم ملك يأخذ كل سفينة صالحة غصبا و اما الغلام فكان كافرا.

صلي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل' ښه به وه' كه موسئ صبر كړے وے' چه څه نورے خبرے هم ظهور كېښ راغلے وے. سعيد وائي. ابن عباسؓ به داسے لوستلو. و كان امامهم ملک يأخذ كل سفينة صالحة غصبا و اما الغلام فكان كافرا الخ.

**باب ۱۲۹۱: قوله قل هل ننبئكم بالاخسرين اعمالا.**

**باب ۱۲۹۱:** آيت: قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِيْنَ اَعْمَالًا الخ: دَ اللّه تعالٰي قول' ورته اووايه' آيا زهٔ تاسو ته هغه خلق اوښايم' چه دَ عمل د اعتبار نه خساره او تاوان كښې دي.

۴۱۷: حدثني محمد بن بشار حدثنا محمد بن جعفر حدثنا شعبة عن عمرو عن مصعب قال سألت ابي قل هل ننبئكم بالاخسرين اعمالا هم الحرورية قال لا هم اليهود و النصارى اما اليهود فكذبوا محمدا صلى الله عليه وسلم و اما النصارى كفروا بالجنة و قالوا لا طعام فيها و لا شراب والحرورية الذين ينقضون عهد الله من بعد ميثاقه و كان سعد يسميهم الفاسقين.

۴۱۷: محمد بن بشار. محمد بن جعفر. شعبه. عمر بن مره. مصعب بن سعد نه روايت كوي' دَ هغه بيان دے' ما دَ خپل پلار نه معلومه كړه' چه آيا دَ كومو خلقو ذكر چه دے آيت كښې دے' قل هل ننبئكم بالاخسرين اعمالا انح: هغه دَ حروريه كلي خلق دي' نو هغهٔ اووے' نه' بلكه هغوي يهود يان او نصاري دي' ځكه چه يهود يانو حضور صلي اللّه عليه وسلم دروغجن اوګنړلو' او نصاري په جنت يقين نهٔ لري' او وائي هلته خو دَ خوراک څكاک څهٔ څيز هم نشته. او حروريه هغه دي چه هغوي عهد شكني كړے وه' او سعد به هغوئ ته فاسق وئيلے.

**باب ۱۲۹۲: قوله اولئك الذين كفروا بايات ربهم و لقائه فحبطت اعمالهم.**

**باب ۱۲۹۲:** آيت: اُولٰئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ: دَ اللّه تعالٰي قول' دا هغه خلق دي' چه دَ خپل رب نښے ئے دروغ اوګڼړلے' او دَ هغهٔ دَ ملاقات نه ئے انكار اوكړلو' نو دَ هغوي ټول اعمال برباد شولو.

۴۷۱۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا الْمُغِيْرَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّهُ لَيَأْتِيَ الرَّجُلُ الْعَظِيْمُ السَّمِيْنُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يَزِنُ عِنْدَ اللّٰهِ جَنَاحَ بَعُوْضَةٍ وَ قَالَ اقْرَءُوْا فَلَا نُقِيْمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا وَ عَنْ يَحْيَى بْنِ بُكَيْرٍ عَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ مِثْلَهُ.

۴۷۱۵: محمد بن عبدالله. سعيد بن ابي مريم. مغيره. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے. حضور صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، ذ قيامت په ورځ به يو ډير غټ تازه سړے راوستے شي، خو هغه به ذ الله تعالي په نزد ذ ماشي نه هم زيات حقير (سپک) وي، دے نه پس حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ددے مطلب دادے: فلا نقيم لهم يوم القيمة وزنا: الخ مونږ به ذ قيامت په ورځ هغوي ذ پاره وزن قائم نۀ کړو. دا حديث يحيي ذ مغيره نه او هغه د ابوالزناد نه دا شان روايت کړے دے.

## سُوْرَةُ كٓهٰيٰعٓصٓ

## ذَ سورهٔ مريم تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَبْصِرْبِهِمْ وَ اَسْمِعْ اَللّٰهُ يَقُوْلُ وَهُمُ الْيَوْمَ لَا يَسْمَعُوْنَ وَلَا يُبْصِرُوْنَ فِيْ ضَلَالٍ مُّبِيْنٍ يَعْنِيْ قَوْلَهُ اَسْمِعْ بِهِمْ وَ اَبْصِرِ الْكُفَّارُ يَوْمَئِذٍ اَسْمَعُ شَيْءٍ وَ اَبْصَرُهُ لَاَرْجُمَنَّكَ لَاَشْتِمَنَّكَ وَرِئْيًا مَنْظَرًا وَّ قَالَ اَبُوْ وَائِلٍ عَلِمَتْ مَرْيَمُ اَنَّ التَّقِيَّ ذُوْ نُهْيَةٍ حَتّٰى قَالَتْ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِالرَّحْمٰنِ مِنْكَ اِنْ كُنْتَ تَقِيًّا وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ تَؤُزُّهُمْ اَزًّا تُزْعِجُهُمْ اِلَى الْمَعَاصِيْ اِزْعَاجًا وَّ قَالَ مُجَاهِدٌ اِدًّا عِوَجًا قَالَ

د ابن عباسؓ بيان دے. "ابصرهم واسمع" ذ قيامت په ورځ به کافر ښۀ آوري اووينې، دا به هغۀ وي، چه هغوي دُنيا کښې د رسول اکرمؐ او ذ خدائے خبرے نۀ اوريدے، او نۀ ئے پرے خان پوهه کړلو. (بخاري هم دا خيال ظاهر کړے دے). "لارجمنک" معني دي، زۀ به دربانده ذ کنځلو باړ اوچلوم. "ورئيا" معني منظرا دي، يعني ليدو کښې. ابو وائل وائي، مريم پوهيدله، چه څوک پرهيزګار وي، هغه عقلمند وي، په دے وجه هغے وئيلے وو: انی اعوذ بالرحمن منک ان کنت تقيا: سفيان وائي "تؤزهم" معني دي، چه شيطان هغوي جوت کړي دي، ذ مجاهد بيان دے: ادًا: معني کږه يعني غلطه خبره. ابن عباسؓ وائي "وردا" معنی تږے. "اثاثا" معني مال. "ادًا"

ابْنُ عَبَّاسٍ وِرْدًا عِطَاشًا اَثَاثًا مَالًا اِدًّا قَوْلًا عَظِيْمًا رِكْزًا صَوْتًا غَيًّا خُسْرَانًا بُكِيًّا جَمَاعَةُ بَاكٍ صِلِيًّا صَلِيَ يَصْلٰى نَدِيًّا وَالنَّادِيْ مَجْلِسًا.

**باب ٢٩٣ : قَوْلِهٖ وَ اَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ.**

**٧١٦:** حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُؤْتٰى بِالْمَوْتِ كَهَيْئَةِ كَبْشٍ اَمْلَحَ فَيُنَادِيْ مُنَادٍ يَا اَهْلَ الْجَنَّةِ فَيَشْرَئِبُّوْنَ وَ يَنْظُرُوْنَ فَيَقُوْلُ هَلْ تَعْرِفُوْنَ هٰذَا فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ هٰذَا الْمَوْتُ وَ كُلُّهُمْ قَدْ رَاٰهُ ثُمَّ يُنَادِيْ يَا اَهْلَ النَّارِ فَيَشْرَئِبُّوْنَ وَ يَنْظُرُوْنَ فَيَقُوْلُ هَلْ تَعْرِفُوْنَ هٰذَا فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ هٰذَا الْمَوْتُ وَ كُلُّهُمْ قَدْ رَاٰهُ فَيُذْبَحُ ثُمَّ يَقُوْلُ يَا اَهْلَ الْجَنَّةِ خُلُوْدٌ فَلَا مَوْتٌ وَ يَا اَهْلَ النَّارِ خُلُوْدٌ فَلَا مَوْتٌ ثُمَّ قَرَاَ وَ اَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ اِذْ قُضِيَ الْاَمْرُ وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ وَ هٰٓؤُلَآءِ فِيْ غَفْلَةٍ اَهْلُ الدُّنْيَا وَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ.

**باب ٢٩٤ : قَوْلِهٖ وَمَا نَتَنَزَّلُ اِلَّا بِاَمْرِ رَبِّكَ.**

لويه خبره "رکز" پست آواز. "غَيًّا" خساره. "بکیا" د باک جمع ژړا کونکي. "صِلِيًّا" صلی' یصلی' د دے مصدر دے معني اُور کښې کرځیدل. "ندیا" مجلس او محفل.

**باب ۲۹۳ :** آیت: وَ اَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ: د الله تعالٰي قول' دوي د حسرت د ورځے نه اویروه.

**٧١٦:** عمر بن حفص بن غیاث. غیاث. اعمش. ابو صالح. حضرت ابو سعید خدري نه روایت کوي' حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' د قیامت په ورځ به مرګ د "ګډ" په شکل کښې راوستے شي. او جنتیانو ته به اوونیلے شي. اوګورئے آیا دا تاسو پیژنئے ټول به اووائي' او' دا مرګ دے. دا ټولو (د خپل خپل مرګ په وخت) لیدلے وو. دے نه پس به دوزخیانو ته اوونیلے شي. اوګورے. آیا دا تاسو پیژنئے. ټول به اووائي' او' دا مرګ دے دے نه پس به هغه ذبح کړے شي. او جنتیانو ته به اوونیلے شي' بے فکره جنت کښې اوسیږے اوس به تاسو ته هیڅ کله مرګ نهٔ راځي' او دغه شان دوزخیانو ته به اوونیلے شي. بیا حضور صلي الله علیه وسلّم دا آیت تلاوت کړلو: وَ انذرهم یوم الحسرة الخ اے رسولهٔ' دا خلق د حسرت د ورځے نه اویروه' په کومه ورځ چه به ارمان کوي هر کله چه فیصله اوشي' او دا خلق بیا هم په غفلت کښې پراتهٔ دي' او ایمان نهٔ راوړي.

**باب ۲۹۴ :** آیت: وَما نَتَنَزَّلُ اِلَّا بِاَمْرِ رَبِّکَ: د الله تعالٰي قول' چه ستا د رب د حکم نه بغیر مونږ نهٔ شُو راتلے.

۷۱۷: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ قَالَ سَمِعْتُ أَبِيْ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِجِبْرِيْلَ مَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَزُوْرَنَا فَنَزَلَتْ وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِيْنَا وَمَا خَلْفَنَا.

۷۱۷: ابو نعيم. عمر بن ذر. ذر. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم جبرائيلؑ ته اوفرمائيل' اے جبرائيل' تۀ څۀ خيز منع كړے' چه څومره څله ماله راځے' د هغے نه زيات څله راځه. نو دا آيت نازل شو: وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ الخ: يعني زۀ د اللّٰه تعالي د حكم او اجازت نه بغير نشم راتلے' او كوم وخت چه حكم راكوي' نو هغه وخت راځم.

## بَابٌ ۲۹۵: قَوْلُهٗ أَفَرَأَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا وَقَالَ لَأُوْتَيَنَّ مَالًا وَّوَلَدًا.

باب ۲۹۵: آيت: أَفَرَأَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا: د اللّٰه تعالٰي قول' آيا تا اونۀ ليدل' چا چه څمونږ د اياتونو نه انكار اوكه' او وئيلے' ماته به هلته هم مال و اولاد حاصليږي.

۷۱۸: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنِ الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ سَمِعْتُ خَبَّابًا قَالَ جِئْتُ الْعَاصِيَ ابْنَ وَائِلٍ السَّهْمِيَّ أَتَقَاضَاهُ حَقًّا لِّيْ عِنْدَهٗ فَقَالَ لَا أُعْطِيْكَ حَتّٰى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَا حَتّٰى تَمُوْتَ ثُمَّ تُبْعَثَ قَالَ وَإِنِّيْ لَمَيِّتٌ ثُمَّ مَبْعُوْثٌ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ إِنَّ لِيْ هُنَاكَ مَالًا وَّوَلَدًا فَأَقْضِيْكَهٗ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ أَفَرَأَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوْتَيَنَّ مَالًا وَّوَلَدًا رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ وَشُعْبَةُ حَفْصٌ وَأَبُوْ مُعَاوِيَةَ وَوَكِيْعٌ عَنِ الْأَعْمَشِ.

۷۱۸: حميدي. سفيان. اعمش. ابي الضحي. مسروق. حضرت خبابؓ نه روايت كوي' هغۀ اووے' زۀ عاص بن ابي وايل سهمي له راغلم' او د هغۀ نه مې خپل اجرت طلب کۀ' هغۀ اووے' څو پورے چه تۀ محمد (صلي اللّٰه عليه وسلّم) پرے نۀ ږدے' زۀ ستا اجرت نۀ دركوم ما ورته اووے' كه تۀ د مرګ نه پس هم ژوندے شے يعني قيامته پورے) نو بيا به هم زۀ كفر اونۀ كړم. هغۀ اووے' آيا چه زۀ مړ شم' بيا به هم ژوندے كيږم' نو هلته به ماته مال و اولاد په لاس راشي نو تاته به ستا حق دركړم' نو دا آيت نازل شو. أَفَرَأَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا وَقَالَ لَأُوْتَيَنَّ مَالًا وَّوَلَدًا: دا حديث ثوري' شعبه' حفص' ابو معاويه' وكيع' اعمش نه روايت كړے دے.

۱. خباب رضي الله عنه به د لوهارئ کار کولو او عاص بن وائل به هغه باندې یوه توره جوړه کړې وه، د هغې مزدوري ورته پاتې وه، د هغې غوښتلو د پاره ورله ورغلې وو، مشهور صحابي عمرو بن عاص رضي الله عنه د هغه خوئې دې. دا واقعه د مکې مکرمې ده.

**باب ۲۹۶: قَوْلِهِ أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا قَالَ مَوْثِقًا.**

**باب ۲۹۶:** آیت: اَطَّلَعَ الْغَيْبَ اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا: دَ الله تعالیٰ قول. آیا هغه په غیب خبردار شوې دې یا هغه الله سره څه عهد کړې دې. "عهدًا" معنې مضبوط اقرار دې.

**۴۱۹:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ خَبَّابٍ قَالَ كُنْتُ قَيْنًا بِمَكَّةَ فَعَمِلْتُ لِلْعَاصِ بْنِ وَائِلٍ السَّهْمِيِّ سَيْفًا فَجِئْتُ أَتَقَاضَاهُ فَقَالَ لَا أُعْطِيكَ حَتَّى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ قُلْتُ لَا أَكْفُرُ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى يُمِيتَكَ اللَّهُ ثُمَّ يُحْيِيَكَ قَالَ إِذَا أَمَاتَنِي اللَّهُ ثُمَّ بَعَثَنِي وَلِيَ مَالٌ وَ وَلَدٌ فَأَنْزَلَ اللَّهُ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَ قَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَ وَلَدًا أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا قَالَ مَوْثِقًا لَمْ يَقُلِ الْأَشْجَعِيُّ عَنْ سُفْيَانَ سَيْفًا وَلَا مَوْثِقًا.

**۴۱۹:** محمد بن کثیر. سفیان. اعمش. ابوالضحی. مسروق. حضرت خبابؓ نه روایت کوي. هغه اووې، ما مکه کښې د اوسپنې کار کولو. ما عاص بن وائل د پاره یوه توره جوړه کړه. بیا یوه ورځ هغه له ورغلم، او مزدوري م ترې اوغوښتله، هغه اووې. څو پورې چه ته محمد (صلي الله علیه وسلّم) ته بد نه وائې زه اجرت (مزدوري) نه درکوم. ما ورته اووې. زه خو حضور صلي الله علیه وسلّم سره ګستاخي هغه وخته پورې هم نه شم کولې څو پورې چه الله تا مړ کړي او بیا دې ژوندې کړي (یعني حضور صلي الله علیه وسلّم سره خو د ګستاخۍ کولو سوال نه پیدا کیږي) عاص اووې. آیا الله د مرګ نه پس هم ژوندي کول کوي. او که داسې اوکړي، نو بیا هلته به هم زه د اولاد او مال خاوند یم. هلته به (مزدوري درکړم. نو دغه وخت دا آیت نازل شو. اشجعي چه سفیان نه کوم روایت کړې دې. هغې کښې د تورې (تلور) ذکر نشته.

**باب ۲۹۷: قَوْلِهِ كَلَّا سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ وَ نَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا.**

**باب ۲۹۷:** آیت: كَلَّا سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ: دَ الله تعالیٰ قول، مونږ لیکو، څه چه هغه وائي، او روزانه به هغه له زیات عذاب ورکوو.

٤٧٢٠: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ سَمِعْتُ أَبَا الضُّحٰى يُحَدِّثُ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ خَبَّابٍ قَالَ كُنْتُ قَيْنًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَ كَانَ لِيْ دَيْنٌ عَلَى الْعَاصِ بْنِ وَآئِلٍ قَالَ فَأَتَاهُ يَتَقَاضَاهُ فَقَالَ لَا أُعْطِيْكَ حَتّٰى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَا أَكْفُرُ حَتّٰى يُمِيْتَكَ اللّٰهُ ثُمَّ تُبْعَثُ قَالَ فَذَرْنِيْ حَتّٰى أَمُوْتَ ثُمَّ أُبْعَثُ فَسَوْفَ أُوْتٰى مَالًا وَّ وَلَدًا فَأَقْضِيْكَ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ أَفَرَأَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا وَ قَالَ لَأُوْتَيَنَّ مَالًا وَّ وَلَدًا.

٤٧٢٠: بشر بن خالد. محمد بن جعفر. شعبه. سليمان. ابوالضحي. مسروق. حضرت خبابؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے. ذ جاهليت زمانه كښې ما ذ لوهاري پيشه كوله، عاص بن وائل باندے خما قرض وو. ذ هغے وصولولو ذ پاره زهٔ هغه له ورغلم، هغه ماته اووے. زهٔ ستا واجب الادا رقم هغه وخته پورے نشم دركولے. څو پورے چه تهٔ ذ محمد (صلي الله عليه وسلم) نه انكار اونهٔ كړے، ما اووے، قسم په خدائے، زهٔ حضور صلي الله عليه وسلم سره دا معامله هغه وخته پورے نشم كولے، څو پورے چه الله تعالٰي تا مړ كړي او دوباره دے ژوندے نهٔ كړي. عاص اووے. ښهٔ خبره ده، چه زهٔ دوباره راژوندے كړے شم، نو ماسره به ډير مال وي، هغه وخت به زهٔ ستا مطالبه پوره كړم، نو دا آيت نازل شو: اَفَرَاَيتَ الّذي كفر بايٰتنا: الخ.

باب ٢٩٨: قَوْلِهٖ عَزَّ وَ جَلَّ وَ نَرِثُهٗ مَا يَقُوْلُ وَ يَأْتِيْنَا فَرْدًا وَّ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْجِبَالُ هَدًّا هَدْمًا.

باب ٢٩٨: آيت: وَ نرِثُهٗ ما يَقُوْلُ: ذ الله تعالٰي قول، څه چه دے وائي، هغه مونږ ليكو، او هغه به مونږ ته يوازے راځي. ابن عباسؓ وائي ''هدًا'' معني دهماكے سره غرځيدل دي، او ''هدمًا'' معني منهدم كيدو سره غرځيدل.

٤٧٢١: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ خَبَّابٍ قَالَ كُنْتُ رَجُلًا قَيْنًا وَ كَانَ لِيْ عَلَى الْعَاصِ بْنِ وَآئِلٍ دَيْنٌ فَأَتَيْتُهُ أَتَقَاضَاهُ فَقَالَ لِيْ لَا أَقْضِيْكَ حَتّٰى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ قَالَ قُلْتُ لَنْ أَكْفُرَ بِهٖ حَتّٰى تَمُوْتَ ثُمَّ تُبْعَثَ

٤٧٢١: يحيي. وكيع. اعمش. ابوالضحي. مسروق. حضرت خبابؓ نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے، چه ما ذ لوهاري پيشه كوله. عاص بن وائل باندے خما څهٔ قرضه پورے وه ذ هغے وصولولو ذ پاره زهٔ هغه له ورغلم، نو هغه اووے، اے خبابهٔ، څو پورے چه تهٔ محمد (صلي الله عليه وسلم) نه وانهٔ وړے، زهٔ به نے درته ادا نهٔ كړم. ما ورته اووے، داسے هيڅ كله نشي كيدے.

قَالَ وَ إِنِّيْ لَمَبْعُوْثٌ مِنْ بَعْدِ الْمَوْتِ فَسَوْفَ أَقْضِيْكَ إِذَا رَجَعْتُ إِلٰى مَالٍ وَّ وَلَدٍ قَالَ فَنَزَلَتْ أَفَرَاَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا وَ قَالَ لَاُوْتَيَنَّ مَالًا وَّ وَلَدًا اَطَّلَعَ الْغَيْبَ اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا كَلَّا سَنَكْتُبُ مَا يَقُوْلُ وَ نَمُدُّ لَهٗ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا وَ نَرِثُهٗ مَا يَقُوْلُ وَ يَاْتِيْنَا فَرْدًا.

اګر کـه تـه مړ شې' او بیا هم راژوندې شې. هغهٔ جواب راکـهٔ: ډیـره ښهٔ ده. زهٔ چه مړ شم' نو مال او آولاد طرف تـه بـه واپس شـم' هغه وخت به ئې ادا کړم' نو دغه وخت دا آیت نازل شو: افرایت الّذی: الـخ یعني آیا تا نولیدل' چـا چـه خمونږ ذ آیتونو نه انکار او کهٔ' او وئیلې' چه ماته بـه مـال او آولاد راکـړے شـي. آیـا دهٔ ته په غیبو اطلاع ورکـړے شـوے ده. یا د رحمٰن نه ئې پخه وعده آخستے ده' آخر پورے.

# سُوْرَةُ طٰهٰ

# دَ سورهٔ طٰهٰ تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ وَالضَّحَّاكُ بِالنَّبَطِيَّةِ طٰهٰ يَا رَجُلُ يُقَالُ كُلُّ مَالَمْ يَنْطِقْ بِحَرْفٍ اَوْ فِيْهِ تَمْتَمَةٌ اَوْ فَأْفَأَةٌ فَهِيَ عُقْدَةٌ اَزْرِيْ ظَهْرِيْ فَيُسْحِتَكُمْ يُهْلِكَكُمْ الْمُثْلٰى تَانِيْثُ الْاَمْثَلِ ثُمَّ ائْتُوْا صَفًّا يُقَالُ هَلْ اَتَيْتَ الصَّفَّ الْيَوْمَ يَعْنِي الْمُصَلّٰى الَّذِيْ يُصَلّٰى فِيْهِ فَاَوْجَسَ اَضْمَرَ خَوْفًا فَذَهَبَتِ الْوَاوُ مِنْ خِيْفَةٍ لِكَسْرَةِ الْخَاءِ فِيْ جُذُوْعِ اَيْ عَلٰى جُذُوْعِ خَطْبُكَ بَالُكَ مِسَاسٌ مَصْدَرُ مَاسَّهٗ مِسَاسًا لَنَنْسِفَنَّهٗ لَنُذْرِيَنَّهٗ قَاعًا يَعْلُوْهُ الْمَآءُ وَالصَّفْصَفُ الْمُسْتَوِيْ مِنَ الْاَرْضِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مِنْ زِيْنَةِ الْقَوْمِ الْحُلِيِّ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ابـن جبیـر او ضـحـاک وائي' حبشي ژبـه کـښې ذ "طٰه" مـطـلـب' چـه اے مـرده' یـا اے سـړیه. ذ "عقده" معني د غـوټـے دي' یعني ذ چا ذ ژبې نه صحیح لفظ نشي وتلے. "اَزری" یـعـنـي هغهٔ اوغرخوله. "ازری" مـعـنـي خما شا. "فیسحتکم" معني تاسو به هلاک کړي. "المثلٰی" دا ذ امثل مـونـث دے' مـعنـي دي' بهتره خبره' ښهٔ خبره. "ثمّ ائتوا صفا" صف جوړ کړے راشئې' یعني ذ مونځ په مقام صف کـښې راشـے' اودریـږے "فـاوجـس" معـنـي دي' اویریدلو. "خیفة" اصل کښې خوفًا وو. واو' یاء سره بدل شو. "فی جذوع النخل" ذ قـجـورے پـه ښاخونو. دلته "في" ذ علٰی پـه معني کښې دے. "خطبک" ستا څهٔ حال دے. ستا مـعـامـلـه څـنـګه ده. "مساس" مـس کول. دا مـصـدر دے. "لـنـنسفنّه" والوخوو. مونږ به هغه تس نس کـړو. "قـاعـا" هـغـه زمکه چه ذ هغې ذ پاسه اوبه راشي. "صـفـصـف" آوارے زمکے ته وائي. ذ مجاهد بیان دے.

الَّذِي اسْتَعَارُوا مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ فَقَذَفْتُهَا فَأَلْقَمْتُهَا أَلْقَى صَنَعَ فَنَسِيَ مُوسَى هُمْ يَقُولُونَهُ أَخْطَأَ الرَّبَّ لَا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا الْعِجْلُ هَمْسًا حِسُّ الْأَقْدَامِ حَشَرْتَنِي أَعْمَى عَنْ حُجَّتِي وَقَدْ كُنْتُ بَصِيرًا فِي الدُّنْيَا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِقَبَسٍ ضَلُّوا الطَّرِيقَ وَ كَانُوا شَاتِيْنَ فَقَالَ إِنْ لَمْ أَجِدْ عَلَيْهَا مَنْ يَهْدِي الطَّرِيقَ آتِكُمْ بِنَارٍ تُوقِدُونَ وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ أَمْثَلُهُمْ أَعْدَلُهُمْ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَضْمًا لَا يُظْلَمُ فَيُهْضَمُ مِنْ حَسَنَاتِهِ عِوَجًا وَادِيًا أَمْتًا رَابِيَةً سِيرَتَهَا حَالَتَهَا الْأُولَى النُّهَى التُّقَى ضَنْكًا الشَّقَاءُ هَوَى شَقِيَ الْمُقَدَّسِ الْمُبَارَكِ طُوًى اسْمُ الْوَادِي بِمَلْكِنَا بِأَمْرِنَا مَكَانًا سُوًى مَنْصَفٌ بَيْنَهُمْ يَبَسًا يَابِسًا عَلَى قَدَرٍ مَوْعِدٍ لَا تَنِيَا تَضْعُفَا.

"زينة القوم" نه مراد ذ بني اسرائيلو زيبائش دے. "آواز" معني بوج. "فقذفتها" معنـي دي ما هغه اوغرځولو. "فالقيتها" ما هغه اوغرځولو "فنسي" هغه نه هیر شولو "لا يرجع اليهم قولا" يعني هغه ذ هغوي ذ قول جواب هم نه ورکوي "همسا" ذ پښے آواز. "حشرتني اعمٰی" زهٔ دے ړوند ولے پاسولم' دُنيا کښې ماته رڼړا معلوميدله ابن عباسؓ وائي "بقبس" معني دي' موسٰي عليه السلام نه لار خطا شوه. سخته يخني وه. وئيلے' که څوک لار ښودُنکے مو بيا مندلو' نو خير' کني لږ غُندے اور به راوړم. ابن عيينه وائي "امثلهم" نه مراد پو هـ سړے دے. ابن عباسؓ وائي ابن عيينه وائي. "هضمًا" نه مراد دے' په هغهٔ به زياتے نهٔ کيږي. د هغهٔ ثواب به نهٔ کميږي "عوجا" معني کوږوالے. "امتا" معني بلندي. "سيرت" حالت. "النهٰی" عقل' التقی" بچ کيدل' پرهيزګاري. "ضنکا" بدبختي. "هوی" اوغرځيد. "شقي" تکليف کښې پريوت. "مقدس" پاک. "طوی" وادي. "بملکنا" خپل اختيار سره. "مکانا سوی" اوار ځائے. "يبسًا" خشک. "علٰی قدر" په اندازه. "موعد" ذ وخت مطابق. "لاتنيا" سستي مۀ کوئ' کمزوري مۀ کوی.

**باب ۲۹۹ : قَوْلِهِ وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِي.**

**باب ۲۹۹ :** آيت: وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِي: ذ الله تعالٰی قول' اے موسٰیؑ' ما ته ځان د پاره جوړ کړے ئے

۴۲۲۷: حَدَّثَنَا حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُونٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْتَقَى

۴۲۲۷: صلت بن محمد. مهدي بن ميمون. محمد بن سيرين. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' ذ حضرت آدمؑ او حضرت موسٰیؑ ملاقات اوشو' نو حضرت موسٰیؑ حضرت ادمؑ ته اووے' ته هغهٔ آدم ئے' چه هغه تول خلق

آدَمُ وَ مُوْسٰى فَقَالَ مُوْسٰى لِاٰدَمَ أَنْتَ الَّذِيْ أَشْقَيْتَ النَّاسَ وَ أَخْرَجْتَهُمْ مِنَ الْجَنَّةِ قَالَ لَهُ آدَمُ أَنْتَ الَّذِيْ اصْطَفَاكَ اللّٰهُ بِرِسَالَتِهٖ وَ اصْطَفَاكَ لِنَفْسِهٖ وَ أَنْزَلَ عَلَيْكَ التَّوْرَاةَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَوَجَدْتَّهَا كُتِبَ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِيْ قَالَ نَعَمْ فَحَجَّ آدَمُ مُوْسٰى اَلْيَمُّ الْبَحْرُ.

دې محنت کښې اوغورځول، او د جنت نه دې بهر له راوښکل حضرت آدمؑ ورته اوفرمائیل، آیا ته هغه موسیٰؑ نې، چه هغهٔ ته الله تعالي پیغمبري عطا کړله. خان ذ پاره نې خاص کړلو، او بیائې په تا تورات نازل کړلو. موسٰي علیه السلام جواب ورکه، جي، او، حضرت آدمؑ ورته اووې تا به خما حالات تورات کښې لوستي وي. جواب نې ورکهٔ، او، آدمؑ اووئیل خما پیدا کیدو نه وړاندې خدائې دا لیکلي وو. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، آدمؑ په موسیٰؑ غالب راغې. "یم" معني سمندر یا دریاب.

باب ۳۰۰: قَوْلِهٖ وَلَقَدْ أَوْحَيْنَا إِلٰى مُوْسٰى أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِيْ فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيْقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا لَّا تَخَافُ دَرَكًا وَّلَا تَخْشٰى فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُوْدِهٖ فَغَشِيَهُمْ مِنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ وَ أَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهٗ وَمَا هَدٰى.

باب ۳۰۰: آیت: وَلَقَدْ أَوْحَيْنَا إِلٰى مُوْسٰى أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِيْ: ذ الله تعالي قول، او مونږ موسیٰؑ ته وحي اوکړه، چه ته خمونږ بندیان شپه په شپه اوکاږه. بیا هغوي ذ پاره دریاب کښې خشکه (اوچه) لار جوړه کړه او هیڅ خوف او اندیښنه مه کوه. فرعون خپل لښکر سره هغوي پسې شو. بیا هغوي ذ دریاب موجونو راګیر کړل، او فرعون خپل قوم ګمراه کهٔ، ذ هدایت نه نې لرې کهٔ.

۴۲۳: حَدَّثَنِيْ يَعْقُوْبُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَالْيَهُوْدُ تَصُوْمُ عَاشُوْرَآءَ فَسَأَلَهُمْ فَقَالُوْا هٰذَا الْيَوْمُ الَّذِيْ ظَهَرَ فِيْهِ مُوْسٰى عَلٰى

۴۲۳: یعقوب بن ابراهیم. روح. شعبه. ابو بشر. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي. حضور صلي الله علیه وسلم چه کرم وخت ذ هجرت نه پس مدینې منورې ته تشریف راوړلو، نو یهودیان نې اولیدل، چه ذ عاشورې روژه نې نیولې وه. ذ هغوي نه نې ذ دې وجه اوپښتله، نو هغوي ورته اووې دا هغه ورځ ده، چه موسٰي علیه السلام په فرعون غلبه بیامُندې وه، نو حضور صلي الله علیه وسلم صحابهؓ ته اوفرمائیل، ذ

فِرْعَوْنَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْنُ اَوْلٰى بِمُوْسٰى مِنْهُمْ فَصُوْمُوْهُ.

حضرت موسیٰ دَ غالب راتللو مونږ له زیاته خوشحالي پکار ده، تاسو هم دا روژه اونیسئ.

## بَابُ ٣٠١: قَوْلِهٖ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقٰى.

## باب ٣٠١: آیت: فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقٰى: دَ الله تعالیٰ قول، چرته شیطان مو دَ جنت نه اونه کاږي.

٤٢٤: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ بْنُ النَّجَّارِ عَنْ يَحْيٰى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حَاجَّ مُوْسٰى اٰدَمَ فَقَالَ لَهُ اَنْتَ الَّذِيْ اَخْرَجْتَ النَّاسَ مِنَ الْجَنَّةِ بِذَنْبِكَ وَ اَشْقَيْتَهُمْ قَالَ قَالَ اٰدَمُ يَا مُوْسٰى اَنْتَ الَّذِيْ اصْطَفَاكَ اللّٰهُ بِرِسَالَتِهٖ وَ بِكَلَامِهٖ اَتَلُوْمُنِيْ عَلٰى اَمْرٍ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلَيَّ قَبْلَ اَنْ يَخْلُقَنِيْ اَوْ قَدَّرَهُ عَلَيَّ قَبْلَ اَنْ يَخْلُقَنِيْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَجَّ اٰدَمُ مُوْسٰى.

٤٢٤: قتیبه. ابو بن نجار. یحیٰي بن ابي کثیر. ابي سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلَم ارشاد اوفرمائیلو، حضرت موسیٰؑ حضرت آدمؑ ته اوفرمائیل، آیا ته هغه آدم نه یې، چه هغه ټول خلق پریشاني کښې اوغرځول، او جنت نه یې راوښکل. حضرت آدمؑ حضرت موسیٰؑ ته اووې، آیا ته هغه موسیٰؑ نه یې، چه هغه خدائے خپل رسالت او خپل کلام دَ پاره خوښ کړلو، نو آیا ته په ما د یو داسے څیز الزام عائد کوې، چه هغه دَ مخکښې نه خدائے تعالیٰ په تقدیر کښې لیکلے وو. حضور صلي اللّٰه علیه وسلَم فرمائي، چه آدمؑ خپل تقریر کښې په موسیٰؑ غالب راغلو.

# سُوْرَةُ الْاَنْبِيَآءِ

# دَ سورۀ انبیاء تفسیر

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

٤٢٥: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ

٤٢٥: محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابو اسحاق. عبدالرحمٰن بن زید. عبدالله بن مسعودؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، سورۀ بني اسرائیل، کهف،

يَزِيدَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَنِيٓ اِسْرَائِيْلَ وَالْكَهْفُ وَ مَرْيَمُ وَ طٰهٰ وَالْاَنْبِيَآءُ هُنَّ مِنَ الْعِتَاقِ الْاُوَلِ وَ هُنَّ مِنْ تِلَادِيْ وَ قَالَ قَتَادَةُ جُذٰذًا قَطَّعَهُنَّ وَ قَالَ الْحَسَنُ فِيْ فَلَكٍ مِثْلُ فِلْكَةِ الْمِغْزَلِ يَسْبَحُوْنَ يَدُوْرُوْنَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَفَشَتْ رَعَتْ يُصْحَبُوْنَ يُمْنَعُوْنَ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَاحِدَةً قَالَ دِيْنُكُمْ دِيْنٌ وَاحِدٌ وَ قَالَ عِكْرِمَةُ حَصَبُ حَطَبُ بِالْحَبْشِيَّةِ وَ قَالَ غَيْرُهُ اَحَسُّوْا تَوَقَّعُوْهُ مِنْ اَحْسَسْتُ خَامِدِيْنَ هَامِدِيْنَ حَصِيْدٌ مُسْتَاْصَلٌ يَقَعُ عَلَى الْوَاحِدِ وَالْاِثْنَيْنِ وَالْجَمِيْعِ لَا يَسْتَحْسِرُوْنَ لَا يُعْيُوْنَ وَ مِنْهُ حَسِيْرٌ وَ حَسَرْتُ بَعِيْرِيْ عَمِيْقٌ بَعِيْدٌ نُكِسُوْا رُدُّوْا صَنْعَةَ لَبُوْسٍ الدُّرُوْعُ تَقَطَّعُوْا اَمْرَهُمْ اخْتَلَفُوْا الْحَسِيْسُ وَالْحِسُّ وَالْجَرْسُ وَالْهَمْسُ وَاحِدٌ وَّهُوَ مِنَ الصَّوْتِ الْخَفِيِّ اٰذَنَّاكَ اَعْلَمْنَاكَ اٰذَنْتُكُمْ اِذَا اَعْلَمْتَهُ فَاَنْتَ وَهُوَ عَلٰى سَوَآءٍ لَمْ تَغْدِرْ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ لَعَلَّكُمْ تُسْئَلُوْنَ تُفْهَمُوْنَ اِرْتَضٰى رَضِيَ التَّمَاثِيْلُ الْاَصْنَامُ السِّجِلُّ الصَّحِيْفَةُ.

مريم، طٰهٰ او انبياء، دا مخكني سورتونه دي، چه مكه كښې نازل شوي وو، او ډير ښه او فصيح دي. خما پخواني ياد دي. قتاده وائي. "جذاذا" معنې ټکړې ټکړې دي. حسن بصري وائي "كل فى فلك" او ټول په يو دائره كښې چكر وهي، څنګه چه څرښه ګرځي. حضرت ابن عباسؓ وائي. "نفشت" معني دي، اوڅريدو. "يسبحون" لرې كړې شي يا منع كړې شي. "امتكم" معني ستاسو دين، مذهب. عكرمه وائي "حصب" معني دي ذ سوزيدو لرګي. نور وائي. "احسوا" معني توقع ئې بيامنده. دا ذ احسست نه وتلې دې، يعني آواز ئې بيامند. "خامدين" مړ يا مړاوې شوې. "حصيد" ريبلې فصل. ذ جرړې نه پريكړې شوې، دا مفرد، تثنيه جمع ټولو ذ پاره وئيلې شي. "لا يستحسرون" ستړې كيږي نه. "حسير" دې نه وتلې دې، لكه "حسرت بعيرى" ما اوښ ستړې كړلو. "عميق" دراز لرې. "نكسوا" اړولې كړې شو. "صنعة لبوس" ستاسو ذ لباس صنعت، يعني زغرې. "تقطعوا امرهم" خپل كار ئې پريكړلو. غُس كړلو. حسيس، حس، جرس او همس" ذ ټولو معني دي، يعني پست آواز. "اذناك" ته ئې آګاه كړې. "اذنتكم" ما تهٔ خبر كړې. "على سواء" برابري باندې. مجاهد وائي "لعلكم تسئلون" معني دي، شايد چه تاسو پوه شې. "ارتضى" راضي شو. "تماثيل" معني صورتونه. "سجل طومار" ذ كاغذونو پلنده "صحيفه" كتاب. كتابچه.

## بَاب ٢٠٢٣: قَوْلِهٖ كَمَا بَدَاْنَا اَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيْدُهٗ.

باب ٢٠٢٣: آيت: كَمَا بَدَاْنَا اَوَّلَ خَلْقٍ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، څنګه چه مونږ هغوي پيدا كړل.

٤٢٦٧: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ

٤٢٦٧: سليمان بن حرب. شعبه. مغيره بن نعمان

حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ النُّعْمَانِ شَيْخٌ مِنَ النَّخَعِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَطَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّكُمْ مَحْشُوْرُوْنَ اِلَى اللّٰهِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا كَمَا بَدَاْنَا اَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيْدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا اِنَّا كُنَّا فَاعِلِيْنَ ثُمَّ اِنَّ اَوَّلَ مَنْ يُكْسٰى يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اِبْرٰهِيْمُ اَلَا اِنَّهُ يُجَآءُ بِرِجَالٍ مِّنْ اُمَّتِيْ فَيُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ فَاَقُوْلُ يَا رَبِّ اُصَيْحَابِيْ فَيُقَالُ لَا تَدْرِيْ مَا اَحْدَثُوْا بَعْدَكَ فَاَقُوْلُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ وَ كُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ اِلٰى قَوْلِهٖ شَهِيْدٌ فَيُقَالُ اِنَّ هٰؤُلَآءِ لَمْ يَزَالُوْا مُرْتَدِّيْنَ عَلٰى اَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ.

شيخ نخعي. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. ذ قيامت په ورځ به تاسو ذ الله مخكښ داسې بربنډ جسم سره جمع شئ، څنګه چه تاسو ذ پيدائش په وخت بربنډ وئې. بيا به ذ ټولو نه مخكښ ابراهيم عليه السلام ته جامې واغستولې شي. خبردار شئ. څما ذ امت څۀ خلق به راوستلې شي. فريښتې به هغوي ونيسي او دوزخ ته به ئې بوځي. زۀ به اووائم پروردګاره، دا خو څما ذ اُمت خلق ذي. رب تعالي به فرمائي، دوي ستانه وروستو قسم قسم نوې خبرې راوبنکلې وې. دغه وخت به زۀ ترض اوکړم، کوم چه ذ الله نيک بنده حضرت عيسيٰ کړې وو، يعني چه څو پورې زۀ هغوي کښې ووم، ذ هغوي نګران ووم. خو څما نه پس ته ذ هغوي ګواه ئې. ارشاد به اوشي. اې محمدؐ، کوم وخت چه ته ذ دوي نه جدا شوې، نو دوي به پوندو واپس اوګرځيدل (يعني لار خطا شو).

# سُوْرَةُ الْحَجِّ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ الْمُخْبِتِيْنَ الْمُطْمَئِنِّيْنَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِيْ اُمْنِيَّتِهٖ اِذَا حَدَّثَ اَلْقَى الشَّيْطَانُ فِيْ حَدِيْثِهٖ فَيُبْطِلُ اللّٰهُ مَا يُلْقِي الشَّيْطَانُ وَ يُحْكِمُ اٰيَاتِهٖ وَ يُقَالُ اُمْنِيَّتُهٗ قِرَاءَتُهٗ اِلَّا اَمَانِيَّ يَقْرَءُوْنَ وَلَا يَكْتُبُوْنَ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مَشِيْدٌ

# دَ سورۀ حج تفسير

بِسْمِ اللّٰه الرَّحمنِ الرَّحِيْم

ابن عيينه وائي "مخبتين" عاجزي كونكي. په الله بهروسه كونكي. ابن عباسؓ وائي "امنيته" يعني كله چه پيغمبر يوه خبره كوي نو شيطان ذ هغۀ په خبره كښ خپل آواز يوځائې كړي څۀ خبرې كوي. بيا الله ذ شيطان خبره لرې كړي او خپل آيتونه محكم كړي. بعضې وائي. "امنيته" نه ذ نبي قرآن مراد دې "الا امانى" يعني لولي، ليكي نه. مجاهد وائي "مشيد" چونې

بِالْقَضْبِ وَ قَالَ غَيْرُهُ يَسْطُوْنَ يَفْرُطُوْنَ مِنَ السَّطْوَةِ وَ يُقَالُ يَسْطُوْنَ يَبْطِشُوْنَ وَ هُدُوْا اِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ أُلْهِمُوْا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِسَبَبٍ بِحَبْلٍ اِلٰى سَقْفِ الْبَيْتِ تَذْهَلُ تُشْغَلُ.

سره نيے مضبوط كه. نور وائي چه "يسطون" معني ذ زيادتے بعضے وائي' ذ دے ذ سخت نيولو دي. "و هدوا الى الطيب من القول" زړۀ كښې ښه خبره واچولے شوه. ابن عباسؓ "بسبب" معني ذ رسئ دي' چه چهت سره لړيدلے وي. "تذهل" معني مشغول شي.

۱. علامه انور شاه صاحب كشميري رحمة الله عليه د آيت ترجمه په دا شان كړے ده "هيڅ نبي بنده چا چه دا اُميد نه وي تړلے د خپل اُمت متعلق چه هدايت به ورته اوشي' نو شيطان د دغه خلقو په زړونو كښے كوګوالي پيدا كولو سره د هغه پيغمبر آرزو پوره كولو ته نه وي پريښے اوپه هغے كښے نے كهوټ نه وي اچولے".

**بـــاب۳۰۳: قَـــوْلُـــهٗ وَتَـــرَى الـــنَّـــاسَ سُكَارٰى.**

**باب۳۰۳:** آيت: وَ تَرَى النَّاسَ سُكٰرٰى: ذ الله تعالٰي قول: ذ محشر په ورځ به تاسو ته (خلق) داسے په نظر راځي' لكه مدهوش او نشه كښې بدمست.

۲۷: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَا اٰدَمُ يَقُوْلُ لَبَّيْكَ رَبَّنَا وَ سَعْدَيْكَ فَيُنَادِيْ بِصَوْتٍ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكَ اَنْ تُخْرِجَ مِنْ ذُرِّيَّتِكَ بَعْثًا اِلَى النَّارِ قَالَ يَا رَبِّ وَمَا بَعْثُ النَّارِ قَالَ مِنْ كُلِّ اَلْفٍ اُرَاهُ قَالَ تِسْعَ مِائَةٍ وَّ تِسْعَةً وَّ تِسْعِيْنَ فَحِيْنَئِذٍ تَضَعُ الْحَامِلُ حَمْلَهَا وَيَشِيْبُ الْوَلِيْدُ وَ تَرَى النَّاسَ سُكَارٰى وَمَا هُمْ بِسُكَارٰى وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيْدٌ فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَى النَّاسِ حَتّٰى تَغَيَّرَتْ وُجُوْهُهُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى

۲۷: عمر بن حفص. حفص. اعمش. ابو صالح. حضرت ابو سعيد خدري نه روايت كوي' حضور صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. ذ قيامت په ورځ به الله تعالي حضرت آدمؑ اوبلي' هغه به: لبيک ربنا و سعديک: ونيلو سره راشي' ذ خدائے په حكم به فريښته آواز اوكړي. اے آدمهؑ' ذ خپل اولاد نه دوزخ ذ پاره راوله. حضرت آدمؑ به وائي' څومره سړي راولم. فريښته به وائي زرو كښې يو كم زر (يعني هزار كښې ۹۹۹). دا وخت به داسے وي' چه ذ حامله ښځو حمل به اوغرځيږي' څلمي به بوډاګان شي. دے نه پس حضور صلي الله عليه وسلّم دا آيت تلاوت كړلو: وَ تَرَى النَّاسَ سُكْرٰى وَمَا هُمْ بِسُكَارٰى وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيْد. حضور صلي الله عليه وسلّم نه دے خبرے آوريدو سره د صحابهؓ مخونه د خوف نه زيړ شول حضور صلي الله عليه وسلّم ذ هغوي تسكين كولو سره اوفرمائيل. تاسو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ يَاجُوْجَ وَ مَاجُوْجَ تِسْعَ مِائَةٍ وَّ تِسْعَةً وَّ تِسْعِيْنَ وَ مِنْكُمْ وَاحِدٌ ثُمَّ اَنْتُمْ فِي النَّاسِ كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِيْ جَنْبِ الثَّوْرِ الْاَبْيَضِ اَوْ كَالشَّعْرَةِ الْبَيْضَاءِ فِيْ جَنْبِ الثَّوْرِ الْاَسْوَدِ وَ اِنِّيْ لَاَرْجُوْ اَنْ تَكُوْنُوْا رُبُعَ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا ثُمَّ قَالَ ثُلُثَ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا ثُمَّ قَالَ شَطْرَ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا قَالَ اَبُوْ اُسَامَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ تَرَى النَّاسَ سُكَارٰى وَمَاهُمْ بِسُكَارٰى وَ قَالَ مِنْ كُلِّ اَلْفٍ تِسْعَ مِائَةٍ وَّ تِسْعَةً وَّ تِسْعِيْنَ وَ قَالَ جَرِيْرٌ وَ عِيْسَى ابْنُ يُوْنُسَ وَ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ سَكْرٰى وَمَاهُمْ بِسَكْرٰى.

ولې دومره ويرېږي دا مقدار به ذ ياجوج ماجوج ذ سړو وي، تاسو کښې خو به زرو کښې يو دوزخي وي، لکه ذ سپين غوئ (بيل) اړخ کښې چه يو ويښته تور وي. او خما اُميد دې، چه تاسو به ټولو جنتيانو کښې څلورمه حصه ئې. او باقي درې حصو کښې نور ټول اُمتونه وي. دې آوريدو سره مونږ الله اکبر اووې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نه، بلکه تاسو به دريمه حصه ئې مونږ بيا تکبير اووې. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نه، نصف (نيم) به تاسو ئې. مونږ بيا تکبير اووې. ابو اسامه، اعمش نه دا شان روايت کوي چه دا مشهور روايت دې، چه هر هزار کښې ۹۹۹، او کاږې، نو دا ذ حفص ذ روايت مطابق کيږي. ذ ابو معاويه روايت کښې سکارٰی مفرد راغلې دې. او قرآن کښې بسکارٰی دې. (او دا ذ حمزه او کسائي قرأت دې).

باب ۳۰۴: قَوْلِهٖ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ شَكٍّ فَاِنْ اَصَابَهٗ خَيْرُ ن اطْمَاَنَّ بِهٖ وَ اِنْ اَصَابَتْهُ فِتْنَةُ ن انْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهٖ خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةَ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ اَتْرَفْنٰهُمْ وَسَّعْنَاهُمْ.

باب ۳۰۴: آيت: وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ: ذ الله تعالي قول، څه خلق داسې دي، چه ذ الله عبادت ذ تذبذب حالت کښې کوي، دا شان که هغوي ته څه فائده وي، نو مطمئن شي، او که نقصان وي، نو ذ دين نه اوګرځي (واوړي) هغوي ته دنيا او آخرت دواړو کښې نقصان دې. "اترفناهم" مونږ ذ هغوي روزي زياته کړې ده.

۴۲۸۷: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ

۴۲۸۷: ابراهيم بن حارث. يحيي بن بکير. اسرائيل. ابو حصين. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. ذ هغه بيان دې. يو سړې مدينه کښې اوسيدلو. او هغه داسې وو، چه ذ هغه ذ ښځې به هلک پيدا شو. او څناور به ئې نر راوړلو، نو ده به وئيل، اسلام

قَالَ كَانَ الرَّجُلُ يَقْدَمُ الْمَدِيْنَةَ فَاِنْ وَلَدَتِ امْرَاَتُهُ غُلَامًا وَ نُتِجَتْ خَيْلُهُ قَالَ هٰذَا دِيْنٌ صَالِحٌ وَ اِنْ لَّمْ تَلِدِ امْرَاَتُهُ وَلَمْ تُنْتَجْ خَيْلُهُ قَالَ هٰذَا دِيْنُ سُوْءٍ.

ډير بنه مذهب دے. او كه ذ دے برعكس به او شو، نو وئيل به ئے، دا دين ډير خراب او سپيره دے، (چه ما كره مادے (بنځے) پيدا كيږي. او د ذكر شوے آيت شان نزول هم دغه دے).

بَابُ ٣٠٥: قَوْلُهٖ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوْا فِيْ رَبِّهِمْ.

باب ٣٠٥: آيت: هٰذٰنِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوْا فِيْ رَبِّهِمْ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، دا دوه ډلے دي، چه ذ خپل پروردګار باره كښ جنګ كوي.

٤٢٩: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ هَاشِمٍ عَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ اَنَّهُ كَانَ يُقْسِمُ فِيْهَا اَنَّ هٰذِهِ الْاٰيَةَ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوْا فِيْ رَبِّهِمْ نَزَلَتْ فِيْ حَمْزَةَ وَ صَاحِبَيْهِ وَ عُتْبَةَ وَ صَاحِبَيْهِ يَوْمَ بَرَزُوْا فِيْ يَوْمِ بَدْرٍ رَوَاهُ سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ هَاشِمٍ وَ قَالَ عُثْمَانُ عَنْ جَرِيْرٍ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ هَاشِمٍ عَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ قَوْلَهٗ.

٤٢٩: حجاج بن منهال. ابو هاشم. ابو مجلز. قيس بن عباد. حضرت ابوذرؓ نه روايت كوي، هغه قسم سره اووے، دا آيت: هٰذٰن خصمان اختصموا في ربهم الخ: ذ حضرت عليؓ او حضرت حمزهؓ او ذ هغوي مقابل شيبه او وليد متعلق ذ جنګ بدر په ورځ هغه وخت نازل شولو، كوم وخت چه دوي ذ جنګ ذ پاره روان وو. دا حديث سفيان ثوري ذ ابو هاشم نه او عثمان ذ جرير نه او هغه ذ منصور نه او هغه ذ ابو هاشم نه او هغه ذ ابو مجلز نه روايت كوي.

٤٣٠: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ قَالَ اَنَا اَوَّلُ مَنْ يَّجْثُوْا بَيْنَ يَدَيِ الرَّحْمٰنِ لِلْخُصُوْمَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ قَيْسٌ وَ فِيْهِمْ نَزَلَتْ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوْا فِيْ رَبِّهِمْ قَالَ هُمُ الَّذِيْنَ بَارَزُوْا يَوْمَ بَدْرٍ عَلِيٌّ وَ حَمْزَةُ

٤٣٠: حجاج بن منهال. معتمر بن سليمان. ذ هغهٔ پلار. ابو مجلز. قيس بن عباد. حضرت علي بن ابي طالبؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے. ذ قيامت په ورځ به زهٔ ورمبنے سړے يم، چه اللّٰه تعالٰي سره به په جګړه شم، يعني خپله مقدمه به پيش كړم. ذ قيس بيان دے. دا آيت: هٰذٰن خصمان اختصموا في ربهم الخ: ذ هغے خلقو په حق كښ نازل شوے دے، چه ذ بدر په ورځ جنګ ذ پاره ميدان ته وتلے وو. يعني حضرت عليؓ او حضرت حمزهؓ

وَ عُبَيْدَةُ وَ شَيْبَةُ بْنُ رَبِيْعَةَ وَ عُتْبَةُ بْنُ رَبِيْعَةَ وَالْوَلِيْدُ بْنُ عُتْبَةَ.

ذ مسلمانانو د طرف نه او ذ کافرو ذ طرف نه عتبه، شيبه او وليد وتلي وو.

# سُوْرَةُ الْمُؤْمِنُوْنَ

# ذَ سورهٔ مؤمنون تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ سَبْعَ طَرَائِقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ لَهَا سَابِقُوْنَ سَبَقَتْ لَهُمُ السَّعَادَةُ قُلُوْبُهُمْ وَجِلَةٌ خَائِفِيْنَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ بَعِيْدٌ بَعِيْدٌ فَاسْئَلِ الْعَآدِّيْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ لَنَاكِبُوْنَ لَعَادِلُوْنَ كَالِحُوْنَ عَابِسُوْنَ مِنْ سُلَالَةٍ اَلْوَلَدُ وَالنُّطْفَةُ السُّلَالَةُ وَالْجِنَّةُ وَالْجُنُوْنُ وَاحِدٌ وَالْغُثَآءُ الزَّبَدُ وَمَا ارْتَفَعَ عَنِ الْمَآءِ وَمَا لَا يُنْتَفَعُ بِهٖ يَجْاَرُوْنَ يَرْفَعُوْنَ اَصْوَاتَهُمْ كَمَا تَجْاَرُ الْبَقَرَةُ عَلٰى اَعْقَابِكُمْ رَجَعَ عَلٰى عَقِبَيْهِ سَامِرًا مِنَ السَّمَرِ وَالْجَمِيْعُ السُّمَّارُ وَالسَّامِرُ هٰهُنَا فِيْ مَوْضِعِ الْجَمْعِ تُسْحَرُوْنَ تَعْمُوْنَ مِنَ السِّحْرِ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ذ ابن عيينه بيان دے چه "سبع طرائق" نه اوه آسمانه مراد دي. "لها سابقون" معني دي چه پيش پيش (مخکښ مخکښ) وي. "وجلة" ويريدونکي ذ حضرت ابن عباس بيان دے ذ "هيهات هيهات" مطلب دے، لرے دے، لرے دے. "فاسئل العادين" ګنتي (شمير) کونکو نه تپوس اوکه. "لناکبون" ذ نيغے لارے نه کرخيدونکي. "کالحون" ترشرو خلق. بعضے "سلاله" معني دي بچے او نطفه. "جنة" او "جنون" ديوانګي، ليونتوب، پاګل پن. "غثاء" زګ، چه ذ هغے نه نفع نشي اخستے. "يجارون" آواز به بلند کړي، لکه ذ غوا (ګاے) هغه آواز چه ذ تکليف په وخت اوخي. "علٰى اَعْقَابِكُمْ" په پوندو واپس اوګرخيدئ. ذ عربو مقوله ده "رجع علٰى عقبيه" مخ په شا روان شو. "سامرًا" قصه ګو، فسانه ګو، دا ذ "سمر" جمع ده، "تسحرون" ذ جادو نه ړنديدل.

# سُوْرَةُ النُّوْرِ

# ذَ سورهٔ نور تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مِنْ خِلَالِهٖ مِنْ بَيْنِ اَضْعَافِ السَّحَابِ سَنَابَرْقِهٖ الضِّيَاءُ مُذْعِنِيْنَ يُقَالُ لِلْمُسْتَخْذِئِ مُذْعِنٌ اَشْتَاتًا وَّ شَتّٰى وَ شَتَّاتٌ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"يخرج من خلاله" ذ وريځو ذ مينځ نه اوخي. "سنابرقه" ذ هغے ذ بجلي رڼا. "مذعنين" عاجزي کونکے. دا ذ مذعن جمع ده. "اشتاتًا" شي، شتات، شت، ذ ټولو معني دي. ابن عباس وائي "سورة انزلنها" معني، مونږ هغه

وَ شَئٌ وَاحِدٌ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ سُوْرَةٌ اَنْزَلْنَاهَا بَيَّنَّاهَا وَ قَالَ غَيْرُهٗ سُمِّيَ الْقُرْاٰنُ لِجَمَاعَةِ السُّوَرِ وَ سُمِّيَتُ السُّوْرَةُ لِاَنَّهَا مَقْطُوْعَةٌ مِنَ الْاُخْرٰى فَلَمَّا قُرِنَ بَعْضُهَا اِلٰى بَعْضٍ سُمِّيَ قُرْاٰنًا وَ قَالَ سَعْدُ بْنُ عِيَاضٍ الثُّمَالِيُّ الْمِشْكٰوةُ اَلْكُوَّةُ بِلِسَانِ الْحَبْشَةِ وَ قَوْلُهٗ تَعَالٰى اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَ قُرْاٰنَهٗ تَاْلِيْفَ بَعْضِهٖ اِلٰى بَعْضٍ فَاِذَا قَرَاْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ اَيْ مَا جُمِعَ فِيْهِ فَاعْمَلْ بِمَا اَمَرَكَ وَانْتَهِ عَمَّا نَهَاكَ اللّٰهُ وَ يُقَالُ لَيْسَ لِشِعْرِهٖ قُرْاٰنٌ اَيْ تَاْلِيْفٌ وَ سُمِّيَ الْفُرْقَانُ لِاَنَّهٗ يُفَرِّقُ بَيْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ وَ يُقَالُ لِلْمَرْاَةِ مَا قَرَاَتْ بِسَلًا قَطُّ اَيْ لَمْ تَجْمَعْ فِيْ بَطْنِهَا وَلَدًا وَ قَالَ فَرَّضْنَاهَا اَنْزَلْنَا فِيْهَا فَرَائِضَ مُخْتَلِفَةً وَمَنْ قَرَاَ فَرَضْنَاهَا يَقُوْلُ فَرَضْنَا عَلَيْكُمْ وَ عَلٰى مَنْ بَعْدَكُمْ قَالَ مُجَاهِدٌ اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا لَمْ يَدْرُوْا لِمَا بِهِمْ مِنَ الصِّغَرِ وَقَالَ الشَّعْبِيُّ اُوْلِي الْاِرْبَةِ مَنْ لَيْسَ لَهٗ اَرَبٌ وَ قَالَ طَاوُسٌ هُوَ الْاَحْمَقُ الَّذِيْ لَا حَاجَةَ لَهٗ فِي النِّسَآءِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ لَا يُهِمُّهٗ اِلَّا بَطْنُهٗ وَلَا يُخَافُ عَلَى النِّسَآءِ.

بیان کړلو. او ذ نورو خلقو وینا ده' چه ذ سورتونو مجموعے ته قرآن وائي. او سورت ته سورت ځکه وائي' چه هغه ذ بل نه جدا وي او کوم چه یو ځائے وي هغے ته قرآن وائي. ذ سعد بن عیاض ثمالي بیان دے' چه دا ابن شاهین وصل کړے دے. "مشکاة" ذ ډیوے ایښودلو ځائے. دا ذ حبشي ژبے لفظ دے. "ان علینا جمعه و قرانه" بیشکه ذ قرآن لولول خمونږ په ذمه دي. "تالیف" یو ځائے کول. "فاذا قراناه فاتّبع قرانه" کوم وخت چه مونږ اووایو' نو ته د هغے پیروي کوه. "قراناه" معني مونږ اولولو. "الفناه" دا راجمع کړو. او قرآن ته فرقان هم وائي ځکه چه دا حق او باطل جُدا جُدا کوي. او اهل عرب ذ ښځو' د پاره وائي. "ما قَرأتْ بِسَلا قطُّ" یعني هغے خپلے خیټه کښ بچے هیڅ کله نهٔ دے ساتلے. او څوک چه "فرضنها" تشدید سره لولي' نو د هغے دا معني دي' چه مونږ مختلف فرائض راکوز کړل. او څوک چه "فرضنها" بلا تشدید لولي' نو ذ هغے دا معني دي' چه مونږ په تاسو باندے او د قیامت ذ ورځے پورے په راتلونکو فرض کړل. مجاهد وائي' "او الطفل الّذین لم یظهروا علی عورات النساء" نه مراد هغه بچي دي' چه لا ذ ښځو ذ پردے ذ خبرو نه آګاه نهٔ دي. شعبي او طاؤس وائي' دے نه هغه احمق بیوقوف' مراد دي' چه د ښځو نه بے پروا وي' یعني دے طرف ته ئے څهٔ خیال نه وي طاؤس دے سره وصل کوي. خو ذ مجاهد بیان دے "اولی الاربة" دے ته وائي' چه ذ خوراک څکاک نه سوا بل څه غرض نهٔ لري' د ښځو باره کښ د هغوئ نه څه ویره نه وي.

بـــاب۳۰۶: قَـــوْلُـــــهٗ وَالَّــــذِيْـــنَ يَـــــرْمُـــوْنَ أَزْوَاجَهُــــمْ وَلَـــمْ يَــكُــنْ لَّـهُمْ شُـهَـدَآءُ إِلَّا أَنْـفُـسُـهُـمْ فَشَهَادَةُ أَحَــدِهِـمْ أَرْبَــعُ شَهَــادَاتٍ بِــالــلّٰـــهِ إِنَّــــهٗ لَـمِــنَ الصّٰدِقِيْنَ.

۴۳۱۷: حَـدَّثَـنَـا إِسْحٰقُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ قَـالَ حَـدَّثَـنِـي الزُّهْرِيُّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ عُـوَيْـمِرًا أَتَـى عَـاصِمَ بْنَ عَـدِيٍّ وَ كَانَ سَيِّدَ بَنِيْ عِجْلَانَ فَقَالَ كَيْفَ تَـقُـوْلُـوْنَ فِـيْ رَجُـلٍ وَجَدَ مَعَ امْـرَأَتِـهٖ رَجُلًا أَيَـقْـتُـلُهٗ فَتَقْتُلُوْنَهٗ أَمْ كَيْفَ يَـصْـنَـعُ سَلْ لِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَـأَتَـى عَاصِمٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ فَـقَـالَ يَـا رَسُـوْلَ اللّٰهِ فَكَرِهَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْـمَـسَـائِـلَ فَسَـأَلَهٗ عُوَيْمِرٌ فَقَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَـرِهَ الْـمَـسَـائِـلَ وَ عَـابَهَـا قَـالَ عُوَيْمِرٌ وَالـلّٰـهِ لَا أَنْتَهِـيْ حَتّٰـى أَسْأَلَ رَسُوْلَ الـلّٰـهِ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَـجَاءَ عُوَيْمِرٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ رَجُـلٌ وَجَـدَ مَعَ امْرَأَتِهٖ رَجُلًا أَيَقْتُلُهٗ

باب۳۰۶: آیت: وَالَّـذِيْنَ يَرْمُوْنَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَآءُ: د الـلّٰـه تـعـالي قول، او کوم خلق چه په خپلو بیبیانو تهمت اولږوي. خو ذ هغوي نه سِوا ذ هغوي بـل څـوک ګـواه نـه وي، نـو هغوي کښې ذ یو ګواهي دا پکار ده، چه هغه به د اللّٰه قسم خوري، او څلور ځله به دا اووائي، چه زهٔ رِیښتنے یم، او په پنځم ځل به دا اووائي، که زهٔ دروغجن یم، نو په ما دے ذ اللّٰه لعنت وي.

۴۳۱۷: اسحـاق. محـمـد بن یوسف. اوزاعي. زهـري. حـضـرت سهـل بـن سـعـدؓ نـه روايت کوي، ـ هغـهٔ بیان دے، عـویـمـر بـن حـارث، عاصم بن عدي لـه راغـے، چـه ذ بـنـي عجلان سـردار وو. او ورے ونیل دا راتـه اووایـه، کـه یـو سړے بل سړے خپلے ښځے سره پـه زنـا کـولـو اووینـي، نو څـهٔ بـه کـوي، آیا پـه هغهٔ بـه قـصـاص وي، یـا نهٔ دے وژني نو بیا به څهٔ کوي. دا خبره تـهٔ ذ نبـي صـلـي الـلّٰــه عـلیـه وسلّم نـه اوپُښته، عاصم حـضـور صـلـي الـلّٰــه علیه وسلّم لـه راغـے، او تپوس ئے اوکـهٔ. نـو حـضـور صـلـي الـلّٰـه عـلیـه وسلّم ذ داسے مسـائـلـو پښتـل نـاخـوښـه کـړل، عـاصـم لاړ، او عویمر تـه ئے دغسے بیـان اوکـهٔ، خـو عویمر اووے، په خدائے م دے قـسـم وي. زهٔ هیـڅ کـلـه دے خبـرے نـه منـع کیـدے نشـم. څـو چـه دے مسئلے ذ حضور صـلـي الـلّٰـه علیـه وسـلّم نـه تپوس اونـهٔ کړم. بیا هغه نبـي صـلـي الـلّٰـه علیـه وسـلّم لـه راغـے، او ذ حضور نـه ئے تپـوس اوکـهٔ، یـا رسـول الـلّٰهٔ، که یو سړے خپلے ښځے سره بـل سـړے پـه زنـا اووینـي، نو څهٔ ورله کول پکـار دي. نـو تـاسـو بـه بـیـا دغـه سـړے وژنئ اوکه

تَقْتُلُوْنَهُ اَمْ كَيْفَ يَصْنَعُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ الْقُرْاٰنَ فِيْكَ وَ فِيْ صَاحِبَتِكَ فَاَمَرَهُمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمُلَاعَنَةِ بِمَا سَمَّى اللّٰهُ فِيْ كِتَابِهٖ فَلَاعَنَهَا ثُمَّ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ حَبَسْتُهَا فَقَدْ ظَلَمْتُهَا فَطَلَّقَهَا فَكَانَتْ سُنَّةً لِمَنْ كَانَ بَعْدَهُمَا فِي الْمُتَلَاعِنَيْنِ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُنْظُرُوْا فَاِنْ جَاءَتْ بِهٖ اَسْحَمَ اَدْعَجَ الْعَيْنَيْنِ عَظِيْمَ الْاَلْيَتَيْنِ خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ فَلَا اَحْسَبُ عُوَيْمِرًا اِلَّا قَدْ صَدَقَ عَلَيْهَا وَ اِنْ جَاءَتْ بِهٖ اُحَيْمِرَ كَاَنَّهٗ وَحَرَةٌ فَلَا اَحْسَبُ عُوَيْمِرًا اِلَّا قَدْ كَذَبَ عَلَيْهَا فَجَاءَتْ بِهٖ عَلَى النَّعْتِ الَّتِيْ نَعَتَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ تَصْدِيْقِ عُوَيْمِرٍ فَكَانَ بَعْدُ يُنْسَبُ اِلٰى اُمِّهٖ.

څه به کوي حضور صلي الله عليه وسلم ورته ارشاد اوفرمائيلو الله ستاسو او ستاسو د ښځو په حق کښې د قرآن آيت نازل کړے دے[1]. او د لعان حکم ئے کړے دے. نو عويمر د حضورﷺ حکم سره ښځې سره لعان اوکړه. يا رسول الله، که اوس زهٔ دا خان سره ساتم نو ګويا په دے ظلم کوم. په دے زجه هغے له ئے طلاق ورکړه. دے نه پس د سړي او ښځې تر مينځه دا طريقه رائج شوه. بيا حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل د دے خبرے خيال ساته او ګوره چه د دے ښځې بچے د کوم شکل پيدا کيږي که سکنړ رنګ واله، تورے سترګے او غټو پنډو واله وي نو ماته به پته اولږي چه د عويمر خيال د ښځې متعلق ټيک وو، او که سور رنګ واله، خنګه چه د عويمر رنګ دے پيدا شو، نو ماته به پته اولږي چه عويمر په ښځه د دروغے تهمت لږولے دے. آخر چه د ښځې بچے پيدا شو او اوکتلے شو نو معلومه شوه، چه تورے سترګے سکنړ رنګ او غټ کوناټو واله دے نو بچے د مور نسب سره منسوب کړے شو.

١. که چرے خاوند خپله ښځه چا سره په زنا کښې مبتلا اُويني نو ظاهره ده چه هغه به ئے نورو ته ښودل خوښ نه کړي. د يخوا په شريعت کښې د زنا احکام ډير سخت دي ددے سزا هم هغه هومره سخته ده خومره چه ثبوت ئے خائے نه رسول. د زنا شرعي سزا هغه وخت ورکيدے شي کله چه څلور رښتيني او عادلان ګواهان عين په حالت د زنا کښې سړے او ښځه په خپلو سترګو سره د ليدلو په صفا لفظونو کښې ګواهي ورکړي. که چرے چا په چا باندے د زنا الزام اولګولو او د اسلامي قانون مطابق ګواهان ئے پيش نه کړے شو نو د هغه سزا هم ډيره سخته ده.

اوس که چرے يو غيرتي خاوند خپله ښځه په دے عظيمه ګناه کښې مبتلا اُويني نو هغه د پاره غبرګ مصيبت دے، ظاهره ده چه نهٔ هغه ته دومره مهلت ملاويدے شي چه څلور ګواهان راولي او ورنه ئے اوښائي

اوسه سے بحبله کوارا کولے شي په داسے صورت کښے که چرے هغه په خپله ښځه باندے د زنا الزام لګوي نو د حد قذف (یعني د زنا د الزام سزا) مستحق ګرځي او که چرے خاموش پاتے کیږي نو دا هم د هغه د پاره ناقابل برداشت خبره ده. او که چرے قانون په خپل لاس کښے واخلي او پخپله څه اقدام او کړي نو هغه نه بیا د قانون ماتولو سزا زغمل وي.

همدغه شان یو صورت حال د حضور اکرم صلي الله علیه وسلم په مبارک زمانه کښے هم پیښ شوے وو او قرآن مجید د دغے مشکل حل دا اوښودلو چه که چرے داسے یو صورت پیښ شي نو خاوند له اسلامي عدالت ته راتلل پکار دي او خپلے ښځے سره لعان کول پکار دي. د لعان طریقه داده چه خاوند به په عدالت کښے اودریږي او دا به اووائي چه "زه په الله باندے قسم خورم چه ما په خپله ښځه باندے د زنا کوم الزام لګولے دے په هغے کښے زه ریښتینے یم". دا الفاظ به دے څلور ځلے وائي. او په پنځم ځل به اووائي چه "که چرے زه به دے خپل الزام کښے دروغژن یم نو په ما د الله لعنت وي".

اوس که چرے ښځه د خپل خاوند دے الزام نه انکار کوي نو هغے ته به هم اوویلے شي چه څلور ځلے د په الله باندے قسم اوخوري او اووائي چه "بیشکه خما خاوند د زنا په دے الزام لګولو کښے دروغژن دے". او په پنځم ځل به اووائي چه "که چرے دے رشتینے وي نو په ما د الله غضب وي".

که چرے هغے په دے ذکر شوے طریقے سره د خاوند د الزام تردید او کړو نو په هغے باندے به د زنا حد نشي لګولے. همدا هغه طریقه ده کومه چه په دے صورت حال کښے قرآن مجید ښودلے ده. د لعان نه پس به د خاوند او ښځے تر مینځه جدائي راوستے شي.

**باب ۳۰۷: قَوْلِهِ وَالْخَامِسَةُ اَنَّ لَعْنَةَ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِيْنَ.**

**باب ۳۰۷:** آیت: وَالْخَامِسَةُ اَنَّ لَعْنَةَ اللّٰهِ عَلَيْهِ: دَ الله تعالي قول' که په پنځم ځل (تهمت لږونکے) دا اووائي' که زهٔ دروغجن یم' نو په ما دے دَ الله لعنت وي.

۴۳۲۷: حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ اَبُو الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ رَجُلًا اَتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَاَيْتَ رَجُلًا رَاٰى مَعَ امْرَاَتِهٖ رَجُلًا يَقْتُلُهٗ فَتَقْتُلُوْنَهٗ اَمْ كَيْفَ يَفْعَلُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِمَا مَا ذُكِرَ فِي الْقُرْاٰنِ مِنَ التَّلَاعُنِ فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قُضِيَ

۴۳۲۷: سلیمان بن داؤد. ابو ربیع. فلیح. زهري. سهل بن سعد نه روایت کوي' یو سړے حضور صلي الله علیه وسلم له راغے' او' وئیلے' یا رسول الله' په دے م پوهه کړه' که یو سړے خپله ښځه بل سړي سره په زنا کولو اووینې' او هغه' هغه مړ کړي' نو آیا په هغه به قصاص وي. او که څه به کوي؟ هغه وخت دَ خدائے دَ طرف نه د هغوي د ملاعنه آیت نازل شولو. نو حضور صلي الله علیه وسلم ورته اووے چه الله تعالي ستا او ستا د ښځے معامله کښې د لعنت کولو حکم نازل کړے دے. نو عویمر د حضور صلي الله علیه وسلم مخکښې ملاعنه

فِيْكَ وَ فِيْ اِمْرَاَتِكَ قَالَ فَتَلَاعَنَا وَ اَنَا شَاهِدٌ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفَارَقَهَا فَكَانَتْ سُنَّةً اَنْ يُفَرَّقَ بَيْنَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ وَ كَانَتْ حَامِلًا فَاَنْكَرَ حَمْلَهَا وَ كَانَ ابْنُهَا يُدْعٰى اِلَيْهَا ثُمَّ جَرَتِ السُّنَّةُ فِي الْمِيْرَاثِ اَنْ يَّرِثَهَا وَ تَرِثَ مِنْهُ مَا فَرَضَ اللّٰهُ لَهَا.

اوکړله. او زه هم هغه وخت هلته موجود وو. څو بيا عويمر اووې چه دې سره څما تسلي اونه شوه. حضور صلي الله عليه وسلم د طلاق حکم ورکړلو. ښځه هغه وخت حامله وه. عويمر اووې. دا څما نطفه نه ده. آخر هلک پيدا شو، نو خلقو هغه مور طرف ته منسوب کړلو. دے نه پس ميراث کښې مور د خوی وارثه شوه. او مور ته به مقرره حصه حاصليده کومه چه کتاب الله کښې ده.

بَابٌ ۳۰۸: قَوْلُهٗ وَ يَدْرَاُ عَنْهَا الْعَذَابَ اَنْ تَشْهَدَ اَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللّٰهِ اِنَّهٗ لَمِنَ الْكَاذِبِيْنَ.

باب ۳۰۸: آيت: و يدرأ عنها العذاب: د الله تعالي قول: د ملزمه (هغه ښځه چه الزام پرے لګيدلے وي) نه دا شان سزا لرے کيدے شي، چه هغه څلور ځله د الله قسم اوخوري، او دا اووائي، چه د هغې خاوند دروغجن دے، او په پنځم ځل دا اووائي، که هغه رښتنے وي نو په ما دے د الله لعنت وي.

۴۷۳۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانٍ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ هِلَالَ ابْنَ اُمَيَّةَ قَذَفَ امْرَاَتَهٗ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَرِيْكِ بْنِ سَحْمَاءَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيِّنَةَ اَوْ حَدٌّ فِيْ ظَهْرِكَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِذَا رَاٰى اَحَدُنَا عَلٰى امْرَاَتِهٖ رَجُلًا يَنْطَلِقُ يَلْتَمِسُ الْبَيِّنَةَ فَجَعَلَ النَّبِيُّ

۴۷۳۳: محمد بن بشار. ابن ابي عدي. هشام بن حسان. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، يو ځل هلال بن اميه په ښځے شريک بن سحماء سره د زنا کولو د حضور صلي الله عليه وسلم په مخکښې تهمت اولګولو. نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. هلاله، ګواه راوله، کني به تا به د تهمت لګولو حد جاري کړے شي. هغه اووے، اے د الله رسوله، مونږ کښې چه څوک خپله ښځه چاسره په زنا کولو اووينې، نو ګواه به کوم خائے ګوري. دا څو ډيره ګرانه ده څو حضور صلي الله عليه وسلم به ورته هم دغه فرمائيل، چه ګواه راوله، کني حد قذف به جاري کولے شي. هلال اووے، په هغه خدائے م دے قسم وي، چه تاسونے په حقه نبي راليږلے

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْبَيِّنَةَ وَ اِلَّا حَدٌّ فِيْ ظَهْرِكَ فَقَالَ هِلَالٌ وَ الَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ اِنِّيْ لَصَادِقٌ فَلَيُنْزِلَنَّ اللّٰهُ مَا يُبَرِّئُ ظَهْرِيْ مِنَ الْحَدِّ فَنَزَلَ جِبْرِيْلُ وَ اَنْزَلَ عَلَيْهِ وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ اَزْوَاجَهُمْ فَقَرَاَ حَتّٰى بَلَغَ اِنْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ فَانْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَرْسَلَ اِلَيْهَا فَجَآءَ هِلَالٌ فَشَهِدَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ اَنَّ اَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ ثُمَّ قَامَتْ فَشَهِدَتْ فَلَمَّا كَانَتْ عِنْدَ الْخَامِسَةِ وَقَّفُوْهَا وَ قَالُوْا اِنَّهَا مُوْجِبَةٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَتَلَكَّاَتْ وَ نَكَصَتْ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهَا تَرْجِعُ ثُمَّ قَالَتْ لَا اَفْضَحُ قَوْمِيْ سَائِرَ الْيَوْمِ فَمَضَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبْصِرُوْهَا فَاِنْ جَآءَتْ بِهٖ اَكْحَلَ الْعَيْنَيْنِ سَابِغَ الْاَلْيَتَيْنِ خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ فَهُوَ لِشَرِيْكِ بْنِ سَحْمَآءَ فَجَآءَتْ بِهٖ كَذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا مَا مَضٰى مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ لَكَانَ لِيْ وَلَهَا شَاْنٌ.

نے' زهٔ ريښتينے يم. او الله به ضرور خما معامله کښې څه حکم راوليږي. دغه وخت جبرائيل دے ايت: وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ اَزْوَاجَهُمْ. صَادِقِيْنَ الخ: سره راغلو. دے نه پس حضور صلي الله عليه وسلّم متوجه شولو. هغه ښځه ئے راوغښتله هلال هم راغے' او لعان ئے اوکهٔ. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' الله ښه پوهيږي' چه تاسو دواړو کښې ريښتينے څوک دے. او د يو کس خبره ضرور دروغ ده. بيا تاسو کښې څوک شته' چه توبه اوکاږي. بيا هغه ښځه اُودريده او ځلور خله ئے داسے لعان اوکهٔ' او ونيلے' زهٔ الله کواه کوم' او وايم' چه زهٔ ريښتنے يم او په پنځم خل چه دائے ونيلے' که زهٔ دروغجنه يم' په ما دے د الله لعنت وي' نو خلقو ورته اووے' چه دا لويه او سخته خبره ده' داسے مه وايه' ځکه که دروغ وي' نو دَ عذاب باعث ده' ابن عباس وائي. دے آوريدو سره هغه ساه نيولے غندے شوه' او ځټ ئے خکته کړلو' مونږ سوچ اوکهٔ' شايد چه دا رجوع اوکړي. خو هغے په پنځم خل دا اووے آيا زهٔ په خپل قوم داغ اولږوم' دا جمله ئے ادا کړله. نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ګورے' که بچے تورے ستر ګے' غټ کوناټي او غټو پنډو واله وي' نو پوهه شئے' چه دَ شريک بن سحماء خوئے دے' نو ښځے هم دغه شان بچے راوړلو. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' که د خدائے دَ طرفه دَ لعان حکم نهٔ وے راغلے' نو ناسو به ليدلے وو' چه ما دے له څنګه سزا ورکوئے.

## باب ۳۰۹: قَوْلُهٗ وَالْخَامِسَةُ

## باب ۳۰۹: آيت: وَالْخَامِسَةُ اَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ

أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ.

عليها: د الله تعالي قول: په پنځم ځل دې ښځه داسې اووائي: كه الزام او تهمت لړونكې رښتينې وي: نو په ما دې د خدائې لعنت وي.

٤٣٤: حَدَّثَنَا مُقَدَّمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيٰى حَدَّثَنَا عَمِّي الْقَاسِمُ بْنُ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ وَقَدْ سَمِعَ مِنْهُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَجُلًا رَمٰى امْرَأَتَهُ فَانْتَفٰى مِنْ وَلَدِهَا فِيْ زَمَانِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ بِهِمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَلَاعَنَا كَمَا قَالَ اللّٰهُ ثُمَّ قَضٰى بِالْوَلَدِ لِلْمَرْأَةِ وَ فَرَّقَ بَيْنَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ.

٤٣٤: مقدم بن محمد. يحيي. قاسم بن يحيي. عبيدالله. نافع. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، يو سړي عويمر په خپله ښځه د زنا تهمت اولږولو او د هغې د حمل متعلق ئې اُووې: چه دا خما نطفه نه ده. او دا د حضور صلي الله عليه وسلم د زمانې واقعه ده: نو حضور صلي الله عليه وسلم د هغې متعلق حكم اوفرمائيلو، چه لعان دې او كړې شي. دواړو لعان اوكړلو دے نه پس ئې بچې ښځې له ور كړلو، او د سړي او ښځې مينځ كښې ئې جدائي راوسته (يعني هغې له ئې طلاق ور كړ).

باب ٣١٠: قَوْلِهِ اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْا بِالْاِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنْكُمْ لَا تَحْسَبُوْهُ شَرًّا لَّكُمْ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْاِثْمِ وَالَّذِيْ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ مِنْهُمْ لَهٗ عَذَابٌ عَظِيْمٌ. اَفَّاكٌ كَذَّابٌ.

باب ٣١٠: آيت: اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْا بِالْاِفْكِ الخ: دَ الله تعالي قول، كومو خلقو چه دا دروغ رابرسيره كړے دي، هغه تاسو كښې يوه ډله ده. دَ هغوي دا تهمت خپل حق كښې بد مه ګڼړے: بلكه دا ستاسو دَ پاره مفيد دے. او دے دروغ ويونكو كښې به هر يو له دَ هغوي دَ ګناه موافق سزا وركيږي. آخر آيت پورې. "افاک" دروغجن.

٤٣٥: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ وَالَّذِيْ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ قَالَتْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيِّ ابْنِ سَلُوْلٍ.

٤٣٥: ابو نعيم. سفيان. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشہؓ نه روايت كوي. دَ هغې بيان دے: دَ ټولونه وړمبے چه چا دَ دے تهمت ابتدا اوكړله، هغه سړے عبدالله بن ابي بن سلول دے، دا ذكر شوے آيت دَ هغه حق كښې نازل شوے وو.

بـاب ٣١١: قولـه ولولا اذ سمعتموه قلتم ما يكون لنـا ان نتكلم بهذا سبحنك هـذا بهتان عظيم لولا جـاءو عـليـه باربعة شهداء فاذ لم يـأتوا بالشهداء فاولئك عند الله هم الكذبون.

٧٣٦: حدثنا يحيى بن بكير حدثنا الليث عن يونس عن ابن شهاب قال اخبرني عروة بن الزبير و سعيد بن المسيب و علقمة بن وقاص و عبيد الله بن عبد الله بن عتبة بن مسعود عن حديث عائشة زوج النبي صلى الله عليه وسلم حين قال لها اهل الافك ما قالوا فبرأها الله مما قالوا و كل حدثني طائفة من الحديث و بعض حديثهم يصدق بعضا و ان كان بعضهم اوعى له من بعض الذي حدثني عروة عن عائشة ان عائشة زوج النبي صلى الله عليه وسلم اذا اراد ان يخرج اقرع بين ازواجه فايتهن خرج سهمها خرج بها رسول الله صلى الله عليه وسلم معه قالت عائشة فاقرع بيننا في غزوة غزاها فخرج سهمي فخرجت مع

باب ٣١١: ايت: ولولا اذ سمعتموه قلتم ما يكون لنا: د الله تعالى قول هر كله چه تاسو دا خبره اوريدلې ده نو مؤمن سړو او ښځو خپلو كښې دا ګمان ولې او نه كړ او دا ئې ولې اونه وې چه دا خو ښكاره دروغ دي. دې خلقو به خپل قول څلور ګواهان ولې رانه وستل. او كه دوي ګواه رانه وستلې شو نو د خدائې په نزد دروغجن هم دوي دي.

٧٣٦: يحيي بن بكير. ليث. يونس. ابن شهاب. عروه بن زبير نه هغه د بي بي عائشې نه روايت كوي چه حضور صلي الله عليه وسلم به غزا له تلو نو د خپلو بيبيانو په نوم به ئې قرعه اچوله. د چا نوم به چه راووتلو نو هغه به ئې ځان سره بوتله. غزوهٔ بني مصطلق كښې د تلو په وخت چه قرعه واچولې شوه نو خما په نوم راووتله. او زهٔ حضور صلي الله عليه وسلم سره لاړمه. دا واقعه د پردې د حكم نازليدو نه ورستو ده. زهٔ په يوه كجاوه كښې سوره ووم. كه د كوزيدو ضرورت به پيښ شو نو كجاوې سره به كوزولې شوم. غرض مونږ دغه شان سفر كولو تردې چه حضور صلي الله عليه وسلم د جنګ نه فارغ شو او واپس راتلو. كوم وخت چه مونږ مدينې ته نزدې راورسيدو نو يوه شپه داسې اتفاق اوشو چه حضور صلي الله عليه وسلم د روانګئ حكم او كړلو ما چه دا حكم واوريدلو نو راپاسيدم او د لښكر نه لرې رفع حاجت د پاره لاړم. فارغ كيدو نه پس چه واپس راغلم نو خيال راغې چه خما نه خو د غاړې هار چرته غرخيدلې دې ما هغې پسې تلاش شروع كه. تلاش كښې وخت اولږيد. دې دوران كښې هغه خلق راغلل

رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا نَزَلَ الْحِجَابُ فَاَنَا اُحْمَلُ فِيْ هَوْدَجِيْ وَ اُنْزَلُ فِيْهِ فَسِرْنَا حَتّٰى اِذَا فَرَغَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَتِهٖ تِلْكَ وَ قَفَلَ وَ دَنَوْنَا مِنَ الْمَدِيْنَةِ قَافِلِيْنَ اٰذَنَ لَيْلَةً بِالرَّحِيْلِ فَقُمْتُ حِيْنَ اٰذَنُوْا بِالرَّحِيْلِ فَمَشَيْتُ حَتّٰى جَاوَزْتُ الْجَيْشَ فَلَمَّا قَضَيْتُ شَاْنِيْ اَقْبَلْتُ اِلٰى رَحْلِيْ فَاِذَا عِقْدٌ لِّيْ مِنْ جَزْعِ ظَفَارٍ قَدِ انْقَطَعَ فَالْتَمَسْتُ عِقْدِيْ وَ حَبَسَنِيْ اِبْتِغَآءُهٗ وَ اَقْبَلَ الرَّهْطُ الَّذِيْنَ كَانُوْا يَرْحَلُوْنَ لِيْ فَاحْتَمَلُوْا هَوْدَجِيْ فَرَحَلُوْهُ عَلٰى بَعِيْرِي الَّذِيْ كُنْتُ رَكِبْتُ وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ اَنِّيْ فِيْهِ وَ كَانَ النِّسَآءُ اِذْ ذَاكَ خِفَافًا لَمْ يُثْقِلْهُنَّ اللَّحْمُ اِنَّمَا تَاْكُلُ الْعُلْقَةَ مِنَ الطَّعَامِ فَلَمْ يَسْتَنْكِرِ الْقَوْمُ خِفَّةَ الْهَوْدَجِ حِيْنَ رَفَعُوْهُ وَ كُنْتُ جَارِيَةً حَدِيْثَةَ السِّنِّ فَبَعَثُوا الْجَمَلَ وَ سَارُوْا فَوَجَدْتُّ عِقْدِيْ بَعْدَ مَا اسْتَمَرَّ الْجَيْشُ فَجِئْتُ مَنَازِلَهُمْ وَ لَيْسَ بِهَا دَاعٍ وَّلَا مُجِيْبٌ فَاَمَمْتُ مَنْزِلِي الَّذِيْ كُنْتُ بِهٖ وَ ظَنَنْتُ اَنَّهُمْ سَيَفْقِدُوْنِيْ فَيَرْجِعُوْنَ اِلَيَّ فَبَيْنَا اَنَا جَالِسَةٌ فِيْ مَنْزِلِيْ غَلَبَتْنِيْ عَيْنِيْ فَنِمْتُ وَ كَانَ

كومو چه به خما سورلي كجاوه د اوښ د پاسه ايښودله. هغوي كجاوه اوچته كړه د اوښ د پاسه ئې كېښودله' او دا خيال ئې اوكړ' چه زۀ په كجاوه كښې ناسته يم' هغه زمانه كښې زنانه سپكې او وړې (ملكې اوتنكي) وې. ځكه چه كم خوراك به ئې كولو' نو هغوي ته به د كجاوې د درونوالي يا سپكوالي هډو احساس اونۀ شولو او بله خبره دا هم وه' چه زۀ هغه وخت ډيره وړه ووم. غرض هغوي كجاوه د اوښ د ... كېښودله' او روان شو. د هار تلاش كښې په ما دومره ... وخت تير شولو. چه واپس راغلم' نو هلته د لښكر نوم نشان هم نۀ وو. نۀ څوك انسان وو' چه هغه سره څۀ خبره شوې وې. نو زۀ هغه ځائې' چه كوم ځائې م شپه تيره كړې وه' په دې خيال كيناستم' چه حضور ما اونۀ وينې' نو ضرور به دې ځائې ته تلاش د پاره راځي. په ناسته ناسته ماله خوب راغې. او ما جوتې خوړلې. لښكر نه وروستو يو سړې د پريوتې شيزونو خبر اخستلو د پاره هم وو' هغۀ نوم صفوان بن معطل سلمي وو. هغه چكر كښې په دغه ځائې راغې' كوم ځائې چه زۀ موجوده ووم' هغه زه اوپيژندلم ځكه چه د پردې د حكم نه مخكښې هغۀ زۀ ليدلې ووم' نو هغه اوچت آواز سره: انّا للّٰه و انّا اليه راجعون: وئيل شروع كړل. د هغۀ آواز سره زۀ رابيداره شوم او سمدستي م په خپل څادر مخ پټ كړلو. په خدائې م دې قسم وي' هغۀ ما سره خبره قدرې هم اونۀ كړله' او نۀ ما د هغۀ د خولې نه سوا د: انّا للّٰه و انا اليه راجعون: بله څۀ كلمه واوريده. دې نه پس هغۀ خپله اوښه كينوله. او د هغې پښې ئې خپلو پښو سره دبانو اوساتلې. زۀ په اوښه سوره شوم.

صَفْوَانُ بْنُ الْمُعَطِّلِ السُّلَمِيُّ ثُمَّ
الذَّكْوَانِيُّ مِنْ وَّرَآءِ الْجَيْشِ فَادَّلَجَ
فَأَصْبَحَ عِنْدَ مَنْزِلِيْ فَرَاٰى سَوَادَ اِنْسَانٍ
نَائِمٍ فَاَتَانِيْ فَعَرَفَنِيْ حِيْنَ رَاٰنِيْ وَ
كَانَ يَرَانِيْ قَبْلَ الْحِجَابِ فَاسْتَيْقَظْتُ
بِاسْتِرْجَاعِهٖ حِيْنَ عَرَفَنِيْ فَخَمَّرْتُ
وَجْهِيْ بِجِلْبَابِيْ وَاللّٰهِ مَا كَلَّمَنِيْ
كَلِمَةً وَّلَا سَمِعْتُ مِنْهُ غَيْرَ اِسْتِرْجَاعِهٖ
حَتّٰى اَنَاخَ رَاحِلَتَهٗ فَوَطِئَ عَلٰى يَدَيْهَا
فَرَكِبْتُهَا فَانْطَلَقَ يَقُوْدُ بِي الرَّاحِلَةَ
حَتّٰى اَتَيْنَا الْجَيْشَ بَعْدَ مَا نَزَلُوْا
مُوْغِرِيْنَ فِيْ نَحْرِ الظَّهِيْرَةِ فَهَلَكَ مَنْ
هَلَكَ وَ كَانَ الَّذِيْ تَوَلَّى الْاِفْكَ عَبْدُ
اللّٰهِ بْنُ اُبَيِّ ابْنِ سَلُوْلٍ فَقَدِمْنَا
الْمَدِيْنَةَ فَاشْتَكَيْتُ حِيْنَ قَدِمْتُ
شَهْرًا وَالنَّاسُ يُفِيْضُوْنَ فِيْ قَوْلِ
اَصْحٰبِ الْاِفْكِ لَا اَشْعُرُ بِشَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ
وَهُوَ يُرِيْبُنِيْ فِيْ وَجْعِيْ اَنِّيْ لَا اَعْرِفُ
مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ اللُّطْفَ الَّذِيْ كُنْتُ اَرٰى مِنْهُ
حِيْنَ اَشْتَكِيْ اِنَّمَا يَدْخُلُ عَلَيَّ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَيُسَلِّمُ ثُمَّ يَقُوْلُ كَيْفَ تِيْكُمْ ثُمَّ
يَنْصَرِفُ فَذَاكَ الَّذِيْ يُرِيْبُنِيْ وَلَا
اَشْعُرُ حَتّٰى خَرَجْتُ بَعْدَ مَا نَقَهْتُ
فَخَرَجَتْ مَعِيَ اُمُّ مِسْطَحٍ قِبَلَ

هغه غريب پياده تلو، او اُوبنه ئے شړله. آخر زۀ لښکر ته
هغه وخت اورسيدم، چه نمر ښۀ تيز شوے وو. او سخته
ګرمي وه. دَ قافلے بعضے خلقو په ما الزام اولږولو او
خپل عاقبت ئے خراب کړلو. دوي کښې وړمبے سړے
عبدالله بن ابي سلول وو. زۀ چه مدينے ته راورسيدم، نو
ناروغه شوم، او برابر يو مياشت پورے ناروغه ووم. او
خلقو دا خبر برابر مشهورولو او ماته دَ دے واقعے متعلق
هيڅ علم نۀ وو. البته دا ځيز ضرور تکليف ده وو، چه
حضور صلي الله عليه وسلّم دَ مخکښې په شان محبت
ماسره نۀ کولو. صرف دومره وه چه حضور صلي الله
عليه وسلّم خما ليدو او حال معلومولو دَ پاره تشريف
راوړلو، حال به ئے دريافت کولو او بيا به سمدستي
واپس تللو. دَ حضور صلي الله عليه وسلّم دَ دے طرز
عمل نه ما دا خيال اوکۀ، چه حضور صلي الله عليه وسلّم
ماته ناراضه دے. يو مياشت پس زۀ روغه شوم، نو يوه
ورځ اُم مسطح سره رفع حاجت دَ پاره مناصع طرف ته
لاړم، ځکه چه مونږ خلق به رفع حاجت دَ پاره ځنګل ته
تللو. او دَ شپے وخت به بهر وتلو. دا دَ هغے زمانے خبره
ده چه کورونو کښې دَ لوئے اودس ماتي ځايونه لا نۀ وو
جوړ شوے. او دَ بدبوئي دَ وجے نه به ئے نۀ جوړول، دا
رسم عربو کښې دَ مودے نه راروان وو. غرض واپسي
کښې لار کښې دَ اُم مسطح پښه څادر کښې اونښليده او
هغه غرځيدو ته قريب شوه. او وئيلے، مسطح دے مړ
شي. ما ورته اووے. دا څۀ وائے مسطح خو دَ بدر غزا
کښې شريک وو. او تۀ هغۀ ته بد وائے. اُم مسطح اووے،
تۀ خو ډيره ساده ئے، تاته څۀ معلومه ده، چه هغه څۀ څۀ

الْمَنَاصِعِ وَهُوَ مُتَبَرَّزُنَا وَ كُنَّا لَا نَخْرُجُ
إِلَّا لَيْلًا إِلَى لَيْلٍ وَ ذٰلِكَ قَبْلَ أَنْ نَتَّخِذَ
الْكُنُفَ قَرِيبًا مِنْ بُيُوتِنَا وَ أَمْرُنَا أَمْرُ
الْعَرَبِ الْأُوَلِ فِي التَّبَرُّزِ قِبَلَ الْغَائِطِ
فَكُنَّا نَتَأَذَّى بِالْكُنُفِ أَنْ نَتَّخِذَهَا عِنْدَ
بُيُوتِنَا فَانْطَلَقْتُ أَنَا وَ أُمُّ مِسْطَحٍ وَ
هِيَ ابْنَةُ أَبِي رُهْمِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ وَ
أُمُّهَا بِنْتُ صَخْرِ بْنِ عَامِرٍ خَالَةُ أَبِي
بَكْرٍ الصِّدِّيقِ وَ ابْنُهَا مِسْطَحُ بْنُ أُثَاثَةَ
فَأَقْبَلْتُ أَنَا وَ أُمُّ مِسْطَحٍ قِبَلَ بَيْتِي
قَدْ فَرَغْنَا مِنْ شَأْنِنَا فَعَثَرَتْ أُمُّ مِسْطَحٍ
فِي مِرْطِهَا فَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَقُلْتُ
لَهَا بِئْسَ مَا قُلْتِ أَتَسُبِّينَ رَجُلًا شَهِدَ
بَدْرًا قَالَتْ أَيْ هَنْتَاهُ أَوَلَمْ تَسْمَعِي مَا
قَالَ قَالَتْ قُلْتُ وَمَا قَالَ فَأَخْبَرَتْنِي
بِقَوْلِ أَهْلِ الْإِفْكِ فَازْدَدْتُ مَرَضًا عَلَى
مَرَضِي فَلَمَّا رَجَعْتُ إِلَى بَيْتِي وَ
دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْنِي سَلَّمَ ثُمَّ قَالَ
كَيْفَ تِيكُمْ فَقُلْتُ أَتَأْذَنُ لِي أَنْ آتِيَ
أَبَوَيَّ قَالَتْ وَ أَنَا حِينَئِذٍ أُرِيدُ أَنْ
أَسْتَيْقِنَ الْخَبَرَ مِنْ قِبَلِهِمَا قَالَتْ فَأَذِنَ
لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَجِئْتُ أَبَوَيَّ فَقُلْتُ لِأُمِّي يَا
أُمَّتَاهُ مَا يَتَحَدَّثُ النَّاسُ قَالَتْ يَا بُنَيَّةُ
هَوِّنِي عَلَيْكِ فَوَاللّٰهِ لَقَلَّمَا كَانَتِ

وائي، ما ورته اووې، اووایه، هغه څه خبرې کوي. هغه
وخت اُم مسطح ماته هغه دروغ، بُهتان او د تُهمت تړلې
خبرې اوکړلې. یو خو زۀ د مخکښې نه ناروغه ووم، بیا
چه دا خبره م واوریده، نو نوره هم ناروغه شوم. واپس
کورته راغلم. حضور صلي الله علیه وسلّم چه لیدو له
راغې. نو د لرې نه ئې سلام اوکه، حال ئې اوپښتلو. ما
عرض اوکه، تاسو ماته اجازت راکړئې، زۀ د مور پلار
کور ته تلل غواړم. خما خیال وو، چه زۀ لاړه شم، نو د
هغوي نه به تپوس اوکړم، چه دا څۀ مصیبت دې. او دا
څنگه طوفان راپورته شوې دې. حضور صلي الله علیه
وسلّم ماله اجازت راکړلو، او زۀ د مور پلار کور ته لاړم
او د مور نه م تپوس اوکه، چه دا خلق څه وائي. مور
جواب راکه، اې خما لورې. تۀ دومره غم مۀ کوه، قسم
په خدائې اکثر داسې معامله پیښیږي، چه د یو سړي
ښکلې ښځه وي، او د خاوند خوښه وي، نو د هغۀ نورې
ښځې دغه شان خبرې کوي. ما اووې، سبحان الله، څۀ
خبره ده، چه خلقو دومره لوئې لوئې خبرې کړې دي، او
تاسو هغه معمولي گڼړې. ما په هغه شپه برابر ژړل، نۀ
خوب راغې، نۀ م اُوښکې اودریدې. حضور صلي الله
علیه وسلّم، حضرت عليؓ او حضرت اسامهؓ راوبلل، چه
خما د پریښودو مشوره ورسره اوکړي، ځکه چه وحي
راتلو کښې تاخیر کیدلو حضرت اسامهؓ چه اهل بیت سره
محبت لرلو، وئیلې، اې د الله رسولهٔ بي بي عائشهؓ ډیره
نیکه ده، او مونږ ترې هیڅ کله داسې خبره نۀ ده لیدلې،
چه خرابه وي. خو حضرت عليؓ اووې. اې د الله
رسولهٔ، تاسو ولې فکر کوئې، الله تعالي خو به تاسو څۀ

امرأةٌ قطُّ وضيئةٌ عند رجلٍ يحبها ولها ضرائرُ الا كثرت عليها قالت فقلت سبحان الله ولقد تحدث الناس بهذا قالت فبكيت تلك الليلة حتى أصبحت لا يرقأ لي دمعٌ ولا اكتحل بنومٍ حتى أصبحت أبكي فدعا رسول الله صلى الله عليه وسلم علي بن ابي طالب و اسامة بن زيدٍ حين استلبث الوحي يستأمرهما في فراق أهله قالت فأما أسامة بن زيدٍ فأشار على رسول الله صلى الله عليه وسلم بالذي يعلم لهم في نفسه من الود فقال يا رسول الله أهلك وما نعلم الا خيرا وأما علي بن ابي طالب فقال يا رسول الله لم يضيق الله عليك والنساء سواها كثيرٌ وإن تسأل الجارية تصدقك قالت فدعا رسول الله صلى الله عليه وسلم بريرة فقال اي بريرة هل رأيت من شيءٍ يريبك قالت بريرة لا والذي بعثك بالحق إن رأيت عليها أمرا أغمصه عليها أكثر من أنها جاريةٌ حديثة السن تنام عن عجين أهلها فتأتي الداجن فتأكله فقام رسول الله صلى الله عليه وسلم فاستعذر

تنګيا نه ده راوستې. نورې ډيرې نيکې ښځې موجود دي. تاسو دې معامله کښې د بريره وينځې نه هم تپوس اوکړئ رسول الله صلي الله عليه وسلم بريره راوغښتله او دريافت ئې ترې اوکړلو. چه اې بريره! تاته د بي بي عائشې باره کښې داسې څۀ خبره معلومه ده چه په هغې ستا څۀ شک شبه راغلې وي. بريرې جواب کښې اووې. په خدائې مې دې قسم وي چه هغه تاسو نبي برحق راليږلې ئې ما هيڅ خبره داسې نه ده ليدلې چه هغه پټه کړم. او دومره ضرور ده چه بي بي عائشه کم عمره او ساده ده تردې چه اوړه واغږي دغسې ترې پاتې شي او اوده شي. او چيلې راشي هغه اوړه اوخوري. دې نه پس حضور صلي الله عليه وسلم په منبر تشريف فرما شولو او وې فرمائيل څوک شته چه عبدالله بن ابي سلول نه د دې خبرې بدله واخلي هغۀ تهمت لګولو سره ساته تکليف اورسولو. او خما اهل بيت ئې هم تکليف کښې اچولې ده. خدائې ګواه دې چه زۀ د بي بي عائشې په حقله د نيکي نه سوا نوره څه بدي نه پيژنم. او تهمت لګونکو هغه چا باندې تهمت لګولې دې چه د هغه بدي هيڅ کله چا نه ده ليدلې. او هغه سړې به هميشه خما ملګرتيا کښې ماسره کور ته تلو د کوم چه دا خلق ذکر کوي. آخر حضرت سعد بن معاذ انصاريؒ اودريدلو. او وې وئيل اې د الله

يَوْمَئِذٍ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ اُبَيِّ ابْنِ سَلُوْلٍ قَالَتْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ مَنْ يَّعْذِرُنِىْ مِنْ رَجُلٍ قَدْ بَلَغَنِىْ اَذَاهُ فِىْ اَهْلِ بَيْتِىْ وَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ عَلٰى اَهْلِىْ اِلَّا خَيْرًا وَلَقَدْ ذَكَرُوْا رَجُلًا مَا عَلِمْتُ عَلَيْهِ اِلَّا خَيْرًا وَمَا كَانَ يَدْخُلُ عَلٰى اَهْلِىْ اِلَّا مَعِىَ فَقَامَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذِ الْاَنْصَارِىُّ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَا اَعْذِرُكَ مِنْهُ اِنْ كَانَ مِنَ الْاَوْسِ ضَرَبْتُ عُنُقَهٗ وَ اِنْ كَانَ مِنْ اِخْوَانِنَا مِنَ الْخَزْرَجِ اَمَرْتَنَا فَفَعَلْنَا اَمْرَكَ قَالَتْ فَقَامَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ وَهُوَ سَيِّدُ الْخَزْرَجِ وَ كَانَ قَبْلَ ذٰلِكَ رَجُلًا صَالِحًا وَلٰكِنِ احْتَمَلَتْهُ الْحَمِيَّةُ فَقَالَ لِسَعْدٍ كَذَبْتَ لَعَمْرُ اللّٰهِ لَا تَقْتُلُهٗ وَلَا تَقْدِرُ عَلٰى قَتْلِهٖ فَقَامَ اُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ وَهُوَ اِبْنُ عَمِّ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ كَذَبْتَ لَعَمْرُ اللّٰهِ لَنَقْتُلَنَّهٗ اِنَّكَ مُنَافِقٌ تُجَادِلُ عَنِ الْمُنَافِقِيْنَ فَتَثَاوَرَ الْحَيَّانِ الْاَوْسُ وَالْخَزْرَجُ حَتّٰى هَمُّوْا اَنْ يَّقْتَتِلُوْا وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ عَلَى الْمِنْبَرِ فَلَمْ يَزَلْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَفِّضُهُمْ حَتّٰى سَكَتُوْا وَ سَكَتَ

رسولهٔ، زهٔ به ذ هغهٔ نه بدله واخلم. که هغهٔ قبیلهٔ اوس سره هم تعلق لري، بیا به هم زهٔ هغه په تیغ کړم. او که خمونږ ذ قبیلهٔ خزرج نه دے، نو بیا څهٔ سزا چه تاسو تجویز کونے، هغه به ورکړے شي. بي بي عائشهٔ فرمائي. بیا د قبیلهٔ خزرج سردار سعد بن عبادهٔ اودریدلو. حالانکه دے ذ نن نه مخکښ ډیر نیک او صالح وو. خو ذ خزرج نوم آوریدو سره قومي جوش پرے غالب شو. او سعد بن معاذ ته ئے اووے، چه تا دروغ ونیلي دي. په اللّٰه م دے قسم وي، ته هغه نهٔ شے وژلے. دے نه پس ذ سعد ذ ترهٔ خوئے اسید بن حضیر اودریدلو. او سعد بن عباده ته ئے اووے چه تا دروغ اووے. مونږ به ضرور هغه وژنو، ته منافق معلومیږے، په دے وجه ته د منافق مرسته کوے. غرض ذ دواړو طرف نه سخت کلامي شروع شوه. ممکنه وَه چه ذ جنګ نوبت راغلے وے، حضور صلي اللّٰه علیه وسلَم په منبر اودریدلو، او خلق ئے خاموش کړل آخر ټول خاموش شول. بي بي عائشهٔ وائي زهٔ په هغه ورځ ژړیدم، او خوب نهٔ راتلو زهٔ دوه ورځے او یوه شپه برابر ژړیدم. سحر ته خما پلار ابوبکرٌ ماله راغے، په دے خیال چه چرته په ژړا ژړا خما زړهٔ اونهٔ چوي، هغه لا ماسره ناست وو، چه یو انصاریے ښځے دننه د راتلو اجازت اوغوښتو. ما دننه راوغوښتله، هغه راغله،

قَالَتْ فَمَكَثْتُ يَوْمِيْ ذٰلِكَ لَا يَرْقَأُ لِيْ دَمْعٌ وَلَا اَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ قَالَتْ فَاَصْبَحَ اَبَوَايَ عِنْدِيْ وَقَدْ بَكَيْتُ لَيْلَتَيْنِ وَ يَوْمًا لَا اَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ وَلَا يَرْقَأُ لِيْ دَمْعٌ يَظُنَّانِ اَنَّ الْبُكَاءَ فَالِقٌ كَبِدِيْ قَالَتْ فَبَيْنَمَا هُمَا جَالِسَانِ عِنْدِيْ وَ اَنَا اَبْكِيْ فَاسْتَاْذَنَتْ عَلَيَّ اِمْرَاَةٌ مِنَ الْاَنْصَارِ فَاَذِنْتُ لَهَا فَجَلَسَتْ تَبْكِيْ مَعِيَ قَالَتْ فَبَيْنَا نَحْنُ عَلٰى ذٰلِكَ دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ ثُمَّ جَلَسَ قَالَتْ وَلَمْ يَجْلِسْ عِنْدِيْ مُنْذُ قِيْلَ مَا قِيْلَ قَبْلَهَا وَقَدْ لَبِثَ شَهْرًا فَتَشَهَّدَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ جَلَسَ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ يَا عَائِشَةُ فَاِنَّهُ قَدْ بَلَغَنِيْ عَنْكِ كَذَا وَ كَذَا فَاِنْ كُنْتِ بَرِيْئَةً فَسَيُبَرِّئُكِ اللّٰهُ وَ اِنْ كُنْتِ اَلْمَمْتِ بِذَنْبٍ فَاسْتَغْفِرِي اللّٰهَ وَ تُوْبِيْ اِلَيْهِ فَاِنَّ الْعَبْدَ اِذَا اعْتَرَفَ بِذَنْبِهٖ ثُمَّ تَابَ اِلَى اللّٰهِ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِ قَالَتْ فَلَمَّا قَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَالَتَهٗ قَلَصَ دَمْعِيْ حَتّٰى مَا اُحِسُّ مِنْهُ قَطْرَةً فَقُلْتُ لِاَبِيْ اَجِبْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْمَا قَالَ قَالَ وَاللّٰهِ مَا اَدْرِيْ مَا اَقُوْلُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او ماسره هغه هم په ژړا شوه. دے نه پس سمدستي حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو، او ماسره قريب كيناستلو، حالانكه د تهمت لګولو د ورځے نه نه پورے ماسره ناست نه وو. او يو مياشت تيره شوے وه، چه څه وحي هم خما معامله كښ حضور صلي الله عليه وسلّم ته نه وه راغلے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. اشهد ان لا اله الا الله (يعني زۀ د يو الله د معبود كيدو ګواهي وركوم) بيا حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو، اے عائشهؓ ستا په وجه ماته ډير تكليف رسيدلے دے. كه ته بے قصوره ئے نو ستا د بري كېدو او صفائي د پاره به الله تعالٰي ضرور څه نه څه حكم نازل كړي. او كه تا نه واقعي غلطي شوے وي، نو د الله تعالٰي نه معافي اوغواړه، او هغه ته توبه اوكاږه، ځكه چه بنده په خپل قصور نادم شي، او توبه او استغفار اوكړي، نو الله تعالٰي پرے مهرباني اوكړي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه خاموش شولو، او خپله خبره ئے پوره كړله، نو ما خپل پلار (ابوبكرؓ) ته اووے چه تاسو رسول الله صلي الله عليه وسلّم له جواب وركړئے داسے حال كښ چه خما اوښكے بالكل خشكے شوے وے. خما پلار جواب راكړه، زۀ نه پوهيږم چه حضورؐ له څه جواب وركړم. بيا ما خپلے مور ته اووے، چه ته رسول الله صلي الله عليه وسلّم له جواب وركړه. خو هغے هم

فَقُلْتُ لِأُمِّيْ اَجِيْبِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ مَا اَدْرِيْ مَا اَقُوْلُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ فَقُلْتُ وَ اَنَا جَارِيَةٌ حَدِيْثَةُ السِّنِّ لَا اَقْرَأُ كَثِيْرًا مِّنَ الْقُرْاٰنِ اِنِّيْ وَاللّٰهِ لَقَدْ عَلِمْتُ لَقَدْ سَمِعْتُمْ هٰذَا الْحَدِيْثَ حَتّٰى اسْتَقَرَّ فِيْ اَنْفُسِكُمْ وَ صَدَّقْتُمْ بِهٖ فَلَئِنْ قُلْتُ لَكُمْ اِنِّيْ بَرِيْئَةٌ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَنِّيْ بَرِيْئَةٌ لَا تُصَدِّقُوْنِيْ بِذٰلِكَ وَلَئِنِ اعْتَرَفْتُ لَكُمْ بِاَمْرٍ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَنِّيْ مِنْهُ بَرِيْئَةٌ لَتُصَدِّقُنِّيْ وَاللّٰهُ مَا اَجِدُ لَكُمْ مَثَلًا اِلَّا قَوْلَ اَبِيْ يُوْسُفَ قَالَ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ وَ اللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ قَالَتْ ثُمَّ تَحَوَّلْتُ فَاضْطَجَعْتُ عَلٰى فِرَاشِيْ قَالَتْ وَ اَنَا حِيْنَئِذٍ اَعْلَمُ اَنِّيْ بَرِيْئَةٌ وَّ اَنَّ اللّٰهَ مُبَرِّئِيْ بِبَرَاءَتِيْ وَلٰكِنْ وَاللّٰهِ مَا كُنْتُ اَظُنُّ اَنَّ اللّٰهَ مُنْزِلٌ فِيْ شَأْنِيْ وَحْيًا يُتْلٰى وَ لَشَأْنِيْ فِيْ نَفْسِيْ كَانَ اَحْقَرُ مِنْ اَنْ يَّتَكَلَّمَ اللّٰهُ فِيَّ بِاَمْرٍ يُتْلٰى وَلٰكِنْ كُنْتُ اَرْجُوْ اَنْ يَّرٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّوْمِ رُؤْيَا يُبَرِّئُنِي اللّٰهُ بِهَا قَالَتْ فَوَاللّٰهِ مَا رَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا خَرَجَ اَحَدٌ مِّنْ اَهْلِ

اووے، زۀ نـه پوهيږم چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له څۀ جواب ورکړم (يعني هيڅ جواب نشم ورکولے) آخر ما خپله اووے، حالانکه زۀ کم عمره ووم، او قرآن هم راته ښۀ ياد نۀ وو. ما اووے، ذ خلقو په وينا چه ستاسو زړونو کښې کومه خبره ناسته ده، هغه تاسو ريښتيا ګنړلے ده، اوس که زۀ دا اووايم، چه زۀ بے قصوره يم، نو ستاسو پرے يقين نۀ راځي، او که اقرار اوکړم نو اللّٰه پوهيږي، چه زۀ بے قصوره يم، خو تاسو به ئے ريښتيا اوګنړئے. په خدائے م دے قسم وي ماته بسوا ذ دے مثال نه بل مثال نۀ ياديږي، چه ذ حضرت يوسف عليه السلام ذ پلار مثال دے چه هغۀ فرمائيلي وو: فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ. يعني زۀ به ښۀ صبر کوم. او اللّٰه تعالٰي مددګار دے، څه چه تاسو بيان کوئے. دے نه پس ما مخ خپل بل طرف ته کړلو، او په خپله بستره سملاستم. او دا خيال م اوکۀ، چه زۀ ذ دے تهمت نه پاکه يم. او اللّٰه به ضرور خما ذ نجات او برأت حکم اوفرمائي. ورسره به دا خيال هم راتلو، چه زۀ ذ دے قابله چرته يم، چه ما ذ پاره دے وحي نازلے شي. خو دا به وي چه اللّٰه تعالٰي به خوب کښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ذ دے معاملے نجات او برأت اوښائي. خدائے ګواه دے، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ تلو لا قصد هم نۀ وو کړے. او ذ کور نور خلق لا هغسے ناست وو، چه په حضور

الْبَيْتِ حَتّٰى اُنْزِلَ عَلَيْهِ فَاَخَذَهُ مَا كَانَ يَأْخُذُهُ مِنَ الْبُرَحَاءِ حَتّٰى اِنَّهُ لَيَتَحَدَّرُ مِنْهُ مِثْلُ الْجُمَانِ مِنَ الْعَرَقِ وَهُوَ فِيْ يَوْمٍ شَاتٍ مِنْ ثِقَلِ الْقَوْلِ الَّذِيْ يُنْزَلُ عَلَيْهِ قَالَتْ فَلَمَّا سُرِّيَ عَنْهُ وَهُوَ يَضْحَكُ فَكَانَتْ اَوَّلَ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا يَا عَائِشَةُ اَمَّا اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ فَقَدْ بَرَّأَكِ فَقَالَتْ اُمِّيْ قُوْمِيْ اِلَيْهِ قَالَتْ فَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَا اَقُوْمُ وَلَا اَحْمَدُ اِلَّا اللّٰهَ عَزَّ وَ جَلَّ وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْا بِالْاِفْكِ عُصْبَةٌ مِنْكُمْ لَا تَحْسَبُوْهُ الخ الْعَشْرَ اٰيَاتٍ كُلَّهَا فَلَمَّا اَنْزَلَ اللّٰهُ هٰذَا فِيْ بَرَاءَتِيْ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ الصِّدِّيْقُ وَ كَانَ يُنْفِقُ عَلٰى مِسْطَحِ بْنِ اُثَاثَةَ لِقَرَابَتِهٖ مِنْهُ وَ فَقْرِهٖ وَاللّٰهِ لَا اُنْفِقُ عَلٰى مِسْطَحٍ شَيْئًا اَبَدًا بَعْدَ الَّذِيْ قَالَ لِعَائِشَةَ مَا قَالَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا يَأْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَ السَّعَةِ اَنْ يُّؤْتُوْا اُولِي الْقُرْبٰى وَ الْمَسَاكِيْنَ وَالْمُهَاجِرِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلْيَعْفُوْا وَلْيَصْفَحُوْا اَلَا تُحِبُّوْنَ اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ بَلٰى وَاللّٰهِ اِنِّيْ اُحِبُّ اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لِيْ فَرَجَعَ اِلٰى مِسْطَحٍ النَّفَقَةَ الَّتِيْ كَانَ يُنْفِقُ عَلَيْهِ وَ قَالَ وَاللّٰهِ لَا اَنْزِعُهَا مِنْهُ اَبَدًا قَالَتْ عَائِشَةُ وَ كَانَ

صلي الله علیه وسلّم وحي نازله شوه. څرګنده ترې څرګندله. او د وحي پوره کیفیت پرې خور شوې وو، اګر که د یخني ورځې وې، خو د وحي د بوج نه د ملغلرو په شان د خولې قطرې د حضور صلي الله علیه وسلّم د مخ مبارک نه څڅېدلې. کوم وخت چه وحي ختمې شوې، نو حضور صلي الله علیه وسلّم مُسکې شولو، او د تولو نه مخکښې ئې دا خبره اوکړله، اې عائشې، الله تهٔ دَ دې ګناه دَ الزام نه بري کړلې. څما مور اووې، ورشه، او حضورٌ ته سلام اوکه، او شکریه ئې ادا کړه. ما ورته اووې، زهٔ خو صرف د الله شکریه ادا کوم، دې نه پس حضور صلي الله علیه وسلّم دا آیتونه اولوستل: اِنَّ الَّذِيْنَ جَاءُوْا بِالْاِفْكِ الخ: نه رؤف رحیم: یعنې لس آیتونو پورې. بیا څما پلار ابوبکر صدیقؓ حضور صلي الله علیه وسلّم ته عرض اوکه. ما به د مسطح بن اثاثه د غربت او قرابت په وجه هغهٔ ته نفقه ورکوله. خو اوس زهٔ داسې نشم کولې، ځکه چه هغهٔ عائشهٔ بدنامه کړله، نو هغه وخت دا آیتونه نازل شول: ولا یاتل اولوا الفضل: نه غفور رحیم: پورې، یعنې صاحب مال خلقوله نهٔ دي پکار، چه هغوي په څهٔ وجه د دې خبرې قسم اوخوري. چه هغوي به خپل غریب رشته دارانو او محتاجانو ته نان نفقه نهٔ ورکوي، بلکه هغوي له پکار دي. چه د هغوي خطا معاف کړي. آیا هغوي دا نهٔ خوښوي. چه الله هغوي اوبښي، او الله تعالي ښبونکې مهربان دې. حضرت ابوبکرؓ اووې. قسم په خدائې. زهٔ دا غواړم. چه خدائې ما اوبښي. اوس

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُ زَيْنَبَ بِنْتَ جَحْشٍ عَنْ اَمْرِي فَقَالَ يَا زَيْنَبُ مَاذَا عَلِمْتِ اَوْ رَاَيْتِ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَحْمِيْ سَمْعِيْ وَ بَصَرِيْ مَا عَلِمْتُ اِلَّا خَيْرًا قَالَتْ وَ هِيَ الَّتِيْ كَانَتْ تُسَامِيْنِيْ مِنْ اَزْوَاجِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَصَمَهَا اللّٰهُ بِالْوَرَعِ وَطَفِقَتْ اُخْتُهَا حَمْنَةُ تُحَارِبُ لَهَا فَهَلَكَتْ فِيْمَنْ هَلَكَ مِنْ اَصْحَابِ الْاِفْكِ.

به آينده نان نفقه زۀ نۀ بندوم. بي بي عائشهٌ فرمائي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم به ذ زينب بنت جحش نه هم تپوس كولو، چه عائشهٌ څنګه ده، هغې به دا ونيلے، اے ذ الله رسولهٌ، زۀ خپل غوږونه او سترګے ښۀ احتياط سره ساتم. ما خو عائشےؓ کښې هيڅ خرابي نۀ ده ليدلے. عائشهٌ وائي، ذ حضورؐ په بيبيانو كښې بي بي زينبؓ څما ذ برابرۍ وه، او څما نه ئے زيات ښۀ اوسيدل غوښتل، خو الله ذ هغے ذ پرهيزګاري په وجه ښغه بچ كړله، او ذ هغے خور حمنه بنت جحش ذ خپلے خور ذ پاره جګړه كوله. بيا څنګه چه نور بُهتان تړونكي هلاک شو. دا هم هلاكت كښې پريوتله.

**باب ۳۱۲:** قَوْلِهٖ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَتُهٗ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ لَمَسَّكُمْ فِيْمَا اَفَضْتُمْ فِيْهِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ تَلَقَّوْنَهٗ يَرْوِيْهِ بَعْضُكُمْ عَنْ بَعْضٍ تُفِيْضُوْنَ تَقُوْلُوْنَ.

**باب ۳۱۲:** آيت: وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَتُهٗ ذ الله تعالي قول، ذ الله فضل او ذ هغۀ رحمت كه ذنيا او آخرت كښې په تاسو نۀ وے، نو په تاسوبه سخت عذاب وے، ذ هغه څيز په بدله كښې چه هغے كښې پريوتے وئے. مجاهد وائي، "تلقونه" معني دي، چه تاسو د يو بل نه نقل كولو. "تفيضون" تاسو ونيلے.

۳٧٤۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ اُمِّ رُوْمَانَ اُمِّ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ لَمَّا رُمِيَتْ عَائِشَةُ خَرَّتْ مَغْشِيًّا عَلَيْهَا.

۳٧٤۷: محمد بن كثير. سليمان. حصين. ابو وائل. مسروق. اُم رومان (ذ بي بي عائشےؓ مور) نه روايت كوي، ذ هغے بيان دے، كوم وخت چه په بي بي عائشےؓ تهمت اولږيدلو، نو هغه بيهوشه راوغرځيدله.

**باب ۳۱۳:** قَوْلِهٖ اِذْ تَلَقَّوْنَهٗ بِاَلْسِنَتِكُمْ وَ تَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِكُمْ مَا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ وَ تَحْسَبُوْنَهٗ هَيِّنًا وَّهُوَ عِنْدَ اللّٰهِ

**باب ۳۱۳:** آيت: اِذْ تَلَقَّوْنَهٗ بِاَلْسِنَتِكُمْ: ذ الله تعالي قول، هر كله چه تاسو خپلے خولے سره داسے خبره كوله، چه ذ هغے درته ذره قدرے هم علم نه وو، او تاسو دا خبره معمولي ګنړله، حالانكه دا خبره ذ الله په

غَظِیمٌ.

نږد ډیره لویه وه.

۴۳۸: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِیْمُ بْنُ مُوْسٰی حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَیْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ ابْنُ اَبِیْ مُلَیْكَةَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَقْرَأُ اِذْ تَلِقُوْنَهٗ بِاَلْسِنَتِكُمْ.

۴۳۸: ابراهیم بن موسی. هشام. ابن جریج. حضرت ابن ابي مليكه نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے. ما د بي بي عائشے نه: اذ تلقونه" لوستل آوريدلے دي.

باب ۳۱۴: قَوْلِهٖ وَلَوْلَاۤ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ مَا یَكُوْنُ لَنَاۤ اَنْ نَّتَكَلَّمَ بِهٰذَا سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِیْمٌ.

باب ۳۱۴: آيت: وَلَوْلَا اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ مَا يَكُوْنُ لَنَا: د اللّه تعالي قول: هر کله چه تاسو هغه دروغ خبره واوريده، نو آوريدو سره مو دا ولے اُونه ويے، مونږ په خبره يقين او کړو، او څنګه ئے په ژبه راوړو، معاذ اللّه دا خو څرګند دروغ دي.

۴۳۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰی حَدَّثَنَا یَحْیٰی عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِیْدِ بْنِ اَبِیْ حُسَیْنٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ ابْنُ اَبِیْ مُلَیْكَةَ قَالَ اسْتَأْذَنَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَبْلَ مَوْتِهَا عَلٰی عَائِشَةَ وَ هِیَ مَغْلُوْبَةٌ قَالَتْ اَخْشٰی اَنْ یُّثْنِیَ عَلَیَّ فَقِیْلَ ابْنُ عَمِّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَمِنْ وُجُوْهِ الْمُسْلِمِیْنَ قَالَتِ ائْذَنُوْا لَهٗ فَقَالَ كَیْفَ تَجِدِیْنَكِ قَالَتْ بِخَیْرٍ اِنِ اتَّقَیْتُ قَالَ فَاَنْتِ بِخَیْرٍ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ زَوْجَةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ یَنْكِحْ بِكْرًا غَیْرَكِ وَ نَزَلَ عُذْرُكِ مِنَ السَّمَآءِ وَ دَخَلَ ابْنُ الزُّبَیْرِ خِلَافَهٗ فَقَالَتْ دَخَلَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَاَثْنٰی عَلَیَّ وَ وَدِدْتُ اَنِّیْ كُنْتُ نَسْیًا مَّنْسِیًّا.

۴۳۹: محمد بن مثني. يحيي. عمر بن سعيد بن ابي حسين. ابن ابي مليکه نه روايت کوي. هغه اووے: د بي بي عائشے حالت ډير خرابيدلو. يعني د نزع حالت وو. چه حضرت ابن عباسؓ د ملاقات اجازت اوغوښتلو. بي بي عائشےؓ څه ډيل او کهٔ. د دے خوف نه، چه هغه به خما تعريف کوي!. آخر ټولو اووے، اجازت ورکول پکار دي. دا ټول د حضور صلي اللّه عليه وسلّم د تره خامن دي او ډير نيک دي. ابن عباسؓ راغے. او د حال تپوس ئے او کهٔ. بي بي عائشےؓ اوفرمائيل، که زهٔ نيکه يم، نو ښهٔ يم. ابن عباسؓ اووے. ته ضرور ښهٔ ئے څکه چه د رسول پاک صلي اللّه عليه وسلّم ښځه ئے. حضورؐ بغير ستا نه هيڅ پيغلے سره واده نهٔ دے کړے. ستا حق کښې اللّه آيات نازل کړل. دے نه پس حضرت ابن زبيرؓ ليدوله راغے. نو عائشےؓ هغهٔ ته اوفرمائيل. ابن عباسؓ راغلے وو او خما ډير تعريف ئے کولو. خو ماته دا ښهٔ معلوميږي چه زهٔ ګمنامه او هيره وے.

۱. د خنکدن حالت وو، دے د پاره هغې دا خوښه نه کړه چه په داسې حالت کښې حما تعریف وکړے شي.

**٤٧٤٠: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنِ الْقَاسِمِ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ اسْتَأْذَنَ عَلَى عَائِشَةَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ نَسْيًا مَنْسِيًّا.**

٤٧٤٠: محمد بن مثنى. عبدالوهاب بن عبدالمجيد. ابن عون. حضرت قاسم بن محمد نه روايت کوي، د هغه بيان دے. حضرت ابن عباس د بي بي عائشې اجازت اوغوښتلو، او د مخکښې په شان ئې اوکړ، او د "نسيا منسيا" لفظ ئې ذکر نه کړلو.

**بَابٌ ۳۱۵: قَوْلِهِ يَعِظُكُمُ اللَّهُ أَنْ تَعُودُوا لِمِثْلِهِ أَبَدًا الْآيَةَ.**

باب ۳۱۵: آيت: يعظكم الله ان تعودوا لمثله ابدا: د الله تعالي قول، الله تعالي تاسو ته نصيحت کوي، چه داسې کار بيا هيڅ کله مه کوئې.

**٤٧٤١: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ جَاءَ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ يَسْتَأْذِنُ عَلَيْهَا قُلْتُ أَتَأْذَنِينَ لِهَذَا قَالَتْ أَوَلَيْسَ قَدْ أَصَابَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ قَالَ سُفْيَانُ تَعْنِي ذَهَابَ بَصَرِهِ فَقَالَ:**

**حَصَانٌ رَزَانٌ مَا تُزَنُّ بِرِيبَةٍ**
**وَتُصْبِحُ غَرْثَى مِنْ لُحُومِ الْغَوَافِلِ**

**قَالَتْ لَكِنْ أَنْتَ.**

٤٧٤١: محمد بن يوسف. سفيان. اعمش. ابي الضحي. مسروق. بي بي عائشې نه روايت کوي، د هغې بيان دے. حضرت حسان شاعر بي بي عائشې نه دننه د راتلو اجازت اوغوښتلو، ما ووے ته دا سړے ولې پرېږدې. هغې اووے: آيا دے په لوئې عذاب نه دے اخته؟ سفيان اووے: يعني په سترګو ړوند شو[۱]. بيا حضرت حسان دا شعر اووے: ترجمه: عاقله ده پاکدامنه، هر عيب نه پاکه او نيک بخته ده. هغه سحر کوي په لوږه، خو د بې ګناه غوښه نه خوري. بي بي عائشې اووے ليکن ته خو داسې نه ئې.

۱. حضرت حسان بن ثابت انصاري به آخر عمر کښې نابينا شوے وو

**بَابٌ ۳۱۶: قَوْلِهِ وَيُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ.**

باب ۳۱۶: آيت: د الله تعالي قول، چه الله تاسو د پاره خپل آيتونه بيان کوي، او الله پوهېدونکے او حکمت والا دے.

**٤٧٤٢: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ**

٤٧٤٢: محمد بن بشار. ابن ابي عدي. شعبه.

بَشِيرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ دَخَلَ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ عَلَى عَائِشَةَ فَشَبَّبَ وَ قَالَ:

حَصَانٌ رَزَانٌ مَا تُزَنُّ بِرِيبَةٍ
وَ تُصْبِحُ غَرْثَى مِنْ لُحُومِ الْغَوَافِلِ

قَالَتْ لَسْتَ كَذٰلِكَ قُلْتُ تَدَعِينَ مِثْلَ هٰذَا يَدْخُلُ عَلَيْكِ وَقَدْ أَنْزَلَ اللّٰهُ وَالَّذِي تَوَلّٰى كِبْرَهُ مِنْهُمْ فَقَالَتْ وَ أَيُّ عَذَابٍ أَشَدُّ مِنَ الْعَمٰى وَ قَالَتْ وَقَدْ كَانَ يَرُدُّ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

اعمش. ابي الضحي. مسروق. بي بي عائشې نه روايت کوي. حضرت حسان شاعر، بي بي عائشې نه دننه دَ راتلو اجازت اوغوښتلو، نو دَ بي بي عائشې تعريف کښې ئې دا شعر اووے: (ترجمه) يعني عاقله ده، پاکدامنه، دَ هر عيب نه پاکه او نيک بخته ده. هغه سحر کوي په لوږه، خو دَ بے ګناه غوښه نهٔ خوري [i]. بي بي عائشې ورته اووے، چه تهٔ خو داسے نهٔ ئے. ما عرض اوکهٔ، تهٔ ولے داسے سړے رادننه کوے، چه هغهٔ دَ پاره الله تعالیٰ دا آيت نازل کړے دے: وَالَّذِي تَوَلّٰى كِبْرَه منهم: آخر آيت پورے. بي بي عائشې اووے، دَ ړنديدو نه به زيات عذاب نور څه وي، او دهٔ به دَ نبي صلي الله عليه وسلّم دَ طرف نه کفارو ته جواب ورکولو.

i. په دې مصرعه کښې د قرآن مجيد هغه آيت طرفته تلميح ده کوم کښې چه غيبت کول د خپل مړ رور غوښې خوړلو سره تعبير کړے شوے دے. يعني کومې ښځې چه غافلې او ناخبره وي، د هغوي ددې عادت په وجې سره دوئ د نورو په مخکښې د هغوئ هيڅ قسمه بدوالے نه بيانوي، ځکه چه دا غيبت دے او غيبت کول د خپل مړ رور د غوښې خوړلو مُرادِف دے.

## بَاب ۳۱۷: قَوْلِهِ إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَ أَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَتُهُ وَ أَنَّ اللّٰهَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ تَشِيعُ تَظْهَرُ.

باب ۳۱۷: آيت: إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ: دَ الله تعالىٰ قول، کوم خلق چه دَ بے حيائي خبرے خوررول خوښوي، هغوي له دُنيا او آخرت دواړو کښې دردناک عذاب دے. او الله تعالىٰ ښهٔ پوهيږي، او تاسو په هيڅ نهٔ پوهيږئے. او که په تاسو دَ الله رحمت او فضل نهٔ وے، نو څهٔ به وو، الله ډير مهربان او رحم واله دے. "تشيع" معني خواره، ظاهر شي.

## بَاب ۳۱۸: قَوْلِهِ وَلَا يَأْتَلِ أُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ أَنْ يُؤْتُوا أُولِي الْقُرْبٰى وَالْمَسَاكِينَ وَالْمُهَاجِرِينَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ

باب ۳۱۸: آيت: وَلَا يَأْتَلِ أُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ: دَ الله تعالىٰ قول، کوم خلق چه تاسو کښې مالدار او وسعت واله دي، هغوي دے دَ دے خبرے قسم نهٔ خوري، چه هغوي به رشته دارانو او محتاجانو او دَ الله

وَلْيَعْفُوْا وَلْيَصْفَحُوْا اَلَا تُحِبُّوْنَ اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ.

٧٤٣: حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا ذُكِرَ مِنْ شَانِيَ الَّذِيْ ذُكِرَ وَمَا عَلِمْتُ بِهٖ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيَّ خَطِيْبًا فَتَشَهَّدَ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهٗ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ اَشِيْرُوْا عَلَيَّ فِيْ اُنَاسٍ اَبَنُوْا اَهْلِيْ وَ اَيْمُ اللّٰهِ مَا عَلِمْتُ عَلٰى اَهْلِيْ مِنْ سُوْءٍ وَ اَبَنُوْهُمْ بِمَنْ وَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ عَلَيْهِ مِنْ سُوْءٍ قَطُّ وَلَا يَدْخُلُ بَيْتِيْ قَطُّ اِلَّا وَ اَنَا حَاضِرٌ وَّلَا غِبْتُ فِيْ سَفَرٍ اِلَّا غَابَ مَعِيَ فَقَامَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ فَقَالَ ائْذَنْ لِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنْ نَضْرِبَ اَعْنَاقَهُمْ وَ قَامَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي الْخَزْرَجِ وَ كَانَ اُمُّ حَسَّانِ بْنِ ثَابِتٍ مِنْ رَهْطِ ذٰلِكَ الرَّجُلِ فَقَالَ كَذَبْتَ اَمَا وَاللّٰهِ اِنْ لَوْ كَانُوْا مِنَ الْاَوْسِ مَا اَحْبَبْتَ اَنْ تُضْرَبَ اَعْنَاقُهُمْ حَتّٰى كَادَ اَنْ يَّكُوْنَ بَيْنَ الْاَوْسِ وَالْخَزْرَجِ شَرٌّ فِي الْمَسْجِدِ وَمَا عَلِمْتُ فَلَمَّا كَانَ مَسَاءُ ذٰلِكَ الْيَوْمِ خَرَجْتُ لِبَعْضِ حَاجَتِيْ وَ مَعِيَ اُمُّ مِسْطَحٍ فَعَثَرَتْ وَ

په لار كښې هجرت كونكو ته نفقه نه وركوي. هغوي له د معافئ نه كار اخستل پكار دي آيا تاسو دا نه غواړئ' چه الله تاسو اوبښي' الله خو بښونكے مهربان دے.

٧٤٣: ابو اسامه. هشام بن عروه. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي' ذ هغې بيان دے' كوم وخت چه خلقو څما متعلق ذ دروغې الزام مشهور كړلو' او ماته ذ هغې صحيح حال معلوم نه وو' نو يوه ورځ حضور صلي الله عليه وسلّم خطبه اولوسته. كلمۀ تشهد نه پس ئې ذ الله حمد و ثنا بيان كۀ. دے نه پس حضورؐ خلقوته اوفرمائيل' تاسو ماته ذ هغې خلقو متعلق مشوره راكړئ' چه هغوي څما په كوروالا تور لږولے دے. خدائے گواه دے' چه ما عائشهؓ كښې هيڅ خرابي نۀ ده ليدلے. او ذ چا سره چه ئې بدنامه وي ما په هغه سړي كښې څه بد نه دي ليدلي. هغه هميشه ماسره كورته ځي راځي. سفر كښې هم ماسره سلگرے وي. دے آوريدو سره ذ قبيلۀ اوس سردار سعد بن معاذ اودريدلو' او عرض ئې اوكۀ' يا رسول الله' حكم راكړئ' چه ذ تهمت كونكو گردن اووهم. دے نه پس د قبيلۀ خزرج سردار سعد بن عباده راپاسيد' او' وے وئيل' چه تا غلطه خبره كړے ده كه تهمت لږونكي ذ قبيلۀ اوس خلق وے نو تابه د هغوئ قتلول نه وو خوښ كړي. دے نه پس دواړو قبيلو كښې تكرار شروع شولو. او ماته هيڅ پته نۀ وه دے نه پس ماښام ته زۀ اُم مسطح سره رفع حاجت ذ پاره ځنگل (صحرا) ته لاړمه. لار كښې ذ مسطح ذ مور پښه كښې څادر اونښليدلو. هغې اووے. مسطح دے هلاک شي. ما ورته اووے' څهل خوئے ته ولې ښيرے كوے. هغې بيا

قَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَقُلْتُ اَیْ اُمِّ تَسُبِّيْنَ ابْنَكِ وَ سَكَتَتْ ثُمَّ عَثَرَتِ الثَّانِيَةَ فَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَقُلْتُ لَهَا تَسُبِّيْنَ ابْنَكِ ثُمَّ عَثَرَتِ الثَّالِثَةَ فَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَانْتَهَرْتُهَا فَقَالَتْ وَاللّٰهِ مَا اَسُبُّهُ اِلَّا فِيْكِ فَقُلْتُ فِیْ اَیِّ شَأْنِیْ قُلْتُ فَنَقَرَتْ لِیْ الْحَدِيْثَ فَقُلْتُ وَقَدْ كَانَ هٰذَا قَالَتْ نَعَمْ وَاللّٰهِ فَرَجَعْتُ اِلٰى بُيَيْتِیْ كَانَ الَّذِیْ خَرَجْتُ لَهٗ لَا اَجِدُ مِنْهُ قَلِيْلًا وَّلَا كَثِيْرًا وَ وُعِكْتُ فَقُلْتُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسِلْنِیْ اِلٰى بَيْتِ اَبِیْ فَاَرْسَلَ مَعِیَ الْغُلَامَ فَدَخَلْتُ الدَّارَ فَوَجَدْتُ اُمَّ رُوْمَانَ فِی السُّفْلِ وَ اَبَا بَكْرٍ فَوْقَ الْبَيْتِ يَقْرَاُ فَقَالَتْ اُمِّیْ مَا جَآءَ بِكِ يَا بُنَيَّةُ فَاَخْبَرْتُهَا وَ ذَكَرْتُ لَهَا الْحَدِيْثَ وَ اِذَا هُوَ لَمْ يَبْلُغْ مِنْهَا مِثْلَ مَا بَلَغَ مِنِّیْ فَقَالَتْ يَا بُنَيَّةُ خَفِّضِیْ عَلَيْكِ الشَّأْنَ فَاِنَّهٗ وَاللّٰهِ لَقَلَّمَا كَانَتِ امْرَاَةٌ حَسْنَآءُ عِنْدَ رَجُلٍ يُحِبُّهَا لَهَا ضَرَائِرُ اِلَّا حَسَدْنَهَا وَ قِيْلَ فِيْهَا وَ اِذَا هُوَ لَمْ يَبْلُغْ مِنْهَا مَا بَلَغَ مِنِّیْ قُلْتُ وَقَدْ عَلِمَ بِهٖ اَبِیْ قَالَتْ نَعَمْ قُلْتُ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ نَعَمْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَعْبَرْتُ وَ بَكَيْتُ

په دویم او دریم خل هم دغسې خیرې ورته وکړلې. ما ترې لږ تو کلو سره وجه اوپښتله، نو هغې اووې: زه ستا په وجه هغه ته خیرې کوم. ما ورته اووې: خما په وجه څه مطلب. هغې اووې: هغه هم تهمت لږونکو کښې شامل دې. ما تپوس اوکړ: آیا دا خبره مشهوره شوې دې. هغې اووې: ډیره زیاته. زه تادي سره په ویره کور ته راغلم: او دا رانه هم هیر شو: چه چرته تلې ووم، او د کوم خانې نه راغلې یم. بس ناروغه شوم. ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه اجازت اوغښتلو: چه زه د خپل پلار کورته تلل غواړم: نو حضور صلي الله عليه وسلم یو ماشوم ماسره کړلو. کوم وخت چه زه کور ته راغلم: نو خما مور ام رومان لاندې وه: او خما پلار حضرت ابوبکر د کور د پاسه څه لوستو کښې مشغول وو مور رانه تپوس اوکړ: لورې څنګه راغلې. ما ورته د بهتان نزله واقعه بیان کړله: خو هغې ته هم خما په شان ډیره زیاته صدمه اورسیده. اووې ونیل: اې خما لورې ته دومره فکر ولې کوې. داسې خو اکثر کیږي: چه هر کله د یو سړي خوبصورته ښځه وي، چه هغې سره خاوند محبت کوي: او د هغې بنې (سوکنیں) هم وي، نو دهغوي سره حسد کوي: او قسم قسم خبرې پرې تړي. غرض خما مور ته د هغې طوفان صدمه اونه شوه: څومره صدمه چه ماته شوې وه. ما تپوس اوکړ: آیا د دې قصې خبر بابا جان (ابوبکرؓ) ته هم شوې دې. هغې اووې او. ما اووې: او رسول الله صلي الله عليه وسلم ته هم: هغې اووې او. حضور صلي الله عليه وسلم ته هم پته ده. دې نه پس زه به ژړا شوم: خما آواز آوریدو سره بابا

فسمع اَبُوبَکرٍ صوتي وهو فوق البیت یقرأ فنزل فقال لاُمي ما شانُها قالت بلغها الذي ذُکر مِن شانها ففاضت عیناهُ قَالَ اَقْسَمْتُ عَلَیْكِ اَيْ بُنَیَّةُ اِلاَّ رَجَعتِ اِلٰی بَیْتِكِ فَرَجَعْتُ وَلَقَدْ جَاءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بَیْتِیْ فَسَأَلَ عَنِّیْ خَادِمَتِیْ فَقَالَتْ لاَ وَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ عَلَیْهَا عَیْبًا اِلاَّ اَنَّهَا کَانَتْ تَرْقُدُ حَتّٰی تَدْخُلَ الشَّاۃُ فَتَاْکُلَ خَمِیْرَهَا اَوْ عَجِیْنَهَا وَانْتَهَرَهَا بَعْضُ اَصْحَابِهٖ فَقَالَ اصْدُقِیْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰی اَسْقَطُوْا لَهَا بِهٖ فَقَالَتْ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ عَلَیْهَا اِلاَّ مَا یَعْلَمُ الصَّائِغُ عَلٰی تِبْرِ الذَّهَبِ الْاَحْمَرِ وَ بَلَغَ الْاَمْرُ اِلٰی ذٰلِكَ الرَّجُلِ الَّذِیْ قِیْلَ لَهٗ فَقَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ مَا کَشَفْتُ کَنَفَ اُنْثٰی قَطُّ قَالَتْ عَائِشَۃُ فَقُتِلَ شَهِیْدًا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ قَالَتْ وَ اَصْبَحَ اَبَوَایَ عِنْدِیْ فَلَمْ یَزَالاَ حَتّٰی دَخَلَ عَلَیَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ صَلَّی الْعَصْرَ ثُمَّ دَخَلَ وَقَدِ اکْتَنَفَنِیْ اَبَوَایَ عَنْ یَمِیْنِیْ وَ عَنْ شِمَالِیْ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰی عَلَیْهِ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ یَا عَائِشَۃُ اِنْ کُنْتِ قَارَفْتِ سُوْءً ا اَوْ ظَلَمْتِ فَتُوْبِیْ اِلَی

خان هم حکه راغی او د زړا نیوسی ... ورته اووی د دی نیمسب د ... راغلمه بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم تشریف راوړلو او خما د ویسری نه نی ... د حالانو پښتنه اوکړله هغې جواب ورکه خما دے په الله قسم وي ما هغې (عائشې) کښې هیڅ خرابي نه ده لیدلې دا ساده ده اخلې اوړه پریږدي چیلې راشي او هغه اوخوري. د حضور صلي الله علیه وسلم د اصحابو نه څنو هغه اوتوکله او ورته نې اووې چه ته رسول الله صلي الله علیه وسلم ته رښتیا رښتیا ولې نه وائې. نو هغې اووې سبحان الله زه هغه (عائشه) داسې پیژنم څنګه چه زرګر سره زر پیژني. دا خبر صفوان ته هم اورسیدنو هغه اووې سبحان الله. ما چرې هم د چا (پردې) ښځې جامه نه ده پرانستې. بي بي عائشهؓ فرماني صفوان جنګ بدر کښې شریک وو. په دویمه ورځ خما مور پلار خما کورته راغلل او ناست وو تردې چه حضور صلي الله علیه وسلم تشریف راوړلو د مازیګر مونځ شوې وو خما مور پلار زه (د بیماري او ژړا په وجه) نیولې ووم. یو انصاریه ښځه هم راغلې وه او ناسته وه. حضور صلي الله علیه وسلم د الله پاک د حمد ثنا نه پس اوفرمائیل اې عائشېؓ که تا نه ګناه شوې وي نو الله نه توبه اوکاره الله د خپلو بندیانو توبه قبلوي ما اووې تاسو د دې ښځې په مخکښې ماته داسې خبره کوئې د داسې خبرې څو تاسوله خیال سانل پکار وو. دې نه پس حضور ماته نصیحت اوکړلو ما خپل پلار

اللّٰه فَاِنَّ اللّٰهَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ مِنْ عِبَادِهٖ قَالَتْ وَقَدْ جَآءَتِ امْرَاَةٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَهِيَ جَالِسَةٌ بِالْبَابِ فَقُلْتُ اَلَا تَسْتَحْيِيْ مِنْ هٰذِهِ الْمَرْاَةِ اَنْ تَذْكُرَ شَيْئًا فَوَعَظَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَالْتَفَتُّ اِلٰى اَبِيْ فَقُلْتُ اَجِبْهُ قَالَ فَمَا ذَا اَقُوْلُ فَالْتَفَتُّ اِلٰى اُمِّيْ فَقُلْتُ اَجِيْبِيْهِ فَقَالَتْ مَاذَا اَقُوْلُ فَلَمَّا لَمْ يُجِيْبَاهُ تَشَهَّدْتُ فَحَمِدْتُ اللّٰهَ وَ اَثْنَيْتُ عَلَيْهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهٗ ثُمَّ قُلْتُ اَمَّا بَعْدُ فَوَاللّٰهِ لَئِنْ قُلْتُ لَكُمْ اِنِّيْ لَمْ اَفْعَلْ وَاللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ يَشْهَدُ اِنِّيْ لَصَادِقَةٌ مَا ذَاكَ بِنَافِعِيْ عِنْدَكُمْ لَقَدْ تَكَلَّمْتُمْ بِهٖ وَ اُشْرِبَتْهُ قُلُوْبُكُمْ وَ اِنْ قُلْتُ اِنِّيْ فَعَلْتُ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنِّيْ لَمْ اَفْعَلْ لَتَقُوْلُنَّ لَقَدْ بَاءَتْ بِهٖ عَلٰى نَفْسِهَا وَ اِنِّيْ وَاللّٰهِ مَا اَجِدُ لِيْ وَلَكُمْ مَثَلًا وَ الْتَمَسْتُ اسْمَ يَعْقُوْبَ فَلَمْ اَقْدِرْ عَلَيْهِ اِلَّا اَبَا يُوْسُفَ حِيْنَ قَالَ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ وَ اُنْزِلَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَاعَتِهٖ فَسَكَتْنَا فَرُفِعَ عَنْهُ وَ اِنِّيْ لَا تَبَيَّنُ السُّرُوْرَ فِيْ وَجْهِهٖ وَهُوَ يَمْسَحُ جَبِيْنَهٗ وَ يَقُوْلُ اَبْشِرِيْ يَا عَائِشَةُ فَقَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ بَرَآءَتَكِ قَالَتْ وَ كُنْتُ اَشَدَّ مَا

طرف ته او کتل، ذ هغې مطلب دا وو، چه تاسو خما ذ طرف نه حضور صلي الله عليه وسلم له جواب ورکړئ، نو هغه اووې، زهٔ څه جواب ورکرم (يعني هيڅ جواب نشم ورکولې. زهٔ او ذ خدائې رسول له جواب ورکول) بيا ما خپلې مور طرف ته اوکتل، هغې هم دغسې اووې، چه زهٔ څه جواب کولې شم؟ آخر ما ذ الله تعالي ذ حمد و ثنا نه پس عرض اُوکهٔ، په خدائې م دې قسم وي که زهٔ دا اووايم، چه دا کار مانهٔ دې کړې او خدائې گواه کرم، نو بيا هم تاسو خلق رااندې يقين نهٔ کوئې، ځکه چه ستاسو زړونو کښې ذ خلقو خبرو ځائې کړې دې. او که زهٔ دا اووايم، چه ما داسې کړې دي او الله تعالي ته علم دې، چه ما داسې نهٔ دي کړې. ليکن تاسو به ټول يقين اوکړئې او اوبه وايئې، چه او اوس دې اقرار اوکړلو. حقيقت کښې خما او ستاسو مثال داسې دې لکه ذ يوسف عليه السلام ذ پلار، چه هغهٔ ونيلې وو: فصبرٌ جميل والله المستعان على ما تصفون: يعني زهٔ به په ښهٔ شان صبر کوم، او الله تعالي مددګار دې، څهٔ چه تاسو بيانوئې. دې نه پس سمدستي په حضور صلي الله عليه وسلم وحي نازله شوه. او مونږ ټول خاموش شرلو. وحي نه پس حضور صلي الله عليه وسلم خوشحالي سره اوفرمائيل، اې عائشې، تاله خوشحاليدل پکار دي، چه الله تعالي ستا ذ برأت او نجات حکم نازل کړلو. دغه وخت دې خيال سره ماته ډير افسوس اوشو، چه گوره، خما په خبره هغوي يقين اونهٔ کړلو. بيا خما مور پلار ماته اووې، پاسه او ذ رسول اکرم صلي الله عليه وسلم شکريه ادا کره. ما اووې، والله، زهٔ به حضورٌ له

كنت غضبًا فقال لي ابواي قومي اليه فقلت والله لا اقوم اليه ولا احمده ولا احمد كما ولكن احمد الله الذي انزل براءتي لقد سمعتموه فما انكرتموه ولا غيرتموه وكانت عائشة تقول اما زينب ابنة جحش فعصمها الله بدينها فلم تقل الا خيرًا و اما اختها حمنة فهلكت فيمن هلك و كان الذي يتكلم فيه مسطح و حسان بن ثابت والمنافق عبد الله بن ابي وهو الذي كان يستوشيه و يجمعه وهو الذي تولى كبره منهم هو و حمنة قالت فحلف ابو بكر ان لا ينفع مسطحا بنافعة ابدا فانزل الله عز و جل ولا ياتل اولوا الفضل منكم الى اخر الاية يعني ابا بكر والسعة ان يؤتوا اولي القربى والمساكين يعني مسطحا الى قوله الا تحبون ان يغفر الله لكم والله غفور رحيم حتى قال ابو بكر بلى والله يا ربنا انا لنحب ان تغفر لنا و عادله بما كان يصنع.

ورېدانسم او نه به نې شكريه اداكړم زه خو د حق تعالى شكريه ادا كوم چه هغه ماته خما د برې كېدو مشورت (خوشخبري) واورولو كسي تاسو خو اوريدو بالدې يقين كړے وو. بي بي عائشةؓ فرمائي الله پاک دے قصه كښې بي بي زينب بنت جحش چه د حضور صلي الله عليه وسلم بي بي وه محفوظ اوساتله. هغے خما متعلق بغير د خير نه نور هيڅ اونه وې خو د هغے خور حمنه بنت جحش تهمت كونكو سره هلاكه شوه. تهمت لږونكو كښې دا خلق شامل وو. (١) مسطح (٢) حسان بن ثابت (٣) عبدالله بن ابي بن سلول او دا هغه سړے دے چه دروغ به ئې جوړول. او د دے بهتان ابتدا د هغه او د حمنه د طرف نه اوشوه هر كله چه وحي راغله خما پلار ابوبكرؓ اووے اوس به زه مسطح ته نان نفقه وغيره نه وركوم نو هغه وخت دا آيت نازل شولو: وَلَا يَاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنكُمْ وَالسَّعَةِ الخ: صاحب مال او استطاعت خلق (يعني ابوبكرؓ) دے قسم نه خوري چه مونږ به مسكينانو او قرابت دارو (يعني مسطح) ته څه نه وركوو. آخر آيت غفور رحيم پورے. نو حضرت ابوبكرؓ اوفرمائيل مونږ خو دا غواړو چه الله مونږ اوبښي. دے نه پس هغه مسطح ته د مخكښې په شان نفقه وركوله.

باب ٣١٩: قوله وليضربن بخمرهن على جيوبهن و قال احمد بن شبيب حدثنا ابي

باب ٣١٩: آيت: وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ: د الله تعالى قول مسلمانو ښځو له پكار دي چه په خپلو سينو پړوني اچوي. احمد بن شبيب د هغه

عَنْ يُونُسَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَ يَرْحَمُ اللّٰهُ نِسَاءَ الْمُهَاجِرَاتِ الْأُوَلِ لَمَّا أَنْزَلَ اللّٰهُ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوبِهِنَّ شَقَقْنَ مُرُوطَهُنَّ فَاخْتَمَرْنَ بِهِ.

پـلار يـونـس، ابن شهاب، عروه، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، هغے اووے، اللّه تعالىٰ دے په هغے ښځو رحم او كړي، چه هغوي هجرت كړے وو. كوم وخت چه اللّه تعالىٰ دا آيت نازل كړلو چه خپل پړوني په خپلو سينو ساتلے لرئے (چه سينه وغيره په نظر رانشي) نو هغوي خپل څادرونه اوشلول، او پړوني ئے ترے جوړ كړلﮯ.

۱. د جاهليت دور پـه عـربـو كښے په سينه باندے د لوپټے اچولو رواج نه وو او د موجوده فيرنگي تـمـدن پـه شان د جاهليت زمانے عربو كښے هم ښځو به داسے جامے اچولے چه د خيټے څه حصه خو به ئے پټه وه ليكن د سينے حصه به ئے بربنډه ساتله او كه چرے د لوپټے د قسم څه څيز به وو نو هغه به ئے په سينه باندے نه اچولو په ځائے همداسے به اوګدو كښے اچولے وو.

۴۴۷: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيمُ بْنُ نَافِعٍ عَنِ الْحَسَنِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا كَانَتْ تَقُولُ لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوبِهِنَّ أَخَذْنَ أُزُرَهُنَّ فَشَقَّقْنَهَا مِنْ قِبَلِ الْحَوَاشِيْ فَاخْتَمَرْنَ بِهَا.

۴۴۷: ابـو نـعـيـم. ابـراهـيـم بـن نـافـع. حسن بن مسـلـم. صـفـيـه بـنـت شـيـبـه نـه روايـت كـوي. د هغے بيـان دے. بـي بـي عـائـشےؓ فـرمـائيل، كوم وخت چه دا آيت نـازل شو: وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوبِهِنَّ: يـعـنـي مسـلـمـانـو ښـځـولـه پكار دي، چه خپلے سينے په پـړونـو كـښ پـټـے سـاتـي، نـو د مـهـاجـريـنو ښځو د خپـلـو تـه بـنـدونـو غـاړے اوشـلـولے، او خپلے سينے ئے پرے پټے كړلے.

# سُورَةُ الْفُرْقَانِ

# دَ سورهٔ فرقان تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا مَا تَسْفِيْ بِهِ الرِّيْحُ مَدَّ الظِّلِّ مَا بَيْنَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ سَاكِنًا دَآئِمًا عَلَيْهِ دَلِيْلًا طُلُوْعِ الشَّمْسِ خِلْفَةً مَنْ فَاتَهُ مِنَ اللَّيْلِ عَمَلٌ أَدْرَكَهُ بِالنَّهَارِ أَوْفَاتَهُ

ابن عباسؓ واني ''هباء مَّنْثُوْرا'' معني دي، هغه څيز چه هوا سره راشي، لـكـه ګـرد غبار. ''مدالظل'' صبح صادق نه طـلـوع آفـتـاب پـورے وخـت. ''سـاكـنـا'' هميشه. ''عليه دليـلا'' مـعـنـي د نـمر راختل ''خلفة'' هغه كار چه د شپے پاتے شي، او د ورځے پـوره كـړے شي، او كـه د ورځے نيمګړے پاتے شي، نو د شپے پوره كړے شي. حسن

بِالنَّهَارِ اَدْرَكَهُ بِاللَّيْلِ وَ قَالَ الْحَسَنُ هَبْ لَنَا مِنْ اَزْوَاجِنَا فِيْ طَاعَةِ اللّٰهِ وَمَا شَيْءٌ اَقَرَّ لِعَيْنِ الْمُؤْمِنِ اَنْ يَّرٰى حَبِيْبَهُ فِيْ طَاعَةِ اللّٰهِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ثُبُوْرًا وَيْلًا وَ قَالَ غَيْرُهُ السَّعِيْرُ مُذَكَّرٌ وَالتَّسَعُّرُ وَالْاِضْطِرَامُ التَّوَقُّدُ الشَّدِيْدُ تُمْلٰى عَلَيْهِ مِنْ اَمْلَيْتُ وَ اَمْلَلْتُ الرَّسُّ الْمَعْدِنُ جَمْعُهُ رِسَاسٌ مَا يَعْبَاُ يُقَالُ مَا عَبَاْتُ بِهٖ شَيْئًا لَا يُعْتَدُّ بِهٖ غَرَامًا هَلَاكًا وَ قَالَ مُجَاهِدٌ وَ عَتَوْا طَغَوْا وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَاتِيَةٌ عَتَتْ عَنِ الْخُزَّانِ.

وائي "قرة اعين" د سترګو یخ والي په شان ښيايي اولاد وغيره. ابن عباسؓ وائي "ثبورا" معنى د هلاکت او بربادۍ دي. د څينې خلقو وينا ده چه "سعير" مذکر دے. او "تسعر" نه وتلے دے. "اضطرام" د اور لړيدل ښه ګرميدل. "تملی عليه" معنی دي چه هغه لوستو آورولے شي. دا لفظ "امليت" يا "امللت" نه جوړ شوے دے. "الرس" کان، معدن، د دے جمع رساس دے څينې حلقو اووے چه "رس" کوهي ته وائي. عرب خلق وائي "ما عبأت به شيئا" يعني ما د هغے هيڅ پروا اونه کړله. په هيڅ حقيقت ئے پوهه نه شوم. "غراما" هلاکت. د مجاهد بيان دے "عتوا" معنى دي شرارت. ابن عيينه وائي "عاتيه" معنى دي د حد نه تيريدل. دا د "عتو" نه جوړ شوے دے. د دے نه مراد هغه هوا ده کومه چه په هوا باندے مقرر کړې فرشتو چلولے وي.

## بَابُ ۳۲۰: قَوْلِهٖ اَلَّذِيْنَ يُحْشَرُوْنَ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ اِلٰى جَهَنَّمَ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّ اَضَلُّ سَبِيْلًا.

باب ۳۲۰: آيت: الذين يحشرون على وجوههم: د الله تعالى قول، کوم خلق چه د قيامت په ورځ پر مخے دوزخ ته اوغرځولے شي. هغوي مکان او مرتبه کښې خراب دي، او د لارے نه ګمراه دي.

۴۳۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْبَغْدَادِيُّ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ يُحْشَرُ الْكَافِرُ عَلٰى وَجْهِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ اَلَيْسَ الَّذِيْ اَمْشَاهُ عَلَى الرِّجْلَيْنِ فِي الدُّنْيَا قَادِرًا عَلٰى اَنْ يُّمْشِيَهُ عَلٰى وَجْهِهٖ

۴۳۵: عبدالله بن محمد. يونس بن محمد البغدادي. شيبان. قتاده. حضرت انس بن مالک روايت کوي، يو سړي د رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت کښې عرض اوکړ، يا رسول الله، د قيامت په ورځ به کافر په مخ باندے دوزخ ته بوتلے شي. حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل، کوم ذات چه دنيا کښې خلق په پښو چلولے شي، هغه ئے د قيامت په ورځ په مخ بوتلو باندے هم قادر دے (يعني د پښو په ځائے به په مخ بوتلے

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ قَتَادَةُ بَلٰى وَ عِزَّةِ رَبِّنَا.

شي) قتاده وائي' بيشکه الله به دے قادر دے' خما دے ذ هغهٔ په عزت او جلال قسم وي.

## بـاب ۱۳۲۱: قَوْلِهٖ وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰـهًا اٰخَرَ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُوْنَ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ يَلْقَ اَثَامًا الْعَقُوْبَةَ.

باب ۱۳۲۱: آيت: اَلَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ: دَ اللّٰه تعالٰي قول' څوک چه الله سره څوک نهٔ شريکوي' او خون نهٔ کوي' چه الله حرام کړے وي' خو حق سره' او نه زِنا کوي' او څوک چه داسے اوکړي' نو عذاب کښې به کيوځي. "اثامًا" معني عذاب' عقوبت.

۴۲۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَنْصُوْرٌ وَ سُلَيْمَانُ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مَيْسَرَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِؓ قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ وَاصِلٌ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَاَلْتُ' اَوْ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الذَّنْبِ عِنْدَاللّٰهِ اَكْبَرُ قَالَ اَنْ تَجْعَلَ لِلّٰهِ نِدًّا وَّهُوَ خَلَقَكَ قُلْتُ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ ثُمَّ اَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ خَشْيَةَ اَنْ يَّطْعَمَ مَعَكَ قُلْتُ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ اَنْ تَزْنِيْ بِحَلِيْلَةِ جَارِكَ قَالَ وَ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ تَصْدِيْقًا لِقَوْلِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ.

۴۲۶: مسدد. يحيٰي. سفيان. منصور او سليمان. ابو وائل. ابو ميسره. حضرت عبدالله بن مسعودؓ (دويم سند) واصل. ابي وائل. حضرت عبدالله مسعودؓ روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دے' ما يا بل چا حضور صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوکۀ' تولو نه لويه گناه کومه يوه ده' حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو' دَ الله نه سِوا بل څوک دَ هغهٔ ذات يا څهٔ صفت کښې شريکول' حالانکه هغه ستا پيدا کونکے دے. ما اووے' بيا کومه گناه لويه ده' حضورؐ اوفرمائيل' اولاد په دے خيال وژل' چه دے به راسره روزئ کښې شريک شي' او مونږ به ورله خوراک دَ کوم ځائے نه پيدا کوو' او دے نه پس دَ خپل دوست يا گوانډي ښځے سره زِنا کول' دے نه پس دَ دے په تصديق کښې حضور صلي الله عليه وسلّم د آيت اولوست: والّذين لا يدعون مع الله الٰهًا اٰخر الخ.

۴۲۷: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِي الْقَاسِمُ بْنُ اَبِيْ بَزَّةَ اَنَّهٗ سَاَلَ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ هَلْ لِمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا

۴۲۷: ابراهيم بن موسٰي. هشام بن يوسف. ابن جريج. قاسم بن ابي بزه. سعيد بن جبير نه روايت کوي' ما دَ هغهٔ نه تپوس اوکۀ آيا څوک چه يو مؤمن قصدًا قتل کړي' نو دَ هغهٔ توبه قبليږي. بيا ما دا آيت اولوست: ولا يقتلون النفس آخر پورے:

مِنْ تَوْبَةٍ فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ إِلَّا بِالْحَقِّ فَقَالَ سَعِيْدٌ قَرَأْتُهَا عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ كَمَا قَرَأْتَهَا عَلَيَّ فَقَالَ هٰذِهٖ مَكِّيَّةٌ نَسَخَتْهَا اٰيَةٌ مَدَنِيَّةٌ الَّتِيْ فِيْ سُوْرَةِ النِّسَآءِ.

نو سعيد بن جبير اووے' ما ذ ابن عباسؓ مخكښ دا آيت لوستے وو' څنګه چه تا څما مخکښ اولوستو' نو هغه اووے' دا آيت مکي دے' خو مدني آيت' دا منسوخ کړے دے' او هغه دا دے' وَمَنْ يقتل مؤمنا متعمّدا فجزاء ه جهنم خالدًا فيها آخر پورے ١.

١ . د ابن عباس رضي الله عنه دا مسلک د جمهور اُمت نه خلاف دے. ممکنه ده چه هغوئ د سدِّباب په طور دا حکم بیان کړے وي.

۴۲۸: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ النُّعْمَانِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ اخْتَلَفَ اَهْلُ الْكُوْفَةِ فِيْ قَتْلِ الْمُؤْمِنِ فَرَحَلْتُ فِيْهِ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ نَزَلَتْ فِيْ آخِرِ مَا نَزَلَ وَلَمْ يَنْسَخْهَا شَيْءٌ.

۴۲۸: محمد بن بشار. غندر. شعبه. مغيره بن نعمان. سعيد بن جبير نه روايت کوي' ذ اهل کوفه په دے خبره کښ اختلاف دے' چه د مومن ذ قاتل توبه قبليږي يا نه' نو ابن عباسؓ اووے' ذ مؤمن ذ قتل متعلق دا آيت: وَمَنْ يقتل مومنا الخ: ذ ټولو نه آخري دے' دا ناسخ دے' او دا هيڅا نۀ دے منسوخ کړے.

۴۲۹: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍؓ عَنْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ قَالَ لَا تَوْبَةَ لَهٗ وَعَنْ قَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ قَالَ كَانَتْ هٰذِهٖ فِي الْجَاهِلِيَّةِ.

۴۲۹: آدم. شعبه. منصور. سعيد بن جبير نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے. ما ذ ابن عباسؓ نه ذ دے آيت متعلق دريافت اوکۀ' نو هغۀ جواب کښ اووے' ذ هغه توبه قبوله نۀ ده. دے نه پس ما والذين لا يدعون مع اللّٰه الخ: مطلب معلوم کړلو' نو وے فرمائيل' ذ دے دا معني دي' چه ذ جاهليت زمانه کښ ئے دغسے اوکړل. خو ذ مسلمانيدو نه پس ئے توبه اوکړله' نو توبه ئے قبوله ده١.

١ . يعني کومو خلقو چه د جاهليت زمانه کښے قتل کړے وي او بيائے اسلام راوړے وي نو د هغوئ حکم په دے آيت کښے بنودلے شوے دے ليکن که چرے څوک مسلمان خپل مسلمان رور په ناحقه اوروژني نو د ابن عباس رضي الله عنه په نزد د هغه سزا جهنم دۀ' ددے ګناه نه د هغۀ توبه قبوله نه ده.

**باب ۳۲۲: قَوْلِهٖ يُضٰعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ يَخْلُدْ فِيْهٖ مُهَانًا.**

**باب ۳۲۲:** آیت يضاعف له العذاب يوم القيمة د الله تعالى قول چه د هغوى د باره عذاب زياتوى او هغې كښې به همېشه ذليل اوسى.

۴۵۰: حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قَالَ ابْنُ اَبْزٰى سُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَآءُهٗ جَهَنَّمُ وَ قَوْلِهٖ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ حَتّٰى بَلَغَ اِلَّا مَنْ تَابَ فَسَأَلْتُهٗ فَقَالَ لَمَّا نَزَلَتْ قَالَ اَهْلُ مَكَّةَ فَقَدْ عَدَلْنَا بِاللّٰهِ وَ قَتَلْنَا النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَ اَتَيْنَا الْفَوَاحِشَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَّا مَنْ تَابَ وَ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا اِلٰى قَوْلِهٖ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا.

۴۵۰: سعد بن حفص. شيبان. منصور. سعيد بن جبير. ابن ابزى نه روايت كوى. د هغه بيان دے. حضرت ابن عباس نه ددے آيتونو باره كښې تپوس اوشو: ومن يقتل مؤمنا متعمدا الخ. او دويم. ولا يقتلون النفس التى حرم الله الخ او دريم: الا من تاب و امن الخ. چه دا آيتونه كله نازل شو نو هغه جواب كښې اوفرمايل چه دا آيت هغه وخت نازل شو چه مكے والو دا اووے مونږ خو شرك هم كړلو او په ناحقه خون مو هم كړے دي او د بے حيائي كارونه هم كړو. نو دغه وخت الله تعالى دا آيت نازل كړلو: الا من تاب و امن و عمل صالحا غفورا رحيما پورے.

**باب ۳۲۳: قَوْلِهٖ اِلَّا مَنْ تَابَ وَ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَاُولٰٓئِكَ يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِهِمْ حَسَنٰتٍ وَ كَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا.**

**باب ۳۲۳:** آيت: الا من تاب و امن و عمل صالحا: د الله تعالى قول. نو هغه خلق چه توبه كار شي او ايمان راوړي او نيك عمل اوكړي نو الله تعالى به داسے خلقو له د بدى په ځاے نيكى عطا كړى بيشكه الله تعالى بښونكے مهربان دے.

۴۵۱: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ اَمَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبْزٰى اَنْ اَسْاَلَ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ هَاتَيْنِ الْاٰيَتَيْنِ وَمَنْ

۴۵۱: عبدان. شعبه. منصور. حضرت سعيد بن جبير نه روايت كوي. د هغه بيان دے عبدالرحمن بن ابزى ماته اووے نه د حضرت ابن عباس نه د دے دوو آيتونو مطلب اوپښتنه. (۱) ومن يقتل مؤمنا متعمدا الخ

بِقَتْلِ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ لَمْ يَنْسَخْهَا شَيْءٌ وَ عَنْ وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ قَالَ نَزَلَتْ فِيْ اَهْلِ الشِّرْكِ.

(٢) والـذين لا يـدعون مـع الـلّـه الـهـا اخر الخ نـو هـغـه جـواب كـښې اوفرمـائيل' ورمبـے آيت منسـوخ شـوے نـه دے' او دوېـم آيت ذ مشركانو باره كښې نازل شوے دے.

بَابُ ٣٢٤: قَوْلِهٖ فَسَوْفَ يَكُوْنُ لِزَامًا هَلَكَةً.

باب ٣٢٤: آيت: فَسَوْفَ يَكُوْنُ لِزَامًا: اللّٰه تعالي قول عنقريب ستاسو دا عمل وبال شي' "لِزَامًا" معني د هلاكت دي.

٢٥٧: حَدَّثَنَا حَدَّثَنَا عُمَرُو بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ خَمْسٌ قَدْ مَضَيْنَ الدُّخَانُ وَالْقَمَرُ وَالرُّوْمُ وَالْبَطْشَةُ وَاللِّزَامُ فَسَوْفَ يَكُوْنُ لِزَامًا.

٢٥٧: عـمـر بـن حـفـص بـن غـيـاث. حـفـص بـن غـيـاث. اعـمـش. مـسـلـم. مـسـروق. عـبـدالله بن مسعودؓ نـه روايت كوي. ذ قيامت پنځه لوئے نښے ذكر شوي دي. (١) لوګے (٢) شق القمر (٣) غلبه روم (٤) بطشه يعني نيوكه (ګرفت) (٥) هلاكت او بربادي يعني لزام. بيا هغه: فسوف يكون لزاما آيت اولوستلو.

## سُوْرَةُ الشُّعَرَاءِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ.

وَقَالَ مُجَاهِدٌ تَعْبَثُوْنَ تَبْنُوْنَ هَضِيْمٌ يَتَفَتَّتُ اِذَا مُسَّ مُسَحَّرِيْنَ الْمَسْحُوْرِيْنَ لَيْكَةُ وَالْاَيْكَةُ جَمْعُ اَيْكَةٍ وَهِيَ جَمْعُ شَجَرٍ يَوْمِ الظُّلَّةِ اِظْلَالُ الْعَذَابِ اِيَّاهُمْ مَوْزُوْنٍ مَعْلُوْمٍ كَالطَّوْدِ الْجَبَلِ الشِّرْذِمَةُ طَائِفَةٌ قَلِيْلَةٌ فِي السَّاجِدِيْنَ الْمُصَلِّيْنَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُوْنَ كَاَنَّكُمْ الرِّيْعُ الْاَيْفَاعُ مِنَ الْاَرْضِ وَ جَمْعُهُ رِيْعَةٌ وَ

## دَ سورۀ شعراء تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد وائي "تَعْبَثُوْنَ" معني تاسو جوړوے. "هضيم" هغه خيز چه وړے وړے تـكړے شي. "مسحرين" چه جادو پرے شوے وي. "ليكة" او "ايكة" ځنګل ته وائي. "يوم الظلة" هغه ورځ چه عذاب به په هغوي سورے كړي. "موزون" معلوم. "كالطود" ذ غر په شان. "شرذمة" وړه ډله. "في الساجدين" سجده كونكو كښې د ابن عباس بيان دے. "لعلّكم تخلدون" معني دا دي: چه هميشه به اوسئے. "ريع" ډهيرى. د هغے جمع "اريا ع" هم راځي او "ريع" هم راځي. "مصانع" محل وغيره عمارات.

اَرْيَاعٌ وَاحِدُهُ الرِّيْعَةُ مَصَانِعَ كُلُّ بِنَاءٍ. فَهُوَ مَصْنَعَةٌ فَرِهِيْنَ مَرِحِيْنَ فَارِهِيْنَ بِمَعْنَاهُ وَ يُقَالُ فَارِهِيْنَ حَاذِقِيْنَ تَعْثَوْ اَشَدُّ الْفَسَادِ عَاثَ يَعِيْثُ عَيْثًا الْجِبِلَّةُ الْخَلْقُ جُبِلَ خُلِقَ وَ مِنْهُ جُبُلًا وَ جِبِلًا وَ جُبْلًا يَعْنِي الْخَلْقَ.

"فرهين" كبر سره تللى. او دَ "فارهين" هم دغه معني دي. خنو نورو خلقو وئيلې دي' "فارهين" هوښيار كاريګر ته وئيلې شي. "تعثوا" معني دي' ډير سخت. دا دَ "عثو" نه مشتق دې. غاث' يغيث' غيثا. "جبلة" معني دي خلقت. مخلوق' پيدا كړې شوې. "جُبُلًا" جِبِلًا" جُبْلًا" دَ ټولو يو معني دي.

## باب ٣٢٥: قَوْلِهِ وَلَا تُخْزِنِي يَوْمَ يُبْعَثُوْنَ.

باب ٣٢٥: آيت: وَلَا تُخْزِنِي يَوْمَ يُبْعَثُوْنَ: دَ الله تعالى قول' دَ خلقو دَ پاسولو په ورځ مِ رُسوا مهٔ كړې.

٧٥٣: وَ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدِ الْمُقْبَرِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ رَاٰى اَبَاهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلَيْهِ الْغَبَرَةُ وَالْقَتَرَةُ الْغَبَرَةُ هِيَ الْقَتَرَةُ.

٧٥٣: ابراهيم بن طهمان. ابن ابي ذئب. سعيد بن ابي سعيد المقبري. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو' حضرت ابراهيم عليه السلام به خپل پلار دَ قيامت په ورځ دَ رسوائي او ذلت په حالت كښې اويني. "غبرة" او "قترة" يو معني دي.

٧٥٤: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا اَخِيْ عَنِ ابْنِ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمُقْبَرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَلْقَى اِبْرٰهِيْمُ اَبَاهُ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ اِنَّكَ وَعَدْتَنِيْ اَلَّا تُخْزِنِيْ يَوْمَ يُبْعَثُوْنَ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ اِنِّيْ حَرَّمْتُ الْجَنَّةَ عَلَى الْكَافِرِيْنَ.

٧٥٤: اسمٰعيل. برادر اسمٰعيل. ابن ابي ذئب. سعيد المقبري. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' دَ قيامت په ورځ به حضرت ابراهيم عليه السلام خپل پلار خراب حالت كښې اويني' نو وائي به' اې الله' تا ماسره وعده كړې وه چه زهٔ به تا نهٔ رُسوا كوم. بيا خما پلار ولې دې حالت كښې دې. دا خو هم خما ذلت دې الله تعالى به ورته اوفرمائي' مونږ جنت په كافرو حرام كړې دې.

## بَاب ٣٢٦: قَوْلِهِ وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ

باب ٣٢٦: آيت: و اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ: دَ الله تعالى قول' خپل رشته دار اويروه' واخْفِضْ جَنَاحَكَ

لِنْ جَانِبَكَ.

٧٥٥: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَ أَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ صَعِدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الصَّفَا فَجَعَلَ يُنَادِي يَا بَنِي فِهْرٍ يَا بَنِي عَدِيٍّ لِبُطُونِ قُرَيْشٍ حَتَّى اجْتَمَعُوا فَجَعَلَ الرَّجُلُ إِذَا لَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يَخْرُجَ أَرْسَلَ رَسُولًا لِيَنْظُرَ مَا هُوَ فَجَاءَ أَبُو لَهَبٍ وَقُرَيْشٌ فَقَالَ أَرَأَيْتَكُمْ لَوْ أَخْبَرْتُكُمْ أَنَّ خَيْلًا بِالْوَادِي تُرِيدُ أَنْ تُغِيرَ عَلَيْكُمْ أَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ قَالُوا نَعَمْ مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ إِلَّا صِدْقًا قَالَ فَإِنِّي نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ فَقَالَ أَبُو لَهَبٍ تَبًّا لَكَ سَائِرَ الْيَوْمِ أَلِهٰذَا جَمَعْتَنَا فَنَزَلَتْ تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ مَا أَغْنَى عَنْهُ مَالُهُ وَمَا كَسَبَ.

٧٥٦: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَ أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

معني دي، چه ته هغوي سره مهرباني سره پيش راشه.

٧٥٥: عمر بن حفص بن غياث. حفص. حفص بن غياث. اعمش. عمرو بن مره. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. د هغه بيان دې، کوم وخت چه دا آيت نازل شو: و انذر عشيرتک الاقربين: اې رسوله، خپل رشته داران اويروه، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم کوه صفا ته اوختلو، او په اوچت آواز ئې نعرې کړې اې بني فهر، اي بني عدي، د قريشو ټول خلق ئې راوغوښتل. کوم وخت چه راغلل، او څوک چه رانغې، هغه خپل نمائنده راوليږلو. ابولهب او قريش هم راغلي وو. حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو، که زه تاسو ته دا اووايم، چه يو ډير لوئې لښکر په تاسو حملې کولو ته تيار ولاړ دې، نو آيا تاسو به خما په خبره يقين اوکړئ. ټولو اووې. ضرور به يقين کوو، ځکه چه مونږ ستاسو ټولې خبرې رښتيا ليدلې دي. بيا حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، زه وينم، که تاسو د خپل شرک او کفر نه منع نه شوې، نو په تاسو يو درونډ عذاب راتلونکې دې ابولهب اووې، ته هلاک شې، تا مونږ دې د پاره دلته رابللي وو، نو هغه وخت سورت: تبت يدا الخ نازل شولو.

٧٥٦: ابواليمان. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب او ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دې، کوم وخت چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د دې آيت: و انذر عشيرتک الاقربين

وَسَلَّمَ حِيْنَ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ قَالَ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ اَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا اِشْتَرُوْا اَنْفُسَكُمْ لَا اُغْنِيْ عَنْكُمْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا يَا بَنِيْ عَبْدِ مُنَافٍ لَا اُغْنِيْ عَنْكُمْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا يَا عَبَّاسُ ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ لَا اُغْنِيْ عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا وَ يَا صَفِيَّةُ عَمَّةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ لَا اُغْنِيْ عَنْكِ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا وَ يَا فَاطِمَةُ بِنْتُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَلِيْنِيْ مَا شِئْتِ مِنْ مَالِيْ لَا اُغْنِيْ عَنْكِ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا تَابَعَهُ اَصْبَغُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ.

(يعني اے رسوله خپل قريبي رشته داران اويروه) د نزول نه پس او دريدلو نو ارشاد ئے اوفرمائيلو اے د قريشو ډلے (يا دا شان څه بله كلمه ئے اوفرمائيله) د اللّٰه اطاعت كوئے ' ځكه چه اللّٰه تعالى سره زۀ ستاسو په هيڅ كار نشم راتلے. اے بني عبدمناف' اللّٰه سره زۀ ستاسو په هيڅ كار نشم راتلے. اے عباس بن مطلب' زۀ اللّٰه سره ستا په هيڅ كار نشم راتلے. اے فاطمے بنت محمدؐ' تۀ خما د مال نه هر څۀ اخستے شے' خو ځو پورے چه نيک عمل اونه كړے' نو خدائے سره زۀ ستا په هيڅ كار نشم راتلے' اصبغ د ابن وهب نه هغۀ د يونس نه او هغۀ د ابن شهاب نه د دے متابع روايت كړے دے.

# سُوْرَةُ النَّمْلِ

# دَ سورۀ نمل تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَالْخَبْءُ مَا خَبَأْتَ لَا قِبَلَ لَا طَاقَةَ الصَّرْحُ كُلُّ مِلَاطٍ اُتُّخِذَ مِنَ الْقَوَارِيْرِ وَالصَّرْحُ الْقَصْرُ وَ جَمَاعَتُهُ صُرُوْحٌ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَلَهَا عَرْشٌ سَرِيْرٌ كَرِيْمٌ حُسْنُ الصَّنْعَةِ وَ غَلَاءُ الثَّمَنِ مُسْلِمِيْنَ طَائِعِيْنَ رَدِفَ اقْتَرَبَ جَامِدَةً قَائِمَةً اَوْزِعْنِيْ اِجْعَلْنِيْ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ نَكِّرُوْا غَيِّرُوْا وَ اُوْتِيْنَا الْعِلْمَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"الخبْ" معني پټ ځيز. "لا قبل" معني دي طاقت. "الصرح" د شيشے محل. دَ دے جمع "صروح" راځي ابن عباسؓ وائي. "ولها عرش عظيم" معني دي چه د هغے تخت بيش قيمته او كاريگري بهترينه نمونه ده. "مسلمين" معني تابعدار. "رَدِفَ" نزدے. "جامدة" په خپل ځائے قايم. "اوزعنى" ما كړے. دَ مجاهد بيان دے. "نكروا" معني دَ هغے شكل او رنګ بدل كړئے. "اوتينا العلم" دا حضرت سليمان وئيلے وو. دَ هغۀ مقوله ده. بعضو دے ته دَ بلقيس مقوله وئيلے ده. "صرح" دَ اوبو

قَوْلُهُ سُلَيْمَانُ الصَّرْحُ بِرْكَةُ مَآءٍ ضَرَبَ عَلَيْهَا سُلَيْمَانُ قَوَارِيْرَ اَلْبَسَهَا اِيَّاهُ.

حوض وو، چه هغه سليمان عليه السلام په شيشو بټ كړے وو. او كتلو كښې داسے معلوميدلو، چه د اُوبو ډک دے.

# اَلْقَصَصُ

# دَ سورۀ قصص تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهُ اِلَّا مُلْكَهُ وَ يُقَالُ اِلَّا مَا اُرِيْدُ بِهِ وَجْهُ اللّٰهِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اَلْاَنْبَآءُ اَلْحُجَجُ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"كل شي هالک الّا وجهه": "وجهه" نه دَ اللّٰه سلطنت يا د هغه ذات مراد دے. بعضے وائي، هغه اعمال مراد دي، چه د هغه دَ رضا دَ پاره اوكړے شي. مجاهد وائي. "انباء" نه مراد دليلو نه دي.

## بَابُ ٣٢٧: قَوْلُهُ اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ.

باب ٣٢٧: آيت: اِنَّکَ لَا تَهْدِیْ مَنْ اَحْبَبْتَ: دَ اللّٰه تعالٰي قول، ته چه څوک غواړے، هغۀ ته هدايت نۀ شے كولے بلكه اللّٰه چه څوک غواړي هدايت ورته كوي.

٧٥٧: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَمَّا حَضَرَتْ اَبَا طَالِبٍ الْوَفَاةُ جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَ عِنْدَهُ اَبَا جَهْلٍ وَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِيْ اُمَيَّةَ بْنِ الْمُغِيْرَةِ فَقَالَ اَيْ عَمِّ قُلْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ كَلِمَةً اُحَاجُّ لَكَ بِهَا عِنْدَ اللّٰهِ فَقَالَ اَبُوْ جَهْلٍ وَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ اُمَيَّةَ اَتَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَلَمْ يَزَلْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

٧٥٧: ابواليمان. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت مسيبؓ نه روايت كوي. څۀ وخت چه ابو طالب مړ كيدلو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورله ورغے. ابوجهل او عبداللّٰه بن اُميه وغيره هم ابو طالب سره موجود وو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ابو طالب ته اوفرمائيل، اے كاكا جي، تۀ يو خل كلمۀ اووايه، چه اللّٰه يو دے او محمدؐ دَ هغۀ ريښتنے رسول دے، نو بيا به زۀ اللّٰه ته ستا باره كښې (ښښنے په حقله) اووايم. دے نه پس ابوجهل او عبداللّٰه، ابو طالب ته اووے، آيا تۀ دَ عبدالمطلب دين پريږدے. رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته دا ونيل، خو هغوي دواړو به ورته خپله خبره په بيا بيا كوله، تردے چه ابو طالب په خپل پښتواني دين

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْرِضُهَا عَلَيْهِ وَ يُعِيدَانِهِ بِتِلْكَ الْمَقَالَةِ حَتّٰى قَالَ اَبُوْ طَالِبٍ اٰخِرَ مَا كَلَّمَهُمْ عَلٰى مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَ اَبٰى اَنْ يَقُوْلَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ مَا لَمْ اُنْهَ عَنْكَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْ اَبِيْ طَالِبٍ فَقَالَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اُولِي الْقُوَّةِ لَا يَرْفَعُهَا الْعُصْبَةُ مِنَ الرِّجَالِ لَتَنُوْءُ لَتُثْقِلُ فَارِغًا اِلَّا مِنْ ذِكْرِ مُوْسٰى اَلْفَرِحِيْنَ الْمَرِحِيْنَ قُصِّيْهِ اتَّبِعِيْ اَثَرَهٗ وَقَدْ يَكُوْنُ اَنْ يَقُصَّ الْكَلَامَ نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ عَنْ جُنُبٍ عَنْ بُعْدٍ عَنْ جَنَابَةٍ وَاحِدٌ وَ عَنِ اجْتِنَابٍ اَيْضًا نَبْطِشُ وَ نَبْطُشُ يَاْتَمِرُوْنَ يَتَشَاوَرُوْنَ الْعُدْوَانُ وَالْعَدَآءُ وَالتَّعَدِّيْ وَاحِدٌ اٰنَسَ اَبْصَرَ الْجَذْوَةُ قِطْعَةٌ غَلِيْظَةٌ مِنَ الْخَشَبِ لَيْسَ فِيْهَا لَهَبٌ وَالشِّهَابُ فِيْهِ لَهَبٌ وَالْحَيَّاتُ اَجْنَاسٌ الْجَانُّ وَالْاَفَاعِيْ

مړ شو. او كلمه: لا اله الا اللّٰه: ئې اونه وئيله. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: واللّٰه زۀ به هغه (ابو طالب) د پاره برابر استغفار كوم: څو پورې چه اللّٰه تعالي ما د دې نه منع نه كړي: نو هغه وخت دا آيت نازل شولو: ما كان للنبيّ والّذين امنوا الخ: يعني نبي او ايمان والو ـ له پكار نه دي: چه مشركانو د پاره استغفار اوغواړي: او اللّٰه تعالي: حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته د ابو طالب باره كښې اوفرمائيل چه: انّك لا تهدى الخ: يعني دا ستا خوښه نه ده: چه چاته غواړې: هدايت دې اوكړې: دا د اللّٰه په خوښه ده: چه چا ته غواړي: هدايت ورته كوي. ابن عباسؓ وائي. "لتنوء بالعصبة اولى القوة" معني دا دي: چه يو لوئې جماعت د هغۀ قنجيانې نۀ شوې اوچتولې: هغه به په هغوي هم درنې وې. "لتنوء" بوج دې. "فارغا" مطلب دا دې: چه د موسيٰؑ د مور په زړۀ كښې سوا د موسيٰ نه بل څۀ خيال پاتې نۀ شو: "فرحين" خوشحاله. "قصيه" معني دي: هغۀ پسې ورستو ورستو ځه. د بيانونو معني هم راځي. "عن جنب" د لرې نه او دا معني دي: د "عن جنابة" او د "عن اجتناب" هم دا معني دي. "نبطش نبطش" دواړه شان لوستې شي. "ياتمرون" مشوره ئې كوله. "عدوان: عداء: تعدى" د ټولو معني دي: د حد نه تيريدل. "انس" وې ليدل. "جذوة" د غټ لرګي هغه سر چه په هغې اور لږيدلې وي. او "شهاب" لپټ واله ته وائي. "جان" نرې مار. "افعى" اژدها "ردًا" مددګار. ابن عباسؓ به د "يصدقنى" په قاف پيش وئيلو. د بعضو وينا ده: د "سنشد" معني: مونږ به ستا مدد كوو. عرب د مدد وركولو په موقع

والاساود ردا معينا قال ابن عباس يصدقني وقال غيره سنشد سنعينك كلما عززت شيئا فقد جعلت له عضدا مقبوحين مهلكين وصلنا بيناه واتممناه يجبى يجلب بطرت أشرت في امها رسولا أم القرى مكة وما حولها تكن تخفي اكننت الشيء اخفيته وكننته اخفيته واظهرته ويكأن الله مثل ألم تر أن الله يبسط الرزق لمن يشاء ويقدر يوسع عليه ويضيق عليه.

وائي چه [illegible] [illegible] [illegible] [illegible] کړے شو [illegible] [illegible] [illegible] په رابنکلو نے راولي. حضرت معنی دی هغه سرکشي اوکړه. "امها رسولا" [illegible] د مکے خواوشا نه ورنیلے شي. [illegible] "تکن" پټیږي. عرب وائي "اکننت الشئ" ما هغه پټ کړلو. د "کننته" هم دغه معنی راځي. "ویکان اللّه" مطلب دے. آیا تا هغه اونه لیدلو. "ان اللّه یبسط الرزق لمن یشاء و یقدر" اللّه چه چاله غواړي فراخه رزق ورکوي او چا ته چه غواړي لنډه تنګه روزي ورکوي.

باب ۳۲۸: قوله إن الذي فرض عليك القرآن الآية.

باب ۳۲۸: آیت: ان الذی فرض علیک القرٰان: د اللّه تعالٰي قول: چا چه په تا قرآن فرض کړے دے. هغه به تا دوباره د واپس کیدو ځائے ته راولي.

۷۵۸: حدثنا محمد بن مقاتل أخبرنا يعلى حدثنا سفيان العصفري عن عكرمة عن ابن عباس لرادك إلى معاد قال إلى مكة.

۷۵۸: محمد بن مقاتل. یعلي. سفیان عصفري. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي: د هغه بیان دے "لرادک الی معاد" مطلب دا دے: چه اللّه تعالٰي به بیا تا مکے ته راولي.

# العنكبوت

# دَ سورۀ عنکبوت تفسیر

بسم الله الرحمن الرحيم

قال مجاهد وكانوا مستبصرين ضللة فليعلمن الله علم الله ذلك إنما هي بمنزلة فليميز الله الخبيث أثقالا مع أثقالهم أوزارهم.

د مجاهد بیان دے. "و کانوا مستبصرین" او هغے خلقو به ښه بد لیدل. "فلیعلمن اللّه" مطلب دا دے: چه اللّه تعالٰي به خپل علم ظاهر کړي. "لیمیز اللّه الخبیث" چه اللّه ګنده د ستهره نه جدا کړي "اثقالا مع اثقالهم" خپل بوج سره د نورو بوج.

# الٓمٓ غُلِبَتِ الرُّوْمُ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

فَلَا يَرْبُوْا مَنْ اَعْطٰى يَبْتَغِىْ اَفْضَلَ فَلَا اَجْرَ لَهٗ فِيْهَا قَالَ مُجَاهِدٌ يُحْبَرُوْنَ يُنَعَّمُوْنَ يَمْهَدُوْنَ يُسَوُّوْنَ الْمَضَاجِعَ الْوَدْقُ الْمَطَرُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَلْ لَّكُمْ مِّمَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ فِي الْاٰلِهَةِ وَ فِيْهِ تَخَافُوْنَهُمْ اَنْ يَّرِثُوْكُمْ كَمَا يَرِثُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا يُصَّدَّعُوْنَ يَتَفَرَّقُوْنَ فَاصْدَعْ وَ قَالَ غَيْرُهٗ ضُعْفٌ وَ ضَعْفٌ لُغَتَانِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ السُّوْآى الْاِسَآءَةُ جَزَاءُ الْمُسِيْئِيْنَ.

# دَ سُورهٔ روم تفسير

بسم الله الرحمن الرحيم

"فلا يربوا" معني دي چه څوک په سود قرض ورکړي هغه ته به هيڅ ثواب نشي ورکيدے. د مجاهد وينا ده. د "يحبرون" معني نعمتونه به ورکړے شي. "يمهدون" خان د پاره بستره وغيره غوړوي. "الودق" معني د باران دي. ابن عباسؓ وائي "هل لكم ممّا ملكت ايمانكم" الله تعالىٰ او دَ بُتانو مثال کښې نازل شوے دے. "تخافونهم" آيا تاسو د خپلو غلامانو او وينزو نه خوف کوئے چه هغوي ستاسو جدا جدا وارث جوړ شي. "يصدعون" جدا جدا شي. "فاصدع" پرانستے بيان کړي. بعضے خلق وائي چه "ضُعف" او "ضَعف" يو معني دي. مجاهد وائي چه "سُوْآى" او "اسآءة" معني دا دي چه بدي کونکو ته به برابر بدله رسيږي.

۷۵۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ وَالْاَعْمَشُ عَنْ اَبِى الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ يُحَدِّثُ فِيْ كِنْدَةَ فَقَالَ يَجِيْئُ دُخَانٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَأْخُذُ بِأَسْمَاعِ الْمُنَافِقِيْنَ وَ اَبْصَارِهِمْ وَ يَأْخُذُ الْمُؤْمِنَ كَهَيْئَةِ الزُّكَامِ فَفَزِعْنَا فَاَتَيْتُ ابْنَ مَسْعُوْدٍ وَ كَانَ مُتَّكِئًا فَغَضِبَ فَجَلَسَ فَقَالَ مَنْ عَلِمَ فَلْيَقُلْ وَمَنْ لَّمْ

۷۵۹: محمد بن كثير. سفيان. منصور. اعمش. ابوالضحي. حضرت مسروق نه روايت کوي، يو سړي کِنده کښې بيان کولو دَ قيامت په ورځ به لوګے شان پيدا شي، چه دَ منافقانو په غوږونو او سترګو کښې به ننوځي او ايماندارو ته به زکام شان شي. دے آوريدو سره زهٔ اويريدم، بيا عبدالله بن مسعود له راغلم، هغهٔ بالښت ته ډډه وهلے وه، ناست وو. ما هغهٔ ته دا واقعه بيان کړه، نو هغه په غصه شولو، اووئيلے، سړي له پکار دي، چه کومه خبره ورته معلومه وي، هغه بيان کړي، کني اُو دے وائي چه الله ښهٔ پوهيږي، ځکه چه دا هم يو قسم علم دے، چه کوم خيز معلوم نه وي، دَ هغے په حقله اووائي، چه ماته نه

يَعْلَمْ فَلْيَقُلِ اللّٰهُ اَعْلَمُ فَاِنَّ اللّٰهَ قَالَ لِنَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ مَا اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ وَ اِنَّ قُرَيْشًا اَبْطَئُوْا عَنِ الْاِسْلَامِ فَدَعَا عَلَيْهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوْسُفَ فَاَخَذَتْهُمْ سَنَةٌ حَتّٰى هَلَكُوْا فِيْهَا وَ اَكَلُوا الْمَيْتَةَ وَالْعِظَامَ وَ يَرَى الرَّجُلُ مَا بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ كَهَيْئَةِ الدُّخَانِ فَجَآءَهٗ اَبُوْ سُفْيَانَ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ جِئْتَ تَاْمُرُنَا بِصِلَةِ الرَّحِمِ وَ اِنَّ قَوْمَكَ قَدْ هَلَكُوْا فَادْعُ اللّٰهَ فَقَرَأَ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ اِلٰى قَوْلِهٖ عَائِدُوْنَ اَفَيُكْشَفُ عَنْهُمْ عَذَابُ الْاٰخِرَةِ اِذَا جَآءَ ثُمَّ عَادُوْا اِلٰى كُفْرِهِمْ فَذٰلِكَ قَوْلُهٗ تَعَالٰى يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى يَوْمَ بَدْرٍ وَّ لِزَامًا يَوْمَ بَدْرٍ الٓمّٓ غُلِبَتِ الرُّوْمُ اِلٰى سَيَغْلِبُوْنَ وَالرُّوْمُ قَدْ مَضٰى.

ده معلومه. الله خپل رسول ته فرمائي: ته ورته اووايه: چه زه په خپل تبليغ او نصيحت تاسو نه څه صله (بدله) نه غواړم، او نه زه تاسو ته بناوټي خبرې كوم. اصل خبره داده: چه د اهل مكه په ايمان راوړلو كښې تاخير اوشو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم الله ته عرض اوكړو: اے الله! ته په دوي د حضرت يوسف عليه السلام د زمانے په شان قحط راولي. دعا قبوله شوه. قحط راغے سرې او خناور به مړه كيدل. خلقو مردار او غوښه خوړل شروع كړل. او د خلقو ستركو كښې لوګے لوګے شان په نظر راتلو. نو ابوسفيان حضور صلي الله عليه وسلّم له راغے، او وئيلے: اے محمدؐ! تاسو خو مونږ ته د همدردي او صله رحمي تعليم راكوے. ګورے، ستاسو د قوم خلق مړه شو. تاسو دعا اوكړئے، رسول اكرم صلي الله عليه وسلّم دعا اوكړله. بيائے دا آيت اولوست: فارتقب يوم تاتي السماء بدخان مبين. عائدون پورے. دے آيت كښې د عذاب د لرے كيدو ذكر دے، چه هغه صرف دُنياوي عذاب كيدے شي، ځكه چه د آخرت عذاب لرے كيدونكے نه دے، او نه هلته كافر خپل كفر طرف ته واپس كيدے شي. نو د لوګي نه مراد قحط سالي واله لوګے دے. او "البطشة" نه مراد د بدر جنګ دے. او د لزام، مطلب بدر كښې قيد كيدل دي. جنګ بدر او واقعه روم هم تير شولو.

باب ۳۲۹: قَوْلُهٗ لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ لِدِيْنِ اللّٰهِ، خُلُقُ الْاَوَّلِيْنَ دِيْنُ الْاَوَّلِيْنَ وَالْفِطْرَةُ

باب ۳۲۹: آيت: لا تبديل لخلق الله: د الله تعالي قول، د الله تعالي جوړ كړے فطرت كښې څۀ تبديلي نشي راتلے. "خلق الله" نه مراد د الله دين دے، لكه "خلق الاولين" نه مراد "دين الاولين" دے. فطرت نه

اَلْاِسْلَامُ.

مراد اسلام دے.

۴٧٦٠: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِیْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مَوْلُوْدٍ اِلَّا يُوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَاَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهٖ اَوْ يُنَصِّرَانِهٖ اَوْ يُمَجِّسَانِهٖ تُنْتَجُ الْبَهِيْمَةُ بَهِيْمَةً جَمْعَاءَ هَلْ تُحِسُّوْنَ فِيْهَا مِنْ جَدْعَاءَ ثُمَّ يَقُوْلُ فِطْرَةَ اللّٰهِ الَّتِیْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ.

۴٧٦٠: عبدان. عبدالله. يونس. زهري. ابو سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، حضورؐ اوفرمائيل. هر بچے په اسلامي فطرت پيدا کيږي. هغے نه پس د هغهٔ مور پلار هغه يهودي يا نصراني يا مجوسي جوړ کړي، څنګه چه د څناورو بچي تندرست او سالم پيدا کيږي، خو ورستو دا کافر دَ هغوي غوږونه وغيره کټ کړي. دغه شان دَ انسانانو ټول بچي په اسلامي فطرت پيدا کيږي. دے نه پس حضور صلي الله عليه وسلّم دا آيت تلاوت کړلو: فطرت الله التی الخ: هغه فطرت چه په هغے ئے انسانان پيدا کړل. دَ الله دين بدليږي نه. دا ټيک دين دے.

## اَللُّقْمَانُ

## دَ سورهٔ لقمان تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بَابٌ ۳۳۰: قَوْلُهٗ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ.

باب ۳۳۰: آيت: لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ: دَ الله تعالیٰ قول، الله سره شرک مه کوه، بيشکه شرک لوئے ظلم دے.

۴٧٦١: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ شَقَّ ذٰلِكَ عَلٰى اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالُوْا اَيُّنَا لَمْ يَلْبِسْ اِيْمَانَهٗ بِظُلْمٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

۴٧٦١: قتيبه بن سعيد. جرير. اعمش. ابراهيم. علقمه. حضرت ابن مسعودؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. کوم وخت چه دا آيت نازل شو: الذين امنوا ولم يلبسوا ايمانهم الخ: کومو خلقو چه ايمان راوړلو، او بيا خپل ايمان کښې ئے څهٔ ظلم اونه کهٔ، نو هغه وخت خلقو سره ډيره پريشاني پيدا شوه. او ټولو حضور صلي الله عليه وسلّم ته عرض اوکهٔ، يا رسول الله، داسے به څوک وي، چه هغه خپل ايمان کښې څهٔ ظلم نهٔ وي کړے، نو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهٗ لَيْسَ بِذَاكَ اَلَا تَسْمَعُ اِلٰى قَوْلِ لُقْمَانَ لِاِبْنِهٖ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ.

نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' دلته ذ ظلم نه مراد شرک دے. آيا تاسو نهٔ دي آوريدلے چه لقمان خپل خوئ ته فرمائيلي وو. ان الشرک لظلم عظيم.

**باب ۱۳۴۳: قَوْلِهٖ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ.**

**باب ۱۳۴۳:** آيت: اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ: د الله تعالي قول' ذ قيامت علم صرف الله تعالي ته معلوم دے.

**۴۲۶۲:** حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ عَنْ جَرِيْرٍ عَنْ اَبِيْ حَيَّانَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَوْمًا بَارِزًا لِلنَّاسِ اِذْ اَتَاهُ رَجُلٌ يَمْشِيْ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الْاِيْمَانُ قَالَ الْاِيْمَانُ اَنْ تُؤْمِنَ بِاللّٰهِ وَ مَلٰئِكَتِهٖ وَ رُسُلِهٖ وَ لِقَآئِهٖ وَ تُؤْمِنَ بِالْبَعْثِ الْاٰخِرِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الْاِسْلَامُ قَالَ الْاِسْلَامُ اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكَ بِهٖ شَيْئًا وَ تُقِيْمَ الصَّلٰوةَ وَ تُؤْتِيَ الزَّكٰوةَ الْمَفْرُوْضَةَ وَ تَصُوْمَ رَمَضَانَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الْاِحْسَانُ قَالَ الْاِحْسَانُ اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهٗ يَرَاكَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَتَى السَّاعَةُ قَالَ مَا الْمَسْئُوْلُ عَنْهَا بِاَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ وَلٰكِنْ سَاُحَدِّثُكَ عَنْ اَشْرَاطِهَا اِذَا وَلَدَتِ الْمَرْاَةُ رَبَّتَهَا فَذَاكَ مِنْ اَشْرَاطِهَا وَ اِذَا كَانَ الْحُفَاةُ الْعُرَاةُ رُءُوْسَ النَّاسِ فَذَاكَ مِنْ

**۴۲۶۲:** اسحاق. جرير. ابي حيان. ابي زرعه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' يو ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خلقو کښې اودريدلو. يو سړے راغے' او عرض ئے اوکړه' يا رسول الله' ايمان څهٔ ته وائي' حضورؐ اوفرمائيل' ايمان دا دے' چه ته په الله پوره يقين لرے' ذ هغهٔ په فريښتو' کتابونو او رسولانو ايمان لرے' او ذ الله تعالي سره ملاقات يقين لرے' قيامت او حشر پوره طور سره منے. بيا هغهٔ تپوس اوکړ' اسلام څهٔ ته وائي' حضورؐ ورته اوفرمائيل' صرف ذ الله تعالي عبادت کول' شرک نه محفوظ کيدل' مونځ ادا کول' زکٰوة ورکول' ذ رمضان روژے نيول. دے نه پس هغهٔ تپوس اوکړ' احسان څهٔ ته وائي' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' احسان دا دے' چه ته ذ الله عبادت داسے اوکړے' لکه چه ته هغه وينے' او که داسے نشي کيدے' نو دومره يقين اوساتے' چه هغه تا ويني. دے نه پس ئے تپوس اوکړ. قيامت به کله راځي' حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' دا ستا نه زيات نهٔ پيژنم. او دا درته بنايم. چه ذ هغے ذ علامتونو نه يو دا دے' چه ښځے نه به خپله خاوند، پيدا شي' (يعني خونے چه لونے شي' نو ذ هغے خاوند او مالک به جوړ شي) کمينه او واړهٔ خلق به بادشاهان جوړ شي. دے نه پس ئے

اَشْرَاطِهَا فِيْ خَمْسٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ اِلَّا اللّٰهُ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ وَ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَ يَعْلَمُ مَا فِي الْاَرْحَامِ ثُمَّ انْصَرَفَ الرَّجُلُ فَقَالَ رُدُّوْا عَلَيَّ فَاَخَذُوْا لِيَرُدُّوْا فَلَمْ يَرَوْا شَيْئًا فَقَالَ هٰذَا جِبْرِيْلُ جَاءَ لِيُعَلِّمَ النَّاسَ دِيْنَهُمْ.

اوفرمائيل پنځه خبرے دي چه هغه صرف الله ته معلومے دي. (١) دا چه قيامت به كله راځي (٢) دا چه باران به كله كيږي (٣) د ښځے په رحم كښې څۀ دي دے نه پس هغه سړے لاړ. حضورؐ اوفرمائيل هغه سړے لږ واپس راولے. مونږ اوكتلو، خو بيا مو نۀ مندلو، حضورؐ اوفرمائيل دا جبرائيلؑ وو چه خلقو ته دين ښودلو د پاره راغلے وو.

۴٧٦۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَفَاتِيْحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ ثُمَّ قَرَاَ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ.

۴٧٦۳: يحيي بن سليمان. ابن وهب. عمر بن محمد بن زيد بن عبدالله بن عمرؓ. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، د هغۀ بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو. د غيب د خزانو پنځه قنجيانے دي. دے نه پس حضور صلي الله عليه وسلم دا آيت تلاوت كړلو. انّ الله عنده علم الساعة الخ: آخر آيت پورے.

## تَنْزِيْلُ السَّجْدَةِ

## د سورۀ تنزيل السجدة تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مَهِيْنٌ ضَعِيْفٌ نُطْفَةُ الرَّجُلِ ضَلَلْنَا هَلَكْنَا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْجُرُزُ الَّتِيْ لَا تُمْطَرُ اِلَّا مَطَرًا لَا يُغْنِيْ عَنْهَا شَيْئًا نَهْدِ نُبَيِّنْ.

د مجاهد بيان دے. "مهين" كمزوري ته وائي. او مراد ترے د سړي نطفه ده "ضللنا" مونږ تباه شو. ابن عباس وائي "جرز" هغه زمكه چه هلته باران ډير كم كيږي، يا سخته او خشكه زمكه. "نهد" معني هغوي ته ئے هدايت وركه.

### بَابُ ۲۳۳۲: قَوْلُهٗ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا اُخْفِيَ لَهُمْ.

### باب ۲۳۳۲: آيت: فلا تعلم نفس ما اُخفي لهم: د الله تعالي قول. هيڅوك نۀ ده معلومه چه د هغۀ د پاره ئے څنګه د سترګو يخ والے سبب اينښے دے.

۴٧٦۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ

۴٧٦۴: علي بن عبدالله. سفيان. ابي

اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ وَ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى اَعْدَدْتُ لِعِبَادِيَ الصَّالِحِيْنَ مَا لَا عَيْنٌ رَاَتْ وَلَا اُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلٰى قَلْبِ بَشَرٍ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اقْرَءُ وْا اِنْ شِئْتُمْ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا اُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ.

الزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، خما رب ارشاد فرمائي، ما ذ خپلو بنديانو د پاره داسے خيزونه تيار كړي دي، چه نه يو ستركے ليدلے دي، نه يو غوږ آوريدلے دي، او نه ذ چا وهم و گمان كښې راغلے دي. ذ دے راوي اووے، كه تاسو غواړئے، نو دا آيت اولولئے: فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا اُخْفِيَ مِنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ. خكه چه دے كښې ذ دے بيان دے.

۴٦۵: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ مِثْلَهُ قِيْلَ لِسُفْيَانَ رِوَايَةً قَالَ فَاَيُّ شَيْءٍ قَالَ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ قَرَاَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قُرَّاتٍ.

۴٦۵: علي. سفيان. ابوالزناد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے. اللّٰه تعالٰي ارشاد فرمائي، بيائے هغه بيان اوكهٔ، كوم چه مخكښې تير شوے دے. سفيان نه تپوس اوشهٔ، چه تا دا حديث ذ حضورؐ نه روايت كړے دے، نور څهٔ. ابو معاويه ذ اعمش نه په واسطه ذ صالح نقل كړے دے، چه حضرت ابوهريرهؓ "قرات اعين" اووے.

۴٦٦: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى اَعْدَدْتُ لِعِبَادِيَ الصَّالِحِيْنَ مَالَا عَيْنٌ رَاَتْ وَلَا اُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلٰى قَلْبِ بَشَرٍ ذُخْرًا بَلْهَ مَا اُطْلِعْتُمْ عَلَيْهِ ثُمَّ قَرَاَ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا اُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ.

۴٦٦: اسحاق بن نضر. ابو اسامه. اعمش. ابو صالح. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، خما رب فرمائي، ما ذ خپلو نيكو او متقيانو بنديانو ذ پاره داسے داسے نعمتونه تيار كړے دي، چه نهٔ به يو ستركے ليدلے وي، نه به يو غوږ آوريدلے وي، او نه ذ چا زړهٔ كښې ذ هغے خيال تير شوے دے، د اللّٰه دغه نعمتونو نه واقف والے خو ډيره لرے خبره ده دے نه پس ذكر شوے آيت حضورؐ تلاوت كړلو.

ف: اللّٰه پاک دے دغه نعمتونه خمونږ هم نصيب كړي. اللّٰهمَّ آمين.

# الْأَحْزَاب

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ صَيَاصِيْهِمْ قُصُوْرِهِمْ.

باب ۳۳۳: قَوْلُهٗ النَّبِيُّ أَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ.

۷٦٧: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ مُؤْمِنٍ إِلَّا وَ أَنَا أَوْلَى النَّاسِ بِهٖ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ اقْرَأُوْا إِنْ شِئْتُمْ النَّبِيُّ أَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ فَأَيُّمَا مُؤْمِنٌ تَرَكَ مَالًا فَلْيَرِثْهُ عَصَبَتُهٗ مَنْ كَانُوْا فَإِنْ تَرَكَ دَيْنًا أَوْ ضِيَاعًا فَلْيَأْتِنِيْ وَ أَنَا مَوْلَاهُ.

باب ۳۳۴: قَوْلُهٗ أُدْعُوْهُمْ لِاٰبَائِهِمْ.

۷٦۸: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ الْمُخْتَارِ حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ زَيْدَ بْنَ حَارِثَةَ مَوْلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

# دَ سورهٔ احزاب تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد وائي "صياصيهم" معني دي: محل، قلعه وغيره.

باب ۳۳۳: آيت: النَّبِيُّ أَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ: دَ اللّٰه تعالي قول، چه نبي په مؤمنانو دَ هغوي دَ خانونونه هم زيات حق لري.

۷٦۷: ابراهيم بن منذر. محمد بن فليح. هلال بن علي. عبدالرحمٰن بن ابي عمره. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، دَ هر ايمان والـه زهٔ دَ ټولونه زيات دے دُنيا او آخرت كښې خير خواه يم، كه تاسو غواړئ، نو دا آيت اولولئ: النَّبِيُّ أَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ الخ: يعني نبي دَ ايمان والو، دَ هغوي خانونو نه هم زيات حقدار دے. حضورؐ اوفرمائيل. كوم مومن چه مال پريښے دے، دَ هغهٔ وارث دَ هغهٔ رشته دار دي. او كه دَ چا قرض دَ هغهٔ په ذمه راځي، يائے اولاد پريښے وي نو هغه دے ماله راشي، زهٔ دَ هغوئ ذمه وار يم.

باب ۳۳۴: آيت: أُدْعُوْهُمْ لِاٰبَائِهِمْ: دَ اللّٰه تعالي قول، چه هغوي (يعني متبني) دَ هغوي دَ پلارانو په نومونو بلئ.

۷٦۸: معلي بن اسد. عبدالعزيز. موسي بن عقبه. سالم بن عبداللّٰه. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم، زيد بن حارثه متبني (خوئے) جوړ كړلو. او مونږ خلقو به زيد ته زيدؓ بن محمدؐ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا كُنَّا نَدْعُوْهُ اِلَّا زَيْدَ بْنَ مُحَمَّدٍ حَتّٰى نَزَلَ الْقُرْاٰنُ اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَاءِهِمْ هُوَ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ.

رابللے دے سلسله کښې: [illegible] اُدْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ [illegible] دغسې بللو.

**بـــاب ۳۳۵: قَـــوْلِـــهٖ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضٰى نَحْبَهٗ وَمِنْهُمْ مَنْ يَّنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوْا تَبْدِيْلًا نَحْبَهٗ عَهْدَهٗ اَقْطَارِهَا جَوَانِبِهَا الْفِتْنَةَ لَاٰتَوْهَا لَاَعْطَوْهَا.**

**باب ۳۳۵:** آيت: فَمِنْهُمْ مَنْ قَضٰى نَحْبَهٗ د الله تعالي قول: مؤمنانو كښې داسې هم شته چه هغوي الله سره كوم عهد كړے وو هغه يې پوره كړلو او بعضې د وخت منتظر دي. او هغوي كښې هيڅ تبديلي نه ده شوې "نحبه" ذ هغه عهد "اقطارها" ذ غاړو (كنارو) "لآتوها" دوئ به ورله وركړے وه.

**۴۶۹:** حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ نُرٰى هٰذِهِ الْاٰيَةَ نَزَلَتْ فِيْ اَنَسِ بْنِ النَّضْرِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ.

**۴۶۹:** محمد بن بشار. محمد بن عبدالله انصاري. ذ هغه پلار. ثمامه بن عبدالله. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے دا آيت ذ انس بن نضر په حق كښې نازل شوے دے. ايماندارو كښې هغه سړي دي، چه هغوي الله سره كړے لوظ پوره كړلو.

**۴۷۰:** حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ لَمَّا نَسَخْنَا الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ فَقَدْتُ اٰيَةً مِّنْ سُوْرَةِ الْاَحْزَابِ كُنْتُ اَسْمَعُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَءُهَا لَمْ اَجِدْهَا مَعَ اَحَدٍ اِلَّا مَعَ خُزَيْمَةَ الْاَنْصَارِيِّ الَّذِيْ جَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهَادَتَهٗ

**۴۷۰:** ابواليمان. شعيب. زهري. خارجه بنت زيد بن ثابت. حضرت زيد بن ثابت نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے. هر كله چه مونږ قرآن په يوخائې اوليكه، نو ذ سورت احزاب يو آيت چه ما به ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه آوريدلو، هغه ماته ذ چانه حاصل نه شو. آخر خزيمه انصاري نه راته حاصل شولو، او هغه ته حضور صلي الله عليه وسلم داسې ربتښې فرمائيلې وو، چه د هغه يوازې شهادت نې د دوو مسلمانانو ذ شهادت برابر فرمائيلې وو، هغه

شَهَادَةَ رَجُلَيْنِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ.

دا دے مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ. آخر آيت پورے.

**باب ٦ ٣٣: قَوْلِهٖ قُلْ لِّأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَ زِيْنَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَ أُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا اَلتَّبَرُّجُ أَنْ تُخْرِجَ مَحَاسِنَهَا سُنَّةَ اللّٰهِ اسْتَنَّهَا جَعَلَهَا.**

**باب ٦ ٣٣:** آيت: قُلْ لِّأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا: ذ الله تعالىٰ قول، اے نبيّ خپلو بيبيانوته اووايه، كه تاسو د دُنيا عيش و عشرت غوارئے، نو راځئے، چه زهٔ مال دركړم، او په خوشئ مو رخصت كړم. "تبرج" معني ډول سِنگار كول. "سنة الله استنها" خپله طريقه.

**١٧٧: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ هَا حِيْنَ أَمَرَ اللّٰهُ أَنْ يُخَيِّرَ أَزْوَاجَهٗ فَبَدَأَ بِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّيْ ذَاكِرٌ لَكِ أَمْرًا فَلَا عَلَيْكِ أَنْ تَسْتَعْجِلِيْ حَتّٰى تَسْتَأْمِرِيْ أَبَوَيْكِ وَقَدْ عَلِمَ أَنَّ أَبَوَيَّ لَمْ يَكُوْنَا يَأْمُرَانِيْ بِفِرَاقِهٖ قَالَتْ ثُمَّ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ قَالَ يٰأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّأَزْوَاجِكَ إِلٰى تَمَامِ الْآيَتَيْنِ فَقُلْتُ لَهٗ فَفِيْ أَيِّ هٰذَا أَسْتَأْمِرُ أَبَوَيَّ فَإِنِّيْ أُرِيْدُ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ الدَّارَ الْآخِرَةَ.**

**١٧٧:** ابواليمان. شعيب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمن. بي بي عائشے تېر د نبي عليه السلام نه روايت كوي. كوم وخت چه دا آيت (آيت تخيير) نازل شولو، نو حضور صلي الله عليه وسلم د ټولونه مخكښې ماله تشريف راوړلو، او وے فرمائيل، زهٔ تاته يوه خبره كوم، خو جواب كښې تادي مه كوه. او د خپل مور پلار نه په بنهٔ شان تپوس اُوكه، بيا جواب راكه. بي بي عائشهؓ واني، حضور صلي الله عليه وسلم ته بنهٔ معلومه وه، چه خما مور پلار د حضور صلي الله عليه وسلم جدائي او د مال محبت نهٔ خوښوي. بيا حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، الله پاك فرمائي: يايها النبي قل لازواجك الخ: بي بي عائشهؓ واني، ما خدمت كښې عرض اوكه، يا رسول الله، زهٔ د مور پلار نه څه تپوس اوكړم، زهٔ خو د آخرت عيش او الله او رسول خوښوم، نه چه مال.

**باب ٣٣٧: قَوْلِهٖ وَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ**

**باب ٣٣٧:** آيت: وَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ: د الله تعالىٰ قول، كه تاسو الله رسول او آخرت

فَإِنَّ اللّٰهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنٰتِ مِنْكُنَّ أَجْرًا عَظِيْمًا وَقَالَ قَتَادَةُ وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى فِيْ بُيُوْتِكُنَّ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ وَالْحِكْمَةِ الْقُرْاٰنُ وَالسُّنَّةُ.

۲۷۷: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أُمِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَخْيِيْرِ أَزْوَاجِهٖ بَدَأَ بِيْ فَقَالَ إِنِّيْ ذَاكِرٌ لَكِ أَمْرًا فَلَا عَلَيْكِ أَنْ لَا تَعْجَلِيْ حَتّٰى تَسْتَأْمِرِيْ أَبَوَيْكِ قَالَتْ وَقَدْ عَلِمَ أَنَّ أَبَوَيَّ لَمْ يَكُوْنَا يَأْمُرَانِّيْ بِفِرَاقِهٖ قَالَتْ ثُمَّ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ جَلَّ ثَنَاؤُهٗ قَالَ يٰأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا إِلٰى أَجْرًا عَظِيْمًا قَالَتْ فَقُلْتُ فَفِيْ أَيِّ هٰذَا أَسْتَأْمِرُ أَبَوَيَّ فَإِنِّيْ أُرِيْدُ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ قَالَتْ ثُمَّ فَعَلَ أَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ مَا فَعَلْتُ تَابَعَهٗ مُوْسٰى بْنُ أَعْيَنَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ سَلَمَةَ وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ وَأَبُوْ سُفْيَانَ الْمَعْمَرِيُّ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ.

خوښوے، نو الله تاسو کښې نيکو بيبيانو له لوئے ثواب مقرر کړے دے. حضرت قتاده فرمائي: واذكرن ما يتلى في بيوتكن من آيات الله والحكمة الخ: کښې آيات نه مراد قرآن او "الحكمة" نه مراد سنت رسول دے.

۲۷۷: ليث. يونس. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمن. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي: کوم وخت چه د الله تعالى دا حکم حضور صلي الله عليه وسلم له راغے، نو حضورؐ د ټولو نه مخکښې ماته اوفرمائيل: زۀ تاته يوه خبره کوم. جواب کښې تادي مۀ کوه: بلکه د خپل مور پلار نه تپوس اوکه. (دا خبره حضور صلي الله عليه وسلم په دے غرض اوفرمائيله: چه چرته زۀ مال خوښ نۀ کړم، ځکه چه مور پلار خو م آخرت او رسول الله صلي الله عليه وسلم خوښوي). دے نه پس حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: اے عائشےؓ! که تۀ د دُنيا مال متاع خوښوے نو بيا به دے زۀ ډير سامان سره رخصت کړم؛ او که تۀ الله، رسول او آخرت خوښوے، نو خدائے ستاسو د پاره لوئے اجر مقرر کړے دے. خو په دے شرط چه تاسو په نيکئ قائمے ئے. بي بي عائشۀؓ فرمائي، ما حضور صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکۀ. زۀ دے کښې د مور پلار نه څۀ تپوس اوکړم، زۀ خو الله، رسول او آخرت خوښوم. بيا هم دا خبره حضور صلي الله عليه وسلم د نورو بيبيانو نه هم اوتپوسله، او هغوي ټولو هم دغه جواب ورکړلو. موسى بن اعين، معمر، زهري، ابو سلمه، عبدالرزاق، ابوسفيان نه د دے متابع حديث روايت کۀ. او زهري د عروه نه او هغه د بي بي عائشے صديقےؓ نه هم دا حديث روايت کړے دے.

باب۳۳۸: قَوْلِهِ وَ تُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيهِ وَ تَخْشَى النَّاسَ وَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشَاهُ.

۷۷۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ مَنْصُورٍ عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ هٰذِهِ الْاٰيَةَ وَ تُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيهِ نَزَلَتْ فِي شَأْنِ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ.

باب۳۳۹: قَوْلِهِ تُرْجِي مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَ تُؤْوِي اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ وَ مَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تُرْجِي تُؤَخِّرُ اَرْجِئْهُ اَخِّرْهُ.

۷۷۴: حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ قَالَ هِشَامٌ حَدَّثَنَا عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ اَغَارُ عَلَى اللَّاتِي وَهَبْنَ اَنْفُسَهُنَّ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَقُوْلُ اَتَهَبُ الْمَرْاَةُ نَفْسَهَا فَلَمَّا اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى تُرْجِي مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَ تُؤْوِي اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ

باب۳۳۸: آيت: وَ تُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيهِ: دَ اللّٰه تعالٰي قول' تا خپل زړهٔ کښې هغه خبره پټه ساتله' کومه چه اللّٰه ظاهرونکے وو. تهٔ دَ خلقونه ويريدلے' حالانکه اللّٰه دَ دے زيات حقدار دے' چه تهٔ دَ هغهٔ نه اويريږے.

۷۷۳: محمد بن عبدالرحيم. معلي بن منصور. حماد بن زيد. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دے' چه دا آيت: وَ تُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيهِ: الخ تا خپل زړهٔ کښې هغه خبره پټه ساتله' کومه چه اللّٰه ظاهرونکے وو. (يعني دا آيت) زينب بنت جحش او د زيد بن حارثه په حق کښې نازل شو.

باب۳۳۹: آيت: تُرْجِي مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ: دَ اللّٰه تعالٰي قول' تهٔ خپلو بيبيانو کښې چه کومه غواړے' او کومے پورے غواړے' جدا ساته' او کومه چه غواړے' خان سره ئے ساته' او کومے چه جدا وي' که غواړے' نو هغوي هم طلب کړه. په تا هيڅ ګناه نشته. ابن عباسؓ وائي "ترجي" ډيل ورکه. "ارجئه" ددے نه دے.

۷۷۴: زکريا بن يحيي. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي' دَ هغے بيان دے' چه کومو ښځو خپل خان حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته هبه کړے وو' ما به دَ هغوي مقابله کښې غيرت او شرم کولو. دے نه پس دا آيت نازل شولو: تُرْجِي مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَ تُؤْوِي اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ: نو ما خدمت شريف کښې عرض او کهٔ' اے دَ اللّٰه

مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ قُلْتُ مَا أَرٰى رَبَّكَ اِلَّا يُسَارِعُ فِيْ هَوَاكَ.

رسوله' زه وينم' چه الله ستاسو د مرضئ موافق كوي' اوس چه مو څنګه خوښوي' هغسے كوئے.

۱. په طبري كښے د ابن عباس رضي الله عنه يو روايت په اسناد حسن سره موجود دے چه كومو ښځو ځپل ځان رسول الله صلي الله عليه وسلم ته هبه كړے وو په هغوی كښے هيڅ يوه هم حضورﷺ ځپل ځان سره نه وه ساتلے. اګرچه الله تعالى هغوى د پاره دا مباح ګرځولے ژه. ليكن بهرحال ذ. د حضور په منا باندے موقوف وه. حضورﷺ ته دا مخصوص اجازت وو چه چرے څوک مومنه ښځه د مهر نه بغير ځپل ځان د هغوی په نكاح كښے وركول غواړي نو دا صرف د حضورﷺ د پاره جائز دي' نورو مسلمانانو ته ددے اجازت نيشته. دا واقعه د همدے سره متعلق ده.

۴۷۷۵: حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عَاصِمٌ الْاَحْوَلُ عَنْ مُعَاذَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْتَأْذِنُ فِيْ يَوْمِ الْمَرْاَةِ مِنَّا بَعْدَ اَنْ اُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ تُرْجِيْ مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَ تُؤْوِيْ اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ فَقُلْتُ لَهَا مَا كُنْتِ تَقُوْلِيْنَ قَالَتْ كُنْتُ اَقُوْلُ لَهٗ اِنْ كَانَ ذٰلِكَ اِلَيَّ فَاِنِّيْ لَا اُرِيْدُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنْ اُوْثِرَ عَلَيْكَ اَحَدًا تَابَعَهٗ عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ سَمِعَ عَاصِمًا.

۴۷۷۵: حبان بن موسى. عبدالله. عاصم الاحول. بي بي معاذه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي' ذ هغے بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم كه به ذ وار ذ يوے بي بي نه بلے بي بي له ورتلو' نو ذ وار د بي بي نه به ئے اجازت غوښتلو د دے آيت د نازليدو نه پس يعني: تُرْجِىْ مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَ تُؤْوِىْ اِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ الخ: بي بي معاذه واني. ما د بي بي عائشے نه تپوس اوكه' چه حضور صلي الله عليه وسلم به تانه اجازت غوښتلو' نو تا به څه جواب وركولو هغے اوفرمائيل' ما خو به ورته وئيلے' زه خو دا غواړم' چه تاسوؐ ماسره پاتے شئے. دا حديث عباد بن عباد' عاصم نه هم روايت كړے دے.

باب ۳۴۰: قَوْلِهٖ لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ اِلَّا اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ اِلٰى طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِيْنَ اِنٰهُ وَلٰكِنْ اِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا فَاِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا وَلَا مُسْتَاْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِى النَّبِيَّ

باب ۳۴۰: لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ اِلَّا اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ: ذ الله تعالى قول' اے مسلمانانو' تاسو د نبي كور ته مه ځئے' خو داسے صورت كښ چه تاسو طعام د پاره اوغوښتلے شئے. او تاسو له د هغے ذ پخيدو هم انتظار نه دے پكار. او كوم وخت چه اوبللے شے. او طعام خوړلونه پس خبرو كولو ذ پاره مه كينئے. ستاسو دا

فَيَسْتَحْيِيْ مِنْكُمْ وَاللّٰهُ لَا يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْحَقِّ وَ إِذَا سَأَلْتُمُوْهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوْهُنَّ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ ذٰلِكُمْ اَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ وَ قُلُوْبِهِنَّ وَمَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَلَا اَنْ تَنْكِحُوْا اَزْوَاجَهُ مِنْ بَعْدِهٖ اَبَدًا اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمًا يُقَالُ اِنَاهُ اِدْرَاكُهُ اَنَا يَأْنِيْ اَنَاةً لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِيْبًا اِذَا وَصَفْتَ صِفَةَ الْمُؤَنَّثِ قُلْتَ قَرِيْبَةٌ وَ اِذَا جَعَلْتَهُ ظَرْفًا وَّ بَدْلًا وَلَمْ تُرِدِ الصِّفَةَ نَزَعْتَ الْهَاءَ مِنَ الْمُؤَنَّثِ وَ كَذٰلِكَ لَفْظُهَا فِي الْوَاحِدِ وَالْاِثْنَيْنِ وَالْجَمِيْعِ لِلذَّكَرِ وَالْاُنْثٰى.

عمل نبيّ ذ پاره د تكليف باعث دے' او هغه تاسونه شرميږي' خو اللّٰه د حقے خبرے كولو باندے نه شرميږي. او كله چه د هغوي نه څه طلب كوے' نو د پردے په شا ترے غواړئ. دا خبره ستاسو او ذ هغوي (بيبيانو) ذ دواړو د زړونو د پاكيزګۍ سبب دے. ستاسو دا كار نه دے' چه نبيّ له تكليف وركړئ. او ذ هغه بيبيانوّ سره هيڅ كله نكاح مه كوئ. بيشكه ستاسو دا عمل د خدائے په نزد ډيره لويه ګناه ده. "اناه" معني دي طعام چه تياريږي. دا لفظ "انا' يا نى' اناة" نه جوړ شوے دے. "لعلّ الساعة تكون قريبا" شايد قيامت عنقريب شي. كه "قريبا" ذ قيامت د "ساعة" صفت اوګرځولے شي' نو "قريبة" پكار دے. او كه ظرف او بدل ئے اومنو' نو تائے تانيث لرے كولو سره به ئے "قريبا" وايو. داسے حالت كښ دا واحد' تثنيه' جمع' ټولو د پاره به وي.

٤٤٧٦: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ يَدْخُلُ عَلَيْكَ الْبَرُّ وَ الْفَاجِرُ فَلَوْ اَمَرْتَ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِالْحِجَابِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اٰيَةَ الْحِجَابِ.

٤٤٧٦: مسدد. يحيي. حميد. انس. حضرت عمرؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے' ما د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ عرض اوكړ' تاسوّ له خو هر قسم خلق راځي' كه تاسو خپلو بيبيانو د پردے حكم وركړئ' نو ډير به ښهٔ وي دغه وخت اللّٰه تعالي د پردے آيت نازل كړلو.

٤٤٧٧: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الرَّقَاشِيُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ يَقُوْلُ حَدَّثَنَا اَبُوْ مِجْلَزٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَمَّا تَزَوَّجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْنَبَ ابْنَةَ جَحْشٍ دَعَا

٤٤٧٧: محمد بن عبداللّٰه رقاشي. معتمر بن سليمان. د هغهٔ پلار' ابو مجلز. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم چه زينب بنت جحش سره واده اوكړ' نو د وليمے دعوت ئے اوكه. خلقو ډوډۍ او خوړله. بيا ناست وو. حضورؐ دننه د

الْقَوْمَ فَطَعِمُوْا ثُمَّ جَلَسُوْا يَتَحَدَّثُوْنَ وَاِذْهُوَ كَاَنَّهُ يَتَهَيَّأُ لِلْقِيَامِ فَلَمْ يَقُوْمُوْا فَلَمَّا رَاٰى ذٰلِكَ قَامَ فَلَمَّا قَامَ قَامَ مَنْ قَامَ وَ قَعَدَ ثَلٰثَةُ نَفَرٍ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَدْخُلَ فَاِذَا الْقَوْمُ جُلُوْسٌ ثُمَّ اِنَّهُمْ قَامُوْا فَانْطَلَقْتُ فَجِئْتُ فَاَخْبَرْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُمْ قَدِ انْطَلَقُوْا فَجَآءَ حَتّٰى دَخَلَ فَذَهَبْتُ اَدْخُلُ فَاَلْقَى الْحِجَابَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَهٗ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ الْاٰيَةَ.

تلو فكر كښې وو، خو هغې خلقو د پاسيدو نوم نـه اخستلو. كوم وخت چـه حضورؐ سره ډير خلق پاسيدل. خو درې سړي بيا هم ناست وو، خبرې ئې كولې. حضور صلي الله عليه وسلّم چه بهر ته لاړ، او دوباره دننه راغې، نو وې ليدل، چه هغه سړي لا اوسه پورې ناست دي. بيا څـه وخت پس هغه سړي هم پاسيدل. ما حضور صلي الله عليه وسلّم له خبر وركړ، چه ټول سړي لاړل، هغه وخت حضور صلي الله عليه وسلّم دننه تشريف راوړلو. ما هم ورتلل اوغوښتل، خو حضور صلي الله عليه وسلّم پرده اُوغرخوله، دې نه پس اللّه تعالى د حجاب (پردې) دا آيت نازل كړلو: يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ الخ.

۴۴۷۸: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ قَالَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَا اَعْلَمُ النَّاسِ بِهٰذِهِ الْاٰيَةِ اٰيَةِ الْحِجَابِ لَمَّا اُهْدِيَتْ زَيْنَبُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ مَعَهٗ فِي الْبَيْتِ صَنَعَ طَعَامًا وَ دَعَا الْقَوْمَ فَقَعَدُوْا يَتَحَدَّثُوْنَ فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ ثُمَّ يَرْجِعُ وَهُمْ قُعُوْدٌ يَتَحَدَّثُوْنَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ اِلَّا اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ اِلٰى طَعَامٍ غَيْرَ نٰظِرِيْنَ اِنٰىهُ اِلٰى قَوْلِهٖ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ فَضُرِبَ

۴۴۷۸: سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ايوب. ابو قلابه. حضرت انس بن مالك نه روايت كوي، هغه اوفرمائيل د پردې د آيت نه زۀ ښه واقف يم، حضور صلي اللّه عليه وسلّم چه بي بي زينبؓ سره نكاح اوكړله. او د حضور صلي اللّه عليه وسلّم كور ته راغله، نو حضور صلي الله عليه وسلّم وليمه اوكړه. او خلقوته ئې دعوت وركړلو. خلق راغلل، او طعام نه پس خبرو كولو د پاره ناست وو. رسول اللّه صلي الله عليه وسلّم دننه لاړ. بيا بهر راغې، چه خلق لاړ شي، خو هغوي ناست وو. دغه وخت اللّه تعالى دا آيت نازل كړلو. يايها الذين امنوا لا تدخلوا بيوت النبى الا ان يؤذن لكم: آخر آيت پورې. حضورؐ تشريف يوړلو. او ما هم د ورتلو قصد اوكړ. خو حضورؐ پرده راوغرخوله

الْحِجَابُ وَ قَامَ الْقَوْمُ.

بیا زۀ واپس راغلم.

۴۷۷۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ بُنِيَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ بِخُبْزٍ وَ لَحْمٍ فَأُرْسِلْتُ عَلَى الطَّعَامِ دَاعِيًا فَيَجِيْئُ قَوْمٌ فَيَأْكُلُوْنَ وَ يَخْرُجُوْنَ ثُمَّ يَجِيْئُ قَوْمٌ فَيَأْكُلُوْنَ وَ يَخْرُجُوْنَ فَدَعَوْتُ حَتّٰى مَا اَجِدُ اَحَدًا اَدْعُوْ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ مَا اَجِدُ اَحَدًا اَدْعُوْهُ قَالَ ارْفَعُوْا طَعَامَكُمْ وَ بَقِيَ ثَلَاثَةُ رَهْطٍ يَتَحَدَّثُوْنَ فِي الْبَيْتِ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقَ اِلٰى حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ فَقَالَتْ وَ عَلَيْكَ السَّلَامُ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ كَيْفَ وَجَدْتَ اَهْلَكَ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ فَتَقَرّٰى حُجَرَ نِسَائِهِ كُلِّهِنَّ يَقُوْلُ لَهُنَّ كَمَا يَقُوْلُ لِعَائِشَةَ وَ يَقُلْنَ لَهُ كَمَا قَالَتْ عَائِشَةُ ثُمَّ رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا ثَلَاثَةُ رَهْطٍ فِي الْبَيْتِ يَتَحَدَّثُوْنَ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَدِيْدُ الْحَيَاءِ فَخَرَجَ مُنْطَلِقًا نَحْوَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَمَا اَدْرِيْ اَخْبَرْتُهُ اَوْ اُخْبِرَ اَنَّ الْقَوْمَ

۴۷۷۹: ابو معمر. عبدالوارث. عبدالعزیز بن صهیب. حضرت انس بن مالک نه روایت کوي: د هغه بیان دے' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم چه بي بي زینبؓ سره نکاح اوکړه. او بیائے د ولیمے د طعام خوړلو د پاره د خلقو رابللو د پاره زۀ اولیږلم' نو ما هغه سړي راوستل' هغوي د خوراک نه پس لاړل. بیا م نور راوستل' هغوي هم لاړل. آخر ما عرض اوکړ' چه ټول لاړل' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د طعام اوچتولو حکم اوکړ' خو درے سړي ناست وو' خبرے ئے کولے. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم بهرته راغے. بیا د بي بي عائشےؓ حجرے ته ورغے (حجرے نه مطلب کوټګۍ) هغے ته ئے سلام اوکړ' او وئیلے' السّلام علیکم اهل البیت و رحمة اللّٰه. بي بي عائشےؓ هم ورته جواب کښې: و علیک السلام و رحمة اللّٰه: اووے. او تپوس ئے اوکړ' چه تاسو خپله بي بي څنګه بیامنده' اللّٰه تعالي دے په تاسو مبارک کړي. دے نه پس حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ټولو بیبیانو له تشریف یوړلو. ټولو ته ئے السلام علیکم اووے. او ټولو د بي بي عائشےؓ په شان جواب ورکړلو. بیا حضورؐ بهرته تشریف. راوړلو' هغه سړي لا هغسے په خبرو ناست وو. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم چه هغوي اولیدل' نو شرم شان ئے محسوس کړلو' او څه ئے اونه وئیلے شو' بیا د بي بي عائشےؓ پله ورغے' ګرځیدو راګرځیدو. بیا چه هغه خلق لاړل' نو ما یا بل چا حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم خبر کړلو. حضور صلي

خرجوا فرجع حتى اذا وضع رجله في اسكفة الباب داخلة و اخرى خارجة ارخى الستر بيني و بينه و انزلت اية الحجاب.

٤٧٨٠: حدثنا اسحق بن منصور اخبرنا عبد الله بن بكر السهمي حدثنا حميد عن انس قال اولم رسول الله صلى الله عليه وسلم حين بنى بزينب ابنة جحش فاشبع الناس خبزا و لحما ثم خرج الى حجر امهات المؤمنين كما كان يصنع صبيحة بنائه فيسلم عليهن و يدعو لهن و يسلمن عليه و يدعون له فلما رجع الى بيته راى رجلين جرى بهما الحديث فلما راهما رجع عن بيته فلما راى الرجلان نبي الله صلى الله عليه وسلم رجع عن بيته و ثبا مسرعين فما ادري انا اخبرته بخروجهما ام اخبر فرجع حتى دخل البيت و ارخى الستر بيني و بينه و انزلت اية الحجاب و قال ابن ابي مريم اخبرنا يحيى حدثني حميد سمع انسا عن النبي صلى الله عليه وسلم.

٤٧٨١: حدثني زكرياء بن

الله عليه وسلم تشريف راوړلو. خو اوس ئے چو کټ کښې دننه يو قدم لا ايښے وو، چه حضور پرده راوغرخوله او دننه ورغے. دغه وخت الله تعالي د پردے آيت نازل کړلو.

٤٧٨٠: اسحق بن منصور. عبدالله بن بكر سهمي. حميد. حضرت انسؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلم بي بي زينبؓ سره د نکاح نه پس شب زفاف (د وادۀ د شپے) نه چه فارغ شولو، نو وليمه ئے او کړله. خلق به تلل راتلل، ډ خوراک نه پس به رخصتيدل. حضور صلي الله عليه وسلم دے دوران کښې د خپلو دوو بيبيانو کوټګو (حجرو) ته تشريف يوړلو. هغوي نه ئے سلام او کړه. هغے ټولو هم د سلام جواب ورکړلو. او حضور صلي الله عليه وسلم ته ئے د وادۀ مبارکي ورکړله. بيا حضور صلي الله عليه وسلم واپس د بي بي زينبؓ مکان ته راغلو، نو وے ليدل چه دوه سړي ناست دي، او سره پورے خبرے کوي. حضور صلي الله عليه وسلم چه هغوي اوليدل، نو واپس ئے تشريف يوړلو. هر کله چه هغوي حضور صلي الله عليه وسلم اوليدلو، نو هغوي هم پاسيدل، بهر ته لاړل. دے نه پس ماته ياد نه دي، چه د هغے سړو د تلو نه پس ما حضور صلي الله عليه وسلم ته خبر ورکړلو، يا بل چا. غرض حضور صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو، او خما او خپل مينځ کښې ئے پرده راوغرخوله. دے نه پس د پردے آيت: يايها الذين امنوا لا تدخلوا بيوت النبي الخ: نازل شولو.

٤٧٨١: زکريا بن يحيي. ابو اسامه. هشام.

يَحْيٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجَتْ سَوْدَةُ بَعْدَ مَا ضُرِبَ الْحِجَابُ لِحَاجَتِهَا وَ كَانَتْ اِمْرَأَةً جَسِيْمَةً لَا تَخْفٰى عَلٰى مَنْ يَعْرِفُهَا فَرَاٰهَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ يَا سَوْدَةُ اَمَا وَاللّٰهِ مَا تَخْفِيْنَ فَانْظُرِيْ كَيْفَ تَخْرُجِيْنَ قَالَتْ فَانْكَفَاَتْ رَاجِعَةً وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِيْ وَ اِنَّهُ لَيَتَعَشّٰى وَ فِيْ يَدِهٖ عَرْقٌ فَدَخَلَتْ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ خَرَجْتُ لِبَعْضِ حَاجَتِيْ فَقَالَ لِيْ عُمَرُ كَذَا وَ كَذَا قَالَتْ فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلَيْهِ ثُمَّ رُفِعَ عَنْهُ وَ اِنَّ الْعَرْقَ فِيْ يَدِهٖ مَا وَضَعَهٗ فَقَالَ اِنَّهٗ قَدْ اُذِنَ لَكُنَّ اَنْ تَخْرُجْنَ لِحَاجَتِكُنَّ.

عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. د هغے بيان دے، د پردے ذ آيت نازليدو نه پس بي بي سوده رفع حاجت ذ پاره پرونيے په سر بهرته لاړه. هغه ډيره جسيمه وه. په دے وجه باوجود د څادر به پيژندے شوه. يوه ورځ چه هغه بهرته لاړه، نو حضرت عمرؓ اوپيژنده، او ورته ئے اووے، ته باوجود د څادر مونږ نه پټه نه ئے. پوهے شه، چه څه د پاره وتلے ئے. بي بي سودےؓ چه د عمرؓ خبرے واوريدے، نو واپس راغله. حضور صلي الله عليه وسلم خما کور کښې موجود وو، ډوډۍ ئے خوړله. يو هډوکے د حضورؐ په لاس کښې وو. بي بي سوده عرض اوکړ، يا رسول الله، زه بهرته (رفع حاجت ذ پاره) تلے ووم، نو عمرؓ ماته دا خبرے کړے دي. حضورؐ چه دا واوريدل، وحي پرے نازله شوه، نو هډوکے ئے لاس کښې وو، چه حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، الله تاسو له اجازت درکوي چه ضرورت ذ پاره بهر وتلے شے.

بَاب ۱۳۴۱: قَوْلِهٖ اِنْ تُبْدُوْا شَيْئًا اَوْ تُخْفُوْهُ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِيْ اٰبَائِهِنَّ وَلَا اَبْنَائِهِنَّ وَلَا اِخْوَانِهِنَّ وَلَا اَبْنَاءِ اِخْوَانِهِنَّ وَلَا اَبْنَاءِ اَخَوَاتِهِنَّ وَلَا نِسَائِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ وَاتَّقِيْنَ اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا.

باب ۱۳۴۱: آيت: اِنْ تُبْدُوْا شَيْئًا اَوْ تُخْفُوْهُ: د الله تعالي قول، که تاسو څه څيز پټ کړئ، يا ظاهر کړے، خو الله تعالي ته هر څه معلوم دي، په دے ښځو، د اولاد، مور پلار او ورور او وريرونو او خوريونو او نورو تولو ښځو او وينزو نه پرده نه کولو کښې څه حرج نشته. او هغوی له پکار دي، چه الله نه ويره کوي، ځکه چه هر څيز د خدائے مخکښې دے. (يعني ظاهر دے ورته).

۴۷۸۲: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ

۴۷۸۲: ابو اليمان. شعيب. زهري. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، د هغے بيان دے

عُـرْوَةُ ابْـنُ الـزُّبَـيْـرِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتِ اسْتَأْذَنَ عَلَيَّ اَفْلَحُ اَخُوْ اَبِي الْقُعَيْسِ بَعْدَ مَا اُنْزِلَ الْحِجَابُ فَقُلْتُ لَا اٰذَنُ لَهٗ حَتّٰى اَسْتَاْذِنَ فِيْهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنَّ اَخَاهُ اَبَا الْقُعَيْسِ لَيْسَ هُوَ اَرْضَعَنِيْ وَلٰكِنْ اَرْضَعَتْنِيْ اِمْرَاَةُ اَبِي الْقُعَيْسِ فَدَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَفْلَحَ اَخَا اَبِي الْقُعَيْسِ اسْتَاْذَنَ فَاَبَيْتُ اَنْ اٰذَنَ حَتّٰى اَسْتَاْذِنَكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا مَنَعَكِ اَنْ تَأْذَنِيْنَ عَمَّكِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ الرَّجُلَ لَيْسَ هُوَ اَرْضَعَنِيْ وَلٰكِنْ اَرْضَعَتْنِيْ اِمْرَاَةُ اَبِي الْقُعَيْسِ فَقَالَ ائْذَنِيْ لَهٗ فَاِنَّهٗ عَمُّكِ تَرِبَتْ يَمِيْنُكِ قَالَ عُرْوَةُ فَبِذٰلِكَ كَانَتْ عَائِشَةُ تَقُوْلُ حَرِّمُوْا مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا تُحَرِّمُوْنَ مِنَ النَّسَبِ.

ذ ايـوب وروړ افـلـح مـاسـره ذ ملاقـات اجـازت اوغوښتلو. ما ورته جواب كښې اووې، څو پورې چې ذ حضور صلي الله عليه وسلّم اجازت نه وي زه ذ خپله خـانـه اجازت نشم وركولې. او ما په دې خيال اجازت ورنه كړه، چې د هغه د وروړ ابوالقيس خو ما پېنې نه دي څكلي، البته ذ هغه د ښځې پېنې م څكلې دي. دې نه پس حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو. نو ما عرض اوكړه، يا رسول الله، افلح مانه د راتلو اجازت طلب كړه، نو ما ورته انكار اوكړلو، ترڅو چې تاسو نه اجازت وانخلم. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، تا خپل تره (چچا) له ولې د راتلو اجازت ورنه كړه. ما عرض اوكړه، يا رسول الله، ماته خو سړي پېنې نه دي راكړي، بلكه ښځې پېنې راكړې دي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نه، هغه ستا تره (چچا) دې. د عروه بيان دې. بي بي عائشې په دې بنا ونيلې چه نسبا كوم رشته حرام ده. رضاعا هم هغه حرامه كنړلې.

بـــاب ۲۴۲: قَـوْلُـــهٗ اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا قَالَ اَبُو الْعَالِيَةِ صَلٰوةُ اللّٰهِ ثَنَاۤءُهٗ عَلَيْهِ عِنْدَ الْمَلٰٓئِكَةِ وَصَلٰوةُ الْمَلَائِكَةِ الدُّعَاۤءُ قَـالَ ابْـنُ عَبَّـاسٍ

باب ۲۴۲: آيت: ان الله و ملٰئكتهٗ يصلّون على النّبيّ. د الله تعالي قول، بيشكه الله تعالي او د هغه فريښتې په نبي صلي الله عليه وسلّم درود ليږي. نو اې ايمان والو، تاسو پرې هم درود، رحمت او سلام ليږې. او د سلامتي ذعا كوې. ابوالعاليه وائي، صلوة نه مراد دا دې، چه الله د فريښتو مخكښې ذ حضور صلي الله عليه وسلّم تعريف كوي، او د فريښتو د صلوة نه مراد ذعا ده

يُصَلُّونَ يُبَرِّكُونَ لَنُغْرِيَنَّكَ لَنُسَلِّطَنَّكَ.

ابن عباسٌ وائي. "يصلون" د بركت دعا كوي. "لنغرينك" مونږ به تاسو غالب كړو.

۴۸۳: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنِ الْحَكَمِ عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَمَّا السَّلَامُ عَلَيْكَ فَقَدْ عَرَفْنَاهُ فَكَيْفَ الصَّلٰوةُ قَالَ قُولُوا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى إِبْرٰهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى إِبْرٰهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ.

۴۸۳: سعيد بن يحيي. د هغه پلار. مسعر. حكم. ابن ابي ليلي. حضرت كعب بن عجره نه روايت كوي، د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت كښې چا عرض اوكړ، يا رسول اللهؐ په تاسوّ سلام ليږل خو مونږ ته معلوم دي خو دا راته نۀ ده معلومه، چه درود او رحمت څنګه اوليږو. حضورؐ ورته اوفرمائيل، داسې وائې: اللّٰهم صلّ الخ: يعني اے اللهؐ تۀ محمدؐ او د هغۀ په آل رحمت اوليږې، څنګه چه تا ابراهيمؑ او د هغۀ په آل درود ليږلے وو. اے اللهؐ تۀ محمدؐ او د هغۀ په آل بركت نازل كړې، څنګه چه تا ابراهيم او د هغۀ په آل بركت نازل كړے وو، بيشكه تۀ د تعريف لائق او بزرګ ئې.

۴۸۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ الْهَادِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ هٰذَا التَّسْلِيمُ فَكَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ قَالَ قُولُوا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَ رَسُولِكَ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اٰلِ إِبْرٰهِيْمَ وَ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى إِبْرٰهِيْمَ قَالَ أَبُو صَالِحٍ عَنِ اللَّيْثِ عَلٰى مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اٰلِ إِبْرٰهِيْمَ.

۴۸۴: عبدالله بن يوسف. ليث. ابن هاد. عبدالله بن خباب. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي. مونږ د حضور صلي الله عليه وسلم خدمت كښې عرض اوكړ، يا رسول اللهؐ مونږ سلام ليږل خو پيژنو، خو د درود ليږلو طريقه راته نۀ ده معلومه، حضورؐ اوفرمائيل، تاسو صلوة داسې ليږئې: اللّٰهم صلّ: الخ. يعني اے الله رحمت اوليږې، محمدؐ باندې، چه ستا بنده او ستا رسول دے. څنګه چه تا ابراهيم او ال ابراهيم باندې رحمت ليږلے وو. او محمدؐ او د هغۀ په آل باندې بركت نازل كړې څنګه چه تا ابراهيم او د هغۀ په آل بركت نازل كړے وو. دا حديث ابو صالح د ليث په روايت كښې داسې وائي، چه آخر كښې د على ابراهيم په ځائې على آل ابراهيم راغلے دے.

۴۸۵: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ وَالدَّرَاوَرْدِيُّ عَنْ يَزِيْدَ وَ قَالَ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرٰهِيْمَ وَ اٰلِ اِبْرٰهِيْمَ.

۴۸۵: ابراهيم بن حمزه. ابن ابي حازم او الدراوردي. يزيد بن حماد نه داسې روايت كوي، چه ذ دې حديث الفاظ داسې دي: كما صلّيت على ابراهيم و بارک على محمد و آل محمد كما باركت على ابراهيم و على آل ابراهيم.

بَابُ ۳۴۳: قَوْلِهٖ لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ اٰذَوْا مُوْسٰى.

باب ۳۴۳: آيت: لا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْن اٰذَوْا مُوْسٰى: ذ اللّٰه تعالٰي قول، چه ذ هغې خلقو په شان مه كيږئ، چه هغوي موسیٰ ته تكليف اورسولو.

۴۸۶: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا رُوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنِ الْحَسَنِ وَ مُحَمَّدٍ وَ خِلَاسٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مُوْسٰى كَانَ رَجُلًا حَيِيًّا وَ ذٰلِكَ قَوْلُهٗ تَعَالٰى يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ اٰذَوْا مُوْسٰى فَبَرَّاَهُ اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْا وَ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ وَجِيْهًا.

۴۸۶: اسحاق بن ابراهيم. روح بن عباده. عوف. حسن او محمد او خلاص. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. ذ هغهٔ بيان دې، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، موسٰي عليه السلام ډير حياناک شرم كيږ، وو (تردې چه ذ چا مخكښې به ئې نه لامبل) دې آيت كښې دې قصې طرف ته اشاره شوې ده چه: يا ايّها الّذين اٰمنوا لا تكونوا كالّذين اذوا موسٰى فبرّاه اللّٰه ممّا قالوا و كان عنداللّٰه وجيها.

# سُوْرَةُ السَّبَا

# دَ سورهٔ سبا تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يُقَالُ مُعَاجِزِيْنَ مُسَابِقِيْنَ بِمُعْجِزِيْنَ بِفَائِتِيْنِ سَبَقُوْا فَاتُوْا لَا يُعْجِزُوْنَ لَا يَفُوْتُوْنَ يَسْبِقُوْنَا يُعْجِزُوْنَا قَوْلُهٗ بِمُعْجِزِيْنَ بِفَائِتِيْنِ وَ مَعْنٰى مُعَاجِزِيْنَ مُغَالِبِيْنَ يُرِيْدُ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"معاجزين" په مخه تلونكي. "معجزين" د لاس نه وركونكي. "سبقوا" مخكښې لاړل. "لا يعجزون" خمونږ د لاسه نشي وتلې. خمونږ نه به مخكښې شي. مونږ به په ورستو كړي. "بمعجزين" ورستو كونكي پريښودلې شوې. "معاجزين" غالب راتلونكي. يو

كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يَظْهَرَ عَجْزُ صَاحِبِهِ مِعْشَارَ عُشْرَ الْأُكُلُ الثَّمَرُ بَاعِدْ وَ بَعِّدْ وَاحِدٌ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ لَا يَعْزُبُ لَا يَغِيبُ الْعَرِمُ السُّدُّ مَاءٌ أَحْمَرُ أَرْسَلَهُ اللّٰهُ فِي السَّدِّ فَشَقَّهُ وَ هَدَمَهُ وَ حَفَرَ الْوَادِيَ فَارْتَفَعَتَا عَنِ الْجَنْبَيْنِ وَ غَابَ عَنْهُمَا الْمَاءُ فَيَبِسَتَا وَلَمْ يَكُنِ الْمَاءُ الْأَحْمَرُ مِنَ السَّدِّ وَلٰكِنْ كَانَ عَذَابًا أَرْسَلَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِنْ حَيْثُ شَاءَ وَ قَالَ عَمْرُو بْنُ شُرَحْبِيلَ الْعَرِمُ الْمُسَنَّاةُ بِلَحْنِ أَهْلِ الْيَمَنِ وَ قَالَ غَيْرُهُ الْعَرِمُ الْوَادِيُّ السَّابِغَاتُ الدُّرُوعُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ يُجَازٰى يُعَاقَبُ أَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ بِطَاعَةِ اللّٰهِ مَثْنٰى وَ فُرَادٰى وَاحِدًا وَاثْنَيْنِ التَّنَاوُشُ الرَّدُّ مِنَ الْآخِرَةِ إِلَى الدُّنْيَا وَ بَيْنَ مَا يَشْتَهُوْنَ مِنْ مَالٍ أَوْ وَلَدٍ أَوْ زَهْرَةٍ بِأَشْيَاعِهِمْ بِأَمْثَالِهِمْ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَالْجَوَابِ كَالْجَوْبَةِ مِنَ الْأَرْضِ الْخَمْطُ الْأَرَاكُ وَ الْأَثْلُ الطَّرْفَاءُ الْعَرِمُ الشَّدِيْدُ.

مطلب نے دا هم دے چه هر یو د حپل ملګرې کمزوري ظاهره کړي "معشار" لسمه حصه. "اکل" معني میوه. "باعد" او "بعد" یو معني دي يعني لرے کړے. مجاهد وائي "لا یعزب" غائبیږي نه. "العرم" د اوبو بند یو سرے (لال سرخ) اوبه وے چه هغے کښې د الله په حکم سیلاب راغلے. او بند مات شو. میدان کښې کنده شوه. او باغ دواړو طرفه نه اوچت شو. او بیا اوبه غائبے شوے نو باغ خشک شو دا اوبه د بند نه په بهیدلو نه دے راغلے، بلکه د الله عذاب وو هغه چه د کوم خائے نه غوښتل، ذ هغے خائے نه ئے راولیږلو. د عمرو بن شرحبیل بیان دے. د یمن والو په ژبه کښې "العرم" بند ته وائي، بعضے خلق د "عرم" معني ناله بیان کوي. "السابغات" معني دي زغرے. مجاهد وائي "یجازی" معني دي عذاب ورکولے شي. بدله یا جزا ورکوي یا وربه کړي. "اعظکم بواحدة" نه مراد ذ الله اطاعت دے. "مثنی" او "فرادی" معني دي، دوه دوه او، یو یو. "التناوش" معني آخرت نه دنیا ته واپس راتلل چه ناممکنه ده. "ما یشتهون" معني ذ هغوي خواهشات مال و اولاد یا ذ دنیا زیب و زینت. "باشیاعهم" معني دي ذ هغوي جوړ واله. د ابن عباس بیان دے چه "جواب" معني دي تالاب. کنده. "خمط" تریخ بدمزه. مراد ذ پیلو اونه ده. "اثل" د (غز) اونے ته وائي. "عرم" سخت او شدید خیز ته وائي.

بَابٌ ۳۴۴: قَوْلُهُ حَتّٰى إِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ

باب ۳۴۴: آیت: حتّی اذا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ: د الله تعالی قول، تردے چه د هغوي د زړونو نه ویره لرے کړے شي نو وائي چه ستاسو رب څه اووے. پورته واله

قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ.

۴۸۷: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ سَمِعْتُ عِكْرَمَةَ يَقُولُ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ اِنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قَضَى اللّٰهُ الْاَمْرَ فِي السَّمَآءِ ضَرَبَتِ الْمَلَائِكَةُ بِاَجْنِحَتِهَا خُضْعَانًا لِقَوْلِهِ كَاَنَّهُ سِلْسِلَةٌ عَلٰى صَفْوَانٍ فَاِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوْا لِلَّذِيْ قَالَ الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ فَيَسْمَعُهَا مُسْتَرِقُ السَّمْعِ وَ مُسْتَرِقُ السَّمْعِ هٰكَذَا بَعْضُهُ فَوْقَ بَعْضٍ وَ وَصَفَ سُفْيَانُ بِكَفِّهِ فَحَرَّفَهَا وَ بَدَّدَ بَيْنَ اَصَابِعِهٖ فَيَسْمَعُ الْكَلِمَةَ فَيُلْقِيْهَا اِلٰى مَنْ تَحْتَهٗ ثُمَّ يُلْقِيْهَا الْاٰخَرُ اِلٰى مَنْ تَحْتَهٗ حَتّٰى يُلْقِيَهَا عَلٰى لِسَانِ السَّاحِرِ اَوِ الْكَاهِنِ فَرُبَّمَا اَدْرَكَ الشِّهَابُ قَبْلَ اَنْ يُلْقِيَهَا وَ رُبَّمَا اَلْقَاهَا قَبْلَ اَنْ يُدْرِكَهٗ فَيَكْذِبُ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ فَيُقَالُ اَلَيْسَ قَدْ قَالَ لَنَا يَوْمَ كَذَا وَ كَذَا كَذَا وَ كَذَا فَيُصَدَّقُ بِتِلْكَ الْكَلِمَةِ الَّتِيْ سَمِعَ مِنَ السَّمَآءِ.

جواب ورکوي حقه خبره. او هغه بلند و برتر او اعلی دے.

۴۸۷: حمیدي. سفیان. عمرو. عکرمه. حضرت ابوهریره نه روایت کوي حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو هر کله چه الله آسمانونو کښې خپل څه حکم لیږي نو فریښتې عاجزئ سره خپلے وزرے وهي. او د الله تعالی ارشاد داسے وي، لکه په صفا کاڼري چه زنځیر وهلے شي. هر کله چه د فریښتو ویره لرے شي نو هغوي د یو بل نه تپوس کوي چه الله تعالی څه ارشاد اوفرمائیلو. نو بله عرض کوي، چه څه نے اوفرمائیل حق نے اوفرمائیل. دغه وخت شیطانان هم د زمکے نه پورته آسمان طرف ته خي. او دے خکم الهي آوریدو سره د باسه والد، لاندے واله ته بنائي، او دا شان دوي د یو بل نه خبرے آلوخوي. سفیان په دے موقع خپل تلے (ہتیلی) راغنډ کړو او بیا ئے ګوتے بوخائے کړے، اوښودلے، چه شیطانان دغسے یو بل سره یوځائے وي. او د پاسه واله، لاندے واله ته، او هغه خپل لاندے واله ته، او بیا دغه شان دا اطلاع په زمکه ساحرانو (جادوګرو) او کاهنانو ته راځي. او کله داسے هم کیږي، چه فریښتے شیطانان د اُور په کرورو وهي، نو کله د خبرے پتېولو (چُرانے) نه مخکښې او کله ورستو پرے هغوي اولیږي او هغه خپل لاندے واله خبروي. بیا دا کاهن یوه خبره سره سل دروغ خبرے یوځائے کړي، او خلقو ته نے بیانوي. او د یوے ریښتنے خبرے په سبب ټولے خبرے ریښتنے ګنړلے شي.

بَابُ ۳۴۵: قَوْلُهٗ اِنْ هُوَ

باب ۳۴۵: آیت: ان هو الا نذیر لکم بین یدی

اِلَّا نَـذِيْـرٌ لَّـكُمْ بَيْـنَ يَـدَىْ عَـذَابٍ شَدِيْدٍ.

عـذَابٍ شَدِيْدٍ: ذ اللّٰـه تـعـالي قول دا رسول هغه دے چه تاسو ذ راتلونكي قيامت ذ عذاب نه ويروي.

۴۷۸۸: حَـدَّثَـنَـا عَـلِـيُّ بْـنُ عَبْـدِ الـلّٰـهِ حَـدَّثَـنَـا مُـحَـمَّـدُ بْـنُ خَـازِمٍ حَـدَّثَـنَـا الْاَعْمَشُ عَنْ عَمْرِو بْـنِ مُرَّةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّـاسٍؓ قَـالَ صَـعِـدَ الـنَّـبِـيُّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ الـصَّـفَـا ذَاتَ يَـوْمٍ فَـقَـالَ يَـا صَبَـاحَـاهُ فَـاجْـتَـمَعَـتْ اِلَيْـهِ قُـرَيْـشٌ قَـالُوْا مَالَكَ قَالَ اَرَاَيْتُمْ لَـوْ اَخْبَـرْتُـكُـمْ اَنَّ الْـعَـدُوَّ يُصَبِّحُكُمْ اَوْ يُـمَـسِّـيَـكُـمْ اَمَـا كُـنْـتُـمْ تُـصَـدِّقُـوْنِـيْ قَـالُـوْا بَـلٰـى قَالَ فَاِنِّيْ نَـذِيْـرٌ لَّـكُـمْ بَيْـنَ يَـدَىْ عَـذَابٍ شَـدِيْـدٍ فَـقَـالَ اَبُـوْ لَهَـبٍ تَبًّـا لَكَ اَلِهٰـذَا جَـمَـعْـتَـنَـا فَـاَنْـزَلَ اللّٰـهُ تَبَّـتْ يَدَا اَبِيْ لَهَبٍ.

۴۷۸۸: علـي بـن عبـدالـلّٰـه. محمد بن حازم. اعـمـش. عـمـره بـن مـره. سعيد بن جبير. حضرت ابن عبـاسؓ نـه روايـت كـوي' پـه كومه ورځ چه دا آيت نازل شـو' نـو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په كوه صفا خلقوته آواز اوكـه' راوړے بـلـل. اهـل قـريـش چه راجمع شو' نو تپوس ئے اوكه' څه خبره ده' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورتـه اوفـرمـائيل' اے اهل قريش كه زۀ تاسوته دا اووايم' چـه يو دشمن سحر او مابنام په تاسو ذ حملے كولو اراده كـوي' نـو آيـا تـاسـو بـه خـما دا خبره ريښتيني اوګڼړئ. تـولـو جـواب وركـه' بيشـكه. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّـم اوفـرمـائيـل' بـنـه ده' نـو زۀ تاسو ذ هغے عذاب نه ويروم' كوم چه راتلونكے دے. دے آوريدو سره ابولهب اووے' تـه هلاك شـے' آيا تا مونږ دے ذ پاره راوغوښتلے وو' نـو دغـه وخـت الـلّٰه تعالي سورة: تبّـت يدا ابى لهب وتب: الخ نازل كړلو.

## الحمدللّٰه والشّكر للّٰه' نورلسمه پاره ختمه شوه

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۲۰

شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-21

# تاج البخاري پاره ٢٠ دمضامینو فهرست


| باب | مضامین | صفحه |
|---|---|---|
| | سورة الملائكه | |
| | سورة يٰسٓ | |
| ٣٤٦ | نمر خپلې تهكانې طرفته ځي | ٣٠٩٧ |
| | سورة الصافات | |
| ٣٤٧ | او بیشکه یونسؑ ذ پیغمبرانو نه وو. | ٣٠٩٨ |
| | سورة صٓ | |
| ٣٤٨ | ماته داسې سلطنت راکړې چه مانه پس هیچاته ملاؤ نشي | ٣١٠٠ |
| ٣٤٩ | او زه بناوټ کونکې نه یم | ٣١٠١ |
| ٣٥٠ | چاچه په خپلو ځانونو زیاتئ کړې دي | ٣١٠٣ |
| | سورة الزمر | |
| ٣٥١ | وما قدروا اللّٰه حق قدره | ٣١٠٤ |
| ٣٥٢ | آیت | ٣١٠٥ |
| ٣٥٣ | د شپیلئ پُو کلو ذکر | ٣١٠٥ |
| | سورة مومن | |
| | حٰمٓ سجده | |
| ٣٥٤ | ذ اللّٰه تعالي قول | ٣١١١ |
| ٣٥٥ | دا ستاسو گمان دې | ٣١١٢ |
| ٣٥٦ | که چرې دا خلق صبر اوکړي | ٣١١٣ |
| | حٰمٓ عٓسٓقٓ | |
| ٣٥٧ | د خپلوانو محبت | ٣١١٣ |
| | حٰمٓ الزخرف | |
| ٣٥٨ | او هغه خلق به چغه واني | ٣١١٥ |
| | سورة الدخان | |
| ٣٥٩ | پس ته انتظار اوکړه | ٣١١٧ |
| ٣٦٠ | دا به یو دردناک عذاب وي | ٣١١٧ |
| ٣٦١ | مونږ به ضرور ایمان راؤړو | ٣١١٨ |
| ٣٦٢ | دوئ ته کله نصیحت حاصلیږي | ٣١١٩ |
| ٣٦٣ | بیا هم دا خلق ددې نه مخ اړوي | ٣١٢٠ |
| ٣٦٤ | کومه ورځ چه مونږ نیول اوکړو | ٣١٢١ |
| ٣٦٥ | مونږ د صرف زمانه هلاکوي | ٣١٢٢ |
| | سورة الاحقاف | |
| ٣٦٦ | چاچه خپل مور پلار ته اُف قدرې اووې | ٣١٢٣ |
| ٣٦٧ | کله چه دغه خلقو وریځ اولیده | ٣١٢٣ |
| | سورة الَّذِين كفروا | |
| ٣٦٨ | و تقطِّعُوا اَرحامَكُمْ | ٣١٢٥ |
| | سورة الفتح | |
| ٣٦٩ | مونږه تاله فتحه درکړه | ٣١٢٦ |
| ٣٧٠ | د پاره ددې چه ستا تولې خطاگانې معاف کړي | ٣١٢٨ |
| ٣٧١ | مونږه ته گواه جوړ کړې اولیکلې ئې | ٣١٢٩ |
| ٣٧٢ | اللّٰه تعالي د مومنانو په زړونو کښې تسکین پیدا کړو | ٣١٣٠ |
| ٣٧٣ | د بیعت شجره ذکر | ٣١٣٠ |
| | سورة الحجرات | |
| ٣٧٤ | خپل آوازونه ذ نبيؐ ذ آواز نه مه اوچتوې | ٣١٣٢ |
| ٣٧٥ | کوم خلق چه تاته ذ کوټو د بهر نه آوازونه کوي | ٣١٣٤ |
| ٣٧٦ | هغوئ خلق صبر اوکړي | ٣١٣٥ |
| | سورة قٓ | |
| ٣٧٧ | او جهنم به واني | ٣١٣٦ |
| ٣٧٨ | اللّٰه تعالي قول | ٣١٣٧ |
| | سورة الذاريات | |
| | سورة الطّور | |
| | سورة والنجم | |
| ٣٧٩ | آیت | ٣١٤٢ |
| ٣٨٠ | آیت | ٣١٤٣ |
| ٣٨١ | اللّٰه تعالي قول | ٣١٤٣ |
| ٣٨٢ | تاسو د لات او عُزّي په حال کښې هم غور اونه کړو | ٣١٤٣ |
| ٣٨٣ | او د دریم مَنات په باره کښې | ٣١٤٤ |
| ٣٨٤ | د اللّٰه عبادت کوئ | ٣١٤٥ |
| | سورة اقتربت الساعة | |
| ٣٨٥ | آیت | ٣١٤٦ |
| ٣٨٦ | هغه کشتئ به زمونږ د سترگو به وړاندې روانه وه | ٣١٤٧ |
| ٣٨٧ | قرآن اسان کړې شوې دې | ٣١٤٧ |
| ٣٨٨ | گویا کښې هغوئ د کجورو تنې دي | ٣١٤٨ |
| ٣٨٩ | هغوئ د چُوره | ٣١٤٨ |

| باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|
| | شوي په شان دي | |
| ۳۹۰. | سحر وختي په هغوئ بانديے عذاب راغيے | ۳۱۴۸ |
| ۳۹۱. | مونږه داسيے خلق هلاک کړي دي | ۳۱۴۹ |
| ۳۹۲. | پس زرده چه دا جماعت به ماتې اوخوري | ۳۱۴۹ |
| ۳۹۳. | اصل وعده د قيامت ورځ ده | ۳۱۵۰ |
| | سورة الرحمٰن | |
| ۳۹۴. | ددے باغونو په کمه درجه کښيے دوه نور باغونه دي | ۳۱۵۳ |
| ۳۹۵. | آيت | ۳۱۵۴ |
| | سورة واقعه | |
| ۳۹۶. | او اوږد سورے به وي | ۳۱۵۶ |
| | سورة الحديد | |
| | سورة المجادله | |
| | سورة الحشر | |
| ۳۹۷. | کومے اونے چه تاسو پريکړے | ۳۱۵۸ |
| ۳۹۸. | کوم څه چه الله تعالیٰ خپل رسول له د فے په طور ورکړي | ۳۱۵۸ |
| ۳۹۹. | رسول چه تاسو له څه درکړي | ۳۱۵۹ |
| ۴۰۰. | کوم خلق چه په دارالاسلام کښيے دي | ۳۱۶۰ |
| ۴۰۱. | او د خپل ځان نه ئے مخکښيے ساتي | ۳۱۶۱ |
| | سورة الممتحنه | |
| ۴۰۲. | اے ايمان والو خما دشمنان او خپل دشمنان دوستان مه جوړوئے | ۳۱۶۲ |
| ۴۰۳. | کله چه مؤمنے مهاجرے ښځے تاته بيعت د پاره راشي | ۳۱۶۴ |
| ۴۰۴. | کله چه مسلمانانے ښځے بيعت د پاره راشي | ۳۱۶۵ |
| | سورة الصف | |
| ۴۰۵. | چه د هغه نوم به احمد وي | ۳۱۶۸ |
| | سورة الجمعه | |
| ۴۰۶. | آيت | ۳۱۶۸ |
| ۴۰۷. | چه کله دوئ يوه سودا اوليده | ۳۱۶۹ |
| | سورة المنافقون | |
| ۴۰۸. | بيشکه ته د الله رسول ئے | ۳۱۶۹ |
| ۴۰۹. | دے خلقو قسمونه ډهال جوړ کړے دے | ۳۱۷۰ |
| ۴۱۰. | ايمان راوړلو نه پس کفر | ۳۱۷۱ |
| ۴۱۱. | ته د دوئ په خبرو کښيے مه راځه | ۳۱۷۲ |
| ۴۱۲. | دوئ خپل سرونه کږخوي | ۳۱۷۳ |
| ۴۱۳. | که ته دوئ د پاره استغفار کوے او که نه کوے | ۳۱۷۴ |
| ۴۱۴. | منافقان وائي چه کوم خلق رسول اللّٰه سره دي په هغوئ باندې خرچ مه کوئ | ۳۱۷۵ |
| ۴۱۵. | کله چه تاسو مدينے ته واپس لاړ شئ | ۳۱۷۶ |
| | سورة التغابن | |
| | سورة الطلاق | |
| ۴۱۶. | د حمل دارو ښځو عدت | ۳۱۷۸ |
| | سورة التحريم | |
| ۴۱۷. | آيت | ۳۱۸۰ |
| ۴۱۸. | ته د خپلو بيبيانو رضامندي غواړے | ۳۱۸۱ |
| ۴۱۹. | حضورﷺ چه کله يوه خبره خپلے بي بي ته اوکړه | ۳۱۸۵ |
| | سورة تبارک الّذي | |
| | سورة نٓ والقلم | |
| ۴۲۰. | آيت | ۳۱۸۵ |
| ۴۲۱. | آيت | ۳۱۸۶ |
| ۴۲۲. | سخت مزاج او بد نسبے | ۳۱۸۸ |
| ۴۲۳. | کله چه دَ ساق تجلّي اوشي | ۳۱۸۸ |
| | سورة الحاقه | |
| | سورة سأل سائل | |
| | سورة انا ارسلنا | |
| ۴۲۴. | آيت | ۳۱۹۰ |
| | قُل اُوحي الي | |
| | سورة المزمل | |
| | سورة مدثر | |
| ۴۲۵. | ته او دريږه او اويروه | ۳۱۹۴ |
| ۴۲۶. | د خپل رب لوئي بيان کړه | ۳۱۹۴ |
| ۴۲۷. | خپلے جامے پاکے ساته | ۳۱۹۵ |
| ۴۲۸. | بتانو نه جدا اوسه | ۳۱۹۶ |
| | سورة القيامه | |

| باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه | باب | مضامين | صفحه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۴۲۹. | کله چه مونږ دلوستل کوزنو نه الخ | ۲۱۹۶ | ۴۳۹. | د نر او مادے پیدا | ۲۲۱۳ | | ویل لکل همزة | |
| ۴۳۰. | آیت | ۲۱۹۷ | | کونکي قسم | | | الم تر کیف | |
| ۴۳۱. | آیت | ۲۱۹۸ | ۴۴۰. | چا چه ورکړل او | ۲۲۱۴ | | لایلاف قریش | |
| | سورة هل اتی علی الانسان | | | الله نه اوویریدو | | | سورة ارأیت الّذی | |
| | سورة المرسلات | | ۴۴۲. | مونږ به مصیبت اسان کړو | ۲۲۱۵ | | سورة انا اعطینک الکوثر | |
| ۴۳۲. | آیت | ۲۲۰۱ | ۴۴۳. | چا چه بخل او کړو | ۲۲۱۵ | | سورة قل یا ایها الکفرون | |
| ۴۳۳. | لکه چه هغه زبر اوبنان وي | ۲۲۰۱ | ۴۴۴. | او نیکي نے دروغ او ګڼړله | ۲۲۱۶ | | سورة اذا جاء نصر الله | |
| ۴۳۴. | نن ورخ به هغوی | ۲۲۰۲ | ۴۴۵. | مونږ به ورته | ۲۲۱۷ | ۴۵۵. | د الله په دین کښے | ۲۲۳۳ |
| | خبرے نشي کولے | | | مصیبت اسان کړو | | | ډلے ډلے داخلیدل | |
| | سورة عمّ یتساء لون | | | والضحی | | ۴۵۶. | آیت | ۲۲۳۴ |
| ۴۳۵. | کله چه شپیلی | ۲۲۰۳ | ۴۴۶. | آیت | ۲۲۱۸ | | تبت یدا | |
| | پوک وهلے شي | | ۴۴۷. | آیت | ۲۲۱۸ | ۴۵۷. | آیت | ۲۲۳۶ |
| | سورة والنازعات | | | الم نشرح | | ۴۵۸. | آیت | ۲۲۳۶ |
| | سورة عبس | | | والتین | | ۴۵۹. | آیت | ۲۲۳۷ |
| | سورة اذا الشمس کورت | | | اقرأ | | | قل هوا الله | |
| | سورة اذا السماء انفطرت | | ۴۴۸. | ته لوستل او کړه | ۲۲۲۰ | ۴۶۰. | آیت | ۲۲۳۸ |
| | سورة ویل للمطففین | | ۴۴۹. | الله تعالی انسان د چکه | ۲۲۲۳ | | الفلق | |
| | سورة اذا السماء انشقت | | | وینے نه پیدا کړے دے | | | الناس | |
| ۴۳۶. | آیت | ۲۲۰۷ | ۴۵۰. | او لوله ستا رب لوئے کریم دے | ۲۲۲۴ | | د قرآن فضائل | |
| ۴۳۷. | آیت | ۲۲۰۸ | ۴۵۱. | هغه د قلم په ذریعه ښودنه او کړه | ۲۲۲۴ | ۴۶۱. | د وحي نزول څرنګ او شو | ۲۲۴۱ |
| | سورة البروج | | ۴۵۲. | آیت | ۲۲۲۵ | ۴۶۲. | قرآن د قریشو او | ۲۲۴۳ |
| | سورة الطارق | | | إنّا انزلناه | | | عربو په ژبه کښے | |
| | سورة سبح اسم ربک الاعلی | | | لم یکن الذین | | ۴۶۳. | قرآن جمع کول | ۲۲۴۴ |
| | سورة هل اتاک | | | سورة اذا زلزلت الارض | | ۴۶۴. | د ټولو نه مشهور کاتب | ۲۲۴۷ |
| | سورة الفجر | | ۴۵۳. | آیت | ۲۲۲۷ | ۴۶۵. | قرآن مجید په اوو طریقو | ۲۲۴۸ |
| | سورة لا اُقسم | | ۴۵۴. | چا چه بدي او کړه | ۲۲۲۸ | | سره نازل شوے دے | |
| | سورة الشمس وضحاها | | | سورة والعادیات | | ۴۶۶. | د قرآن مجید ترتیب او تدوین | ۲۲۵۰ |
| | سورة واللیل اذا یغشی | | | سورة القارعة | | ۴۶۷. | جبریل سره د | ۲۲۵۲ |
| ۴۳۸. | قسم دے په ورځ باندے | ۲۲۱۳ | | سورة الهاکم التکاثر | | | حضور دور قرآن | |
| | کله چه روښانه شي | | | والعصر | | ۴۶۸. | په قرآن کښے مشهور صحابه کرام | ۲۲۵۳ |

# شلمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سُوْرَةُ الْمَلٰٓئِكَةِ

## دَ سورۀ ملائکه تفسير

قَالَ مُجَاهِدٌ الْقِطْمِيْرُ لِفَافَةُ النَّوَاةِ مُثْقَلَةٌ مُثَقَّلَةٌ وَقَالَ غَيْرُهُ الْحَرُوْرُ بِالنَّهَارِ مَعَ الشَّمْسِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْحَرُوْرُ بِاللَّيْلِ وَالسَّمُوْمُ بِالنَّهَارِ وَغَرَابِيْبُ اَشَدُّ سَوَادٍ الْغِرْبِيْبُ اَشَدُّ السَّوَادِ.

مجاهد اووې. "قطمير" معني دي دَ قجورې دَ هډوکي پوستکې. 'مثقلة' بار کړې. ډک. او دوي نه علاوه نورو اُووې. "حرور" دَ ورځې وخت دَ نمر ګرمي ته والي' او ابن عباسؓ اووې. "حرور" دَ شپې ګرمي او "سموم" دَ ورځې ګرمي ده. "غرابيب" ډير ډوب توروالې. او "غربيب" ډير زيات تور.

## سُوْرَةُ يٰسٓ

## دَ سورۀ يٰسٓ تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ فَعَزَّزْنَا شَدَّدْنَا يَا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ كَانَ حَسْرَةً عَلَيْهِمُ اسْتِهْزَآءُهُمْ بِالرُّسُلِ اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ لَا يَسْتُرُ ضَوْءُ اَحَدِهِمَا ضَوْءَ الْاٰخَرِ وَلَا يَنْبَغِيْ لَهُمَا ذٰلِكَ سَابِقُ النَّهَارِ يَتَطَالَبَانِ حَثِيْثَيْنِ نَسْلَخُ نُخْرِجُ اَحَدَهُمَا مِنَ الْاٰخَرِ وَيَجْرِيْ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِنْ مِّثْلِهٖ مِنَ الْاَنْعَامِ فَكِهُوْنَ مُعْجَبُوْنَ جُنْدٌ مُّحْضَرُوْنَ عِنْدَ الْحِسَابِ وَيُذْكَرُ عَنْ عِكْرَمَةَ الْمَشْحُوْنُ الْمُوْقَرُ وَقَالَ

او مجاهد اووې "فعززنا" يعني مونږ قوت ورکړ. "يا حسرة على العباد" په هغه خلقو افسوس دې' چه رسولانو پورې يې توقې مسخرې اوکړلې. "اَنْ تُدْرِکَ القَمَرَ" هغې کښې دَ يو رنړا دَ بل رنړا نه پټوي' او نه هغوي دَ پاره دا مناسب دي. "سابق النهار" دواړه يو بل طلب کوي او مخکښې منډې وهي. "نسلخ" مونږ هغوي کښې يو دَ بل نه راوکاږو. او هغې دواړو کښې هر يو روان وي. "من مثله" يعني دَ چارپايه په شان. "فکهون" خوشحاله. "جند محضرون" دَ حساب په وخت به فوځ حاضر کړې شي. عکرمه نه منقول دي چه "مشحون" ډک نه والي. ابن عباسؓ اووې "طائرکم" نه مراد ستاسو مصيبتونه "ينسلون" بهرته به راوځي. "مرقدنا" خمولو

ابْنِ عَبَّاسٍ طَائِرُكُمْ مَصَائِبُكُمْ يَنْسِلُوْنَ يَخْرُجُوْنَ مَرْقَدِنَا مَخْرَجِنَا أَحْصَيْنَاهُ حَفِظْنَاهُ مَكَانَتِهِمْ وَ مَكَانُهُمْ وَاحِدٌ.

ذونلو څائے. "احصيناه" مونږ هغه محفوظ كړلو. او "مكانتهم" او "مكانهم" يو معني دي. او نمر په خپل مقرره لاره ګردش كوي. دا د هغه مقرر كړے اندازه ده' چه قوي او پوهيدونكے دے.

## باب ۳۴۶: قَوْلِهِ وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ.

## باب ۳۴۶: آيت: وَالشَّمْسُ تَجْرِىْ لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا:

دَ اللّٰه تعالىٰ قول' او نمر خي هغه ځائے دَ قرارئ ددۀ ته' دا حكم دَ غالب عالم خدائے دے.

۷۸۹: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ ذَرٍّ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ عِنْدَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ فَقَالَ يَا أَبَا ذَرٍّ أَتَدْرِيْ أَيْنَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ قُلْتُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّهَا تَذْهَبُ حَتّٰى تَسْجُدَ تَحْتَ الْعَرْشِ فَذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالٰى وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ.

۷۸۹: ابو نعيم. اعمش. ابراهيم تيمي. دَ خپل پلار نه روايت كوي' دَ هغۀ بيان دے. زۀ دَ نمر پريوتلو په وخت جمات كښې نبي صلي الله عليه وسلّم سره ووم' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' اے ابوذر آيا تاته معلومه ده' چه نمر كوم ځائے پريوځي ما عرض اوكۀ' الله تعالىٰ او دَ هغه رسول ښۀ پوهيږي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل هغه روان وي' تردے چه دَ عرش لاندے سجده كوي' دَ اللّٰه تعالىٰ دَ قول "وَالشَّمْسُ تَجْرِىْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ" دا معني دي.

۷۹۰: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ ذَرٍّ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَوْلِهِ تَعَالٰى وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا قَالَ مُسْتَقَرُّهَا تَحْتَ الْعَرْشِ.

۷۹۰: حميدي. وكيع. اعمش. ابراهيم تيمي دَ خپل پلار نه' هغۀ دَ حضرت ابوذرؓ نه روايت كوي' هغۀ اووے. ما دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه: وَالشَّمْسُ تَجْرِى لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا: متعلق تپوس اوكۀ' نو حضورؐ اوفرمائيل' دَ دۀ مستقر دَ عرش دَ لاندے دے.

# سُوْرَةُ وَالصَّافَّاتِ

# دَ سورۀ والصافات تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ وَّ يَقْذِفُوْنَ بِالْغَيْبِ

او مجاهد اووے "ويقذفون من كل مكان بعيد" مراد

مِنْ مَّكَانٍ بَعِيدٍ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ وَيُقْذَفُوْنَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ يُرْمَوْنَ وَاصِبٌ دَائِمٌ لَازِبٌ لَازِمٌ تَأْتُوْنَنَا عَنِ الْيَمِيْنِ يَعْنِي الْحَقَّ الْكُفَّارُ تَقُوْلُهُ لِلشَّيْطِيْنِ غَوْلٌ وَجَعُ بَطْنٍ يُنْزَفُوْنَ لَا تَذْهَبُ عُقُوْلُهُمْ قَرِيْنٌ شَيْطٰنٌ يُهْرَعُوْنَ كَهَيْئَةِ الْهَرْوَلَةِ يَزِفُّوْنَ النَّسَلَانُ فِي الْمَشْيِ وَ بَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا قَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ الْمَلٰئِكَةُ بَنَاتُ اللّٰهِ وَ أُمَّهَاتُهُمْ بَنَاتُ سَرَوَاتِ الْجِنِّ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ سَتُحْضَرُ لِلْحِسَابِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَنَحْنُ الصَّآفُّوْنَ الْمَلٰئِكَةُ صِرَاطِ الْجَحِيْمِ سَوَآءِ الْجَحِيْمِ وَ وَسَطِ الْجَحِيْمِ لَشَوْبًا يُخْلَطُ طَعَامُهُمْ وَ يُسَاطُ بِالْحَمِيْمِ مَدْحُوْرًا مَّطْرُوْدًا بَيْضٌ مَّكْنُوْنٌ اللُّؤْلُؤُ الْمَكْنُوْنُ وَ تَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ يُذْكَرُ بِخَيْرٍ يَسْتَسْخِرُوْنَ يَسْخَرُوْنَ بَعْلًا رَبًّا الْأَسْبَابُ السَّمَآءُ.

دے، ذَ هر خوا نه. او "يقذفون من كل جانب" كښې ذ "يقذفون" معني دي هغه غرخولے شي. "واصب" معني هميشه. "لازب" په معني ذ لازم. "تاتوننا عن اليمين" كښې "يمين" نه مراد حق دے. دا الفاظ، كفار شيطانانو ته وائي. "غول" نه مراد ذَ خيټې تكليف دے. "ينزفون" ذ هغوي عقلونه به زائل شي. "قرين" نه مراد شيطان دے. "يهرعون" تيز منډے به وهي. "يزفون" تيز رفتاري سره به خي "و بين الجنة نسبا" كفار قريش اووے، چه ملائكے ذَ اللّٰه لونړه دي، او ذَ هغوي ميندے ذَ سردار جنّاتو لونړه دي. او اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل جنّاتو ته معلومه ده، چه هغوي به حاضرولے شي، يعني عنقريب به حساب ذَ پاره حاضر كړے شي. او ابن عباسؓ اووے. "لنحن الصافون" كښې "صافون" نه فريښتے مراد دي. او "صراط الجحيم" نه مراد "سواءِ الجحيم" او "وسطِ الجحيم" يعني ذَ دوزخ درمياني حصه مراد ده. "لشوبًا" ذَ هغوي په خوراك كښې به آميزش (گډون) وي، او گرمے اوبه به ورسره يوځائے كولے شي. "مدحورًا" تبنتولے شوے (بھگایاہوا). "بيض مكنون" نه مراد پټه ملغلره ده. "و تركنا عليه في الأخرين" نه مراد دا دے، چه ذَ هغوي ذكر خير كيږي. "يستسخرون" هغوي مذاق كوي. "بعلًا" نه مراد "ربًا" دے، يعني سردار.

## بَابُ ۳۴۷: قَوْلُهُ وَ إِنَّ يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ.

باب ۳۴۷: آيت: وَ إِنَّ يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ: ذَ اللّٰه تعالٰي قول، او بيشكه يونس عليه السلام ذَ پيغمبرانو نه وو.

۱۹۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِيْ

۱۹۷: قتيبه بن سعيد. جرير. اعمش. ابو وائل. حضرت عبداللّٰه نه روايت

وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ اَنْ يَكُوْنَ خَيْرًا مِنَ ابْنِ مَتّٰى.

كوي، ذَ هغه بيان دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هيڅوا ذَ چا ره مناسب نهٔ دي، چه هغه دے ابن متي نه بهتر وي.

۴۹۲: حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ مِنْ بَنِيْ عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِنْ يُوْنُسَ بْنِ مَتّٰى فَقَدْ كَذَبَ.

۴۹۲: ابراهيم بن منذر. محمد بن فليح. فليح. هلال بن علي (ذَ بني عامر بن لوئي يو فرد) عطاء. يسار. حضرت ابوهريرهؓ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضورؐ اوفرمائيل، كوم سړي چه اووے، چه زهٔ (حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم) ذَ يونس بن متي نه بهتر يم، نو هغهٔ دروغ اووے.

## سُوْرَةُ صٓ

## ذَ سورهٔ صٓ تفسير

۴۹۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْعَوَّامِ قَالَ سَاَلْتُ مُجَاهِدًا عَنِ السَّجْدَةِ فِيْ صٓ قَالَ سُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ وَ كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَسْجُدُ فِيْهَا.

۴۹۳: محمد بن بشار. غندر. شعبه. عوام نه روايت كوي، ذَ هغهٔ بيان دے. ما ذَ مجاهد نه سورهٔ صٓ كښې ذَ سجدے متعلق تپوس اوكړ، هغهٔ اووے، ذَ دے متعلق چا ذَ ابن عباسؓ نه تپوس اوكړ، نو هغهٔ اووے، چه "اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ" او ابن عباسؓ به دے سورت كښې سجده كوله.

۴۹۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الطَّنَافِسِيُّ عَنِ الْعَوَّامِ قَالَ سَاَلْتُ مُجَاهِدًا عَنْ سَجْدَةِ صٓ فَقَالَ سَاَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ مِنْ اَيْنَ سَجَدْتَ فَقَالَ اَوَمَا تَقْرَاُ

۴۹۴: محمد بن عبداللّٰه. محمد بن عبيد طنافسي. عوام نه روايت كوي، ذَ هغهٔ بيان دے، ما ذَ مجاهد نه ذَ سورهٔ صٓ ذَ سجدے متعلق تپوس اوكړ، هغهٔ اووے، آيا تهٔ دا آيت نهٔ لولے، چه داؤد او سليمان ذَ هغهٔ ذَ اولاد نه دي، دا هغه خلق دي، چه اللّٰه ورته هدايت كړے دے، نو ذَ هغوي ذَ هدايت پيروي كوه، نو داؤد ذَ هغے

وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَ سُلَيْمَانَ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ فَكَانَ دَاوُدُ مِمَّنْ أُمِرَ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُجَابٌ أَنْ يَقْتَدِيَ بِهِ فَسَجَدَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَجِيبٌ الْقِطُّ الصَّحِيفَةُ هُوَ هٰهُنَا صَحِيفَةُ الْحَسَنَاتِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ فِي عِزَّةٍ مُعَازِّينَ الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ مِلَّةُ قُرَيْشٍ الْإِخْتِلَاقُ الْكَذِبُ الْأَسْبَابُ طُرُقُ السَّمَاءِ فِي أَبْوَابِهَا جُنْدٌ مَا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ يَعْنِي قُرَيْشًا أُولٰئِكَ الْأَحْزَابُ الْقُرُونُ الْمَاضِيَةُ فَوَاقٍ رُجُوعٍ قِطَّنَا عَذَابَنَا اتَّخَذْنَاهُمْ سُخْرِيًّا أَحَطْنَا بِهِمْ أَتْرَابٌ أَمْثَالٌ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْأَيْدُ الْقُوَّةُ فِي الْعِبَادَةِ الْأَبْصَارُ الْبَصَرُ فِي أَمْرِ اللّٰهِ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّي مِنْ ذِكْرِ طَفِقَ مَسْحًا يَمْسَحُ أَعْرَافَ الْخَيْلِ وَ عَرَاقِيبَهَا الْأَصْفَادِ الْوِثَاقِ.

خلقونه دي، چه د هغه د پيروي نبي صلي الله عليه وسلم ته حکم شوی دی. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دې کښې سجده او کړه. "عجاب" معنی عجيب. "قط" معنی صحيفه دلته ترې ذ نيکو صحيفه مراد ده. مجاهد اووې "في عزة" نه مراد، معازين (سرکشي کونکي) دي "الملة الآخرة" نه مراد ملت قريش دی. "اختلاق" معنی دروغ. "اسباب" نه مراد ذ آسمان لارې دي، ذ آسمان لارې دي، ذ هغې دروازو کښې. "جند ما هنالک مهزوم" کښې "جند" نه مراد قريش دي. "اولئک الاحزاب" نه مراد تير هير خلق دي. "فواق" معنی دي دوباره واپس راتلل. "قطنا" معنی خمونږ عذاب. "اتخذناهم سخريا" يعني مونږ هغوي ګير کړل. "اتراب" معني دي يو قسم خلق. او ابن عباسؓ اووې. "ايد" نه مراد ذ عبادت قوت. "ابصار" معني ذ الله معامله کښې ليدل دي. حُبَّ الخير عن ذکر ربّي، کښې "من ذکر ربی" نه مراد (يعني عَن په معنی ذ مِنْ دی) "طفق مسحًا" يعني ذ اسونو په پښو او ګردنونوئې لاس وهلو. "اصفاد" معنی دي بيړۍ (بيڑياں) ماته داسې ملک عطا کړې، چه مانه پس هيچا ذ پاره مناسب نۀ وي، بيشکه تۀ ډير زيات ښنونکې يې.

باب ٣٤٨: قَوْلِهِ هَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ.

باب ٣٤٨: آيت: هَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي الخ، ذ الله تعالي قول، چه اے خما پروردګاره، ماته داسې ملک راکړې، چه ماله پس ذ هيچا لائق نۀ وي.

٤٩٥: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ وَّ مُحَمَّدُ بْنُ

٤٩٥: اسحاق بن ابراهيم. روح. محمد بن زياد. ابوهريرهؓ نبي صلي الله عليه وسلم

جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ عِفْرِيْتًا مِّنَ الْجِنِّ تَفَلَّتَ عَلَيَّ الْبَارِحَةَ اَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا لِيَقْطَعَ عَلَيَّ الصَّلٰوةَ فَاَمْكَنَنِيَ اللّٰهُ مِنْهُ وَ اَرَدْتُ اَنْ اَرْبِطَهُ اِلٰى سَارِيَةٍ مِّنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ حَتّٰى تُصْبِحُوْا وَ تَنْظُرُوْا اِلَيْهِ كُلُّكُمْ فَذَكَرْتُ قَوْلَ اَخِيْ سُلَيْمَانَ رَبِّ هَبْ لِيْ مُلْكًا لَّا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ مِّنْ م بَعْدِيْ قَالَ رَوْحٌ فَرَدَّهٗ خَاسِئًا.

نه روايت كوي، حضورؐ اوفرمائيل، تيره شپه ذ پيريانو يو سردار راغے (يا دغه شان څه الفاظ حضورؐ اوفرمائيل) چه څما مونځ قطع (مات) كړي، نو اللّٰه تعالٰي ماله په هغهٔ قدرت راكړ، او ما اراده اوكړه، چه هغه د جُمات ستنو كښې يو ستنے سره اوتړم، تردے چه صبا شي، او تاسو ټول هغه اووينئے، خو ماته ذ خپل ورور سليمانؑ قول راياد شو، چه اے څما پروردګاره، ماته داسے ملک راكړے، چه ماله پس ذ هيچا لائق نه وي، ذ روح بيان دے چه حضورؐ هغه (جن سردار) ذليل كړے واپس كړلو.

## باب ۳۴۹: قَوْلِهٖ وَمَا اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ.

## باب ۳۴۹: آيت: وَمَا اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ: ذ اللّٰه تعالٰي قول.

۷۹۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَّسْرُوْقٍ قَالَ دَخَلْنَا عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ يٰاَيُّهَا النَّاسُ مَنْ عَلِمَ شَيْئًا فَلْيَقُلْ بِهٖ وَمَنْ لَّمْ يَعْلَمْ فَلْيَقُلِ اللّٰهُ اَعْلَمُ فَاِنَّ مِنَ الْعِلْمِ اَنْ يَّقُوْلَ لِمَا لَا يَعْلَمُ اللّٰهُ اَعْلَمُ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ لِنَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ مَا اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ وَ سَاُحَدِّثُكُمْ عَنِ الدُّخَانِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۷۹۲: قتيبه. جرير. اعمش. ابو الضحي. مسروق نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے. مونږ عبداللّٰه بن مسعود له ورغلو، هغهٔ اووے، اے خلقو، كوم سړے چه څهٔ خبره پيژني، نو هغه دے بيان كړي، اوپه كومه چه نه پوهيږي، نو هغهٔ له وئيل پكار دي، چه اللّٰه ښهٔ پوهيږي، ځكه چه دا ذ علم خبره ده چه څوک په كومه خبره نهٔ پوهيږي، ذ هغے متعلق دے اووائي، چه اللّٰه ښهٔ پوهيږي اللّٰه بزرګ و برتر خپل نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته اوفرمائيل، تهٔ ورته اووايه، چه زهٔ تاسو خلقونه څهٔ اجر نهٔ غواړم او نهٔ زه بنوټي كونكے يم. او عنقريب زهٔ به تاسوته ذ دُخان (لُوګے) معني بيان كړم. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم قريش اسلام طرف ته اوبلل، او هغے خلقو تاخير اوكهٔ، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم

وَسَلَّمَ دَعَا قُرَيْشًا اِلَى الْاِسْلَامِ فَاَبْطَئُوْا عَلَيْهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوْسُفَ فَاَخَذَتْهُمْ سَنَةٌ فَحَصَّتْ كُلَّ شَيْءٍ حَتّٰى اَكَلُوا الْمَيْتَةَ وَالْجُلُوْدَ حَتّٰى جَعَلَ الرَّجُلُ يَرٰى بَيْنَهُ وَ بَيْنَ السَّمَآءِ دُخَانًا مِّنَ الْجُوْعِ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَاْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ يَغْشَى النَّاسَ هٰذَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ قَالَ فَدَعَوْا رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ اِنَّا مُؤْمِنُوْنَ اَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى وَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَ قَالُوْا مُعَلَّمٌ مَّجْنُوْنٌ اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيْلًا اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ اَفَيُكْشَفُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ فَكُشِفَ ثُمَّ عَادُوْا اِلٰى كُفْرِهِمْ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ اللّٰهُ يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى اِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ.

اوفرمائيل' يا الله ذ يوسف عليه السلام ذ قحط سالئ په شان ذ قحط سالي په ذريعه ذ دوي خلاف څما مدد اوکړې' نو په خلقو قحط راغې' او هر څيز ختم شو' تردې چه هغې خلقو مردارې او څرمنې خوړل شروع کړل' حالت دې ته اورسيد' چه آسمان ته به چا کتل' نو ذ لوږې ذ وجې نه به ورته لوګې په نظر راتلو. الله عزّ و جلّ اوفرمائيل' ذ هغې ورځې انتظار کوه؛ په کومه ورځ چه به ذ آسمان نه پرانستې لوګې په خلقو خور شي. دا به دردناک عذاب وي' ذ ابن مسعودؓ بيان دې. خلقو دُعا اوکړه' اې څمونږ خدايه مونږ نه عذاب لرې کړې. مونږ ايمان راوړو' هغوي ته نصيحت څۀ وو' حالانکه هغوي ته بيان کونکې رسول راغلو. بيا هغوي ذ هغۀ نه اوګرځيدل' او وئيل ئې' چه پوهه کړې شوې ليونې دې. بيشکه مونږ به لږو ورځو ذ پاره عذاب لرې کړو. ابن مسعودؓ اووې' آيا قيامت کښې به هم عذاب لرې کړې شي[1]. د ابن مسعود بيان دې' چه عذاب لرې کړې شو' هغوي بيا خپل کفر طرف ته اوګرځيدل' نو الله تعالیٰ هغوي ذ بدر په ورځ اونيول. الله اوفرمائيل' په کومه ورځ چه مونږ ئې په سخته نيوکه اونيسو' نو مونږ به په هغه ورځ بدله واخلو.

١. دا آخري جمله د ابن مسعود رضي الله عنه ده. مطلب دادې چه که چرې نن د دنيا عذاب کوم چه د قحط په شکل کښې په دوئ باندې نازل شوې دې د دوئ نه لرې کړې شي نو آيا قيامت کښې هم داسې ممکن دي (چه ترينه واپس کړې شي) هلته خو به د دوئ رانيول ډير سخت وي او هيڅ يو څيز ورله د الله د دائمي عذاب نه نجات نشي ورکولې.

# سُوْرَةُ الزُّمَرِ

# دَ سورۀ زُمر تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اَفَمَنْ يَّتَّقِيْ

او مجاهد اووې "افمن يتقى بوجهه" معني دي' آيا هغه

بِوَجْهِهٖ يُجَرُّ عَلٰى وَجْهِهٖ وَهُوَ قَوْلُهٗ تَعَالٰى اَفَمَنْ يُّلْقٰى فِي النَّارِ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ يَّاْتِيْ اٰمِنًا ذِيْ عِوَجٍ لُبْسٍ وَّ رَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ مَثَلٌ لِّاٰلِهَتِهِمُ الْبَاطِلِ وَالْاِلٰهِ الْحَقِّ وَ يُخَوِّفُوْنَكَ بِالَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ بِالْاَوْثَانِ خَوَّلْنَا اَعْطَيْنَا وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ الْقُرْاٰنُ وَ صَدَّقَ بِهٖ الْمُؤْمِنُ يَجِيْءُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَقُوْلُ هٰذَا الَّذِيْ اَعْطَيْتَنِيْ عَمِلْتُ بِمَا فِيْهِ مُتَشَاكِسُوْنَ الشَّكِسُ الْعَسِرُ لَا يَرْضٰى بِالْاِنْصَافِ وَ رَجُلًا سَلَمًا وَّ يُقَالُ سَالِمًا صَالِحًا اشْمَاَزَّتْ نَفَرَتْ بِمَفَازَتِهِمْ مِّنَ الْفَوْزِ حَآفِّيْنَ اَطَافُوْا بِهٖ مُطِيْفِيْنَ بِحِفَافَيْهِ بِجَوَانِبِهٖ مُتَشَابِهًا لَيْسَ مِنَ الْاِشْتِبَاهِ وَلٰكِنْ يُّشْبِهُ بَعْضُهٗ بَعْضًا فِي التَّصْدِيْقِ.

چه په مخ به اور کښې راښکلے شي، او دا د الله تعالٰی د هغې قول په شان دے آیا هغه سړے چه اور کښې اوغورځولے شي، هغه بهتر دے، یا هغه چه آمن او سلامتي سره راشي. "ذی عوج" په معني د "لبس" (مشتبه کړېږ) "و رجلا سلما لرجل" دے کښې د هغوي د باطل معبودانو او معبود برحق مثال دے "یخوفونک بالّذین من دونه" کښې "الذین من دونه" نه مراد بُتان دي. "خولنا" مونږ ورکړلو. "والّذی جآءَ بالصدق" نه مراد قرآن او "صدّق به" نه مراد مؤمن دے، چه د قیامت په ورځ به راشي او وائي به، دا هغه څیز دے، چه تا مونږ ته راکړلو، او مونږ ددے مطابق عمل اوکړلو، چه دے کښې دے "متشاکسون" "شکس" سخت خویه، انصاف باندے رضامند نۀ وي. "رجلا سلمًا" او "سالمًا" نه مراد صالح دے. "اشمازت" نفرت کوي. "بمفازتهما" "فوز" نه مشتق دے. "حافین" څلور طرفه حلقه جوړه کړے تاویږي. "بحفافیه" "بجوانبه" (د دے څلور طرفه). "متشابها" "اشتباه" نه ماخوذ نۀ دے، بلکه د دے دا معني دي، چه تصدیق کښې بعضے د بعضے مشابه دے.

**بَابٌ ۳۵۰: قَوْلِهٖ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ.**

**باب ۳۵۰: آیت: یٰعِبَادِیَ الَّذِیْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰی اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ الخ:** د اللّٰه تعالٰی قول، اے زما بندیانو، چا چه په خپلو ځانونو ظلم کړے دے، د اللّٰه د رحمت نه دے نااُمید کیږي نه، بیشکه اللّٰه ټول ګناهونه ببنونکے دے، بیشکه هغه ببنونکے مهربانه دے.

۷۹۷: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ ابْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ يَعْلٰى اِنَّ

۷۹۷: ابراهیم بن موسٰی. هشام بن یوسف. ابن جریج. یعلٰی. سعید بن جبیر. ابن عباسؓ نه روایت کوي، مشرکینو کښې څنو ډیر قتلونه او

سَعِيْدَ ابْنَ جُبَيْرٍ اَخْبَرَهٗ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ نَاسًا مِنْ اَهْلِ الشِّرْكِ كَانُوْا قَدْ قَتَلُوْا وَ اَكْثَرُوْا وَ زَنَوْا وَ اَكْثَرُوْا فَاَتَوْا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا اِنَّ الَّذِيْ تَقُوْلُ وَ تَدْعُوْا اِلَيْهِ لَحَسَنٌ لَوْ تُخْبِرُنَا اَنَّ لِمَا عَمِلْنَا كَفَّارَةً فَنَزَلَ وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُوْنَ وَ نَزَلَ قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ.

زناګانې کړې وې، نو هغه خلق ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو، او ونيلې، څۀ چه تاسو وائې، او ذ چا طرف ته چه مو بلئې، ډير ښۀ دي، که تاسو اوښائې، څۀ چه مونږ کړې دي، هغه به راته معاف کړې شي، نو په دې خبره دا آيت نازل شو. او کوم خلق چه اللّٰه سره بل معبود نۀ بلي، او نۀ يو خان (نفس) چه هغه اللّٰه تعالٰي حرام کړې دي، ناحق قتلوي، او نه زنا کوي. او دا آيت نازل شو، تۀ ورته اووايه، اې خما بنديانو، چا چه په خپل خان ظلم کړې دې، ذ اللّٰه ذ رحمت نه دې نااُميده کيږي نه.

باب ١٣٥١: قَوْلِهٖ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ.

باب ١٣٥١: آيت: وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، او دې خلقو ذ اللّٰه ذ قدرت پوره طور سره اندازه اونۀ کړله.

٧٩٨: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ جَآءَ حَبْرٌ مِّنَ الْاَحْبَارِ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ اِنَّا نَجِدُ اَنَّ اللّٰهَ يَجْعَلُ السَّمٰوٰتِ عَلٰى اِصْبَعٍ وَالْاَرْضِيْنَ عَلٰى اِصْبَعٍ وَالشَّجَرَ عَلٰى اِصْبَعٍ وَالْمَآءَ وَالثَّرٰى عَلٰى اِصْبَعٍ وَ سَآئِرَ الْخَلَائِقِ عَلٰى اِصْبَعٍ فَيَقُوْلُ اَنَا الْمَلِكُ فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهٗ تَصْدِيْقًا لِقَوْلِ الْحَبْرِ ثُمَّ قَرَاَ

٧٩٨: آدم. شيبان. منصور. ابراهيم. عبيده. عبداللّٰهؓ نه روايت کوي، ذ هغۀ بيان دې، ذ تورات عالمانو کښې يو عالم ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شو، او عرض ئې اوکۀ، اې محمد (صلي اللّٰه عليه وسلّم) مونږ تورات کښې وينو، چه اللّٰه تعالٰي به آسمانونه په يوه ګوته، زمکې په يوه ګوته او اُونې په يوه ګوته او اوبه او خاوره په يوه ګوته او ټول مخلوقات په يوه ګوته اوچت کړي. بيا به فرمائي، زۀ بادشاه يم، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په خندا شو، تردې چه ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم غاښونه مبارک ظاهر شو، ګويا ذ هغې يهودي عالم ذ خبرې تصديق ئې اوکۀ. بيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دا آيت تلاوت

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌۢ بِيَمِيْنِهٖ سُبْحَانَهٗ وَ تَعَالٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ.

كړ "او دے خلقو ذَ الله ذَ قدرت پوره طور سره اندازه اونۀ كړله او زمكه به تړوله ذَ قيامت په ورځ ذَ هغه يو موټي كښ، او آسمان به ذَ هغۀ ښي لاس كښ راغونډ كړے شوے وي. الله تعالىٰ ذَ هغے نه، چه هغوي شرك كوي، پاك او برتر دے.

**باب ۳۵۲: قَوْلِهٖ وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌۢ بِيَمِيْنِهٖ.**

**باب ۳۵۲:** آيت: وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ الخ: ذَ الله تعالىٰ قول، او زمكه به تړوله ذَ قيامت په ورځ ذَ هغۀ يو موټي كښ، او آسمان به ذَ هغۀ ښي لاس كښ راغونډ كړے شوے وي.

**۷۹۹:** حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدِ بْنِ مُسَافِرٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَقْبِضُ اللّٰهُ الْاَرْضَ وَ يَطْوِى السَّمٰوٰتِ بِيَمِيْنِهٖ ثُمَّ يَقُوْلُ اَنَا الْمَلِكُ اَيْنَ مُلُوْكُ الْاَرْضِ.

**۷۹۹:** سعيد بن عفير. ليث. عبدالرحمٰن بن خالد بن مسافر. ابن شهاب. ابو سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ما ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، الله تعالىٰ به زمكه موټي كښ واخلي، او آسمانونه به خپل ښي لاس كښ راغونډ كړي. بيا به فرمائي، زۀ بادشاه يم. ذَ زمكے هغه بادشاهان چرته دي.

**باب ۳۵۳: قَوْلِهٖ وَ نُفِخَ فِى الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ نُفِخَ فِيْهِ اُخْرٰى فَاِذَا هُمْ قِيَامٌ يَّنْظُرُوْنَ.**

**باب ۳۵۳:** آيت: وَ نُفِخَ فِى الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ الخ: ذَ الله تعالىٰ قول، او شپيلئے به اووهلے شي، نو زمكه او آسمانونو كښ چه كوم خلق وي، هغوي به بيهوشه شي، خو هغه چه الله تعالىٰ ئے غواړي بيا به په دوئم وار شپيلئے اووهلے شي، نو هغه وخت به ولاړ وي ګوري به.

**۸۰۰:** حَدَّثَنِى الْحَسَنُ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ ابْنُ خَلِيْلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحِيْمِ عَنْ زَكَرِيَّآءَ بْنِ اَبِيْ زَائِدَةَ

**۸۰۰:** حسن. اسمٰعيل بن خليل. زكريا بن ابي زائده. عامر. حضرت ابوهريرهؓ حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي، حضورؐ

عَنْ عَامِرٍ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنِّىْ اَوَّلُ مَنْ يَّرْفَعُ رَاْسَهُ بَعْدَ النَّفْخَةِ الْاٰخِرَةِ فَاِذَا اَنَا بِمُوْسٰى مُعَلِّقٌ بِالْعَرْشِ فَلَا اَدْرِىْ اَكَذٰلِكَ كَانَ اَمْ بَعْدَ النَّفْخَةِ.

اوفرمائيل، په دوئيم وار شپيلئ پُوكلونه پس دَ ټولونه ورمبے سر اوچتونكے به زهٔ يم، نو زهٔ به اووينم، چه موسیٰ به هغه وخت عرش سره لړيدلے ولاړ وي. زهٔ نه پوهيږم، چه هغه به دَ مخكښې نه دغسے وي، يا دَ شپيلئ پُوكلو نه پس به هوش كښې راغلے وي.

۱۰۸: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِىْ قَالَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا صَالِحٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَ النَّفْخَتَيْنِ اَرْبَعُوْنَ قَالُوْا يَا اَبَا هُرَيْرَةَ اَرْبَعُوْنَ يَوْمًا قَالَ اَبَيْتُ قَالَ اَرْبَعُوْنَ سَنَةً قَالَ اَبَيْتُ قَالَ اَرْبَعُوْنَ شَهْرًا قَالَ اَبَيْتُ وَ يَبْلٰى كُلُّ شَيْءٍ مِنَ الْاِنْسَانِ اِلَّا عَجْبَ ذَنْبِهٖ فِيْهِ يَرْكَبُ الْخَلْقُ.

۱۰۸: عمر بن حفص. حفص. اعمش. حضرت ابوهريرهؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي. حضورؐ اوفرمائيلو، دَ دواړو شپيلو پوكلو مينځ كښې به دَ څلويښتو موده وي. خلقو تپوس اوكهٔ، آيا څلويښت ورځے، هغهٔ انكار اوكهٔ. راوي اووے، آيا څلويښت كاله. هغه انكار اوكهٔ راوي اووے، څلويښت مياشتے. هغهٔ دَ دے نه هم انكار اوكهٔ، او وئيلے، چه دَ انسان هر څيز دَ ملا دَ تير دَ هډوكي نه سِوا فنا شي، چه هغے سره به دَ انسان ټول جسم وَروَستے شي.

## سُوْرَةُ الْمُؤْمِنُ

## دَ سورهٔ مؤمن تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ مُجَاهِدٌ حٰمٓ مَجَازُهَا مَجَازُ اَوَائِلِ السُّوَرِ وَ يُقَالُ بَلْ هُوَ اِسْمٌ لِقَوْلِ شُرَيْحِ بْنِ اَبِىْ اَوْفٰى الْعَبْسِيِّ:

يُذَكِّرُنِىْ حَامِيْمَ وَالرُّمْحُ شَاجِرٌ
فَهَلَّا تَلَا حَامِيْمَ قَبْلَ التَّقَدُّمِ

الطَّوْلُ التَّفَضُّلُ دَاخِرِيْنَ خَاضِعِيْنَ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اِلَى النَّجَاةِ الْاِيْمَانِ

مجاهد اووے، دا (حم) داسے دے، لكه دَ نورو سورتونو ورومبني حروف چه وي. او دَ بعضے قول دے، چه دا نوم دے په قول دَ شريح بن ابي اوفٰي عبسي:

ماته حاميم ياد وي، داسے حال كښې چه نيزے چليږي
چه وړاندے كيدونه مخكښې دے ولے حاميم اونهٔ وئيلے.

"طول" په معني دَ احسان قدرت "داخرين" په معني دَ خكته كيدونكو، ذليل او خوار. او مجاهد اووے "الى

لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ يَعْنِي الْوَثَنَ يُسْجَرُوْنَ تُوْقَدُ بِهِمُ النَّارُ تَمْرَحُوْنَ تَبْطَرُوْنَ وَ كَانَ الْعَلَاءُ ابْنُ زِيَادٍ يُذَكِّرُ النَّارَ فَقَالَ رَجُلٌ لِمَ تُقَنِّطُ النَّاسَ قَالَ وَ اَنَا اَقْدِرُ اَنْ اُقَنِّطَ النَّاسَ؟ وَاللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ يَقُوْلُ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ وَ يَقُوْلُ وَ اِنَّ الْمُسْرِفِيْنَ هُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ وَلٰكِنَّكُمْ تُحِبُّوْنَ اَنْ تُبَشَّرُوْا بِالْجَنَّةِ عَلٰى مَسَاوِئِ اَعْمَالِكُمْ وَ اِنَّمَا بَعَثَ اللّٰهُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُبَشِّرًا بِالْجَنَّةِ لِمَنْ اَطَاعَهُ وَ مُنْذِرًا بِالنَّارِ مَنْ عَصَاهُ.

النجاة" نه مراد ايمان دے. "ليس له دعوة" كښې بُتان مراد دي. "يسجرون" په هغوي به اُور كرم كړے شي. "تمرحون" كبر به مو كولو. علاء بن زياد' ذ جهنّم ذكر كولو' نو يو سړي اووے' ته ولے خلق نااُميده كوے' هغهٔ اووے' آيا زهٔ قدرت لرم' چه خلق نااُميده كړم' حالانكه الله بزرګ و برتر فرمائي' اے څما بنديانو' چا چه په خان ظلم كړے دے' دَ اللّٰه دَ رحمت نه دے نااُميده كيږي نه' او الله تعالٰي فرمائي. مسرفين دوزخ واله دي' ليكن تاسو خوښوئے' چه دَ خپلو بدو عملو باوجود تاسوته دَ جنت خوشخبري دركړے شي' حالانكه الله تعالٰي محمد صلي الله عليه وسلّم صرف دے دَ پاره مبعوث كړلو' چه هغهٔ چا ته دَ جنت خوشخبري واوروي' چاچه دَ حضور صلي الله عليه وسلّم اطاعت اوكهٔ' او هغه څوك دَ جهنّم نه اويروي' چا چه دَ حضورٌ نافرماني اوكړله.

۲ ۰ ۸: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ التَّيْمِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ قَالَ قُلْتُ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ اَخْبِرْنِيْ بِاَشَدِّ مَا صَنَعَ الْمُشْرِكُوْنَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ بِفِنَاءِ الْكَعْبَةِ اِذْ اَقْبَلَ عُقْبَةُ بْنُ اَبِيْ مُعَيْطٍ وَ اَخَذَ بِمَنْكِبِ رَسُوْلِ اللّٰهِ

۲ ۰ ۸: علي بن عبدالله. وليد بن مسلم. اوزاعي. يحيٰي بن ابي كثير. محمد بن ابراهيم تيمي. عروه بن زبير نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے. ما عبداللّٰه بن عمرو بن العاص ته اووے' ما ته دَ ټولو نه هغه زيات حركت بيان كړه' چه مشركانو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره كړے وو. هغهٔ اووے' يو ځلے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ كعبے په صحن كښې مونځ كولو. نو عقبه بن ابي معيط راغے' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ئے دَ اوږے مباركے نه اونيولو' خپله كپړه ئے دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په ګردن كښې واچوله' او تاوهله ئے' او مرۀ ئے

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَوٰى ثَوْبَهُ فِىْ عُنُقِهٖ فَخَنَقَهُ خَنْقًا شَدِيْدًا فَاَقْبَلَ اَبُوْبَكْرٍ فَاَخَذَ بِمَنْكِبِهٖ وَ دَفَعَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ اَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا اَنْ يَّقُوْلَ رَبِّىَ اللّٰهُ وَقَدْ جَآءَ كُمْ بِالْبَيِّنَاتِ مِنْ رَبِّكُمْ.

ورلـه خـفـه كـړلـه. دغـه وخـت ابـوبـكـرؓ راغـے، ذ هـغـه اوګـه ئـے اونـيـولـه، او ذ رسـول اللّٰـه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ئے لرے كړلو. او ورته ئے ونيلے، آيا تاسو دا سړے په دے وجه قتلونے، چه هغه دا وائي، چه خما رب اللّٰه دے، او ستاسو ذ رب خر كند دليلونو سره راغلے دے (يعني حضرت محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم).

## سُوْرَةُ حٰمٓ السَّجْدَةَ

## ذَ سورۂ حٰمٓ السّجده تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ طَاوُسٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ائْتِيَا طَوْعًا اَعْطِيَا قَالَتَا اَتَيْنَا طَآئِعِيْنَ اَعْطَيْنَا وَ قَالَ الْمِنْهَالُ عَنْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِابْنِ عَبَّاسٍ اِنِّىْ اَجِدُ فِى الْقُرْاٰنِ اَشْيَآءَ تَخْتَلِفُ عَلَىَّ قَالَ فَلَا اَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَّلَا يَتَسَآءَ لُوْنَ وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَتَسَآءَ لُوْنَ وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا رَبَّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ فَقَدْ كَتَمُوْا فِىْ هٰذِهِ الْاٰيَةِ وَ قَالَ اَمِ السَّمَآءُ بَنَاهَا اِلٰى قَوْلِهٖ دَحَاهَا فَذَكَرَ خَلْقَ السَّمَآءِ قَبْلَ خَلْقِ الْاَرْضِ ثُمَّ قَالَ اَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُوْنَ بِالَّذِىْ خَلَقَ الْاَرْضَ فِىْ يَوْمَيْنِ اِلٰى طَآئِعِيْنَ فَذَكَرَ فِىْ هٰذِهٖ خَلْقَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

طاؤس ذ ابن عباسؓ نه نقل اوكۀ، چه "ائْتِيَا طَوْعًا" معني "اعطيا" يعني تاسو دواړه ور كړئے. "قالتا اتينا طائعين" كښې "اتينا" نه مراد "اعطينا" يعني مونږ وركړے دے او منهال ذ سعيد نه نقل كړے دے. ذ هغۀ بيان دے. يو سړي ابن عباسؓ ته اووے. قرآن كښې داسے خبرے بيامومم، چه ماته ذ يو بل خلاف معلوميږي. "په هغه ورځ به ذ هغوي مينځ كښې رشتے ناطے (خپلولے) نۀ وي، او نه به يو بل نه تپوس كوي" او يو بل ته به متوجّه شي خپلو كښې به تپوس كوي" او "هغوي به ذ اللّٰه نه هيڅ خبره نه پټوي" او "اے خمونږ ربه مونږ مشرك نۀ وو (دے آيتونو كښې اختلاف ظاهر دے) او آيت: اَم السَّمَآء بناها الخ: كښې ذ آسمان پيدائش ذ زمكے نه مخكښې بيان كړے دے بيا اللّٰه: اَئِنَّكُمْ لتكفرون بالّذى الخ كښې ذ زمكے پيدائش ذ آسمان ذ پيدائش نه ورستو ښودلے دے. او اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل، "وَ كَانَ اللّٰه غفورًا رّحيما" "عزيزًا حكيمًا" سميعًا بصيرًا (يعني اللّٰه ښبونكے

الْاَرْضِ قَبْلَ السَّمَآءِ وَ قَالَ وَ كَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا عَزِيْزًا حَكِيْمًا سَمِيْعًا بَصِيْرًا فَكَاَنَّهُ كَانَ ثُمَّ مَضٰى فَقَالَ فَلَآ اَنْسَابَ بَيْنَهُمْ فِى النَّفْخَةِ الْاُوْلٰى يُنْفَخُ فِى الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ فَلَآ اَنْسَابَ بَيْنَهُمْ عِنْدَ ذٰلِكَ وَلَا يَتَسَآءَلُوْنَ ثُمَّ فِى النَّفْخَةِ الْاٰخِرَةِ اَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ وَ اَمَّا قَوْلُهُ مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ لِاَهْلِ الْاِخْلَاصِ ذُنُوْبَهُمْ وَ قَالَ الْمُشْرِكُوْنَ تَعَالَوْا نَقُوْلُ لَمْ نَكُنْ مُشْرِكِيْنَ فَخُتِمَ عَلٰى اَفْوَاهِهِمْ فَتَنْطِقُ اَيْدِيْهِمْ فَعِنْدَ ذٰلِكَ يُعْرَفُ اَنَّ اللّٰهَ لَا يُكْتَمُ حَدِيْثًا وَ عِنْدَهٗ يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا الْاٰيَةَ خَلَقَ الْاَرْضَ فِىْ يَوْمَيْنِ ثُمَّ خَلَقَ السَّمَآءَ ثُمَّ اسْتَوٰى اِلَى السَّمَآءِ فَسَوّٰهُنَّ فِىْ يَوْمَيْنِ اٰخَرَيْنِ ثُمَّ دَحَا الْاَرْضَ وَ دَحْوُهَا اَنْ اَخْرَجَ مِنْهَا الْمَآءَ وَالْمَرْعٰى وَ خَلَقَ الْجِبَالَ وَالْجِمَالَ وَالْاٰكَامَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِىْ يَوْمَيْنِ اٰخَرَيْنِ فَذٰلِكَ قَوْلُهُ دَحَاهَا وَ قَوْلُهُ خَلَقَ

مهربان وو، زبردست حکمت واله، آوریدونکے، لیدونکے وو) گویا مخکښې (دې صفاتو سره متصف وو) چه تیر شو (او اوس نه دے)، نو هغه اوورے چه "فلا انساب بینهم" تعلق نفخ اول سره دے، نو کوم خلق چه آسمانونو او زمکه کښې دي، بیهوشي به شي، سوا دَ هغوي نه چه اللّٰه ئے غواړي، نو هغه وخت به دَ هغوي مینځ کښې نهٔ خپلولي وي، او نهٔ به دَ یو بل" نه تپوس کوي. بیا په دویم وار شپیلۍ وهلو سره، هغوي کښې به بعضے دَ بعضو نه تپوس کوي. او دَ اللّٰه تعالٰي قول "ما کنا مشرکین" او "لا یکتمون اللّٰه" الخ دَ دمے صورت صرف دا دے، چه اللّٰه تعالٰي به دَ اخلاص والو گناه اوبښي، او مشرکین به وائي چه مونږ مشرک نهٔ وو، نو دَ هغوئ په خوله به مُهر اولږوي، او دَ هغوي لاس وغیره به خبرے کوي، دغه وخت به معلومه شي، چه دَ اللّٰه تعالٰي نه هیڅ خبره نشي پټیدے. او زمکه ئے دوه ورځے کښې پیدا کړه، بیائے آسمان پیدا کهٔ، بیا آسمان طرف ته متوجه شولو، او هغه ئے دوو ورځو کښې برابر کړل. بیائے زمکه اوغوړوله او دَ زمکے غوړول دادي، چه دَ هغے دَ اوبو اوخرند ځائے ئے راښکلو، او غرونه او ډهیرئ وغیره او څهٔ چه دَ آسمان او زمکے په مینځ کښې دي، نورو دوو ورځو کښې پیدا کړل. دَ اللّٰه تعالٰي دَ قول "دحاها" دغه مطلب دے. او دَ اللّٰه تعالٰي دَ قول چه "زمکه ئے دوو ورځو کښې پیدا کړه" دَ دے صورت دادے، چه زمکه او دے کښې ټول څیزونه ئے څلور ورځو کښې پیدا کړے شو (یعني اول دَ زمکے تخلیق اوشو. دے نه پس دَ آسمان. بیا دَ زمکے آبادي اوشوه،

الْأَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَجُعِلَتِ الْأَرْضُ وَمَا فِيْهَا مِنْ شَيْءٍ فِيْ أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ وَّ خُلِقَتِ السَّمٰوٰتُ فِيْ يَوْمَيْنِ وَ كَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا سَمّٰى نَفْسَهُ ذٰلِكَ وَ ذٰلِكَ قَوْلُهُ أَيْ لَمْ يَزَلْ كَذٰلِكَ فَإِنَّ اللّٰهَ لَمْ يُرِدْ شَيْئًا إِلَّا أَصَابَ بِهِ الَّذِيْ أَرَادَ فَلَا يَخْتَلِفْ عَلَيْكَ الْقُرْآنُ فَإِنَّ كُلًّا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنِيْ يُوْسُفُ بْنُ عَدِيٍّ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو عَنْ زَيْدِ بْنِ أَبِيْ أُنَيْسَةَ عَنِ الْمِنْهَالِ بِهٰذَا وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مَّمْنُوْنٌ مَحْسُوْبٌ أَقْوَاتَهَا أَرْزَاقَهَا فِيْ كُلِّ سَمَاءٍ أَمْرَهَا مِمَّا أُمِرَ بِهِ نَحِسَاتٍ مَشَائِيْمَ وَ قَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاءَ قَرَنَّاهُمْ بِهِمْ تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ عِنْدَ الْمَوْتِ اهْتَزَّتْ بِالنَّبَاتِ وَ رَبَتْ ارْتَفَعَتْ وَ قَالَ غَيْرُهُ مِنْ أَكْمَامِهَا حِيْنَ تَطْلُعُ لَيَقُوْلَنَّ هٰذَا لِيْ أَيْ بِعَمَلِيْ أَنَا مَحْقُوْقٌ بِهٰذَا سَوَاءً لِّلسَّائِلِيْنَ قَدَّرَهَا سَوَاءً فَهَدَيْنَاهُمْ دَلَلْنَاهُمْ عَلَى الْخَيْرِ وَالشَّرِّ كَقَوْلِهِ وَ هَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ وَ كَقَوْلِهِ هَدَيْنَاهُ السَّبِيْلَ وَالْهُدٰى الَّذِيْ هُوَ الْإِرْشَادُ بِمَنْزِلَةِ أَصْعَدْنَاهُ مِنْ ذٰلِكَ قَوْلُهُ أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ

نو ذ آسمان تخليق ذ زمکے ذ تخليق نه پس او ذ زمکے ذ آبادي نه مخکښ اوشو). باقي پاتے شو "کان الله غفورًا رحيما" نو اللّٰه تعالٰي خپل نوم دا ايښے دے، ذ هغے مفهوم دا دے، چه هغه ذ هميشه نه داسے دے. الله تعالٰي چه ذ کوم څيز هم اراده کوي، هغه کيږي، نو قرآن کښ تاله اختلاف کنړول نهٔ دي پکار، چه دا ټول کلام ذ الله ذ طرف نه دے، او مجاهد اووے "ممنون" په معني ذ "محسوب" (شمير کړے شوے) دے، "اقواتها" يعني ذ هغهٔ روزي ده. "في کل سماءٍ امرها" يعني هغه کار چه ذ هغے ذ اللّٰه ذ طرف نه حکم شوے دے. "نحسات" نامبارک، سپيرهٔ. "قَيَّضْنا لهم قرناء" "تتنزل عليهم الملائکة" (مونږ ذ هغوي همنشين مقرر کړلو، په هغوي فريښتے نازليږي) يعني ذ مرګ په وخت. "اهْتَزَّت" سرسبز شو. "رَبَتْ" بلند شو. نورو اووے، چه "من اکمامها" نه دا مراد دے، چه کوم وخت ذ خپل غلاف نه اوځي "ليقولنّ هٰذا لِيْ" نه دا مراد دے، هغوي به وائي، چه دا خما ذ عمل بدله ده، او زهٔ ذ دے سزاوار يم. "سواء للسائلين" يعني تپوس کونکو ذ پاره ئے ذ دے پوره اندازه مقرر کړله. "فهديناهم" نه مراد دے، مونږ هغه ته ذ نيکي بدي لار اوښودله لکه چه ذ الله تعالٰي قول "هديناه نجدين" او "هديناه السبيل" او ذ هدايت معني منزل مقصود طرف ته ذ رهنمائي هم دي. ذ الله قول، "اولٰئک الذين هَدَی الله فبهداهم اقتده" کښ دغه مراد دے. "يوزعون" منع کولے به شي. "من اکمامها" ذ "کُمّ" جمع ده. ذ غوټئ (کلئ) ذ پاسه پوستکي ته وائي. "وليّ حميم" قريبي دوست. "من محيص" (ذ تښتيدو

يُوْزَعُوْنَ يُكَفُّوْنَ مِنْ اَكْمَامِهَا قِشْرُ الْكُفُرّٰى هِيَ الْكُمُّ وَ قَالَ غَيْرُهٗ وَ يُقَالُ لِلْعِنَبِ وَ اَخْرَجَ اَيْضًا كَافُوْرٌ وَّ كُفُرّٰى وَلِيٌّ حَمِيْمٌ اَلْقَرِيْبُ مِنْ مَّحِيْصٍ حَاصَ حَادَ مِرْيَةٍ وَ مُرْيَةٍ وَّاحِدٌ اَىْ اِمْتِرَاءٌ وَّ قَالَ مُجَاهِدٌ اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ اَلْوَعِيْدُ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَلَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ اَلصَّبْرُ عِنْدَ الْغَضَبِ وَ الْعَفْوُ عِنْدَ الْاِسَاءَةِ فَاِذَا فَعَلُوْهُ عَصَمَهُمُ اللّٰهُ وَ خَضَعَ لَهُمْ عَدُوُّهُمْ كَاَنَّهٗ وَلِيٌّ حَمِيْمٌ.

خائي) "حاص" (اوتښتيد) نه مشتق دے. "مريه" او "مُريه" يو معنى دي، يعني شک او شبهه. او مجاهد اووے "اعملوا ما شئتم" (څۀ چه غواړئے، کوئے) وعيد دے. او ابن عباسؓ اووے، "الّتى هى احسن" نه مراد دے، دَ غصے په وخت صبر کول، او دَ بدي په وخت معاف کول. هر کله چه هغوي داسے اوکړي، نو اللّٰه به هغوي محفوظ کړي، او دَ هغوي دشمن به دَ هغوي دَ پاره نرم شي، ګويا چه هغه قريبي دوستان دي، او تاسو دَ هغۀ نه پرده نه کوله، چه تاسو باندے به ستاسو غوږونه، ستاسو سترګے او ستاسو څرمنے ګواهي کوي، بلکه تاسو ګمان کولو، چه اللّٰه ته ستاسو ډير کارونه معلوم نۀ دي.

باب ۳۵۴: قَوْلِهٖ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَا اَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُوْدُكُمْ وَلٰكِنْ ظَنَنْتُمْ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ.

باب ۳۵۴: آيت: وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ الخ: دَ اللّٰه تعالىٰ قول، اونۀ وي تاسو پټولو بم دا کار، چه شاهدي به وائي په تاسے باندے غوږونه ستاسے اونۀ سترګے ستاسے اونۀ څرمنے ستاسے، ولٰكن ګمان کړے وو تاسے چه اللّٰه نۀ پوهيږي په ډيرو دَ هغے کارونو چه کولو به تاسو.

۸۰۳: حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ رَّوْحِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ اَبِىْ مَعْمَرٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَّمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ الْاٰيَةَ كَانَ رَجُلَانِ مِنْ قُرَيْشٍ وَّ خَتَنٌ لَّهُمَا مِنْ ثَقِيْفٍ اَوْ رَجُلَانِ مِنْ ثَقِيْفٍ وَّ خَتَنٌ لَّهُمَا مِنْ قُرَيْشٍ فِىْ بَيْتٍ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ اَتَرَوْنَ اَنَّ اللّٰهَ يَسْمَعُ

۸۰۳: صلت بن محمد. يزيد بن زريع. روح بن قاسم. منصور. مجاهد. ابو معمر. ابن مسعود نه روايت کوي، هغۀ دَ آيت: وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ الخ: په تفسير کښې اووے، دَ قريشو دوه سړي او دَ هغے دواړو يو زُوم (داماد) چه ثقفي وو، يا (راوي ته شک دے) دَ ثقيف دوه سړي او دَ هغے دواړو يو زوم چه قريشي وو، يو کور کښې وو، هغوي کښې يو بل ته اووے، آيا تۀ دا خيال کوے، چه اللّٰه تعالىٰ خمونږ خبرے آوري. هغوي کښې

حَدِيْثَنَا قَالَ بَعْضُهُمْ يَسْمَعُ بَعْضَهُ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ لَئِنْ كَانَ يَسْمَعُ بَعْضَهُ لَقَدْ يَسْمَعُ كُلَّهُ فَاُنْزِلَتْ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَا اَبْصَارُكُمْ (الْاٰية).

بعضے اوري، چه هغه بعضے خبره آوري، نو هغوي كښې يو اوږے، كه اللّٰه بعضے خبرے آوري، نو ټولے خبرے به آوري، نو دا آيت: وَمَا كُنْتُمْ تستترون ان يشهد عليكم سمعكم الخ نازل شولو.

باب ۳۵۵: قَوْلُهٗ وَ ذٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الاٰية.

باب ۳۵۵: آيت: وَ ذٰلِكُمْ ظَنُّكُمْ: ذ اللّٰه تعالىٰ قول، دا ستاسو گمان دے، چه ستاسو ذ خپل رب متعلق كولو.

۴۰۸۴: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اجْتَمَعَ عِنْدَ الْبَيْتِ قُرَشِيَّانِ وَ ثَقَفِيٌّ اَوْ ثَقَفِيَّانِ وَ قُرَشِيٌّ كَثِيْرَةٌ شَحْمُ بُطُوْنِهِمْ قَلِيْلَةٌ فِقْهُ قُلُوْبِهِمْ فَقَالَ اَحَدُهُمْ اَتَرَوْنَ اَنَّ اللّٰهَ يَسْمَعُ مَا نَقُوْلُ قَالَ الْاٰخَرُ اِنْ كَانَ يَسْمَعُ اِنْ جَهَرْنَا وَلَا يَسْمَعُ اِنْ اَخْفَيْنَا وَ قَالَ الْاٰخَرُ اِنْ كَانَ يَسْمَعُ اِذَا جَهَرْنَا فَاِنَّهُ يَسْمَعُ اِذَا اَخْفَيْنَا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَا اَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُوْدُكُمُ الاٰيَةَ وَ كَانَ سُفْيَانُ يُحَدِّثُنَا بِهٰذَا فَيَقُوْلُ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ اَوِ ابْنُ اَبِيْ نَجِيْحٍ اَوْ حُمَيْدٌ اَحَدُهُمْ اَوِ اثْنَانِ مِنْهُمْ ثُمَّ ثَبَتَ عَلٰى مَنْصُوْرٍ وَ تَرَكَ ذٰلِكَ مِرَارًا غَيْرَ

۴۰۸۴: حميدي. سفيان. منصور. مجاهد. ابومعمر. عبداللّٰه نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، چه خانه كعبے سره دوه قريشي او يو ثقفي يا دوه ثقفي او قريشي ناست وو، ذ هغوي ذ خيټے چربي ډيره وه (يعني غټ وو) خو ذ هغوي پوهه كمه وه. هغوي كښې يو اوږے آيا تهٔ دا خيال كوے، چه مونږ څهٔ وايو، هغه اللّٰه تعالىٰ آوري. دويم اوږے، كه مونږ اوچت آواز سره وايو، نو هغه آوري، او كه رو آواز سره وايو، نو هغه نهٔ آوري، بل سړي اوږے، كه هغه خمونږ اوچت آواز آوريدے شي، نو خمونږ رو خبره هم آوريدے شي، نو اللّٰه تعالىٰ دا آيت نازل كړلو: وما كنتم تستترون ان يشهد عليكم: او سفيان چه مونږ ته دا حديث بيانولو، نو وئيل ئے، مونږ ته منصور، يا ابن ابي نجيح، يا حميد، دوي كښې يو يا دوو روايت كهٔ. بيا په منصور قائم شو، او ذ يو نه زيات متعدد خل ئے هغه

وَاحِدَةٍ.

بـاب ٣٥٦: قَوْلِهِ فَاِنْ يَّصْبِرُوْا فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ الْاٰيۃ.

٤٨٠٥: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَنْصُوْرٌ عَنْ مُّجَاهِدٍ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بِنَحْوِهٖ.

پریښودلو.

باب ٣٥٦: آيت: فَاِنْ يَّصْبِرُوْا فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ، دَ اللّٰه تعالٰي قول، نو كه هغوي صبر اوكړي نو اُور دَ هغوي ځائے دے، آخر پورے.

٤٨٠٥: عمرو بن علي. يحيٰي. سفيان ثوري. منصور. مجاهد. ابو معمر. حضرت عبدالله نه په مثل دَ سابق حديث روايت كوي.

## سورة حٰمٓ عٓسٓقٓ

## دَ سورهٔ حٰمٓ عٓسٓقٓ تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَقِيْمًا لَا تَلِدُ رُوْحًا مِنْ اَمْرِنَا الْقُرْاٰنُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ يَذْرَؤُكُمْ فِيْهِ نَسْلٌ بَعْدَ نَسْلٍ لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا لَا خُصُوْمَةَ طَرْفٍ خَفِيٍّ ذَلِيْلٍ وَّ قَالَ غَيْرُهٗ فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ عَلٰى ظَهْرِهٖ يَتَحَرَّكْنَ وَلَا يَجْرِيْنَ فِي الْبَحْرِ شَرَعُوا ابْتَدَعُوْا.

او ابن عباسؓ نه منقول دي، "عقيما" نه مراد هغه ښځه ده، چه بچے نهٔ راوړي. "روحا من امرنا" نه مراد قرآن دے. او مجاهد اووے "يذرؤكم فيه" نه مراد دے، چه تاسو دے كښې نسل در نسل زياتوي. "لا حجة بَيْنَنَا" خمونږ مينځ كښې هيڅ جګړه نشته. "طرف خفى" ذليل (ټيټو ستر كو سره). دَ دے نه علاوه نورو اووے. "فيظللن رواكد علٰى ظهره" حركت كوي، خي نه. "شرعوا" نوے لار ئے راوښكله.

باب ٣٥٧: قَوْلِهٖ اِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبٰى.

باب ٣٥٧: آيت: اِلَّا المودة في القربٰى: دَ الله تعالٰي قول، صرف دَ قرابت دَ محبت خواهان يم.

٤٨٠٦: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَيْسَرَةَ قَالَ سَمِعْتُ طَاوُسًا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ سُئِلَ عَنْ قَوْلِهٖ اِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبٰى فَقَالَ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ قُرْبٰى اٰلُ مُحَمَّدٍ

٤٨٠٦: محمد بن بشار. محمد بن جعفر. عبدالملک بن ميسره. طاؤس. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، دَ هغه نه دَ آيت: الا المودة في القربٰى: متعلق تپوس اوشو، نو سعيد بن جبير اووے، "القربٰى" نه مراد آل محمد صلي الله عليه وسلم دے. حضرت

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَجِلْتَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ بَطْنٌ مِّنْ قُرَيْشٍ اِلَّا كَانَ لَهُ فِيْهِمْ قَرَابَةٌ فَقَالَ اِلَّا اَنْ تَصِلُوْا مَا بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ مِنَ الْقَرَابَةِ.

ابـن عبـاسؓ اووے، تـا تـادي او كـړه، خكـه چـه قـريـش آل محـمـدؐ نـهٔ دي، خـو دا چـه دَ حـضـور صـلـي اللّٰـه عليـه وسلّم اوفرمائيل، زهٔ تـاسـونـه صـرف دومـره غـواړم، چـه خمـا او ستـاسـو مينـخ كـښې كـوم قـرابـت دے، هغـه پوخائے كړئے.

## سُوْرَةُ حٰمٓ الزُّخْرُفُ

## دَ سورهٔ حٰمٓ زخرف تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ عَلٰى اُمَّةٍ عَلٰى اِمَامٍ وَقِيْلِهٖ يَا رَبِّ تَفْسِيْرُهٗ اَيَحْسَبُوْنَ اَنَّا لَا نَسْمَعُ قِيْلَهُمْ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَلَوْلَا اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً لَوْلَا اَنْ جَعَلَ النَّاسَ كُلَّهُمْ كُفَّارًا لَجَعَلْتُ لِبُيُوْتِ الْكُفَّارِ سُقُفًا مِّنْ فِضَّةٍ وَ مَعَارِجَ مِنْ فِضَّةٍ وَّ هِيَ دُرُجٌ وَّ سُرُرَ فِضَّةٍ مُقْرِنِيْنَ مُطِيْعِيْنَ اٰسَفُوْنَا اَسْخَطُوْنَا يَعْشُ يَعْمٰى وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ اَيْ تُكَذِّبُوْنَ بِالْقُرْاٰنِ ثُمَّ لَا تُعَاقَبُوْنَ عَلَيْهِ وَ مَضٰى مَثَلُ الْاَوَّلِيْنَ سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ مُقْرِنِيْنَ يَعْنِيْ الْاِبِلَ وَالْخَيْلَ وَ الْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ يَنْشَأُ فِي الْحِلْيَةِ الْجَوَارِيْ جَعَلْتُمُوْهُنَّ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا فَكَيْفَ لَوْ شَاءَ الرَّحْمٰنُ

او مجاهد اووے چه "علٰی امة" نه مراد "علٰی امام" دے. او آيت: قيله يا رب تفسير دا دے چه آيا هغه خلق گمان كوي، چه مونږ دَ هغوي رازونه او سرگوشي نهٔ آورو، او نـهٔ دَ هغوي خبرے آورو. او ابن عباسؓ اووے. "و لولا ان يكون للنّاس اُمة واحدة" تـفسير دا دے، كه دا خبره نه وے، چه ټول خلق به كافر شي، لو كافرو دَ پاره دَ چاندي چهت، دَ چـانـدي سيـړهـي او دَ چـاندي تختونه به جوړ شوے وو. "مقرنين" معني طاقت لرونكي. "اسفونا" هغوي مونږ ناراض كړلو، "ومن يعش" او كوم سړے چه ړوند جوړيږي. او مجاهد اووے "افنضرب عنكم الذكر صفحا" يعني آيا مونږ به دَ نصيحت نه ډډه كوو، چه تاسو قـرآن دروغ گنړے، نو آيا بيا به په تاسو دَ هغهٔ عذاب نهٔ وي. "و مضٰى مثل الاولين" دَ هـغـوي خـلقو طريقه تيره شـوه. "مـقرنين" اوښ، آس، قچر او خرونه تابع كونكي. "ينشؤا في الحلية" دَ چا نشوونما چه زيورات كښې شوے وي، يعـنـي جينكۍ چه تاسو هغوي ته دَ اللّٰه اولاد وائے. تاسو ولے حكم لږوے. "لَوْ شاء الرحمٰن ما عَبَدناهم" كه

مَــا عَبَدُنَــاهُـمْ يَـعُـنُـوُنَ الْاَوْثَـانَ يَقُـوْلُ اللّٰــهُ تَـعَـالٰى مَـا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِــنَ الْـعِـلْــمِ الْاَوْثَــانُ اِنَّهُــمْ لَا يَعْلَمُـوُنَ فِـيُ عَقِبِهٖ وَلَدِهٖ مُقْتَرِنِيْنَ يَـمْشُوُنَ مَعًـا سَـلَـفًـا قَوْمُ فِرْعَوْنَ سَـلَـفًـا لِـكُـفَّـارِ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰــهُ عَـلَيْــهِ وَسَـلَّـمَ وَ مَثَلًا عِبْـرَةً يَـصِـدُّوْنَ يَـضِـجُّـوْنَ مُبْـرِمُـوْنَ مُـجْـمِـعُـوْنَ اَوَّلُ الْـعَـابِـدِيْـنَ اَوَّلُ الْـمُـؤْمِـنِيْـنَ اِنَّـنِيُ بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُوْنَ الْـعَـرَبُ تَـقُـوْلُ نَـحْـنُ مِـنْكَ الْبَـرَآءُ وَالْــخَلَاءُ وَالْــوَاحِــدُ وَالْاِثْــنَـــانُ وَالْجَـمِيْعُ مِنَ الْمُذَكَّرِ وَالْمُؤَنَّثِ يُقَالُ فِيُـهِ بَـرَآءٌ لِاَنَّـهٗ مَصْدَرٌ وَلَوْ قَالَ بَرِيْٓءٌ لَقِيْـلَ فِـى الْاِثْـنَيْنِ بَـرِيْئَـانِ وَ فِـى الْجَمِيْعِ بَرِيْئُوْنَ وَ قَرَاَ عَبْدُ اللّٰهِ اِنَّنِيْ بَـرِيْٓءٌ بِـالْـيَـآءِ وَالزُّخْـرُفُ الذَّهَـبُ مَـلٰٓـئِـكَةٌ يَـخْـلُـفُوْنَ يَخْلُفُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا.

الله غوښتي نو مونږ به ذ دې بتانو عبادت كولې. "هم" نه مراد بُتان دي. الله فرمائي "مالهم بذلک من علم" (هغوي ته ذ دې علم نشته) كښې "لهم" ضمير، او ثان ته راجع دې، يعني هغه بُتان نۀ پوهيږي، "في عقبه" نه مراد دې خپل هلک "مقرنين" يوځائے خي. "سلفا" نه مراد ذ محمد صلي الله عليه وسلّم ذ اُمت ذ كافرو نه مخكښ تير شوے ذ فرعون قوم دې، او "مثلا" نه مراد عبرت دې. "يصدون" چغے وهي. "مبرمون" اتفاق كونكي "اول العابدين" نه "اول المؤمنين" مراد دي. يعني ذ ټولونه مخكښ ايمان راوړونكي. "انّي براءٌ ممّا تعبدون" زۀ ذ هغے نه بيزاره يم، ذ څۀ چه تاسو عبادت كوئے. عرب "نحن منک البراء والخلاء" (مونږ تانه بيزاره او جدا يو) وائي. واحد تثنيه، جمع، مذكر او مؤنث كښ "براء" استعماليږي، ځكه چه دا مصدر دے. او كه "برئ" اووئيلے شي، نو تثنيه كښ به "بريئان" او جمع كښ "بريئون" وئيلے شي. و عبدالله "انني برئ" ياء سره قرات كړے دے. "زخرف" معني دي سرۀ زر (سونا) "ملائكة يخلفون" معني دي چه هغے فريښتے ذ يو بل خليفه وي.

بـــاب۳۵۸: قَـــوْلِـــهٖ وَ نَـــادَوْا يَـــا مَـــالِكُ لِيَـــقْـــضِ عَـــلَيْـــنَـــا رَبُّكَ الْاٰيَة.

باب ۳۵۸: آيت: وَ نَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّکَ: ذ الله تعالي قول، او هغه خلق به په چغه وائي، چه اے مالكه، پكار دي، چه ستا رب مونږ له مرګ راولي الخ.

۸۰۷: حَـدَّثَـنَـا حَجَّـاجُ بْــنُ مِـنْـهَـالٍ حَـدَّثَـنَـا سُفْيَـانُ بْـنُ عُيَيْـنَـةَ عَــنْ عَـمْــرٍو عَنْ عَـطَـاءٍ

۸۰۷: حجاج بن منهال. سفيان بن عيينه. عمرو. عطاء. صفوان بن يعلي ذ خپل پلار نه روايت كوي، ذ هغۀ بيان دے. ما ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه په

عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَى الْمِنْبَرِ وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ وَقَالَ قَتَادَةُ مَثَلًا لِلْآخَرِيْنَ عِظَةً وَقَالَ غَيْرُهُ مُقْرِنِيْنَ ضَابِطِيْنَ يُقَالُ فُلَانٌ مُقْرِنٌ لِفُلَانٍ ضَابِطٌ لَهُ وَالْأَكْوَابُ الْأَبَارِيْقُ الَّتِي لَا خَرَاطِيْمَ لَهَا أَوَّلُ الْعَابِدِيْنَ أَيْ مَا كَانَ فَأَنَا أَوَّلُ الْآنِفِيْنَ وَهُمَا لُغَتَانِ رَجُلٌ عَابِدٌ وَّ عَبِدٌ وَقَرَأَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ قَالَ الرَّسُوْلُ يَا رَبِّ وَ يُقَالُ أَوَّلُ الْعَابِدِيْنَ الْجَاحِدِيْنَ مِنْ عَبِدَ يَعْبَدُ وَ قَالَ قَتَادَةُ فِيْ أُمِّ الْكِتَابِ أَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا أَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُسْرِفِيْنَ مُشْرِكِيْنَ وَاللّٰهِ لَوْ أَنَّ هٰذَا الْقُرْآنَ رُفِعَ حَيْثُ رَدَّهُ أَوَائِلُ هٰذِهِ الْأُمَّةِ لَهَلَكُوْا فَأَهْلَكْنَا أَشَدَّ مِنْهُمْ بَطْشًا وَّ مَضَى مَثَلُ الْأَوَّلِيْنَ عُقُوْبَةُ الْأَوَّلِيْنَ جُزْأً عِدْلًا.

منبر دا آيت: وَ نَادَوْا يَا مالكُ ليقضِ علينا ربک: واوريدلو. او قتاده اووے "مثلا للاخرين" کښې مثل نه مراد نصيحت دے. او ذَ دے نه علاوه نورو اووے' چه "مقرنين" نه مراد "ضابطين" (قبضه کونکے) دے' لکه چه وائي "فلان مقرن لفلان" يعني هغه قابو کونکے دے. او "اکواب" نه مراد لوټے دي' چه هغے کښې سُنت (سوخرت) نهٔ وي. "اول العابدين" نه مراد "ما کان" دے (ان نافيه دے) يعني ذَ الله هيڅ اولاد نشته' زهٔ ورمبنے نفرت کونکے يم. دے کښې دوه لغت دي' لکه چه وائي "و رجل عابدو عبد" عبادت کونکے او نفرت کونکے سړے. او عبدالله دا شان اووے "و قال الرسول يا رب" او رسول اووے اے خما ربه' او ذَ بعضے قول دے' چه "اول العابدين" نه مراد دے' ورومبني انکار کونکي. عَبِد يُعْبَدُ نه. او قتاده اووے چه "فِيْ أُمِّ الكتاب" نه مراد جمله کتاب دراصل کتاب دے. "افنضرب عنکم الذکر صفحا ان کنتم قوما مسرفين" کښې مسرفين نه مراد مشرکين دي. په خدائے چه که دا قرآن هغه وخت او چت کړے شوے وے' کوم وخت چه ذَ دے اُمت ابتدائي خلقو ذَ دے نه انکار اوکړهٔ' نو دا امت به هلاک شوے وے. "فاهلکنا اشد منهم بطشا و مضٰى مثل الاولين" کښې "مثل الاولين" نه مراد "عقوبة الاولين" (ذَ ورومبنو خلقو انجام) دے. "جزءً ا" نه مراد عِدلاً (هَم پله) دے.

## سُوْرَةُ الدُّخَانُ

## ذَ سورهٔ دُخان تفسير

وَقَالَ مُجَاهِدٌ رَهْوًا طَرِيْقًا يَابِسًا عَلَى الْعٰلَمِيْنَ عَلَى

او مجاهد اووے. "رهوا" نه مراد ده خشکه لاره. "على العالمين" نه مراد هغه خلق دي' چه ذَ هغوي مخکښې وو.

مَنْ بَيْنَ ظَهْرَيْهِ فَاعْتِلُوْهُ ادْفَعُوْهُ وَ زَوَّجْنَاهُمْ بِحُوْرٍ اَنْكَحْنَاهُمْ حُوْرًا عِيْنًا يُحَارُ فِيْهَا الطَّرْفُ تَرْجُمُوْنَ الْقَتْلُ وَ رَهْوًا سَاكِنًا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَالْمُهْلِ اَسْوَدَ كَمُهْلِ الزَّيْتِ وَ قَالَ غَيْرُهُ تُبَّعٍ مُلُوْكُ الْيَمَنِ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمْ يُسَمّٰى تُبَّعًا لِاَنَّهُ يَتْبَعُ صَاحِبَهُ وَالظِّلُّ يُسَمّٰى تُبَّعًا لِاَنَّهُ يَتْبَعُ الشَّمْسَ.

"فاعتلوه" هغه له دهکے ورکړه "و زوجناهم بحورعين" مونږ به د هغوي نکاح غټو سترګو واله حورو سره اوکړو، چه د هغوي ليدو سره به سترګے حيرت زده شي. "ترجمون" نه مراد قتل کول دي. "رهوا" په معني د "ساکنا" ايسار (ولاړ) دے. او ابن عباسؓ اووے "کالمهل" نه مراد داسے تور چه د تيلو د خيري په شان وي. او نورو اووے، چه "تبع" نه مراد ملوک يمن (د يمن بادشاهان) دي. هغوي کښې به ئے هر يو ته "تبع" وئيلے، ځکه چه هغه د خپل ملګري نه پس راځي. او سوري (سايه) ته هم "تبع" وائي چه هغه د نمر نه پس راځي.

**بَابُ ٣٥٩: قَوْلِهِ** يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ. قَالَ قَتَادَةُ فَارْتَقِبْ فَانْتَظِرْ.

**باب ٣٥٩:** آيت: يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ. د اللّٰه تعالیٰ قول، په کومه ورځ چه په آسمان ښکاره لوګے راشي. قتاده اووے. "فارتقب" نه مراد "فانتظر" (انتظار کوه) دے.

**٨٠٨:** حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ مَضٰى خَمْسٌ الدُّخَانُ وَالرُّوْمُ وَ الْقَمَرُ وَالْبَطْشَةُ وَاللِّزَامُ.

**٨٠٨:** عبدان. ابو حمزه. اعمش. مسروق. عبداللّٰه نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے. پنځه خبرے تيرے شوے دي: (١) لوګے (قحط) (٢) د اهل روم غلبه (٣) د سپوږمۍ دوه ټکړے کيدل (٤) بطشه (د يوم بدر ګرفت) (٥) لزام (هلاکت).

**بَابُ ٣٦٠: قَوْلِهِ** يَغْشَى النَّاسَ هٰذَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ.

**باب ٣٦٠:** آيت: يَغْشَى النَّاسَ هٰذَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ: د اللّٰه تعالیٰ قول، په خلقو به خور شي دا دردناک عذاب دے.

**٨٠٩:** حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ قَالَ

**٨٠٩:** يحيٰي. ابو معاويه. اعمش. مسلم. مسروق. عبداللّٰه نه روايت کوي، د هغهٔ بيان دے، دا صرف په دے سبب اوشو، چه قريشو کښ وخت د نبي

عَبْدُ اللّٰهِ اِنَّمَا كَانَ هٰذَا لِاَنَّ قُرَيْشًا لَمَّا اسْتَعْصَوْا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا عَلَيْهِمْ بِسِنِيْنَ كَسِنِي يُوْسُفَ فَاَصَابَهُمْ قَحْطٌ وَّ جَهْدٌ حَتّٰى اَكَلُوا الْعِظَامَ فَجَعَلَ الرَّجُلُ يَنْظُرُ اِلَى السَّمَآءِ فَيَرٰى مَا بَيْنَهٗ وَ بَيْنَهَا كَهَيْئَةِ الدُّخَانِ مِنَ الْجُهْدِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ يَغْشَى النَّاسَ هٰذَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ قَالَ فَاُتِيَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اسْتَسْقِ اللّٰهَ لِمُضَرَ فَاِنَّهَا قَدْ هَلَكَتْ قَالَ لِمُضَرَ اِنَّكَ لَجَرِيْءٌ فَاسْتَسْقٰى فَسُقُوْا فَنَزَلَتْ اِنَّكُمْ عَائِدُوْنَ فَلَمَّا اَصَابَتْهُمُ الرَّفَاهِيَةُ عَادُوْا اِلٰى حَالِهِمْ حِيْنَ اَصَابَتْهُمُ الرَّفَاهِيَةُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى اِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ قَالَ يَعْنِيْ يَوْمَ بَدْرٍ.

صلي اللّٰه عليه وسلّم نافرماني او كړه' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے خلقو په حق كښې دَ يوسف عليه السلام دَ قحط سالي په شان بددُعا او كړه' نو هغه خلق قحط سالي او دَ لوږے تكليف كښې آخته شو' تردے چه هغے خلقو هډوكي خوړل شروع كړل. او حال دا شو' چه كوم سړي به آسمان طرف ته كتل' نو دَ هغهٔ او دَ آسمان مينځ كښې به دَ لوګي په شان په نظر راتلو (يعني پورته به ورته بس لوګے لوګے ښكاريدلو) نو اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل كړلو' تهٔ دَ هغے ورځے انتظار كوه' چه آسمان خركند لوګي سره راشي' په خلقو به خور شي. دا دردناک عذاب دے دَ راوي بيان دے' څوک سړے دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت كښې حاضر شو' او عرض ئے اوكه' يا رسول اللّٰه دَ اللّٰه نه دَ مضر په حق كښې دَ باران دُعا اوغواړے' ځكه چه هغوي تباه شو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' آيا دَ مضر په حق كښې' بيشكه تهٔ زړور ئے' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ باران دَ پاره دُعا اوكړله' نو باران اوشو لو' په دے دا آيت نازل شولو' چه: انكم عائدون: بيشكه تاسو واپس كيدونكي ئے. بيا چه په هغوي خوشحالي راغله' نو هغه خلق خپل ورمبني حالت ته اوګرځيدل' نو اللّٰه پاک دا آيت نازل كړلو: يوم نبطش البطشة الكبرىٰ انا منتقمون: دَ راوي بيان دے' دے نه مراد جنګ بدر دے.

**بـاب ۱۳۶۱: قَوْلِهٖ رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ اِنَّا مُؤْمِنُوْنَ.**

**باب ۱۳۶۱:** آيت: رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ اِنَّا مُؤْمِنُوْنَ: دَ اللّٰه تعالٰي قول' اے خمونږ پروردګاره مونږ نه عذاب لرے كړے' بيشكه مونږ ايمان راوړونكے يُو.

• ۱۸۰: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا

• ۱۸۰: يحيي. وكيع. اعمش. ابوالضحي.

وَكِيعٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ إِنَّ مِنَ الْعِلْمِ أَنْ تَقُوْلَ لِمَا لَا تَعْلَمُ اَللّٰهُ أَعْلَمُ إِنَّ اللّٰهَ قَالَ لِنَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ مَا أَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ إِنَّ قُرَيْشًا لَمَّا غَلَبُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَعْصَوْا عَلَيْهِ قَالَ اَللّٰهُمَّ أَعِنِّيْ عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوْسُفَ فَأَخَذَتْهُمْ سَنَةٌ أَكَلُوْا فِيْهَا الْعِظَامَ وَالْمَيْتَةَ مِنَ الْجُهْدِ حَتّٰى جَعَلَ أَحَدُهُمْ يَرٰى مَا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ السَّمَآءِ كَهَيْئَةِ الدُّخَانِ مِنَ الْجُوْعِ قَالُوْا رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُوْنَ ○ فَقِيْلَ لَهٗ إِنْ كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَادُوْا فَدَعَا رَبَّهٗ فَكَشَفَ عَنْهُمْ فَعَادُوْا فَانْتَقَمَ اللّٰهُ مِنْهُمْ يَوْمَ بَدْرٍ فَذٰلِكَ قَوْلُهٗ تَعَالٰى يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ إِلٰى قَوْلِهٖ جَلَّ ذِكْرُهٗ إِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ.

مسروق نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، زهٔ عبدالله له ورغلم، نو هغهٔ اووے ذ علم خبره داده، چه ذ كوم څيز متعلق تاته علم نهٔ وي، نو تهٔ اووايه، چه الله بنهٔ پوهيږي. الله خپل نبي صلي الله عليه وسلّم ته اوفرمائيل، تهٔ ورته اووايه، چه زهٔ تاسونه ذ څهٔ اجر سوال نه كوم، او نهٔ ذ خانه (خودساخته) خبرے كوم. قريشو چه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خبره اونهٔ منله. او سركشي ئے اوكړله، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، يا الله، ذ يوسف عليه السلام ذ قحط سالي په ذريعه ذ دوي خلاف څمونږ مدد اوكړے، نو هغه خلق قحط كښې گرفتار شو. او لوږے نه ئے هډوكي او مُردارے ئے خوړلے، تردے چه ذ لوږے په سبب به سړي ته ذ هغهٔ او آسمان مينځ كښې بس لوگے لوگے په نظر راتلو. هغے خلقو اووے. اے څمونږ پروردگاره څمونږ نه عذاب لرے كړے، بيشكه مونږ ايمان راوړنكے يو. ددے په جواب كښې اووئيلے شو، كه مونږ ذ دوي نه عذاب لرے كړو، نو دا خلق به بيا هغسے شي. حضور صلي الله عليه وسلّم خپل پروردگار نه دُعا اوغښتله، نو ذ هغوي نه عذاب لرے كړے شو. بيا هغه خلق په خپل زوړ حالت شو، نو الله تعالٰي ذ هغوي نه جنگ بدر كښې بدله واخسته. ذ الله قول "يوم تاتي السّماء بدخان مبين" نه دغه مراد دے.

**بَاب ۲ ۳۶: قَوْلِهٖ أَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى وَقَدْ جَآءَ هُمْ رَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ اَلذِّكْرُ وَالذِّكْرٰى وَاحِدٌ.**

**باب ۲ ۳۶:** آيت: أَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى وَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ: ذ الله تعالٰي قول، هغوي ذ پاره نصيحت كله مفيد دے، حالانكه هغوي ته رسول پرانستے بيان سره راغلے دے. "ذكر" او "ذكرىٰ" يو معني دي.

۱ ۱ ۸: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ

۱ ۱ ۸: سليمان بن حرب. جرير بن حازم.

حَرْبٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ ثُمَّ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا دَعَا قُرَيْشًا كَذَّبُوْهُ وَاسْتَعْصَوْا عَلَيْهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوْسُفَ فَاَصَابَتْهُمْ سَنَةٌ حَصَّتْ يَعْنِيْ كُلَّ شَيْءٍ حَتّٰى كَانُوْا يَأْكُلُوْنَ الْمَيْتَةَ فَكَانَ يَقُوْمُ اَحَدُهُمْ فَكَانَ يَرٰى بَيْنَهُ وَبَيْنَ السَّمَآءِ مِثْلَ الدُّخَانِ مِنَ الْجَهْدِ وَالْجُوْعِ ثُمَّ قَرَاَ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ يَغْشَى النَّاسَ هٰذَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ حَتّٰى بَلَغَ اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيْلًا اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ اَفَيُكْشَفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ قَالَ وَالْبَطْشَةُ الْكُبْرٰى يَوْمَ بَدْرٍ.

اعمش. ابو الضحي. مسروق نه روايت كوي. ذ هغهٔ بيان دے، زهٔ عبدالله له ورغلم نو هغهٔ اووے. نبي صلي الله چه ذ قريشو په حق كښې بددعا اوكړله (هغوي حضور صلي اللّٰه عليه وسلم دروغجن ګڼړلے وو، او ذ حضورؐ نافرماني ئے كړے وَه) نو حضورؐ اوفرمائيل، يا اللّٰه، د يوسف عليه السلام ذ قحط سالي په ذريعه ذ دے كافرو خلاف خمونږ مدد اوكړے، نو هغه خلق قحط سالي كښې آخته شو، او ټول څيزونه ختم شو، تردے چه هغوي مُردارے خوړلے، كه يو سړے به اودريدلو، نو ذ لوږے او تكليف په سبب به ذ هغه او آسمان په مينځ كښې بس لوګے لوګے په نظر راتلو. بيائے دا آيت اولوست: ذ هغې ورځے انتظار كوه چه اسمان څرګند لوګے ظاهر كړي. په خلقو به خور شي دا دردناک عذاب دے، تردے چه دے آيت ته راورسيدلو: بيشكه مونږ به څو ورځے د پاره عذاب لرے كړو، خو تاسو به بيا خپل زوړ حالت ته راوګرځئ. عبداللّٰه اووے، آيا د قيامت په ورځ به د هغوي نه عذاب لرے كړے شي. ا ر زنيلے چه د "بطشة الكبرىٰ" نه مراد يوم بدر دے.

بَابُ ۳۶۳: قَوْلِهٖ ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَ قَالُوْا مُعَلَّمٌ مَّجْنُوْنٌ.

باب ۳۶۳: آيت: ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَ قَالُوْا مُعَلَّمٌ مَجْنُوْنٌ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، دے خلقو دين نه مخ واړولو. او ونيلے، چه تعليم وركړے شوے ليونے دے.

۴۸۱۲: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ وَ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا

۴۸۱۲: بشر بن خالد محمد. شعبه. سليمان او منصور. ابوالضحي. مسروق نه روايت كوي عبداللّٰه اووے اللّٰه تعالٰي محمد صلّي اللّٰه عليه وسلّم مبعوث كړلو، او ونيلے، تهٔ ورته اووايه چه زهٔ ستاسو نه څهٔ اَجر نهٔ غواړم او نه ذ خانه خبرے جوړوم. رسول اللّٰه صلي اللّٰه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ قُلْ مَا اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ فَاِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا رَاٰى قُرَيْشًا اسْتَعْصَوْا عَلَيْهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوْسُفَ فَاَخَذَتْهُمُ السَّنَةُ حَتّٰى حَصَّتْ كُلَّ شَيْءٍ حَتّٰى اَكَلُوا الْعِظَامَ وَالْجُلُوْدَ فَقَالَ اَحَدُهُمْ حَتّٰى اَكَلُوا الْجُلُوْدَ وَالْمَيْتَةَ وَ جَعَلَ يَخْرُجُ مِنَ الْاَرْضِ كَهَيْئَةِ الدُّخَانِ فَاَتَاهُ اَبُوْسُفْيَانَ فَقَالَ اَيْ مُحَمَّدُ اِنَّ قَوْمَكَ قَدْ هَلَكُوْا فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّكْشِفَ عَنْهُمْ فَدَعَا ثُمَّ قَالَ تَعُوْدُوْا بَعْدَ هٰذَا فِيْ حَدِيْثِ مَنْصُوْرٍ ثُمَّ قَرَاَ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَاْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ اِلٰى عَآئِدُوْنَ اَفَيُكْشَفُ عَذَابُ الْاٰخِرَةِ فَقَدْ مَضَى الدُّخَانُ وَالْبَطْشَةُ وَاللِّزَامُ وَقَالَ اَحَدُهُمُ الْقَمَرُ وَ قَالَ الْاٰخَرُ الرُّوْمُ.

عليه وسلّم چه اوليدل، چه قريشو نافرماني او كړه، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ذَ يوسف عليه السلام ذَ قحط سالئ په ذريعه ذَ دے كافرو خلاف څمونږ مدد اوكړے، نو هغه خلق قحط سالي كښې كيوتل، تردے چه ټول څيزونه ختم شو، او نوبت دے ته اورسيد چه هډوكي او څرمنے خوړل ئے شروع كړل. هغوي نه يو سړي بيان اوكۀ، دے پورے، چه څرمنے او مردارے به ئے خوړلے. او ذَ زمكے نه لوګے شان ختل شروع شو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلم له ابوسفيان راغے، او عرض ئے اوكۀ، اے محمد (صلي اللّٰه عليه وسلّم) ستا قوم هلاك شولو. اللّٰه نه دُعا اوغواړه چه ذَ هغوي نه مصيبت لرے كړي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دُعا اوكړله. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دا خلق به بيا په خپل زوړ حالت شي. ذَ منصور حديث كښې، چه بيا عبداللّٰه بن مسعود آيت: فارتقب يوم تاتى السماء بدخان مبين. عائدون پورے تلاوت كۀ. آيا ذَ آخرت عذاب به لرے كړے شي. لوګے، بطشه (يوم بدر) لزام (ذَ بدر ذَ ورځے هلاكت) تير شولو. بعضو ذَ شق قمر تذكره اوكړه. او چا ذَ اهل روم فتح.

## بَاب ۳۶۴: قَوْلُهٗ يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى اِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ.

## باب ۳۶۴: آيت: يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى اِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ: ذَ اللّٰه تعالٰي قول، په كومه ورځ چه مونږ لوئے نيول اوكړو، بيشكه مونږ بدله اخستونكے يُو.

۳ ۸ ۱: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ خَمْسٌ قَدْ مَضَيْنَ اللِّزَامُ وَالرُّوْمُ وَالْبَطْشَةُ وَالْقَمَرُ

۳ ۸ ۱: يحيٰي. وكيع. اعمش. مسلم. مسروق. حضرت عبداللّٰه نه روايت كوي، هغۀ اووے، پنځه څيزونه تير شو، يعني لزام (هلاكت) ذَ اهل روم فتح، بطشه (ګرفت ذَ بدر ذَ ورځے) شق القمر (ذَ سپوږمئ

وَالدُّخَانُ.

چاودل) لوګي.

## سُوْرَةُ الْجَاثِيَةِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مُسْتَوْفِزِيْنَ عَلَى الرُّكَبِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ نَسْتَنْسِخُ نَكْتُبُ نَنْسَاكُمْ نَتْرُكُكُمْ.

**باب ٣٦٥: قَوْلِهِ وَمَا يُهْلِكُنَا اِلَّا الدَّهْرُ.**

٨١٤: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ يُؤْذِيْنِي ابْنُ اٰدَمَ يَسُبُّ الدَّهْرَ وَ اَنَا الدَّهْرُ بِيَدِيَ الْاَمْرُ اُقَلِّبُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ.

## دَ سورۀ جاثيه تفسير

بسم اللّه الرّحمٰن الرّحيم

"جاثيه" په ګنډو ناست. او مجاهد اووې. "نستنسخ" معني دي مونږ ليکو "ننساکم" مونږ به تاسو پريږدو، هير کړو.

**باب ٣٦٥: آيت: وَمَا يُهْلِكُنَا اِلَّا الدَّهْرُ: دَ اللّٰه تعالٰي قول، او مونږ زمانه هلاک کړي.**

٨١٤: حميدي. سفيان. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي فرمائي، ابن آدم ماته تکليف رسوي، زمانے ته کنځل کوي. حالانکه زمانه خو زۀ يم، ټول اُمور خما په قبضه قدرت کښې دي او زۀ شپے او ورځ له ګردش ورکوم.

## سُوْرَةُ الْاَحْقَافِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ تُفِيْضُوْنَ تَقُوْلُوْنَ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ اَثَرَةٍ وَّ اُثْرَةٍ وَّ اَثَارَةٍ بَقِيَّةُ عِلْمٍ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ لَسْتُ بِاَوَّلِ الرُّسُلِ وَ قَالَ غَيْرُهٗ اَرَءَ يْتُمْ هٰذِهِ الْاَلِفُ اِنَّمَا هِيَ تَوَعُّدٌ اِنْ صَحَّ مَا تَدَّعُوْنَ لَا يَسْتَحِقُّ اَنْ يُّعْبَدَ

## دَ سورۀ احقاف تفسير

بسم اللّه الرّحمٰن الرّحيم

او مجاهد اووے "تفيضون" په معني د "تقولون" (تاسو وائے) او بعضو اووے "اَثَرَةٍ" "اُثْرَة" او "اَثارَةٍ" نه مراد بقيه علم دے. او ابن عباسؓ اووے چه "ما کنت بدعا من الرُّسل" نه مراد دا دے، چه زۀ د ټولو نه وړمبے رسول نه يم، او نورو اووے، چه "ارأيتم" کښې همزه د استفهام وعيد په طور دے، يعني څۀ چه تاسو وائے، که هغه صحيح وي، نو هغه د عبادت کولو مستحق نۀ دے. او

وَ لَيسَ قَولُهُ أَرَءَيتُمْ بِرُؤْيَةِ الْعَيْنِ إِنَّمَا هُوَ أَتَعْلَمُونَ أَبَلَغَكُمْ أَنَّمَا تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ خَلَقُوا شَيئًا.

"ارايتم" نه ذ سترګے ليدل مقصود نهٔ دي، بلکه ذ دے نه مراد علم دے، يعني آيا تاسو پوهيږئ، آيا تاسو ته خبر راغلے دے چه ذ اللّٰه نه سيوا، چه تاسو څوک بلے، هغوي څهٔ څيز پيدا کړے دے.

## باب ٣٦٦: قَولِهِ وَالَّذِي قَالَ لِوَالِدَيْهِ أُفٍّ لَكُمَا أَتَعِدَانِنِي أَنْ أُخْرَجَ وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُونُ مِنْ قَبْلِي وَهُمَا يَسْتَغِيثَانِ اللّٰهَ وَيْلَكَ آمِنْ إِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَيَقُولُ مَا هٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ.

باب ٣٦٦: آيت: وَالَّذِي قَالَ لِوَالِدَيْهِ أُفٍّ لَكُمَا الخ: او چا چه خپل مور پلار ته اووے، ستاسو ذ پاره اُف دے، آيا تاسو ما ذ دے خبرے نه ويروئ چه زهٔ به دوباره راوبنکلے شم، حالانکه ځما نه مخکښ ډير قومونه تير شو. او هغوي ذ هغهٔ ذ دے کلماتو نه پناه غوښتله، آخر آيت پورے.

٨١٥: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ قَالَ كَانَ مَرْوَانُ عَلَى الْحِجَازِ اسْتَعْمَلَهُ مُعَاوِيَةُ فَخَطَبَ فَجَعَلَ يَذْكُرُ يَزِيدَ بْنَ مُعَاوِيَةَ لِكَيْ يُبَايَعَ لَهُ بَعْدَ أَبِيهِ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ شَيئًا فَقَالَ خُذُوهُ فَدَخَلَ بَيْتَ عَائِشَةَ فَلَمْ يَقْدِرُوا فَقَالَ مَرْوَانُ إِنَّ هٰذَا الَّذِي أَنْزَلَ اللّٰهُ فِيهِ وَالَّذِي قَالَ لِوَالِدَيْهِ أُفٍّ لَكُمَا أَتَعِدَانِنِي فَقَالَتْ عَائِشَةُ مِنْ وَّرَاءِ الْحِجَابِ مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ فِينَا شَيئًا مِنَ الْقُرْآنِ إِلَّا أَنَّ اللّٰهَ أَنْزَلَ عُذْرِي.

٨١٥: موسى بن اسمٰعيل. ابو عوانه. ابو بشر. يوسف بن مالک نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، مروان ذ حجاز حاکم وو، چه حضرت معاويةؓ مقرر کړے وو. هغهٔ خطبه اولوسته، نو ذ يزيد بن معاويه ذکر ئے شروع کهٔ، چه ذ پلار نه پس ذ هغهٔ بيعت اوکړے شي. نو عبدالرحمٰن بن ابي بكر هغهٔ ته څهٔ اووے، مروان اُوے چه راوے نيسئ. نو هغهٔ ذ بي بي عائشے کورته ننوتو هغوئ پرے قدرت بيانه موندلو نو مروان اووے، دا هغه سړے دے، چه ذ هغهٔ باره کښ اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل کړلو: والّذى قال لوالديه اف لكما الخ: نو بي بي عائشےؓ ذ پردے ذ شا، نه جواب ورکړلو، چه اللّٰه تعالٰي ځمونږ متعلق هيڅ آيت نهٔ دے نازل کړے، بغير ذ دے نه چه اللّٰه تعالٰي ځما ذ برأت (بري كيدو) په حقله آيتونه نازل کړے دي.

## باب ٣٦٧: قَولِهِ فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوا هٰذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ

باب ٣٦٧: آيت: فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوا هٰذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهِ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ

بِهِ رِيْحٌ فِيْهَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَارِضٌ السَّحَابُ.

اَلِيْمٌ: ابن عباسؓ اووے چه "عارض" نه مراد وريځ ده.

۸۱۲: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنَا عَمْرٌو اَنَّ اَبَا النَّضْرِ حَدَّثَهُ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ مَارَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَاحِكًا حَتّٰى اَرٰى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ اِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ قَالَتْ وَكَانَ اِذَا رَاٰى غَيْمًا اَوْ رِيْحًا عُرِفَ فِيْ وَجْهِهِ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ النَّاسَ اِذَا رَاَوُا الْغَيْمَ فَرِحُوْا رِجَاءَ اَنْ يَكُوْنَ فِيْهِ الْمَطَرُ وَاَرَاكَ اِذَا رَاَيْتَهُ عُرِفَ فِيْ وَجْهِكَ الْكَرَاهِيَةُ فَقَالَ يَا عَائِشَةُ مَا يُؤْمِنِّيْ اَنْ يَكُوْنَ فِيْهِ عَذَابٌ عُذِّبَ قَوْمٌ بِالرِّيْحِ وَقَدْ رَاٰى قَوْمٌ الْعَذَابَ فَقَالُوْا هٰذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا.

۸۱۲: احمد. ابن وهب. عمرو. ابوالنضر. سليمان بن يسار بي بي عائشےؓ ذ نبي صلي الله عليه وسلّم تبر نه روايت كوي، هغے اووے، ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم په داسے خندا نه دے نيدلے، چه هغے سره حلق بنكاره شي، حضور صلي الله عليه وسلّم به صرف مُسكے كيدلو، د بي بي عائشےؓ بيان دے. كله چه به حضور صلي الله عليه وسلّم هوا، يا وريځ اوليده، نو ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ مخ مبارك نه به فكر ظاهريدلو، هغے عرض اوكه، يا رسول الله، خلق چه وريځ اوويني، نو په دے اُميد خوشحاله شي، چه شايد دے كښ باران وي او زه تاسو وينم، چه ستاسو د مخ مبارك نه ذ ناگواري آثار بنكاره كيږي. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، ماته د دے خبرے نه اطمينان نهٔ وي كه دے كښ عذاب وي، كوم څيز ما، دے كښ د عذاب ذ طرف نه مطمئن كولے شي. يو قوم ته ذ هوا (سيلي) په ذريعه عذاب وركړے شو. يو جماعت عذاب اوليدلو، او وئيل ئے، چه دا، وريځ ده، چه په مونږ به باران اُوورَوي.

## اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا

## ذ سُورهٔ محمد صلي الله عليه وسلّم تفسير (اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَوْزَارَهَا اٰثَامَهَا حَتّٰى لَا يَبْقٰى اِلَّا مُسْلِمٌ عَرَّفَهَا بَيَّنَهَا وَقَالَ مُجَاهِدٌ مَوْلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

"اوزارها" ذ هغوي گناه دے پورے، تردے چه سوا ذ مسلم نه به هيڅوك باقي پاتے نشي. "عرفها" دا ئے بيان كړے دے. او مجاهد اووے چه "مولى الذين امنوا"

وَلِيُّهُمْ عَزَمَ الْاَمْرُ جَدَّ الْاَمْرُ فَلَا تَهِنُوْا لَا تَضْعُفُوْا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَضْغَانَهُمْ حَسَدَهُمْ اٰسِنٍ مُتَغَيِّرٍ.

نه مراد د هغوى ولي دے. "عزم الامر" بخے ارادے واله. "فلا تهنوا" تاسو كمزور او سست كيږئ مه. او ابن عباسؓ اووے "اضغانهم" نه مراد د هغوي حسد دے. "آسن" په معني د بد ليدونكي.

## باب ۳۶۸: قَوْلِهٖ وَ تُقَطِّعُوْا اَرْحَامَكُمْ.

باب ۳۶۸: آيت: و تقطعوا ارحامكم: د الله تعالي قول، او تاسو خپلے رشتے پريكړے.

۸۱۷: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَعَاوِيَةُ بْنُ اَبِيْ مُزَرِّدٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَلَقَ اللّٰهُ الْخَلْقَ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهُ قَامَتِ الرَّحِمُ فَاَخَذَتْ بِحَقْوِ الرَّحْمٰنِ فَقَالَ لَهٗ مَهْ قَالَتْ هٰذَا مَقَامُ الْعَائِذِ بِكَ مِنَ الْقَطِيْعَةِ قَالَ اَلَا تَرْضَيْنَ اَنْ اَصِلَ مَنْ وَصَلَكِ وَ اَقْطَعَ مَنْ قَطَعَكِ قَالَتْ بَلٰى يَا رَبِّ قَالَ فَذَاكِ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَؓ اِقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ فَهَلْ عَسَيْتُمْ اِنْ تَوَلَّيْتُمْ اَنْ تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ وَ تُقَطِّعُوْا اَرْحَامَكُمْ.

۸۱۷: خالد بن مخلد. سليمان. معاويه بن ابي مزرد. سعيد بن يسار. ابوهريرهؓ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، الله تعالي مخلوق پيدا كړلو، چه دے نه فارغ شو، نو رحم اودريدلو، او د الله تعالي لمن ئے اونيوله. الله تعالي ورته اوفرمائيل صبر شه. هغه اووے، آيا دا د دے مقام دے، چه ما پريكړي او ستا پناه كښې راشي. الله تعالي اوفرمائيل، آيا ته په دے خبره راضي نه ئے، چه زۀ هغے چاسره يوځائے شم، چه تاسره جوړ راولي، او د هغے چانه جدا شم، چه تاسره شلاؤن اوكړي. هغه (رحم) عرض اوكه. او، پروردګاره، ولے نه. الله تعالي ورته اوفرمائيل، تاسره به داسے كيږي. ابوهريرهؓ اووے، كه تاسو غواړئ، نو دا آيت اولولئ: فهل عسيتم ان توليتم ان تفسدوا في الارض و تقطعوا ارحامكم.

**ف**: رحم: رشته داري.

۸۱۸: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمِّيْ اَبُو الْحَبَابِ سَعِيْدُ بْنُ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ بِهٰذَا ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۸۱۸: ابراهيم بن حمزه. حاتم. معاويه. ابوالحباب. سعيد بن يسار. حضرت ابوهريرهؓ نه دا حديث روايت كوي، هغے كښې دا مذكور دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، كه تاسو غواړئ، نو دا آيت اولولئ: فهل عسيتم:

اقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ فَهَلْ عَسَيْتُمْ.

۸۱۹: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ اَبِي الْمُزَرِّدِ بِهٰذَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ فَهَلْ عَسَيْتُمْ.

آخر پورے.

۸۱۹: بشر بن محمد. عبدالله. معاويه بن ابي المزرد نه دا حديث روايت كوي: رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: كه تاسو غواړئ، نو آيت: فهل عسيتم: آخر پورے اولولئے.

# سُوْرَةُ الْفَتْحِ

# دَ سُورهٔ فتح تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ مُجَاهِدٌ بُوْرًا هَالِكِيْنَ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمُ السَّحْنَةَ وَ قَالَ مَنْصُوْرٌ عَنْ مُجَاهِدٍ التَّوَاضُعَ شَطْأَهُ فِرَاخَهُ فَاسْتَغْلَظَ سُوْقِهِ السَّاقُ حَامِلَةُ الشَّجَرِ وَ يُقَالُ دَآئِرَةُ السَّوْءِ كَقَوْلِكَ رَجُلُ السَّوْءِ وَ دَائِرَةُ السَّوْءِ الْعَذَابُ تُعَزِّرُوْهُ تَنْصُرُوْهُ شَطْأَهُ شَطْأُ السُّنْبُلِ تُنْبِتُ الْحَبَّةُ عَشْرًا اَوْ ثَمَانِيًا وَ سَبْعًا فَيَقْوٰى بَعْضُهُ بِبَعْضٍ فَذَاكَ قَوْلُهُ تَعَالٰى فَآزَرَهُ قَوَّاهُ وَلَوْ كَانَتْ وَاحِدَةً لَمْ تَقُمْ عَلٰى سَاقٍ وَهُوَ مَثَلٌ ضَرَبَ اللّٰهُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ خَرَجَ وَحْدَهُ ثُمَّ قَوَّاهُ بِاَصْحَابِهِ كَمَا قَوَّى الْحَبَّةَ بِمَا يَنْبُتُ مِنْهَا.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

او مجاهد اوويے: چه "سيماهم في وجوههم" كښې "سيما" نه مراد دَ مخ نرمي او هيئت دے. او منصور په واسطه دَ مجاهد نقل كړے دے، چه د دے نه مراد تواضع ده. "شطاه" خپله تيغه "فاستغلظ" غټه شوه. "سوق" دَ ساق جمع يعني بناخ، چه اونه اوچتونكے وي. او "دائرة السوء" د "رجل السوء" په شان دے. يعني خراب گردش. "دائرة السوء" نه مراد عذاب دے. "تعزروه" تاسو دَ هغهٔ مدد كوئے. "شطاه" وږے چه يوے دانے نه لس، اته يا اوه وږي كيږي، چه يو بل ته تقويت رسوي. دَ الله تعالي دَ دے قول نه دا مراد دے، چه "آزره" يعني هغے ته ئے تقويت اورسوو. او كه هغه يو، وے نو په شاخ به قائم نه شو پاتے كيدے. د الله د نبي صلي الله عليه وسلم دَ پاره دَ مثال په طور بيان فرمائيلے دے، ځكه چه حضور صلي الله عليه وسلم يوازے اووتلو، بيا دَ اصحابو په ذريعه ورته تقويت اورسيدلو، څنګه چه يوے دانے ته دَ دے په ذريعه قوت رسوي، چه دَ دے نه تو كيږي.

باب ۳٦۹: قَوْلِهِ اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ

باب ۳٦۹: آيت: اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا: دَ

فَتْحًا مُّبِيْنًا.

۸۲۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسِيْرُ فِيْ بَعْضِ أَسْفَارِهِ وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَسِيْرُ مَعَهُ لَيْلًا فَسَأَلَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَنْ شَيْءٍ فَلَمْ يُجِبْهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ سَأَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ ثُمَّ سَأَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ثَكِلَتْكَ أُمُّ عُمَرَ نَزَرْتَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ كُلُّ ذٰلِكَ لَا يُجِيْبُكَ قَالَ عُمَرُ فَحَرَّكْتُ بَعِيْرِيْ ثُمَّ تَقَدَّمْتُ أَمَامَ النَّاسِ وَخَشِيْتُ أَنْ يُنْزَلَ فِيَّ الْقُرْآنُ فَمَا نَشِبْتُ أَنْ سَمِعْتُ صَارِخًا يَصْرُخُ بِيْ فَقُلْتُ لَقَدْ خَشِيْتُ أَنْ يَكُوْنَ نَزَلَ فِيَّ قُرْآنٌ فَجِئْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ لَقَدْ أُنْزِلَتْ عَلَيَّ اللَّيْلَةَ سُوْرَةٌ لَهِيَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَرَأَ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا.

۸۲۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا

الله صلي قول "موږ تاله ښکاره فتحه در کړې".

۸۲۰: عبدالله بن مسلمه. زيد بن اسلم. ذ هغه پلار نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم يو سفر کښې روان وو، او حضرت عمر بن خطاب هم ورسره وو. ذ شپے وخت وو، حضرت عمرؓ بن خطاب ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه ذ څه څيز متعلق تپوس اوکړ، رسول الله صلي الله عليه وسلم جواب ورنه کړلو. عمرؓ اووے، ذ عمرؓ مور دې ذ اولاد نه محرومه شي، تا ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه درے ځله تپوس اوکړ، حضور صلي الله عليه وسلم ستا ذ خبرے جواب اونه کړ. ذ حضرت عمرؓ بيان دے، ما خپل اوښ روان کړو، او ذ خلقو نه مخکښې شوم. او ما سره انديښنه شوه، چه چرته خما متعلق ذ قرآن څۀ آيت نازل نشي، اوس لا لږ ساعت هم نۀ وو تير شوے، چه ما ذ يو آواز کونکي آواز واوريدلو، ماته ئے آواز کولو. ماسره ويره شوه، چرته خما متعلق قرآن نازل شوے نۀ وي. زۀ ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شوم، ما حضورؐ ته سلام اوکړ، حضورؐ اوفرمائيل نن شپه په ما يو سورت نازل شو، چه ماته ذ هغے ټولو څيزونو نه محبوب دے، چه په هغے نمر راخيژي. بيا حضورؐ آيت: انا فتحنا لک الخ: اولوست.

۸۲۱: محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، هغۀ اووے، انا فتحنا لک فتحا مبينا: نه مراد

مُبِهِمًا قَالَ الْحُدَيْبِيَّةُ.

صلح حديبيه ده.

۸۲۲: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرٰهِيمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ قُرَّةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ قَرَءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ سُوْرَةَ الْفَتْحِ فَرَجَّعَ فِيْهَا قَالَ مُعَاوِيَةُ لَوْ شِئْتُ اَنْ اَحْكِيَ لَكُمْ قِرَآءَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَفَعَلْتُ.

۸۲۲: مسلم بن ابراهيم. شعبه. معاويه بن قره. عبدالله بن مغفل نه روايت كوي. ذ هغه بيان دے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ مكے ذ فتح په ورځ سورة فتح اولوست، او خوش آوازي سره ئے اولوست. ذ معاويه بيان دے، كه تاسو غواړئے، نو زۀ به تاسو ته ذ حضورﷺ ذ قرات په شان واوروم.

باب ۳۷۰: قَوْلِهٖ لِيَغْفِرَ لَكَ اللّٰهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَاَخَّرَ وَ يُتِمَّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكَ وَ يَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا.

باب ۳۷۰: آيت: لِيَغْفِرَ لَكَ اللّٰهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَاَخَّرَ الخ: ذ اللّٰه تعالٰي قول، چه اللّٰه تعالٰي ستا راتلونكي او ورستني گناه اوبښي، او خپل نعمت په تا پوره كړي، او تاته ذ نيغے لارے هدايت اوكړي.

۸۲۳: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا زِيَادٌ اَنَّهٗ سَمِعَ الْمُغِيْرَةَ يَقُوْلُ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى تَوَرَّمَتْ قَدَمَاهُ فَقِيْلَ لَهٗ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَاَخَّرَ قَالَ اَفَلَا اَكُوْنَ عَبْدًا شَكُوْرًا.

۸۲۳: صدقه بن فضل. ابن عيينه. زياد. مغيره نه روايت كوي، ذ هغه نه ئے بيان واوريدلو، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم به ذ شپے دومره قيام كولو، چه دواړه پښے به ئے اوپړسيدے. چا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته اووے، اللّٰه تعالٰي ستاسو مخكښ ورستو گناهونه معاف كړے دي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل ايا زۀ دے شكر گزار بنده جوړ نشم (يعني هر كله چه ستاسو گناهونه معاف دي نو بيا دومره زيات عبادت ولے كوئے) حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، چه گناهونه راته معاف دي، نو بيا خو ماله زيات شكر گزار يعني عبادت گزار كيدل په كار دي).

۸۲۴: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَحْيٰى

۸۲۴: حسن بن عبدالعزيز. عبدالله بن يحيٰي. حيوة. ابوالاسود. عروه بي بي عائشےؓ نه روايت كوي،

اَخْبَرَنَا حَيْوَةُ عَنْ اَبِي الْاَسْوَدِ سَمِعَ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْمُ مِنَ اللَّيْلِ حَتّٰى تَتَفَطَّرَ قَدَمَاهُ فَقَالَتْ عَائِشَةُ لِمَ تَصْنَعُ هٰذَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَقَدْ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَاَخَّرَ قَالَ اَفَلَا اُحِبُّ اَنْ اَكُوْنَ عَبْدًا شَكُوْرًا فَلَمَّا كَثُرَ لَحْمُهُ صَلّٰى جَالِسًا فَاِذَا اَرَادَ اَنْ يَّرْكَعَ قَامَ فَقَرَاَ ثُمَّ رَكَعَ.

حضور صلي الله عليه وسلم به د شپې دومره (عبادت د پاره) اودریدلو چه پښنې مبارکې به ئې وچاؤدې. بي بي عائشې ورته عرض اوکړ، یا رسول الله، تاسو دومره تکلیف ولې کوئې، حالانکه الله تعالی ستاسو مخکني او ورستني ګناهونه معاف کړې دي. حضور ورته اوفرمائیل، آیا زۀ دې دا خوښه نه کړم، چه شکر ګزار بنده دې جوړ شم. بیا چه د حضور جسم کښې غوښه زیاته شوه، نو حضور به (د شپې) په ناسته مونځ کولو. او د رکوع اراده چه به ئې کوله، نو په ولاړه به ئې څۀ قدرې قرأت کولو. بیا به ئې رکوع کوله.

**باب ۱۳۷۱: قَوْلِهٖ اِنَّا اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّ مُبَشِّرًا وَّ نَذِيْرًا.**

**باب ۱۳۷۱:** آیت: اِنَّا اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّ مُبَشِّرًا وَ نَذِيْرًا: د الله تعالى قول، بیشکه مونږ تۀ شاهد، مبشر او نذیر لیږلې ئې.

**۸۲۵:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ هِلَالِ بْنِ اَبِيْ هِلَالٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ اَنَّ هٰذِهِ الْاٰيَةَ الَّتِيْ فِي الْقُرْاٰنِ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّا اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّ مُبَشِّرًا وَّ نَذِيْرًا قَالَ فِي التَّوْرٰىةِ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّا اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّ مُبَشِّرًا وَّ حِرْزًا لِّلْاُمِّيِّيْنَ اَنْتَ عَبْدِيْ وَ رَسُوْلِيْ سَمَّيْتُكَ الْمُتَوَكِّلَ لَيْسَ بِفَظٍّ وَّلَا غَلِيْظٍ وَّلَا سَخَّابٍ بِالْاَسْوَاقِ وَلَا يَدْفَعُ السَّيِّئَةَ بِالسَّيِّئَةِ وَلٰكِنْ يَّعْفُوْ وَ يَصْفَحُ وَلَنْ يَّقْبِضَهُ اللّٰهُ حَتّٰى يُقِيْمَ بِهِ

**۸۲۵:** عبدالله. عبدالعزيز بن ابي سلمه. هلال بن ابي هلال. عطاء بن یسار. عبدالله بن عمرو بن عاص نه روایت کوي، دا آیت چه قرآن کښې دې: یا ایها النبی انا ارسلنک شاهدا و مبشرا و نذیرا: تورات کښې داسې دې، چه اې نبي مونږ ته ګواهي او خوشخبري ورکونکې لیږلې ئې. او د امیانو د پناه ځائې مو لیږلې، تۀ زما بنده ئې او زما رسول ئې. ما ستا نوم متوکل ایښې دې. هغه به نۀ سخت خو او سخت قلب وي، او نۀ به بازارونو کښې شور کونکې وي، او نۀ به بدي بدئ سره دفع کوي، بلکه معافي او درګزر به کوي. او الله تعالی به هغه د هغه وخته پورې نۀ آخلي څو پورې چه د دین کوږ والې هغه نېغ نۀ کړي، په دا

الْمِلَّةَ الْعَوْجَآءَ بِاَنْ يَّقُوْلُوْا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَيَفْتَحُ بِهَا اَعْيُنًا عُمْيًا وَّ اٰذَانًا صُمًّا وَّقُلُوْبًا غُلْفًا.

شان چه خلق اوواني: چه د الله نه سوا بل معبود نشته، او د هغه په ذريعه به ړندې سترګې، کاڼه غوږونه او غلاف کښې پټ زړونه پرانزي.

باب ۳۷۲: قَوْلِهٖ هُوَ الَّذِیْ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ.

باب ۳۷۲: آيت: هُوَ الَّذِیْ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ: د الله تعالىٰ قول، هغه دے چا چه سکينه نازله کړه.

۸۲٦: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَائِيْلَ عَنْ اَبِیْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ وَ فَرَسٌ لَهٗ مَرْبُوْطٌ فِی الدَّارِ فَجَعَلَ يَنْفِرُ فَخَرَجَ الرَّجُلُ فَنَظَرَ فَلَمْ يَرَ شَيْئًا وَ جَعَلَ يَنْفِرُ فَلَمَّا اَصْبَحَ ذَكَرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ تِلْكَ السَّكِيْنَةُ تَنَزَّلَتْ بِالْقُرْاٰنِ.

۸۲٦: عبيدالله بن موسیٰ. اسرائيل. ابو اسحاق. براء نه روايت کوي، يو خل د رسول الله صلي الله عليه وسلم يو صحابي قرات کولو. او د هغه اس کور کښې تړلے وو، چه هغه په تيښته شو، بهر ته چه اووتلو، نو هيڅ ورته په نظر رانغلو. هغه اس په ټوپونو وو. کوم وخت چه سحر شو، نو دا واقعه ئے نبي عليه السلام ته بيانه کړه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، دا هغه سکينه ده، چه د قرأت په وخت نازليږي[۱].

۱. د دے متعلق د عالمانو مختلف اقوال نقل شوي دي. امام نووي رحمة الله عليه فرمائيلي دي چه مختار قول دا دے چه دا په مخلوقاتو کښے څه څيز دے کوم کښے چه طمانيت او رحمت وي او همدے سره ملائکے هم وي. دا آيت د صلح حديبيے په موقع باندے نازل شوے وو او د مسلمانانو صبر او ثبات او دهغوئ طمانيت پکښې بيان کړے شوے دے.

باب ۳۷۳: قَوْلِهٖ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ.

باب ۳۷۳: آيت: اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ: د الله تعالىٰ قول، هغه وخت راياد کړه، چه خلقو درنه د اونے لاندے بيعت کولو.

۸۲۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ اَلْفًا وَّ اَرْبَعَ مِائَةٍ.

۸۲۷: قتيبه بن سعيد. سفيان. عمرو. حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت کوي، د هغه بيان دے، مونږ خلق د صلح حديبيه په ورځ يو زر څلور سوه سړي وو.

۸۲۸: حَدَّثَنَا عَلِیُّ بْنُ عَبْدِ

۸۲۸: علي بن عبدالله. شبابه. شعبه. قتاده.

اللّٰـهِ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ صُهْبَانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ مُغَفَّلٍ الْمُزَنِيِّ اِنِّيْ مِمَّنْ شَهِدَ الشَّجَرَةَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَذْفِ وَ عَنْ عُقْبَةَ بْنَ صُهْبَانٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ الْمُغَفَّلِ الْمُزَنِيِّ فِى الْبَوْلِ فِي الْمُغْتَسَلِ.

عقبه بن صهبان. عبداللّٰـه بن مُغفل مزني نه روايت کوي ذ هغه بيان دے' زۀ هغے خلقو کښې ووم چه بيعت رضوان کښې شريک وو. نبي صلي اللّٰـه عليه وسلّم ذ کټکي ويشتلو نه منع فرمائيلے وه. او عقبه بن صهبان نه منقول دي' ذ هغۀ بيان دے. ما ذ عبداللّٰـه بن مُغفل مزني نه واوريدل چه ذ غسل کولو په خائے کښې ذ ورو بَولو کولو نه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم منع فرمائيلے ده.

ف: کوم خائے کښې چه واره بَول کول ښۀ نۀ وي' هلته لوئے بول کول خو يقينًا ښه نه وي.

۸۲۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ اَبِىْ قِلَابَةَ عَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَاكِ وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ الشَّجَرَةِ.

۸۲۹: محمد بن وليد. محمد بن جعفر. شعبه. خالد. ابو قلابه. ثابت بن ضحاک نه روايت کوي' چه هغه بيعت رضوان کښې ذ شريکو نه وو.

۸۳۰: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اِسْحٰقَ السُّلَمِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ سِيَاهٍ عَنْ حَبِيْبِ بْنِ اَبِيْ ثَابِتٍ قَالَ اَتَيْتُ اَبَا وَآئِلٍ اَسْأَلُهُ فَقَالَ كُنَّا بِصِفِّيْنَ فَقَالَ رَجُلٌ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يُدْعَوْنَ اِلٰى كِتَابِ اللّٰـهِ فَقَالَ عَلِيٌّ نَعَمْ فَقَالَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ اتَّهِمُوْا اَنْفُسَكُمْ فَلَقَدْ رَاَيْتُنَا يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ يَعْنِي الصُّلْحَ الَّذِيْ كَانَ بَيْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ نَرٰى قِتَالًا لَقَاتَلْنَا

۸۳۰: احمد بن اسحاق سلمي. ليلٰي. عبدالعزيز بن سياه. حبيب بن ثابت نه روايت کوي' ذ هغۀ بيان دے' زۀ ابو وائل نه خۀ پښتنے ذ پاره راغلے ووم' نو هغۀ اووے' مونږ جنګ صفين کښې شريک وو' نو يو سري اووے' آيا تاسو هغے خلقوته نۀ ګورئے چه ذ اللّٰه کتاب پلـه بللے شي' نو حضرت عليؓ اوفرمائيل' او سهل بن حنيف اووے' تاسو خپل خان متهم کړئے (يعني ذ جنګ رائے مناسب نۀ ده) مونږ د حديبيے ذ صلح په ورځ اوليدل' چه ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم او مشرکينو په مينځ کښې اوشوه که مونږ خلقو دا جنګ ليدلے وے' نو ضرور بـه جنګيدلے وے' نـو حضرت عمرؓ راغے' او عرض ئے اوکۀ' آيا مونږ خلق په حقه نۀ يُو' او هغه خلق

فَجَآءَ عُمَرُ فَقَالَ أَلَسْنَا عَلَى الْحَقِّ وَهُمْ عَلَى الْبَاطِلِ أَلَيْسَ قَتْلَانَا فِي الْجَنَّةِ وَقَتْلَاهُمْ فِي النَّارِ قَالَ بَلٰى قَالَ فَفِيمَ أُعْطِي الدَّنِيَّةَ فِي دِينِنَا وَنَرْجِعُ وَلَمَّا يَحْكُمِ اللّٰهُ بَيْنَنَا فَقَالَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ إِنِّي رَسُولُ اللّٰهِ وَلَنْ يُضَيِّعَنِي اللّٰهُ أَبَدًا فَرَجَعَ مُتَغَيِّظًا فَلَمْ يَصْبِرْ حَتّٰى جَآءَ أَبَا بَكْرٍ فَقَالَ يَا أَبَا بَكْرٍ أَلَسْنَا عَلَى الْحَقِّ وَهُمْ عَلَى الْبَاطِلِ قَالَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ إِنَّهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَنْ يُضَيِّعَهُ اللّٰهُ أَبَدًا وَنَزَلَتْ سُورَةُ الْفَتْحِ.

په باطل نه دي؟ آيا زمونږ مقتولان جنت ته او د هغوي مقتولان به دوزخ ته نه ځي. حضورؐ اوفرمائيل، او. حضرت عمرؓ عرض اوکړ، نو بيا ولې مونږ دے خپل دين کښې ذلت راولو. او راغلي مسلمانان دے واپس کړو، حالانکه الله تعالىٰ زمونږ مينځ کښې (د دے قسم د صلح) حکم نه دے فرمائيلے، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل اے ابن خطاب، زه د الله رسول يم، او الله به ما هيڅ کله ضائع نه کړي. عمرؓ د غصے په حالت کښې واپس شو، او هغه صبر نه شو حتي چه ابوبکرؓ له ورغے، ورته ئے اووے، اے ابوبکرهٔ، مونږ په حقه او مشرکان په باطله نه دي. حضرت ابوبکرؓ ورته اووے، اے ابن خطاب، هغه د الله رسول دے، او الله به هغه هيڅ کله ضائع نه کړي، نو سُوره فتح نازل شولو.

## سورة الحجرات

## دَ سورهٔ حجرات تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ لَا تُقَدِّمُوا لَا تَفْتَاتُوا عَلٰى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى يَقْضِيَ اللّٰهُ عَلٰى لِسَانِهِ امْتَحَنَ أَخْلَصَ تَنَابَزُوا يُدْعٰى بِالْكُفْرِ بَعْدَ الْإِسْلَامِ يَلِتْكُمْ يَنْقُصْكُمْ أَلَتْنَا نَقَصْنَا.

او مجاهد اووے "لا تقدموا" نه مراد دا دے چه فتوي يا جواب کښې په رسول الله صلي الله عليه وسلّم سبقت مه کوئے، څو پورے چه الله تعالىٰ د خپل رسول په ژبه اونه وائي. "امتحن" خالص کړے دے "تنابزوا" د اسلام راوړلونه پس کافر مه وائے "يلتكم" كم كړي. "التنا" مونږ كم كړلو.

**باب ۳۷۴:** قَوْلِهِ لَا تَرْفَعُوْا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ الْآيَةَ تَشْعُرُوْنَ تَعْلَمُوْنَ وَمِنْهُ الشَّاعِرُ.

**باب ۳۷۴:** ايت: لَا تَرْفَعُوْا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ الخ: د الله تعالىٰ قول، خپل آوازونه د نبيؐ د آواز نه مه اوچتوے الخ. "تشعرون" په معني د "تعلمون" (تاسو پوهيږے) او شاعر دے نه ماخوذ دے.

ف: "شاعر" د "تشعرون" نه ماخوذ دے۔

۱۸۳۱: حَدَّثَنَا يَسَرَةُ بْنُ صَفْوَانَ بْنِ جَمِيلٍ اللَّخْمِيُّ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ كَادَ الْخَيِّرَانِ أَنْ يَهْلِكَا أَبَا بَكْرٍ وَّ عُمَرَ رَفَعَا أَصْوَاتَهُمَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَدِمَ عَلَيْهِ رَكْبُ بَنِي تَمِيمٍ فَأَشَارَ أَحَدُهُمَا بِالْأَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ أَخِي بَنِي مُجَاشِعٍ وَّ أَشَارَ الْآخَرُ بِرَجُلٍ آخَرَ قَالَ نَافِعٌ لَا أَحْفَظُ اسْمَهُ فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ لِعُمَرَ مَا أَرَدْتَ إِلَّا خِلَافِي قَالَ مَا أَرَدْتُ خِلَافَكَ فَارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا فِي ذٰلِكَ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمُ الْآيَةَ قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ فَمَا كَانَ عُمَرُ يُسْمِعُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ هٰذِهِ الْآيَةِ حَتّٰى يَسْتَفْهِمَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ ذٰلِكَ عَنْ أَبِيهِ يَعْنِي أَبَا بَكْرٍ.

۱۸۳۱: یسره بن صفوان بن جمیل لخمي. نافع بن عمر. ابن ابي ملکه نه روایت کوي. د هغهٔ بیان دے، چه دوه ذ ښولونه بهتر سړي قریب وو، چه هلاک شي، یعني حضرت ابوبکرؓ او حضرت عمرؓ خپل آوازونه د نبي صلي الله علیه وسلّم په مخکښ اوچت کړل، کوم وخت چه حضور صلي الله علیه وسلّم له ذ بني تمیم سوارهٔ راغلل، نو هغوي کښ یو د اقرع بن حابس د مشرکولو مشوره ورکړه او بل کس بل سړي باره کښے رائے ورکړه. نافع اووے، ماته د هغهٔ نوم یاد نهٔ دے. حضرت ابوبکرؓ، حضرت عمرؓ ته اووے، تا صرف څما ذ مخالفت قصد کړے وو هغهٔ اووے، څما اراده ستا ذ مخالفت نهٔ وه. دے خبرو اترو کښ آوازونه اوچت شو. نو الله پاک دا آیت نازل کړلو: اے ایمان والو، خپل آوازونه مهٔ اوچتوئے الخ: ابن زبیر اووے. د دے ایت د نازلیدونه پس حضرت عمرؓ به نبي صلي الله علیه وسلّم سره دومره رو خبرے کولے، چه څو به حضور صلي الله علیه وسلّم دوباره تپوس نه وو کړے، نو آوریدے به نه شو، او دا خبره ئے د حضرت ابوبکرؓ متعلق نه ده بیان کړے.

۱۸۳۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ سَعْدٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ قَالَ أَنْبَأَنِي مُوسَى بْنُ أَنَسٍ عَنْ أَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَقَدَ ثَابِتَ ابْنَ قَيْسٍ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَنَا أَعْلَمُ لَكَ عِلْمَهُ فَأَتَاهُ فَوَجَدَهُ جَالِسًا

۱۸۳۲: علي بن عبدالله. ازهر بن سعد. ابن عون. موسٰی بن انس. حضرت انس بن مالکؓ نه روایت کوي، یو ځل نبي صلي الله علیه وسلّم، ثابت بن قیس اونه لیدلوﷺ، نو (ذ حضور صلي الله علیه وسلّم په دریافت) یو سړي اووے، زهٔ ذ هغه خبر راوړم، هغه سړے ورغے، نو هغه ئے داسے حال کښ بیامند، چه خپل کور کښ سر ښکته کړے ناست وو،

فِيْ بَيْتِهٖ مُنَكِّسًا رَأْسَهٗ فَقَالَ لَهٗ مَا شَأْنُكَ فَقَالَ شَرٌّ كَانَ يَرْفَعُ صَوْتَهٗ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهٗ فَهُوَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَاَتَى الرَّجُلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ قَالَ كَذَا وَ كَذَا فَقَالَ مُوْسٰى فَرَجَعَ اِلَيْهِ الْمَرَّةَ الْاٰخِرَةَ بِبِشَارَةٍ عَظِيْمَةٍ فَقَالَ اذْهَبْ اِلَيْهِ فَقُلْ لَهٗ اِنَّكَ لَسْتَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ وَلٰكِنَّكَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ.

تپوس ئې تـرې اوکـه ستا څـهٔ حال دې' ونيلې ډېر خراب حال م دې' ذ نبي صلـي اللّٰه عليه وسلّم ذ آواز نه ئې خپل آواز اوچتـولـو' ذ هغهٔ ټول اعمال تباه شو' او دوزخي دې' هغـه سړې ذ حضور صلي اللّٰـه عليـه وسـلّـم خـدمـت كښې واپـس راغـې. او بيـان ئې اوکـهٔ' چـه هغـه داسـې داسـې ونيـلې دي. ذ موسـي بيـان دې' هغـهٔ پـه دوېم ځل خـوشـخبـري يـوړلـه. حضـور صـلـي اللّٰـه عـليـه وسلّم ورتـه اوفرمائيل' لاړ شـه' هغـهٔ تـه اووايـه' چـه تـهٔ دوزخي نـه ئې' بلکـه ذ جنتيانو نه ئې.

۱. دې د انصـارو خـطيـب وو. د ده آواز ډيـر اوچـت وو. كله چه پورته ذكر شوې آيت نازل شو او مسـلمانان د نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلّم په وړاندې په اوچت آواز سره د خبرو كولو نه منع كړې شول نو دې دومـره غـمژن شو چه د كور نه به بهرته نه وتلو. حضور چه كله دې اونه ليدلو نو دده باره كښې ئې پوښتنه اوكړه.

بَـــابُ ۳۷۵۵: قَــوْلِــــهٖ اِنَّ الَّــذِيْـــنَ يُــنَـــادُوْنَكَ مِـــنْ وَّرَآءِ الْــحُــجُــرَاتِ اَكْـثَــرُهُــمْ لَا يَعْقِلُوْنَ.

باب ۳۷۵۵: آيت: اِنَّ الَّذِيْنَ يُنَادُوْنَکَ مِنْ وَّرَآءِ الْحُجُرَاتِ الخ: ذ اللّٰه تعالٰي قول' بيشکه کوم خلق چه تا ذ حـجـرو ذ شا' نه بلي (درته آوازونه کوي) هغوي کښې اکثر بې عقله دي.

۸۳۳: حَــدَّثَــنَـا الْحَسَنُ بْــنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْـنَ الزُّبَيْـرِ اَخْبَرَهُمْ اَنَّهٗ قَدِمَ رَكْبٌ مِّـنْ بَـنِـيْ تَـمِيْمٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ اَمِّرِ الْقَعْقَاعَ بْنَ مَعْبَدٍ وَ قَالَ عُمَرُ بَلْ اَمِّرِ الْاَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ مَا اَرَدْتَ اِلَيَّ اَوْ اِلَّا خِلَافِيْ فَقَالَ عُمَرُ مَا

۸۳۳: حسـن بـن مـحـمـد. حـجـاج. ابن جريج. ابـن ابـي مـليـكـه. عبـداللّٰـه بن زبيـر نـه روايـت كوي د هـغـهٔ بيـان دې' ذ بـنـي تـمـيـم څـو سـوارهٔ د نبي صـلـي الـلّٰـه عليـه وسلّـم خدمت كـښې (ذ امير جـوړولـو ذ پـاره) راغـلـل. حضـرت ابـوبـكـرؓ اووې' قـعـقـاع بـن معـبـد اميـر مقـرر كـړئې. حضـرت عمرؓ اووې' بـلـكـه اقـرع بـن حـابـس امير مقـرر كـړئې. حضـرت ابـوبـكـرؓ ورتـه اووې' تـا صـرف ځـمـا ذ مـخـالـفـت قـصـد كـړې دې' حضرت عمرؓ ورته اووې.

أَرَدْتَ خِلَافَهُ فَعَلَا يَا خَفِيَ لَرَتَفَعْتَ أَصْوَاتُهُمَا فَنَزَلَ فِيْ ذٰلِكَ يٰأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ حَتّٰى انْقَضَتِ الْاٰيَةُ.

خو ما اراده د مخالفت نه وه، نو دواړه به جګړه شو، تر دې چه د دواړو آوازونه اوچت شو، نو دې باره کښې دا آيت نازل شو: يا ايها الذين امنوا لا تقدموا الخ.

باب ۳۷۶: قَوْلُهٗ وَلَوْ اَنَّهُمْ صَبَرُوْا حَتّٰى تَخْرُجَ اِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ.

۳۷۶: آيت: وَلَوْ اَنَّهُمْ صَبَرُوْا حَتّٰى تَخْرُجَ اِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ: د الله تعالىٰ قول، او که هغوی خلق صبر اوکړي، تر دې چه ته هغې خلقو ته بهر تشريف راوړې، نو دا به هغوي د پاره بهتره وه.

# سُوْرَةُ قٓ

# دَ سورهٔ قٓ تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

رَجْعٌ بَعِيْدٌ رَدٌّ فُرُوْجٍ فُتُوْقٍ وَاحِدُهَا فَرْجٌ وَرِيْدٌ فِيْ حَلْقِهٖ وَالْحَبْلُ حَبْلُ الْعَاتِقِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مَّا تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْ عِظَامِهِمْ تَبْصِرَةً بَصِيْرَةً حَبَّ الْحَصِيْدِ الْحِنْطَةُ بَاسِقَاتٍ الطِّوَالُ اَفَعَيِيْنَا اَفَاَعْيَا عَلَيْنَا وَ قَالَ قَرِيْنُهٗ الشَّيْطٰنُ الَّذِيْ قُيِّضَ لَهٗ فَنَقَّبُوْا ضَرَبُوْا اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ لَا يُحَدِّثُ نَفْسَهٗ بِغَيْرِهٖ حِيْنَ اَنْشَاَكُمْ وَ اَنْشَا خَلْقَكُمْ رَقِيْبٌ عَتِيْدٌ رَصَدٌ سَآئِقٌ وَّ شَهِيْدٌ الْمَلَكَانِ كَاتِبٌ وَّ شَهِيْدٌ شَاهِدٌ بِالْقَلْبِ لُغُوْبُ النَّصَبُ وَ قَالَ غَيْرُهٗ نَضِيْدٌ الْكُفُرّٰى مَادَامَ فِيْ اَكْمَامِهٖ وَ مَعْنَاهُ مَنْضُوْدٌ

"رجع بعيد" واپس کيدل لرې دي. "فروج" چوند، سورې. د دې واحد "فرج" دې. "وريد" نه هغه رګ مراد دې، چه حلق کښې وي. "حبل" نه مراد د ګردن رګ دې. او مجاهد اوويې، "مَا تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْهُمْ" کښې "منهم" نه مراد دې "مِنْ عِظَامِهِمْ" (د هغوي د هډوکو نه) "تَبْصِرَةً" نه مراد بصيرت دې. "حَبَّ الْحَصِيْدِ" غنم. "بَاسِقَاتٍ" اوږده. "اَفَعَيِيْنَا" ايا مونږ عاجز يو. "وَ قَالَ قَرِيْنُهٗ" کښې "قَرِيْنَ" نه مراد شيطان دې، چه دې د پاره مقرر شوې دې. "فَنَقَّبُوْا" ښاروونو ته لاړل. "وَ اَلْقَى السَّمْعَ" نه مراد دا دې، چه غوږ اولږوي (کيدي) خپل نفس سره دې علاوه بله هيڅ خبره اونهٔ کړي. "حِيْنَ اَنْشَاَكُمْ" هر کله چه تاسو، ئې پيدا کړئې، او ستاسو پيدائش ئې ظاهر کهٔ. "رَقِيْبٌ عَتِيْدٌ" نګهبان تاک لږوونکې. "سَآئِقٌ وَّ شَهِيْدٌ" دوه فريښتې يوه ليکونکې بله ګواه. "شَهِيْدٌ" دې ته وائي، چه زړهٔ سره ګواهي

بَعْضُهُ عَلٰى بَعْضٍ فَاِذَا خَرَجَ مِنْ اَكْمَامِهٖ فَلَيْسَ بِنَضِيْدٍ فِيْ اِدْبَارِ النُّجُوْمِ وَ اَدْبَارِ السُّجُوْدِ كَانَ عَاصِمٌ يَفْتَحُ الَّتِيْ فِيْ قٓ وَ يَكْسِرُ الَّتِيْ فِي الطُّوْرِ وَ يُكْسَرَانِ جَمِيْعًا وَ يُنْصَبَانِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ يَوْمَ الْخُرُوْجِ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْقُبُوْرِ.

ورکوونکے وي. "لُغُوْبٌ" ستړے والے. او نورو اووے "نَضِيْدُ" غوټے، چه خپل غلاف کښ وي. دَ دے معني دا دي، چه بعضے په بعضو بۀ شوے وي، کوم وخت چه هغه دَ خپل غلاف نه اوځي، نو "نَضِيْدٌ" نه دے. "اَدْبَارِ النُّجُوْمِ" او "اَدْبَارِ السُّجُوْدِ" کښ عاصم، سورة قٓ کښ دَ الف فتح سره او سورة طور کښ د الف کسره سره لوستلو، حالانکه دَ دواړو کسره او نصب لوستے شي. او ابن عباسؓ اووے چه "يَوْمَ الْخُرُوْجِ" نه مراد هغه ورځ ده، چه هغوي به د قبرونو نه اوبنکلے شي.

باب ۳۷۷: قَوْلِهٖ وَ تَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ.

باب ۳۷۷: آيت: وَ تَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ: دَ اللّٰه تعالٰي قول، او جهنم به وائي، آيا څه نور هم شته.

۸۳۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا الْحَرَمِيُّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُلْقٰى فِي النَّارِ وَ تَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ حَتّٰى يَضَعَ قَدَمَهٗ فَتَقُوْلُ قَطْ قَطْ.

۸۳۴: عبداللّٰه بن ابي الاسود. حرمي. شعبه. قتاده. حضرت انسؓ. نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت کوي، حضورؐ اوفرمائيل، خلق به جهنم کښ اچولے شي، نو هغه به وائي، آيا نور هم څۀ شته، تردے چه اللّٰه تعالٰي به هغے باندے خپله پښه کيږدي، نو هغه به وائي، بس بس.

۸۳۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوْسَى الْقَطَّانُ حَدَّثَنَا اَبُوْسُفْيَانَ الْحِمْيَرِيُّ سَعِيْدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَفَعَهٗ وَ اَكْثَرُ مَا كَانَ يُوْقِفُهٗ اَبُوْ سُفْيَانَ يُقَالُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَأْتِ وَ تَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ فَيَضَعُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى قَدَمَهٗ عَلَيْهَا فَتَقُوْلُ قَطْ قَطْ.

۸۳۵: محمد بن موسي قطان. ابوسفيان حميري. سعيد بن يحيي بن مهدي. عوف. محمد. حضرتؓ نه مرفوعًا روايت کوي. او ابوسفيان هغه اکثر موقوفًا روايت کوي، دَ هغۀ بيان دے جهنم ته به اووئيلے شي، آيا تۀ ډک شوے، نو هغه به وائي، ولے نور څۀ شته، نو اللّٰه تبارک و تعالٰي به خپله پښه هغے باندے کيږدي، نو هغه به وائي، چه بس بس.

٨٣٦: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحَاجَّتِ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ فَقَالَتِ النَّارُ اُوْثِرْتُ بِالْمُتَكَبِّرِيْنَ وَالْمُتَجَبِّرِيْنَ وَ قَالَتِ الْجَنَّةُ مَالِيْ لَا يَدْخُلُنِيْ اِلَّا ضُعَفَآءُ النَّاسِ وَ سَقَطُهُمْ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى لِلْجَنَّةِ اَنْتِ رَحْمَتِيْ اَرْحَمُ بِكِ مَنْ اَشَآءُ مِنْ عِبَادِيْ وَ قَالَ لِلنَّارِ اِنَّمَا اَنْتِ عَذَابٌ اُعَذِّبُ بِكِ مَنْ اَشَآءُ مِنْ عِبَادِيْ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِلْؤُهَا فَاَمَّا النَّارُ فَلَا تَمْتَلِئُ حَتّٰى يَضَعَ رِجْلَهُ فَتَقُوْلُ قَطِ قَطِ قَطِ فَهُنَالِكَ تَمْتَلِئُ وَ يُزْوٰى بَعْضُهَا اِلٰى بَعْضٍ وَلَا يَظْلِمُ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ مِنْ خَلْقِهِ اَحَدًا وَ اَمَّا الْجَنَّةُ فَاِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَ جَلَّ يُنْشِئُ لَهَا خَلْقًا.

٨٣٦: عبدالله بن محمد. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، نبي صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، جنت او دوزخ به خپلو كښې جګړه كوي. دوزخ به وائي زهٔ دَ متكبر او ظالمانو خلقو دَ پاره مخصوص كړے شوے يم. او جنت به وائي، په ما څهٔ شوي دي، چه ما كښې صرف كمزورے او حقير خلق داخليږي الله تعالٰي به ورته اوفرمائي، تهٔ خما رحمت ئې، زهٔ به ستا په ذريعه خپلو بنديانو كښې چه څوک غواړم، رحمت به پرے اوكړم. او جهنم ته به فرمائي، تهٔ عذاب ئې، زهٔ به ستا په ذريعه چه كوم بنديان غواړم، عذاب وركوم. او دے دواړو كښې هر يو د پاره د ډكيدو يو حد مقرر دے. ليكن دوزخ به نه ډكيږي، تر دے چه الله تعالٰي به خپله پښه هغے باندے كيږدي، نو هغه به وائي، چه بس بس بس. دغه وخت به دوزخ ډک شي او يوه حصه به بلے حصے سره يوځائے كيدو سره راغونډه شي. او الله بزرګ و برتر خپل مخلوق كښې په هيڅا ظلم نه كوي. او جنت د پاره به الله تعالٰي يو بل مخلوق پيدا كړي. (په هغوئ به ئې ډک كړي).

باب ٣٧٨: قَوْلِهٖ وَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ الْغُرُوْبِ.

باب ٣٧٨: آيت: وَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ الْغُرُوْب. دَ الله تعالٰي قول، او د نمر دَ طلوع او غروب نه مخكښې د خپل رب دَ حمد تسبيح كوے.

٨٣٧: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ جَرِيْرٍ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا لَيْلَةً مَعَ

٨٣٧: اسحٰق بن ابراهيم. جرير. اسماعيل. قيس بن ابي حازم. جرير بن عبدالله نه روايت كوي، د هغهٔ بيان دے، مونږ خلق نبي صلي الله عليه وسلم سره يو شپه ناست وو. حضور صلي الله عليه وسلم سپوږمئ

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَظَرَ اِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ اَرْبَعَ عَشْرَةَ فَقَالَ اِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا لَا تُضَامُّوْنَ فِي رُؤْيَتِهٖ فَاِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ لَّا تُغْلَبُوْا عَلٰى صَلٰوةٍ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ غُرُوْبِهَا فَافْعَلُوْا ثُمَّ قَرَأَ وَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ الْغُرُوْبِ.

طرف تـه اوكتـل، هـغـه ذ شوارلسمے شپے وَه. حضور صلي الـلّـه عليه وسلّم اوفرمائيل، عنقريب تاسو به خپل رب اووينئے، څنگه چه تاسو دا سپوږمي وينئے. او ددے متعلق تاسو تـه څه شبهه نشته. نو څومره چه تاسو نه كيدے شي. د نمر ذ طلوع او غروب نه مخكښ مونځ مه پريږدئے. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم دا آيت تلاوت كړلو، وَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ الْغُرُوْبِ.

۸۳۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا وَرْقَآءُ عَنِ ابْنِ نَجِيْحٍ عَنْ مُّجَاهِدٍ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَمَرَهٗ اَنْ يُّسَبِّحَ فِيْ اَدْبَارِ الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا يَعْنِيْ قَوْلَهٗ وَ اَدْبَارَ السُّجُوْدِ.

۸۳۸: آدم، ورقاء، ابن ابي نجيح. مجاهد نه روايت كوي، ابن عباسؓ بيان اوكړ، چه حضور صلي الله عليه وسلّم هغوي ته حكم اوكړ، چه ټولو مونځونو نه پس تسبيح لولے. دے نه مقصد "ادبار السجود" مطلب بيانول وو (سجدو يعني مونځونو نه پس تسبيح لولے).

## سُوْرَةُ وَالذَّارِيَات

## دَ سورهٔ والذاريات تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ عَلِيٌّ عَلَيْهِ السَّلَامُ الرِّيَاحُ وَ قَالَ غَيْرُهٗ تَذْرُوْهُ تُفَرِّقُهٗ وَ فِيْ اَنْفُسِكُمْ تَاْكُلُ وَ تَشْرَبُ فِيْ مَدْخَلٍ وَّاحِدٍ وَّ يَخْرُجُ مِنْ مَّوْضِعَيْنِ فَرَاغَ فَرَجَعَ فَصَكَّتْ فَجَمَعَتْ اَصَابِعَهَا فَضَرَبَتْ جَبْهَتَهَا وَالرَّمِيْمُ نَبَاتُ الْاَرْضِ اِذَا يَبِسَ وَ دِيْسَ لَمُوْسِعُوْنَ اَيْ لَذُوْ سَعَةٍ وَ كَذٰلِكَ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ يَعْنِي الْقَوِيَّ زَوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰى وَاخْتِلَافُ الْاَلْوَانِ حُلْوٌ وَّ حَامِضٌ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

حضرت عليؓ اووے. "ذاريات" نه مراد هواگانے دي. او نورو اووے "تذروه" په معنے ذ "تفرقه" (دا پراگنده كوي) "و في انفسكم افلا تبصرون" آيا تاسو خپل خانونو ته نه گورئے، چه په يوه لاره خورئے، څكئے. او ذ دوو ځايونو نه اُوځي. "فراغ" نو واپس شو. "فصحكت" خپلے گوتے ئے راغنډے كړے، اوپه خپل مخ ئے اووهلے. "رميم" ذ زمكے سبزي هر كله چه اُوچه شي اوپښو كښ ميده شي. "لموسعون" يعني قوت وسعت واله دي. دغه شان "على الموسع قدره" كښ "موسع" نه مراد قوي دے "زوجين" نر او ښځه، او ذ رنگونو

فَهُمَا زَوْجَانِ فَفِرُّوْا إِلَى اللّٰهِ مِنَ اللّٰهِ إِلَيْهِ إِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ مَا خَلَقْتُ أَهْلَ السَّعَادَةِ مِنْ أَهْلِ الْفَرِيْقَيْنِ إِلَّا لِيُوَحِّدُوْنِ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ خَلَقَهُمْ لِيَفْعَلُوْا فَفَعَلَ بَعْضٌ وَ تَرَكَ بَعْضٌ وَ لَيْسَ فِيْهِ حُجَّةٌ لِأَهْلِ الْقَدَرِ وَالذَّنُوْبُ الدَّلْوُ الْعَظِيْمُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ صَرَّةٍ صَيْحَةٍ ذَنُوْبًا سَبِيْلًا الْعَقِيْمُ الَّتِيْ لَا تَلِدُ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَالْحُبُكُ اِسْتِوَاؤُهَا وَ حُسْنُهَا فِيْ غَمْرَةٍ فِيْ ضَلَالَتِهِمْ يَتَمَادَوْنَ وَ قَالَ غَيْرُهُ تَوَاصَوْا تَوَاطَئُوْا وَ قَالَ مُسَوَّمَةٌ مُعَلَّمَةٌ مِنَ السِّيْمَا قُتِلَ الْخَرَّاصُوْنَ لُعِنُوْا.

مختلف كيدل، خوږ او تريو كيدل. دغه شان دا دوه جوړے دي "فَفِرُوا الى اللّٰه" دَ اللّٰه طرف نه اللّٰه طرف ته اوزغلئے. "الا ليعبدون" ما دَ فريقين خلق صرف دے دَ پاره پيدا كړل، چه هغوي ما يو اُومني، او بعضو اووے، چه هغوي ئے پيدا كړل. چه هغوي دغسے او كړي نو بعضے اوكړل او بعضے پريښودلو. او دے كښ اهل قدر دَ پاره حجت نشته. "ذنوب" لوئے ډول او مجاهد اووے، چه "صره" نه مراد چغه ده. "ذنوب" لاره. "عقيم" هغه ښځه چه بچے نۀ راوړي. (شنډه) او ابن عباسؓ اووے. "حبك" معني دَ هغے برابر كيدل او خوبصورتي ده "في غمرة" خپلے ګمراهي كښ راښكلے شي. او نورو اووے، چه "تواصوا" "تواطاؤا" يعني دَ يو بل موافقت كوي، او وئيلے چه "مسومه" معني نښه كړے شوے. "سيما" نه ماخوذ دے.

# سُوْرَةُ وَالطُّوْرِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ قَتَادَةُ مَسْطُوْرٍ مَكْتُوْبٍ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ الطُّوْرُ الْجَبَلُ بِالسُّرْيَانِيَّةِ رَقٍّ مَنْشُوْرٍ صَحِيْفَةٍ وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوْعِ سَمَاءٌ الْمَسْجُوْرِ الْمُوْقَدِ وَ قَالَ الْحَسَنُ تُسْجَرُ حَتّٰى يَذْهَبَ مَاؤُهَا فَلَا يَبْقٰى فِيْهَا قَطْرَةٌ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ أَلَتْنَاهُمْ نَقَصْنَا وَ قَالَ غَيْرُهُ تَمُوْرُ تَدُوْرُ أَحْلَامُهُمْ الْعُقُوْلُ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْبَرُّ اللَّطِيْفُ كِسْفًا قِطَعًا الْمَنُوْنُ

# دَ سورهٔ والطور تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

او قتاده اووے چه "مسطور" معني ليكلے شوے. او مجاهد اووے، چه "طور" سريانئے ژبه كښ غر ته وائي "رق منشور" كتاب. "سقف مرفوع" آسمان. "المسجور" په غر غروشوے. او حسن اووے، هغه به په غر غروشي، تر دے چه دَ هغه اوبه به اُوچے (خشكے) شي. او هغے كښ به يوه قطره اوبه هم پاتے نشي. او مجاهد اووے. "التناهم" مونږ كم كړلو. او نورو اووے چه "تمور" تاويږي به. "احلامهم" دَ هغوي عقلونه ابن عباسؓ اووے. "البر" معني مهربان "كسفا" معني ټكړے

الْمَوْتُ وَ قَالَ غَيْرُهُ يَتَنَازَعُوْنَ يَتَعَاطَوْنَ.

تېرکړي. "المنون" معني مرګ. او بعضو اونې چه "يتنازعون" نه مراد دي، يو بل له به ور کوي.

٨٣٩: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ شَكَوْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنِّيْ اَشْتَكِيْ فَقَالَ طُوْفِيْ مِنْ وَّرَآءِ النَّاسِ وَ اَنْتِ رَاكِبَةٌ فَطُفْتُ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ اِلٰى جَنْبِ الْبَيْتِ يَقْرَاُ بِالطُّوْرِ وَ كِتَابٍ مَّسْطُوْرٍ.

٨٣٩: عبدالله بن يوسف. مالک. محمد بن عبدالرحمن بن نوفل. عروه. زينب بنت ابي سلمه. بي بي اُم سلمهؓ نه روايت کوي، ذ هغې بيان دې، ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته شکايت اوکړ، چه زۀ ناروغه يم، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ خلقو ورستو سوره شه، او طواف اوکه، نو ما طواف اوکړلو. دغه وخت رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ خانه کعبې يو کُنټ کښې سورۀ "والطُّور و کتاب مسطور" لوستلو.

٨٤٠: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثُوْنِيْ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَاُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّوْرِ فَلَمَّا بَلَغَ هٰذِهِ الْاٰيَةَ اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ اَمْ هُمُ الْخَالِقُوْنَ اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بَلْ لَّا يُوْقِنُوْنَ اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَبِّكَ اَمْ هُمُ الْمُسَيْطِرُوْنَ كَادَ قَلْبِيْ اَنْ يَطِيْرَ قَالَ سُفْيَانُ فَاَمَّا اَنَا فَاِنَّمَا سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ يُحَدِّثُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ اَبِيْهِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

٨٤٠: حميدي. سفيان. زهري. محمد بن جبير مطعم. جبير بن مطعم نه روايت کوي، ذ هغه بيان دې. ما ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه مابنام کښې سورۀ "طور" لوستل واوريدل. کوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلّم دې آيت ته راورسيدلو، چه: اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ اَمْ هُمُ الْخَالِقُوْن اَمْ خلقوا السمٰوٰتِ وَالارضَ بل لا يوقنون اَمْ عِنْدهم خزائن ربک اَمْ هم المسيطرون: قريب وه، چه خما زړۀ والوځي. ذ سفيان بيان دې، چه ما زهري نه په واسطه ذ محمد بن جبير بن مطعم نه نقل کول واوريدل، چه ما ذ حضور صلي الله عليه وسلّم نه مابنام (يعني ذ مابنام مونځ کښې) سورۀ طور لوستل واوريدل. ليکن هغې کښې

وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّوْرِ لَمْ أَسْمَعْهُ زَادَ الَّذِيْ قَالُوْا لِيْ.

دا زياتے نۀ وو' چه قريب وَه' چه څما زړۀ والوځي.

## سورة والنجم

## دَ سورۀ والنجم تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ ذُوْ مِرَّةٍ ذُوْ قُوَّةٍ قَوْسَيْنِ حَيْثُ الْوَتَرُ مِنَ الْقَوْسِ ضِيْزٰى عَوْجَآءُ وَ اَكْدٰى قَطَعَ عَطَآءَهٗ رَبُّ الشِّعْرٰى هُوَ مِرْزَمُ الْجَوْزَآءِ الَّذِيْ وَفّٰى وَفّٰى مَا فُرِضَ عَلَيْهِ اَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ سَامِدُوْنَ الْبَرْطَمَةُ وَ قَالَ عِكْرِمَةُ يَتَغَنَّوْنَ بِالْحِمْيَرِيَّةِ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ اَفَتُمَارُوْنَهٗ اَفَتُجَادِلُوْنَهٗ وَمَنْ قَرَاَ اَفَتَمْرُوْنَهٗ يَعْنِيْ اَفَتَجْحَدُوْنَهٗ مَا زَاغَ الْبَصَرُ بَصَرُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا طَغٰى وَلَا جَاوَزَ مَا رَاٰى فَتَمَارَوْا كَذَّبُوْا وَ قَالَ الْحَسَنُ اِذَا هَوٰى غَابَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَغْنٰى وَ اَقْنٰى اَعْطٰى فَاَرْضٰى.

او مجاهد اووے "ذومرة" معني دي قوت واله "قاب قوسين" خپل بخشش ئے بند کړلو. "رب الشعرىٰ" دَ شعرىٰ پروردګار. شعرىٰ يو ستورے دے دَ جوزا شاته طلوع کيدونکے. "الّذی وفّٰى" څۀ چه په هغۀ فرض وو' هغه ئے پوره کړلو. "ازفت الأزفة" قيامت قريب شو. "سامدون" برطمه' چه يوه لوبه ده. او عکرمه اووے' حميري ژبه کښ دَ دے معني دَ "ګانے" سندرو وئيلو دي. او ابراهيم اووے. "افتمارونه" آيا تاسو هغۀ سره جګړه کوئے. او حسن "افتُمرونه" اووے. دے نه مراد دا دے' چه آيا تاسو انکار کوئے. "مازاغ البَصَر" دَ محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم نظر "وما طغٰى" او نۀ دَ هغے نه وړاندے لاړ' چه هغۀ اوليدلو' "فتماروا" دروغ اوګڼړلو. او حسن اووے چه "اذا هوٰى" کوم وخت چه غائب کيدو' غروب کيدو. او ابن عباسؓ اووے چه "اغنٰى و اقنٰى" ورئے کړو او خوشحاله ئے کړو.

۱۸۴۱: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ عَامِرٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ يَا اُمَّتَاهُ هَلْ رَاٰى مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَبَّهٗ فَقَالَتْ لَقَدْ

۱۸۴۱: يحيٰي. اسمٰعيل بن ابي خالد عامر. مسروق نه روايت کوي' د هغه بيان دے ما بي بي عائشےؓ ته اووے اے مور بي بي' آيا محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل پروردګار ليدلے دے' نو هغے اووے' ستا دے خبرے سره څما ويښته اودريدل (يعني غوڼے مِ زيږ زيږ شولو) آيا تاته دَ دے درے خبرو خبر شته. که څوک

قَفَّ شَعْرِيْ مِمَّا قُلْتَ اَيْنَ اَنْتَ مِنْ ثَلَاثٍ مَنْ حَدَّثَكَهُنَّ فَقَدْ كَذَبَ مَنْ حَدَّثَكَ اَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَبَّهٗ فَقَدْ كَذَبَ ثُمَّ قَرَاَتْ لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْيًا اَوْ مِنْ وَّرَاءِ حِجَابٍ وَمَنْ حَدَّثَكَ اَنَّهٗ يَعْلَمُ مَا فِيْ غَدٍ فَقَدْ كَذَبَ ثُمَّ قَرَاَتْ وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَنْ حَدَّثَكَ اَنَّهٗ كَتَمَ فَقَدْ كَذَبَ ثُمَّ قَرَاَتْ يٰاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْاٰيَةَ وَلٰكِنَّهٗ رَاٰى جِبْرِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِيْ صُوْرَتِهٖ مَرَّتَيْنِ.

سړے دې کښې څۀ خبره اوکړي، نو هغه دروغجن دے کۀ يو سړے تاته اووائي، چه محمد صلي الله عليه وسلم خپل پروردګار ليدلے دے، نو هغه دروغجن دے. بيا هغې دا آيت تلاوت کړلو، سترګې هغه نشي ليدے، او هغه سترګې ويني هغه مهربان خبر واله دے، او هيڅ بشر ذ دې جوګه نۀ دے، چه الله هغه سره کلام اوکړي، خو د وحي په طور، يا ذ پردې ذ شانه، او کوم سړے چه تاته اووائي چه هغه په دې پوهيږي) چه سباله به څۀ کيږي، نو هغه دروغجن دے. بيا ئې دا آيت اولوست: هيڅا ته نه ده معلومه، چه سباله به څه کوي او کوم سړے چه تاته بيان اوکړي، چه حضور صلي الله عليه وسلم څنې خبره پټه ساتلې ده، نو هغه دروغجن دے بيائې دا آيت اولوست: يٰاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الخ. ليکن حضور صلي الله عليه وسلم، جبرائيل عليه السلام د هغه خپل صورت کښې دوه ځله اوليدلو. (يا ليدلے دے).

**ف:** دې حديث نه درې خبرې واضحه شوې. يو دا چه هيڅ بشر دے مادي دُنيا کښې خپل پروردګار ليدلے نشي، دويم دا چه هيڅ بشر مخ په مخ خپل پروردګار سره خبرې نشي کولے (ځکه چه د هغۀ د ليدو او په مخامخ ورسره ذ خبرو کولو هيڅوک تاب نشي راوړے، موسٰي عليه السلام چه ليدو ذ پاره خواست اوکه، نو ورته اوښودلے شو، چه هر کله يو غر ذ تجلي تاب نشي راوړے، نو تۀ به ذ ليدو څنګه تاب راوړے شې) دريم دا چه هيڅا ته نۀ ده معلومه، چه صباله به څۀ کيږي.

## بَاب ۳۷۹: قَوْلِهٖ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى حَيْثُ الْوَتَرُ مِنَ الْقَوْسِ.

## باب ۳۷۹: ايت: فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى حَيْثُ الْوَتَرُ مِنَ الْقَوْسِ.

۸۴۲: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ زِرًّا عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ فَكَانَ

۸۴۲: ابوالنعمان. عبدالواحد. شيباني. زر. حضرت عبدالله نه روايت کوي. ذ هغه بيان دے، د آيت: فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى

قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى فَاَوْحٰى اِلٰى عَبْدِهٖ مَا اَوْحٰى قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ مَسْعُوْدٍ اَنَّهٗ رَاٰى جِبْرِيْلَ لَهٗ سِتُّ مِائَةِ جَنَاحٍ.

فـأوحى إلى عبده مـا أوحى: ضمن كښې حضرت ابن مسعودؓ اووې چه حضورؐ جبرائيلؑ اوليد، چه د هغه شپږ سوه وزرې وې.

## بَاب ۳۸۰: قَوْلِهٖ فَاَوْحٰى اِلٰى عَبْدِهٖ مَا اَوْحٰى.

باب ۳۸۰: آيت: فاوحى الى عبده ما اوحى.

۸۴۳: حَدَّثَنَا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ قَالَ سَأَلْتُ زِرًّا عَنْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى فَاَوْحٰى اِلٰى عَبْدِهٖ مَا اَوْحٰى قَالَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى جِبْرِيْلَ لَهٗ سِتُّ مِائَةِ جَنَاحٍ.

۸۴۳: طلق بن غنام. زائده. شيباني نه روايت كوي، هغه اووې، ما د زر نه د الله تعالىٰ قول: فكان قاب قوسين او ادنىٰ فاوحى الىٰ عبده ما اوحى: متعلق تپوس اوكه، نو هغه اووې. ماته عبدالله بيان اوكه، محمد صلي الله عليه وسلم جبرائيلؑ اوليد، چه د هغه شپږ سوه وزرې وې.

## بَاب ۳۸۱: قَوْلِهٖ لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى.

باب ۳۸۱: آيت: لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الكبرىٰ: د الله تعالي قول.

۸۴۴: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى قَالَ رَاٰى رَفْرَفًا اَخْضَرَ قَدْ سَدَّ الْاُفُقَ.

۸۴۴: قبيصه. سفيان. اعمش. ابراهيم. علقمه. عبداللهؓ نه روايت كوي: لقد راى من آيات ربه الكبرىٰ: (حضورؐ د خپل رب لوئې لوئې نښې اوليدې) نه مراد دادې، چه حضورؐ شين رفرف ليدلې، چه ټول افق بانديې خور شوې وو.

## بَاب ۳۸۲: قَوْلِهٖ اَفَرَءَيْتُمُ اللَّاتَ وَالْعُزّٰى.

باب ۳۸۲: آيت: افرء يتم اللَّاتَ وَالْعُزّٰى: د الله تعالي قول، آيا تاسو لات او عزي ليدلې دي.

۸۴۵: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَشْهَبِ حَدَّثَنَا اَبُو الْجَوْزَاءِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيْ قَوْلِهِ اللَّاتِ وَالْعُزّٰى كَانَ اللَّاتُ رَجُلًا يَلُتُّ سَوِيْقَ الْحَاجِّ.

۸۴۵: مسلم. ابوالاشهب. ابوالجوزاء. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه، لات هغې سړي ته وئيلې شو، چه حاجيانو د پاره به ئې ستوان سولول (گډ كول).

۴۸۴۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ فَقَالَ فِيْ حَلْفِهِ وَاللَّاتِ وَالْعُزّٰى فَلْيَقُلْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ تَعَالَ اُقَامِرْكَ فَلْيَتَصَدَّقْ.

۴۸۴۶: عبدالله بن محمد. هشام بن يوسف. معمر. زهري. حميد بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. ذ هغهٔ بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. څوك چه قسم اوخوري، او-قسم كښې په لات و عزيٰ قسم اوخوري، نو هغه له ونيل پكار دي، چه د الله نه سوا بل معبود نشته[۱]. او كوم سړے چه خپل ملګري ته اووائي، راځه، چه جواري اوكړو، نو هغهٔ له پكار دي چه صدقه وركړي.

۱. په اصل كښې دا حكم د هغه سړي د پاره دے كوم چه د عربو نه نوے نوے په اسلام كښې داخل شوے وي. چونكه د مخكښې نه ئے په ژبه باندے دا كلمات ختلي وو، دے د پاره ئے اوفرمائيل چه كه چرے به غلطئ سره په ژبه باندے دا قسمه كلمات راشي نو فوراً د هغې مُكافات كول پكار دي.

## باب ۳۸۳: قَوْلِهِ وَ مَنَاةَ الثَّالِثَةَ الْاُخْرٰى.

باب ۳۸۳: ايت: وَ مَنَاةَ الثَّالِثَةَ الْاُخْرٰى.

۴۸۴۷: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ سَمِعْتُ عُرْوَةَ قُلْتُ لِعَآئِشَةَ فَقَالَتْ اِنَّمَا كَانَ مَنْ اَهَلَّ بِمَنَاةَ الطَّاغِيَةِ الَّتِيْ بِالْمُشَلَّلِ لَا يَطُوْفُوْنَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ فَطَافَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُسْلِمُوْنَ قَالَ سُفْيَانُ مَنَاةُ بِالْمُشَلَّلِ مِنْ قُدَيْدٍ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَآئِشَةُ نَزَلَتْ فِي الْاَنْصَارِ كَانُوْا هُمْ وَ غَسَّانُ قَبْلَ

۴۸۴۷: حميدي. سفيان. زهري. عروه نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے. ما ذ بي بي عائشےؓ نه تپوس اوكۀ، نو هغهٔ اووے، چه كومو خلقو به مناة طاغيه كښې چه مشلل كښې دے، احرام تړلو، نو د صفا او مروه مينځ كښې به ئے طواف نه كولو، نو الله تعالٰي دا آيت: اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ الخ نازل كړلو. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم او مسلمانانو طواف اوكه. سفيان اووے، چه مناة، مشلل كښې قديد سره دے، او عبدالرحمٰن بن خالد په واسطه ذ ابن شهاب، عروه ذ بي بي عائشےؓ قول نقل كړے دے، چه دا ايت: اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ الخ: د انصارو باره كښې نازل شوے دے. انصارو، او غسانيانو به د اسلام نه مخكښې د مناة نه احرام تړلو، او

أَنْ يُسْلِمُوا يُهِلُّونَ لِمَنَاةَ مِثْلَهُ وَ قَالَ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَائِشَةَ كَانَ رِجَالٌ مِنَ الْأَنْصَارِ مِمَّنْ كَانَ يُهِلُّ لِمَنَاةَ وَ مَنَاةُ صَنَمٌ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ قَالُوا يَا نَبِيَّ اللّٰهِ كُنَّا لَا نَطُوفُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ تَعْظِيمًا لِمَنَاةَ نَحْوَهُ.

معمر په واسطه دَ زهري، عروه، بي بي عائشې نه روايت کوي، چه د انصارو ځنو خلقو به منات نه احرام تړلو. او منات د مکې او مدينې مينځ کښې يو بت وو، نو هغې خلقو عرض اوکه، چه اې د اللّٰه رسوله، مونږ به د صفا او مروه مينځ کښې دَ منات د تعظيم په غرض طواف نه کولو.

## باب ۳۸۴: قَوْلِهِ فَاسْجُدُوا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوا.

باب ۳۸۴: ايت: فَاسْجُدُوا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوا تفسير. دَ اللّٰه سجده او عبادت کوئ.

۸۴۸: حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَجَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّجْمِ وَ سَجَدَ مَعَهُ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ تَابَعَهُ ابْنُ طَهْمَانَ عَنْ أَيُّوبَ وَلَمْ يَذْكُرِ ابْنُ عُلَيَّةَ ابْنَ عَبَّاسٍ.

۸۴۸: ابو معمر. عبدالوارث. ايوب. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، د هغه بيان دې. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سورهٔ والنجم کښې سجده اوکړه. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره مسلمانانو او مشرکانو او جن و انس سجده اوکړه. ابن طهمان ددې متابعت کښې ايوب نه روايت اوکړ. او ابن عليه د حضرت ابن عباسؓ ذکر نه دې کړې.

۸۴۹: حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ أَخْبَرَنِي أَبُو أَحْمَدَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحٰقَ عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ أَوَّلُ سُورَةٍ أُنْزِلَتْ فِيهَا سَجْدَةُ النَّجْمُ قَالَ فَسَجَدَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ سَجَدَ مَنْ خَلْفَهُ إِلَّا رَجُلًا رَأَيْتُهُ أَخَذَ كَفًّا مِنْ تُرَابٍ فَسَجَدَ عَلَيْهِ فَرَأَيْتُهُ بَعْدَ ذٰلِكَ قُتِلَ كَافِرًا وَهُوَ أُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ.

۸۴۹: نصر بن علي. ابو احمد. اسرائيل. ابو اسحاق. اسود بن يزيد. عبداللّٰه نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سجده اوکړه. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم پسې ټولو خلقو سجده اوکړه سوا، د يو سړي نه، هغه ما اوليدلو، چه يو موټې خاوره ئې لاس کښې واخسته، په هغې ئې سجده اوکړه، دې نه پس ما اوليدل، چه هغه سړې د کفر حالت کښې مړ شو. د هغه نوم اميه بن خلف وو.

# سُوْرَةُ اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ مُجَاهِدٌ مُسْتَمِرٌّ ذَاهِبٌ مُزْدَجَرٌ مُتَنَاهٍ وَازْدُجِرَ فَاسْتُطِيْرَ جُنُوْنًا دُسُرٍ اَضْلَاعُ السَّفِيْنَةِ لِمَنْ كَانَ كُفِرَ يَقُوْلُ كُفِرَ لَهُ جَزَاءٌ مِّنَ اللّٰهِ مُحْتَضَرٌ يَحْضُرُوْنَ الْمَآءَ وَ قَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ مُهْطِعِيْنَ النَّسَلَانُ الْخَبَبُ السِّرَاعُ وَ قَالَ غَيْرُهُ فَتَعَاطٰى فَعَاطَهَا بِيَدِهٖ فَعَقَرَهَا الْمُحْتَظِرِ كَحِظَارٍ مِنَ الشَّجَرِ مُحْتَرِقٍ ازْدُجِرَ افْتُعِلَ مِنْ زَجَرْتُ كُفِرَ فَعَلْنَا بِهٖ وَ بِهِمْ مَّا فَعَلْنَا جَزَآءً لِّمَا صُنِعَ بِنُوْحٍ وَّ اَصْحَابِهٖ مُسْتَقِرٌّ عَذَابٌ حَقٌّ يُقَالُ الْاَشَرُ الْمَرَحُ وَالتَّجَبُّرُ.

بَاب ۳۸۵: قَوْلِهٖ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ وَ اِنْ يَّرَوْا اٰيَةً يُّعْرِضُوْا.

۴۸۵۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ وَ سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِرْقَتَيْنِ فِرْقَةٌ فَوْقَ الْجَبَلِ وَ فِرْقَةٌ دُوْنَهٗ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْهَدُوْا.

# دَ سورۀ اقتربت الساعة تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد اووې. "مستمر" معني تيريدونکې "مزدجر" معني حد ته رسيدونکې. "وازدجر" ليونې مشهور کړې شو "دُسُر" دَ کشتي ميخونه. "لمن کان کفر" دَ هغې بدله اخستو دَ پاره چه هغې سره کفر کړې شوې وو. "محتضر" اوبوته به حاضريدل. او ابن جبير اووې. "مهطعين" نه مراد تيز منډې وهونکې. "خبب" تيز چال سره تلل. او نورو اووې. "فتعاطى" خپل لاس سره ئې په هغې ګزار اوکه' بيائې ذبح کړه. "المحتظر" د اونو سوزيدلې شپول' "ازدجر" باب افتعال نه دې. "زجر" نه مشتق دې "کفر" مونږ چه هغه سره او هغې خلقو سره چه څه اوکړل' هغه' دهغې بدله کښ چه حضرت نوح عليه السلام او د هغه ملګرو سره شوې وو. "مستقر" عذاب حق. "اشر" په معني د کبر کول دي.

باب ۳۸۵: ايت: وَانْشَقَّ الْقَمَرُ وَ اِنْ يَّرَوْا اٰيَةً يُّعْرِضُوْا تفسير.

۴۸۵۰: مسدد. يحيٰي. شعبه. او سفيان. اعمش. ابراهيم. ابو معمر. حضرت ابن مسعودؓ نه روايت کوي. د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم زمانه کښ سپوږمي دوه ټکړې شوه' يوه ټکړه د غر د پاسه او بله ټکړه د غر نه اخوا' وه نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم (ټولوته مخاطب شو) او فرمائيل چه ګواه اوسئې.

٨٥١: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ وَ نَحْنُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَارَ فِرْقَتَيْنِ فَقَالَ لَنَا اشْهَدُوْا اشْهَدُوْا.

٨٥١: علي. سفيان. ابن ابي نجيح. مجاهد. ابو معمر. حضرت عبداللّٰهؓ نه روايت كوي، چه سپوږمي دوه ټكړے شوه. دغه وخت مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره وو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خلقوته اوفرمائيل، گواه اوسئے، گواه اوسئے.

٨٥٢: حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنِيْ بَكْرٌ عَنْ جَعْفَرٍ عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ فِيْ زَمَانِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٨٥٢: يحيٰي بن بكير. بكر. جعفر. عراك بن مالك. عبيداللّٰه بن عتبه بن مسعود. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے، دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په زمانه كښې سپوږمي دوه ټكړے شوه.

٨٥٣: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍؓ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ فِرْقَتَيْنِ.

٨٥٣: مسدد. يحيٰي. شعبه. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، چه سپوږمۍ دوه ټكړے شوه.

باب ٣٨٦: قَوْلِهٖ تَجْرِيْ بِأَعْيُنِنَا جَزَآءً لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ وَلَقَدْ تَّرَكْنَاهَا اٰيَةً فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ قَالَ قَتَادَةُ أَبْقَى اللّٰهُ سَفِيْنَةَ نُوْحٍ حَتّٰى أَدْرَكَهَا أَوَائِلُ هٰذِهِ الْأُمَّةِ.

باب ٣٨٦: آيت: تَجْرِيْ بِأَعْيُنِنَا جَزَاءً لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ وَلَقَدْ تَّرَكْنَاهَا اٰيَةً فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ: دَ قتاده بيان دے اللّٰه تعالي دَ حضرت نوحؑ كشتۍ باقي اوساتله، تردے چه دَ دے اُمت مخكنو خلقو هغه بيامنده.

٨٥٤: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِيْ إِسْحٰقَ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ.

٨٥٤: حفص بن عمر. شعبه. ابواسحاق. اسود. حضرت عبداللّٰه نه روايت كوي. دَ هغهٔ بيان دے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم به فهل من مدكر: (دال سره) لوستلو.

باب ٣٨٧: قَوْلِهٖ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا

باب ٣٨٧: آيت: وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ

الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ قَالَ مُجَاهِدٌ يَسَّرْنَا هَوَّنَّا قِرَاءَ تَهُ.

فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ: مجاهد اووے ''يسرنا'' معني دادي چه مونږ ذ هغے قرات آسان کړلو.

۸۵۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ يَقْرَاُ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ.

۸۵۵: مسدد. يحيي. شعبه. ابو اسحاق. حضرت عبدالله نه روايت کوي. چه حضور صلي الله عليه وسلّم به ''فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ'' لوستلو.

بَابُ ۳۸۸: قَوْلِهٖ اَعْجَازُ نَخْلٍ مُنْقَعِرٍ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَ نُذُرِ.

باب ۳۸۸: آيت: اَعْجَازُ نَخْلٍ مُنْقَعِرٍ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَ نُذُرِ، يعني کويا چه هغه ذ قجورو غورځيدلے تنے وے، نو څنګه دے څما عذاب او څما يرونه.

۸۵٦: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ اَنَّهُ سَمِعَ رَجُلًا سَاَلَ الْاَسْوَدَ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ اَوْ مُذَّكِرٍ فَقَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ يَقْرَءُ وَهَا فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ قَالَ وَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَءُ وُهَا فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ دَالًا.

۸۵٦: ابونعيم. زهير. ابو اسحٰق نه روايت کوي، هغه يو سړے ذ اسود، نه په تپوس کولو اوليدلو، چه ''فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ'' دے. يا ''مُذَّكِرٍ'' دے (يعني دال سره دے يا ذال سره دے) نو هغه اووے، ما ذ عبدالله نه ''فَهَل مِنْ مُدَّكِرٍ'' لوستل آوريدلے دي. او هغه اووے. ما د نبي صلي الله عليه وسلّم نه ''فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ'' دال سره لوستل آوريدلے دي.

بَابُ ۳۸۹: قَوْلِهٖ فَكَانُوْا كَهَشِيْمِ الْمُحْتَظِرِ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ.

باب ۳۸۹: ايت: فَكَانُوْا كَهَشِيْمِ الْمُحْتَظِرِ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ.

۸۵۷: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَءَ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ. اَلْاٰيَةَ.

۸۵۷: عبدان. د عبدان پلار. شعبه. ابو اسحاق. اسود. حضرت عبدالله نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي چه حضور صلي الله عليه وسلّم ''فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ'' لوستے دے.

بَابُ ۳۹۰: قَوْلِهٖ وَلَقَدْ

باب ۳۹۰: ايت: وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ

صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُسْتَقِرٌّ فَذُوْقُوْا عَذَابِيْ وَ نُذُرِ.

مُسْتَقِرٌّ فَذُوْقُوْا عَذَابِیْ وَ نُذُرِ" په هغوي سحر وختي يقيني عذاب راغے' نو څما عذاب او څما يرونه او څکئے.

**٨٥٨:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِیْ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَاَ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ.

**٨٥٨:** محمد. غندر. شعبه. ابو اسحاق. اسود. حضرت عبدالله. نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي' چه حضور "فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ" اووے.

**باب ١ ٣٩: قَوْلِهٖ وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا اَشْيَاعَكُمْ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ.**

**باب ١ ٣٩:** آيت: وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا اَشْيَاعَكُمْ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ: مونږ ستاسو ډير ملګري هلاک کړل' نو څوک نصيحت قبلونکے شته.

**٨٥٩:** حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ اِسْرَآئِيلَ عَنْ اَبِیْ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَرَأْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ.

**٨٥٩:** يحيي. وكيع. اسرائيل. ابو اسحاق. اسود بن يزيد. حضرت عبدالله نه روايت كوي' دَ هغهٔ بيان دے' ما دَ نبي صلي الله عليه وسلّم مخكښ "فهل من مدكر" اولوست (نو نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل چه "فهل من مدكر" وايه).

**باب ٢ ٣٩: قَوْلِهٖ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَ يُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ.**

**باب ٢ ٣٩:** آيت: سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَ يُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ: عنقريب دَ كفارو جماعت به شكست اوخوري' او هغه خلق به مخ په شا اوتښتي.

**٨٦٠:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَوْشَبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ ح وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ وُهَيْبٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ فِیْ قُبَّةٍ يَوْمَ

**٨٦٠:** محمد بن عبدالله. حوشب. عبدالوهاب. خالد. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ (دويم سند) محمد. عفان بن مسلم. وهيب. خالد. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم د جنګ بدر په ورځ چه حضور صلي الله عليه وسلّم يوه خيمه كښ وو' دا دُعا ئے اوكړله: اے الله زه تاته ستا د عهد او وعدے واسطه دركوم' اے الله' كه ته غواړے' چه د نن نه پس دے ستا عبادت نه وي. دے كښ حضرت ابوبكرؓ دَ حضور

بَدْرٍ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَ وَعْدَكَ اَللّٰهُمَّ اِنْ تَشَاءُ لَا تُعْبَدُ بَعْدَ الْيَوْمِ فَاَخَذَ اَبُوْ بَكْرٍ بِيَدِهٖ فَقَالَ حَسْبُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلْحَحْتَ عَلٰى رَبِّكَ وَهُوَ يَثِبُ فِي الدِّرْعِ فَخَرَجَ وَهُوَ يَقُوْلُ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَ يُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ.

صلي الله عليه وسلّم لاس اونيولو' او ونيلے' بس يا رسول اللّه تاسو خپل رب نه ډيره دُعا اوغبنتله. دغه وخت حضور صلي الله عليه وسلّم زغره اغوستے وه' جوش كبن وو. نو حضور صلي الله عليه وسلّم دے ايت لوستو سره راووتلو' عنقريب دَ كافرو جماعت به شكست اوخوري' او هغه خلق به مخ په شا اوتښتي.

## باب ۳۹۳: قَوْلِهٖ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ اَدْهٰى وَ اَمَرُّ يَعْنِي مِنَ الْمَرَارَةِ.

باب ۳۹۳: ايت: بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ اَدْهٰى وَ اَمَرُّ. "امرّ" مراره (تريخ) نه ماخوذ دے.

۱۸۶۱: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْسُفُ بْنُ مَاهِكٍ قَالَ اِنِّيْ عِنْدَ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَتْ لَقَدْ اُنْزِلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ وَ اِنِّيْ لَجَارِيَةٌ اَلْعَبُ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ اَدْهٰى وَ اَمَرُّ.

۱۸۶۱: ابراهيم بن موسٰي. هشام بن يوسف. ابن جريج. يوسف بن مالک نه روايت كوي. د هغه بيان دے' زه د مؤمنانو مور' بي بي عائشے رضي الله عنها سره ووم' نو هغے اووے' چه ايت: بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ اَدْهٰى وَ اَمَرُّ: په محمد صلي اللّه عليه وسلّم مكه كبن نازل شولو' هغه وخت زه جينئ ووم' او لوبے به مِ كولے.

۱۸۶۲: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ فِيْ قُبَّةٍ لَهٗ يَوْمَ بَدْرٍ اَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَ وَعْدَكَ اَللّٰهُمَّ اِنْ شِئْتَ لَمْ تُعْبَدْ بَعْدَ الْيَوْمِ اَبَدًا فَاَخَذَ اَبُوْبَكْرٍ بِيَدِهٖ وَ قَالَ حَسْبُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَدْ اَلْحَحْتَ عَلٰى رَبِّكَ وَهُوَ فِي الدِّرْعِ فَخَرَجَ وَهُوَ يَقُوْلُ

۱۸۶۲: اسحاق. خالد. عكرمه. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت كوي' دَ جنګ بدر په ورځ نبي صلي الله عليه وسلّم يوه خيمه كبن وو. حضور صلي الله عليه وسلّم دا دُعا اوكړله' اے اللّه' زهٔ تاته ستا عهد او وعده يادَوم اے اللّه كه تهٔ غوارے' نو دَ نن نه پس به ستا عبادت چرے اونشي' نو دے كبن حضرت ابوبكر رضي الله عنه دَ حضور صلي الله عليه وسلّم لاس مبارک اونيولو او ونيلے' بس كافي ده' يا رسول اللّه' تاسو خپل رب نه ډيره دُعا اوغبنتله دغه وخت حضورٌ زغره اغستے وه. حضورٌ

سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَ يُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ اَدْهٰى وَ اَمَرُّ.

بهرته تشریف راوړلو' نو دا آیت ئے لوستلو: سَيُهْزَمُ الجمع و يولّون الدّبر' بل الساعة ادهی و امرّ: عنقریب ذَ کافرو ډله به ماتے اوخوري.

# سُوْرَةُ الرَّحْمٰن

# دَ سورهٔ الرحمٰن تفسير

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ بِحُسْبَانٍ كَحُسْبَانِ الرَّحٰى وَ قَالَ غَيْرُهٗ وَ اَقِيْمُوا الْوَزْنَ يُرِيْدُ لِسَانَ الْمِيْزَانِ وَالْعَصْفُ بَقْلُ الزَّرْعِ اِذَا قُطِعَ مِنْهُ شَيْءٌ قَبْلَ اَنْ يُدْرِكَ فَذٰلِكَ الْعَصْفُ وَالرَّيْحَانُ وَرَقُهٗ وَالْحَبُّ الَّذِيْ يُؤْكَلُ مِنْهُ وَالرَّيْحَانُ فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ الرِّزْقُ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ وَالْعَصْفُ يُرِيْدُ الْمَاْكُوْلَ مِنَ الْحَبِّ وَالرَّيْحَانُ النَّضِيْجُ الَّذِيْ لَمْ يُؤْكَلْ وَ قَالَ غَيْرُهُ الْعَصْفُ وَرَقُ الْحِنْطَةِ وَ قَالَ اَبُوْ مَالِكٍ الْعَصْفُ اَوَّلُ مَا يَنْبُتُ تُسَمِّيْهِ النَّبَطُ هَبُوْرًا وَّ قَالَ مُجَاهِدٌ الْعَصْفُ وَرَقُ الْحِنْطَةِ وَالرَّيْحَانُ الرِّزْقُ وَالْمَارِجُ اللَّهَبُ الْاَصْفَرُ وَالْاَخْضَرُ الَّذِيْ يَعْلُوا النَّارَ اِذَا اُوْقِدَتْ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ عَنْ مُجَاهِدٌ رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ لِلشَّمْسِ فِي الشِّتَآءِ مَشْرِقٌ وَ مَشْرِقٌ فِي الصَّيْفِ وَ رَبُّ

''وَ اَقِيْمُوا الْوَزْنَ'' نه مراد' د تلے (ترازو) ډنډئ ده (ډنډي د تلے لرګي چه په دواړو سرونو کښې ئے د تلے چاېړي تړلے وي) ''عَصْفُ'' کچه فصل ته وائي' چه د پخیدونه مخکښې د هغے نه څه اوریبلے شي. نو دا ''عَصْفُ'' دے ''وَالرَّيْحَانُ'' په معنٰي دَ روزي' او هغه دا نه چه خوړلے شي او ریحان د عربو کلام کښې رزق ته وائي. او بعضو اووے. چه ''عَصْفُ'' نه مراد هغه دانے دي. چه لانه وي خوړلے شوے. او نورو خلقو اووے چه ''عَصْفُ'' د غنمو پانړو ته وائي. او ضحاک اووے. ''عَصْفُ'' په معنٰي دا اوچ واښهٔ دے. ابو مالک اووے. ''عَصَفُ'' دے ته وائي. چه د ټولونه مخکښې اوټو کیږي. نبطي ژبه کښې دے ته ''هبور'' وائي. او مجاهد اووے. ''عَصْفُ'' معنٰي د غنمو پانړه ده. او ''ریحان'' په معنٰي د رزق دے. ''مَارِجُ'' زیړے او شنے شغلے چه اور بلولو سره اوچتیږي. او بعضو د مجاهد نه نقل کړے دے. چه ''رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ'' نه ژمي کښې د نمر د طلوع کیدو ځائے او ګرمي کښې د نمر دَ طلوع کیدو ځائے مراد دے. ''رب المغربین'' ژمي یا یخني کښې دَ نمر پریوتو ځائے او ګرمي کښې دَ نمر دَ غروب کیدو ځائے ته وائي. ''لا یبغیان'' دواړه یو ځائے کیږي نه. ''منشاٰت'' هغه جهاز چه د هغے بادبان بلند کړے شوے وي' او د کومو بادبان چه بلند کړے شوے

الْمَغْرِبَيْنِ مَغْرِبُهَا فِي الشِّتَاءِ
وَالصَّيْفِ لَا يَبْغِيَانِ لَا يَخْتَلِطَانِ
الْمُنْشَآتُ مَا رُفِعَ قِلْعُهُ مِنَ السُّفُنِ
فَأَمَّا مَالَمْ يُرْفَعْ قِلْعُهُ فَلَيْسَ بِمُنْشَأَةٍ وَ
قَالَ مُجَاهِدٌ كَالْفَخَّارِ كَمَا
يُصْنَعُ الْفَخَّارُ الشُّوَاظُ لَهَبٌ مِنَ نَّارٍ
وَنُحَاسٌ الصُّفْرُ يُصَبُّ عَلَى
رُءُوسِهِمْ يُعَذَّبُوْنَ بِهِ خَافَ
مَقَامَ رَبِّهِ يَهُمُّ بِالْمَعْصِيَةِ فَيُذْكُرُ
اللّٰهَ عَزَّ وَ جَلَّ فَيَتْرُكُهَا مُدْهَآمَّتَانِ
سَوْدَاوَانِ مِنَ الرِّيِّ صَلْصَالٍ طِيْنٌ
خُلِطَ بِرَمْلٍ فَصَلْصَلَ كَمَا
يُصَلْصِلُ الْفَخَّارُ وَ يُقَالُ صَلْصَالٌ
كَمَا يُقَالُ صَرَّ الْبَابُ عِنْدَ الْإِغْلَاقِ
وَ صَرْصَرَ مِثْلُ كَبْكَبْتُهُ يَعْنِي
كَبَبْتُهُ فَاكِهَةٌ وَ نَخْلٌ وَ رُمَّانٌ وَ
قَالَ بَعْضُهُمْ لَيْسَ الرُّمَّانُ وَالنَّخْلُ
بِالْفَاكِهَةِ وَ اَمَّا الْعَرَبُ فَاِنَّهَا
تَعُدُّهَا فَاكِهَةً كَقَوْلِهٖ عَزَّ وَ جَلَّ
حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلٰوةِ
الْوُسْطٰى فَاَمَرَهُمْ بِالْمُحَافَظَةِ
عَلٰى كُلِّ الصَّلَوَاتِ ثُمَّ اَعَادَ
الْعَصْرَ تَشْدِيْدًا لَهَا كَمَا اُعِيْدَ
النَّخْلُ وَالرُّمَّانُ وَ مِثْلُهَا اَلَمْ تَرَ اَنَّ
اللّٰهَ يَسْجُدُ لَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ
فِي الْاَرْضِ ثُمَّ قَالَ وَ كَثِيْرٌ مِّنَ

نه وي، هغه "منشأت" نه دي، او مجاهد اووے. "نحاس"
نه مراد هغه تانبه چه ويلے کړے شي او د هغوي په
سرونو به واچولے شي او هغوي ته به دے سره عذاب
ورکيږي. "خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ" دَ څه ګناه قصد کوي، بيا اللّٰه
تعالٰي ياد کړي، نو دَ هغے اراده ترک کړي. "شُوَاظٌ" د
اور شغلے. "مُدْهَآمَّتَانِ" ډوب شين مائل توروالي ته
"طِيْنٌ" هغه خاوره چه شږه (ريت) ورسره يوځائے شوے
وي، چه لکه د ټيکري ټنګيږي. او بعضے وائي، چه
ددے معني دي سخا شوے (سڑاہوا)۔ ددے "صل" مراد
اخلي "صَلْصَالٌ" ورته وئيلے شي، څنګه چه دَ دروازے د
بندولو په وخت وائي "صَرَّ الْبَابُ" او "صَرْصَرَ" ددے
مثال داسے دے، لکه "كَبْكَبْتُهُ" وئيلو سره "كَبَبْتُهُ" ترے
مراد اخلي. "فاكهة و نخل و رمّان" بعضو وئيلے دي، چه
رمان او نخل (آنار او قجورے) فواکه کښ نۀ دي. ليکن
عرب دا فاکه شميري، لکه دَ اللّٰه تعالٰي قول، دَ ټولو
مونځونو او دَ مينځني مونځ حفاظت کوئے نو اللّٰه تعالٰي
دَ ټولو مونځونو دَ حفاظت حکم اوکړلو بيا دَ مينځني
مونځ ئے صرف دَ دے دَ اهميت ظاهرولو دَ پاره دوباره
ذکر اوکه. دغه شان دَ نخل او رمان ئے دوباره ذکر
اوکه. او دَ دے په مثل دا آيت دے، چه آيا تا اونۀ ليدل
چه کوم خلق آسمانونو او زمکه کښ دي، او اکثر خلق
اللّٰه ته سجده کوي. بيائے اوفرمائيل، او ډير خلق چه په
هغوي عذاب ثابت شوے دے. "من في السمٰوٰت ومن
في الارض" په ضمن کښ دَ ټولو خلقو ذکر شوے دے.
ليکن "كثير من الناس" ئے جدا اووے. "افنان" نه مراد
شاخونه (بناخونه) دي "وجنا الجنتين دان" هغه ميوه چه

النَّاسِ وَ كَثِيْرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ وَقَدْ ذَكَرَهُمْ فِيْ اَوَّلِ قَوْلِهٖ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ وَ قَالَ غَيْرُهٗ اَفْنَانٍ اَغْصَانٍ وَ جَنَا الْجَنَّتَيْنِ مَا يُجْتَنٰى قَرِيْبٌ وَ قَالَ الْحَسَنُ فَبِاَيِّ الَآءِ نِعَمِهٖ وَ قَالَ قَتَادَةُ رَبِّكُمَا يَعْنِي الْجِنَّ وَالْاِنْسَ وَ قَالَ اَبُو الدَّرْدَاءِ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِيْ شَاْنٍ يَغْفِرُ ذَنْبًا وَ يَكْشِفُ كَرْبًا وَّ يَرْفَعُ قَوْمًا وَّ يَضَعُ آخَرِيْنَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ بَرْزَخٌ حَاجِزٌ الْاَنَامُ الْخَلْقُ نَضَّاخَتَانِ فَيَّاضَتَانِ ذُو الْجَلَالِ ذُو الْعَظَمَةِ وَ قَالَ غَيْرُهٗ مَارِجٌ خَالِصٌ مِنَ النَّارِ يُقَالُ مَرَجَ الْاَمِيْرُ رَعِيَّتَهٗ اِذَا خَلَّاهُمْ يَعْدُوْ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ مَرَجَ اَمْرُ النَّاسِ مَرِيْجٍ مُّلْتَبِسٍ مَرَجَ اخْتَلَطَ الْبَحْرَانِ مِنْ مَّرَجْتَ دَآبَّتَكَ تَرَكْتَهَا سَنَفْرُغُ لَكُمْ سَنُحَاسِبُكُمْ لَا يَشْغَلُهٗ شَيْءٌ عَنْ شَيْءٍ وَهُوَ مَعْرُوْفٌ فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ يُقَالُ لَا تَفَرَّغَنَّ لَكَ وَمَا بِهٖ شُغْلٌ يَقُوْلُ لَاٰخُذَنَّكَ عَلٰى عِزَّتِكَ.

چنئ کولے به شي' قريب به وي. حسن اووے "فباىَ الاء" کښې "آلاء" نه مراد ذَ هغه نعمتونه دي. او قتاده اووے "ربکما" کښې د "کما" مرجع جن و انس دي. او ابوالدرداء اووے. "کلَ يوم فى شان" گناه ښني مصيبت لرے کوي' يو قوم اوچتوي' بل پست کوي (غرخوى) او ابن عباسؓ اووے. "برزخ" نه مراد حاجز (منع کونکے) دے. "انـام" خـلـق. "نـضاختـان" جوش کـونـکي. "ذوالجلال" عـظـمـت والـه' او نورو اووے. "مـارج" خـالـص اُور (چه هغے کښې لوګے نه وي). "مرج الامير رعيتـه" هغـه وخت وائي' هر کله چه امير ذَ هغوي مينځ کښې تـخـلـيـه (جـداوالے) اوکړي' داسے حال کښې چه هغـوي پـه يو بل ذَ حملے په غرض ورمنډه کوي. "مرج امـر الـنـاس" ذَ خلقو معامله مشتبه شوه. "مريج" يوځائے شـوے. "مـرج" دوه دريـابونه ئے يوځائے کړل. "مرجت دابتـک" (تـا خپـل خـنـاور پـريـښـودل) نـه ماخوذ دے. "سـنـفـرغ لکم" عنقريب به مونږ ستاسو محاسبه اوکړو. هغه هيڅ څيز' هيڅ څيز طرف نه مشغول کولے نشي' دا اصـطـلاح کـلام عـربـو کښې مشهوره ده' وئيلے شي "لَا تَـفـرَّغَـنَّ لَـکَ" زهٔ بـه ستا ذَ پاره فارغ يم' حالانکه ذَ هغهٔ هيـڅ کـار نشتـه' وائـي' ستـا پـه غـفـلـت به ستا مواخذه اوکړم.

## باب ۳۹۴: قَوْلِهٖ وَمِنْ دُوْنِهِمَا جَنَّتَانِ.

باب ۳۹۴: آيت: وَمِنْ دُوْنِهِمَا جَنَّتَانِ: ذَ اللّٰه تعالٰي ذَ قول تفسير.

۸۶۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ الْعَمِّيُّ حَدَّثَنَا اَبُوْ عِمْرَانَ

۸۶۳: عبـداللّٰه بـن ابي الاسـود. عبدالعزيز بن عبـدالـصمد عمي. ابو عمران جوني. ابوبکر بن عبداللّٰه بـن قيـس. ذَ خپل پلار نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي

الْجَوْنِيُّ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ جَنَّتَانِ مِنْ فِضَّةٍ اٰنِيَتُهُمَا وَمَا فِيْهِمَا وَ جَنَّتَانِ مِنْ ذَهَبٍ اٰنِيَتُهُمَا وَمَا فِيْهِمَا وَمَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَ بَيْنَ اَنْ يَّنْظُرُوْا اِلٰى رَبِّهِمْ اِلَّا رِدَآءُ الْكِبْرِ عَلٰى وَجْهِهٖ فِيْ عَدْنٍ.

اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل دوه باغونه به وي چه د هغې لوښي او د هغې ټول څيزونه به د چاندۍ وي او دوه باغونه به وي چه د هغې لوښي او ټول څيزونه به د سرو زرو وي. او د خلقو مينځ کښې او د دې امر مينځ کښې چه هغه خلق به خپل رب جنت عدن کښې اووينې بيوا د عظمت د پردې هيڅ څيز د هغه به منځ به نه وي.

باب ۳۹۵: قَوْلِهٖ حُوْرٌ مَّقْصُوْرَاتٌ فِي الْخِيَامِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ حُوْرٌ سُوْدُ الْحَدَقِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مَقْصُوْرَاتٌ مَحْبُوْسَاتٌ قُصِرَ طَرْفُهُنَّ وَ اَنْفُسُهُنَّ عَلٰى اَزْوَاجِهِنَّ قَاصِرَاتٌ لَا يَبْغِيْنَ غَيْرَ اَزْوَاجِهِنَّ.

باب ۳۹۵: ايت: حُوْرٌ مَّقْصُوْرَاتٌ فِي الْخِيَامِ (داسې حورې چه خيمو کښې پټې دي). او ابن عباسؓ اووې، چه "حُوْرٌ" تورو سترګو واله ښځې ته وائي. او مجاهد اووې چه "مَقْصُوْرَاتٌ" په معنې د "مَحْبُوْسَاتٌ" بند کړې شوې. ايسارې کړې شوې. د هغوي سترګې او خواهشات به خپلو خاوندانو باندې موقوف دي "قَاصِرَاتٌ" د خپلو خاوندانو نه علاوه د بل چا تلاش نه کوي.

۸۶۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ خَيْمَةً مِّنْ لُؤْلُؤَةٍ مُجَوَّفَةٍ عَرْضُهَا سِتُّوْنَ مِيْلًا فِيْ كُلِّ زَاوِيَةٍ مِّنْهَا اَهْلٌ مَا يَرَوْنَ الْاٰخَرِيْنَ يَطُوْفُ عَلَيْهِمُ الْمُؤْمِنُوْنَ وَ جَنَّتَانِ مِنْ فِضَّةٍ اٰنِيَتُهُمَا وَمَا فِيْهِمَا وَ جَنَّتَانِ مِنْ كَذَا اٰنِيَتُهُمَا

۸۶۴: محمد بن مثنٰي. عبدالعزيز بن عبدالصمد. ابو عمران جوني. ابوبكر بن عبداللّٰه بن قيس. د خپل پلار نه روايت کوي. د هغه بيان دې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. جنت کښې د درې ملغلرې يوه خيمه ده، چه د هغې پلنوالې شپيته ميله دې ددې په هر ګوټ کښې به بيبيانې وي. د يو ګوټ واله به د بل ګوټ واله نشي ليدې. او مؤمنان به په هغوي چکر لګوي. او دوه باغونه دي، چه د هغې لوښي او د هغې ټول څيزونه د چاندي دي. او دوه داسې باغونه دي، چه د هغې لوښي او ټول څيزونه د سرو زرو دي. او جنت

وَمَا فِيهِمَا وَمَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَبَيْنَ أَنْ يَنْظُرُوا إِلَى رَبِّهِمْ إِلَّا رِدَاءُ الْكِبْرِ عَلَى وَجْهِهِ فِي جَنَّةِ عَدْنٍ.

عدن كښې (چه ذَ جنت ذَ يو ځصے نوم دے) ذَ خلقو او ذَ څښتن ذَ رب ذَ ديدار مينځ كښې به هيڅ څيز بغير ذَ عظمت ذَ پردے نه به وي.

# سُوْرَةُ الْوَاقِعَةِ

# دَ سورۀ واقعه تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ رُجَّتْ زُلْزِلَتْ بُسَّتْ فُتِّتَتْ لُتَّتْ كَمَا يُلَتُّ السَّوِيْقُ الْمَخْضُوْدُ الْمُوْقَرُ حَمْلًا وَيُقَالُ أَيْضًا لَا شَوْكَ لَهُ مَنْضُوْدٍ الْمَوْزُ وَالْعُرُبُ الْمُحَبَّبَاتُ إِلَى أَزْوَاجِهِنَّ ثُلَّةٌ أُمَّةٌ يَحْمُوْمٍ دُخَانٍ أَسْوَدَ يُصِرُّوْنَ يُدِيْمُوْنَ الْهِيْمُ الْإِبِلُ الظِّمَاءُ لَمُغْرَمُوْنَ لَمُلْزَمُوْنَ رَوْحٌ جَنَّةٌ وَرَخَاءٌ وَرَيْحَانٌ الرِّزْقُ وَنُنْشِأَكُمْ فِيْ أَيِّ خَلْقٍ نَشَاءُ وَقَالَ غَيْرُهُ تَفَكَّهُوْنَ تَعْجَبُوْنَ عُرُبًا مُثَقَّلَةٌ وَاحِدُهَا عَرُوْبٌ مِثْلُ صَبُوْرٍ وَصُبُرٍ يُسَمِّيْهَا أَهْلُ مَكَّةَ الْعَرِبَةَ وَأَهْلُ الْمَدِيْنَةِ الْغَنِجَةَ وَأَهْلُ الْعِرَاقِ الشَّكِلَةَ وَقَالَ فِيْ خَافِضَةٌ لِقَوْمٍ إِلَى النَّارِ وَرَافِعَةٌ إِلَى الْجَنَّةِ مَوْضُوْنَةٍ مَنْسُوْجَةٍ وَمِنْهُ وَضِيْنُ النَّاقَةِ وَالْكُوْبُ لَا آذَانَ لَهُ وَلَا عُرْوَةَ وَالْأَبَارِيْقُ ذَوَاتُ الْآذَانِ وَالْعُرَى

او مجاهد اووے "رجت" په معنې ذَ اوخوزولے شي. "بست" مات او ميده كړے شي، څنګه چه ستوان ميده كولے شي. "المخضود" چه بوج شوے وي. او هغے څيز ته هم وئيلے شي، چه هغے كښې ازغي نۀ وي. "منضود" كيلا "عُرُب" چه خپلو خاوندانو سره به محبت كونكے وو. "ثلة" جماعت. ډله. "يحموم" تور لوګے. "يصرون" هميشه ئے كوي. "هيم" تږے اوښ. "لمغرمون" الزام كړے شوے. "روح" جنت او خوش حالي. "ريحان" رزق. "و ننشاكم" كوم صورت كښې چه مونږ غواړو، پيدا كړو. او نورو اووے "تفكهون" تاسو تعجب كوئے. "عربا" مثقله دے يعني عين متحرك او مضمون دے. ذَ دے واحد "عروب" دے لكه صبور او صبر اهل مكه دے ته "عربه" او اهل مدينه "غنجه" او اهل عراق "شكله" وائي. "خافضة" يو قوم ذَ جهنم پستي ته بوتلونكے، او جنت طرف ته پورته بوتلونكے. "موضونة" جوړ شوے. دے نه. "وضين الناقة" ماخوذ دے. او "كوب" هغه لوښے دے، چه هغے كښې دسته نه وي. "اباريق" هغه وي چه هغے كښې دستے وي. "مسكوب" بهيدونكے "وَفُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ" يو بل د پاسه به غوړېدلے وي. "مُتْرَفِيْنَ" فائده اوچتونكي "ما

مَسْكُوْبٍ جَارٍ وَ فُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ مُتْرَفِيْنَ مُتَمَتِّعِيْنَ مَا تُمْنُوْنَ هِيَ النُّطْفَةُ فِيْ اَرْحَامِ النِّسَآءِ لِلْمُقْوِيْنَ لِلْمُسَافِرِيْنَ وَالْقِيُّ الْقَفْرُ بِمَوَاقِعِ النُّجُوْمِ بِمُحْكَمِ الْقُرْاٰنِ وَ يُقَالُ بِمَسْقِطِ النُّجُوْمِ اِذَا سَقَطْنَ وَ مَوَاقِعُ وَ مَوْقِعُ وَاحِدٌ مُّدْهِنُوْنَ مُكَذِّبُوْنَ مِثْلُ لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُوْنَ فَسَلَامٌ لَّكَ اَيْ مُسَلَّمٌ لَكَ اِنَّكَ مِنْ اَصْحَابِ الْيَمِيْنِ وَ اُلْغِيَتْ اِنَّ وَهُوَ مَعْنَاهَا كَمَا تَقُوْلُ اَنْتَ مُصَدَّقٌ مُسَافِرٌ عَنْ قَلِيْلٍ اِذَا كَانَ قَدْ قَالَ اِنِّيْ مُسَافِرٌ عَنْ قَلِيْلٍ وَقَدْ يَكُوْنُ كَالدُّعَآءِ لَهٗ كَقَوْلِكَ فَسَقْيًا مِّنَ الرِّجَالِ اِنْ رَفَعْتَ السَّلَامَ فَهُوَ مِنَ الدُّعَآءِ تُوْرُوْنَ تَسْتَخْرِجُوْنَ اَوْرَيْتُ اَوْقَدْتُ لَغْوًا بَاطِلًا تَاْثِيْمًا كَذِبًا.

"تُمْنُوْن" نطفه چه د ښځے په رحم کښې توېږي "لِلْمُقْوِيْن" مسافرو د پاره "قِيُّ" نه ماخوذ دے. په معني د اوچ کړس ميدان. "بِمَوَاقِعِ النُّجُوْم" د ستورو خانے يعني د قرآن د محکم ايتونو قسم خورم. او بعضے خلقو اووے' چه دے نه مراد' د ستورو دَ ډوبيدو خانے دے. او "مَوَاقِعُ" او "مَوْقِعُ" يو دي. "مُدْهِنُوْن" دروغجن کونکے دي' لکه "لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُوْنَ" چه دي. "فَسَلَامٌ لَكُمْ" يعني ته تسليم کړے شوے ئے. ته دَ اصحاب اليمين نه ئے. او دے کښې د "ان" لفظ نه دے راوړے. او ددے مثال داسے دے' لکه چه تاسو چاته اووائے "اَنْتَ مُصَدَّقٌ مُسَافِرٌ عَنْ قَلِيْلٍ" يعني ستا تصديق کولے شي' چه ته عنقريب سفر کوونکے ئے' هر کله چه هغه خپله وئيلے وي' چه زهٔ عنقريب سفر کوونکے يم. او کله د دُعا په طور هم مستعمليږي' لکه فَسَقْيًا مِّنَ الرِّجَالِ (خلق به سيراب شي) او سلام چه حالت رفع کښې وي' نو دُعا د پاره وي. "تُوْرُوْنَ" تاسو اوکاږئ. "اَوْرَيْتُ" اُوپاړولے شو. "لَغْوًا" باطل. "تَاْثِيْمًا" دروغ.

## بَابٌ ۳۹۶: قَوْلُهٗ وَ ظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ.

## باب ۳۹۶: ايت: وَ ظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ' دَ اللّٰه تعالٰي قول (او خور شوے سورے).

۸۶۵: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةً يَّسِيْرُ الرَّاكِبُ فِيْ ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لَا يَقْطَعُهَا وَاقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ وَ

۸۶۵: علي بن عبدالله. سفيان. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي' او هغه دا حضور صلي الله عليه وسلّم ته رسوي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. جنت کښې يوه اُونه ده' چه دَ هغے په سوري کښې به سور (سوار) سل کاله پورے ځي' او هغه به طے نهٔ کړے شي. که تاسو غواړئ' نو دا آيت "و ظل

ظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ.

ممدود" اوږدې.

# سُوْرَةُ الْحَدِيْدِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ مُجَاهِدٌ جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِيْنَ مُعَمَّرِيْنَ فِيْهِ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ مِنَ الضَّلَالَةِ اِلَى الْهُدٰى وَ مَنَافِعُ لِلنَّاسِ جُنَّةٌ وَ سِلَاحٌ مَوْلَاكُمْ اَوْلٰى بِكُمْ لِئَلَّا يَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتَابِ لِيَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتَابِ يُقَالُ الظَّاهِرُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا وَالْبَاطِنُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا اُنْظُرُوْنَا اِنْتَظِرُوْنَا.

# دَ سورۀ حديد تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد اووې "جعلكم مستخلفين" يعني تاسو ئې جوړ كړئې، او هغې كښې آباديدونكي "من الظلمات الى النور" ګمراهي نه هدايت طرف ته. "و منافع للناس" ډهال او وسله. "مولاكم" ستاسو رونق هغه دې. "لئلا يعلم اهل الكتاب" چه اهل كتاب پوه شي. وئيلې شي، چه هغه دَ علم دَ اعتبار نه په هر څيز ظاهر دې. او دَ علم دَ اعتبار نه دَ هر څيز نه پټ دې. "انظرونا" څمونږ انتظار كوئې.

# سُوْرَةُ الْمُجَادَلَةِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ يُحَادُّوْنَ يُشَاقُّوْنَ اللّٰهَ كُبِتُوْا اُخْزُوْا مِنَ الْخِزْيِ اِسْتَحْوَذَ غَلَبَ.

# دَ سورۀ مجادله تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

او مجاهد اووې "يحادون" دَ اللّٰه مخالفت كوي. "كبتوا" ذليل كړې شو. "خزى" نه ماخوذ دې. "استحوذ" غالب شولو.

# سُوْرَةُ الْحَشْرِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْجَلَاءُ الْاِخْرَاجُ مِنْ اَرْضٍ اِلٰى اَرْضٍ.

# د سورۀ حشر تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

دَ جلاء معني دَ يو ملک نه بل ملک ته اوبنكل.

۸۶۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ

۸۶۶: محمد بن عبدالرحيم. سعيد بن سليمان. هشيم. ابوبشر. سعيد بن جبير نه روايت كوي. د هغه بيان دې ما د ابن عباسؓ نه د سورۀ توبه متعلق تپوس او كه نو هغه اووې، دا سورت

عَبَّاسٍ سُوْرَةُ التَّوْبَةِ قَالَ التَّوْبَةُ هِيَ الْفَاضِحَةُ مَا زَالَتْ تَنْزِلُ وَ مِنْهُمْ وَ مِنْهُمْ حَتّٰى ظَنُّوْا اَنَّهَا لَمْ تُبْقِ اَحَدًا مِنْهُمْ اِلَّا ذُكِرَ فِيْهَا قَالَ قُلْتُ سُوْرَةُ الْاَنْفَالِ قَالَ نَزَلَتْ فِيْ بَدْرٍ قَالَ قُلْتُ سُوْرَةُ الْحَشْرِ قَالَ نَزَلَتْ فِيْ بَنِي النَّضِيْرِ.

د کافرو فضیحت (رسو) کوونکے دے "وَ مِنْهُمْ وَ مِنْهُمْ" ایتونه نازلیدل' تردے چه خلقو گمان اوکړ' چه هیڅوک به باقي پاتے نشي' چه د هغه ذکر به وي. ما د سورة انفال متعلق تپوس اوکړ' نو وئیلے چه دَ بدر متعلق نازل شوے ما وے سورة حشر نو وے فرمائیل دَ بني نضیر متعلق نازل شوے دے.

۸۶۷: حَدَّثَنَا حَسَنُ بْنُ مُدْرِكٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ سُوْرَةُ الْحَشْرِ قَالَ قُلْ سُوْرَةُ النَّضِيْرِ.

۸۶۷: حسن بن مدرک. یحیٰي بن حماد. ابو عوانه. ابو بشر. حضرت سعید نه روایت کوي' د هغه بیان دے. ما د حضرت ابن عباسؓ نه د سورة حشر باره کښې تپوس اوکړ' هغه اووے دے ته "سُوْرَةُ النَّضِيْرِ" وایه.

باب ۳۹۷: قَوْلِهٖ مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِيْنَةٍ نَخْلَةٍ مَالَمْ تَكُنْ عَجْوَةً اَوْ بَرْنِيَّةً.

باب ۳۹۷: ایت: مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِيْنَةٍ: "لِيْنَةٍ" هر هغے اونے ته وائي' چه "عَجْوَةً" یا "بَرْنِيَّةً" نه وي.

۸۶۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّقَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيْرِ وَ قَطَعَ وَ هِيَ الْبُوَيْرَةُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِيْنَةٍ اَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَائِمَةً عَلٰى اُصُوْلِهَا فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِيُخْزِيَ الْفَاسِقِيْنَ.

۸۶۸: قتیبه. لیث. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلم دَ بني نضیر اُونے اوسوزولے' او پریکړلے دے ته بویره وئیلے شي. او الله تعالٰي دا ایت "مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِيْنَةٍ" تاسو چه کومے اُونے اووهلے' یا هغه مو د هغے په جرړو ولاړے پریښودلے' نو دا دَ الله حکم وو' او څکه چه فاسقان رسوا کړي.

باب ۳۹۸: قَوْلِهٖ مَا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ.

باب ۳۹۸: ایت: "مَا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ" (چه الله خپل رسول ته بغیر جنګ نه عطاء کړلو[1]).

[1]. د فقې په اصطلاح کښے "فَئ" هغه مال دے کوم چه د اهل حربو نه بغیر د جنګ نه حاصل شي.

د بنو نضير يهودو خلاف د حضورؐ كارروائي د هغوئ د مسلسل معاندانه روش په وجه سره وه. بهرحال په حالت جنګ کښې د مخالف قلعه ماتولو، باغونو او بوټو ويجاړولو ضرورت هم پيښيږي. لو ددې اسلام اجازت ورکړې دې. په ډېرو حالاتو کښې که چرې دا قسمه كاروائي اونه كړے شي نو د هغې نتيجه شکست هم كيدې شي. د فقهاؤ په دې باندې اتفاق دې چه دا قسمه كاروائي په حالت جنګ کښې جائز ده.

۸۶۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ غَيْرَ مَرَّةٍ عَنْ عَمْرٍو عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ عَنْ عُمَرَ قَالَ كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا لَمْ يُوجِفِ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ بِخَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ مِنْهَا نَفَقَةَ سَنَتِهِ ثُمَّ يَجْعَلُ مَا بَقِيَ فِي السِّلَاحِ وَالْكُرَاعِ عُدَّةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ.

۸۶۹: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. زهري. مالک بن اوس بن حدثان. حضرت عمرؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دې. د بني نضير مال د هغې مالونونه وو، چه الله تعالیٰ خپل رسول ته په طور د "فئ" عطا كړے وو. مسلمانانو په هغې د اسونو او سورلو په ذريعه حمله نه وه كړې نو دا صرف د الله د رسول د پاره وو، چه د هغې نه به حضورؐ د يو كال خرچ د خپل اهل و عيال د پاره اخستلو. او باقي به ئې وسله او سپاهيانو كښې د الله په لاره كښې د سامانِ جنګ د تياري د پاره تقسيم ږلو.

باب ۳۹۹: قَوْلِهِ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ.

باب ۳۹۹: آيت: وَمَا اٰتٰكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ: او رسول چه تاسوله څۀ دركړي، نو هغه واخلئے.

۸۷۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ لَعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُوتَشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللَّهِ فَبَلَغَ ذَلِكَ امْرَأَةً مِنْ بَنِي أَسَدٍ يُقَالُ

۸۷۰: محمد بن يوسف. سفيان. منصور. ابراهيم. علقمه. حضرت عبدالله نه روايت كوي. هغه اووې، الله تعالیٰ په هغې ښځو لعنت كړے دے، چه بدن باندې خال يا نښه جوړوي (خواه خان له وي يا بل چاله) او د مخ نه ويښتۀ شوكوي. او حُسن د پاره غاښونه كُشاده كوي، او د الله تعالیٰ جوړ شوے صورت بدلوي. د بني اسد يوه ښځه چه د هغې نوم اُم يعقوب وو. هغه چه ته خبر شوه او ... وئيلے، ماته معلومه شوے ده

لَهَا أُمُّ يَعْقُوبَ فَجَاءَتْ فَقَالَتْ إِنَّهُ بَلَغَنِيْ أَنَّكَ لَعَنْتَ كَيْتَ وَكَيْتَ فَقَالَ وَمَا لِيَ لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ هُوَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فَقَالَتْ لَقَدْ قَرَأْتُ مَا بَيْنَ اللَّوْحَيْنِ فَمَا وَجَدْتُ فِيهِ مَا تَقُوْلُ قَالَ لَئِنْ كُنْتِ قَرَأْتِيهِ لَقَدْ وَجَدْتِيهِ أَمَا قَرَأْتِ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا قَالَتْ بَلٰى قَالَ فَإِنَّهُ قَدْ نَهٰى عَنْهُ قَالَتْ فَإِنِّيْ أَرٰى أَهْلَكَ يَفْعَلُوْنَهُ قَالَ فَاذْهَبِيْ فَانْظُرِيْ فَذَهَبَتْ فَنَظَرَتْ فَلَمْ تَرَ مِنْ حَاجَتِهَا شَيْئًا فَقَالَ لَوْ كَانَتْ كَذٰلِكَ مَا جَامَعْتُنَا.

چه تا دا شان لعنت کړے دے، نو هغه ورته اووے، زه ولے په هغے لعنت اونه کړم، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم پرے لعنت وئيلے دے او چه کتاب الله کښې هم دي. هغے ښځے اووے، ما هغه لوستے دے، چه دَ دوو لوحو مينځ کښې دے (يعني پوره قران م لوستے دے) ليکن دا تـه چه څهٔ وائے هغه م په کښې نهٔ دي لوستے، نو هغهٔ ورته اووے که تا لوستے، نو ضرور به دے په کښې بيامندے وے. آيا تا دا آيت نهٔ دے لوستے، رسول چه څهٔ تاسو ته درکړي، نو هغه اَخلئ، او دَ څهٔ نه چه مو منع کړي، دَ هغے نه منع شئ. هغے اووے، او، عبدالله اووے. حضورؐ دَ دے نه يعني په بدن خالونو او نښو کولو نه) منع فرمائيلے ده. هغے ښځے اووے ستا ښځه خو دغسے کوي، هغه ورته اووے، لاړه شه، اوګوره، نو هغه ورغله چه وے کتل نو هيڅ ئے بيانهٔ مندل. عبدالله ورته اووے که هغے داسے کولے نو ما سره به نهٔ اوسيدله.

۱۷۸: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ سُفْيَانَ قَالَ ذَكَرْتُ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَابِسٍ حَدِيْثَ مَنْصُوْرٍ عَنْ إِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَعَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاصِلَةَ فَقَالَ سَمِعْتُهُ مِنِ امْرَأَةٍ يُقَالُ لَهَا أُمُّ يَعْقُوْبَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ مِثْلَ حَدِيْثِ مَنْصُوْرٍ.

۱۷۸: علي. عبدالرحمٰن. سفيان. نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. ما عبدالرحمٰن بن عابس ته دَ منصور دَ حديث ذکر اوکهٔ چه په واسطه دَ ابراهيم، علقمه، حضرت عبدالله نه ئے روايت کوي، هغهٔ اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلم په هغے لعنت وئيلے دے، چه خپل ويښتهٔ دَ بل ويښتو سره وَرَوَلي (يعني مصنوعي ويښتهٔ لږوي) نو هغهٔ اووے، ما دا حديث دَ يوے ښځے نه آوريدلے دے، چه دَ هغے نوم اُم يعقوب وو، هغه ښځه دَ عبدالله نه دَ منصور دَ حديث په شان روايت کوي.

## بَابٌ ۴۰۰: قَوْلِهِ وَالَّذِيْنَ تَبَوَّؤُا الدَّارَ وَالْإِيْمَانَ.

## باب ۴۰۰: آيت: وَالَّذِيْنَ تَبَوَّؤُا الدَّارَ وَالْإِيْمَانَ: او چا چه دار (مدينه) او ايمان ټيکاونړه جوړ کړل.

۸۷۲: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا أَبُوبَكْرٍ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ أُوصِي الْخَلِيْفَةَ بِالْمُهَاجِرِيْنَ الْأَوَّلِيْنَ أَنْ يَعْرِفَ لَهُمْ حَقَّهُمْ وَ أُوصِي الْخَلِيْفَةَ بِالْأَنْصَارِ الَّذِيْنَ تَبَوَّؤُا الدَّارَ وَالْإِيْمَانَ مِنْ قَبْلِ أَنْ يُهَاجِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقْبَلَ مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَ يَعْفُوَ عَنْ مُسِيْئِهِمْ.

۸۷۲: احمد بن يونس. ابوبكر. حصين. عمرو بن ميمون نه روايت كوي. دَ هغه بيان دے. حضرت عمرؓ اووے' زهٔ خليفه ته دَ مهاجرين اولين متعلق وصيت كوم' چه هغه دَ هغوي حق اوپيژني' او دَ انصارو متعلق چه هغوي دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم د هجرت نه مخكښ مدينه او ايمان خپل تيكاؤنړه جوړ كړل خليفه ته وصيت كوم' چه دَ هغوي د نيكو كار نه نيكي قبوله كړي او د هغوي د بدونه درگزر اوكړي.

باب ۱۰۴: قَوْلِهِ وَ يُؤْثِرُوْنَ عَلٰى أَنْفُسِهِمُ الْآيَةَ الْخَصَاصَةُ الْفَاقَةُ الْمُفْلِحُوْنَ الْفَائِزُوْنَ بِالْخُلُوْدِ الْفَلَاحُ الْبَقَاءُ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ عَجِّلْ وَ قَالَ الْحَسَنُ حَاجَةً حَسَدًا.

باب ۱۰۴: ايت: وَ يُؤْثِرُوْنَ عَلٰى اَنْفُسِهِمْ: او هغه خلق چه خپل ځان ترجيح وركوي الخ. "خَصَاصَةٌ" لوږه' فاقه. "مُفْلِحُوْنَ" جنت كښ هميشه فلاح بيامندونكي. "الفلاح" بقا. باقي پاتے كيدل. "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ" تادئ سره خلاصي طرف ته راشے. او حسن اووے "حاجة" نه مراد حسد دے.

۸۷۳: حَدَّثَنِي يَعْقُوْبُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ بْنِ كَثِيْرٍ حَدَّثَنَا أَبُوْ أُسَامَةَ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ غَزْوَانَ حَدَّثَنَا أَبُوْ حَازِمٍ الْأَشْجَعِيُّ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ أَتَى رَجُلٌ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَصَابَنِي الْجَهْدُ فَأَرْسَلَ إِلٰى نِسَائِهِ فَلَمْ يَجِدْ عِنْدَهُنَّ شَيْئًا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا رَجُلٌ يُضَيِّفُ هٰذِهِ اللَّيْلَةَ يَرْحَمُهُ اللّٰهُ فَقَامَ رَجُلٌ مِّنَ

۸۷۳: يعقوب بن ابراهيم بن كثير. ابو اسامه. فضل بن غزوان. ابو حازم اشجعي. حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي' د هغه بيان دے' يو سړے دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښ حاضر شو. او عرض ئے اوكه' يا رسول اللّٰه زهٔ سخت اوږے شوے يم. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو بيبيانو طرف ته اوليږلو' نو هلته هيڅ څيز نه وو' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' څوک شته' چه نن شپه ددهٔ ميلمستيا اوكړي. اللّٰه به په هغه رحم اوكړي. انصارو كښ يو سړے اودريدلو' او عرض ئے اوكه يا رسول اللّٰه دے به زه ميلمه كړم' نو خپل كورته ئے بوتلو' او خپلے ښځے ته

الْأَنْصَارِ فَقَالَ أَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَذَهَبَ إِلٰى أَهْلِهٖ فَقَالَ لِامْرَأَتِهٖ ضَيْفُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَدَّخِرِيْهِ شَيْئًا قَالَتْ وَاللّٰهِ مَا عِنْدِيْ إِلَّا قُوْتُ الصِّبْيَةِ قَالَ فَإِذَا أَرَادَ الصِّبْيَةُ الْعَشَاءَ فَنَوِّمِيْهِمْ وَ تَعَالَيْ فَاطْفِئِي السِّرَاجَ وَ نَطْوِيْ بُطُوْنَنَا اللَّيْلَةَ فَفَعَلَتْ ثُمَّ غَدَا الرَّجُلُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَقَدْ عَجِبَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ أَوْضَحِكَ مِنْ فُلَانٍ وَ فُلَانَةٍ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَ يُؤْثِرُوْنَ عَلٰى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ.

لے اوویے، دا ذ رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم ميلمه دے. ده نه ذ خوراک څه څيز پټول نه دي په کار، ښځے ورته اووے. قسم په خدائے، سوا، ذ بچو د طعام نه نور هيڅ نشته. هغه ورته اووے، چه بچي د شپے ډوډئے اوغواړي نو په څه چل ئے اُودهٔ کړه. اوته راشه ډيوه مړه کړه، او مونږ به دا شپه په نهاره تيره کړو. نو ښځے هم دغسے اوکړل. بيا هغه سړے سحر وخت ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت کښ حاضر شو، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل الله بزرګ و برتر خوښ کړلو، يا وے فرمائيل چه فلاني سړي او فلانے ښځے پورے خندا ورغله نو الله بزرګ و برتر دا ايت نازل کړلو، چه هغوي په خان نورو له ترجيح ورکوي، اګر که خپله اوږے وي.

## سُوْرَةُ الْمُمْتَحِنَةِ

## دَ سورهٔ ممتحنه تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لَا تُعَذِّبْنَا بِأَيْدِيْهِمْ فَيَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ هٰؤُلَاءِ عَلَى الْحَقِّ مَا أَصَابَهُمْ هٰذَا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ أُمِرَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِفِرَاقِ نِسَائِهِمْ كُنَّ كَوَافِرَ بِمَكَّةَ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

او مجاهد اووے "لا تجعلنا فتنه" معني دا دي، چه مونږ ذ هغوي ذ لاسه په عذاب کښ آخته مهٔ کړے چه هغوئ اووائي، که دوي په حقه وي، نو دا مصيبت به ورته نه رسيدلو. "بعصم الکوافر" ذ نبي صلي الله عليه وسلّم اصحابوته حکم ورکړے شوے وو، چه هغه ښځے جدا کړي، چه حالت کفر کښ مکه کښ پاتے شوے وے.

### بَابُ ۴۰۲: قَوْلُهٗ لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَ عَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ.

باب ۴۰۲: آيت: لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَ عَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ: اے ايمان والو، خما دشمنان او خپل دشمنان خپل دوستان مهٔ جوړوئے.

۸۷۴: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا

۸۷۴: حميدي. سفيان. عمرو بن دينار.

سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ اَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ رَافِعٍ كَاتِبَ عَلِيٍّؓ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُوْلُ بَعَثَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا وَالزُّبَيْرَ وَالْمِقْدَادَ فَقَالَ انْطَلِقُوْا حَتّٰى تَأْتُوْا رَوْضَةَ خَاخٍ فَاِنَّ بِهَا ظَعِيْنَةً مَعَهَا كِتَابٌ فَخُذُوْهُ مِنْهَا فَذَهَبْنَا تَعَادٰى بِنَا خَيْلُنَا حَتّٰى اَتَيْنَا الرَّوْضَةَ فَاِذَا نَحْنُ بِالظَّعِيْنَةِ فَقُلْنَا اَخْرِجِي الْكِتَابَ فَقَالَتْ مَا مَعِيَ مِنْ كِتَابٍ فَقُلْنَا لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ اَوْ لَنُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ فَاَخْرَجَتْهُ مِنْ عِقَاصِهَا فَاَتَيْنَا بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا فِيْهِ مِنْ حَاطِبِ بْنِ اَبِيْ بَلْتَعَةَ اِلٰى اُنَاسٍ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ مِمَّنْ بِمَكَّةَ يُخْبِرُهُمْ بِبَعْضِ اَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا هٰذَا يَا حَاطِبُ قَالَ لَا تَعْجَلْ عَلَيَّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ كُنْتُ امْرَأً مِّنْ قُرَيْشٍ وَّلَمْ اَكُنْ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَ كَانَ مِمَّنْ مَّعَكَ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ لَهُمْ قَرَابَاتٌ يَحْمُوْنَ بِهَا اَهْلِيْهِمْ وَ اَمْوَالَهُمْ بِمَكَّةَ فَاَحْبَبْتُ اِذْ فَاتَنِيْ مِنَ النَّسَبِ فِيْهِمْ اَنْ اَصْطَنِعَ اِلَيْهِمْ يَدًا يَحْمُوْنَ قَرَابَتِيْ وَمَا فَعَلْتُ

حسن بن محمد بن علي. عبيدالله بن ابي رافع نه روايت کوي، ذ هغۀ بيان دے، ما ذ حضرت عليؓ نه واوريدل، زۀ زبيرؓ او مقدادؓ چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ليږلو، نو وے فرمائيل، ځئ لاړ شئ، تردے چه تاسو روضه خاخ ته اورسئ نو يوه سوره ښځه به بيامومئ. هغے سره به يو خط وي، هغه ترے واخلئ، مونږ خپل آسونه زغلولو سره روضه خاخ ته اورسيدو، نو مونږ هغه سوره ښځه رالاندے کړه. مونږ ورته اووے، هغه خط راوکاږه، هغے اووے، ما سره خو څۀ خط نشته، مونږ ورته اووے، خط راوکاږه، ګني کپړے درنه اوکاږو، نو هغے ذ سر ذ کمسو نه هغه خط راوښکلو، مونږ هغه واخستو او ذ نبي صلي الله عليه وسلم په خدمت کښ حاضر شو. هغه خط ذ حاطب بن ابي بلتعه ذ طرف نه ذ مشرکين مکه په نوم ليکلے وو، چه هغے کښ ذ حضور صلي الله عليه وسلم ذ بعضے امر متعلق خبر ورکړے شوے وو. حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، اے حاطبه، دا خبره څنګه ده، هغۀ عرض اوکۀ، يا رسول الله، تاسوؐ په ما تادي مۀ کوے، زۀ قريشي نۀ ووم، بلکه ذ هغوي ذ دوستانو نه ووم، او تاسوؐ سره چه کوم مهاجرين دي، ذ هغوي، هغوي سره رشته دارئ دي، چه ذ هغے په سبب هغوي ذ هغوي ذ کورونو او مال حفاظت کوي، او ذ نسب ذ لحاظ نه خما هغوي سره هيڅ تعلق نۀ وو، په دے وجه ما اوغوښتل، چه په هغوي څۀ احسان اوکړم، چه خما ذ قرابت حفاظت اوکړي، او ما ذ کفر په بنا يا

ذَالِكَ كُفْرًا وَّلَا ارْتِدَادًا عَنْ دِيْنِيْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهُ قَدْ صَدَقَكُمْ فَقَالَ عُمَرُ دَعْنِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاَضْرِبَ عُنُقَهُ فَقَالَ اِنَّهُ شَهِدَ بَدْرًا وَمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ اللّٰهَ عَزَّ وَ جَلَّ اطَّلَعَ عَلٰى اَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ اعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ قَالَ عَمْرٌو وَّ نَزَلَتْ فِيْهِ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَ عَدُوَّكُمْ قَالَ لَا اَدْرِيْ الْاٰيَةَ فِي الْحَدِيْثِ اَوْ قَوْلُ عَمْرٍو.

ذَ دين نه ذَ آوړيدو په بنا داسې نۀ دي كړي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل تا ريښتيا اووې. حضرت عمرؓ عرض او كړ، يا رسول اللّٰه ماته اجازت راكړئې، چه ذَ دهٔ ګردن والوخوم. حضورؐ ورته اوفرمائيل، دې په بدر كښې شريك وو، او تاته معلومه ده، چه شايد اللّٰه تعالٰي اهل بدر ته او كتل نو وې فرمائيل، څه چه كوئې، ما تاسو ښنلې يئې. عمرو اووې، هغه وخت دا آيت نازل شو: اې ايمان والو، څما دشمنان او خپل دشمنان خپل دوستان مهٔ جوړوئې. سفيان اووې، چه دا آيت حديث كښې دې، يا ذَ عمرو قول دې.

٨٧٥: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ قِيْلَ لِسُفْيَانَ فِيْ هٰذَا فَنَزَلَتْ لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ قَالَ سُفْيَانُ هٰذَا فِيْ حَدِيْثِ النَّاسِ حَفِظْتُهُ مِنْ عَمْرٍو مَا تَرَكْتُ مِنْهُ حَرْفًا وَّمَا اُرٰى اَحَدًا حَفِظَهُ غَيْرِيْ.

٨٧٥: مونږ ته علي (بن مديني) بيان او كړ، چه ما ذَ سفيان نه آيت: لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ الخ: متعلق تپوس او كړ، چه ذَ حاطب باره كښې نازل شوې وو، نو هغهٔ اووې، چه دا ذ خلقو په حديث كښې دي، ما ذَ عمرو نه ياد كړې دې. هغې نه ما يو حرف هم نۀ دې پريښې. او نۀ زهٔ پوهيږم، چه څما نه سِوا بل چا دا ياد كړې وي.

## بَاب ٣٠٣: قَوْلِهٖ اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ.

## باب ٣٠٣: آيت: اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتِ مُهَاجِرَاتٍ: كوم وخت چه مؤمنې مهاجرې ښځې تاته بيعت ذَ پاره راشي.

٨٧٦: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهٖ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَآئِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْتَحِنُ مَنْ هَاجَرَ اِلَيْهِ مِنَ

٨٧٦: اسحاق. يعقوب بن ابراهيم. ذَ ابن شهاب برادر زاده. ابن شهاب. عروه. ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ ټبر، بي بي عائشېؓ نه روايت كوي، ذَ هغه بيان دې، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به په هغې ښځو، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته به په هجرت راتلې، ذَ دې آيت "يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ

الْمُؤْمِنَاتِ بِهٰذِهِ الْآيَةِ بِقَوْلِ اللّٰهِ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ اِلٰى قَوْلِهٖ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَنْ اَقَرَّ بِهٰذَا الشَّرْطِ مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ قَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ بَايَعْتُكِ كَلَامًا وَلَا وَاللّٰهِ مَا مَسَّتْ يَدُهٗ يَدَ امْرَاَةٍ قَطُّ فِي الْمُبَايَعَةِ مَا يُبَايِعُهُنَّ اِلَّا بِقَوْلِهٖ قَدْ بَايَعْتُكِ عَلٰى ذٰلِكَ تَابَعَهٗ يُوْنُسُ وَمَعْمَرٌ وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اِسْحٰقَ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ اِسْحٰقُ بْنُ رَاشِدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ وَعَمْرَةَ.

اِلٰى قَوْلِهٖ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ" الخ په بنا به هغوي ازميښت كولو. ذ عروه بيان دے. بي بي عائشهؓ اوفرمائيل، مؤمنو ښځو كښې به چه كومې يوې ذ دے شرط اقرار اوكړلو، نو هغې ته به رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيل، تا ما بيعت كړلے. حضور صلي الله عليه وسلّم به صرف گفتگو (خبرو اترو) په ذريعه بيعت كولو. او په خدائے م دے قسم وي بيعت كښې هيڅ كله حضور صلي الله عليه وسلّم ذ يوې ښځې لاس له خپل لاس نه دے وراوړے. حضور صلي الله عليه وسلّم به هغه ښځې صرف زباني بيعت كولے، او ورته به ئے فرمائيل، چه تا ما په دے بيعت كړے. يونس معمر او عبدالرحمٰن بن اسحاق ذ زهري نه ددے متابعت كښې روايت كړے دے. او اسحاق بن راشد په واسطه ذ زهري، عروه او عمره نه نقل كړے دے.

## بَابٌ ۴۰۴: قَوْلِهٖ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ.

باب ۴۰۴: آيت: اِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ: كوم وخت چه مؤمنې ښځې تاته بيعت ذ پاره راشي.

۸۷۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيْرِيْنَ عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ بَايَعْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَاَ عَلَيْنَا اَنْ لَّا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَيْئًا وَنَهَانَا عَنِ النِّيَاحَةِ فَقَبَضَتِ امْرَاَةٌ يَدَهَا فَقَالَتْ اَسْعَدَتْنِيْ فُلَانَةُ اُرِيْدُ اَنْ اَجْزِيَهَا فَمَا قَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا

۸۷۷: ابو معمر. عبدالوارث. ايوب. حفصه بنت سيرين. اُم عطيهؓ نه روايت كوي، ذ هغې بيان دے، مونږ ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه بيعت اوكړ، نو حضورؐ خمونږ مخكښې آيت: "لا يشركن بالله" اولوست، او مونږ ئے ذ ساندے وئيلو (وير كولو) نه منع كړلو. نو يوې ښځې خپل لاس راغونډ كړلو، او وئيلې چه فلانئې ښځې خما مدد كړے وو. زهٔ غواړم، چه ذ هغې بدله وركړم، نو هغې ته نبي صلي الله عليه وسلّم هيڅ اونهٔ فرمائيل، نو هغه ښځه لاړه بيا واپس راغله. نو

فَانْطَلَقَتْ وَ رَجَعَتْ فَبَايَعَهَا.

حضور صلي الله عليه وسلّم بيعت كړله.

۸۷۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا أَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ الزُّبَيْرَ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيْ قَوْلِهِ تَعَالٰى وَلَا يَعْصِيْنَكَ فِيْ مَعْرُوْفٍ قَالَ إِنَّمَا هُوَ شَرْطٌ شَرَطَهُ اللهُ لِلنِّسَاءِ.

۸۷۸: عبدالله بن محمد. وهب بن جرير. جرير. زبير. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه ايت: "وَلَا يَعْصِيْنَكَ فِيْ مَعْرُوْفٍ" بعاره كښې روايت كوي، هغه اوويے، دا شرط دے، چه الله تعالٰي ښځو د پاره مقرر كړے دے.

۸۷۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ حَدَّثَنَاهُ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبُوْ إِدْرِيْسَ سَمِعَ عُبَادَةَ بْنَ الصَّامِتِؓ قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتُبَايِعُوْنِيْ عَلٰى أَنْ لَا تُشْرِكُوْا بِاللهِ شَيْئًا وَلَا تَزْنُوْا وَلَا تَسْرِقُوْا وَ قَرَأَ آيَةَ النِّسَاءِ وَ أَكْثَرُ لَفْظِ سُفْيَانَ قَرَأَ الْآيَةَ فَمَنْ وَفٰى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللهِ وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَعُوْقِبَ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ وَمَنْ أَصَابَ مِنْهَا شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ فَسَتَرَهُ اللهُ فَهُوَ إِلَى اللهِ إِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ وَ إِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُ تَابَعَهُ عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ فِي الْآيَةِ.

۸۷۹: علي بن عبدالله. سفيان. زهري. ابو ادريس. عباده بن صامتؓ نه روايت كوي، هغه اوويے، مونږ نبي صلي الله عليه وسلّم سره وو، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا تاسو مانه په دے خبره بيعت كوئے، چه الله سره به هيڅوك شريك نه جوړوئے. او نه به زنا كوئے، او نه به غلا (چوري) كوئے. او حضور صلي الله عليه وسلّم ښځو واله ايت اولوست. او سفيان اكثر صرف بيان كړلو، چه حضورؐ آيت اولوست، د ښځو ذكر ئے اونهٔ كهٔ. بيا حضورؐ اوفرمائيل، تاسو كښې چه چا دا خبرے پوره كړے، نو اجر ئے په الله دے او څوك چه دے كښې د څهٔ څيز مرتكب شي، او سزا وركړے شوه، نو دا كفاره ده. او څوك چه دے كښې د څهٔ څيز مرتكب شو، او الله هغه پټ اوساتلو، نو دا د الله اختيار كښې ده، كه غواړي سزا به وركړي، او كه غواړي، بښنه به ورته اوكړي. عبدالرزاق د معمر نه د دے آيت متعلق د دے متابعت كښې روايت كړے دے.

۸۸۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا هَارُوْنُ بْنُ مَعْرُوْفٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ وَ أَخْبَرَنِيْ

۸۸۰: محمد بن عبدالرحيم. هارون بن معروف. عبدالله بن وهب. ابن جريج. حسن بن مسلم. طاؤس. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، د هغهٔ بيان

ابْنُ جُرَيْجٍ اَنَّ الْحَسَنَ بْنَ مُسْلِمٍ اَخْبَرَهُ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ شَهِدْتُ الصَّلٰوةَ يَوْمَ الْفِطْرِ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ وَ عُمَرَ وَ عُثْمَانَ فَكُلُّهُمْ يُصَلِّيْهَا قَبْلَ الْخُطْبَةِ ثُمَّ يَخْطُبُ بَعْدُ فَنَزَلَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَيْهِ حِيْنَ يُجَلِّسُ لِرِّجَالَ بِيَدِهٖ ثُمَّ اَقْبَلَ يَشُقُّهُمْ حَتّٰى اَتَى النِّسَآءَ مَعَ بِلَالٍ فَقَالَ يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلٰى اَنْ لَّا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَيْئًا وَلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِيْنَ وَلَا يَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ وَلَا يَاْتِيْنَ بِبُهْتَانٍ يَفْتَرِيْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْهِنَّ وَ اَرْجُلِهِنَّ حَتّٰى فَرَغَ مِنَ الْاٰيَةِ كُلِّهَا ثُمَّ قَالَ حِيْنَ فَرَغَ اَنْتُنَّ عَلٰى ذَالِكَ وَ قَالَتِ امْرَاَةٌ وَّاحِدَةٌ لَمْ يُجِبْهُ غَيْرُهَا نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَا يَدْرِيْ الْحَسَنُ مَنْ هِيَ قَالَ فَتَصَدَّقْنَ وَ بَسَطَ بِلَالٌ ثَوْبَهٗ فَجَعَلْنَ يُلْقِيْنَ الْفَتَخَ وَالْخَوَاتِيْمَ فِيْ ثَوْبِ بِلَالٍ.

دي، زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم حضرت ابوبكرؓ سره دِ ورو كي اختر په مونځونو كښ شريک شوے يم. دے ټولو به دَ خطبے نه مخكښ مونځ كولو. بيا دَ هغے نه پس به ئے خطبه لوستله نبي صلي الله عليه وسلّم چه مونځ اوكه، فارغ شو، نو گويا هغه منظر ځما د ستر گو مخكښ دے كوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلّم سړو ته دَ لاس اشارے سره دَ كيناستلو حكم اوكه، دَ هغوي دَ صفونو نه تير شو، زنانه ؤ ته حضرت بلالؓ سره اودريدلو، او دا، ايت ئے اولوست چه، اے نبي كوم وخت چه تاته مؤمنے ښځے راشي، او په دے خبره بيعت اوكړي، چه هغوي به الله سره څوک شريک نه جوړوي، غلا، به نهٔ كوي، زنا به نهٔ كوي، نهٔ به خپل اولاد قتلوي، او نهٔ به څه تهمت لړوي، چه هغه به ئے دَ خپلو لاسونو او پښو تر مينځه دَ ځانه جوړ كړے وي، تر دے چه پوره ايت ئے اولوست، فارغ شو، نو ورے فرمائيل، آيا تهٔ په دے بيعت كوے. يوے ښځے، جواب وركهٔ، او، يا رسول الله. دَ هغے نه سِوا هيچا جواب ورنهٔ كهٔ. حسن ته معلومه نه ده، چه هغه ښځه څوک وه. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل خيرات اوكړئے. او بلالؓ خپله كپړه خوره كړه ښځو به دَ بلالؓ په كپړه كښ (دَ سرو) گوتے (وغيره) غُر خولے.

## سُوْرَةُ الصَّفِّ

## دَ سورهٔ صف تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ مَنْ اَنْصَارِيْ اِلَى اللّٰهِ مَنْ يَّتَّبِعُنِيْ اِلَى اللّٰهِ وَ قَالَ ابْنُ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

او مجاهد اووے "مَنْ اَنْصَارِيْ اِلَى اللّٰهِ" معني دي څوک د الله دَ پاره ځما پيروئ ته تيار دے، او ابن عباسؓ اووے

عَبَّاسٍ مَرْصُوصٌ مُلْصَقٌ بَعْضُهُ بِبَعْضٍ وَ قَالَ غَيْرُهُ بِالرَّصَاصِ.

"مرصوص" يوه حصه بلے سره جراړ شوے. نورو اووے، چه سيسے (سکے) سره وروستے شوے.

باب ۴۰۵: قَوْلِهٖ مِنْ م بَعْدِی اسْمُهٗ اَحْمَدُ.

باب ۴۰۵: آيت: مِنْ م بَعْدِی اسْمُهٗ اَحْمَدُ: خما نه پس چه دَ هغه نوم به احمد وي.

۱۸۸۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِیْ مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ لِیْ اَسْمَآءَ اَنَا مُحَمَّدٌ وَ اَنَا اَحْمَدُ وَ اَنَا الْمَاحِیُ الَّذِیْ يَمْحُوا اللّٰهُ بِیَ الْكُفْرَ وَ اَنَا الْحَاشِرُ الَّذِیْ يُحْشَرُ النَّاسُ عَلٰی قَدَمَیَّ وَ اَنَا الْعَاقِبُ.

۱۸۸۱: ابواليمان. شعيب. زهري. محمد بن جبير بن مطعم. دَ خپل پلار نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے، ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، فرمائيل ئے، خما ډير نومونه دي، زهٔ محمد يم، زهٔ احمد يم، او زهٔ ماحي يم چه الله تعالٰي به خما په ذريعه کفر نيست و نابود کړي. او زهٔ حاشر يم، چه خما په قدمونو به خلق پاسېدلے شي. او خما نوم عاقب (دَ ټولونه ورستو راتلونکے) دے.

## سُوْرَةُ الْجُمُعَةِ

## دَ سوره جُمعه تفسير

باب ۴۰۶: قَوْلِهٖ وَ اٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ وَ قَرَاَ عُمَرُ فَامْضُوْا اِلٰی ذِكْرِ اللّٰهِ.

باب ۴۰۶: آيت: وَ آخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ: او نور چه لا اوس هغوي کښې نهٔ دي شامل شوے. او حضرت عمرؓ دَ "فاسعوا الٰی ذکر اللّٰه" په ځائے "فامضوا الٰی ذکر اللّٰه" لوستلو.

۱۸۸۲: حَدَّثَنِیْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِیْ سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ ثَوْرٍ عَنْ اَبِی الْغَيْثِ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا عِنْدَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاُنْزِلَتْ عَلَيْهِ سُوْرَةُ الْجُمُعَةِ وَ اٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ قَالَ قُلْتُ مَنْ

۱۸۸۲: عبدالعزيز بن عبدالله. سليمان بن بلال. ثور. ابوالغيث. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. مونږ نبي صلي الله عليه وسلّم سره ناست وو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم باندے سورهٔ جُمعه نازل شولو. کوم وخت چه آيت: "وَ اٰخرين منهم لمّا يلحقوا بهم" نازل شو، نو ما تپوس اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، هغه کوم خلق دي، حضورؐ څهٔ جواب رانهٔ کړلو، تردے چه درے

هُمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَلَمْ يُرَاجِعْهُ حَتّٰى سَأَلَ ثَلَاثًا وَ فِيْنَا سَلْمَانُ الْفَارِسِيُّ وَضَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهٗ عَلٰى سَلْمَانَ ثُمَّ قَالَ لَوْ كَانَ الْاِيْمَانُ عِنْدَ الثُّرَيَّا لَنَالَهٗ رِجَالٌ اَوْ رَجُلٌ مِنْ هٰؤُلَآءِ.

خلـه م تپوس اوکـهٔ، او مونږ کښې سلمان فارسيؓ هم موجود وو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم خپل لاس مبارک په حضرت سلمانؓ کيښودلو. بيائے اوفرمائيل، که ايمان ثُريّا سره هم قريب وي، نو به ئے د دوئ د قوم خنيے سړي يا (وے فرمائيل) يو سړے به هغه لره حاصل کړي.

٨٨٣: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ اَخْبَرَنِيْ ثَوْرٌ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنَالَهٗ رِجَالٌ مِّنْ هٰؤُلَآءِ.

٨٨٣: عبدالله بن عبدالوهاب. عبدالعزيز. ثور. ابوالغيث. حضرت ابوهريرهؓ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي، په دوئ کښې به ځنو خلقو هغه بيامُندے وو.

باب٤٠٧: قَوْلِهٖ وَ اِذَا رَاَوْا تِجَارَةً.

باب٤٠٧: ايت: وَ اِذَا رَاَوْا تِجَارَةً: او هر کله چه هغه خلق دَ تجارت مال اووينې.

٨٨٤: حَدَّثَنِيْ حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ وَ عَنْ اَبِيْ سُفْيَانَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَقْبَلَتْ عِيْرٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ نَحْنُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَثَارَ النَّاسُ اِلَّا اثْنَا عَشَرَ رَجُلًا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَ اِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوَا انْفَضُّوْا اِلَيْهَا.

٨٨٤: حفص بن عمر. خالد بن عبدالله. حصين. سالم بن ابي الجعد او ابوسفيان. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے. يوه قافله دَ جُمعے په ورځ راغله، او دَغه وخت مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم سره وو، نو دَ دولس کسانونه علاوه نور ټول خلق ورأوزغليدل. هغه وخت دَا آيت نازل شو: هر کله چه دغه خلق دَ تجارت مال يا د لوبو څيز اووينې، نو هغے پله ور اُوزغلي.

# سُوْرَةُ الْمُنَافِقُوْنَ

# دَ سورۀ منافقون تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

باب٤٠٨: قَوْلِهٖ اِذَا جَآءَكَ

باب٤٠٨: آيت: اِذَا جَآءَكَ الْمُنَافِقُوْنَ قَالُوْا

الْمُنَافِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ (اِلَى الْكَاذِبُوْنَ).

نَشْهَدُ اِنَّکَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ' هغه خلق واني' چه بيشکه ته ذ الله رسول ئې الخ.

۸۸۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَرْقَمَ قَالَ كُنْتُ فِيْ غَزَاةٍ فَسَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اُبَيٍّ يَقُوْلُ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا مِنْ حَوْلِهٖ وَلَوْ رَجَعْنَا مِنْ عِنْدِهٖ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِعَمِّيْ اَوْ لِعُمَرَ فَذَكَرَهٗ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَانِيْ فَحَدَّثْتُهٗ فَاَرْسَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اُبَيٍّ وَ اَصْحَابِهٖ فَحَلَفُوْا مَا قَالُوْا فَكَذَّبَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَدَّقَهٗ فَاَصَابَنِيْ هَمٌّ لَمْ يُصِبْنِيْ مِثْلُهٗ قَطُّ فَجَلَسْتُ فِي الْبَيْتِ فَقَالَ لِيْ عَمِّيْ مَا اَرَدْتَّ اِلٰى اَنْ كَذَّبَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَقَتَكَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِذَا جَآءَكَ الْمُنَافِقُوْنَ فَبَعَثَ اِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَاَ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ صَدَّقَكَ يَا زَيْدُ.

۸۸۵: عبدالله بن رجآء. اسرائيل. ابو اسحاق. حضرت زيد بن ارقمؓ نه روايت کوي' ذ هغه بيان دے' زهٔ يو جنگ کښې وُم' ما ذ عبدالله بن اُبي نه واؤريدل' چه په دے خلقو مه خرچ کوئے کوم چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته نزدے دي' تردے چه هغوي خواره واره شي. چه ذ حضورؐ نه گير چاپيره دي' او که مونږ ذ دوي نه واپس شو' نو غرتمند به ذليل ذ دے نه بهر اوکاږي. ما دا خبره خپل ترهٔ يا حضرت عمرؓ ته بيان کړه' هغه نبي صلي الله عليه وسلّم ته اوکړله' نو حضور صلي الله عليه وسلّم زه راوغبنتلم' ما ورته بيان اوکه. رسول الله صلي الله عليه وسلّم عبدالله بن اُبي او ذ هغه ملگري راوغبنتل' نو هغې خلقو قسم اوخوړ' چه مونږ داسے نه دي وئيلے' رسول الله صلي الله عايه وسلّم زه دروغجن اوکنړلم' او هغه ئې ريښتنے اوکنړلو. ماته ذ دے دومره صدمه اوشوه' چه دے نه مخکښې دومره صدمه راته چرته نه وه شوے. زه خپل کور کښې کيناستم' ماته خما تره (چچا) اووے' خما دا خيال نه وو' چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم به تا دروغجن اوکنړي او تانه به ناراضه شي. نو الله تعالي دا آيت نازل کړلو: اِذَا جَآءَکَ الْمُنَافِقُوْنَ الخ: نبي صلي الله عليه وسلّم هغوي راوغبنتل' او دا آيت ئې اولوست. بيائې اوفرمائيل' اے زيدؓ' الله تعالي ستا ذ خبرے تصديق اوکه.

بَابُ ۴۰۹: قَوْلُهٗ اِتَّخَذُوْا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً يَجْتَنُّوْنَ

باب ۴۰۹: آيت: اَتَّخَذُوْا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً يَجْتَنُّوْنَ بِهَا: دے خلقو خپل قسمونه ډهال کړل' چه هغے سره

بِهَا.

۸۸۶: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَرْقَمَ قَالَ كُنْتُ مَعَ عَمِّيْ فَسَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اُبَيِّ ابْنَ سَلُوْلٍ يَقُوْلُ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا وَ قَالَ اَيْضًا لَئِنْ رَّجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِعَمِّيْ فَذَكَرَ عَمِّيْ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَرْسَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اُبَيِّ وَ اَصْحَابِهٖ فَحَلَفُوْا مَا قَالُوْا فَصَدَّقَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَذَّبَنِيْ فَاَصَابَنِيْ هَمٌّ لَمْ يُصِبْنِيْ مِثْلَهٗ فَجَلَسْتُ فِيْ بَيْتِيْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ اِذَا جَآءَكَ الْمُنَافِقُوْنَ اِلٰى قَوْلِهٖ هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ اِلٰى قَوْلِهٖ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ فَاَرْسَلَ اِلَيَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَاَهَا عَلَيَّ ثُمَّ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ صَدَّقَكَ.

خپل حالت پټوي.

۸۸۶: ادم بن ابي اياس. اسرآئيل. ابو اسحاق. حضرت زيد بن ارقمؓ نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، زه خپل تره (چچا) سره ووم، نو ما ذ عبداللّٰه بن اُبي بن سلول (ذ منافقانو مشر) نه واوريدل، چه دے خلقو بانديے خرچ مه كوئے، كوم چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره دي، تر دے چه دا خلق منتشر شي، كوم چه ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه چار چاپيره دي. او دائے هم اووے كه مونږ مدينے ته واپس لاړ شو، نو عزت واله به ذليل بهر اوكاږي. ما دا خبره خپل ترهٔ (چچا) ته بيان كړه. بيا خما تره رسول اللّٰه صلي اللّٰه غليه وسلّم ته بيان كړه، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم عبداللّٰه بن اُبي او ذ هغه ملګري راوغبنتل، نو هغے خلقو په قسم اووے، چه مونږ داسے نه دي وئيلے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ هغوي ذ خبرے تصديق اوكهٔ، او زه ئے دروغجن اوګنړلم. ماته ذ دے داسے صدمه اورسيده، چه دے نه مخكښ راته هيڅ كله نه وه رسيدلے. نو زهٔ خپل كور كښ كيناستم. اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل كړلو: اِذَا جَآءَكَ الْمُنَافِقُوْنَ هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ الخ: نازل شولو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم زهٔ راوغبنتلم او خما مخكښ ئے دا آيت اولوست. بيائے اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي ستا تصديق اوكه.

باب ۴۱۰: قَوْلُهٗ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ

باب ۴۱۰: آيت: ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ: دا په دے سبب چه

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ.

هغې خلقو ايمان راوړلو. بيائے كفر او كړ، ذ هغوي په زړونو مُهر اولږولے شو، هغه خلق نه پوهيږي.

۴۸۸۷: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ قَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ كَعْبِ الْقُرَظِيَّ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ اَرْقَمَ قَالَ لَمَّا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيٍّ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ وَ قَالَ اَيْضًا لَئِنْ رَّجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ اَخْبَرْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَامَنِي الْاَنْصَارُ وَ حَلَفَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيٍّ مَا قَالَ ذٰلِكَ فَرَجَعْتُ اِلَى الْمَنْزِلِ فَنِمْتُ فَدَعَانِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَتَيْتُهُ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ صَدَّقَكَ وَ نَزَلَ هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ لَا تُنْفِقُوْا الْاٰيَةَ وَ قَالَ ابْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى عَنْ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۴۸۸۷: آدم. شعبه. حكم. محمد بن كعب. قرظي نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، ما ذ زيد بن ارقم نه واوريدل، كوم وخت چه عبدالله بن أبي اووے، چه: لا تنفقوا علٰى من عند رسول الله الخ: او دائے هم اووے، چه: لئن رجعنا الى المدينة الخ ما حضور صلي الله عليه وسلّم ته ذ دے بيان اوكړ، نو انصارو ماته بد رد اووے، او عبدالله بن ابي په قسم اووے، چه هغه داسے نهٔ دي وئيلے. نو زهٔ خپل كور ته لاړم، او اودهٔ شوم. رسول الله صلي الله عليه وسلّم زهٔ راوغبنتلم. زهٔ حاضر شوم، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله ستا تصديق اوكړلو. او آيت: هم الذين يقولون لا تنفقوا نازل شولو. او ابن ابي زائده په واسطه ذ اعمش، عمرو. ابن ابي ليلي. حضرت زيد. نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي.

بَابُ ۱۱۴۱: قَوْلِهٖ وَ اِذَا رَاَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ اَجْسَامُهُمْ وَ اِنْ يَّقُوْلُوْا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ كَاَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ يَحْسَبُوْنَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ قَاتَلَهُمُ اللّٰهُ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ.

باب ۱۱۴۱: آيت: وَ اِذَا رَاَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ اَجْسَامُهُمْ الخ: او هر كله چه تاسو دا خلق اووينئے، نو ذ هغوي جسمونه تاسوته بنه معلوميږي، او كه هغوي خبره اوكړي، نو تاسو ذ هغوي خبره آورئے، گويا هغوي لرگي دي، چه سهارے سره لږيدلے دي. دوئ هره چغه د خپل خان خلاف گنړي، هغوي دشمنان دي، خان ترے بچ كړئے. الله تعالي دے هغوي هلاک كړي، هغوي كوم خوا غليدلے گرځي.

٨٨٨: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا اَبُو اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ اَرْقَمَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ اَصَابَ النَّاسَ فِيْهِ شِدَّةٌ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيٍّ لِاَصْحَابِهٖ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا مِنْ حَوْلِهٖ وَ قَالَ لَئِنْ رَجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهٗ فَاَرْسَلَ اِلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اُبَيٍّ فَسَاَلَهٗ فَاجْتَهَدَ يَمِيْنَهٗ مَا فَعَلَ قَالُوْا كَذَبَ زَيْدٌ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ مِمَّا قَالُوْا شِدَّةٌ حَتّٰى اَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ تَصْدِيْقِيْ فِيْ اِذَا جَآءَكَ الْمُنَافِقُوْنَ فَدَعَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَسْتَغْفِرَ لَهُمْ فَلَوَّوْا رُءُوْسَهُمْ وَ قَوْلُهٗ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ قَالَ كَانُوْا رِجَالًا اَجْمَلَ شَيْءٍ.

باب ٤١٢: قَوْلُهٗ وَ اِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ لَوَّوْا رُءُوْسَهُمْ وَ رَاَيْتَهُمْ يَصُدُّوْنَ وَهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ حَرَّكُوْا سْتَهْزَءُوْا بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

٨٨٨: عمرو بن خالد. زهير بن معاويه. ابو اسحاق. حضرت زيد بن ارقم نه روايت كوي، دَ هغه بيان دے مونږ نبي صلي الله عليه وسلّم سره په يو سفر اووتلو، هغے كښې خلقوته سخت تكليف اوشو، نو عبدالله بن أبي خپلو ملګروته اوويے: لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا مِنْ حَوْلِهٖ: اوونيلے، چه: لَئِنْ رَجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ: زه دَ نبي صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شوم، او حضور صلي الله عليه وسلّم ته م بيان اوكه. حضور صلي الله عليه وسلّم عبدالله بن أبي راوغبنتلو، او هغه نه ئے تپوس اوكه، نو هغه زوردار قسم خوړلو سره اوويے، چه هغه داسے نه دي وئيلے، خلقو اوويے، چه زيد، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته دروغ وئيلے دي. د هغے خلقو دے خبره سره څما زړه ته ډيره صدمه اورسيده تردے چه الله بزرګ و برتر څما تصديق اوكه، او دَا آيت نازل شولو: اِذَا جَآءَكَ الْمُنَافِقُوْنَ الخ: حضور صلي الله عليه وسلّم هغه خلق راوغبنتل، چه هغوي د پاره دَ ښښنے دُعا اوكړي، نو هغے خلقو خپل سرونه تاؤ كړل، او دَ الله تعالٰي قول: خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ: (ديوال سره لږيدلے لرګي) نه مراد دَا دے، چه هغه خلق ډير خوبصورته وو.

باب ٤١٢: آيت: وَ اِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ الخ: او هر كله چه هغوي ته اوونيلے شي، راځے، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم تاسو دَ پاره دَ مغفرت دُعا اوكړي، نو هغوي خپل سرونه اوكرخوي او تاسوبه هغوي وينئے، چه هغوي تكبر او بے رُخي كوي. هغے خلقو نبي صلي الله عليه وسلّم سره

وَسَلَّمَ وَ يُقْرَأُ بِالتَّخْفِيْفِ مِنْ لَوَيْتُ.

٨٨٩: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَرْقَمَ قَالَ كُنْتُ مَعَ عَمِّيْ فَسَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اُبَيِّ ابْنَ سَلُوْلٍ يَقُوْلُ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا وَلَئِنْ رَّجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِعَمِّيْ فَذَكَرَ عَمِّيْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَدَّقَهُمْ فَاَصَابَنِيْ غَمٌّ لَمْ يُصِبْنِيْ مِثْلُهٗ قَطُّ فَجَلَسْتُ فِيْ بَيْتِيْ وَ قَالَ عَمِّيْ مَا اَرَدْتَّ اِلٰى اَنْ كَذَّبَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَقَتَكَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِذَا جَآءَكَ الْمُنَافِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ وَ اَرْسَلَ اِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَاَهَا وَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ صَدَّقَكَ.

بَابٌ ٤١٣: قَوْلِهٖ سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ اَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ اَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ لَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفَاسِقِيْنَ.

٨٩٠: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا

مذاق او كړلو او "لووا" تشديد او بلا تشديد هم لوستے شي. "لويت" نه ماخوذ دے

٨٨٩: عبدالله بن موسى. اسرائيل. ابو اسحق حضرت زيد بن ارقم نه روايت كوي. د هغه بيان دے. زهٔ خپل ترهٔ (چچا) سره ووم. ما د عبدالله بن ابي بن سلول (دَ منافقانو مشر) نه واوريدل. چه كوم خلق رسول الله صلى الله عليه وسلم سره دي. په هغوي هيڅ خرچ مهٔ كوئ، ترديے چه تس نس شي او كه مونږ اوس مدينے ته واپس لاړ شو، نو عزت واله به دَ هغے خائے نه ذلت واله بهر او كاږي. ما دا خبره خپل ترهٔ ته او كړه، هغهٔ نبي صلى الله عليه وسلم ته او كړه، او حضور صلى الله عليه وسلم هغوي ريښتنے او ګڼړل، ما سره دَ دے داسے غم شو، چه هيڅ كله ددے نه مخكښ راته نه وو شوے. زهٔ خپل كور كښ كيناستم. خما ترهٔ راته اووے، خما دا خيال نه وو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به تا دروغجن او ګڼړي او تانه به ناراضه شي په دے خبره الله تعالى دا آيت نازل كړلو: اِذَا جَآءَكَ الْمُنَافِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ: نبي صلى الله عليه وسلم زهٔ راوغښتلم. او دا آيت ئے اولوست او وے فرمائيل، الله تعالى ستا تصديق او كړلو.

باب ٤١٣: آيت: سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ اَسْتَغْفَرْتَ الخ: دَ هغوي حق كښ برابره خبره ده، خواه تهٔ دَ هغوي حق كښ دَ مغفرت دُعا او كړے يا اونهٔ كړے، الله تعالى دا خلق هيڅ كله نه بښي. بيشكه الله بدكار قوم ته هدايت نه كوي.

٨٩٠: علي. سفيان. عمرو. حضرت جابر

سُفْيَانُ قَالَ كُنَّا فِيْ غَزَاةٍ قَالَ سُفْيَانُ مَرَّةً فِيْ جَيْشٍ فَكَسَعَ رَجُلٌ مِّنَ الْمُهَاجِرِيْنَ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ الْاَنْصَارِيُّ يَا لَلْاَنْصَارِ وَ قَالَ الْمُهَاجِرِيُّ يَا لَلْمُهَاجِرِيْنَ فَسَمِعَ ذَاكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا بَالُ دَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَسَعَ رَجُلٌ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ دَعُوْهَا فَاِنَّهَا مُنْتِنَةٌ فَسَمِعَ بِذٰلِكَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيٍّ فَقَالَ فَعَلُوْهَا اَمَا وَاللّٰهِ لَئِنْ رَّجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عُمَرُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ دَعْنِيْ اَضْرِبْ عُنُقَ هٰذَا الْمُنَافِقِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُ لَا يَتَحَدَّثُ النَّاسُ اَنَّ مُحَمَّدًا يَقْتُلُ اَصْحَابَهُ وَ كَانَتِ الْاَنْصَارُ اَكْثَرَ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ حِيْنَ قَدِمُوا الْمَدِيْنَةَ ثُمَّ اِنَّ الْمُهَاجِرِيْنَ كَثُرُوْا بَعْدُ قَالَ سُفْيَانُ فَحَفِظْتُهُ مِنْ عَمْرٍو قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرًا كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

بن عبدالله نه روایت کوي. د هغه بیان دے مونږ یو جنګ کښې وو، او سفیان یو ځلے بیان اوکړ، چه مونږ یو لښکر کښې وو، نو مهاجرینو کښې یو کس یو انصاري اووهلو، انصاري چغې کړے، چه اے د انصارو ډلے، او مهاجر نعرے کړے، اے مهاجرینو، رسول الله صلي الله علیه وسلّم چه دا واوریدل، نو وے فرمائیل، دا د جاهلیت چغے څنګه دي، خلقو عرض اوکړ، یا رسول الله، یو مهاجر لړیدلے دے یو انصاري ئے وهلے دے. حضورؐ اوفرمائیل، د جاهلیت دا نعرے پریږدئې. دا ډیره خرابه کلمه ده عبدالله بن ابي چه واوریدل، نو هغهٔ اووے. ښه معامله دے ته اورسیده قسم په خدائے، که مونږ مدینے ته دوباره واپس شو، نو عزت واله به ذلت واله د هغې ځائے نه بهر اوکاږي. نبي صلي الله علیه وسلّم ته چه دا خبره اورسیده، نو حضرت عمرؓ اودرید، او عرض ئے اوکه، یا رسول الله، ماته اجازت راکړئې، چه ددے مُنافق (عبدالله بن اُبي) کردن والوخوم. نبي صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، دے پریږده چرته خلق داسے اونه وائي چه محمد صلي الله علیه وسلّم خپل ملګري قتلوي. په شروع کښې انصار زیات وُو او بیا مهاجرین زیات شو. سفیان اووے. ما دا عمرو نه یاد کړے دي. عمرو اووے، ما د جابر نه اوریدلے دي چه مونږ نبي صلي الله علیه وسلّم سره وو.

باب ۴۱۴: قَوْلِهٖ هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا وَ

باب ۴۱۴: آیت: هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ الخ د الله تعالٰي قول دا هغه خلق دي چه وائي کوم خلق چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم سره دي په هغوي خرچ مه

يَتَفَرَّقُوْا وَ لِلّٰهِ خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنَّ الْمُنَافِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ.

كوړې حتىٰ چه هغوي خپله نس نس شي. او د آسمان او ځمكې ټولې خزانې ذَ الله دي ليكن منافقان به دې نه پوهيږي.

۱۸۹۱: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ عُقْبَةَ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْفَضْلِ اَنَّهٗ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ حَزِنْتُ عَلٰى مَنْ اُصِيْبَ بِالْحَرَّةِ فَكَتَبَ اِلَيَّ زَيْدُ بْنُ اَرْقَمَ وَبَلَغَهٗ شِدَّةُ حُزْنِيْ يَذْكُرُ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْاَنْصَارِ وَلِاَبْنَآءِ الْاَنْصَارِ شَكَّ ابْنُ الْفَضْلِ فِيْ اَبْنَآءِ اَبْنَاءِ الْاَنْصَارِ فَسَاَلَ اَنَسًا بَعْضُ مَنْ كَانَ عِنْدَهٗ فَقَالَ هُوَ الَّذِيْ يَقُوْلُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا الَّذِيْ اَوْفَى اللّٰهُ لَهٗ بِاُذُنِهٖ.

۱۸۹۱: اسماعيل بن عبدالله. اسماعيل بن ابراهيم بن عقبه. موسىٰ بن عقبه. عبدالله بن فضل. انس بن مالكؓ نه روايت كوي، د هغه نه ئې واوريدل، چه حَرّه كښې (د يزيد قتل عام كښې) چه كوم مُصيبت رسيدلې وو. په هغې ماته ډيره صدمه اوشوه. حضرت زيد بن ارقم خما د سخت غم نه خبر شو، نو هغه ماته اوليكل، چه ما ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلې دي، چه يا الله انصار او ذَ هغوي ځامن اوبښې. او ابن فضل شك اوكه، چه شايد، حضور صلي الله عليه وسلّم ذَ انصارو، د ځامنو ځامنو متعلق هم اوفرمائيل. كوم خلق چه هلته وو، هغوي كښې چا د حضرت انسؓ نه ذَ حضرت زيدؓ متعلق تپوس اوكه نو انسؓ اووې، دا هغه سړې دې، چه ذَ هغهٔ ور كړې خبر الله تعالىٰ پوره كړلو، يعني ذَ هغې تصديق ئې او كړلو.

باب ۱۵۴۰: قَوْلِهٖ يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ وَ لِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَ لِرَسُوْلِهٖ وَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ وَلٰكِنَّ الْمُنَافِقِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ.

باب ۱۵۴۰: ايت: يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ الخ: هغه خلق وائي، كه مونږ اوس مدينې ته واپس لاړو، نو عزت واله به ذلت واله بهر اوكاږي، حالانكه عزت الله او ذَ هغه رسول او مؤمنانو د پاره دې. ليكن منافقان پوهيږي نه.

۱۸۹۲: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْنَاهُ مِنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ كُنَّا فِيْ غَزَاةٍ فَكَسَعَ رَجُلٌ

۱۸۹۲: حميدي. سفيان. عمرو بن دينار. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت كوي، ذَ هغهٔ نه ئې واوريدل، مونږ يو جنګ كښې وو، يو مهاجر اولړيد، يو انصاري ئې اووهلو. انصاري (مدد د پاره) چغې كړې،

مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ رَجُلًا مِنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ الْاَنْصَارِيُّ يَا لَلْاَنْصَارِ وَ قَالَ الْمُهَاجِرِيُّ يَا لَلْمُهَاجِرِيْنَ فَسَمَّعَهَا اللّٰهُ رَسُوْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا هٰذَا فَقَالُوْا كَسَعَ رَجُلٌ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ رَجُلًا مِنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ الْاَنْصَارِيُّ يَا لَلْاَنْصَارِ وَ قَالَ الْمُهَاجِرِيُّ يَا لَلْمُهَاجِرِيْنَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعُوْهَا فَاِنَّهَا مُنْتِنَةٌ قَالَ جَابِرٌ وَ كَانَتِ الْاَنْصَارُ حِيْنَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكْثَرَ ثُمَّ كَثُرَ الْمُهَاجِرُوْنَ بَعْدُ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيِّ اَوَ قَدْ فَعَلُوْا وَاللّٰهِ لَئِنْ رَّجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ دَعْنِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَضْرِبُ عُنُقَ هٰذَا الْمُنَافِقِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُ لَا يَتَحَدَّثُ النَّاسُ اَنَّ مُحَمَّدًا يَقْتُلُ اَصْحَابَهُ.

چه اې دَ انصارو جماعته، او مهاجر هم نعرې كړې، چه اې دَ مهاجرينو ډلې راورسئې، نو الله تعالیٰ خپل رسول ته دا واورول، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، دا څه دي، خلقو ورته اووې يو مهاجر لړيدلې دې يو انصاري ئې وهلې دې نو انصاري مدد دَ پاره اواز اوكه، چه اې انصارو او مهاجر هم مدد دَ پاره مهاجرينو ته نعرې كړې نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل دا قسم نعرې پريږدئې. دا خرابه كلمه ده. حضرت جابرؓ اووې حضور صلي الله عليه وسلّم چه مدينې ته تشريف راوړې وو، نو هغه وخت دَ انصارو تعداد زيات وو، دې نه پس بيا دَ مهاجرينو تعداد زيات شو. عبدالله بن ابي اووې، دې مهاجرينو داسې كړې دي، قسم په خدائې كه اوس مونږ مدينې ته واپس لاړلو، نو عزت واله به دَ هغې ځائې نه ذلت واله بهر اوكاږي. حضرت عمر بن خطاب عرض اوكه، يا رسول الله، ماته اجازت راكړئې، چه دَ دې منافق (عبدالله بن اُبي) ګردن والوځوم، نبي صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، دې پريږده، چرته خلق بيا داسې اونه وائي، چه محمد (صلي الله عليه وسلّم) خپل ملګري قتلوي.

## سُوْرَةُ التَّغَابُنَ

## دَ سورۂ تغابن تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ عَلْقَمَةُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهُ هُوَ الَّذِيْ اِذَا اَصَابَتْهُ مُصِيْبَةٌ رَضِيَ وَ عَرَفَ اَنَّهَا مِنَ اللّٰهِ.

او علقمه دَ عبدالله نه نقل اوكهٔ، چه كوم سړې په الله ايمان راوړي، دَ هغهٔ قلب ته هدايت وركوي، دې نه مراد هغه سړې دې، چه كوم وخت هغهٔ ته مصيبت اورسي نو هغه راضي وي، او پوهيږي، چه دا دَ الله دَ طرف نه دې.

# سُوْرَةُ الطَّلَاقِ

# دَ سورهٔ طلاق تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ التَّغَابُنُ غَبْنُ اَهْلِ الْجَنَّةِ اَهْلَ النَّارِ اَنِ ارْتَبْتُمْ اِنْ لَّمْ تَعْلَمُوْا اَتَحِيْضُ اَمْ لَا تَحِيْضُ فَاللَّاتِيْ قَعَدْنَ عَنِ الْمَحِيْضِ وَاللَّائِيْ لَمْ يَحِضْنَ بَعْدُ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ وَبَالَ اَمْرِهَا جَزَآءَ اَمْرِهَا.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

او مجاهد اووې چه "تغابن" معني داده چه جنتيان به دَ دوزخيانو جائيداد لوټ كړي "اِنِ ارْتَبْتُمْ" كه تاته دا معلومه نهٔ وي چه هغې ته حيض راځي يا نهٔ راځي، غرض دادې چه كومې ښځې بوډۍ شي، حيض نه مايوسه شوې وي، همدا رنګ كومو ښځو ته چه حيض نه وي راغلې (كم عمره وي) نو دَ هغوي عدت به درې مياشتې وي. "وبال امرها" نه مراد دَ هغې كار بدله ده.

۸۹۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَخْبَرَهُ اَنَّهُ طَلَّقَ امْرَاَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ فَذَكَرَ عُمَرُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَغَيَّظَ فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ لِيُرَاجِعْهَا ثُمَّ يُمْسِكْهَا حَتّٰى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيْضَ فَتَطْهُرَ فَاِنْ بَدَالَهُ اَنْ يُطَلِّقَهَا فَلْيُطَلِّقْهَا طَاهِرًا قَبْلَ اَنْ يَمَسَّهَا فَتِلْكَ الْعِدَّةُ كَمَا اَمَرَهُ اللّٰهُ.

۸۹۳: يحيٰي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. سالم. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دې، چه هغهٔ خپلې ښځې له طلاق وركړهٔ هر كله چه هغه حائضه وه. حضرت عمرؓ دا رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته بيان كړه، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم په دې دَ غصې اظهار اوكړهٔ بيائې اوفرمائيل، دا دې واپس كړي، بيا دې اوساتي، تردې چه پاكه شي، بيا ورته حيض راشي، او پاكه شي، بيا كه هغې ته دَ طلاق وركولو خواهش وي، نو هغې ته دې دَ جماع (كورولي يا صحبت) نه مخكښې دَ پاكي په حالت كښې طلاق وركړي. دا هغه عدّت دې، چه دَ هغې الله تعالىٰ حكم كړې دې.

باب ۱۲۱۶: قَوْلِهٖ وَاُوْلَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَهٗ مِنْ اَمْرِهٖ يُسْرًا وَّاُوْلَاتُ الْاَحْمَالِ وَاحِدُهَا ذَاتُ

باب ۱۲۱۶: آيت: وَاُوْلَاتُ الْاَحْمَالِ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ الخ: او حمل واله ښځې، دَ هغوي عدّت دادې چه بچې راوړي، او كوم سړې چه دَ الله نه اويريږي، نو الله تعالىٰ دَ هغهٔ كار آسان كړي. "و اولات الاحمال" دَ

حَمْلٍ.

٤٩٤: حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ سَلَمَةَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ وَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ جَالِسٌ عِنْدَهٗ فَقَالَ أَفْتِنِيْ فِيْ امْرَأَةٍ وَلَدَتْ بَعْدَ زَوْجِهَا بِأَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ آخِرُ الْأَجَلَيْنِ قُلْتُ أَنَا وَ أُوْلَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ أَنَا مَعَ ابْنِ أَخِيْ يَعْنِيْ أَبَا سَلَمَةَ فَأَرْسَلَ ابْنُ عَبَّاسٍ غُلَامَهٗ كُرَيْبًا إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ يَسْأَلُهَا فَقَالَتْ قُتِلَ زَوْجُ سُبَيْعَةَ الْأَسْلَمِيَّةِ وَ هِيَ حُبْلٰى فَوَضَعَتْ بَعْدَ مَوْتِهٖ بِأَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً فَخُطِبَتْ فَأَنْكَحَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ أَبُو السَّنَابِلِ فِيْمَنْ خَطَبَهَا وَ قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ وَّ أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ قَالَ كُنْتُ فِيْ حَلْقَةٍ فِيْهَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أَبِيْ لَيْلٰى وَ كَانَ أَصْحَابُهٗ يُعَظِّمُوْنَهٗ فَذَكَرَ آخِرَ الْأَجَلَيْنِ فَحَدَّثْتُ بِحَدِيْثِ سُبَيْعَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ فَضَمَّزَنِيْ بَعْضُ أَصْحَابِهٖ قَالَ مُحَمَّدٌ فَفَطِنْتُ لَهٗ فَقُلْتُ إِنِّيْ إِذًا لَجَرِيْءٌ إِنْ

دے واحد "ذات حمل" (حمل واله ښځه) ده.

٤٩٤: سعد بن حفص. شيبان. يحيٰي نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، ابو سلمه وائي يو سړے ابن عباسؓ له راغے، دغه وخت ابوهريرهؓ هغهٔ سره ناست وو. هغهٔ اووے، ماته دَ هغے ښځے متعلق مسئله اوښائے، چه دَ خپل خاوند دَ مرګ نه څلويښت ورځے پس بچے راوړي. ابن عباس اووے، چه دواړو عدتونو كښې آخري عدت دے. ما اووے، دَ حمل واله ښځے عدت خو وضع حمل دے. ابوهريرهؓ اووے زه خپل وراره يعني ابوسلمه سره ووم، نو ابن عباس خپل غلام كريب، بي بي اُم سلمهؓ ته دے تپوس كولو دَ پاره اوليږلو نو هغے اووے چه د سُبيعه اسلميه خاوند قتل شو، هغه وخت هغه حامله وه دَ خاوند دَ مرګ نه څلويښت ورځے پس ئے بچے راوړلو. بيا هغے ته دَ نكاح پيغام اوليږلے شو. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغے نكاح اوكړله. او د نكاح پيغام استوونكو كښې ابوالسنابل هم وو. او سليمان بن حرب او ابوالنعمان په واسطه د حماد بن زيد، ايوب، د محمد (بن سيرين) قول نقل كه، زه هغے مجلس كښې ووم، چه هغے كښې عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي وو. د هغه ملګرو دَ هغه تعظيم كولو. هغه د آخر الاجلين (آخر كښې د نازليدو واله عدت) ذكر اوكه، نو ما د سُبيعه بنت حارث حديث د عبداللّٰه بن عتبه واسطے سره بيان كه. دَ محمد بيان دے زه د هغه بعضے ملګرو منع كړم. زهٔ پوهـ شوم، چه خما ... اووے كه ما په عبداللّٰه بن عتبه

كَتَبْتُ عَلَى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ وَهُوَ بِيْ نَاحِيَةِ الْكُوْفَةِ فَاسْتَحْيَا وَ قَالَ لٰكِنْ عَمَّهُ لَمْ يَقُلْ ذَاكَ فَلَقِيْتُ اَبَا عَطِيَّةَ مَالِكَ بْنَ عَامِرٍ فَسَأَلْتُهُ فَذَهَبَ يُحَدِّثُنِيْ حَدِيْثَ سُبَيْعَةَ فَقُلْتُ هَلْ سَمِعْتَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ فِيْهَا شَيْئًا فَقَالَ كُنَّا عِنْدَ عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ اَتَجْعَلُوْنَ عَلَيْهَا التَّغْلِيْظَ وَلَا تَجْعَلُوْنَ عَلَيْهَا الرُّخْصَةَ لَنَزَلَتْ سُوْرَةُ النِّسَآءِ الْقُصْرٰى بَعْدَ الطُّوْلٰى وَ اُوْلَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ.

دروغ اووے، نو زه ډير زيات زړور (دلير) يم، او هغه دا وخت د كوفه په علاقه كښې موجود دے عبدالرحمٰن اوشرميدلو. او وئيلے چه ذ هغهٔ تره (چچا) دا بيان اونهٔ كهٔ نو زهٔ ابو عطيه مالک بن عامر سره يوخائے شوم. ما ذ هغهٔ نه تپوس اوكهٔ، نو هغهٔ ماته ذ سُبيعه حديث بيان كهٔ. ما تپوس اوكهٔ، آيا تا ذ عبدالله بن مسعود نه ذ دے متعلق آوريدلے دي، هغه اووے مونږ عبدالله بن مسعود سره وو، هغهٔ اووے آيا تاسو په دے ښځو سختي نهٔ كوئے چه هغوي له رخصت نه وركوئے، حالانكه كم عدت واله، آيت (يعني وضع حمل) زيات عدت واله، آيت (يعني خلور مياشتے لس ورځے) نه پس نازل شوے دے[۲].

۱. دا يوه عامه عربي محاوره ده. په ابو سلمه بن عبدالرحمٰن بن عوف او ابوهريره رضي الله عنه كښې څه خپلولي نه وه، دلته هغوئ د عربو عام دستور مطابق هغه ته ابن اخي (يعني ورارهٔ) اوويلو.

۲. حمل داره او د چا چه خاوند وفات شوے وي د هغوئ د عدت متعلق د آيتونو په سلسله كښې د سلفو اختلاف راغلے دے. د جمهورو همدا مسلک دے چه ذ ماشوم پيدا كيدل د هغے عدت دے او د هغے نه پس هغه بله نكاح كولے شي خواه كه موده اوګده وي او كه مختصره وي. د ابن مسعود رضي الله عنه همدا مسلک وو.

# سُوْرَةُ التَّحْرِيْمِ

# ذَ سورۀ تحريم تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بابُ ۱۴۷: قَوْلِهٖ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ تَبْتَغِيْ مَرْضَاتَ اَزْوَاجِكَ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ.

باب ۱۴۷: آيت: يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ الخ: اے نبيّ، ذ خپلو بيبيانو ذ رضا جُوئي ذ پاره هغه څيز په خان ولے حرام كوے، چه هغه الله تا ذ پاره حلال كړے دے او الله تعالٰي بښونكے مهربانه دے.

۴۸۹۵: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فُضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ حَكِيْمٍ عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ جُبَيْرٍ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ

۴۸۹۵: معاذ بن فضاله. هشام. يحيٰي ابن حكيم. سعيد بن جبير نه روايت كوي. حضرت ابن عباسؓ اووے، چه حرام (يعني ته په ما حرام ئے، يا دا په ما حرام

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ فِي الْحَرَامِ يُكَفِّرُ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ.

دي) ونيلو كښې به كفاره وركولے شي. او حضرت ابن عباس اووې، بيشكه تاسو د پاره رسول الله صلي الله عليه وسلّم كښې ډيره ښه نمونه ده.

۴۸۹۶: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْرَبُ عَسَلًا عِنْدَ زَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ وَ يَمْكُثُ عِنْدَهَا فَوَاطَئْتُ اَنَا وَ حَفْصَةُ عَنْ اَيَّتُنَا دَخَلَ عَلَيْهَا فَلْتَقُلْ لَهُ اَكَلْتَ مَغَافِيْرَ فَاِنِّيْ اَجِدُ مِنْكَ رِيْحَ مَغَافِيْرَ قَالَ لَا وَلٰكِنِّيْ كُنْتُ اَشْرَبُ عَسَلًا عِنْدَ زَيْنَبَ ابْنَةِ جَحْشٍ فَلَنْ اَعُوْدَ لَهُ وَقَدْ حَلَفْتُ لَا تُخْبِرِيْ بِذَالِكِ اَحَدًا.

۴۸۹۶: ابراهيم بن موسٰي. هشام بن يوسف. ابن جريج. عطاء. عبيد بن عمير. بي بي عائشې نه روايت كوي، هغې اووې، رسول الله صلي الله عليه وسلّم به بي بي زينب بنت جحش سره شهَد (شات شكل او هلته به ډير وخته پورې وو. نو ما او حفصې خپلو كښې مشوره اوكړه چه موږ كښې كومې له حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړي، نو حضور صلي الله عليه وسلّم ته به وائي چه آيا تاسو مغافير خوړلے دي. ستاسو د خولے نه خو دَ مغافير بوئي راځي (نو ما دَغسې اوكړل) حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، نه، بلكه ما به زينب بنت جحش كره شات (شهد) شكل. او قَسم سره وايم، چه بيا به هيڅ كله نه څكم، دا خبره چاته مه كوه.

باب ۴۱۸: قَوْلِهٖ تَبْتَغِيْ مَرْضَاةَ اَزْوَاجِكَ قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ اَيْمَانِكُمْ.

باب ۴۱۸: آيت: تَبْتَغِيْ مَرْضَاةَ اَزْوَاجِكَ الخ ته دَ خپلو بيبيانو رضا غواړې. او الله تعالٰي ستاسو دَ پاره دَ قسمونو كفاره مقرر كړے ده.

ف: مغافير: دَ جاولې په شان يو بدبوداره خيز.

۴۸۹۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ بْنِ حُنَيْنٍ اَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يُحَدِّثُ اَنَّهُ قَالَ مَكَثْتُ سَنَةً اُرِيْدُ اَنْ اَسْاَلَ عُمَرَ بْنَ

۴۸۹۷: عبدالعزيز بن عبدالله. سليمان بن بلال. يحيٰي. عبيد بن حنين نه روايت كوي، هغه دَ ابن عباس نه واوريدل، زه يو كال پورې دې انتظار كښې ووم، چه د حضرت عمر بن خطاب نه دَ يو آيت متعلق تپوس اوكړم ليكن ما د هغهٔ دَ هيبت دَ وجې نه دَ هغهٔ نه تپوس اونهٔ كړې شو، تردې چه هغه دَ حج په اراده اووتلو نو زهٔ هم ورسره

سا اَسْتَطِيْعُ
حَتّٰى خَرَجَ
عَهُ فَلَمَّا
ن الطَّرِيْقِ
ساجَةٍ لَّهُ
ى فَرَغَ ثُمَّ
تُ يَا اَمِيْرَ
نِ تَظَاهَرَتَا
اللّٰهُ عَلَيْهِ
فَقَالَ تِلْكَ
الَ فَقُلْتُ
اَنْ اَسْاَلَكَ
سا اَسْتَطِيْعُ
مَا ظَنَنْتَ
خبَّرْتُكَ بِهِ
وَاللّٰهِ اِنْ
نَعُدُّ لِلنِّسَاءِ
هُ فِيْهِنَّ مَا
قَسَمَ قَالَ
اَتَامَّرُهُ اِذْ
نَعْتَ كَذَا
مَالَكِ وَلِمَا
فُكِ فِيْ اَمْرٍ
عَجَبًا لَكَ يَا
يُدُ اَنْ تُرَاجَعَ
اجِعُ رَسُوْلَ

اووتلم. کوم وخت چه زهٔ واپس شوم، او مونږ خلق لار
کښ وو، نو هغه ذَ پیلو اُونے ته رفع حاجت ذَ پاره ورغے
(پیلو: یوه اُونه چه ذَ جرړو او څانګو نه ئے مسواکو نه
جوړولے شي. او میوه ئے سره او خوږ لاړي وي، او خلق
ئے خوري) ذَ حضرت ابن عباسؓ بیان دے چه زهٔ د هغوي
په انتظار کښ ولاړ ووم، حتي چه هغوي فارغ شولو، بیا زهٔ
ورسره روان شوم نو ما اووے، اے امیر المؤمنین. ذَ نبي
صلي الله علیه وسلّم په بیبیانو کښ هغه کومے دوه بیبیانے
وے، چه هغوي ذَ حضور صلي الله علیه وسلّم متعلق اتفاق
کړے وو، حضرت عمرؓ اووے، هغه حفصهؓ او عائشهؓ وے
ذَ ابن عباسؓ بیان دے. ما اووے، قسم په خدائے، ما د یو
کال نه دا اراده کوله، چه ددے متعلق تاسو نه تپوس
اوکړم، خو ستاسو ذَ ویرے نه مِ درنه تپوس نه شو کولے
هغوي (حضرت عمرؓ) ورته اووے داسے مه کوه. ذَ کوم
خیز متعلق چه تاته معلومه وي، چه ماته ذَ هغے علم دے نو
مانه تپوس کوه که ماته علم وي، نو زهٔ به ئے ضرور درته
ښایم. ذَ ابن عباسؓ بیان دے. بیا حضرت عمرؓ اووے، په
خدائے مونږ به ذَ جاهلیت زمانه کښ ذَ ښځو هیڅ حق نه
ګنړلو، تردے چه الله تعالٰي ذَ هغوي حق کښ نازل کړل،
څه چه ئے نازلول. او هغوي ذَ پاره مقرر کول وو، څه چه
ئے مقرر کړل. حضرت عمرؓ اووے، یوه ورځ ما خپله
معامله کښ ذَ سوچ کولو، ذَغه وخت ځما ښځے اووے،
کاش چه تا داسے او داسے کولے. ما ورته اووے، چه تهٔ
ولے ځما معامله کښ دخل کوے، څه چه زهٔ کول غواړم.
هغے اووے اے ابن خطاب ماته په تا تعجب دے، تهٔ نهٔ
غواړے چه ستا ذَ خبرو جواب درکړے شي، حالانکه ستا

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى يَظَلَّ يَوْمَهُ غَضْبَانَ فَقَامَ عُمَرُ فَأَخَذَ رِدَآئَهُ مَكَانَهُ حَتّٰى دَخَلَ عَلٰى حَفْصَةَ فَقَالَ لَهَا يَا بُنَيَّةُ إِنَّكِ لَتُرَاجِعِيْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى يَظَلَّ يَوْمَهُ غَضْبَانَ فَقَالَتْ حَفْصَةُ وَاللّٰهِ إِنَّا لَنُرَاجِعُهُ فَقُلْتُ تَعْلَمِيْنَ أَنِّيْ أُحَذِّرُكِ عُقُوْبَةَ اللّٰهِ وَ غَضَبَ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ (وَ اٰلِهٖ) وَسَلَّمَ يَا بُنَيَّةُ لَا تَغُرَّنَّكِ هٰذِهِ الَّتِيْ أَعْجَبَهَا حُسْنُهَا حُبُّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاهَا يُرِيْدُ عَائِشَةَ قَالَ ثُمَّ خَرَجْتُ حَتّٰى دَخَلْتُ عَلٰى أُمِّ سَلَمَةَ لِقَرَابَتِيْ مِنْهَا فَكَلَّمْتُهَا فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ عَجَبًا لَكَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ دَخَلْتَ فِيْ كُلِّ شَيْءٍ حَتّٰى تَبْتَغِيْ أَنْ تَدْخُلَ بَيْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَزْوَاجِهٖ فَأَخَذَتْنِيْ وَاللّٰهِ أَخْذًا كَسَرَتْنِيْ عَنْ بَعْضِ مَا كُنْتُ أَجِدُ فَخَرَجْتُ مِنْ عِنْدِهَا وَ كَانَ لِيْ صَاحِبٌ مِنَ الْأَنْصَارِ إِذَا غِبْتُ أَتَانِيْ بِالْخَبَرِ وَ إِذَا غَابَ كُنْتُ أَنَا آتِيْهِ بِالْخَبَرِ وَ نَحْنُ نَتَخَوَّفُ مَلِكًا مِنْ

لور، ذ رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم ذ خبرو جواب ورکوي، تردې چه تـوله ورځ به حضور صلي الله عليه وسلّم غصه وو. حضرت عمرؓ خادر خان نه تاؤ کړو او بي بي حفصېؓ کره راغې او دې باره کښې ئې ترې باز پُرس اوکړو نو حفصېؓ اووې، قسم په خدائې تعالٰي مونږ ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ خبرو جواب کولو. ما اووې پوهه شه چه ه تـا ذ الله تعالٰي ذ سزا او ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ غضب نه ويرَوم. اے لُورې، تا دې هغه دهوکه کښې اونه غُرخوي چه هغې ذ هغې حُسن ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ محبت په سبب مغروره کړې ده. دې نه بي بي عائشهؓ مراد ده. ذ حضرت عمرؓ بيان دې. بيا زهٔ ذ هغه ځائې نه راووتم، تردې چه ذ قرابت په سبب بي بي اُم سلمهؓ له ورغلم. ما هغې سره خبرې اوکړې، نو هغې اووې اے ابن خطاب، تهٔ هر څيز کښې دخل ورکوې حتٰي چه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم او ذ هغوي ذ بيبيانو معامله کښې هم دخل ورکوې نو هغې په خدائې دومره سختي سره څما گرفت اوکهٔ، چه څما غصه لاړله. بيا زهٔ ذ هغې نه بهر ته اووتم. او انصارو کښې څما يو دوست وو کله چه به زهٔ حضور صلي الله عليه وسلّم سره موجود نه ووم، نو هغهٔ به ماته راتهٔ او حالات به ئې بيانول او کله چه به هغه نه وو نو ما به هغهٔ ته حالات بيانول. او هغه زمانه کښې مونږ ته ذ غسان بادشاهانو کښې ذ يو بادشاه ذ حملې خطره وه. مونږ ته بيان اوشو، چه هغه په مونږ ذ حملې په غرض راروان دې نو څمونږ سينې ذ خوف نه ډکې وې. يوه ورځ څما انصاري دوست دروازه اوټکوله، او وئيلې دروازه پرانزه، دروازه پرانزه ما ټپوس

مُلُوْكِ غَسَّانَ ذُكِرَ لَنَا اَنَّهٗ يُرِيْدُ اَنْ
يَّسِيْرَ اِلَيْنَا فَقَدِ امْتَلَاَتْ صُدُوْرُنَا مِنْهُ
فَاِذَا صَاحِبِيُّ الْاَنْصَارِيُّ يَدُقُّ الْبَابَ
فَقَالَ افْتَحْ افْتَحْ فَقُلْتُ جَآءَ الْغَسَّانِيُّ
فَقَالَ بَلْ اَشَدُّ مِنْ ذٰلِكَ اعْتَزَلَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَزْوَاجَهٗ
فَقُلْتُ رَغِمَ اَنْفُ حَفْصَةَؓ وَ عَآئِشَةَؓ
فَاَخَذْتُ ثَوْبِيْ فَاَخْرُجُ حَتّٰى جِئْتُ
فَاِذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فِيْ مَشْرُبَةٍ لَّهٗ يَرْقٰى عَلَيْهَا
بِعَجَلَةٍ وَ غُلَامٌ لِّرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْوَدُ عَلٰى رَأْسِ
الدَّرَجَةِ فَقُلْتُ لَهٗ قُلْ هٰذَا عُمَرُ بْنُ
الْخَطَّابِ فَاَذِنَ لِيْ قَالَ عُمَرُ فَقَصَصْتُ
عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ هٰذَا الْحَدِيْثَ فَلَمَّا بَلَغْتُ
حَدِيْثَ اُمِّ سَلَمَةَ تَبَسَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اِنَّهٗ لَعَلٰى
حَصِيْرٍ مَا بَيْنَهٗ وَ بَيْنَهٗ شَيْءٌ وَ تَحْتَ
رَأْسِهٖ وِسَادَةٌ مِّنْ اَدَمٍ حَشْوُهَا
لِيْفٌ وَ اِنَّ عِنْدَ رِجْلَيْهِ قَرَظًا مَصْبُوْبًا
وَ عِنْدَ رَأْسِهٖ اَهَبٌ مُعَلَّقَةٌ فَرَاَيْتُ اَثَرَ
الْحَصِيْرِ فِيْ جَنْبِهٖ فَبَكَيْتُ فَقَالَ مَا
يُبْكِيْكَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ
كِسْرٰى وَ قَيْصَرَ فِيْمَا هُمَا فِيْهِ وَ اَنْتَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ فَقَالَ اَمَا تَرْضٰى اَنْ

او کړ، آيا غسانيان راغلل، هغه اوويل دَ دې نه هم زياته
سخته معامله ده، نبي صلي الله عليه وسلم دَ خپلو ټولو
بيبيانو نه جدائي اختيار کړې ده. ما اوويل دَ عائشهؓ او
حفصهؓ پوزې دې په خاورو ککړې شي. بيا ما خپلې
کپړې واخستې روان شوم. حتي چه زهٔ راغلم، او حضور
صلي الله عليه وسلم دغه وخت يوه بالا خانه کښې وو، چه
هغ ته ختو دَ پاره يوه سيړهي لږيدلې وه. او دَ حضور
صلي الله عليه وسلم يو تور غلام دَ سيړهي په سر وو. ما
هغه ته اوويل لاړ شه او وايه چه عمرؓ بن خطاب راغلې دې
نو ماته اجازت راکړې شو. دَ حضرت عمرؓ بيان دې، دننه
چه ورغلم، نو ما حضور صلي الله عليه وسلم ته دا قصه
بيان کړه دَ بي بي اُم سلمهؓ خبره مې ورته اوکړه، نو حضور
صلي الله مُسکې شولو دغه وخت حضور صلي الله عليه
وسلم په يو پوړ ملاست وو. دَ حضور صلي الله عليه
وسلم دَ جسم او پوړ مينځ کښې هيڅ نه وو. او دَ حضور
صلي الله عليه وسلم دَ سر لاندې دَ خرمنې يوه تکيه وه،
چه دَ قجورو دَ پوستکو نه ډکه وه، او پښو سره ئې دَ قَرَظ
دَ پانړو ډهير لږيدلې وو (قرظ: يوه اُونه ده چه دَ هغې
پانړو سره دَ خرمنې د باغت کوي، يعني پخوي) او سر
سره ئې څه خرمنې اويزاندې وې ما دَ حضور صلي الله
عليه وسلم ارخ کښې دَ پوړ (يا بوريا) نښه اوليده (خاپ
اوليدو) نو زهٔ په ژړا شوم، حضور صلي الله عليه وسلم
اوفرمائيل ته ولې ژاړې ما اوويل يا رسول اللهؐ، قيصر او
کسرئ خو دومره آرام کښې دي، او تاسو دَ الله تعالٰي
رسول ئې او دې حالت کښې ئې. حضور صلي الله عليه
وسلم اوفرمائيل آيا ته دا نه خوښوې، چه هغوي دَ پاره

تَكُونَ لَهُمُ الدُّنْيَا وَ لَنَا الْاٰخِرَةُ.

لمنا وي او موږ د پاره آخرت.

بـــاب ۴۱۹: قَــوْلُــــهٖ وَ اِذْ اَسَـــرَّ الـنَّـبِـــيُّ اِلٰـــى بَـعْـضِ اَزْوَاجِـــهٖ حَــدِيْـثًــا فَـلَـمَّــا نَبَّـاَتْ بِـــهٖ وَ اَظْهَــرَهُ الـلّٰــهُ عَـلَيْـــهِ عَـــرَّفَ بَـعْـضَـــهٗ وَ اَعْـــرَضَ عَـــنْ بَـعْـضٍ فَـلَـمَّـا نَبَّــاَهَــا بِـــهٖ قَـــالَتْ مَـنْ اَنْـبَـاَكَ هٰذَا قَـالَ نَبَّـاَنِــيَ الْـعَـلِيْـمُ الْخَبِيْرُ فِيْـهِ عَـــائِشَةُ عَــنِ النَّبِيِّ صَلَّــى الـلّٰــهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۴۱۹: آيت: وَ اِذْ اَسَرَّ النَّبِيُّ اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهِ الخ: او هر كله چه پيغمبر صلي الله عليه وسلم خپلې يوې بي بي ته پټه يوه خبره او كړه. بيا چه هغې د هغه خبره اوښودله، او پيغمبرؐ پرې الله تعالٰي خبر كړلو. نو پيغمبر لږه غوندې خبره اوښودله، او څه ئې اونه ښودله. هر كله چه پيغمبر هغې ښځې ته هغه خبره اوښودله نو هغې اووې، تاسو چا خبر كړئ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اُفرمائيل، زۀ لوئي پوهيدونكي خبردار كړم. دې خبره كښې د عائشهؓ حديث د حضور صلي الله عليه وسلّم نه روايت دې.

۸۹۸: حَدَّثَـنَـا عَلِـيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ سَـمِعْتُ عُبَيْدَ ابْنَ حُنَيْنٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْـنَ عَبَّاسٍ رَضِـيَ اللهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ اَرَدْتُّ اَنْ اَسْـاَلَ عُـمَـرَ فَـقُلْتُ يَا اَمِيْرَ الْـمُـؤْمِـنِيْـنَ مَـنِ الْـمَرْاَتَـانِ اللَّتَانِ تَـظَاهَرَتَا عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ فَـمَـا اَتْمَمْتُ كَلَامِيْ حَتّٰى قَالَ عَائِشَةُ وَ حَفْصَةُ.

۸۹۸: عـلـي. سـفـيـان. يـحيٰي بن سعيد. عبيـد بـن حـنـين. ابـن عبـاسؓ نـه روايـت كـوي، هـغـه نـه ئې بيـان واوريـدلو، چـه مـا د حـضـرت عـمـرؓ نـه تپـوس كـول غـوښـتـل، نـو مـا اووې اې امير الـمـؤمـنـين هـغـه دوه كـومې بيبيانې وې چه هغوي د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم متعلق اتـفـاق كـړې وو، مـا خبره لا ختمـه كـړې هم نـۀ وه، چـه هـغـوي (حـضـرت عـمـرؓ) اوفـرمـائيـل هغـه عائشهؓ او حفصهؓ وې.

بـاب ۴۲۰: قَـوْلِـهٖ اِنْ تَتُوْبَا اِلَـى الـلّٰـهِ فَـقَـدْ صَغَـتْ قُلُوْبُكُمَا صَـغَـوْتُ وَ اَصْـغَيْـتُ مِـلْــتُ لِتَـصْـغٰـى لِتَمِيْلَ وَ اِنْ تَـظَـاهَـرَا عَـلَيْــهِ فَـاِنَّ الـلّٰــهَ هُـوَ مَوْلَاهُ وَ جِبْـرِيْــلُ وَ صَـالِـحُ الْـمُـؤْمِنِيْنَ

باب ۴۲۰: ايت: اِنْ تَتُوْبَا اِلَى اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا: كـه تـاسـو دواړه د اللّٰـه مـخكښې توبه كړئ نو ستـاسـو زړونـه مـائل شوي دي. او كه د پيغمبر مقابله كښې تـاسـو دواړه كـار وائي كوئ نو الله تعالٰي د پيغمبر ملګرې دې او جبـرائيـلؑ ئې مـلـګـرې دې او نيك مسلمانان ئې ملګري دي. او د دوي نه علاوه فريښتې ئې مددګارې دي.

وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذَالِكَ ظَهِيْرٌ عَوْنٌ تَظَاهَرُوْنَ تَعَاوَنُوْنَ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ قُوْا اَنْفُسَكُمْ وَ اَهْلِيْكُمْ اَوْصُوْا اَنْفُسَكُمْ وَ اَهْلِيْكُمْ بِتَقْوَى اللّٰهِ وَ اَدِّبُوْهُمْ.

"صغوت" او "اصغيت" زۀ مائل شوم. "لتصغى" چه نۀ مائل شي "ظهير" معني مددګار. "تظاهرون" تاسو مدد کوئ او مجاهد اووے. چه خپل ځانونه او کور والو بچ کړئ خپل ځانونه او کور والو ته د الله د ويرے نه وصيت او کړئ. او هغوي ته ادب اوښايئ.

۸۹۹: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ عُبَيْدَ بْنَ حُنَيْنٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ اَرَدْتُّ اَنْ اَسْأَلَ عُمَرَ عَنِ الْمَرْأَتَيْنِ اللَّتَيْنِ تَظَاهَرَتَا عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَكَثْتُ سَنَةً فَلَمْ اَجِدْ لَهُ مَوْضِعًا حَتّٰى خَرَجْتُ مَعَهُ حَآجًّا فَلَمَّا كُنَّا بِظَهْرَانَ ذَهَبَ عُمَرُ لِحَاجَتِهٖ فَقَالَ اَدْرِكْنِيْ بِالْوَضُوْءِ فَاَدْرَكْتُهُ بِالْاِدَاوَةِ فَجَعَلْتُ اَسْكُبُ عَلَيْهِ وَ رَاَيْتُ مَوْضِعًا فَقُلْتُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ مَنِ الْمَرْأَتَانِ اللَّتَانِ تَظَاهَرَتَا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَمَا اَتْمَمْتُ كَلَامِيْ حَتّٰى قَالَ عَآئِشَةُ وَ حَفْصَةُ.

۸۹۹: حميدي. سفيان. يحيى بن سعيد. عبيد بن حُنين. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، ذ هغه نه ئے بيان واوريدو، چه ما د حضرت عمرؓ نه ذ هغے دوه بيبيانو متعلق تپوس کول غوښتل چه هغوي ذ نبي صلي الله عليه وسلم متعلق اتفاق کړے وو. يو کال زه ايسار ووم خو موقع مِ نه بيامنده تردے چه زه حضرت عمرؓ سره د حج په اراده اووتم. کوم وخت چه ظهران ته اورسيدو نو حضرت عمرؓ قضائے حاجت ذ پاره لاړلو، او وئيلے ما د پاره اُوبه راوړه. ما لوښے راوړلو، او هغوي ته مِ اوبه اچولے. ما موقع مناسب اوګنړله، نو ما اووے اے امير المؤمنين، هغه کومے دوه بيبيانے وے چه هغوي منصوبه جوړه کړے وه. ذ ابن عباسؓ بيان دے ما لا خپله خبره ختمه کړے نه وه چه هغوي اووے هغه عائشهؓ او حفصهؓ وے.

بَابُ ۴۲۱: قَوْلُهٖ عَسٰى رَبُّهٗ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُّبْدِلَهٗ اَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمٰتٍ مُّؤْمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰٓئِبٰتٍ عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّ اَبْكَارًا.

باب ۴۲۱: آيت: عَسٰى رَبُّهٗ اِنْ طَلَّقَكُنَّ الخ که پيغمبر تاسو ښځو له طلاق درکړي، نو ذ هغه پروردګار به ډير زر ستاسو په بدله کښې هغه ته ښے بيبيانے ورکړي، چه اسلام والے، ايمان والے، فرمانبرداري کوونکے، توبه کوونکے عبادت کوونکے روژه نيونکے به وي، څه کُنډے او څه پيغلے.

۹۰۰: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ اجْتَمَعَ نِسَآءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغَيْرَةِ عَلَيْهِ فَقُلْتُ لَهُنَّ عَسٰى رَبُّهُ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُبْدِلَهُ اَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ.

۹۰۰: عمرو بن عون. هُشيم. حميد. حضرت انسؓ نه روايت كوي، د حضرت عمرؓ بيان دے، د نبي صلي الله عليه وسلّم بيبيانے حضور صلي الله عليه وسلّم ته غيرت مخكښ كولو د پاره جمع شوے، نو ما هغے بيبيانوته اووے كه حضور صلي الله عليه وسلّم تاسوله طلاق دركړي، نو ډيره ممكنه ده، چه ستاسو بدله كښ ستاسو نه ښے بيبيانے حضورؐ له وركړي، نو الله تعالٰي دا آيت نازل كړلو.

## سُوْرَةُ تَبَارَكَ الَّذِيْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ

## دَ سورهٔ مُلک تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

التَّفَاوُتُ الْاِخْتِلَافُ وَالتَّفَاوُتُ وَالتَّفَوُّتُ وَاحِدٌ تَمَيَّزُ تَقَطَّعُ مَنَاكِبِهَا جَوَانِبِهَا تَدَّعُوْنَ وَ تَدْعُوْنَ مِثْلُ تَذَكَّرُوْنَ وَ تَذْكُرُوْنَ وَ يَقْبِضْنَ يَضْرِبْنَ بِاَجْنِحَتِهِنَّ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ صَافَّاتٍ بُسْطِ اَجْنِحَتَهُنَّ وَ نُفُوْرِ الْكُفُوْرُ.

"التفاوت" اختلاف، تفاوت او تفوت يو معني دي. "تميز" ټكړے ټكړے به شي. "مناكبها" د هغے اطراف. "تَدّعون" او "تدعون" "تذكّرون" او "تذكرون" په شان دے. "يقبضن" خپل وزر وهي. او مجاهد اووے "صافات" نه مراد د هغوي د وزرو خورول دي. "نفور" په معني د "كفور" (كفر كونكے) دے.

## سُوْرَةُ نٓ وَالْقَلَمِ

## دَ سورهٔ نٓ و القلم تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ قَتَادَةُ حَرْدٍ جِدٌّ فِيْ اَنْفُسِهِمْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَتَخَافَتُوْنَ يَنْتَجُوْنَ السِّرَارَ وَالْكَلَامَ الْخَفِيَّ وَ قَالَ قَتَادَةُ حَرْدٍ جِدٍّ فِيْ اَنْفُسِهِمْ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَضَآلُّوْنَ اَضْلَلْنَا مَكَانَ جَنَّتِنَا

او قتاده اووے "حرد" خپل زړهٔ كښ كوشش كول. او ابن عباسؓ اووے. "لضالون" مونږ نه د خپل باغ ځائے هير شولو. او نورو اووے "كالصريم" يعني د هغے سحر په شان شي، او هغه شپه چه د

وَقَالَ غَيْرُهُ كَالصَّرِيْمِ كَالصُّبْحِ انْصَرَمَ مِنَ اللَّيْلِ وَاللَّيْلُ انْصَرَمَ مِنَ النَّهَارِ وَهُوَ اَيْضًا كُلُّ رَمْلَةٍ انْصَرَمَتْ مِنْ مُعْظَمِ الرَّمْلِ وَالصَّرِيْمِ اَيْضًا الْمَصْرُوْمُ مِثْلُ قَتِيْلٍ وَ مَقْتُوْلٍ.

ورځې نه كټ شي. او ډېر ورو ورو ريګونو ټوټو ته هم وائي، چه ذ ريګ ذ لويو لويو ټوټو نه كټ شوې وي. او "صريم" په معنې ذ "مصروم" هم راځي، لكه "قتيل" او "مقتول".

**بـاب ۴۲۲: قَوْلِهِ عُتُلٍّ بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ.**

**باب ۴۲۲:** آيت: عُتُلٍّ بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ: سخت خويه دې، ذ دې نه علاوه كمينه دې.

۹۰۱: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ اِسْرَائِيْلَ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عُتُلٍّ بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ قَالَ رَجُلٌ مِّنْ قُرَيْشٍ لَهُ زَنَمَةٌ مِثْلُ زَنَمَةِ الشَّاةِ.

۹۰۱: محمود. عبيدالله. اسرائيل. ابو حصين. مجاهد. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې چه "عتل بعد ذٰلك زنيم" كښې ذ قريش ذ يو سړي داسې نښنه ده، لكه ذ چيلئې چه يو خاص نښه وي.

۹۰۲: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ حَارِثَةَ بْنَ وَهْبٍ الْخُزَاعِيَّ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِاَهْلِ الْجَنَّةِ كُلُّ ضَعِيْفٍ مُتَضَعَّفٍ لَوْ اَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَاَبَرَّهُ اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِاَهْلِ النَّارِ كُلُّ عُتُلٍّ جَوَّاظٍ مُسْتَكْبِرٍ.

۹۰۲: ابو نعيم. سفيان. معبد بن خالد. حارثه بن وهب خزاعه نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې. ما ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، آيا زهٔ تاسو ته ذ اهل جنت خبر درنهٔ كړم، هغه هر كمزورې او حقير دې، كه اللّٰه باندې څه قسم اوخوري، نو اللّٰه هغه پوره كړي، آيا زهٔ تاسو ته ذ دوزخ والو خبر درنهٔ كړم، هغه شرير، مغرور او تكبر واله خلق دي.

**باب ۴۲۳: قَوْلِهِ يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ.**

**باب ۴۲۳:** آيت: يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ: په كومه ورځ چه پنډئ (پنڈلی) څرګنده كړې شي.

۹۰۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ هِلَالٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ

۹۰۳: آدم. ليث. خالد بن يزيد. سعيد بن ابي هلال. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. حضرت ابوسعيد خدريؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې، ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل څمونږ

سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَكْشِفُ رَبُّنَا عَنْ سَاقِهٖ فَيَسْجُدُ لَهٗ كُلُّ مُؤْمِنٍ وَ مُؤْمِنَةٍ وَّ يَبْقٰى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ فِي الدُّنْيَا رِئَاءً وَّ سُمْعَةً فَيَذْهَبُ لِيَسْجُدَ فَيَعُوْدُ ظَهْرُهٗ طَبَقًا وَّاحِدًا.

پروردګار به پنډۍ پرانزي، نو هر ايماندار سړے او ښځه به هغے ته سجده اوکړي، او هغه به باقي پاتے شي، چه دُنيا کښې ئے ريا او ذ شهرت په غرض سجده کوله. هغه به سجدے کولو له ورځي (يعني خکته کيږي به) او ذ هغه شا به ذ يو تخت په شان شي (يعني تاويدے به نشي).

# سُوْرَةُ الْحَآقَّةِ

# دَ سورۀ الحاقة تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ يُرِيْدُ فِيْهَا الرِّضَا الْقَاضِيَةَ الْمَوْتَةَ الْاُوْلٰى الَّتِيْ مُتُّهَا لَمْ اُحْيَ بَعْدَهَا مِنْ اَحَدٍ عَنْهُ حَاجِزِيْنَ اَحَدٌ يَكُوْنُ لِلْجَمْعِ وَ لِلْوَاحِدِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْوَتِيْنُ نِيَاطُ الْقَلْبِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَغٰى كَثُرَ وَ يُقَالُ بِالطَّاغِيَةِ بِطُغْيَانِهِمْ وَ يُقَالُ طَغَتْ عَلَى الْخُزَّانِ كَمَا طَغَى الْمَآءُ عَلٰى قَوْمِ نُوْحٍ.

"عيشة راضية" داسے عيش چه ذَ هغے نه راضي وي، القاضية، ومبنے مرګ داسے وي، چه ذَ هغے نه پس بيا قيامت کښې نۀ ژوندے کيدے. "من احد عن حاجزين" احد، جمع او واحد دواړو ذَ پاره وئيلے شي. او ابن عباسؓ اووے "و تين" نه مراد ذَ زړۀ رګ دے. ابن عباسؓ اووے. "طغٰى" په معني ذَ کثر (زياتے اوشو). "بالطّاغية" "بطغيانهم" او "طغت على الخزان" وائي، يعني ذَ سرکشي په سبب هلاک کړے شو، څنګه چه "طغى الماء على قوم نوح" وائي.

# سُوْرَةُ الْمَعَارِجِ

# دَ سورۀ معارج تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْفَصِيْلَةُ اَصْغَرُ آبَائِهِ الْقُرْبٰى اِلَيْهِ يَنْتَمِيْ مَنِ انْتَمٰى لِلشَّوٰى الْيَدَانِ وَالرِّجْلَانِ وَالْاَطْرَافُ وَ جِلْدَةُ الرَّأْسِ يُقَالُ لَهَا شَوَاةٌ وَّمَا كَانَ غَيْرُ مَقْتَلٍ فَهُوَ شَوًى وَالْعِزُوْنَ الْجَمَاعَاتُ وَ

"الفصيله" قريبي رشته دار چه هغۀ طرف ته منسوب کيږي. "للشوى" دواړه لاسونه، او دواړه پښے او اطراف بدن او ذ سر څرمن مراد دہ. دے ته "شواة" وائي او چه ذَ قتل ځائے نۀ وي، هغے ته "شوى" وائي او "عزون" نه مراد جماعتونه دي، ذَ دے واحد "عزه"

وَاجِدُهَا عِزَّةٌ.

دے

# إِنَّا أَرْسَلْنَا

# دَ سورۀ نوح تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

أَطْوَارًا طَوْرًا كَذَا وَ طَوْرًا كَذَا يُقَالُ طَوْرَهُ أَيْ قَدْرَهُ وَالْكُبَّارُ أَشَدُّ مِنَ الْكُبَارِ وَ كَذٰلِكَ جُمَّالٌ وَ جَمِيْلٌ لِأَنَّهَا أَشَدُّ مُبَالَغَةً وَ كُبَّارًا لْكَبِيْرُ وَ كُبَارًا أَيْضًا بِالتَّخْفِيْفِ وَالْعَرَبُ تَقُوْلُ رَجُلٌ حُسَّانٌ وَ جُمَّالٌ وَ حُسَانٌ مُخَفَّفٌ وَ جُمَالٌ مُخَفَّفٌ دَيَّارًا مِّنْ دَوْرٍ وَّلٰكِنَّهُ فَيْعَالٌ مِّنَ الدَّوَرَانِ كَمَا قَرَأَ عُمَرُ الْحَيُّ الْقَيَّامُ وَ هِيَ مِنْ قُمْتُ وَ قَالَ غَيْرُهُ دِيَارًا أَحَدًا تَبَارًا هَلَاكًا وَّ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مِدْرَارًا يَتْبَعُ بَعْضُهَا بَعْضًا وَقَارًا عَظَمَةً.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"اطوارًا" كله داسے او كله داسے اووائي "عدا طوره" يعني هغه د خپلے مرتبے نه تجاوز او كړ. او "كُبَّارٌ" د "كُبَار" نه زياته مبالغه ده. او دا شان "جُمَّالٌ" او "جميلٌ" دي، چه دے كښې مبالغه زياته ده او "كُبَّارٌ" نه مراد كبير دے. او "كُبَار" تخفيف سره هم مستعمل دے، او عرب "رَجُلٌ حُسَّانٌ وَ جُمَّالٌ وَ حُسَانٌ" تخفيف سره او جُمال تخفيف سره وائي "دَيَّارًا" دور نه ماخوذ دے. ليكن دا "دَوَرَانٌ" نه ماخوذ دے. او بعضو اووے چه "دَيَّارًا" نه مراد دادے چه څوک سرے "تَبَارًا" په معني دَ هلاكت، او ابن عباسؓ اووے. "مِدْرَارًا" چه يو بل پسے راشي، متواتر په شيبو (موسلادهار) "وَقَارًا" نه مراد عظمت دے.

## بـاب ۴۲۴: قَوْلِهِ وَدًّا وَّلَا سُوَاعًا وَّلَا يَغُوْثَ وَ يَعُوْقَ.

## باب ۴۲۴: آيت: "وَدًّا وَّلَا سُوَاعًا وَّلَا يَغُوْثَ وَ يَعُوْقَ" تفسير.

۴۰۹: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ وَقَالَ عَطَاءٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ صَارَتِ الْأَوْثَانُ الَّتِيْ كَانَتْ فِيْ قَوْمِ نُوْحٍ فِي الْعَرَبِ بَعْدُ أَمَّا وَدٌّ كَانَتْ لِكَلْبٍ بِدَوْمَةِ الْجَنْدَلِ وَ أَمَّا سُوَاعٌ كَانَتْ لِهُذَيْلٍ وَ أَمَّا يَغُوْثُ فَكَانَتْ لِمُرَادٍ ثُمَّ لِبَنِيْ غُطَيْفٍ بِالْجَوْفِ عِنْدَ سَبَا و أَمَّا

۴۰۹: ابراهيم بن موسى. هشام. ابن جريج. عطاء. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه هغه بُتان چه قوم نوحؑ كښې وو، هغه عربو كښې دَ هغه نه پس عبادت به ئے كيدلو، "وَدّ" د قوم كلب بُت وو، چه دومة الجندل كښې وو. "سواع" دَ "هُذيل" وو. او "يغوث" د مراد قوم. بيا دَ بني غطيف چه سبا سره جوف كښې وو. او "يَعُوق" د همدان. او "نَسْرٌ" د حسير قوم، چه دَ ذي الكلاع د خاندان نه وو. دا دَ قوم

يَغُوْقُ فَكَانَتْ لِهَمْدَانَ وَ اَمَّا نَسْرٌ فَكَانَتْ لِحِمْيَرَ لِاٰلِ ذِى الْكَلَاعِ اَسْمَآءُ رِجَالٍ صَالِحِيْنَ مِنْ قَوْمِ نُوْحٍ فَلَمَّا هَلَكُوْا اَوْحَى الشَّيْطَانُ اِلٰى قَوْمِهِمْ اَنِ انْصَبُوْا اِلٰى مَجَالِسِهِمُ الَّتِىْ كَانُوْا يَجْلِسُوْنَ اَنْصَابًا وَ سَمُّوْهَا بِاَسْمَآئِهِمْ فَفَعَلُوْا فَلَمْ تُعْبَدْ حَتّٰى اِذَا هَلَكَ اُولٰئِكَ وَ تَنَسَّخَ الْعِلْمُ عُبِدَتْ.

نوح د نیکانو خلقو نومونه وو. کوم وخت چه دا نیکان خلق وفات شو، نو شیطان د هغوي په زړونو کښې دا خبره راچوله، چه ذَ هغوي د ناستې په ځائے کښې کوم ځائے چه به کیناستلو، بُت نصب کړئ، او د هغے نوم ذَ هغے بزرګانو په نوم کیږدئ. نو دغے خلقو دغسے اوکړل. لیکن ذَ هغے عبادت ئے نه وو کړے، تردے چه هغه خلق هم مړه شو، او علم ختم شو، نو ذَ هغے عبادت شروع شو.

## قُلْ اُوْحِىَ اِلَىَّ

## دَ سورۀ جن تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لِبَدًا اَعْوَانًا.

ابن عباسؓ اووے چه "لِبَدًا" نه مراد "اعوان" يعني مدذګار دے.

۹۰۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِىْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ انْطَلَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِىْ طَآئِفَةٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ عَامِدِيْنَ اِلٰى سُوْقِ عُكَاظٍ وَقَدْ حِيْلَ بَيْنَ الشَّيَاطِيْنِ وَ بَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ وَ اُرْسِلَتْ عَلَيْهِمُ الشُّهُبُ فَرَجَعَتِ الشَّيَاطِيْنُ فَقَالُوْا مَالَكُمْ فَقَالُوْا حِيْلَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ خَبَرِ السَّمَآءِ وَ اُرْسِلَتْ عَلَيْنَا الشُّهُبُ قَالَ مَا حَالَ بَيْنَكُمْ وَ بَيْنَ خَبَرِ السَّمَآءِ اِلَّا مَا

۹۰۵: موسي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. ابو بشر. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، ذَ هغۀ بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذَ صحابهؓ يو جماعت سره ذَ عکاظ بازار په قصد روان شو. ذَ شيطانانو او آسمان ذَ خبر مينځ کښې حجاب شوے وو (يعني ذَ آسمانونو خبرونه راوړل موقوف شوي وو) او په هغوي (يعني په شيطانانو) شغلے غورځيدل شروع شوې وو. کوم وخت چه شيطانان خپل قوم ته واپس راغلل، نو هغے خلقو تپوس اوکۀ، څۀ خبره ده، هغوي جواب ورکۀ، خمونږ او ذَ آسمان خبرونو مينځ کښې څه څيز حائل شوے دے، او په مونږ شغلے غورځولے شي، ونيلے ستاسو او ذَ آسمان خبر مينځ کښې څه څيز حائل شوے دے، نو د زمکے، مشرق او مغرب کښې لاړ شئے،

حَدَثَ فَاضْرِبُوْا مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَ مَغَارِبَهَا فَانْظُرُوْا مَا هٰذَا الْاَمْرُ الَّذِيْ حَدَثَ فَانْطَلَقُوْا فَضَرَبُوْا مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَ مَغَارِبَهَا يَنْظُرُوْنَ مَا هٰذَا الْاَمْرُ الَّذِيْ حَالَ بَيْنَهُمْ وَ بَيْنَ خَبَرِ السَّمَآءِ قَالَ فَانْطَلَقَ الَّذِيْنَ تَوَجَّهُوْا نَحْوَ تِهَامَةَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَخْلَةَ وَهُوَ عَامِدٌ اِلٰى سُوْقِ عُكَاظٍ وَّهُوَ يُصَلِّيْ بِاَصْحَابِهٖ صَلٰوةَ الْفَجْرِ فَلَمَّا سَمِعُوْا الْقُرْآنَ تَسَمَّعُوْا لَهٗ فَقَالُوْا هٰذَا الَّذِيْ حَالَ بَيْنَكُمْ وَ بَيْنَ خَبَرِ السَّمَآءِ فَهُنَالِكَ رَجَعُوْا اِلٰى قَوْمِهِمْ فَقَالُوْا يَا قَوْمَنَا اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا يَّهْدِيْ اِلَى الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ وَلَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَا اَحَدًا وَّ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ عَلٰى نَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ وَ اُوْحِيَ اِلَيْهِ قَوْلُ الْجِنِّ.

او ګورے چه کومه نوے خبره ظهور کښ راغلے ده، نو هغه خلق روان شو، او د زمکے مشرق او مغرب کښ تلل، کتل ئے، چه کومه نوے خبره د هغوي او د آسمان د خبر مينځ کښ حائله شوے ده. د ابن عباسؓ بيان دے، چه هغه خلق چه هغوي د تهامه رُخ کړے وو رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته نخله ته اورسيدل، چه هغه وخت ئے د عکاظ بازار ته د تلو قصد کولو. حضور صلي الله عليه وسلّم صحابه ؤ ته د سحر مونځ ورکولو کوم وخت چه هغوي قرآن واوريدلو، نو هغے ته ئے غوږ کيښودلو. دے خلقو خپلو کښ اووے هغه دا دے چه ستاسو او آسمان د خبر مينځ کښ حائل دے. ددے ځائے نه دا خلق خپل قوم ته واپس راغلل. او وئيلے اے څمونږ قومه مونږ يو عجيبه قرآن اوريدلے دے چه نيکئ طرف ته هدايت کوي. نو مونږ په هغے ايمان راوړے دے او مونږ خپل رب سره هيڅوک شريک نه جوړوو. او الله عز و جل خپل نبي صلي الله عليه وسلّم باندے ايت: قُلْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ: نازل کړلو. نبي صلي الله عليه وسلّم ته د پيريانو د قول د وحي په ذريعه اطلاع ورکړے شوه.

## سُوْرَةُ الْمُزَّمِّلِ

## دَ سُورهٔ مزمّل تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ وَّ تَبَتَّلْ اَخْلِصْ وَ قَالَ الْحَسَنُ اَنْكَالًا قُيُوْدًا مُنْفَطِرٌ بِهٖ مُثْقَلَةٌ بِهٖ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ

او مجاهد اووے. "تَبَتَّلْ" په معني د "اَخْلِصْ" (عبادت کښ مخلص وي). او حسن اووے "اَنْكَالًا" په معني د "قُيُوْدًا" (بيړيانړ: بيړئ) "مُنْفَطِرٌ بِهٖ" په معني د "مُثْقَلَةٌ بِهٖ" (آسمان به هغے سره دروند شي) دے او ابن عباسؓ اووے

كَثِيْبًا مَهِيْلًا الرَّمْلُ السَّائِلُ وَ وَبِيْلًا شَدِيْدًا.

"كثيبا مهيلا" په معني د "رمل سائل" (ريګِ روان) دے "وبيلا" په معني د "شديدا" (سخت) دے.

# سُوْرَةُ الْمُدَّثِّرِ

# د سورهٔ مدثر تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَسِيْرٌ شَدِيْدٌ قَسْوَرَةٌ رِكْزُ النَّاسِ وَ أَصْوَاتُهُمْ وَ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ الْأَسَدُ وَ كُلُّ شَدِيْدٍ قَسْوَرَةٌ مُسْتَنْفِرَةٌ نَافِرَةٌ مَذْعُوْرَةٌ.

ابن عباس اووے. "عسير" په معني د شديد (سخت دشوار) "قسورة" معني دي، د سرو شور او غوغا. او ابوهريرهؓ اووے، د دے معني د امزري دي. او هر څيز "قسورة" د. "مستنفره" خوف زده شوے تښتيدونکے.

**۹۰۶** : حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيٰى بْنِ أَبِيْ كَثِيْرٍ سَأَلْتُ أَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَوَّلِ مَا نَزَلَ مِنَ الْقُرْاٰنِ قَالَ يٰٓأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُلْتُ يَقُوْلُوْنَ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ فَقَالَ أَبُوْ سَلَمَةَ سَأَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ ذٰلِكَ وَ قُلْتُ لَهٗ مِثْلَ الَّذِيْ قُلْتَ فَقَالَ جَابِرٌ لَا أُحَدِّثُكَ إِلَّا مَا حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ جَاوَرْتُ بِحِرَاءٍ فَلَمَّا قَضَيْتُ جِوَارِيْ هَبَطْتُ فَنُوْدِيْتُ فَنَظَرْتُ عَنْ يَمِيْنِيْ فَلَمْ أَرَ شَيْئًا وَ نَظَرْتُ عَنْ شِمَالِيْ فَلَمْ أَرَ شَيْئًا وَ نَظَرْتُ أَمَامِيْ فَلَمْ أَرَ شَيْئًا وَ نَظَرْتُ خَلْفِيْ فَلَمْ أَرَ شَيْئًا فَرَفَعْتُ رَأْسِيْ فَرَأَيْتُ شَيْئًا فَأَتَيْتُ خَدِيْجَةَ فَقُلْتُ

**۹۰۶** : يحيٰي. وكيع. علي بن مبارک. يحيٰي بن ابي كثير نه روايت کوي. د هغهٔ بيان دے ما د ابو سلمه بن عبدالرحمٰن نه تپوس اوکهٔ، چه د ټولو نه مخکښ د قرآن کريم آيت نازل شولو، نو هغهٔ اووے "يا ايها المدثر" (لوستلے شولو). ما اووے خلق وائي، چه "اقرأ باسم ربک الذي خلق" د ټولو نه مخکښ نازل شوے دے. ابو سلمه اووے، ما د دے متعلق د جابر بن عبداللّٰه نه تپوس اوکهٔ. او ما هم هغه اووے، څهٔ چه تا اووے. حضرت جابر اووے، زهٔ تاته هغه بيان کوم، چه مونږ ته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم بيان کړے دے حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل زهٔ غار حرا کښ ګوشه نشين (چيله) ووم، کوم وخت چه ما هغه پوره کړه، نو زهٔ د هغے نه راکوزيدم، نو يو آواز مِ واوريدلو. ما خپل ښي طرف ته اوکتل، نو هيڅ مِ په نظر رانغلل. بيا مِ خپل کس طرف ته اوکتل، نو هم مِ څهٔ په نظر رانغلل، ما سر اوچت کهٔ، نو يو څيز مِ اوليد. بيا زهٔ بي بي خديجےؓ له راغلم. نو ما اووے، ما پانده کمبل واچوئے، او په ما يخے اوبه

دَثِّرُوْنِيْ وَ صُبُّوْا عَلَيَّ مَآءً بَارِدًا قَالَ فَدَثَّرُوْنِيْ وَصَبُّوْا عَلَيَّ مَآءً ا بَارِدًا قَالَ فَنَزَلَتْ يٰٓاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَاَنْذِرْ وَ رَبَّكَ فَكَبِّرْ.

توڼے کړے. حضورؐ بيان اوکړ، په ما کمبل واچولے شوه. او په ما يخے اوبه توئے کړے شوے. بيا آيت: يَا اَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَاَنْذِرْ وَ رَبَّكَ فَكَبِّرْ (ته اودرېږه او اويروه) نازل شولو.

**باب ۴۲۵: قَوْلُهٗ قُمْ فَاَنْذِرْ.**

**باب ۴۲۵: آيت: قُمْ فَاَنْذِرْ: ته اودرېږه او اويروه).**

۹۰۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ مَهْدِيٍّ وَغَيْرُهٗ قَالَا حَدَّثَنَا حَرْبُ بْنُ شَدَّادٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ جَاوَرْتُ بِحِرَآءٍ مِثْلَ حَدِيْثِ عُثْمَانَ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ.

۹۰۷: محمد بن بشار. عبدالرحمٰن بن مهدي او يو بل سړے حرب بن شداد. يحيٰي بن ابي كثير. ابو سلمه. حضرت جابر بن عبدالله نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زهٔ غار حرا کښې گوشه نشين ووم. او دَ عثمان بن عمر دَ حديث په مثل چه علي بن مبارک نه بيان دے، روايت ئے کړے دے.

**باب ۴۲۶: قَوْلُهٗ وَ رَبَّكَ فَكَبِّرْ.**

**باب ۴۲۶: آيت: وَ رَبَّكَ فَكَبِّرْ: (او دَ خپل رب لوئي بيان کړه).**

۹۰۸: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا حَرْبُ حَدَّثَنَا يَحْيٰى قَالَ سَاَلْتُ اَبَا سَلَمَةَ اَيُّ الْقُرْاٰنِ اُنْزِلَ اَوَّلُ فَقَالَ يٰٓاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ فَقُلْتُ اُنْبِئْتُ اَنَّهٗ اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ فَقَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ سَاَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَيُّ الْقُرْاٰنِ اُنْزِلَ اَوَّلُ فَقَالَ يٰٓاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ فَقُلْتُ اُنْبِئْتُ اَنَّهٗ اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ فَقَالَ لَا اُخْبِرُكَ اِلَّا بِمَا قَالَ رَسُوْلُ

۹۰۸: اسحٰق بن منصور. عبدالصمد. حرب. يحيٰي نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، ما دَ ابو سلمه نه تپوس اوکړ، چه دَ قرآن کوم آيت مخکښې نازل شوے دے، نو هغهٔ اووے: يا ايّها المدثّر: ما اووے، ما ته خبر راکړے شوے دے، چه: اقرا باسم ربّک الّذی خلق: دَ ټولو نه مخکښې نازل شوے دے، نو ابو سلمه اووے، ما دَ حضرت جابر بن عبدالله نه تپوس اوکړ، چه د قرآن کوم آيت دَ ټولو نه مخکښې نازل شوے دے، نو هغهٔ اووے "يا ايّها المدثّر" ما اووے، زهٔ خبر شوے يم، چه هغه آيت: اقرا باسم ربّک الذی خلق:

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاوَرْتُ فِيْ حِرَآءٍ فَلَمَّا قَضَيْتُ جِوَارِيْ هَبَطْتُ فَاسْتَبْطَنْتُ الْوَادِيَ فَنُوْدِيْتُ فَنَظَرْتُ اَمَامِيْ وَ خَلْفِيْ وَ عَنْ يَمِيْنِيْ وَ عَنْ شِمَالِيْ فَاِذَا هُوَ جَالِسٌ عَلٰى عَرْشٍ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ فَاَتَيْتُ خَدِيْجَةَ فَقُلْتُ دَثِّرُوْنِيْ وَ صُبُّوْا عَلَيَّ مَآءً بَارِدًا وَّ اُنْزِلَ عَلَيَّ يٰۤاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَاَنْذِرْ وَ رَبَّكَ فَكَبِّرْ.

دے. هغهٔ اووے، زهٔ تاته هغه بیان کوم، چه ماته رسول الله صلي اللّٰه علیه وسلّم بیان کړے دے حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، زهٔ حِراء کښې ګوشه نشین ووم، چه ګوشه نشیني مِ ختمه کړه، نو دَ هغې ځائے نه راکوزیدم، کوم وخت چه دَ وادي لاندے ته راورسیدم، نو یو آواز راغے، ما مخکښې ورستو ښي او ګس طرف ته اوکتل، نو هغه فریښته دَ آسمان او زمکے مینځ کښې په تخت ناسته په نظر راغله. زهٔ بي بي خدیجې له راغلم، ورته مِ اووے، کمبل رابانده‌ے واچوه او په ما اوبه اوبهیوه. او په ما دا آیت: یا ایها المدثر، قم فانذر و ربک فکبر نازل شولو.

باب ٤٢٧: قَوْلِهٖ وَ ثِيَابَكَ فَطَهِّرْ.

باب ٤٢٧: آیت: وَ ثِيَابَکَ فَطَهِّرْ: (او خپلے کپړے پاکے ساته).

٩٠٩: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ ح وَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ فَاَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْيِ فَقَالَ فِيْ حَدِيْثِهٖ فَبَيْنَا اَنَا اَمْشِيْ اِذْ سَمِعْتُ صَوْتًا مِّنَ السَّمَآءِ فَرَفَعْتُ رَاْسِيْ فَاِذَا الْمَلَكُ الَّذِيْ جَآءَنِيْ بِحِرَآءٍ جَالِسٌ عَلٰى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ فَجَئِثْتُ مِنْهُ

٩٠٩: یحیی بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. (دویم سند) عبداللّٰه بن محمد. عبدالرزاق. معمر. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل، کوم وخت چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ وحي دَ ایساریدلو حال بیانولو، نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل دے دوران کښې چه زهٔ روان ووم، ما دَ آسمان نه یو آواز واوریدلو، سر مِ اوچت کهٔ، نو هغه فریښته په نظر راغله چه ماته حراء کښې راغلے وه. دَ آسمان او زمکے په مینځ کښې په کرسي ناسته وه. په ما دَ هغې نه خوف خور شو، ما اووے په ما کمبل واچوئے،

فَرَجَعْتُ فَقُلْتُ زَمِّلُوْنِيْ زَمِّلُوْنِيْ فَدَثَّرُوْنِيْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى يٰاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ اِلٰى وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ قَبْلَ اَنْ تُفْرَضَ الصَّلٰوةُ وَ هِيَ الْاَوْثَانُ.

په ما كمبل واچوئ' خلقو په ما كمبل واچولو' نو اللّٰه تعالىٰ دا آيت نازل كړلو: يٰاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ الخ: دا د مونځ د فرض كيدونه د مخكښ واقعه ده او "رجز" نه مراد بُتان دي.

بَابٌ ۴۲۸: قَوْلِهٖ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ يُقَالُ الرِّجْزُ وَالرِّجْسُ الْعَذَابُ.

باب ۴۲۸: آيت: وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ: كښې د بعضے په نزد "رجز" او "رجس" عذاب ته وئيلے شي.

۹۱۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْيِ فَبَيْنَا اَنَا اَمْشِيْ سَمِعْتُ صَوْتًا مِنَ السَّمَآءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِيْ قِبَلَ السَّمَآءِ فَاِذَا الْمَلَكُ الَّذِيْ جَآءَنِيْ بِحِرَآءٍ قَاعِدٌ عَلٰى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ فَجَئِثْتُ مِنْهُ حَتّٰى هَوَيْتُ اِلَى الْاَرْضِ فَجِئْتُ اَهْلِيْ فَقُلْتُ زَمِّلُوْنِيْ زَمِّلُوْنِيْ فَزَمَّلُوْنِيْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى يٰاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ اِلٰى قَوْلِهٖ فَاهْجُرْ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ وَالرُّجْزَ الْاَوْثَانُ ثُمَّ حَمِيَ الْوَحْيُ وَ تَتَابَعَ.

۹۱۰: عبداللّٰه بن يوسف. ليث. عقيل. ابن شهاب. ابو سلمه. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت كوي. د هغهٔ بيان دے' ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د وحي د ايساريد (بنديده) متعلق بيان واوريدلو' يو خل زهٔ روان ووم' چه ما د آسمان نه يو آواز واوريدلو. ما آسمان پلے نظر اُوچت كهٔ' نو فرېښته مِ اوليده چه ماته حراء كښې راغلے وه هغه د آسمان او زمكے مينځ كښې په كُرسي ناسته وه. د هغې په وجه په ما رُعب پريوتلو' تردے چه زهٔ په زمكه راپريوتم' زهٔ خپلے ښځے بي بي خديجےؓ له راغلم ورته مِ اووے په مَا كمبل واچوه' په ما كمبل وچوه نو هغې خلقو په ما كمبل واچولو' نو اللّٰه تعالىٰ دا آيت نازل كړلو: يٰاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ الخ: ابو سلمه اووے' رجز نه مراد بُت دے' بيا د وحي د راتلو سلسله كرمه شوه. او مسلسل وحي راتله.

# سُوْرَةُ الْقِيَامَةِ

# د سورهٔ قيامة تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بَابٌ ۴۲۹: وَ قَوْلُهٗ

باب ۴۲۹: آيت: لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ

لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ سُدًى هَمَلًا لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ سَوْفَ أَتُوبُ سَوْفَ أَعْمَلُ لَا وَزَرَ لَا حِصْنَ.

لِتَعْجَلَ بِهٖ: دے سره ژبه مه خوزه وه، چه زر درته یاد شي. او ابن عباسؓ اووے. "سدًا" په معني د مهمل "لیفجر امامه" نه مراد دا دے، چه عنقریب به توبه کړم. عنقریب به عمل اوکړم. "لا وزر" په معني د "لاحصن" (د هیڅ بچاؤ صورت نشته) دے.

۹۱۱: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ أَبِي عَائِشَةَ وَ كَانَ ثِقَةً عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ حَرَّكَ بِهٖ لِسَانَهُ وَ وَصَفَ سُفْيَانُ يُرِيدُ أَنْ يَحْفَظَهُ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ.

۹۱۱: حمیدي. سفیان. موسٰي بن ابي عائشه. سعید بن ابي جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، د هغه بیان دے، په حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم چه به وحي نازلیده، نو حضورؐ به خپلے ژبے له حرکت ورکولو، او سفیان بیان اوکهٔ، دے نه د حضورؐ مقصد دا وو، چه حضورؐ دا یاد کړي، نو اللّٰه تعالٰي آیت: لا تحرّک به لسانک لتعجل به. نازل کړو.

باب ۴۳۰: قَوْلِهٖ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَ قُرْآنَهُ.

باب ۴۳۰: آیت: إِنَّ عَلَيْنَا جُمُعَهُ وَ قُرْآنَهُ: بیشکه په مونږ د دے جمع کول اولولول دي.

۹۱۲: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوسٰى عَنْ إِسْرَآئِيلَ عَنْ مُوسَى بْنِ أَبِي عَائِشَةَ أَنَّهُ سَأَلَ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ قَالَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَانَ يُحَرِّكُ شَفَتَيْهِ إِذَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ فَقِيلَ لَهُ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ يَخْشٰى أَنْ يَنْفَلِتَ مِنْهُ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَ قُرْآنَهُ أَنْ يَجْمَعَهُ فِي صَدْرِكَ وَ قُرْآنَهُ أَنْ تَقْرَأَهُ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ يَقُولُ أُنْزِلَ عَلَيْهِ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ

۹۱۲: عبیداللّٰه بن موسٰي. اسرائیل موسٰي بن ابي عائشه نه روایت کوي، هغه د سعید بن جبیر: د اللّٰه تعالٰي د قول: لا تحرک به لسانک متعلق تپوس اوکهٔ، نو هغهٔ اووے، حضرت ابن عباسؓ بیان اوکهٔ، کوم وخت چه په حضورؐ قرآن نازلیدلو، نو حضورؐ به خپلو دواړو شونډو له حرکت ورکولو، نو ورته اووئیلے شو، چه ته د هیریدو د خوف نه خپلے ژبے له حرکت مهٔ ورکوه (ځکه چه) د دے جمع کول او لولول په مونږ دي (یعني دا خمونږ کار دے، چه تاته ئے یاد پاتے کړو) د جمع کولو نه مراد سینه کښې جمع کول، او لولول دا چه، چه ته به دا اولولو، یعني ایت نازل کړے

اِنَّ عَلَيۡنَا بَيَانَهٗ اَنۡ نُّبَيِّنَهٗ عَلٰى لِسَانِكَ.

باب ۱۴۳۱: قَوۡلِهٖ فَاِذَا قَرَاۡنَاهُ فَاتَّبِعۡ قُرۡاٰنَهٗ قَالَ ابۡنُ عَبَّاسٍ قَرَاۡنَاهُ بَيَّنَّاهُ فَاتَّبِعۡ اِعۡمَلۡ بِهٖ.

۹۱۳: حَدَّثَنَا قُتَيۡبَةُ بۡنُ سَعِيۡدٍ حَدَّثَنَا جَرِيۡرٌ عَنۡ مُوۡسَى بۡنِ اَبِيۡ عَائِشَةَ عَنۡ سَعِيۡدِ بۡنِ جُبَيۡرٍ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ فِيۡ قَوۡلِهٖ لَا تُحَرِّكۡ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعۡجَلَ بِهٖ قَالَ كَانَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اِذَا نَزَلَ جِبۡرِيۡلُ بِالۡوَحۡيِ وَكَانَ مِمَّا يُحَرِّكُ بِهٖ لِسَانَهٗ وَ شَفَتَيۡهِ فَيَشۡتَدُّ عَلَيۡهِ وَكَانَ يُعۡرَفُ مِنۡهُ فَاَنۡزَلَ اللّٰهُ الۡاٰيَةَ الَّتِيۡ فِيۡ لَا اُقۡسِمُ بِيَوۡمِ الۡقِيَامَةِ لَا تُحَرِّكۡ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعۡجَلَ بِهٖ اِنَّ عَلَيۡنَا جَمۡعَهٗ وَ قُرۡاٰنَهٗ قَالَ عَلَيۡنَا اَنۡ نَّجۡمَعَهٗ فِيۡ صَدۡرِكَ وَ قُرۡاٰنَهٗ فَاِذَا قَرَاۡنَاهُ فَاتَّبِعۡ قُرۡاٰنَهٗ فَاِذَا اَنۡزَلۡنَاهُ فَاسۡتَمِعۡ ثُمَّ اِنَّ عَلَيۡنَا بَيَانَهٗ عَلَيۡنَا اَنۡ نُّبَيِّنَهٗ بِلِسَانِكَ قَالَ فَكَانَ اِذَا اَتَاهُ جِبۡرِيۡلُ اَطۡرَقَ فَاِذَا ذَهَبَ قَرَاَهٗ كَمَا وَعَدَهُ اللّٰهُ اَوۡلٰى لَكَ فَاَوۡلٰى تَوَعُّدٌ.

شي، نو دَ جبرائيلؑ دَ قرأت اتباع كوه. بيا دَ دے بيانول په مونږ دي يعني مونږ به ئے ستا په ژبه بيان كړو.

باب ۱۴۳۱: ايت: فَاِذَا قَرَاۡنَاهُ فَاتَّبِعۡ قُرۡاٰنَهٗ: ابن عباسؓ اووے، دَ "قَرَاۡنَاهُ" نه مراد دا دے چه مونږ دا بيان كړو، او "فَاتَّبِعۡ" نه مراد دا دے چه ته په دے عمل كوه.

۹۱۳: قتيبه بن سعيد. جرير. موسىٰ بن ابي عائشه. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه دَ ايت: لَا تُحَرِّكۡ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعۡجَلَ بِهٖ: متعلق بيان كوي، چه جبرائيلؑ به وحي راوړه، او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم به خپلے ژبے او شونډو له حركت وركولو نو حضور صلي الله عليه وسلّم ته به تكليف وو. او دا به دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ شونډو دَ حركت نه معلوميده نو اللّٰه تعالىٰ دا آيت نازل كړلو: لَا تُحَرِّكۡ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعۡجَلَ بِهٖ اِنَّ عَلَيۡنَا جَمۡعَهٗ وَ قُرۡاٰنَهٗ: چه سورت لَا اُقۡسِمُ بِيَوۡمِ الۡقِيَامَةِ: كښې دے. اللّٰه تعالىٰ اوفرمائيل، چه ستا په سينه كښې دَ دے جمع كول خمونږ په ذمه دي، او دَ دے لولول. بيا چه مونږ اولولو، نو هغه وخت ته هم هغه شان دَ دے دَ لوستو اتباع كوه، يعني كوم وخت چه مونږ دا نازل كړو، نو ته ئے غور سره آوره، بيا بيشكه په مونږ دَ دے بيانول دي، يعني ستا په ژبه به مونږ دا بيان كړو. دَ ابن عباسؓ بيان دے. دے نه پس چه به جبرائيلؑ راتلو، نو حضورؐ به خپل سر مبارك ښكته كړلو. او كله چه به هغه لاړ، نو حضورؐ به هغه لوستلو، څنګه چه اللّٰه تعالىٰ وعده كړے وه: آيت: اولىٰ لك فاولىٰ: وعيد دے.

# هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يُقَالُ مَعْنَاهُ هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ وَهَلْ تَكُوْنُ جَحْدًا وَ تَكُوْنُ خَبَرًا وَ هٰذَا مِنَ الْخَبَرِ يَقُوْلُ كَانَ شَيْئًا فَلَمْ يَكُنْ مَذْكُوْرًا وَ ذٰلِكَ مِنْ حِيْنِ خَلَقَهُ مِنْ طِيْنٍ اِلٰى اَنْ يُنْفَخَ فِيْهِ الرُّوْحُ اَمْشَاجٍ اَلْاَخْلَاطُ مَاءُ الْمَرْأَةِ وَ مَاءُ الرَّجُلِ الدَّمُ وَالْعَلَقَةُ وَ يُقَالُ اِذَا خَلَطَ مَشِيْجٌ كَقَوْلِكَ خَلِيْطٌ وَ مَمْشُوْجٌ مِثْلُ مَخْلُوْطٍ وَ يُقَالُ سَلَاسِلًا وَ اَغْلَالًا وَلَمْ يُجْزِهٖ بَعْضُهُمْ مُسْتَطِيْرًا مُمْتَدًّا الْبَلَاءُ وَالْقَمْطَرِيْرُ الشَّدِيْدُ يُقَالُ يَوْمٌ قَمْطَرِيْرٌ وَ يَوْمٌ قُمَاطِرٌ وَّالْعَبُوْسُ وَالْقَمْطَرِيْرُ وَالْقُمَاطِرُ وَالْعَصِيْبُ اَشَدُّ مَا يَكُوْنُ مِنَ الْاَيَّامِ فِي الْبَلَاءِ وَ قَالَ مَعْمَرٌ اَسْرَهُمْ شِدَّةُ الْخَلْقِ وَ كُلُّ شَيْءٍ شَدَدْتَّهُ مِنْ قَتَبٍ فَهُوَ مَا سُوْرٌ.

## دَ سورۀ دهر تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ" (آيا په انسان داسے زمانه تيره شوے ده) يعني تيره شوے ده. او "هَلْ" کلمه دَ انکار دَ پاره او کلمه دَ خبر د پاره استعماليږي دلته خبر دَ پاره دے. اللّٰه تعالٰي فرمائي' هغه يو څيز خو وو ليکن قابلِ ذکر نه وو' دا وخت دَ خاورے نه دَ پيدا کيدو نه واخله هغے کښ دَ رُوح پُوکلو دَ وخته پورے دے. "اَمْشَاجٍ" دَ ښځے دَ مني دَ سړي مني سره يوځائے کيدل. "دَم او عَلَقَه" يعني وينه (خون) او چکه وينه. او دَ بعضو قول دے. چه هر کله هغه يو ځائے شي' نو هغه "مشيج" دے. لکه چه "خليط" وئيلے شي. او "مَمْشُوْجٌ" دَ مخلوط په شان دے. او "سَلَاسِلًا وَّ اَغْلَالًا" هم وائي او بعضے (تنوين سره) دا جائز نه ګڼړي. "مُسْتَطِيْرًا" لوئے اوږود مصيبت واله. "قَمْطَرِيْرٌ" سخت لکه چه "يَوْمٌ قَمْطَرِيْرٌ" او "يَوْمٌ قُمَاطِرٌ" وئيلے شي. او "عَبُوْسٌ' قمطريرٌ قماطرٌ" او "عصيب" دَ مصيبت دَ ټولونه زياتے سختے ورځے ته وئيلے شي. معمر اووے' چه "اسرهم" نه مراد دَ پيدائش مضبوطي' او هر هغه څيز چه دَ اوښ کتے (پالان) سره مضبوطولے شي. هغے ته "ماسور" وائي.

# سُوْرَةُ الْمُرْسَلٰتِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ جِمَالَاتٌ حِبَالٌ ارْكَعُوْا صَلُّوْا لَا يَرْكَعُوْنَ لَا يُصَلُّوْنَ وَ سُئِلَ

## دَ سورۀ والمرسلات تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

او مجاهد اووے. "جِمَالَاتٌ" په معني دَ غټو مزو دي. "ارْكَعُوْا" مونځ کوے. "لَا يُصَلُّوْنَ" هغوي به مونځ نه

ابْنَ عَبَّاسٍ لَا يَنْطِقُوْنَ وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ فَقَالَ اِنَّهٗ ذُوْ اَكْوَانٍ مَرَّةً يَنْطِقُوْنَ وَ مَرَّةً يُخْتَمُ عَلَيْهِمْ.

کولو. او ابن عباس نه دَ "لَا يَنْطِقُوْنَ" او "وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ" او "اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ" دَ مطلب تپوس اوشولو، نو هغهٔ اووې، چه هغوي به مختلف حالتونو کښې وي کله خو به هغه خلق خبرې کوي، کله به پرې مُهر لګولې شي.

۴۹۱۴: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُنْزِلَتْ عَلَيْهِ وَالْمُرْسَلَاتُ وَ اِنَّا لَنَتَلَقَّاهَا مِنْ فِيْهِ فَخَرَجَتْ حَيَّةٌ فَابْتَدَرْنَاهَا فَسَبَقَتْنَا فَدَخَلَتْ جُحْرَهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُقِيَتْ شَرَّكُمْ كَمَا وُقِيْتُمْ شَرَّهَا.

۴۹۱۴: محمود. عبيدالله. اسرائيل. منصور. ابراهيم. علقمه. حضرت عبدالله نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دې، مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره وو، چه حضورؐ باندې سورهٔ والمرسلات نازل شولو، او مونږ هغه دَ حضورؐ دَ خولې مبارکې نه حاصلولو (زده کولو) دې کښې يو مار راووتلو. مونږ خلقو تادي اوکړه، هغه خمونږ نه مخکښې شو، او خپله سوړه کښې ننوتلو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه ستاسو دَ شر نه محفوظ شولو، څنګه چه تاسو دَ هغهٔ دَ شر نه محفوظ شوئې.

۴۹۱۵: حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ عَنْ اِسْرَائِيْلَ عَنْ مَنْصُوْرٍ بِهٰذَا وَ عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ مِثْلَهٗ وَ تَابَعَهٗ اَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ عَنْ اِسْرَائِيْلَ وَ قَالَ حَفْصٌ وَّ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ وَ سُلَيْمَانُ بْنُ قَرْمٍ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ مُغِيْرَةَ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ ابْنُ اِسْحٰقَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ

۴۹۱۵: عبده بن عبدالله. يحيٰي بن آدم. اسرائيل. منصور نه دا حديث روايت کوي او په واسطه دَ اسرائيل. اعمش. ابراهيم. علقمه. حضرت عبدالله نه دَ دې په مثل روايت دې. او اسود بن عامر دَ اسرائيل نه دَ دې متابعت کښې روايت کړې دې او حفص او ابو معاويه، اسود نقل کړلو. يحيٰي بن حماد اووې، چه ماته ابو عوانه، هغهٔ دَ مغيره نه، هغهٔ دَ ابراهيم نه، هغهٔ دَ علقمه نه، او هغهٔ دَ حضرت عبدالله نه روايت اوکړهٔ. او ابن اسحاق په واسطه دَ عبدالرحمٰن بن الاسود، اسود حضرت عبدالله نه

الْأَسْوَدِ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ.

نقل کړ.

۹۱۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرٰهِيْمَ عَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بَيْنَمَا نَحْنُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَارٍ إِذَا نَزَلَتْ عَلَيْهِ وَالْمُرْسَلٰتِ فَتَلَقَّيْنَاهَا مِنْ فِيْهِ وَ إِنَّ فَاهُ لَرَطْبٌ بِهَا إِذْ خَرَجَتْ حَيَّةٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ اقْتُلُوْهَا فَابْتَدَرْنَاهَا فَسَبَقَتْنَا قَالَ فَقَالَ وُقِيَتْ شَرَّكُمْ كَمَا وُقِيْتُمْ شَرَّهَا.

۹۱۶: قتيبه. جرير. اعمش. ابراهيم. اسود نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، يو ځل مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره يو غار كښې وو، دغه وخت په حضور صلي الله عليه وسلّم سورة والمرسلات نازل شولو. مونږ ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ خولے مباركے نه زده كولو، ذ حضور صلي الله عليه وسلّم خله مباركه ذ هغې نه تر، وه چه ناساپه يو مار، راووتلو، رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ دے وژل واجب دي چه دا قتل كړئے. ذ عبداللّٰه بيان دے، مونږ تادي اوكړه، نو هغه مار خمونږ نه مخكښې شو، (او سوړه كښې ننوتلو) حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه ستاسو ذ شر نه محفوظ شو، ځنګه چه تاسو ذ هغهٔ ذ شر نه محفوظ شوئے.

باب ۴۳۲: قَوْلِهِ إِنَّهَا تَرْمِيْ بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ.

باب ۴۳۲: ايت: ذ، إِنَّهَا تَرْمِيْ بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ: تفسير.

۹۱۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَابِسٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ إِنَّهَا تَرْمِيْ بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ قَالَ كُنَّا نَرْفَعُ الْخَشَبَ بِقَصَرٍ ثَلَاثَةَ أَذْرُعٍ أَوْ أَقَلَّ فَنَرْفَعُهُ لِلشِّتَاءِ فَنُسَمِّيْهِ الْقَصَرَ.

۹۱۷: محمد بن كثير. سفيان. عبدالرحمٰن بن عابس. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي. هغه ذ: انَّهَا تَرْمِيْ بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ: متعلق بيان اوكه، چه مونږ به لركي درے كزه يا ددے نه كم اودرول، او هغه به مو ژمي (يخني) كښې سوزولو ذ پاره بلند كول، او دے ته به ئے قصر وئيلے.

باب ۴۳۳: قَوْلِهِ كَأَنَّهُ جِمَالَاتٌ صُفْرٌ.

باب ۴۳۳: آيت: كَأَنَّهُ جِمَالَاتٌ صُفْرٌ. ګويا هغه زيړ رنګه اوښان دي.

۹۱۸: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَابِسٍ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ تَرْمِيْ بِشَرَرٍ كُنَّا نَعْمِدُ اِلَى الْخَشْبَةِ ثَلَاثَةَ اَذْرُعٍ وَ فَوْقَ ذَالِكَ فَنَرْفَعُهُ لِلشِّتَآءِ فَنُسَمِّيْهِ الْقَصَرَ كَاَنَّهُ جِمَالَاتٌ صُفْرٌ حِبَالُ السُّفُنِ تُجْمَعُ حَتّٰى تَكُوْنَ كَاَوْسَاطِ الرِّجَالِ.

۹۱۸: عمرو بن علي. يحيٰي. سفيان. عبدالرحمٰن بن عابس. ابن عباسؓ نه روايت كوي' د هغه نه ئې د "تَرْمِيْ بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ" متعلق بيان واوريدلو' چه مونږ به لرګي درې ګزه يا ذ دې نه زيات يوخائې كول' او ژمي (يخني) د پاره به مو بلند كول' او دې ته به قصر وئيلې شو. "كَاَنَّهُ جِمَالَاتٌ صُفْرٌ" ذ كِشتو رسۍ' چه جمع كړې شي' تردې چه هغه ذ اوسط سړي برابر شي.

بَاب ۴۳۴: قَوْلِهٖ هٰذَا يَوْمُ لَا يَنْطِقُوْنَ.

باب ۴۳۴: ايت: هٰذَا يَوْمُ لَا يَنْطِقُوْنَ الخ: ذا هغه ورځ ده' چه خلق به خبرې نشي كولې.

۹۱۹: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَارٍ اِذْ نَزَلَتْ عَلَيْهِ وَالْمُرْسَلَاتِ فَاِنَّهُ لَيَتْلُوْهَا وَ اِنِّيْ لَاَتَلَقَّاهَا مِنْ فِيْهِ وَ اِنَّ فَاهُ لَرَطْبٌ بِهَا اِذْ وَ ثَبَتْ عَلَيْنَا حَيَّةٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْتُلُوْهَا فَابْتَدَرْنَاهَا فَذَهَبَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُقِيَتْ شَرَّكُمْ كَمَا وُقِيْتُمْ شَرَّهَا قَالَ عُمَرُ حَفِظْتُهُ مِنْ اَبِيْ فِيْ غَارٍ بِمِنًى.

۹۱۹: عمر بن حفص. حفص. اعمش. ابراهيم. اسود. حضرت عبدالله نه روايت كوي' دې دوران كښ مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم سره يو غار كښ وو' په حضور صلي الله عليه وسلّم سورة والمرسلات نازل شولو' حضور صلي الله عليه وسلّم دا تلاوت كولو' او ما ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ خُلې مباركې نه زده كولو' او اوس لا ذ حضور صلي الله عليه وسلّم خُله مباركه تَر' وَه چه ناساپه يو مار څمونږ مخكښ راووتلو. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' دا مړ كړئې مونږ ورمنډه كړله' ليكن هغه اوتښتيدلو' حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' هغه ستاسو ذ شر نه محفوظ شو' څنګه چه تاسو ذ هغهٔ ذ شر نه محفوظ شوئې. عمر بن حفص اووې' ما دا ذ خپل پلار نه ياد كړې دې' هغې كښ دا هم دي' چه ذ مِنيٰ يو غار كښ مونږ حضور صلي الله عليه وسلّم سره وو.

## سُوْرَةُ عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ مُجَاهِدٌ لَا يَرْجُوْنَ حِسَابًا لَا يَخَافُوْنَهُ لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ خِطَابًا لَا يُكَلِّمُوْنَهُ اِلَّا اَنْ يَّأْذَنَ لَهُمْ صَوَابًا حَقًّا فِي الدُّنْيَا وَ عَمِلَ بِهٖ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ وَ هَّاجًا مُضِيْئًا وَ قَالَ غَيْرُهُ غَسَّاقًا غَسَقَتْ عَيْنُهُ وَ يَغْسِقُ الْجُرْحُ يَسِيْلُ كَاَنَّ الْغَسَّاقَ وَالْغَسِيْقَ وَاحِدٌ عَطَاءً حِسَابًا جَزَآءً كَافِيًا اَعْطَانِيْ مَا اَحْسَبَنِيْ اَيْ كَفَانِيْ.

## دَ سوره عمّ يتسآءَ لون تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد اووے چه "لا يرجون حسابا" يعني هغوي دَ هغه نه، نهٔ ويريږي "لا يملكون منه خطابا" هغوي به بغير دَ هغه دَ اجازت نه هغهٔ سره خبرے نهٔ کوي. او ابن عباسؓ اووے، "وهاجا" نه مراد روښانه دے. "عطاء حسابا" پوره پوره بدله. "اعطاني ما اَحسبني" وئيلو نه دا مراد اخلي، چه هغهٔ ماله دومره راکړل چه کافي دي.

**باب ۴۳۵:** قَوْلِهٖ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ فَتَأْتُوْنَ اَفْوَاجًا زُمَرًا.

**باب ۴۳۵:** آيت: يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ الخ: په کومه ورځ چه شپيلئ پُوک وهلے شي. الخ.

**۹۲۰:** حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ النَّفْخَتَيْنِ اَرْبَعُوْنَ قَالَ اَرْبَعُوْنَ يَوْمًا قَالَ اَبَيْتُ قَالَ اَرْبَعُوْنَ شَهْرًا قَالَ اَبَيْتُ قَالَ اَرْبَعُوْنَ سَنَةً قَالَ اَبَيْتُ قَالَ ثُمَّ يُنْزِلُ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَيَنْبُتُوْنَ كَمَا يَنْبُتُ الْبَقْلُ لَيْسَ مِنَ الْاِنْسَانِ شَيْءٌ اِلَّا يَبْلٰى اِلَّا عَظْمًا وَاحِدًا وَّهُوَ عَجْبُ الذَّنَبِ وَ مِنْهُ يُرَكَّبُ الْخَلْقُ يَوْمَ

**۹۲۰:** محمد. ابو معاويه. اعمش. ابو صالح. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل دَ دوؤ شپيلو پُوکلو مينځ کښ څلويښت دي. ابو هريرهؓ نه ملګرو تپوس اوکړهٔ، آيا دے نه څلويښت ورځے مراد دي، ابوهريرهؓ انکار اوکړهٔ، خلقو تپوس اوکړهٔ، آيا څلويښت مياشتے ترے مراد دي، هغهٔ انکار اوکړهٔ، بيا ترے تپوس اوشو، آيا څلويښت کاله، هغهٔ انکار اوکړهٔ. بيائے اووے، چه اللّٰه به دَ آسمان نه باران اُوَرَوي، نو هغے سره به مړي راژوندي شي، څنګه چه سبزه باران سره راټوکيږي دَ انساني جسم ټولے حصے اودوړيږي، خو دَ ملا هډوکے باقي پاتے وي او دے سره به دَ قيامت په ورځ دَ هغه

تركيب وي.

## سُوْرَةُ وَالنّٰزِعٰتِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ اَلْاٰيَةُ الْكُبْرٰى عَصَاهُ وَيَدُهُ يُقَالُ النَّاخِرَةُ وَالنَّخِرَةُ سَوَآءٌ مِثْلُ الطَّامِعِ وَالطَّمِعِ وَالْبَاخِلِ وَالْبَخِلِ وَقَالَ بَعْضُهُمُ النَّخِرَةُ الْبَالِيَةُ وَالنَّاخِرَةُ الْعَظْمُ الْمُجَوَّفُ الَّذِىْ يَمُرُّ فِيْهِ الرِّيْحُ فَيَنْخَرُ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْحَافِرَةُ الَّتِىْ اَمْرُنَا الْاَوَّلُ اِلَى الْحَيَاةِ وَقَالَ غَيْرُهُ اَيَّانَ مُرْسٰهَا مَتٰى مُنْتَهٰهَا وَمُرْسَى السَّفِيْنَةِ حَيْثُ تَنْتَهِىْ.

۱۹۲۱: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَازِمٍ حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بِاِصْبَعَيْهِ هٰكَذَا بِالْوُسْطٰى وَالَّتِىْ تَلِى الْاِبْهَامَ بُعِثْتُ اَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ.

## دَ سورهٔ والنّازعات تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

او مجاهد اووے چه "اية الكبرى" نه مراد دَ موسٰي عليه السلام همسا او دَ هغهٔ لاس دے. او وئيلے شي، دَ "ناخره" او "نخره" يو معني دي، لكه "طامع" او "طمع" او دَ "باخل" او "بخيل" يو معني دي، او بعضے اووے، "نخره" معني بوسيده. او "ناخره" هغے دِږ هډوكي ته وئيلے شي، چه دَ هغے دننه هوا ورشي، نو آواز ترے پيدا كيږي. او ابن عباسؓ اووے، "حافره" نه مراد دَ ژوند سابقه حالات دے. او نورو اووے "اَيَّان مرسٰها" نه مراد دے، چه كله دَ هغهٔ دَ انتها وخت دے، او "مرسى السفينه" هغے خائے ته وائي، كوم خائے چه جهاز لنگر انداز وي.

۱۹۲۱: احمد بن مقدام. فضيل بن سليمان. ابو حازم. حضرت سهل بن سعدؓ نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دے، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو، چه حضورؐ دَ مينځ او قتيے كوتے سره نزدے كوتے سره اشاره اوفرمائيله چه زهٔ او قيامت دا شان راليږلے شوے يوځا.

۱. يعني په قيامت كنبے او دَ حضورؐ په بعثت كنبے صرف دومره فاصله ده څومره چه په دوؤ گوتو كنبے ده. محدّثينو ددے مختلف توجيهات بيان كړي دي. ددے دا توجيه زياته مناسبه ده چه د دنيا دَ اول نه تر آخره دَ وجود تشبيه گوتو سره وركړے شوے ده او مراد دادے چه اكثره موده تيره شوے ده او څومره موده چه باقي پاتے ده هغه د هغے مودے په مقابله كنبے ډيره كمه ده كومه چه تيره شوے ده.

# سُوْرَةُ عَبَسَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

عَبَسَ كَلَحَ وَ اَعْرَضَ وَ قَالَ غَيْرُهُ مُطَهَّرَةٌ لَا يَمَسُّهَا اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ وَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَ هٰذَا مِثْلُ قَوْلِهٖ فَالْمُدَبِّرَاتِ اَمْرًا جَعَلَ الْمَلٰٓئِكَةَ وَ الصُّحُفَ مُطَهَّرَةً لِاَنَّ الصُّحُفَ يَقَعُ عَلَيْهَا التَّطْهِيْرُ فَجَعَلَ التَّطْهِيْرَ لِمَنْ حَمَلَهَا اَيْضًا سَفَرَةٌ الْمَلٰٓئِكَةُ وَاحِدُهُمْ سَافِرٌ سَفَرْتُ اَصْلَحْتُ بَيْنَهُمْ وَ جُعِلَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ اِذَا نَزَلَتْ بِوَحْيِ اللّٰهِ وَ تَادِيَتِهٖ كَالسَّفِيْرِ الَّذِيْ يُصْلِحُ بَيْنَ الْقَوْمِ وَ قَالَ غَيْرُهُ تَصَدّٰى تَغَافَلَ عَنْهُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ لَمَّا يَقْضِ لَا يَقْضِيْ اَحَدٌ مَّا اُمِرَ بِهٖ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تَرْهَقُهَا تَغْشٰهَا شِدَّةٌ مُسْفِرَةٌ مُشْرِقَةٌ بِاَيْدِيْ سَفَرَةٍ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَتَبَةٍ اَسْفَارًا كُتُبًا تَلَهّٰى تَشَاغَلَ يُقَالُ وَاحِدُ الْاَسْفَارِ سِفْرٌ.

# دَ سوره عبس تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"عَبَسَ" مخ ئې وا ړولو' او رو ګـرداني ئې او کړه او "مطهرة" نه مراد دا دې' چه هغه صرف پاک خلق يعني فريښتې مَس کوي' دا داسې دې لکه چه "فالمدبرات امرا (د کارونو تدبير کونکو والو) کښې ملائکې او صحيفې "مطهره" ګرځولې شوې دي' ځکه تطهير په صحيفو واقع کيږي (يعني تطهير دَ صحيفو صفت دې) نو دَ هغې دَ اوچتونکو هم صفت ګرځولې شوې دې. "سفره" نه مراد فريښتې دي. واحد ئې "سافر" دې. "سفرت" ما دَ هغوي مينځ کښې صلح او کړه' او فريښتې وحي الٰهي سره نازليږي' او هغه رسوي' په مثل دَ سفير دي' چه دَ خلقو مينځ کښې صلح کوي. او نورو اووې "تصدٰى" نه مراد دا دې' چه هغهٔ غفلت او کهٔ. او مجاهد اووې "لَمّا يقض" چه دَ هغې حکم ورکړې شو' هغه هيڅوک نهٔ پوره کوي او ابن عباسؓ اووې "ترهقها قتره" هغه به سختي راګير کړي. "سفرة" چمک کونکې. ابن عباسؓ اووې "بايدى سفره" "سفره" نه مراد ليکونکې او "اسفار" نه مراد کتابونه دي. "تلهٰى" هغه مشغول شو' وئيلې شي' چه دَ "اسفار" واحد "سفر" دې.

۹۲۲ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ زُرَارَةَ بْنَ اَوْفٰى يُحَدِّثُ عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

۹۲۲ : آدم. شعبه. قتاده. زراره بن اوفي. سعد بن هشام. بي بي عائشهؓ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي' حضورؐ اوفرمائيل' دَ هغې سړي مثال چه قرآن لولي' او هغه حافظ وي' نو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الَّذِیْ يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ وَهُوَ حَافِظٌ لَهٗ مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ وَ مَثَلُ الَّذِیْ يَقْرَأُ وَهُوَ عَلَيْهِ شَدِيْدٌ فَلَهٗ اَجْرَانِ.

سفره كرام (بزركو فريښتو) سره به وي، او د هغې سړي مثال چه قرآن لولي، او هغه حفظ كوي، او حفظ كول (يادول) هغه ته گران وي نو هغه د پاره دوه اجرونه دي.

## سُوْرَةُ اِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ

## دَ سورۀ اذا الشّمسُ كُوّرت تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اِنْكَدَرَتِ انْتَثَرَتْ وَ قَالَ الْحَسَنُ سُجِّرَتْ ذَهَبَ مَآؤُهَا فَلَا يَبْقٰى قَطْرَةٌ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اَلْمَسْجُوْرُ الْمَمْلُوْءُ قَالَ غَيْرُهٗ سُجِّرَتْ اَفْضٰى بَعْضُهَا اِلٰى بَعْضٍ فَصَارَتْ بَحْرًا وَّاحِدًا وَالْخُنَّسُ تَخْنِسُ فِیْ مَجْرَاهَا تَرْجِعُ وَ تَكْنِسُ تَسْتَتِرُ كَمَا تَكْنِسُ الظِّبَاءُ تَنَفَّسَ ارْتَفَعَ النَّهَارُ وَالظَّنِيْنُ الْمُتَّهَمُ الضَّنِيْنُ يَضِنُّ بِهٖ وَقَالَ عُمَرُ النُّفُوْسُ زُوِّجَتْ يُزَوَّجُ نَظِيْرُهٗ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَ النَّارِ ثُمَّ قَرَأَ اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَ اَزْوَاجَهُمْ عَسْعَسَ اَدْبَرَ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"انكدرت" په معنيٰ د "انتثرت" (تس نس به شي) او حسن اووے "سجرت" دَ هغې اوبه به اوچے شي، دا شان چه يوه قطره به باقي پاتے نشي. او مجاهد اووے، "مسجور" معنيٰ "مملو" (ډک) دے. او نورو اووے، "سجرت" دا معني دي، چه يو بل سره به داسے يوځائے شي، چه يو درياب به شي. او "خنس" معنيٰ دي: خپل مقام يا لار ته واپس كيدونكے. او "تكنس" معني پټيدل دي، لكه چه اُوسئ پټه شي "تنفس" ورځ راوختله. "ظنين" متهم او "ضنين" دَ بخيل په معني كښ دے. حضرت عمرؓ اووے، چه "النفوس زوجت" نه مراد دا دے، چه خپل مثل سره به جنت او دوزخ كښ يوځائے كړے شي. بيائے دا آيت اولوست: احشروا الذين ظلموا و ازواجهم" "عسعس" په معنيٰ دَ ادبر (شاكول) دي.

## اِذَا السَّمَآءُ انْفَطَرَتْ

## دَ سورۀ اذا السّمآء انفطرت تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ الرَّبِيْعُ بْنُ خُثَيْمٍ فُجِّرَتْ فَاضَتْ وَ قَرَأَ الْاَعْمَشُ وَعَاصِمٌ فَعَدَلَكَ بِالتَّخْفِيْفِ

او ربيع بن خثيم اووے، چه "فجرت" په معنيٰ دَ "فاضت" (قليدو سره دَ بهيدو) دي. او اعمش او عاصم "فعدلك" تخفيف سره ونيلے دے. او اهل حجاز دا

وَ قَرَاَهُ اَهْلُ الْحِجَازِ بِالتَّشْدِيْدِ وَ اَرَادَ مُعْتَدِلَ الْخَلْقِ وَمَنْ خَفَّفَ فِيْ اَيِّ صُوْرَةٍ شَآءَ اِمَّا حَسَنٌ وَ اِمَّا قَبِيْحٌ وَ طَوِيْلٌ وَ قَصِيْرٌ.

تشديد سره وئيلے دے. او دَ دے نه نے مراد آخستے دے معتدل صورت واله. او چا چه تخفيف سره لوستے دے، هغوي ترے مراد اَخلي، چـه كـوم صورت كښ ئے اوغبنتلو، خوبصورت وي يا بدصورت، او اوږود وي يا كم قدے (پس قدے).

## وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِيْنَ

## دَ سُورهٔ للمطفّفين تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ رَانَ ثَبْتَ الْخَطَايَا ثُوِّبَ جُوْزِيَ وَ قَالَ غَيْرُهُ الْمُطَفِّفُ لَا يُوَفِّي غَيْرَهُ.

او مجاهد اووے "ران" دَ ګناهونو جم كيدل، زنګ ختل دي. "ثوب" بدله وركړے شوه، او نورو اووے "مطفف" هغه دے، چه نورو له پوره بدله ورنهٔ كړي.

۹۲۳: حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مَعْنٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَّافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ حَتّٰى يَغِيْبَ اَحَدُهُمْ فِيْ رَشْحِهٖ اِلٰى اَنْصَافِ اُذُنَيْهِ.

۹۲۳: ابـراهيـم بـن منـذر. معـن. مـالك. نـافع. حضـرت عبدالـلّٰـه بن عمرؓ نـه روايت كوي، دَ هغهٔ بيـان دے، نبي صـلـي الـلّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل پـه كـوم ورځ چـه خـلق دَ جهـانـونو دَ پـروردګـار مخكښ اودريږي، نـو هغـوي كښ به يو سړے خپله خـولـه (پينه) كـښ دِ غـوږونـو دَ نـرمو پوړے غرق وي.

## اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ

## دَ سورهٔ اذا السّمآء انشقّت تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ مُجَاهِدٌ كِتَابَهٗ بِشِمَالِهٖ يَاْخُذُ كِتَابَهٗ مِنْ وَّرَآءِ ظَهْرِهٖ وَسَقَ جَمَعَ مِنْ دَآبَّةٍ ظَنَّ اَنْ لَّنْ يَّحُوْرَ اَنْ لَّنْ يَّرْجِعَ اِلَيْنَا.

مجاهد اووے "كتابه بِشِمَالِهٖ" نـه مراد دا دے چه هغه به خپـل كتـاب (دَ حساب) دَ خپلے شا دَ ورستو نه واخلي، "وسق" خناور جمع كوي. "ظن ان لن يحور" هغهٔ ګمان اوكړ، چه مونږ له به وِاپس نهٔ راځي.

بـاب ۴۳۶: قَـوْلِـهٖ فَسَوْفَ

باب ۴۳۶: آيت: فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا

يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيْرًا.

۴۹۲۴ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْاَسْوَدِ قَالَ سَمِعْتُ بْنَ اَبِيْ مُلَيْكَةَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوبَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ يُوْنُسَ حَاتِمِ بْنَ اَبِيْ صَغِيْرَةَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ اَحَدٌ يُحَاسَبُ اِلَّا هَلَكَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ جَعَلَنِيَ اللّٰهُ فِدَآءَكَ اَلَيْسَ يَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِيْنِهِ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيْرًا قَالَ ذَاكِ الْعَرْضُ يُعْرَضُوْنَ وَمَنْ نُوْقِشَ الْحِسَابَ هَلَكَ.

بَابُ ۴۳۷ : قَوْلِهٖ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ.

۴۹۲۵ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ النَّضْرِ اَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بِشْرٍ جَعْفَرُ بْنُ اَيَاسٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ حَالًا

يسيرًا: تفسير.

۴۹۲۴ : عمرو بن علي. يحيي. عثمان بن اسود. ابن ابي مليكه. بي بي عائشه نه روايت كوي ذ هغې بيان دے' ما ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه آوريدلي دي. دويم سند سليمان بن حرب. حماد بن زيد. ابن ابي مليكه. بي بي عائشې نه روايت كوي' ذ هغې بيان دے' ما ذ حضور صلي الله عليه وسلم نه آوريدلي دي. دريم سند مسدد. يحيي. ابي يونس. حاتم بن ابي صغيره. ابن ابي مليكه. قاسم. بي بي عائشې نه روايت كوي' ذ هغې بيان دے رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' ذ كوم سړي چه حساب اوشو' نو هغه هلاک شو. ذ بي بي عائشې بيان دے' ما اووے' يا رسول الله' الله دے ما په تاسو قربان كړي' آيا الله عز و جل دا' نه فرمائي' چه چاته اعمال نامه په ښي لاس كښې وركړے شوه' نو ذ هغۀ نه به خفيف حساب اخستے شي. حضور اوفرمائيل' دا ذ نامۀ اعمال ذ پيش كولو بيان دے' چه هغوي ته به پيش كولے شي' او ذ چا په حساب كښې چه تفتيش اوشي' هغه به هلاک شي.

باب ۴۳۷: آيت: لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ تفسير.

۴۹۲۵ : سعيد بن نضر. هشيم. ابو بشر جعفر بن اياس. مجاهد نه روايت كوئي ابن عباس د "لتركبن طبقا عن طبق" متعلق اووے' دے نه ذ يو حالت نه پس بل حالت مراد دے.

بَعْدَ خَالٍ قَالَ هٰذَا نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ستاسو نبي صلي الله عليه وسلّم دغسي فرمائيلي دي.

## سُوْرَةُ الْبُرُوْجِ

## دَ سورهٔ بُروج تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ الْاُخْدُوْدِ شَقٌّ فِي الْاَرْضِ فَتَنُوْا عَذَّبُوْا.

او مجاهد اووے "اُخْدُوْدِ" معنٰي "شَقٌّ فِي الْاَرْضِ" (دَ زمکے درزونه، چوندونه) دي. "فَتَنُوْا" معني "عَذَّبُوْا" (عذاب ورکړے شو) دي.

## سُوْرَةُ الطَّارِقِ

## دَ سورهٔ طاق تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ ذَاتِ الرَّجْعِ سَحَابٌ يَرْجِعُ بِالْمَطَرِ ذَاتِ الصَّدْعِ تَتَصَدَّعُ بِالنَّبَاتِ.

او مجاهد اووے چه "ذَاتِ الرَّجْعِ" نه مراد، هغه وريځ ده، چه باران سره واپس راځي "ذَاتِ الصَّدْعِ" زمکه چه دَ سبزه دَ تو کيدو د ځائے نه چوي (پھٹ جاتی ہے).

## سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى

## دَ سوره سبّح اسم ربّک الاعلٰی تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

۹۲۶: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ اَوَّلُ مَنْ قَدِمَ عَلَيْنَا مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ فَجَعَلَا يُقْرِئَانِنَا الْقُرْاٰنَ ثُمَّ جَآءَ عَمَّارٌ وَ بِلَالٌ وَ سَعْدٌ ثُمَّ جَآءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فِيْ عِشْرِيْنَ ثُمَّ جَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۹۲۶: عبدان. د عبدان پلار. شعبه. ابو اسحاق. حضرت براء نه روايت کوي، دَ هغه بيان دے، د نبي صلي الله عليه وسلّم اصحابو کښې چه دَ ټولونه مخکښې مونږ ته راورسيدل، هغه مصعب بن عميرؓ او ابن اُمّ مکتومؓ وو. هغے دواړو مونږ ته قران ښودلو. بيا عمارؓ، بلالؓ او سعدؓ راغلل. بيا حضرت عمر بن خطاب شل صحابهٌ ؤ سره راغے. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو. مونږ اهل مدينه اوليدل، چه هغوي دَ دے نه مخکښې دومره هيڅ ځيز

فَمَا رَأَيْتُ اَهْلَ الْمَدِيْنَةِ فَرِحُوْا بِشَيْءٍ فَرَحَهُمْ بِهٖ حَتّٰى رَأَيْتُ الْوَلَآئِدَ وَالصِّبْيَانَ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ قَدْ جَآءَ فَمَا جَآءَ حَتّٰى قَرَأْتُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى فِيْ سُوَرٍ مِّثْلِهَا.

سره نۀ وو خوشحاله شوي ترديے چه ماشومانو هلكانو جينكو نه م واوريدل' چه دا دے ذَ اللّٰه رسول تشريف راوړلو. او ذَ حضورؐ ذَ تشريف راوړلو نه مخكښ ما "سبح اسم ربّک الاعلٰى" او ذَ دے په شان واړۀ واړۀ سورتونه زده كړے وو.

# هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْغَاشِيَةِ

# ذَ سورۀ هَل اتٰـک حديث الغاشيه تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ النَّصَارٰى وَ قَالَ مُجَاهِدٌ عَيْنٌ بَلَغَ اِنَاهَا وَ حَانَ شُرْبُهَا حَمِيْمٌ اٰنٍ بَلَغَ اِنَاهُ لَاتَسْمَعُ فِيْهَا لَاغِيَةً شَتْمًا الضَّرِيْعُ نَبْتٌ يُقَالُ لَهُ الشِّبْرِقُ يُسَمِّيْهِ اَهْلُ الْحِجَازِ الضَّرِيْعَ اِذَا يَبِسَ وَهُوَ سَمٌّ بِمُسَيْطِرٍ بِمُسَلَّطٍ وَ يُقْرَأُ بِالصَّادِ وَالسِّيْنِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اِيَابَهُمْ مَرْجِعَهُمْ.

ابن عباسؓ اووے "عاملة ناصبة" (كار كونكے ستړے شوے) نه مراد نصاري. او مجاهد ذَ "عين آنية" ډير گرمه او جنے ترجنے ډكه چينه مراد آخستے ده. "حميم ان" ذَ هغے لوښي به ډير گرم وي "لا يسمع فيها لاغيه" لاغيه نه مراد كنځل دي. "ضريع" يو وابنۀ دے' چه هغے ته شبرق وائي' چه اُوچ شي' نو اهل حجاز هغے ته ضريع وائي. او دا ي و زهر دي' "مسيطر" معني "مسلط" دے. صاد او سين دواړو سره لوستے شي. او ابن عباسؓ اووے "ايابهم" نه مراد ذَ هغوي واپس كيدل دي.

# سُوْرَةُ وَالْفَجْرِ

# ذَ سورۀ والفجر تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ اَلْوَتْرُ اللّٰهُ اِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ الْقَدِيْمَةِ وَالْعِمَادُ اَهْلُ عَمُوْدٍ لَا يُقِيْمُوْنَ يَعْنِيْ اَهْلَ خِيَامٍ سَوْطَ عَذَابٍ الَّذِيْ عُذِّبُوْا بِهٖ اَكْلًا لَّمًّا السَّفُّ وَ جَمًّا الْكَثِيْرُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ كُلُّ شَيْءٍ

او مجاهد اووے "وتر" نه مراد اللّٰه تعالٰي دے "ارم ذات العماد" نه قديم قومونه مراد دي' او عماد نه ستنو واله' چه په يوځائے قيام نۀ كولو. "سوط عذاب" نه مراد عذاب دے' چه ذَ هغے په ذريعه عذاب وركړے شو' "اكلا لّما" حلال او حرام جمع كړے. او "جما" نه مراد كثير دے. او مجاهد اووے' هر څيز جوړا پيدا كړے

خَلْقِهٖ فَهُوَ شَفْعٌ السَّمَآءُ شَفْعٌ وَالْوَتْرُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى وَ قَالَ غَيْرُهٗ سَوْطَ عَذَابٍ كَلِمَةٌ تَقُوْلُهَا الْعَرَبُ لِكُلِّ نَوْعٍ مِّنَ الْعَذَابِ يَدْخُلُ فِيْهِ السَّوْطُ لَبِالْمِرْصَادِ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ تَحَآضُّوْنَ تُحَافِظُوْنَ وَ تَحُضُّوْنَ تَأْمُرُوْنَ بِاِطْعَامِهٖ الْمُطْمَئِنَّةُ الْمُصَدِّقَةُ بِالثَّوَابِ وَ قَالَ الْحَسَنُ يٰاَيَّتُهَا النَّفْسُ اِذَا اَرَادَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ قَبْضَهَا اطْمَاَنَّتْ اِلَى اللّٰهِ وَاطْمَاَنَّ اللّٰهُ اِلَيْهَا وَ رَضِيَتْ عَنِ اللّٰهِ وَ رَضِيَ عَنْهَا فَاَمَرَ بِقَبْضِ رُوْحِهَا وَ اَدْخَلَهَا اللّٰهُ الْجَنَّةَ وَ جَعَلَهٗ مِنْ عِبَادِهِ الصَّالِحِيْنَ وَ قَالَ غَيْرُهٗ جَابُوْا نَقَبُوْا مِنْ جِيْبَ الْقَمِيْصُ قُطِعَ لَهٗ جَيْبٌ يَجُوْبُ الْفَلَاةَ يَقْطَعُهَا لَمًّا لَمَمْتُهٗ اَجْمَعَ اَتَيْتُ عَلٰى اٰخِرِهٖ.

شو، نو آسمان هم جفت دے، او وتر الله تعالیٰ دے او نورو اووے "سوط عذاب" یو داسے کلمه ده، چه عرب ئے هر قسم عذاب ذَ پاره استعمالوي دے کښې "سوط" هم داخل دے "لبالمرصاد" هغه پله کړخيدل دي. "تحاضون" تاسو حفاظت کوے. او "يحضون" هغه خلق ذَ خوراک حکم ورکوي. "المطمئنة" ذَ ثواب تصديق کونکے او حسن اووے، چه آيت "ايتها النفس" نه مراد دا دے، چه کله اللّٰه تعالیٰ ذَ هغے ذَ قبض کولو اراده کوي، نو هغه نفس اللّٰه طرف ته او اللّٰه هغه طرف ته مطمئن شي. او هغه نفس ذَ اللّٰه نه راضي شي، او اللّٰه ذَ هغے نفس نه راضي شي، نو ذَ هغهٔ ذَ روح ذَ قبض کولو حکم ورکوي. او هغه جنت کښې داخل کړي، نيکو بنديانو کښې ئے شامل کړي. او نورو اووے چه "جابوا" معني "نقبوا" سورے (سوراخ) ئے اوکهٔ "جيب القميص" نه ماخوذ دے، يعني ذَ قميص گريوان او ځيرلے شو. "يجوب الفلاة" ميدان طے کوي. "لما" ما ټول ختم کړل، يعني زهٔ ذَ هغے آخر ته اورسيدم.

# سُوْرَةُ لَا اُقْسِمُ

# ذَ سُورهٔ لا اُقْسِمُ تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ بِهٰذَا الْبَلَدِ مَكَّةَ لَيْسَ عَلَيْكَ مَا عَلَى النَّاسِ فِيْهِ مِنَ الْاِثْمِ وَ وَالِدٍ اٰدَمَ وَمَا وَلَدَ لُبَدًا كَثِيْرًا وَّالنَّجْدَيْنِ الْخَيْرُ وَالشَّرُّ مَسْغَبَةٌ مُجَاعَةٍ مَتْرَبَةٍ السَّاقِطُ فِى التُّرَابِ يُقَالُ فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ

مجاهد اووے "بهٰذا البلد" نه مراد مکه ده، يعني په تاسو هغه گناه نشته، کومه چه په نورو ده. "و والد" نه مراد آدم عليه السلام او ذَ هغهٔ اولاد دے. "لبدا" معني کثير "نجدين" نه مراد خير و شر "مسغبة" لوګه "متربة" خاورو کښې غرځيدلے. وئيلے شي چه "فلا اقتحم العقبة" معني داده، چه دُنيا کښې دُشوار گزار ګهاټي

فَلَمْ يَقْتَحِمِ الْعَقَبَةَ فِي الدُّنْيَا ثُمَّ فَسَّرَ الْعَقَبَةَ فَقَالَ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْعَقَبَةُ فَكُّ رَقَبَةٍ أَوْ إِطْعَامٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ.

کښې داخل نه شو. بيا الله تعالي ذَ گهاټي (عقبه) تفسير او کړه او وئيلے، چه تاته څه خيز اوښودلو، چه "عقبه" څه خيز دے، هغه دَ غلام آزادول، يا دَ لوږې حالت کښې خوړول دي.

## وَالشَّمْسِ وَ ضُحٰهَا

## دَ سورۀ والشمس وضحٰها تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ بِطَغْوَاهَا بِمَعَاصِيْهَا وَلَا يَخَافُ عُقْبٰهَا عُقْبَى أَحَدٍ.

او مجاهد اووے "بطغواها" نه مراد دے، دَ خپلو ګناهونو په سبب. او "لا يخاف عقباها" معني دي، چه هغه دَ چا دَ بدلے اخستلو نه، نۀ ويريږي.

۹۲۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَمْعَةَ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ وَ ذَكَرَ النَّاقَةَ وَالَّذِيْ عَقَرَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذِ انْبَعَثَ أَشْقٰهَا انْبَعَثَ لَهَا رَجُلٌ عَزِيْزٌ عَارِمٌ مَنِيْعٌ فِيْ رَهْطِهٖ مِثْلُ أَبِيْ زَمْعَةَ وَ ذَكَرَ النِّسَآءَ فَقَالَ يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ يَجْلِدُ امْرَأَتَهٗ جَلْدَ الْعَبْدِ فَلَعَلَّهٗ يُضَاجِعُهَا مِنْ اٰخِرِ يَوْمِهٖ ثُمَّ وَعَظَهُمْ فِيْ ضِحْكِهِمْ مِنَ الضَّرْطَةِ وَ قَالَ لِمَ يَضْحَكُ أَحَدُكُمْ مِمَّا يَفْعَلُ وَ قَالَ أَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَمْعَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۹۲۷: موسٰي بن اسمٰعيل. وهيب. هشام. دَ خپل پلار نه، هغۀ دَ عبدالله بن زمعه نه روايت کوي، هغۀ دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه خطبه کښې واوريدل، چه حضور صلي الله عليه وسلّم دَ اوښې او هغې سړي ذکر او کۀ، چه هغۀ دَ اُوښے پښے پريکړے وے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، هغې دَ پاره هغه بدبخت پاسيد، چه خپل قوم کښې مفسد او دَ ابو زمعه په شان قوي وو، او حضور صلي الله عليه وسلّم دَ ښځو تذکره اوکړه، او وے فرمائيل، تاسو کښې يو سړے دَ خپلے ښځے دَ غلام په شان په کوړه دَ وهلو وهل کوي، او بيا په هغه ورځ ماښام تـه هغې سره هم بستر کيږي. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم خلقو ته دا نصيحت او کۀ چه په تيز (ګوز) اچولو پورے مۀ خاندئ، اووے فرمائيل تاسو کښې ولے سړے په هغه خيز پورے خاندي، چه خپله ئے کوي، او ابو معاويه اووے، مونږ دَ هشام نه، هغۀ دَ خپل پلار نه او هغۀ دَ عبدالرحمٰن بن زمعه نه روايت

وَسَلَّمَ مِثْلُ أَبِي زَمْعَةَ عَمِّ الزُّبَيْرِ ابْنِ الْعَوَّامِ.

او كۀ نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ذَ ابو زمعه په شان' چه ذَ زبير بن العوام تره (چچا) وو.

# وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى

# دَ سُوره واللّيل اذا يغشٰى تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِالْحُسْنٰى بِالْخَلَفِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ تَرَدّٰى مَاتَ وَ تَلَظّٰى تَوَهَّجَ وَ قَرَأَ عُبَيْدُ بْنُ عُمَيْرٍ تَتَلَظّٰى.

او ابن عباسؓ اووے چه "حسنٰى" معني خلف (ثواب) دے. او مجاهد اووے' "تردٰى" معني "مَاتَ" (مړ شوے) دے. او "تلظّٰى" معني "توهّج" (جوش وهي) دے او عبيدالله بن عمير "تتلظّٰى" لوستے دے.

## باب ٤٣٨: قَوْلِهٖ وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلّٰى.

باب ٤٣٨: آيت: وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلّٰى تفسير.

٩٢٨: حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرٰهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ دَخَلْتُ فِي نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِ عَبْدِ اللّٰهِ الشَّامَ فَسَمِعَ بِنَا أَبُو الدَّرْدَاءِ فَأَتَانَا فَقَالَ أَفِيكُمْ مَنْ يَقْرَأُ فَقُلْنَا نَعَمْ قَالَ فَأَيُّكُمْ أَقْرَأُ فَأَشَارُوا إِلَيَّ فَقَالَ اقْرَأْ فَقَرَأْتُ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلّٰى وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثٰى قَالَ أَنْتَ سَمِعْتَهَا مِنْ فِي صَاحِبِكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ وَ أَنَا سَمِعْتُهَا مِنْ فِي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هٰؤُلَاءِ يَأْبَوْنَ عَلَيْنَا.

٩٢٨: قبيصه بن عقبه. سفيان. اعمش. ابراهيم. علقمه نه روايت كوي' ذَ هغۀ بيان دے' زۀ ذَ عبيدالله څو ملګرو سره شام ته اورسيدم' ابو درداء چه څمونږ خلقو ذَ راتلو خبر واوريدلو' نو هغه مونږ له راغے. او وئيلے' تاسو کښې څوک شته' چه قرآن لولي' مونږ اووے او' هغۀ اووے' تاسو کښې څوک زيات لوستونکے دے. خلقو ما طرف ته اشاره اوکړه. هغۀ اووے لوله (پړهه) نو ما سورۀ "والليل اذا يغشٰى والنّهار اذا تجلّٰى والذكر والانثٰى": اولوست هغه تپوس اوکۀ آيا تا ذَ خپل ملګري نه آوريدلے دي. ما اووے' او' هغۀ اووے' ما دا ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم ذَ خولے مبارکے نه آوريدلے دے. او ذَ شام خلق ئے نۀ مني.

## باب ٤٣٩: قَوْلِهٖ وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰى.

باب ٤٣٩: آيت: وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰى: او نر او ماده ئے نۀ دي پيدا کړے.

۹۲۹: حَدَّثَنَا عُمَرُ حَدَّثَنَا اَبِيُ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ قَدِمَ اَصْحَابُ عَبْدِ اللّٰهِ عَلٰى اَبِي الدَّرْدَاءِ فَطَلَبَهُمْ فَوَجَدَهُمْ فَقَالَ اَيُّكُمْ يَقْرَاُ عَلٰى قِرَآءَةِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُلُّنَا قَالَ فَاَيُّكُمْ يَحْفَظُ فَاَشَارُوْا عَلْقَمَةَ قَالَ كَيْفَ سَمِعْتَهُ يَقْرَاُ وَاللَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى قَالَ عَلْقَمَةُ وَ الذَّكَرِ وَالْاُنْثٰى قَالَ اَشْهَدُ اَنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَاُ هٰكَذَا وَ هٰؤُلَآءِ يُرِيْدُوْنِيْ عَلٰى اَنْ اَقْرَاَ وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰى وَاللّٰهِ لَا اُتَابِعُهُمْ.

۹۲۹: عمر. دَ عمر پلار. اعمش. ابراهيم نه روايت کوي، دَ عبداللّٰه ملګري ابوالدرداء له ورغلل، ابو درداء دَ هغوي په تلاش کښې هغوي له ورغے. او ونيلے تاسو کښې څوک دَ عبداللّٰه دَ قرات مطابق ونيلے شي هغوي علقمه پله اشاره اوکړله، هغه تپوس اوکه "والليل اذا يغشٰى" لوستل دے څنګه آوريدلے دي، علقمه اووے "والذکر والانثٰى" ابوالدرداء اووے، زهٔ ګواهي کوم، چه ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه داسے لوستل آوريدلے دي. او دا خلق (شام واله) غواړي، چه زهٔ "ما خلق الذکر والانثٰى" اولولم، قسم په خدائے، زهٔ به دَ دوي پيروي اونهٔ کړم.

بَاب ۴۴۰: قَوْلِهٖ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى.

باب ۴۴۰: آيت: فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى: نو کوم سړي چه ورکړل او پرهيزګاري ئے اوکړله.

۹۳۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَقِيْعِ الْغَرْقَدِ فِيْ جَنَازَةٍ فَقَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهٗ مِنَ الْجَنَّةِ وَ مَقْعَدُهٗ مِنَ النَّارِ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا نَتَّكِلُ فَقَالَ اعْمَلُوْا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ ثُمَّ قَرَاَ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى وَ صَدَّقَ بِالْحُسْنٰى اِلٰى قَوْلِهٖ لِلْعُسْرٰى.

۹۳۰: ابو نعيم. سفيان. اعمش. سعد بن عبيده. ابو عبدالرحمٰن سلمي. حضرت عليؓ نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دے، مونږ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره بقيع الغرقد کښې يو جنازه کښې شريک وو، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، داسے سړے نشته، چه دَ هغهٔ ټکاؤنړه جنت يا جهنم نهٔ وي ليکلے شوے. خلقو عرض اوکه، يا رسول اللّٰه بيا مونږ دے بهروسه ولے اونهٔ کړو. حضورؐ اوفرمائيل عمل کوئے، ځکه چه هر سړي دَ پاره هغه عمل آسانولے شي، کوم دَ پاره چه هغه پيدا کړے شوے دے. بيا حضورؐ دا آيت اولوست: فاما من اعطٰى واتقٰى و صدق بالحسنٰى ...... للعسرٰى پورے.

بَابٌ ٤٤١: قَوْلِهِ وَ صَدَّقَ بِالْحُسْنٰى.

٤٩٣١: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كُنَّا قُعُوْدًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ.

بَابٌ ٤٤٢: قَوْلِهِ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرٰى.

٤٩٣٢: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ فِيْ جَنَازَةٍ فَاَخَذَ عُوْدًا يَنْكُتُ فِي الْاَرْضِ فَقَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ اَوْ مِنَ الْجَنَّةِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا نَتَّكِلُ قَالَ اعْمَلُوْا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى وَ صَدَّقَ بِالْحُسْنٰى الْاٰيَةَ قَالَ شُعْبَةُ وَ حَدَّثَنِيْ بِهِ مَنْصُوْرٌ فَلَمْ اُنْكِرْهُ مِنْ حَدِيْثِ سُلَيْمَانَ.

بَابٌ ٤٤٣: قَوْلِهِ وَ اَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنٰى.

باب ۴۴۱: آيت: وَ صَدَّقَ بِالْحُسْنٰى: تفسير او نيكئ نے ريښتيا اوګڼړلے.

۴۹۳۱: مسدد. عبدالواحد. اعمش. سعد بن عبيده. ابو عبدالرحمٰن. حضرت عليؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، مونږ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست وو، بيائے دغسے حديث بيان كهٔ.

باب ۴۴۲: آيت: فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرٰى: مونږ به هغهٔ ته آساني ذ پاره آسان كړو.

۴۹۳۲: بشر بن خالد. محمد بن جعفر. شعبه. سليمان. سعد بن عبيده. ابو عبدالرحمٰن. حضرت عليؓ. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي، حضورؐ يو جنازه كښې شريک وو، نو حضورؐ زمكه كرول شروع كړل، او وے فرمائيل، تاسو كښې هيڅ سړے داسے نشته، چه ذ هغهٔ ټكاونړه جهنم يا جنت كښې نهٔ وي ليكلے شوے. خلقو عرض اوكهٔ اے ذ اللّٰه رسوله، بيا مونږ دے ولے په هغے بهروسه اونهٔ كړو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، عمل كوئے، هر سړے آسان كړے شوے دے، هغے څيز ذ پاره، كوم ذ پاره چه پيدا كړے شوے دے، نو حضورؐ دا آيت اولوست: فاما من اعطٰى واتّقٰى و صدق بالحسنٰى، آخر پورے. ذ شعبه بيان دے. ماته منصور دا بيان اوكهٔ، نو ما ذ سليمان ذ حديث نه ذدے انكار اونهٔ كه.

باب ۴۴۳: آيت: وَ اَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنٰى: او كوم سړي چه بخل اوكهٔ، او بے نيازه شو.

٩٣٣: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ اِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهٗ مِنَ الْجَنَّةِ وَ مَقْعَدُهٗ مِنَ النَّارِ فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا نَتَّكِلُ قَالَ لَا اعْمَلُوْا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ ثُمَّ قَرَأَ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى وَ صَدَّقَ بِالْحُسْنٰى فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْيُسْرٰى اِلٰى قَوْلِهٖ فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْعُسْرٰى.

٩٣٣: يحيٰي. وكيع. اعمش. سعد بن عبيده. ابو عبدالرحمٰن. حضرت عليؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے، مونږ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست وو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو كښې هيڅ سړے داسے نشته، چه ذ هغهٔ ټكاونړه جنت يا دوزخ كښې نهٔ وي ليكلے شوے. مونږ خلقو عرض اوكهٔ، يا رسول اللّٰه، بيا مونږ خلق دے په دے بهروسه ولے اونهٔ كړو. حضورؐ اوفرمائيل، بلكه عمل كوئے ځكه چه هر سړي ته هغے څيز كښې آساني وي ذ كوم ذ پاره چه پيدا كړے شوے وي، بيا حضورؐ آيت: فامّا من اعطٰى واتقٰى و صدق بالحسنٰى فسنيسّرهٗ لليسرىٰ ...... فسنيسره للعسرىٰ پورے اولوست،

## باب ۴۴۴: قَوْلِهٖ وَ كَذَّبَ بِالْحُسْنٰى.

## باب ۴۴۴: آيت: وَ كَذَّبَ بِالْحُسْنٰى: او نيكي نے دروغ اوګنړله.

٩٣۴: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كُنَّا فِيْ جَنَازَةٍ فِيْ بَقِيْعِ الْغَرْقَدِ فَاَتَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَعَدَ فَقَعَدْنَا حَوْلَهٗ وَ مَعَهٗ مِخْصَرَةٌ فَنَكَسَ فَجَعَلَ يَنْكُتُ بِمِخْصَرَتِهٖ ثُمَّ قَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ اَوْ مَا مِنْ نَفْسٍ مَنْفُوْسَةٍ اِلَّا كُتِبَ مَكَانُهَا مِنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ وَ اِلَّا قَدْ كُتِبَتْ شَقِيَّةً اَوْ سَعِيْدَةً قَالَ رَجُلٌ

٩٣۴: عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. سعد بن ابي عبيده. ابو عبدالرحمٰن سلمي. حضرت عليؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دے مونږ خلق بقيع الغرقد كښې يو جنازه كښې شريك وو، چه مونږ پله رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو، او كيناستلو، نو مونږ ترے هم چار چاپيره كيناستلو. حضورؐ سره يوه لخته (چهړۍ) وه. حضورؐ سر مبارك خكته كړلو. او هغے لختے سره ئے زمكه كرول شروع كړل. بيائے اوفرمائيل، تاسو كښې هيڅ سړے او مخلوق نشته، چه ذ هغهٔ ټيكاونړه جنت او دوزخ كښې او بدبخت او نيك بخت كيدل نهٔ وي ليكلے. يو سړي عرض اوكهٔ، يا رسول اللّٰه، بيا دے مونږ په خپل تقدير بهروسه ولے اونهٔ

يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا نَتَّكِلُ عَلٰى كِتَابِنَا وَ نَدَعُ الْعَمَلَ فَمَنْ كَانَ مِنَّا مِنْ اَهْلِ السَّعَادَةِ فَسَيَصِيْرُ اِلٰى اَهْلِ السَّعَادَةِ وَمَنْ كَانَ مِنَّا مِنْ اَهْلِ الشَّقَآءِ فَسَيَصِيْرُ اِلٰى عَمَلِ اَهْلِ الشَّقَاوَةِ قَالَ اَمَّا اَهْلُ السَّعَادَةِ فَيُيَسَّرُوْنَ لِعَمَلِ اَهْلِ السَّعَادَةِ وَ اَمَّا اَهْلُ الشَّقَاوَةِ فَيُيَسَّرُوْنَ لِعَمَلِ اَهْلِ الشَّقَآءِ ثُمَّ قَرَاَ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى وَ صَدَّقَ بِالْحُسْنٰى الْاٰيَةَ.

کړو او عمل کول دے ولے پرے نهٔ ږدو، نو کوم سړے چه مونږ کښې دَ اهل سعادت نه وي، هغه به اهل سعادت طرف ته لاړ شي، او مونږ کښې چه څوک دَ بدبختو نه وي، هغه به دَ بدبختانو په شان عمل کوي، حضورؐ اوفرمائیل اهل سعادت ته به دَ نیک بختانو عمل کښې آساني پیدا کړے شي، او اهل شقاوت ته به دَ بدبختانو اعمال آسان کړے شي. بیا حضورؐ دا آیت اولوست: فاما من اعطٰی واتّقٰی وصدق بالحسنٰی آخر پورے، یعني چا چه ورکړل، او اویریدلو، او دَ نیکو تصدیق ئے اوکړهٔ: الخ.

## بَابُ ۴۴۵: قَوْلِهٖ فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْعُسْرٰى.

باب ۴۴۵: آیت: فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْعُسْرٰى: بیا به مونږ په هغهٔ د سختي لار آسانه کړو.

۹۳۵: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ جَنَازَةٍ فَاَخَذَ شَيْئًا فَجَعَلَ يَنْكُتُ بِهِ الْاَرْضَ فَقَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهٗ مِنَ النَّارِ وَ مَقْعَدُهٗ مِنَ الْجَنَّةِ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا نَتَّكِلُ عَلٰى كِتَابِنَا وَ نَدَعُ الْعَمَلَ قَالَ اعْمَلُوْا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ لِمَا خُلِقَ لَهٗ اَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ السَّعَادَةِ فَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ اَهْلِ

۹۳۵: آدم. شعبه. اعمش. سعد بن عبیده. ابو عبدالرحمٰن سلمي. حضرت عليؓ نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم یو جنازه کښې شریک وو. حضورؐ یو څیز واخست، او هغے سره ئے زمکه کرول شروع کړل. بیائے اوفرمائیل تاسو کښې هیڅوک داسے نشته، چه دَ هغهٔ ټیکاونړه دوزخ او جنت کښې نهٔ وي لیکلے شوے. خلقو عرض اوکړهٔ، یا رسول اللّٰه، بیا دے مونږ په خپل لیکلے شوے (تقدیر) بهروسه ولے اونهٔ کړو، او عمل دے ولے پرے نهٔ ږدو. حضورؐ ورته اوفرمائیل، عمل کوئے ځکه چه هر سړي ته هغے څیز کښې آساني وي، کوم دَ پاره چه پیدا کړے شوے وي. کوم سړے چه اهل سعادت نه وي، هغهٔ ته به دَ نیک بختانو عمل کښې آساني وي. او کوم سړے چه اهل شقاوت نه وي هغهٔ ته به دَ بدبختانو عمل کښې

السَّعَادَةِ وَ اَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الشَّقَآءِ فَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ اَهْلِ الشَّقَاوَةِ ثُمَّ قَرَأَ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَ اتَّقٰى وَ صَدَّقَ بِالْحُسْنٰى الْاٰيَةَ.

آساني وي. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم آيت: فاما من اعطٰى واتقٰى و صدق بالحسنٰى آخر پورې اولوستلو (يعني چا چه ورکړه اوکړه او پرهيزګاري ئې اوکړه، او د نيکو تصديق ئې اوکړه.

# سُوْرَةُ وَالضُّحٰى

# دَ سورهٔ والضُّحٰى تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اِذَا سَجٰى اِسْتَوٰى وَ قَالَ غَيْرُهٗ اَظْلَمَ وَ سَكَنَ عَآئِلًا ذُوْ عِيَالٍ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد اووې "اذا سجٰى" کوم وخت چه برابر شي، او نورو اووې، دَ دې معني دادي، چه شپه تاريکه او پرسکون شي. "عائلًا" بچو واله.

## بَاب ۴۴٦: قَوْلِهٖ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى.

## باب ۴۴٦: آيت: مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى:

ستا رب تهٔ نهٔ ئې پرېښې، او نهٔ درنه ناراضه شوې دې.

۹۳٦: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا الْاَسْوَدُ بْنُ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدُبَ بْنَ سُفْيَانَ قَالَ اشْتَكٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَقُمْ لَيْلَتَيْنِ اَوْ ثَلَاثًا فَجَآءَتْ اِمْرَاَةٌ فَقَالَتْ يَا مُحَمَّدُ اِنِّيْ لَاَرْجُوْ اَنْ يَّكُوْنَ شَيْطَانُكَ قَدْ تَرَكَكَ لَمْ اَرَهٗ قَرِبَكَ مُنْذُ لَيْلَتَيْنِ اَوْ ثَلَاثًا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَ الضُّحٰى وَاللَّيْلِ اِذَا سَجٰى مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى.

۹۳٦: احمد بن يونس. زهير. اسود بن قيس. جندب بن سفيان نه روايت کوي، دَ هغهٔ بيان دې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ناروغه شو، نو دوه يا درې شپې (تهجد) دَ پاره اونه دريدلو يوه ښځه راغله، او وئيلې، محمد (صلي اللّٰه عليه وسلّم) زهٔ اميد کوم، چه ستا شيطان تهٔ پرېښودلې. ما هغه دَ دوه درې شپونه تا ته راتلونکې نهٔ دې ليدلې. نو اللّٰه تعالٰي دا آيت نازل کړلو: والضُّحٰى والليل اذا سجٰى ما ودعك ربك وما قلٰى.

## بَاب ۴۴۷: قَوْلِهٖ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى يُقْرَاُ بِالتَّشْدِيْدِ وَالتَّخْفِيْفِ بِمَعْنًى وَاحِدٍ مَا تَرَكَكَ

## باب ۴۴۷: آيت: مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى:

تشديد او بلا تشديد سره يو معني دي. دَ دې معني دادي، چه تهٔ ستا رب نهٔ ئې پرېښې. او ابن عباسؓ دَ دې

رَبُّكَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَا تَرَكَكَ وَمَا أَبْغَضَكَ.

تفسير دا بيان کړ' چه ته نې نه ئې پريښې. نه ئې تاسره دشمني اوکړه.

٤٦٣٧ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدُبًا الْبَجَلِيَّ قَالَتِ امْرَأَةٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا أَرَى صَاحِبَكَ إِلَّا أَبْطَأَكَ فَنَزَلَتْ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى.

٤٦٣٧ : محمد بن بشار. محمد بن جعفر. غندر. شعبه. اسود بن قيس نه روايت کوي' ما د جندب بجلي نه واوريدل يوې ښځې اووې' يا رسول اللّٰه' زۀ ستا ملګرې وينم' چه قرآن راوړلو کښې ئې تاخير راخستې دې' نو دا آيت نازل شو' چه ته خپل رب نه ئې پريښې' او نۀ ئې درسره دشمني کړې ده.

## سُورَةُ أَلَمْ نَشْرَحْ

## دَ سورۀ الم نشرح تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ وِزْرَكَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ أَنْقَضَ أَثْقَلَ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ أَيْ مَعَ ذٰلِكَ الْعُسْرِ يُسْرًا آخَرَ كَقَوْلِهِ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَا إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ وَلَنْ يَغْلِبَ عُسْرٌ يُسْرَيْنِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ فَانْصَبْ فِي حَاجَتِكَ إِلٰى رَبِّكَ وَ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَلَمْ نَشْرَحْ شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ.

مجاهد اووې "وزرک" نه مراد دَ نبوت نه مخکښ کارونه دي "انقض" مات ئې کړلو' دروند ئې کړلو. "مع العسر يسرا" په تفسير کښ ابن عيينه اووې' چه دَ سختئ سره بله آساني ده' لکه دَ اللّٰه قول "هل تربّصون بنا الا احدى الحسنين" او حديث "لن يغلب عسر يسرين" معني دغه دي. او مجاهد اووې' "فانصب" نه مراد دا دې' چه خپل ضروورياتو کښ خپل رب ته التجا کوې. او ابن عباسؓ نه د "اَلَمْ نَشْرَحْ" تفسير کښ منقول دي' چه اللّٰه تعالىٰ ستا سينه دَ اسلام دَ پاره پرانستله.

## سُورَةُ وَالتِّيْنِ

## دَ سورۀ والتين تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ هُوَ التِّيْنُ وَالزَّيْتُوْنُ الَّذِيْ يَأْكُلُ النَّاسُ يُقَالُ فَمَا

مجاهد اووې' چه "تين" (انحر) او "زيتون" نه هغه مراد دې' چه خلق ئې خوري "فما يكذبك" معني دا

يُكَذِّبُكَ فَمَا الَّذِي يُكَذِّبُكَ بِأَنَّ النَّاسَ يُدَانُوْنَ بِأَعْمَالِهِمْ كَأَنَّهُ قَالَ وَمَنْ يَقْدِرُ عَلَى تَكْذِيْبِكَ بِالثَّوَابِ وَ الْعِقَابِ.

بيانيږي، چه څوک شته، چه تا دروغجن کړي، چه خلق به په ذ خپلو اعمالو بدله ورکيږي ګويا دائے اوفرمائيل، چه ذ ثواب او عقاب متعلق کوم سړے د دے قدرت لري، چه تا دروغجن کړي.

۹۳۸: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَدِيٌّ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِيْ سَفَرٍ فَقَرَأَ فِي الْعِشَاءِ فِيْ إِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ بِالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ تَقْوِيْمِ الْخَلْقِ.

۹۳۸: حجاج بن منهال. شعبه. عدي. حضرت براءؓ نه روايت کوي، ذ هغهٔ بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم يو سفر کښې وو، نو حضورؐ د ماسختن دوو رکعاتو کښې يو رکعت کښې سورت "والتين والزيتون" اولوستلو "تقويم" نه مراد جوړښت دے.

## اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ

## دَ سورهٔ علق (اقرأ) تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَقَالَ قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ عَتِيْقٍ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ اكْتُبْ فِي الْمُصْحَفِ فِيْ أَوَّلِ الْإِمَامِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَاجْعَلْ بَيْنَ السُّوْرَتَيْنِ خَطًّا وَقَالَ مُجَاهِدٌ نَادِيَهُ عَشِيْرَتَهُ الزَّبَانِيَةُ الْمَلٰئِكَةُ وَقَالَ مَعْمَرٌ الرُّجْعَى الْمَرْجِعُ لَنَسْفَعًا قَالَ لَنَأْخُذَنْ وَلَنَسْفَعَنْ بِالنُّوْنِ وَهِيَ الْخَفِيْفَةُ سَفَعْتُ بِيَدِهِ أَخَذْتُ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قتيبه په واسطه ذ حماد، يحيي بن عتيق. ذ حسن قول نقل کۀ، چه مصحف (قرآن) کښې ذ سورهٔ فاتحه شروع کښې: بسم اللّٰه الرحمن الرحيم: اوليکه او ذ دوو سورتونو مينځ کښې ذ خط په طور (يعني امتياز ذ پاره) دے وي. او مجاهد اووے "ناديه" نه مراد ذ هغهٔ قبيله ده. "زبانيه" معني ملائکه، فريښته ده. او وئيلے، چه "رجعى" معني واپس کيدل دي. "لنسفعن" معني دا دي، چه مونږ به ضرور نيسو "لنسفعن" نون خفيفه سره دے. "سفعت بيده" وئيلو نه مراد دے، چه ما اونيولو.

باب ۴۴۸: حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ ح حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ

باب ۴۴۸: حديث: يحيي. ليث. عقيل. ابن شهاب (دويم سند) سعيد بن مروان. محمد بن عبدالعزيز بن ابي رزمه. ابو صالح سلمويه. عبدالله.

بْنُ مَرْوَانَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ
عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رِزْمَةَ أَخْبَرَنَا
أَبُو صَالِحٍ سَلْمُوَيَةَ قَالَ حَدَّثَنِي
عَبْدُ اللَّهِ عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ
قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ أَنَّ عُرْوَةَ
ابْنَ الزُّبَيْرِ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَائِشَةَ
زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ قَالَتْ كَانَ أَوَّلُ مَا بُدِئَ
بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّؤْيَا الصَّادِقَةُ
فِي النَّوْمِ فَكَانَ لَا يَرَى رُؤْيَا إِلَّا
جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ ثُمَّ
حُبِّبَ إِلَيْهِ الْخَلَاءُ فَكَانَ يَلْحَقُ
بِغَارِ حِرَاءٍ فَيَتَحَنَّثُ فِيهِ قَالَ
وَالتَّحَنُّثُ التَّعَبُّدُ اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ
الْعَدَدِ قَبْلَ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى أَهْلِهِ
وَيَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى
خَدِيجَةَ فَيَتَزَوَّدُ بِمِثْلِهَا حَتَّى
فَجِئَهُ الْحَقُّ وَهُوَ فِي غَارِ حِرَاءٍ
فَجَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَأْ فَقَالَ
رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ مَا أَنَا بِقَارِئٍ قَالَ فَأَخَذَنِي
فَغَطَّنِي حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجُهْدُ
ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ اقْرَأْ قُلْتُ
مَا أَنَا بِقَارِئٍ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي
الثَّانِيَةَ حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجُهْدُ

يونس بن يزيد. ابن شهاب. عروه بن زبير. د نبي صلي الله عليه وسلم تبر، بي بي عائشے نه روايت کوي، دَ هغے بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم باندے دَ تـولو نه مخکښ دَ رويائے صادقه (دَ ريښتينے خوبونو) په خوب کښ شروع اوشوه. کوم خوب چه به حضورؐ ليدلو دَ سحر کيدونه مخکښ به هغه ظهور کښ راتللو، بيا دَ تنهائي (ګوشه نشيني) محبت دَ حضورؐ زړه کښ کيناستلو. حضور صلي الله عليه وسلم به غار حرا ته تشريف اُوړلو، (تن تنها) تحنث به ئے کولو. او تحنث نه مراد دا دے، چه متعدد شپے به ئے عبادت کولو. بيا به خپلے ښځے بي بي خديجےؓ ته واپس راتلو او توښه به ئے ځان سره آخستله، تردے چه حضور صلي الله عليه وسلم ته دفعةً حق راغے. دغه وخت حضورؐ غار حرا کښ وو، حضورؐ ته فريښته راغله، ورته ئے وئيلے. اولوله (پړهه) رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل، زۀ په لوستلو نۀ پوهيږم. حضورؐ اوفرمائيل، ماله ئے زور راکړۀ (ځان ته رانزدے کولو سره) تردے چه ماته سخت تکليف محسوس شو. بيائے زۀ پريښودم. او وئيلے اولوله (پړهه) ما ورته اووے، زۀ نشم لوستے، نو هغے فريښتے په دويم ځل اونيولم، او زور، ئے راکړلو، چه هغے سره ماته تکليف اورسيدلو. بيائے زۀ پريښودلم، او وئيلے، چه اولوله (پړهه) ما ورته اووے، زۀ لوستے نشم. بيا هغے فريښتے زۀ په دريم ځل اونيولم، او زور سره ئے دباؤ کړم، هغے سره ماته تکليف اورسيد. بيائے زۀ پريښودم، او وئيلے، اولوله (پړهه) دَ خپل رب نوم سره، چه هغه پيدا کړلو، چه هغه انسان دَ چکه وينے نه پيدا

ثُمَّ اَرْسَلَنِيْ فَقَالَ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ اِقْرَأْ وَ رَبُّكَ الْاَكْرَمُ الَّذِيْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ الْاٰيَاتُ اِلٰى قَوْلِهٖ عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَالَمْ يَعْلَمْ فَرَجَعَ بِهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرْجُفُ بَوَادِرُهٗ حَتّٰى دَخَلَ عَلٰى خُدِيْجَةَؓ فَقَالَ زَمِّلُوْنِيْ زَمِّلُوْنِيْ فَزَمَّلُوْهُ حَتّٰى ذَهَبَ عَنْهُ الرَّوْعُ قَالَ لِخَدِيْجَةَ اَيْ خَدِيْجَةُ مَالِيْ لَقَدْ خَشِيْتُ عَلٰى نَفْسِيْ فَاَخْبَرَهَا الْخَبَرَ قَالَتْ خَدِيْجَةُ كَلَّا اَبْشِرْ فَوَاللّٰهِ لَا يُخْزِيْكَ اللّٰهُ اَبَدًا فَوَاللّٰهِ اِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ وَ تَصْدُقُ الْحَدِيْثَ وَ تَحْمِلُ الْكَلَّ وَ تَكْسِبُ الْمَعْدُوْمَ وَ تُقْرِي الضَّيْفَ وَ تُعِيْنُ عَلٰى نَوَائِبِ الْحَقِّ فَانْطَلَقَتْ بِهٖ خَدِيْجَةُ حَتّٰى اَتَتْ بِهٖ وَرَقَةَ بْنَ نَوْفَلٍ وَّهُوَ ابْنُ عَمِّ خَدِيْجَةَ اَخِيْ اَبِيْهَا وَ كَانَ امْرَأً تَنَصَّرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَ كَانَ يَكْتُبُ الْكِتَابَ الْعَرَبِيَّ وَ يَكْتُبُ مِنَ الْاِنْجِيْلِ بِالْعَرَبِيَّةِ مَا شَاءَ اللّٰهُ اَنْ يَّكْتُبَ وَ كَانَ شَيْخًا كَبِيْرًا قَدْ عَمِيَ فَقَالَتْ خَدِيْجَةُ يَا عَمِّ اسْمَعْ مِنِ ابْنِ اَخِيْكَ قَالَ وَرَقَةُ يَا ابْنَ اَخِيْ مَاذَا تَرٰى فَاَخْبَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَبَرَ مَا رَاٰى فَقَالَ

کړلو، اولوله او ستا رب بزرګ دے، چه ذَ قلم په ذريعه ئے ښودنه اوکړه. "علم الانسان ما لم يعلم" پورے ئے ورته اوښودل، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذَ هغے خالي نه دے حالت کښې واپس شولو، چه حضورؐ رپيدلو، تر دے چه بي بي خديجےؓ پله ئے تشريف راوړلو، او، وے فرمائيل، "زمّلوني، زمّلوني" په ما کمبل (شړئے) واچوئے، په ما کمبل واچوئے، نو خلقو پرے کمبل واچولو څۀ وخت چه دَ خوف اثر ترے لاړلو، نو حضورؐ بي بي خديجےؓ ته اوفرمائيل، اے خديجےؓ څۀ چل دے چه ما سره دَ خپل ځان ويره ده. او ټول حال ئے ورته بيان کړلو، بي بي خديجےؓ ورته عرض اوکۀ هيڅ کله داسے نۀ ده، تاسو خوشحاله شئے، په خدائے مِ دے قسم وي، الله تعالیٰ به هيڅ کله تاسوؐ رسوا نۀ کړي، تاسو خو قسم په خدائے، صله رحمي کوئے، ريښتيا خبره کوئے. دَ عاجزانو دَ قرضے بوج اوچتوئے. مفلسانو دَ پاره کسب کوئے. او دَ ميلمنو ميلمستيا کوئے، او دَ حق په لار کښې په پيښيدونکو مصيبتونو مدد کوئے. بي بي خديجهؓ حضورؐ سره روانه شوه، تردے چه ورقه بن نوفل له راغله چه دَ بي بي خديجےؓ دَ ترۀ (چچا) ځوئے وو، هغه جاهليت کښې نصراني شوے وو. او عربي کښې ئے ليکل کول، او انجيل ئے هم عربي کښې، الله ته چه څومره منظوره وو، ليکلو، او هغه ډير بوډا شوے وو. دَ سترګو ړنړا ئے ختميدونکے وه. بي بي خديجےؓ ورته اووے، اے تره (چچا) دَ خپل ورارۀ خبره واوره. ورقه تپوس اوکۀ، ورارۀ څۀ خبره ده، نبي صلي الله عليه وسلّم چه څه ليدلے وو، دَ هغے نه ئے خبر که، ورقه ورته اووے، دا هغه ناموس

وَرَقَةُ هٰذَا النَّامُوْسُ الَّذِیْ اُنْزِلَ عَلٰی مُوْسٰی لَیْتَنِیْ فِیْهَا جَذَعًا لَیْتَنِیْ اَکُوْنُ حَیًّا ذَکَرَ حَرْفًا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَوَ مُخْرِجِیَّ هُمْ قَالَ وَرَقَةُ نَعَمْ لَمْ یَاْتِ رَجُلٌ بِمَا جِئْتَ بِهٖ اِلَّا اُوْذِیَ وَ اِنْ یُدْرِکْنِیْ یَوْمُكَ حَیًّا اَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا ثُمَّ لَمْ یَنْشَبْ وَرَقَةُ اَنْ تُوُفِّیَ وَ وَفَتَرَ الْوَحْیُ فَتْرَةً حَتّٰی حَزِنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ شِهَابٍ فَاَخْبَرَنِیْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِیَّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ یُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْیِ قَالَ فِیْ حَدِیْثِهٖ بَیْنَا اَنَا اَمْشِیْ سَمِعْتُ صَوْتًا مِّنَ السَّمَآءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِیْ فَاِذَا الْمَلَكُ الَّذِیْ جَآءَنِیْ بِحِرَآءٍ جَالِسٌ عَلٰی کُرْسِیٍّ بَیْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ فَفَرِقْتُ مِنْهُ فَرَجَعْتُ فَقُلْتُ زَمِّلُوْنِیْ زَمِّلُوْنِیْ فَدَثَّرُوْهُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی یٰٓاَیُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَاَنْذِرْ وَ رَبَّكَ فَکَبِّرْ وَ ثِیَابَكَ فَطَهِّرْ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ وَ هِیَ الْاَوْثَانُ الَّتِیْ کَانَ اَهْلُ الْجَاهِلِیَّةِ یَعْبُدُوْنَ قَالَ ثُمَّ تَتَابَعَ الْوَحْیُ.

(فريښته) ده، چه په حضرت موسیٰ نازله شوي وَه. کاش چه زهٔ هغه وخت ځلمې وے. کاش چه زهٔ ژوندے وے. بیا څهٔ نور، ئے اووے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل آيا دا خلق به ما او کاږي، ورقه ورته اووے، او څوک چه داسے څيز راوړي، کوم چه تا راوړے دے، نو هغهٔ ته تکليف رسولے شوے دے. که زهٔ ستا هغے زمانه کښې ژوندے پاتے شوم، نو ما به ستا مستحکم مدد کولے. بيا چه څو ورځے تيرے شوے ورقه وفات شولو. او دَ وحي سلسله بنده شوه نو نبي صلي الله عليه وسلّم سره سخت غم شو محمد بن شهاب په واسطه دَ ابو سلمه، حضرت جابرؓ بن عبدالله انصاري بيان اوکهٔ (چه يو ځل) رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ وحي دَ بنديدو ذکر کولو، نو حضورؐ اوفرمائيل، زهٔ يو ځل تلم، نو ما دَ آسمان نه يو آواز واوريدلو، ما پورته اوکتل، نو هغه فريښته مِ اوليده، چه ماته غار حرا کښې راغلے وه، او هغه دَ آسمان او زمکے مينځ کښې په کُرسئ ناسته وَه، زهٔ دَ هغے نه اويريدمه، کور ته واپس راغلم، او اومِ وئيلے، په ما کمبل واچوئے. په ما کمبل واچوئے. نو خلقو په ما کمبل واچولو. په دے الله تعالیٰ دا آيت نازل کړلو. يا ايها المدثر قم فانذر و ربک فکبر و ثيابک فطهر، والرجز فاهجر: يعني اے کمبل اغوستونکيه اودريږه، ئه خلق اويروه، او دَ خپل رب لويي بيان کړه الخ: او ابو سلمه اووے چه "رجز" نه مراد بُتان دي، چه جاهليت کښې به ئے خلقو عبادت کولو. بيا دَ هغے نه پس برابر وحي راتلل شروع شو.

باب ۴۴۹: قَوْلُهٗ خَلَقَ

باب ۴۴۹: آيت: خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ط اللّٰه

الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ.

تعالي انسان ذ چكه وينے نه پيدا كړے دے.

٩٣٩ : حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ عَآئِشَةَ قَالَتْ اَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ فَجَآءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِىْ خَلَقَ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ اِقْرَاْ وَ رَبُّكَ الْاَكْرَمُ.

٩٣٩ : ابن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذ هغے بيان دے، ذ ټولو نه مخكښ نبي صلي الله عليه وسلم بالدے ذ رويالے صالحه ابتدا اوشوه بيا حضورؐ له فريښته راغله، او ورته ئے وئيلے "اولوله" (پړه) ذ خپل رب نوم سره، چه هغه انسان ذ چكه وينے نه پيدا كړلو. اولوله، او ستا رب لوئے كريم دے.

باب ٤٥٠ : قَوْلِهٖ اِقْرَاْ وَ رَبُّكَ الْاَكْرَمُ.

باب ٤٥٠ : آيت: اِقْرَاْ وَ رَبُّكَ الْاَكْرَمُ. اولوله، او ستا رب لوئے كريم دے.

٩٤٠ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِىْ عُقَيْلٌ قَالَ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنِىْ عُرْوَةُ عَنْ عَآئِشَةَؓ اَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّؤْيَا الصَّادِقَةُ جَآءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِىْ خَلَقَ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ اِقْرَاْ وَ رَبُّكَ الْاَكْرَمُ الَّذِىْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ.

٩٤٠ : عبداللّٰه بن محمد. عبدالرزاق. معمر. زهري. ح. ليث. عقيل. محمد. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذ هغے بيان دے، ذ ټولو نه مخكښ رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم بالدے ذ رويائے صالحه په ذريعه شروع اوشوه. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم له فريښته راغله او ورته ئے اووے، ذ خپل رب نوم سره اولوله، چه هغه انسان ذ چكه وينے (خون) نه پيدا كڅ، اولوله، او ستا رب كريم دے، چه هغه ذ قلم په ذريعه ښودنه اوكړله.

باب ٤٥١ : قَوْلِهٖ الَّذِىْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ.

باب ٤٥١ : آيت: اَلَّذِىْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ: چه هغهٔ ذ قلم په ذريعه ښودنه اوكړه.

٩٤١ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ قَالَتْ

٩٤١ : عبداللّٰه بن يوسف. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، ذ هغے بيان دے، حضور صلي الله عليه وسلّم بي بي خديجے له

عَائِشَةُ فَرَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى خَدِيجَةَ فَقَالَ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي فَذَكَرَ الْحَدِيثَ.

واپس راغے، نو حضورؐ اوفرمائیل په ما شړے واچوئے. په ما شړے (کمبل) واچوئے، بیائے پوره حدیث بیان کړه.

باب ۴۵۲: قَوْلِهِ كَلَّا لَئِنْ لَمْ يَنْتَهِ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ.

باب ۴۵۲: آیت: كَلَّا لَئِنْ لَمْ يَنْتَهِ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ. هیڅ کله نه، داسے به نۀ کیږي، که هغوي منع نۀ شي، نو مونږ به ئے ذ تندي ذ ویښتو نه نیولے راکاږو، داسے تندے چه دروغجن دے. خطاکار دے.

۹۴۲: حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ الْجَزَرِيِّ عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ أَبُو جَهْلٍ لَئِنْ رَأَيْتُ مُحَمَّدًا يُصَلِّي عِنْدَ الْكَعْبَةِ لَأَطَأَنَّ عَلَى عُنُقِهِ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْ فَعَلَهُ لَأَخَذَتْهُ الْمَلٰئِكَةُ تَابَعَهُ عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ.

۹۴۲: یحیٰي. عبدالرزاق. معمر. عبدالکریم جزري. عکرمه ابن عباسؓ نه روایت کوي، ذ هغۀ بیان دے، ابوجهل اووے، که زۀ محمد (صلي اللّٰه علیه وسلّم) کعبے سره په مونځ کولو اووینم، نو ذ هغۀ څټ به مات کړمه، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ته دا خبر اُورسید، نو حضورؐ اوفرمائیل، که هغه داسے کوي، نو هغه به فریښته اونیسي. عمرو بن خالد په واسطه ذ عبیداللّٰه، عبدالکریم ددے متابعت کښې روایت اوکړه.

## إِنَّا أَنْزَلْنٰهُ

## ذ سورۀ قدر (انا انزلنٰه) تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يُقَالُ الْمَطْلَعُ هُوَ الطُّلُوعُ وَالْمَطْلِعُ الْمَوْضِعُ الَّذِي يُطْلَعُ مِنْهُ أَنْزَلْنَاهُ الْهَاءُ كِنَايَةٌ عَنِ الْقُرْآنِ أَنْزَلْنَاهُ مَخْرَجَ الْجَمِيعِ وَالْمُنْزِلُ هُوَ اللّٰهُ وَالْعَرَبُ تُوَكِّدُ بِفِعْلِ الْوَاحِدِ فَتَجْعَلُهُ بِلَفْظِ الْجَمِيعِ لِيَكُونَ أَثْبَتَ وَأَوْكَدَ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ذ "مطلع" معني طلوع بیانیږي. او "مطلع" ذ طلوع کیدو ځائے ته هم وائي. "انزلناه" کښې ذ "ه" ضمیر مرجع قرآن دے. صیغه جمع په منزله ذ واحد دے، ځکه چه نازل کونکے اللّٰه دے. او عرب فعل واحد موکد کوي، او لفظ جمع استعمالوي، چه ذ ثبوت زیاتے او تاکید وي.

# لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مُنْفَكِّيْنَ زَائِلِيْنَ قَيِّمَةٌ الْقَائِمَةُ دِيْنُ الْقَيِّمَةِ اَضَافَ الدِّيْنَ اِلَى الْمُؤَنَّثِ.

٩٤٣ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ اِنَّ اللّٰهَ اَمَرَنِيْ اَنْ اَقْرَاَ عَلَيْكَ لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا قَالَ وَ سَمَّانِيْ قَالَ نَعَمْ فَبَكٰى.

٩٤٤ : حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ حَسَّانٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاُبَيٍّ اِنَّ اللّٰهَ اَمَرَنِيْ اَنْ اَقْرَاَ عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ قَالَ اُبَيٌّ آللّٰهُ سَمَّانِيْ لَكَ قَالَ اَللّٰهُ سَمَّاكَ لِيْ فَجَعَلَ اُبَيٌّ يَبْكِيْ قَالَ قَتَادَةُ فَاُنْبِئْتُ اَنَّهُ قَرَاَ عَلَيْهِ لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ.

٩٤٥ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ دَاوٗدَ اَبُوْ جَعْفَرٍ الْمُنَادِيْ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ عَرُوْبَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ

# دَ سورۀ بيّنه (لم يكن الذين) تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"منفكين" لرې كيدونكې. "قيمة" قائميدونكې. "دين القيمه" دين مؤنث طرف ته مضاف كړې شوې دې.

٩٤٣ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده. حضرت انس بن مالك نه روايت كوي، دَ هغهٔ بيان دې، نبي صلي الله عليه وسلّم حضرت اُبي ته اوفرمائيل، الله تعالٰي ماته حكم راكړې دې چه زهٔ ستا مخكښ قرآن اووايم، اُبيؓ تپوس اوكهٔ، آيا الله تعالٰي خما نوم آخستې دې. حضورؐ اوفرمائيل الله تعالٰي ماته ستا نوم واخست، نو اُبيؓ پـه ژړا شـو. (قتاده اووې، ماته بيان اوشو، چه حضورؐ دَ هغهٔ مخكښ "لمن يكن الذين كفروا من اهل الكتاب" اولوست).

٩٤٤ : حسان بن حسان. همام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت كوي، دَ هغه بيان دې، نبي صلي الله عليه وسلّم حضرت ابي ته اوفرماليل الله تعالٰي ماته حكم راكړې دې، چه زهٔ ستا مخكښ قرآن واورم، ابيؓ تپوس اوكهٔ، الله تعالٰي خما نوم تاسوته آخستې دې؟ حضورؐ اوفرمائيل، الله تعالٰي ماته ستا نوم واخست، نو اُبيؓ په ژړا شو. قتاده اووې، ماته بيان اوشو، چه حضورؐ دَ هغهٔ مخكښ "لم يكن الذين كفروا من اهل الكتاب" اولوست.

٩٤٥ : احمد بن داؤد. ابو جعفر منادي. سعيد بن ابي عروبه. قتاده. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، چه نبي صلي الله عليه وسلّم ابي بن كعبؓ ته

مَالِكٍ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِاُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ اِنَّ اللّٰهَ اَمَرَنِيْ اَنْ اُقْرِئَكَ الْقُرْاٰنَ قَالَ آللّٰهُ سَمَّانِيْ لَكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ وَقَدْ ذُكِرْتُ عِنْدَ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ قَالَ نَعَمْ فَذَرَفَتْ عَيْنَاهُ.

اوفرمائيل' الله تعالىٰ ماته حكم راكړے دے' چه زۀ تاته قرآن واوروم. تهوس نے اوكۀ' آيا الله تعالىٰ خما نوم تاسوته آخستے دے' حضورٌ ورته اوفرمائيل چه او' تهوس نے اوكۀ' چه آيا پروردګار عالم سره خما ذكر اوشو حضورٌ ورته اوفرمائيل' او' نو د هغه دواړه ستركے دَ اوښكو نه ډكے شوے ا.

ا. د آيت مضمون دا دے چه "كوم خلق كافران وو د اهل كتابو او مشركانو نه هغوئ باز راتلونكي نه وُو ترڅو پورے چه هغوئ ته واضحه دليل راغلے وے (يعني) د الله يو رسولِ څوک چه هغوئ ته پاكے صحيفے واوروي كومو كښے چه درست مضامين درج وي". د حضور اكرم په ژبه د الله رب العزت په بارګاه كښے د خپلے تذكرے اوريدلو سره د اُبي بن كعب رضي الله عنه د ستركو نه د خوشالئ نه اوښكے روانے شوے. يقيناً دغه وخت به د هغوئ زړه ډَ ويرے او خشوع نه هم ډک شوے وي چه چرته د الله د نعمتونو شكر ادا كولو كښے كوتاهي اونه شي.

## اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ

## دَ سورۀ اذا زلزلت الارض تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

باب ۴۵۳: قَوْلِهٖ فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ يُقَالُ اَوْحٰى لَهَا وَ اَوْحٰى اِلَيْهَا وَ وَحٰى لَهَا وَ وَحٰى اِلَيْهَا وَاحِدٌ.

باب ۴۵۳: آيت: فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ: پس هر چا چه ذره قدرے نيكي اوكړه' نو هغه به اووينى. ونيلے شي' چه "اوحى لها" "اوحى اليها" "وحى لها" "وحى اليها" دَ ټولو يو معنى دي.

۹۴٦: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ لِثَلَاثَةٍ لِرَجُلٍ اَجْرٌ وَ لِرَجُلٍ سِتْرٌ وَ عَلٰى رَجُلٍ وِزْرٌ فَاَمَّا الَّذِيْ لَهٗ اَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا

۹۴٦: اسمٰعيل بن عبدالله. مالک. زيد بن اسلم. ابو صالح سمان. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' دَ هغۀ بيان دے. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' آسونه درے قسمه خلقو سره وي. يو سړي دَ پاره دَ اجر باعث دوئم دَ پاره پرده پوشي او دريم هغه دَ پاره دَ ګناه سبب دے' هغه سړے چه هغۀ دَ پاره دَ اجر سبب دے' نو هغه' هغه سړے دے' چه هغه دَ الله لار كښې تړلے وي' او هغه نے په وړشو (چراګاه) يا باغ كښې

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاَطَالَ لَهَا فِيْ مَرْجٍ اَوْ رَوْضَةٍ فَمَا اَصَابَتْ فِي طِيَلِهَا ذٰلِكَ فِي الْمَرْجِ وَالرَّوْضَةِ كَانَ لَهُ حَسَنَاتٌ وَلَوْ اَنَّهَا قَطَعَتْ طِيَلَهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا اَوْ شَرَفَيْنِ كَانَتْ اٰثَارُهَا وَ اَرْوَاثُهَا حَسَنَاتٍ لَهُ وَلَوْ اَنَّهَا مَرَّتْ بِنَهْرٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ وَلَمْ يُرِدْ اَنْ يُسْقِيَ بِهٖ كَانَ ذٰلِكَ حَسَنَاتٍ لَهُ فَهِيَ لِذٰلِكَ الرَّجُلِ اَجْرٌ وَ رَجُلٌ رَبَطَهَا تَغَنِّيًا وَ تَعَفُّفًا وَّلَمْ يَنْسَ حَقَّ اللّٰهِ فِيْ رِقَابِهَا وَلَا ظُهُوْرِهَا فَهِيَ لَهُ سِتْرٌ وَ رَجُلٌ رَبَطَهَا فَخْرًا وَّ رِئَاءً وَّ نِوَاءً فَهِيَ عَلٰى ذٰلِكَ وِزْرٌ فَسُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحُمُرِ قَالَ مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيَّ فِيْهَا اِلَّا هٰذِهِ الْاٰيَةَ الْفَاذَّةَ الْجَامِعَةَ فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ.

اوږدې رسۍ سره تړلې وي دغې ورشو او باغ كښې ذ هغې رسۍ طول كښې چه كوم خائې پورې رسي هغهٔ ته به ثواب ورکيږي او كه هغې اَس رسۍ اوشلوله يو يا دوه اوچت خايونو بالدې ټوپ كړلو، نو ذ هغه ذ قدم او ټوپ په بدله كښې به ورته ثواب رسي. او كه هغه به يو نهر پوريوتلو، او ذ هغې نه ئې اوبه اوڅکلې حالانكه ذ هغې نه ئې ذ اوبو څکلو قصد نهٔ وو، نو دې كښې هغهٔ ذ پاره نيكۍ دي. دا اَس ذ هغهٔ ذ پاره ذ اجر باعث دې. او كوم سړي چه تجارت كښې ذ نفع حاصلولو ذ پاره او سوال نه بچ كيدو ذ پاره اَس اوتړلو (يعني اوساتلو) او ذ هغهٔ څټ او كردن كښې ئې ذ الله تعالىٰ حق هير نهٔ كړلو (يعني ذ هغې زكوٰة ئې وركهٔ) نو دا هغهٔ ذ پاره پرده پوشي ده. او كوم سړي چه دا ذ فخر او غرور او ريا ذ پاره اوساتلو، نو دا په هغهٔ گناه ده. رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه ذ خرونو متعلق تپوس اوشو، نو حضورؐ اوفرمائيل، ذ دې متعلق په ما سِوا ذ دې جامع آيت نه بل څهٔ آيت نهٔ دې نازل شوې: چه چا ذره قدرې نيكي اوكړه، نو هغه به هغه اوويني، او چا چه ذره قدرې بدي اوكړه، نو هغه به هم اوويني.

## بَابُ ۴۵۴: قَوْلُهٗ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ.

## باب ۴۵۴: آيت: وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ: او چا چه ذره قدرې بدي اوكړه، نو هغه به هم اوويني.

۴۷٩: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ

۴۷٩: يحيٰي بن سليمان. ابن وهب. مالک. زيد بن اسلم. ابو صالح سمان. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، ذ هغهٔ بيان دې. حضور صلي الله عليه وسلّم نه ذ

سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحُمُرِ فَقَالَ لَمْ يُنْزَلْ عَلَيَّ فِيهَا شَيْءٌ إِلَّا هٰذِهِ الْآيَةُ الْجَامِعَةُ الْفَاذَّةُ فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ.

خـرونـو بـاره كـښې تپوس اوشـو' نـو حضـورﷺ اوفرمائيل' ما باندې ذ دې جامع او مانع آيت نه بـوا دې باره كښې بل څـه څيـز نـه دې نـازل شـوې چـه: فـمـن يـعـمـل مثقـال ذرة خيـرا يـره ومن يعمل مثقال ذرة شرا يره.

## سُوْرَةُ وَالْعَادِيَاتِ

## دَ سورهٔ والعاديات تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ لَكَنُوْدٌ اَلْكَفُوْرُ يُقَالُ فَاَثَرْنَ بِهٖ نَقْعًا رَفَعْنَ بِهٖ غُبَارًا لِحُبِّ الْخَيْرِ مِنْ اَجْلِ حُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيْدٌ لَبَخِيْلٌ وَ يُقَالُ لِلْبَخِيْلِ شَدِيْدٌ حُصِّلَ مُيِّزَ.

مجاهد اووې "كـنـود" نه مراد ناشكري كونكې دې. "فـاثـرن بـه نـقـعًا" معني بيانيږي' چه ددې په ذريعه غبار آلوځوي. "لـحـب الـخـيـر" دَ خير دَ محبت دَ سبب نه. "لشـديـد" بـخيل. او بخيل ته شديد وئيلې شي "حصل" معني ميز (جُدا جُدا به كړې شي) دي.

## سُوْرَةُ الْقَارِعَةِ

## دَ سورهٔ القارعه تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوْثِ كَغَوْغَاءِ الْجَرَادِ يَرْكَبُ بَعْضُهُ بَعْضًا كَذٰلِكَ النَّاسُ يَجُوْلُ بَعْضُهُمْ فِيْ بَعْضٍ كَالْعِهْنِ كَاَلْوَانِ الْعِهْنِ وَ قَرَاَ عَبْدُ اللّٰهِ كَالصُّوْفِ.

"كـالـفـراش الـمبثـوث" دَ ملـخانو دَ سيل پـه شان' چه پـه يو بـل بـه غـرځيـږي' دغـه شـان بـه سـړي هم پـه يـو بـل غـرځيـږي "كـالـعـهـن" ډانـډت شوې رنګ پـه رنګـ دَ مالوچو پـه شان. او عبدالله "كالصوف" لوستې دې.

## سُوْرَةُ اَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ

## دَ سُورهٔ الهٰكم التّكاثر تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ التَّكَاثُرُ مِنَ الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ.

حضـرت ابن عباسؓ اووې چه "تكاثر" نه دَ مال او اولاد كثرت مراد دې.

## سُوْرَةُ الْعَصْرِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ يَحْيَى الْعَصْرُ الدَّهْرُ اَقْسَمَ بِهٖ.

## دَ سورۀ والعصر تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يحيٰي اووے "عصر" نه مراد زمانه ده' چه په هغے قسم خوړلے شوے دے.

## وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحُطَمَةُ اسْمُ النَّارِ مِثْلُ سَقَرَ وَ لَظٰى.

## دَ سورۀ ويل لكل هُمَزَة تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"حطمه" دَ اُور نوم دے' څنګه چه "سقر" او "لظٰى" دے.

## سُوْرَةُ اَلَمْ تَرَ كَيْفَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قَالَ مُجَاهِدٌ اَبَابِيْلَ مُتَتَابِعَةً مُجْتَمِعَةً وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مِنْ سِجِّيْلٍ هِيَ سَنْكِ وَ كِلْ.

## دَ سورۀ الم تر كيف تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد اووے. "ابابيل" لګاتار او جُند دڙ جُند (سيلونه) او ابن عباسؓ اووے "سجيل" "معرب" سنګ و ګِل دے.

## سُوْرَةُ لِاِيْلٰفِ قُرَيْشٍ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ لِاِيْلٰفِ اَلِفُوْا ذٰلِكَ فَلَا يَشُقُّ عَلَيْهِمْ فِي الشِّتَآءِ وَ الصَّيْفِ وَ اٰمَنَهُمْ مِنْ كُلِّ عَدُوِّهِمْ فِيْ حَرَمِهِمْ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ لِاِيْلَافِ لِنِعْمَتِيْ عَلٰى قُرَيْشٍ.

## دَ سورۀ لِاِيْلاف قريشٍ تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد اووے "لِاِيْلٰف" معني دا دي' چه دَ هغوي په زړونو کښې نے محبت واچولو. په دے وجه يخني او ګرمي کښې هغوي ته سفر کول ګران نۀ وي "و اٰمنهم" هغوي نے حرم کښې دَ هر دشمن نه په امان کړل. ابن عيينه اووے "لايلاف" معني دا دي' په قريشو خما دَ نعمت دَ سبب نه.

# سُوْرَةُ اَرَءَ يْتَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ يَّدُعُّ يَدْفَعُ عَنْ حَقِّهٖ يُقَالُ هُوَ مِنْ دَعَعْتُ يُدَعُّوْنَ يُدْفَعُوْنَ سَاهُوْنَ لَاهُوْنَ وَالْمَاعُوْنَ الْمَعْرُوْفُ كُلُّهٗ وَ قَالَ بَعْضُ الْعَرَبِ الْمَاعُوْنُ الْمَاءُ وَ قَالَ عِكْرَمَةُ اَعْلَاهَا الزَّكَاةُ الْمَفْرُوْضَةُ وَ اَدْنَاهَا عَارِيَةُ الْمَتَاعِ.

# دَ سورۀ ارء يت تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مجاهد اووے چه "يدع" دَ هغۀ دَ حقه دهکے ورکوي. او وئيلے شي چه دا "دععت" نه ماخوذ دے' "يدعون" دهکے ورکولے شي. "ساهون" لوبے کونکے. او "ماعون" نه مراد هره ښۀ خبره ده. او بعضے عربو اووے' چه ماعون نه مراد اوبه دي. او عکرمه وائي دَ دے بلند ترين درجه خو فرض زکوٰة دے. او ادنٰي مرتبه ئے دَ سامان عاريت ورکول دي.

# اِنَّا اَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ شَانِئَكَ عَدُوَّكَ.

# دَ سورۀ کوثر تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ابن عباسؓ اووے چه شانئک معني عدوک (ستا دشمن) دے.

۹۴۸ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ لَمَّا عُرِجَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّمَآءِ قَالَ اَتَيْتُ عَلٰى نَهْرٍ حَافَتَاهُ قِبَابُ اللُّؤْلُوءِ مُجَوَّفًا فَقُلْتُ مَا هٰذَا يَا جَبْرِئِيْلُ قَالَ هٰذَا الْكَوْثَرُ.

۹۴۸ : آدم. شيبان. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي' دَ هغۀ بيان دے' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم آسمان ته اوخيژولے شو' يعني معراج اوشو' نو حضورؐ اوفرمائيل' زۀ يو نهر ته اورسيدم' دَ هغے په دواړو غاړو دَ ډډو ملغلرو خيمے وے. ما تپوس اوکۀ' اے جبرائيل' دا څۀ دي هغۀ اووے' دا (حوض) کوثر دے.

۹۴۹ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ يَزِيْدَ الْكَاهِلِيُّ حَدَّثَنَا اِسْرَائِيْلُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ اَبِيْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَ سَاَلْتُهَا عَنْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اِنَّا

۹۴۹ : خالد بن يزيد کاهلي. اسرائيل. ابو اسحاق. ابو عبيده. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي' دَ هغے بيان دے' ما دَ هغے نه دَ دے آيت انا اعطيناک الکوثر: متعلق تپوس اوکۀ' نو هغے اووے' دا يو نهر دے'

أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ قَالَتْ نَهْرٌ أُعْطِيَهُ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاطِئَاهُ عَلَيْهِ دُرٌّ مُجَوَّفٌ اٰنِيَتُهُ كَعَدَدِ النُّجُوْمِ رَوَاهُ زَكَرِيَّاءُ وَ اَبُو الْاَحْوَصِ وَ مُطَرِّفٌ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ.

چه ستاسو نبي صلي الله عليه وسلم ته عطا کړې شوې دې. ددې په دواړو غاړو باندې ملغلرې دي (يعني د ملغلرو گنبدونه دي) د دې لوښي د ستورو په شان بيشماره دي. زکريا او ابوالاحوص او مطرف دا د ابو اسحاق نه روايت کړي.

۹۵۰ : حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ قَالَ فِي الْكَوْثَرِ هُوَ الْخَيْرُ الَّذِيْ اَعْطَاهُ اللّٰهُ اِيَّاهُ قَالَ اَبُوْ بِشْرٍ قُلْتُ لِسَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ فَاِنَّ النَّاسَ يَزْعُمُوْنَ اَنَّهُ نَهْرٌ فِي الْجَنَّةِ فَقَالَ سَعِيْدٌ النَّهْرُ الَّذِيْ فِي الْجَنَّةِ مِنَ الْخَيْرِ الَّذِيْ اَعْطَاهُ اللّٰهُ اِيَّاهُ.

۹۵۰ : يعقوب بن ابراهيم. هشيم. ابو بشر. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، چه هغه د کوثر متعلق اووے، هغه خير دے، چه الله تعالي، حضور صلي الله عليه وسلّم له ور کړے دے. ابو بشر اووے، ما سعيد بن جبير ته اووے، خلق گمان کوي، چه دا جنت کښ يو نهر دے، نو سعيد اووے، نهر چه جنت کښ دے، هغه منجمله خير دے، چه الله تعالي حضور صلي الله عليه وسلّم ته عطا کړے دے.

## قُلْ يٰاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ

## دَ قل يٰاَيُّهَا الكافرون تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يُقَالُ لَكُمْ دِيْنُكُمُ الْكُفْرُ وَلِيَ دِيْنِ الْاِسْلَامُ وَلَمْ يَقُلْ دِيْنِيْ لِاَنَّ الْاٰيَاتِ بِالنُّوْنِ فَحُذِفَتِ الْيَاءُ كَمَا يَهْدِيْنِ وَ يَشْفِيْنِ وَ قَالَ غَيْرُهُ لَا اَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ الْاٰنَ وَلَا اُجِيْبُكُمْ فِيْمَا بَقِيَ مِنْ عُمُرِيْ وَلَا اَنْتُمْ عَابِدُوْنَ مَا اَعْبُدُ وَهُمُ الَّذِيْنَ قَالَ وَلَيَزِيْدَنَّ

ستاسو دَ پاره ستاسو دين (يعني کفر) دے، او ما دَ پاره دين اسلام دے. او ديني ئے اونۀ وے، ځکه ددے سورت آيات نون سره دي، نو "يا" حذف کړے شو، لکه چه "يهدين و يشفين" کښ دے او نورو اُووئيلے "لا اعبد ما تعبدون" نه مراد دا دے چه زۀ دَ هغه څۀ عبادت نۀ کوم، دَ کوم چه تاسو دا وخت کوئے، او نۀ ستاسو دعوت زۀ بقيه ژوند کښ منظوروم، او نۀ تاسو دَ هغے چا عبادت کونکي ئے، دَ چا چه زۀ عبادت کوم. او دا هغه خلق دي، چه دَ دوي متعلق الله اوفرمائيل، دوي کښ به دَ ډيرو

كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّ كُفْرًا.

سرکشي زياته کړي، چه، ستا دَ رب دَ جانب نه نازل کړے شوے دے.

# اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ

# دَ سورۀ اذا جآء نصر اللّٰه تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

۹۵۱ : حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ الضُّحٰی عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا صَلَّی النَّبِيُّ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةً بَعْدَ اَنْ نَزَلَتْ عَلَيْهِ اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ اِلَّا يَقُوْلُ فِيْهَا سُبْحٰنَكَ رَبَّنَا وَ بِحَمْدِكَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ.

۹۵۱ : حسن بن ربيع. ابوالاحوص. اعمش. ابوالضحي. مسروق. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، دَ هغے بيان دے، دَ سورة: اذا جاء نصر اللّٰه: نه وروستو چه کله به حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونځ کولو، نو فرمائيل به ئے: سبحانک ربّنا و بحمدک اللهم اغفرلی: يعني اے اللّٰه ته پاک ئے، تاله حمد و ثنا ده، يا اللّٰه ما اوبښے. (يا اللّٰه دَ دے دُعا په خاطر مونږ هم اوبښے. اللهم آمين)

۹۵۲ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِي الضُّحٰی عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ اَنْ يَّقُوْلَ فِيْ رُكُوْعِهٖ وَ سُجُوْدِهٖ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَ بِحَمْدِكَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ يَتَاَوَّلُ الْقُرْاٰنَ.

۹۵۲ : عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. ابوالضحي. مسروق. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، دَ هغے بيان دے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به خپله رکوع او سجود کښې اکثر دا الفاظ فرمائيل: سبحانک اللّٰهم ربّنا وبحمدک اللّٰهم اغفرلی: او دَ قرآن مجيد آيت: فسبّح بحمد ربّک واستغفره: نه اخذ کولو سره به دے به ئے عمل کولو.

باب ۴۵۵ : قَوْلِهٖ وَ رَاَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اَفْوَاجًا.

باب ۴۵۵ : آيت: وَ رَاَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اَفْوَاجًا: او ته به خلق اووينے، چه دَ اللّٰه دين کښې به ډلے ډلے داخليږي.

۹۵۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ

۹۵۳ : عبداللّٰه بن ابي شيبه. عبدالرحمٰن. سفيان. حبيب بن ابي ثابت. سعيد بن جبير. حضرت

سُفْيَانَ عَنْ حَبِيْبِ بْنِ اَبِيْ ثَابِتٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ عُمَرَ سَاَلَهُمْ عَنْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ قَالُوْا فَتْحُ الْمَدَآئِنِ وَالْقُصُوْرِ قَالَ مَا تَقُوْلُ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ اَجَلٌ اَوْ مَثَلٌ ضُرِبَ لِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُعِيَتْ لَهٗ نَفْسُهٗ.

ابن عباسؓ نه روایت کوي. حضرت عمرؓ خلقونه د آیت: اذا جآء نصر الله والفتح. متعلق تپوس وکړ، نو خلقو اووې: دې نه مراد د ښهرونو او محلونو فتح کول دي. هغه اووې: اې ابن عباسؓ په دې حقله ته څه وائې؟ هغه اووې: موده ده یا مثال دې چه محمد صلي الله علیه وسلم د پاره بیان کړې شو، او دَ حضور صلي الله علیه وسلم دَ وفات خبر ورکړې شوې دې.

بــاب ۴۵۶: قَــوْلِــهٖ فَسَبِّحْ بِـحَـمْـدِ رَبِّكَ وَاسْتَـغْـفِـرْهُ اِنَّــهٗ كَانَ تَـوَّابًـا تَـوَّابٌ عَـلَـى الْعِبَادِ وَالتَّـوَّابُ مِـنَ الـنَّـاسِ التَّـآئِـبُ مِنَ الذَّنْبِ.

باب ۴۵۶: آیت: فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ اِنَّهٗ كَانَ تَوَّابًا: او دَ خپل رب تسبیح بیان کړه، او دَ هغه نه مغفرت اوغواړه. بیشکه هغه توبه قبلونکې دې. او "توّاب" که دَ سړو صفت وي، نو معني ئې دَ گناه نه توبه کونکي دي.

۹۵۴: حَــدَّثَــنَــا مُــوْسَــى بْــنُ اِسْـمٰعِيْـلَ حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ عَـوَانَةَ عَـنْ اَبِـيْ بِشْـرٍ عَـنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَـنِ ابْـنِ عَبَّـاسٍ قَـالَ كَـانَ عُـمَـرُ يُدْخِـلُـنِـيْ مَـعَ اَشْيَـاخِ بَدْرٍ فَكَـاَنَّ بَعْضَـهُـمْ وَجَـدَ فِـيْ نَفْسِهٖ فَقَالَ لِمَ تُدْخِـلُ هٰـذَا مَـعَـنَـا وَلَنَا اَبْنَـآءٌ مِثْلُهٗ فَقَـالَ عُـمَـرُ اِنَّـهٗ مِـنْ حَيْثُ عَلِمْتُمْ فَـدَعَـا ذَاتَ يَـوْمٍ فَـاَدْخَلَهٗ مَعَهُمْ فَمَا رُئِيْتُ اَنَّـهٗ دَعَـانِـيْ يَوْمَئِذٍ اِلَّا لِيُرِيَهُمْ قَـالَ مَـا تَـقُوْلُوْنَ فِيْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِذَا جَـآءَ نَـصْـرُ الـلّٰــهِ وَالْـفَتْحُ فَقَـالَ بَـعْـضُـهُـمْ اُمِرْنَا نَحْمَدُ اللّٰهَ وَ نَسْتَغْفِرُهٗ

۹۵۴: موسٰي بن اسمٰعیل. ابو عوانه. ابوبشر. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، حضرت عمرؓ به زهٔ دَ بدر په بوډا گانو کښې کینولم. هغوي کښې دَ بعضو زړهٔ کښې خیال پیدا شو. او وئیلې، چه دې تاسو خمونږ برابر کینوئې، حالانکه خمونږ خلقو خو دَدهٔ په شان خامن دي. حضرت عمرؓ ورته اووې، په دې وجه چه تاسو پوهیږئې، نو یوه ورځ ئې راوغېنتلو، او ابن عباسؓ دَ هغې خلقو په مجلس کښې شریک کړلو، د ابن عباسؓ بیان دې په هغه ورځ ئې زهٔ صرف دې دَ پاره راغُبنتلې ووم، چه هغوي ته معلومه شي. حضرت عمرؓ اووې دَ الله دَ قول: اذا جآء نصر الله والفتح" متعلق تاسو څهٔ وائې. بعضو اووې مونږ ته حکم دې، چه دَ الله حمد بیان کړو. او مغفرت طلب کړو، چه خمونږ مدد او کړې شي، او فتح اوشي.

اِذَا نُصِرْنَا وَ فُتِحَ عَلَيْنَا وَ سَكَتَ بَعْضُهُمْ فَلَمْ يَقُلْ شَيْئًا فَقَالَ لِيْ اَكَذٰلِكَ تَقُوْلُ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ فَقُلْتُ لَا قَالَ فَمَا تَقُوْلُ قُلْتُ هُوَ اَجَلُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْلَمَهُ لَهُ قَالَ اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ وَ ذٰلِكَ عَلَامَةُ اَجَلِكَ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ اِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا فَقَالَ عُمَرُ مَا اَعْلَمُ مِنْهَا اِلَّا مَا تَقُوْلُ.

بعضے خاموش پاتے شو، او هیڅ ئے اونۀ وئیلے، نو حضرت عمرؓ ماته اووے ابن عباسؓ ته هم داسے وائے، ما اووے، نه هغۀ اووے، بیا تۀ څۀ وائے. ما اووے، دا ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم وفات ته اشاره ده، چه ذ هغے خبر اللّٰه حضورؐ له ورکړلو. اللّٰه اوفرمائیل اذا جآء نصر اللّٰه والفتح: دا ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ وفات علامت دے: فسبّح بحمد ربک واستغفره انّه کان توّابا: حضرت عمرؓ اووے، زۀ ذ دے متعلق ذ دے نه زیات نۀ پوهیږم، څنګه چه تۀ وائے.

## تَبَّتْ يَدَآ اَبِيْ لَهَبٍ

## ذ سورۀ تبّت یدا ابی لهب تفسیر

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

تَبَابٌ خُسْرَانٌ تَتْبِيْبٌ تَدْمِيْرٌ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"تباب" معني خسران او "تتبیب" معني تدمیر (هلاک کول) دي.

۹۵۵ : حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ وَ رَهْطَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى صَعِدَ الصَّفَا فَهَتَفَ يَا صَبَاحَاهُ فَقَالُوْا مَنْ هٰذَا فَاجْتَمَعُوْا اِلَيْهِ فَقَالَ اَرَاَيْتُمْ اِنْ اَخْبَرْتُكُمْ اَنَّ خَيْلًا تَخْرُجُ مِنْ سَفْحِ هٰذَا الْجَبَلِ اَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ قَالُوْا مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ كَذِبًا قَالَ فَاِنِّيْ

۹۵۵ : یوسف بن موسٰي. ابو اسامه. اعمش. عمرو بن مره. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، ذ هغۀ بیان دے، هر کله چه دا آیت نازل شولو: و انذر عشیرتک الاقربین (خپل قریبي رشته داران او هغوي کښې خاص خلق اویرَوه) نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم بهر تشریف راوړلو. او کوهِ صفا ته اوختلو. "یا صباحاه" ئے وئیلو سره ئے نعرے کړے، خلقو اووے، دا څوک دے. او حضورؐ سره جمع شو. حضورؐ ورته اوفرمائیل. اُووایئے، که زۀ تاسو ته خبر درکړم، چه ذ دے غر ذ لمن نه یو لښکر راوتونکے دے، نو آیا تاسو به ما ریښتنے اوګڼئے. خلقو اووے، مونږ تا نه دروغ نۀ دي آوریدلي، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائیل، چه

نَذِيْرٌ لَّكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيْدٍ قَالَ اَبُوْ لَهَبٍ تَبًّا لَّكَ مَا جَمَعْتَنَا اِلَّا لِهٰذَا ثُمَّ قَامَ فَنَزَلَتْ تَبَّتْ يَدَا اَبِيْ لَهَبٍ وَّ تَبَّ وَقَدْ تَبَّ هٰكَذَا قَرَاَهَا الْاَعْمَشُ يَوْمَئِذٍ.

زۀ تاسو ذ سخت عذاب نه ويروم. ابولهب اووے "تبالک" (تۀ هلاک شے) آيا تا مونږ دے ذ پاره راجمع کړے وو، بيا هغه پاسيد، لاړ. نو آيت: تبت يدا ابی لهب وتب" نازل شولو. اعمش به هغه ورځ داسے ولوستے وو "ما اغنٰى عنه ماله وما كسب".

١. د دشمن ذ حملې خطرے وخت کښے به عربو خپل قوم له خبرداري ور کولو د پاره دا چغه وهله. نبي عليه السلام هم د هغوئ د کفر او شرک او جهالت خلاف هغوئ له خبردارے ور کول اوپړزل وو دے د پاره نبي عليه السلام هغوئ ته هغه شان چغه اووهله څرنګ به چه د دشمن د خطرے وخت کښے وهلے کيده.

## بَابٌ ۴۵۷: قَوْلِهٖ وَتَبَّ مَا اَغْنٰى عَنْهُ مَالُهٗ وَمَا كَسَبَ.

باب ۴۵۷: آيت: مَا اَغْنٰى عَنه ماله وما كسب تفسير.

۹۵۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ اِلَى الْبُطْحَآءِ فَصَعِدَ اِلَى الْجَبَلِ فَنَادٰى يَا صَبَاحَاهُ فَاجْتَمَعَتْ اِلَيْهِ قُرَيْشٌ فَقَالَ اَرَاَيْتُمْ اِنْ حَدَّثْتُكُمْ اَنَّ الْعَدُوَّ مُصَبِّحُكُمْ اَوْ مُمَسِّيْكُمْ اَكُنْتُمْ تُصَدِّقُوْنِيْ قَالُوْا نَعَمْ قَالَ فَاِنِّيْ نَذِيْرٌ لَّكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيْدٍ فَقَالَ اَبُوْ لَهَبٍ اَلِهٰذَا جَمَعْتَنَا تَبًّا لَّكَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ تَبَّتْ يَدَا اَبِيْ لَهَبٍ الخ.

۹۵۶: محمد بن سلام. ابو معاويه. اعمش. عمرو بن مره. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم بطحاء طرف ته تشريف يوړلو. غر ته اوختلو، نعرے ئے کړے "يا صباحاه" قريش ورته راجمع شو، نو حضورؐ ورته اوفرمائيل، اووائے که زۀ تاسو ته بيان کړم، چه دشمن سحر يا مابنام په تاسو حمله کونکے دے، نو آيا تاسو به ما ريښتنے اوګڼړئے. خلقو اووے، او، نو حضورؐ ورته اوفرمائيل، زۀ تاسو ذ سخت عذاب نه ويروم، ابولهب اووے، آيا مونږ دِ دے ذ پاره راجمع کړے يو، تۀ هلاک شے، نو اللّٰه تعالٰي سورۀ تبت يدا ابی لهب وتب: آخر پورے نازل کړلو.

## بَاب ۴۵۸: قَوْلِهٖ سَيَصْلٰى نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ.

باب ۴۵۸: ايت: سَيَصْلٰى نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ: عنقريب هغه به شعلے کونکي اور کښ داخل شي.

۹۵۷: حَدَّثَنَا عُمَرُو بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اَبُوْ لَهَبٍ تَبًّا لَكَ اَلِهٰذَا جَمَعْتَنَا فَنَزَلَتْ تَبَّتْ يَدَا اَبِيْ لَهَبٍ.

۹۵۷: عمرو بن حفص. اعمش. عمرو بن مره. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه ابولهب اووے تهٔ هلاک شے، آيا تا مونږ دے خبرے دَ پاره راټول كړے وو، نو: تبت يدا ابى لهب: نازل شولو.

باب ۴۵۹: قَوْلُهٗ وَامْرَاَتُهٗ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ تَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ فِيْ جِيْدِهَا حَبْلٌ مِّنْ مَّسَدٍ يُقَالُ مِنْ مَّسَدٍ لِيْفِ الْمُقْلِ وَ هِيَ السِّلْسِلَةُ الَّتِيْ فِي النَّارِ.

باب ۴۵۹: آيت: وَامْرَاَتُهٗ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ: او دَ هغهٔ ښځه به داخله شي، چه لرګي راوړي. مجاهد اووے "حمالة الحطب" نه مراد دا دے، چه چغلي به ئے خوړله. "في جيدها حبل من مسد" (دَ هغے په غاړه كښې به دَ مونجو رسئ وي)[1] متعلق وئيلے شي، چه "مسد" نه مراد دَ قجورے دَ ريشے نه مضبوطه غښتلے شوے رسئ. دلته ترے مراد هغه زنځير دے، چه دوزخ كښې به دَ هغے په غاړه كښې وي.

[1]. يعني په كومے رسئ سره به ئے چه دَ خشاكو كيلوے تړلو او دَ ځنګل نه به ئے راوړلو يوه ورځ همدغه شان هغے كيلوے راوړلو، رسئ د هغے مَرني ته پريوتے وه، چه ستړے شوه نو په يو كاڼړي باندے دَمے د پاره كيناسته. يوه فرشته د روستو نه راغله او د هغے رسئ ئے راښكله او مرئي ئے ورله خپه كړه، مطلب دادے چه په آيت كښے همغه رسئ مراد ده.

# قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ

# دَ سوره قُل هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ تفسير

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يُقَالُ لَا يُنَوَّنُ اَحَدُ اَيْ وَاحِدٌ.

بعضے وائي، چه "احد" سره تنوين نشته. دے نه مراد واحد دے.

۹۵۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ

۹۵۸: ابواليمان. شعيب. زهري. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، الله فرمائي، زهٔ ابن آدم دروغجن كړم حالانكه هغهٔ دَ پاره

اللّٰهُ كَذَّبَنِي ابْنُ اٰدَمَ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذٰلِكَ وَ شَتَمَنِي وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذٰلِكَ فَاَمَّا تَكْذِيْبُهُ اِيَّايَ فَقَوْلُهُ لَنْ يُّعِيْدَنِيْ كَمَا بَدَاَنِيْ وَ لَيْسَ اَوَّلُ الْخَلْقِ بِاَهْوَنَ عَلَيَّ مِنْ اِعَادَتِهِ وَ اَمَّا شَتْمُهُ اِيَّايَ فَقَوْلُهُ اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا وَ اَنَا الْاَحَدُ الصَّمَدُ لَمْ اَلِدْ وَلَمْ اُوْلَدْ وَلَمْ يَكُنْ لِّيْ كُفُوًا اَحَدٌ.

دا مناسب نه وو، خما دروغجن کول، خو هغه دا قول دے، چه وائي چه ما به دوباره نۀ راژوندے کوي، ځنګه چه زۀ ئے شروع کښې پيدا کړم، حالانکه دَ ورمبي ځل پيدا کول په ما دَ هغۀ دَ دوباره پيدا کولو نه آسان نه دي[1] (يعني په دوباره پيدا کول ئے دَ ورمبني ځل نه هم اسان دي) او دَ هغۀ ماته کنځل کول دَ هغه دا قول دے، چه اللّٰه تعالٰي ځوے جوړ کړے دے، حالانکه زۀ يو، يم، بے نيازه يم، نۀ مانه څوک پيدا دي او نۀ زۀ دَ چا نه پيدا يم، او نۀ څما څوک همسر شته.

١. يعني اللّٰه د پاره دواړه برابر دي او د هر څيز عدم او وجود صرف د هغه په اشارے او حکم باندے موقوف دے. ليکن دا واقعه د انساني فهم مطابق خبره کيږي چه کوم اللّٰه د څه نمونے نه بغير انسان پيدا کړے دے، نو آيا د وژلو نه پس دوباره ده لره پيدا کولے نشي.

## بَاب ٤٦٠: قَوْلِهِ اللّٰهُ الصَّمَدُ

وَالْعَرَبُ تُسَمِّيْ اَشْرَافَهَا الصَّمَدَ قَالَ اَبُوْ وَآئِلٍ هُوَ السَّيِّدُ الَّذِيْ اِنْتَهٰى سُوْدَدُهُ.

## باب ٤٦٠: آيت: اَللّٰهُ الصَّمَدُ: اللّٰه بے نيازه دے.

عرب خپل سردار ته "صمد" وائي. او ابو وائل اووے. "صمد" هغے سردار ته وائي، چه په هغۀ سرداري ختم وي.

٩٥٩: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ قَالَ وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ كَذَّبَنِيْ ابْنُ اٰدَمَ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذٰلِكَ وَ اَمَّا تَكْذِيْبُهُ اِيَّايَ وَ اَمَّا شَتْمُهُ اِيَّايَ اَنْ يَقُوْلَ اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا وَّ اَنَا الصَّمَدُ الَّذِيْ لَمْ اَلِدْ وَلَمْ

٩٥٩: اسحاق بن منصور. عبدالرزاق. معمر. هشام. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اللّٰه تعالٰي فرمائي، زۀ ابن اٰدم دروغجن کړم حالانکه هغۀ دَ پاره دا مناسب نه وو. او ماته ئے کنځل اوکړل، حالانکه هغۀ دَ پاره دا مناسب نۀ وو. او دَ هغۀ څما دروغجن کول خو، دَ هغه دا وينا وه، چه زه به هغه دوباره نه ژوندے کوم، څرنګ چه ما په ورمبني ځل پيدا کړلو، او ماته دَ هغۀ کنځل کول دا دي، چه اللّٰه تعالٰي ځوے جوړ کړے دے. حالانکه زۀ بے نيازه بادشاه يم نۀ

أَوْلَدُ وَلَمْ يَكُنْ لِيْ كُفُوًا أَحَدٌ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ كُفُوًا وَ كَفِيْئًا وَ كِفَاءٌ وَاحِدٌ.

مانه څوک پیدا دے او نه زۀ چا نه پیدا یم' او نۀ څما څوک همسر شته. (آیت) نۀ هغۀ نه څوک پیدا دے' او نـۀ هغه چا نـه پیدا دے' او نۀ ذ هغۀ څوک برابر شته. "كفوًا" كفيئًا" "كفاء" یو معني دي.

# قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ

# دَ سورۀ قل اعوذ برب الفلق تفسیر

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ غَاسِقُ اللَّيْلِ إِذَا وَقَبَ غُرُوْبُ الشَّمْسِ يُقَالُ أَبْيَنُ مِنْ فَرَقِ الصُّبْحِ وَ فَلَقِ الصُّبْحِ وَقَبَ إِذَا دَخَلَ فِيْ كُلِّ شَيْءٍ وَّ أَظْلَمَ.

مجاهد اووے "غاسق" نه مراد شپه ده. "إذا وقب" مراد دَ نمر غروب کیدل دي. "ابین من فرق و فلق الصُّبحِ" (دَ سحر دَ نمودار کیدو نه زیات واضحه دے) دَ فرق او فلق یو معني دي "وقب" هر کله چه هر څیز کښ داخل شو' او تاریکي خوره شوه.

۹۶۰ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَاصِمٍ وَّ عَبْدَةَ عَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ قَالَ سَأَلْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ عَنِ الْمُعَوَّذَتَيْنِ فَقَالَ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ قِيْلَ لِيْ فَقُلْتُ فَنَحْنُ نَقُوْلُ كَمَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۹۶۰ : قتیبه بن سعید. سفیان. عاصم او عبده. زر بن جبیش نه روایت کوي' دَ هغۀ بیان دے' ما دَ حضرت ابي بن کعبؓ نه معوذتین باره کښ تپوس اوکۀ' نو هغۀ اووے ماته ښودلے شوے دي' چه (دا دَ قرآن نه دي) زۀ هم دغسے وایم' نو مونږ هم هغه وایو' څۀ چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلي دي.

# قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ

# دَ سورۀ قل اعوذ برب النّاس تفسیر

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ الْوَسْوَاسُ إِذَا وُلِدَ خَنَسَهُ الشَّيْطَانُ فَإِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ ذَهَبَ وَ إِذَا لَمْ يُذْكَرِ اللّٰهُ ثَبَتَ

او ابن عباسؓ نه دَ "وسواس" په تفسیر کښ منقول دي' چه بچے پیدا کیږي' نو شیطان هغه مَس کوي' که دَ اللّٰه تعالي ذکر کیږي' نو شیطان تښتي' او که دَ اللّٰه ذکر نۀ

عَلٰى قَلْبِهٖ.

کيږي' نو دَ هغهٔ په زړه کلک شي.

۴۹۶۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ اَبِيْ لُبَابَةَ عَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ وَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنْ زِرٍّ قَالَ سَاَلْتُ اُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ قُلْتُ يَا اَبَا الْمُنْذِرِ اِنَّ اَخَاكَ ابْنَ مَسْعُوْدٍ يَقُوْلُ كَذَا وَ كَذَا فَقَالَ اُبَيٌّ سَاَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِيْ قِيْلَ لِيْ فَقُلْتُ قَالَ فَنَحْنُ نَقُوْلُ كَمَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۴۹۶۱: علي بن عبدالله. سفيان. عبده بن لبابه. زر بن جبيش نه او عاصم زر نه روايت کوي' دَ هغهٔ بيان دے. ما ابي بن کعب ته اُووے چه اے ابوالمنذر' ستاسو وروړ ابن مسعود داسے داسے وائي (يعني دا چه معوذتين دَ قرآن نه نهٔ دي) نو اُبي اووے' ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه تپوس کړے وو' نو حضور صلي الله عليه وسلّم ماته اوفرمائيل' ماته وئيلے شوے دي (چه دا دَ قرآن نه دي) نو زهٔ هم هغه وايم. ابي اووے. او مونږ هم دغسے وايو' کوم چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي[1].

[1]. ابن مسعود رضي الله عنه طرفته دا خبره منسوب کيږي چه هغوئ فرمائيل چه "معوّذتين" د قرآن نه ندي بلکه د هغوئ دا خيال وو چه دا آيتونه ذ وقتي ضرورت د پاره نازل شوي وو ځنګه چه اَعوذُ بالله ده. دے د پاره دا په قرآن کښے داخلول صحيح نه دي. هغوئ به وئيل چه پخپله د معوذتينو ابتداء دَ قُلْ نه شوے ده (يعني تـه اووايه) ددے نه معلوميږي چه د نورو دعاګانو پشان ددے هم هغوئ ته تعليم ورکړے شوے وو.

ډيرو عالمانو ابن مسعود رضي الله عنه طرفته ددے قول نسبت ذ سره غلط ګرځولے دے او ددے سند له ئے کمزورے وئيلے دے. نووئ خو تردے پورے ليکلي دي چه د ټولو مسلمانانو په دے باندے اتفاق دے چه معوّذتين او سورت فاتحه د قرآن مجيد جز دي. که څوک د اُمت ددے اجماع نه خلاف څوک دا نهٔ مني او په دے کښے د يو سورت نه هم انکار کوي نو دا کفر دے. هغوئ دا هم ليکلي دي چه ابن مسعود رضي الله عنه طرفته ددے قول نسبت باطل او بے بنياد دے. ابن حزم هم دا خبره په ابن مسعود رضي الله عنه باندے يو تهمت ګرځولے دے.

عالمانو په تفصيل سره د ابن مسعود رضي الله عنه قرات نقل کړے دے' د هغوئ ټولو شاګردانو څوک چه د قرآن د قرات امامان دي او د هغوئ نه قرات نقل کوي هغوئ ټول معوذتين د قرآن جز مني' ابن مسعود رضي الله عنه به هر کال په مسجد نبوي کښے تراويح ورکولے. ظاهره ده چه هغوئ به معوذتين هم لوستل' ليکن د ابن مسعود رضي الله عنه نه په هيڅ موقعه کښے دا ثابته نه ده چه هغوئ ددے د قرآن والي نه انکار کړے وي' په دے وجه ابن مسعود رضي الله عنه طرفته ددے قول نسبت قطعاً لغوه او بے بنياده دے. په کوم سند سره چه دا قول نقل کړے شوے دے د هغے بعضے راويان محدثينو کمزوري ليکلي دي. ددے نه هم قطع نظر د ټول اُمت په دے باندے اتفاق دے چه معوذتين هم د قرآن جز دي. ابن مسعود رضي

اللّٰه عنه طرفته که چرے د انکار نسبت صحیح هم اومنلے شي نو د کومو روایتونو نه چه دا ثابتیږي په هغے کښے دا چرته نشته چه ابن مسعود رضي اللّٰه عنه ددے ذ وحي الٰهي او تالیف سماوي نه انکار کړے وي، صرف دومره خبره معلومیږي چه د هغوئ په نزد معوذتین د قرآن مجید نه ممتاز او بو بیل څیز دے. بالکل همدا صورت د احنافو او بعضو نورو امامانو په نزد د بسم اللّٰه ګڼلدے دے چه وحي منزل خو دا د ټولو په نزد ده، صرف د احنافو په نزد ددے هغه حکم نه دے کوم چه د قرآن مجید د نورو ټولو سورتونو دے. یعني احناف دا مَني چه بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ هم د قرآن مجید یو آیت دے لیکن ددے باوجود یو حیثیت سره دا خارجه هم ګڼړي او د قرآن مجید نورو ټولو سورتونو او په دے کښے په بعضو احکامو کښے فرق کوي. مثلاً دا چه په جهري مونځونو کښے د احنافو په نزد بسم اللّٰه جهر سره لوستل نه دي پکار. همدا قسمه رائے به (که چرے دغه نسبت صحیح اومَنلے شي) د ابن مسعود رضي اللّٰه عنه د معوذتینو په باره کښے وي.

# فَضَائِلُ الْقُرْاٰنِ

# (دَ قراٰن دَ فضائلو بیان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

بَـــابُ ۴۶۱: کَیْفَ نُـــزُوْلُ الْـوَحْيِ وَ اَوَّلُ مَا نَزَلَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْـمُهَیْمِنُ الْاَمِیْنُ الْقُرْاٰنُ اَمِیْنٌ عَلٰی کُلِّ کِتَابٍ قَبْلَهٗ.

باب ۴۶۱: دَ وحـي دَ نازلیدو کیفیت او دَ ټولو نه مـخـکـښ څهٔ نازل شولو. ابن عباسؓ اووے "مهیمن" معـنـي آمین ده، یعني قرآن دَ ځان نه دَ مخکښ کتابونو حفاظت کونکے دے.

۹۶۲: حَـدَّثَـنَـا عُبَیْدُ اللّٰهِ بْنُ مُـوْسٰـی عَـنْ شَیْبَانَ عَنْ یَحْیٰی عَنْ اَبِـیْ سَـلَـمَةَ قَـالَ اَخْبَـرَتْنِیْ عَـآئِشَةُ وَابْـنُ عَبَّـاسٍؓ قَـالَا لَبِثَ النَّبِيُّ صَلَّی اللّٰـهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بِمَکَّةَ عَشَرَ سِنِیْنَ یُنْزَلُ عَلَیْهِ الْقُرْاٰنُ وَ بِالْمَدِیْنَةِ عَشْرًا.

۹۶۲: عـبـداللّٰـه بـن مـوسٰـي. شیبان. یحیٰي. ابو سـلـمـه. بـي بـي عائشہؓ او حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، ددے دواړو بیان دے، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم مـکـه کـښ لـس کـالـه او مدینه کښ لس کاله پاتے شو، داسے حال کـښ چه پـه حـضـور صلي اللّٰه علیه وسلّم قرآن نازلیدو.

۹۶۳: حَـدَّثَـنَـا مُـوْسَـی بْـنُ اِسْـمٰعِیْـلَ حَـدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ اَبِـیْ عَـنْ اَبِـیْ عُثْمَانَؓ قَالَ اُنْبِئْتُ اَنَّ جِبْـرِیْلَ اَتَی النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَـلَّـمَ وَ عِـنْـدَهٗ اُمُّ سَـلَـمَةَ فَجَعَلَ

۹۶۳: موسٰي بن اسمٰعیل. معتمر. دَ معتمر پلار. ابـو عثـمـان نه روایت کوي، دَ هغهٔ بیان دے زهٔ خبر کړے شـوم، چـه جـبـرائـیـلؑ دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کـښ حاضر شو، دغه وخت حضورؐ سره اُم سلمہؓ هم وَه، هغوي خبرے کولے. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اُم سلمہؓ ته

يَتَحَدَّثُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاُمِّ سَلَمَةَ مَنْ هٰذَا اَوْ كَمَا قَالَ قَالَتْ هٰذَا دِحْيَةُ فَلَمَّا قَامَ قَالَتْ وَاللّٰهِ مَا حَسِبْتُهُ اِلَّا اِيَّاهُ حَتّٰى سَمِعْتُ خُطْبَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخْبِرُ خَبَرَ جِبْرِيْلَ اَوْ كَمَا قَالَ قَالَ اَبِيْ قُلْتُ لِاَبِيْ عُثْمَانَ مِمَّنْ سَمِعْتَ هٰذَا قَالَ مِنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ.

اوفرمائيل دا څوک دے. يا دغه شان حضورؐ څۀ اوفرمائيل اُمّ سلمۀ اووے، دا دِحيۀ دے. کوم وخت چه جبرئيل عليه السلام پاسيدلو، نو اُم سلمۀ اووے څما په خيال دا دِحيۀ دے، حتي چه ما دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خطبه واوريده، چه حضورؐ دَ جبرئيلؑ خبر ورکوي، يا دغسے حضورؐ څۀ اوفرمائيل دَ معتمر بيان دے؛ څما پلار اووے. ما دَ ابو عثمان نه تپوس اوکۀ، چه تا دا حديث دَ چا نه آوريدلے دے، نو هغۀ اووے، دَ اسامه بن زيد نه.

۹۶۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنَ الْاَنْبِيَاءِ نَبِيٌّ اِلَّا اُعْطِيَ مَا مِثْلُهُ اٰمَنَ عَلَيْهِ الْبَشَرُ وَ اِنَّمَا كَانَ الَّذِيْ اُوْتِيْتُ وَحْيًا اَوْ حَاهُ اللّٰهُ اِلَيَّ فَارْجُوْ اَنْ اَكُوْنَ اَكْثَرَهُمْ تَابِعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

۹۶۴: عبداللّٰه بن يوسف. ليث. سعيد مقبري دَ خپل پلار نه، هغه دَ حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، دَ هغۀ بيان دے، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، هر نبي ته دَ هغه مثل (معجزات) ورکړے شوے دي، څومره خلقو چه په هغۀ ايمان راوړلو، او ماته قرآن راکړے شوے دے، هغه وحي ده، چه اللّٰه تعالٰي ماته راليږلے ده. په دے وجه زۀ اُميد کوم، چه دَ قيامت په ورځ به څما پيروي کونکي دَ ټولونه زيات وي.

۹۶۵: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى تَابَعَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ وَفَاتِهٖ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اَكْثَرَ مَا كَانَ الْوَحْيُ ثُمَّ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۹۶۵: عمر بن محمد. يعقوب بن ابراهيم. صالح بن کيسان. ابن شهاب. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، دَ هغۀ بيان دے اللّٰه تعالٰي په خپل رسول صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ وفات نه مخکښې متواتر وحي اوليږلے تر دے چه دَ حضورؐ آخري عمر کښې دَ مخکښې دَ اعتبار نه وحي کثرت سره راتلے. بيا دے نه پس رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم وفات

وَسَلَّمَ بَعْدُ.

شو.

٩٦٦: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدُبًا يَقُولُ اشْتَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَقُمْ لَيْلَةً أَوْ لَيْلَتَيْنِ فَأَتَتْهُ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ يَا مُحَمَّدُ مَا أُرٰى شَيْطَانَكَ إِلَّا قَدْ تَرَكَكَ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَالضُّحٰى وَاللَّيْلِ إِذَا سَجٰى مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى.

٩٦٦: ابو نعيم. سفيان. اسود بن قيس نه روايت كوي، ذ هغه بيان دے، ما ذ جندب نه واوريدل نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ناروغه شو، نو يوه يا دوه شپے حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم تهجد ذ پاره اونه دريدے شو. يوه ښځه ذ حضورؐ خدمت كښ حاضره شوه. او، وئيلے، اے محمد (صلي اللّٰه عليه وسلّم) زهٔ وينم، چه ستا شيطان ته پريښے دے، نو اللّٰه تعالٰي آيت: والضحي والّيل اذا سجي ما ودّعك وما قلٰي: نازل كړلو.

بَابُ ٢٦٢: نَزَلَ الْقُرْآنُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ وَالْعَرَبِ قُرْآنًا عَرَبِيًّا بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُبِيْنٍ.

باب ٢٦٢: قرآن ذ قريشو او عربو په ژبه كښ نازل شو. "قرانًا عَرَبِيًّا" نه مراد دا دے، چه قرآن واضحه عربي ژبه كښ نازل شوے دے.

٩٦٧: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ أَخْبَرَنِيْ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ فَأَمَرَ عُثْمَانُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ وَ سَعِيْدَ بْنَ الْعَاصِ وَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ أَنْ يَّنْسَخُوْهَا فِي الْمَصَاحِفِ وَ قَالَ لَهُمْ إِذَا اخْتَلَفْتُمْ أَنْتُمْ وَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ فِيْ عَرَبِيَّةٍ الْقُرْآنِ فَاكْتُبُوْهَا بِلِسَانِ قُرَيْشٍ فَإِنَّ الْقُرْآنَ أُنْزِلَ بِلِسَانِهِمْ فَفَعَلُوْا.

٩٦٧: ابواليمان. شعيب. زهري. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، حضرت عثمانؓ. زيد بن ثابت او سعيد بن عاصؓ او عبداللّٰه بن زبيرؓ او عبدالرحمٰن بن حارث بن هشامؓ ته حكم اوكهٔ، چه قرآن مصاحف كښ اوليكي، او هغوي ته ئے اووے، هر كله چه ستاسو او ذ زيد بن ثابت مينځ كښ ذ قرآن عربيت كښ اختلاف راشي، نو هغه ذ قريشو ژبه كښ ليكئے. ځكه چه قرآن ذ دوي په محاوره كښ نازل شوے دے. نو هغے خلقو دغسے اوكړل.

٩٦٨: حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا عَطَاءٌ وَّ قَالَ مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ

٩٦٨: ابو نعيم. همام. عطاء. (دويم سند) مسدد. يحيٰي. ابن جريج. عطاء. صفوان بن يعلي بن اميه نه روايت كوي، يعلٰي به وئيلے كاش چه ما هغه وخت

ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ قَالَ أَخْبَرَنِيْ صَفْوَانُ بْنُ يَعْلٰى بْنِ أُمَيَّةَ أَنَّ يَعْلٰى كَانَ يَقُوْلُ لِعُمَرَ أَرِنِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ يَنْزِلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فَلَمَّا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ بِالْجِعِرَّانَةِ عَلَيْهِ ثَوْبٌ قَدْ أُظِلَّ عَلَيْهِ وَمَعَهُ نَاسٌ مِّنْ أَصْحَابِهِ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ مُتَضَمِّخٌ بِطِيْبٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ تَرٰى فِيْ رَجُلٍ أَحْرَمَ فِيْ جُبَّةٍ بَعْدَ مَا تَضَمَّخَ بِطِيْبٍ فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاعَةً فَجَاءَهُ الْوَحْيُ فَأَشَارَ عُمَرُ إِلٰى يَعْلٰى أَنْ تَعَالَ فَجَاءَ يَعْلٰى فَأَدْخَلَ رَأْسَهُ فَإِذَا هُوَ مُحْمَرُّ الْوَجْهِ يَغِطُّ كَذٰلِكَ سَاعَةً ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَقَالَ أَيْنَ الَّذِيْ يَسْأَلُنِيْ عَنِ الْعُمْرَةِ آنِفًا فَالْتُمِسَ الرَّجُلُ فَجِيْءَ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَمَّا الطِّيْبُ الَّذِيْ بِكَ فَاغْسِلْهُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَأَمَّا الْجُبَّةُ فَانْزِعْهَا ثُمَّ اصْنَعْ فِيْ عُمْرَتِكَ كَمَا تَصْنَعُ فِيْ حَجِّكَ.

رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدلے کوم وخت چه پرے وحي نازليږي. رسول الله صلي الله عليه وسلم مقام جعرانه کښې وو. يوه کپړه په حضورؐ پرته وه، چه په حضورؐ لے سورے کړے وو. او حضورؐ سره صحابهؓ هم وو، ديے کښې يو سړے د حضورؐ په خدمت کښې حاضر شو، چه خوشبوي لړے ختله. هغهٔ عرض اوکړ، يا رسول الله، د هغے سړي باره کښې تاسو څهٔ فرمائے چه هغه جُبّه کښې د حج احرام تړلے وي، او هغهٔ نه خوشبوئي خوزي، نبي صلي الله عليه وسلم لږ ساعت انتظار اوکړلو، نو حضورؐ بانديے وحي راغلے، حضرت عمرؓ يعليٰ طرف ته اشاره اوکړه، چه دلته راشه يعليٰ راغے، او خپل سر لے دننه داخل کړ (نو وے ليدل چه) هغه وخت د حضورؐ مخ مبارک سُر (سرخ) وو. او د خَر خَر، آواز ترے راختلو (لکه خوب کښې چه سړے خَرا کوي) لږ ساعت د حضورؐ دغه حالت وو. بيا دغه کيفيت د حضورؐ نه لرے شو. نو حضورؐ اوفرمائيل، هغه سړے چرته دے، چه اوس نے د عمرے متعلق تپوس کولو. يو سړي د هغه تلاش اوکړلو، او د نبي صلي الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر کړے شو. حضورؐ ورته اوفرمائيل، کومه خوشبوي چه تا پورے ده، هغه درے خله اووينزه. او جُبّه کوزه کړه. بيا عمره کښې هغه اعمال اوکړه، کوم چه حج کښې کوے.

باب۴۶۳: جَمْعِ الْقُرْاٰنِ.

باب۴۶۳: د قرآن د جمع کولو بيان.

۹۶۹: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ إِسْمٰعِيْلَ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ بْنِ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ السَّبَّاقِ أَنَّ

۹۶۹: موسيٰ بن اسمٰعيل. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. عبيد بن سباق. حضرت زيد بن ثابت نه روايت کوي، د هغه بيان دے، د يمامه د

زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ أَرْسَلَ إِلَيَّ أَبُو بَكْرٍ مَقْتَلَ أَهْلِ الْيَمَامَةِ فَإِذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عِنْدَهُ قَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّ عُمَرَ أَتَانِي فَقَالَ إِنَّ الْقَتْلَ قَدِ اسْتَحَرَّ يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِقُرَّاءِ وَ إِنِّي أَخْشَى أَنْ يَسْتَحِرَّ بِالْقُرَّاءِ بِالْمَوَاطِنِ فَيَذْهَبَ كَثِيرٌ مِنَ الْقُرْآنِ وَ إِنِّي أَرَى أَنْ تَأْمُرَ بِجَمْعِ الْقُرْآنِ قُلْتُ لِعُمَرَ كَيْفَ تَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُمَرُ هٰذَا وَاللّٰهِ خَيْرٌ فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَاجِعُنِي حَتّٰى شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرِي لِذٰلِكَ وَ رَأَيْتُ فِي ذٰلِكَ الَّذِي رَأَى عُمَرُ قَالَ زَيْدٌ قَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّكَ رَجُلٌ شَابٌّ عَاقِلٌ لَا نَتَّهِمُكَ وَقَدْ كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَتَبَّعِ الْقُرْآنَ فَاجْمَعْهُ فَوَاللّٰهِ لَوْ كَلَّفُونِي نَقْلَ جَبَلٍ مِنَ الْجِبَالِ مَا كَانَ أَثْقَلَ عَلَيَّ مِمَّا أَمَرَنِي بِهِ مِنْ جَمْعِ الْقُرْآنِ قُلْتُ كَيْفَ تَفْعَلُونَ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هُوَ وَاللّٰهِ خَيْرٌ فَلَمْ يَزَلْ أَبُو بَكْرٍ يُرَاجِعُنِي حَتّٰى شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرِي لِلَّذِي شَرَحَ لَهُ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ وَ عُمَرَ فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْآنَ أَجْمَعُهُ مِنَ الْعُسُبِ وَاللِّخَافِ وَ صُدُورِ الرِّجَالِ حَتّٰى

خونړیزۍ زمانه کښې زهٔ حضرت ابوبکرؓ راوغوښتلم هغه وخت حضرت عمرؓ هم ورسره ناست وو حضرت ابوبکر اووے، حضرت عمر ماله راغلے، او وئیلے، جنګ یمامه کښې ډیر قرآن خوانان شهیدان شو. او ما سره ویره ده، چه نورو ډیرو جنګونو کښې به هم قاریان اووژلے شي دَ حضرت ابوبکرؓ بیان دے. ما حضرت عمرؓ ته اووے تهٔ هغه کار څنګه کوے، کوم چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم نهٔ دے کړے. حضرت عمرؓ اووے قسم په خدائے دا کار ډیر بهتر دے، او عمرؓ ماته بار بار اصرار کولو، تردے چه الله تعالیٰ دے کار دَ پاره څما سینه پرانسته. او ما هم دَ دے کار مناسب خیال اوکهٔ، څنګه چه دَ عمرؓ خیال وو. دَ زید بیان دے. حضرت ابوبکر ماته اووے، تهٔ یو ځلمے سړے ئے، مونږ تا متهم کولے هم نهٔ شو. او تا به رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ پاره وحي لیکله، نو قرآن تلاش کړه او راجمع ئے کړه. په خدائے مِ دے قسم وي، که ماته ئے دَ یو غر دَ اوچتولو تکلیف راکړے وے، نو دَ قرآن دَ جمع کولو مقابله کښې به ماته زیات وزني نهٔ وے. ما اووے، هغه کار تاسو څنګه کوئے، کوم چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم نهٔ دے کړے. حضرت ابوبکرؓ اووے، قسم په خدائے دا خیر دے. او بار بار اصرار سره ئے ماته وئیلے، تردے چه دے کار دَ پاره الله تعالیٰ څما سینه پرانسته کوم دَ پاره چه دَ حضرت ابوبکرؓ او حضرت عمرؓ سینے پرانستے شوے وے. نو ما قرآن دَ قجورو دَ پتو او دَ کانړو دَ تکړو او دَ خلقو دَ سینو (حافظے) نه تلاش کهٔ، او جمع کول مِ شروع کړل، تردے چه دَ سورت توبه

وَجَدْتُ اٰخِرَ سُوْرَةِ التَّوْبَةِ مَعَ اَبِيْ خُزَيْمَةَ الْاَنْصَارِيِّ لَمْ اَجِدْهَا مَعَ اَحَدٍ غَيْرِهٖ لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَتّٰى خَاتِمَةِ بَرَآءَةٌ فَكَانَتِ الصُّحُفُ عِنْدَ اَبِيْ بَكْرٍ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ ثُمَّ عِنْدَ عُمَرَ حَيَاتَهٗ ثُمَّ عِنْدَ حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَؓ.

آخري آيت ما ابوخزيمه انصاري سره بيامند چه بل هيچرته م بيا نه مند او هغه آيت دا وو: لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ، سورة براءت (توبه) آخر پورې. دا صحيفې ابوبكرؓ سره وې تر دې چه الله تعالى هغه وفات كړو (يعني وفات شو) بيا د حضرت عمرؓ ژوند كښې هغه سره وې، بيا بي بي حفصې بنت حضرت عمرؓ (يعني د نبي صلى الله عليه وسلم ...) سره وې.

٩٧٠: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ اَنَّ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهٗ اَنَّ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ قَدِمَ عَلٰى عُثْمَانَ وَكَانَ يُغَازِيْ اَهْلَ الشَّامِ فِيْ فَتْحِ اَرْمِيْنِيَّةَ وَالْاَذْرَبِيْجَانَ مَعَ اَهْلِ الْعِرَاقِ فَاَفْزَعَ حُذَيْفَةَ اخْتِلَافُهُمْ فِي الْقِرَآءَةِ فَقَالَ حُذَيْفَةُ لِعُثْمَانَ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَدْرِكْ هٰذِهِ الْاُمَّةَ قَبْلَ اَنْ يَّخْتَلِفُوْا فِي الْكِتَابِ اخْتِلَافَ الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى فَاَرْسَلَ عُثْمَانُ اِلٰى حَفْصَةَ اَنْ اَرْسِلِيْ اِلَيْنَا بِالصُّحُفِ نَنْسَخُهَا فِي الْمَصَاحِفِ ثُمَّ نَرُدُّهَا اِلَيْكِ فَاَرْسَلَتْ بِهَا حَفْصَةُ اِلٰى عُثْمَانَ فَاَمَرَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ وَعَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَسَعِيْدَ بْنَ الْعَاصِ وَعَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ فَنَسَخُوْهَا فِي الْمَصَاحِفِ وَقَالَ عُثْمَانُ لِلرَّهْطِ الْقُرَشِيِّيْنَ الثَّلٰثَةِ اِذَا اخْتَلَفْتُمْ اَنْتُمْ

٩٧٠: موسٰى، ابراهيم، ابن شهاب، حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي چه حضرت حذيفه بن يمانؓ حضرت عثمانؓ له وراغے، هغه وخت هغه اهل شام و عراق سره خائے كړے وو او د آرمينيا او آذربائيجان د فتح په حقله ئے جنګ كولو. قرائت كښې د اهل عراق او شام اختلاف حضرت حذيفه بے آرامه كړلو نو حضرت حذيفهؓ حضرت عثمانؓ ته اووئيل: اے امير المؤمنين! د دې امت خبر واخله مخكښې د دې نه چه هغوى د يهودو او نصارى په شان كتاب كښې اختلاف اوكړي. حضرت عثمانؓ بي بي حفصېؓ ته خبر اوكړو چه ته هغه صحيفې ماته را اوليږه، مونږ به دا مصحفونو كښې نقل كړو او بيا به ئے تاته واپس كړو. بي بي حفصې هغه صحيفې حضرت عثمانؓ ته اوليږلې. حضرت عثمانؓ حضرت زيد بن ثابتؓ، عبدالله بن زبيرؓ، سعيد بن عاص، عبدالرحمٰن بن حارث بن هشام ته حكم اوكړو، هغوي هغه مصاحفو كښې نقل كړل، او حضرت عثمانؓ درې واړو قريشو ته اووئے، هر كله چه ستاسو او د زيد بن ثابت مينځ كښې د قرآن قرائت كښې څه اختلاف راشي، نو هغه قريشي ژبه

وَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ فِيْ شَيْءٍ مِّنَ الْقُرْاٰنِ فَاكْتُبُوْهُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ فَاِنَّمَا نَزَلَ بِلِسَانِهِمْ فَفَعَلُوْا حَتّٰى اِذَا نَسَخُوا الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ رَدَّ الصُّحُفَ اِلٰى حَفْصَةَ وَ اَرْسَلَ اِلٰى كُلِّ اُفُقٍ بِمُصْحَفٍ مِمَّا نَسَخُوْا وَ اَمَرَ بِمَا سِوَاهُ مِنَ الْقُرْاٰنِ فِيْ كُلِّ صَحِيْفَةٍ اَوْ مُصْحَفٍ اَنْ يُّحْرَقَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَ اَخْبَرَنِيْ خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ سَمِعَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ فَقَدْتُ اٰيَةً مِّنَ الْاَحْزَابِ حِيْنَ نَسَخْنَا الْمُصْحَفَ قَدْ كُنْتُ اَسْمَعُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهَا فَالْتَمَسْنَاهَا فَوَجَدْنَاهَا مَعَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ الْاَنْصَارِيِّ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ فَاَلْحَقْنَا فِيْ سُوْرَتِهَا فِي الْمُصْحَفِ.

کښې اولیکئ، ځکه چه قرآن ذ هغوي ژبه کښې نازل شوے دے. هغوي هم دغسې او کړل، تردې چه هغه صحیفې ئې مصاحِفو کښې نقل کړلې. نو حضرت عثمانؓ هغه صحیفې بي بي حفصې ته واپس اولیږلې. او نقل شوي مصاحِفو کښې ئې یو یو ټولو علاقوته اولیږلو. او حکم ئې اوکړلو چه ذ دې نه سِوا کوم قرآن صحیفه یا مصحف کښې دے هغه دې اوسوزولې شي. ذ ابن شهاب بیان دے. ماته خارجه بن زید بن ثابتؓ ذ حضرت زید بن ثابتؓ قول بیان که، چه ما ذ مصاحفو نقل کولو په وخت ذ سورت احزاب یو آیت بیانهٔ مندلو، حالانکه ما ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه ذ دے آیت لوستل آوریدلے وو. مونږ دا آیت تلاش کهٔ، نو حضرت خزیمه بن ثابت انصاري سره مو بیامندلو (هغه آیت دادے): من المؤمنین رجال صدقوا ما عاهدوا اللّٰه علیه الخ (یعني ایماندارو نه سړي دي چه هغوي اللّٰه سره کړے وعده ریښتیې اوښودله) نو مونږ دا آیت خپل سورت کښې داخل کړلو.

## بَابٌ ۴۶۴: كَاتِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۴۶۴: ذ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ ټولو نه ذ مشهور کاتب بیان.

۱۷۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ ابْنَ السَّبَّاقِ قَالَ اِنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ اَرْسَلَ اِلَيَّ اَبُوْ بَكْرٍ قَالَ اِنَّكَ كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاتَّبِعِ الْقُرْاٰنَ فَتَتَبَّعْتُ حَتّٰى وَجَدْتُ اٰخِرَ سُوْرَةِ

۱۷۹: یحیي بن بکیر. لیث. یونس. ابن شهاب. ابن سباق نه روایت کوي، ذ هغهٔ بیان دے حضرت زید بن ثابت اووے، زهٔ حضرت ابوبکرؓ راوغبښتلم، او وئیلے، چه تا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ذ پاره وحي لیکله، نو قرآنؐ تلاش کړه، ما تلاش کړلو دے پورے چه ذ سورهٔ توبه دوه آخري آیتونه مې ذ حضرت ابو خزیمه انصاري

التَّوْبَةِ اٰيَتَيْنِ مَعَ اَبِيْ خُزَيْمَةَ الْاَنْصَارِيِّ لَمْ اَجِدْهُمَا مَعَ اَحَدٍ غَيْرِهٖ لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ اِلٰى اٰخِرِهٖ.

سره بيامندل، چه ذ هغه نه ما سوا بل هيچا سره نۀ وو (هغه دوه ايتونه دادي) لقد جاء كم رسول من انفسكم عزيز عليه ما عنتم آخر سورة براءة (توبه) رؤف رحيم پورې.

۴۹۷۲: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوْسٰى عَنْ اِسْرَآئِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ لَا يَسْتَوِى الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ادْعُ لِيْ زَيْدًا وَلْيَجِئْ بِاللَّوْحِ وَالدَّوَاةِ وَالْكَتِفِ اَوِ الْكَتِفِ وَالدَّوَاةِ ثُمَّ قَالَ اكْتُبْ لَا يَسْتَوِى الْقَاعِدُوْنَ وَ خَلْفَ ظَهْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمْرُو بْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ الْاَعْمٰى قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَا تَاْمُرُنِيْ فَاِنِّيْ رَجُلٌ ضَرِيْرُ الْبَصَرِ فَنَزَلَتْ مَكَانَهَا لَا يَسْتَوِى الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ غَيْرُ اُولِى الضَّرَرِ.

۴۹۷۲: عبيدالله بن موسى. اسرائيل. ابو اسحاق. حضرت براءؓ نه روايت كوي، ذ هغۀ بيان دې، كوم وخت چه دا آيت نازل شو: لا يستوى القاعدون من المومنين والمجاهدون فى سبيل الله: نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ماته زيد (بن ثابت) راوغواړئ، نو هغۀ تختئ مشوانړې او ذ شانه هډوكي سره راغې (راوي ته شک دې) چه حضور صلي الله عليه وسلّم "الدواة والكتف" يا "الكتف والدواة" فرمائيلي وو. بيا حضورؐ اوفرمائيل، چه آيت: لا يستوى القاعدون الخ: اوليكه. هغه وخت ذ نبي صلي الله عليه وسلّم شاته عمرو بن ام مكتومؓ ناست وو، هغۀ عرض اوكۀ، يا رسول الله، څما متعلق تاسو څۀ فرمائې، زۀ خو نابينا يم، نو په دې خبره دا آيت دا شان نازل شو: لا يستوى القاعدون من المؤمنين فى سبيل الله غير اولى الضرر.

## باب ۴۶۵: اُنْزِلَ الْقُرْاٰنُ عَلٰى سَبْعَةِ اَحْرُفٍ.

## باب ۴۶۵: قرآن شريف په اوو طريقو نازل شوې دې.

۴۹۷۳: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِى اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ

۴۹۷۳: سعيد بن عفير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذ هغۀ بيان دې. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل،

عَبَّاسٍ حَدَّثَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَقْرَاَنِيْ جِبْرِيْلُ عَلٰی حَرْفٍ فَرَاجَعْتُهُ فَلَمْ اَزَلْ اَسْتَزِيْدُهُ وَ يَزِيْدُنِيْ حَتّٰی انْتَهٰی اِلٰی سَبْعَةِ اَحْرُفٍ.

جبرائيل عليه السلام به ما ته قرآن په يو طريقه ښودلو، او ما به وليلې چه څۀ بله طريقه شته، نو ما دې پورې ذ هغۀ نه ذ زياتې مطالبه كوله، چه نوبت اوو طريقو ته اورسيدلو.

۴۷۹: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَبْدِ الْقَارِيِّ حَدَّثَاهُ اَنَّهُمَا سَمِعَا عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيْمٍ يَقْرَأُ سُوْرَةَ الْفُرْقَانِ فِيْ حَيَاةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَمَعْتُ لِقِرَآءَتِهٖ فَاِذَا هُوَ يَقْرَأُ عَلٰی حُرُوْفٍ كَثِيْرَةٍ لَمْ يُقْرِئْنِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكِدْتُّ اُسَاوِرُهُ فِي الصَّلٰوةِ فَتَصَبَّرْتُ حَتّٰی سَلَّمَ فَلَبَّبْتُهُ بِرِدَآئِهٖ فَقُلْتُ مَنْ اَقْرَاَكَ هٰذِهِ السُّوْرَةَ الَّتِيْ سَمِعْتُكَ تَقْرَأُ قَالَ اَقْرَاَنِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ كَذَبْتَ فَاِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَقْرَاَنِيْهَا عَلٰی غَيْرِ مَا قَرَاْتَ فَانْطَلَقْتُ بِهٖ اَقُوْدُهُ اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ اِنِّيْ

۴۷۹: سعيد بن عفير. ليث بن سعد. عقيل. ابن شهاب. عروه بن زبير. مسور بن مخرمه او عبدالرحمٰن بن عبدالقاري نه روايت كوي، ذ دې دواړو بيان دې، مونږ حضرت عمر بن خطابؓ نه واوريدل، چه ما هشام بن حكيم نه ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په ژوند كښې سورة فرقان لوستل واوريدل، ما چه ذ هغۀ قرأت واوريدلو، نو او م ليدل، چه هغه ئې په څۀ بله طريقه وائي ذ هغې نه، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ماته ښودلې وه، قريب وه، چه ما په مانځه كښې په هغۀ حمله كړې وې، ليكن ما صبر اوكۀ، تردې چه هغۀ سلام او گرځولو ما ذ هغۀ څادر ذ هغۀ په گردن كښې واچولو، او تپوس مې ترې اوكۀ، تاته چا دا سورت ښودلې دې كوم چه ما درنه واوريدلو. هغۀ اووې، ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ښودلې دې. ما ورته اووې چه ماته خو ئې په بله طريقه ښودلې دې. نو هغه ما په راښكلو ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر كړلو. او ما عرض اوكۀ (يا رسول اللّٰه) ما دۀ نه سورت فرقان

سَمِعْتُ هٰذَا يَقْرَأُ بِسُوْرَةِ الْفُرْقَانِ عَلٰى عَلٰى حُرُوْفٍ لَمْ تُقْرِأْنِيْهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْسِلْهُ اِقْرَأْ يَا هِشَامُ فَقَرَأَ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةَ الَّتِيْ سَمِعْتُهُ يَقْرَأُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذٰلِكَ اُنْزِلَتْ ثُمَّ قَالَ اِقْرَأْ يَا عُمَرُ فَقَرَأْتُ الْقِرَآءَةَ الَّتِيْ اَقْرَاَنِيْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذٰلِكَ اُنْزِلَتْ اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ اُنْزِلَ عَلٰى سَبْعَةِ اَحْرُفٍ فَاقْرَءُ وْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ.

په هغه طريقه لوستل واورېدل' چه تاسو ماته نه ده ښودلې. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دې پرېږده. بيائې اوفرمائيل' اې هشامه وايه هشام په هغه طريقه لوستل شروع کړل' څنګه چه ترې ما آورېدلې وو' رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' چه داسې هم نازل شوې دې. بيائې اوفرمائيل اې عمره' ته اووايه' نو هغه قرات ما اوکړلو کوم چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته ښودلې وو' نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' چه داسې هم نازل شوې دې. بيشکه دا قرآن په اوو طريقو نازل شوې دې' نو کومه چه درته آسانه وي' په هغه طريقه ئې وايئې.

## باب ٤٦٦: تَاليِفِ الْقُرْاٰنِ.

## باب ٤٦٦: ذَ قرآن ذَ ترتيب بيان.

٤٧٥٩: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ وَ اَخْبَرَنِيْ يُوْسُفُ بْنُ مَاهَكٍ قَالَ اِنِّيْ عِنْدَ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ جَآءَهَا عِرَاقِيٌّ فَقَالَ اَيُّ الْكَفَنِ خَيْرٌ قَالَتْ وَيْحَكَ وَمَا يَضُرُّكَ قَالَ يَا اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَرِيْنِيْ مُصْحَفَكِ قَالَتْ لِمَ قَالَ لَعَلِّيْ اُوَلِّفُ الْقُرْاٰنَ عَلَيْهِ فَاِنَّهُ يُقْرَأُ غَيْرَ مُؤَلَّفٍ قَالَتْ وَمَا يَضُرُّكَ اَيَّهُ قَرَأْتَ قَبْلُ اِنَّمَا نَزَلَ اَوَّلَ مَا نَزَلَ مِنْهُ سُوْرَةٌ مِنَ الْمُفَصَّلِ فِيْهَا ذِكْرُ

٤٧٥٩: ابراهيم بن موسٰي. هشام بن يوسف. ابن جريج. يوسف بن مالک نه روايت کوي' ذَ هغهٔ بيان دې زهٔ اُم المؤمنين بي بي عائشې سره ووم' يو عراقي راغې او تپوس ئې اوکهٔ' کوم کفن بهتر دې. هغې ورته اووې' په تا افسوس دې' تاته څهٔ څيز تکليف درکوي هغهٔ اووې. اې اُمّ المؤمنين' ماته خپل مصحف لږ اوښائې. هغې تپوس اوکهٔ' ولې' هغهٔ اووې' په دې چه زهٔ قرآن ذَ دې ذَ ترتيب موافق کړم خکه چه بعضې خلق ذَ دې ذَ ترتيب خلاف لولي. هغې ورته اووې' هيڅ حرج نشته کوم آيت چه غواړې مخکښې ئې لوله' سورهٔ مفصل کښې ذَ ټولو نه مخکښې هغه سورت نازل شوې دې' چه هغې کښې ذَ جنت او جهنم ذکر دې' تر دې چه کوم وخت خلق اسلام طرف ته مائل شو' نو ذَ حلال او حرام آيتونه

الْجَنَّةِ وَالنَّارِ حَتَّى إِذَا ثَابَ النَّاسُ إِلَى الْإِسْلَامِ نَزَلَ الْحَلَالُ وَالْحَرَامُ وَلَوْ نَزَلَ أَوَّلَ شَيْءٍ لَا تَشْرَبُوا الْخَمْرَ لَقَالُوا لَا نَدَعُ الْخَمْرَ أَبَدًا وَلَوْ نَزَلَ لَا تَزْنُوا لَقَالُوا لَا نَدَعُ الزِّنَا أَبَدًا لَقَدْ نَزَلَ بِمَكَّةَ عَلَى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنِّي لَجَارِيَةٌ أَلْعَبُ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ وَمَا نَزَلَتْ سُورَةُ الْبَقَرَةِ وَالنِّسَاءِ إِلَّا وَأَنَا عِنْدَهُ قَالَ فَأَخْرَجَتْ لَهُ الْمُصْحَفَ فَأَمْلَتْ عَلَيْهِ آيَ السُّوَرَةِ.

نازل شول که مخکښې دا آيت نازل شوې وې چه شراب مه څکئې نو خلقو به ونيلې چه مونږ هيڅ کله شراب نه پريږدو او که دا آيت نازل شوې وې چه زنا مه کوئې نو خلقو به ونيلې چه مونږ هيڅ کله زنا نه پريږدو او کوم وخت چه زۀ کم عمره بچۍ ووم او لوبې به مې کولې نو هغه زمانه کښې په حضور صلي الله عليه وسلّم پـه مکـه کښې دا آيت نازل شولو: بل الساعة موعدهم والساعة ادهٰی و امرّ (چه سورة قمر کښې دې) او سورة بقره او سورة نساء هغه وخت نازل شو کله چه زۀ حضورؐ سره موجوده ووم (يعني مدينه کښې) خير دَ هغې نه پس بي بي عائشهؓ مصحف را اوويستلو او دَ هر سورت آيتونه ئې هغۀ ته اوليکل (چه دې سورت کښې دومره آيتونه دي، دې کښې دومره).

٩٧٦: حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيدَ سَمِعْتُ بْنَ مَسْعُودٍ يَقُولُ فِي بَنِي إِسْرَآئِيلَ وَالْكَهْفِ وَمَرْيَمَ وَطٰهٰ وَالْأَنْبِيَآءِ إِنَّهُنَّ مِنَ الْعِتَاقِ الْأَوَّلِ وَهُنَّ مِنْ تِلَادِي.

٩٧٦: آدم بن ابي اياس. شعبه. هغۀ ابو اسحاق ته اووې، مـا دَ عبدالرحمٰن بن يزيد نه واوريدل، هغۀ اووې مـا دَ ابن مسعودؓ نه، هغۀ اووې، سورة بني اسرائيل او کهف او مريم او طٰهٰ او انبياء خو دَ اول درجې فصيح سورتونه دي او ما پخوا ياد کړي دي.

٩٧٧: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ أَنْبَأَنَا أَبُو إِسْحٰقَ سَمِعَ الْبَرَآءَ قَالَ تَعَلَّمْتُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ قَبْلَ أَنْ يَقْدَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٩٧٧: ابوالوليد. شعبه. ابو اسحاق بيان دې، هغۀ براء بن عازب نه واوريدل هغۀ اووې، ما خو سورة سبح اسم ربک الاعلیٰ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم مدينې ته دَ تشريف راوړلو نه مخکښې ياد کړې وو.

٩٧٨: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي

٩٧٨: عبدان. ابو حمزه. اعمش. شقيق،

حَمْزَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ شَقِيْقٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ قَدْ عَلِمْتُ النَّظَائِرَ الَّتِيْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَؤُهُنَّ اثْنَيْنِ اثْنَيْنِ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ فَقَامَ عَبْدُ اللّٰهِ وَ دَخَلَ مَعَهُ عَلْقَمَةُ وَ خَرَجَ عَلْقَمَةُ فَسَأَلْنَاهُ فَقَالَ عِشْرُوْنَ سُوْرَةً مِنْ أَوَّلِ الْمُفَصَّلِ عَلٰى تَأْلِيْفِ ابْنِ مَسْعُوْدٍؓ اٰخِرُهُنَّ الْحَوَامِيْمُ حٰمٓ الدُّخَانِ وَ عَمَّ يَتَسَاءَلُوْنَ.

هغه اووې ذ عبدالله بن مسعودؓ بيان دې چه زهٔ هغه جوړه سورتونه پيژنم کوم چه به حضور صلي الله عليه وسلّم هر رکعت کښې دوه دوه لوستل' دائې اووې عبدالله پاسيدهٔ (کور ته لاړو) علقمه هم هغه سره لاړو. بيا علقمه بهر رااووتو' نو مونږ ذ هغه نه ذ هغه سورتونو متعلق تپوس اوکړه' هغه اووې' دا ذ مفصل ذ شروع شل سورتونه دي. ذ هغې آخري سورتونه هغه دي چه په اول کښې ئې حٰمٓ دې' حٰمٓ دخان او عمّ يتساء لون.

باب ۴۶۷: كَانَ جِبْرِيْلُ يُعْرِضُ الْقُرْاٰنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ مَسْرُوْقٌ عَنْ عَائِشَةَؓ عَنْ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ أَسَرَّ إِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ جِبْرِيْلَ يُعَارِضُنِيْ بِالْقُرْاٰنِ كُلَّ سَنَةٍ وَ إِنَّهٗ عَارَضَنِي الْعَامَ مَرَّتَيْنِ وَلَا أُرَاهُ إِلَّا حَضَرَ أَجَلِيْ.

باب ۴۶۷: حضرت جبرئيلؑ به ذ حضور صلي الله عليه وسلّم نه ذ قرآن دوره کوله. مسروق ذ بي بي عائشېؓ نه روايت کوي' هغې ذ بي بي فاطمېؓ نه' هغې ذ حضور صلي الله عليه وسلّم نه چه حضور صلي الله عليه وسلّم ځما غوږ کښې دا اوفرمائيل' هر کال به جبرئيلؑ ذ قرآن يوه دوره ماسره کوله دې کال ئې دوه ځله دوره اوکړه. زهٔ پوهيږم ځما ذ مرګ وخت را اورسيدو.

۴۷۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْوَدَ النَّاسِ بِالْخَيْرِ فَأَجْوَدَ مَا يَكُوْنُ فِيْ شَهْرِ رَمَضَانَ لِأَنَّ جِبْرِيْلَ كَانَ يَلْقَاهُ فِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ فِيْ شَهْرِ رَمَضَانَ حَتّٰى

۴۷۹: يحيي بن قزعه. ابراهيم بن سعد. زهري. عبيدالله بن عبدالله. هغهٔ ذ ابن عباسؓ نه' هغهٔ اووې. حضور صلي الله عليه وسلّم خلقو ته په نيکي رسولو کښې زيات سخي وو' او ذ رمضان مياشته کښې خو به نور زيات سخي شو' ځکه چه رمضان کښې به هره شپه جبرائيلؑ' حضورؐ سره ملاقات کولو. رمضان ختميدو پورې به رسول الله صلي الله عليه وسلّم هغهٔ ته قرآن آورولو. بيا کله چه به حضرت جبرئيلؑ' حضور صلي الله

يَنْسَلِخَ يَعْرِضُ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْاٰنَ فَإِذَا لَقِيَهُ جِبْرِيْلُ كَانَ اَجْوَدُ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيْحِ الْمُرْسَلَةِ.

عليه وسلّم سره ملاويدو' نو هغه وخت څو به حضور صلي الله عليه وسلّم سره ملاويدو' نو هغه وخت څو به حضور صلي الله عليه وسلّم ذ روانے هَوا نه هم زيات سخي شو' خلقوته به ئے فائده رسوله.

۹۸۰ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ يَزِيْدُ حَدَّثَنَا اَبُوْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ يَعْرِضُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْاٰنَ كُلَّ عَامٍ مَرَّةً فَعَرَضَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ فِي الْعَامِ الَّذِيْ قُبِضَ وَ كَانَ يَعْتَكِفُ كُلَّ عَامٍ عَشْرًا فَاعْتَكَفَ عِشْرِيْنَ فِي الْعَامِ الَّذِيْ قُبِضَ.

۹۸۰ : خالد بن يزيد. ابوبكر بن عياش. ابو حصين. ابو صالح. هغه ذ ابو هريرةؓ نه ذ هغهٔ بيان دے' حضرت جبرئيلؑ هر كال ذ حضورصلي الله عليه وسلّم نه ذ قرآن دوره كوله' بيا كوم كال چه ذ هغويَ وفات اوشو' نو هغه كال هغهٔ دوه ځلے دور اوكه. او حضور صلي الله عليه وسلّم به هر كال (د رمضان په آخر كښ) لس ورځے اعتكاف كولو. په كوم كال چه وفات كيدو نو په هغه كال ئے شل ورځے اعتكاف اوكهٔ.

## بَابٌ ۴۶۸ : اَلْقُرَّاءِ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۴۶۸ : ذ حضور صلي الله عليه وسلّم اصحابو كښ ذ قرآن قاريان (حافظان) څوك څوك وو.

۹۸۱ : حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ مَسْرُوْقٍ ذَكَرَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُوْدٍ فَقَالَ لَا اَزَالُ اُحِبُّهُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ خُذُوا الْقُرْاٰنَ مِنْ اَرْبَعَةٍ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَّ سَالِمٍ وَّ مُعَاذٍ وَّ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍؓ.

۹۸۱ : حفص بن عمر. شعبه. عمرو بن مره. ابراهيم نخعي. هغهٔ ذ مسروق نه' ذ هغهٔ بيان دے' عبدالله بن عمرو بن عاص ذ عبدالله ابن مسعود ذكر اوكهٔ' وے وئيلے زهٔ هغهٔ سره ذ هغه ورځ نه مينه لرم كله نه چه ما ذ حضور صلي الله عليه وسلّم نه دا واوريدل' چه قرآن ذ څلورو سړو نه زده كړئ' له عبدالله بن مسعودؓ' سالمؓ مولي ابي حذيفهؓ' معاذ بن جبلؓ او ابي بن كعبؓ نه.

۹۸۲ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا شَقِيْقُ بْنُ سَلَمَةَ فَقَالَ خَطَبَنَا

۹۸۲ : عمرو بن حفص. هغه ذ پلار نه. اعمش. هغهٔ ذ شقيق بن سلمه نه. هغهٔ اوورے عبدالله بن مسعودؓ مونږ ته خطبه واوروله نو وے وئيل' په خدائے مِ دے قسم

عَبۡدُ اللّٰهِ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَقَدۡ اَخَذۡتُ مِنۡ فِیۡ رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ بِضۡعًا وَّ سَبۡعِیۡنَ سُوۡرَةً وَّاللّٰهِ لَقَدۡ عَلِمَ اَصۡحَابُ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ اَنِّیۡ مِنۡ اَعۡلَمِهِمۡ بِکِتَابِ اللّٰهِ وَمَا اَنَا بِخَیۡرِهِمۡ قَالَ شَقِیۡقٌ فَجَلَسۡتُ فِی الۡحِلَقِ اَسۡمَعُ مَا یَقُوۡلُوۡنَ فَمَا سَمِعۡتُ رَادًّا یَقُوۡلُ غَیۡرَ ذٰلِكَ.

وي چه ما د اویا نه زیات سورتونه د رسول الله صلي الله علیه وسلّم د خولے مبارکے نه حاصل کړے دي. په خدائے م دے قسم وي، د حضور صلي الله علیه وسلّم اصحابو ته دا معلومه ده، چه زۀ په کتاب الله د هغوي ټولونه زیات پوهیدونکے یم، لیکن دا صحیح ده چه زۀ د هغوي ټولونه بهتر نه یم. د شفیق بیان دے، زۀ ډیرو مجلسونو کښ کیناستم، او د هغوي خبرے م واوریدے، په هغوي کښ م د هیچا نه د دے خبرے تردید کونکے اونۀ لیدلو (یعني د ابن مسعود خبره ئے تسلیموله).

۹۸۳ : حَدَّثَنِیۡ مُحَمَّدُ بۡنُ کَثِیۡرٍ اَخۡبَرَنَا سُفۡیَانُ عَنِ الۡاَعۡمَشِ عَنۡ اِبۡرٰهِیۡمَ عَنۡ عَلۡقَمَةَ قَالَ کُنَّا بِحِمۡصَ فَقَرَاَ ابۡنُ مَسۡعُوۡدٍ سُوۡرَةَ یُوۡسُفَ فَقَالَ رَجُلٌ مَّا هٰکَذَا اُنۡزِلَتۡ قَالَ قَرَاۡتُ عَلٰی رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَحۡسَنۡتَ وَ وَجَدَ مِنۡهُ رِیۡحَ الۡخَمۡرِ فَقَالَ اَتَجۡمَعُ اَنۡ تُکَذِّبَ بِکِتَابِ اللّٰهِ وَ تَشۡرَبَ الۡخَمۡرَ فَضَرَبَهُ الۡحَدَّ.

۹۸۳ : محمد بن کثیر. سفیان. اعمش. ابراهیم. علقمه نه روایت کوي، د هغۀ بیان دے، مونږ حمص کښ وو، هلته ابن مسعودؓ سورۀ یوسف تلاوت کۀ، یو سړي اووے، چه دا شان دا سورت نۀ دے نازل شوے، عبدالله بن مسعودؓ اووے ماخو دا سورت د رسول الله صلي الله علیه وسلّم مخکښ تلاوت کۀ، نو حضورؐ اوفرمائیل، ډیر ښۀ، د هغے سړي د خولے نه (منه) د شرابو بوي راتۀ، حضرت مسعودؓ اووے، تۀ کتاب الله دروغجن کوے، او شراب هم څکے، نو هغۀ باندے ئے حد جاري کړلو.

۹۸۴ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بۡنُ حَفۡصٍ حَدَّثَنَا اَبِیۡ حَدَّثَنَا الۡاَعۡمَشُ حَدَّثَنَا مُسۡلِمٌ عَنۡ مَّسۡرُوۡقٍ قَالَ قَالَ عَبۡدُ اللّٰهِ وَاللّٰهِ الَّذِیۡ لَا اِلٰهَ غَیۡرُهٗ مَا اُنۡزِلَتۡ سُوۡرَةٌ مِّنۡ کِتَابِ اللّٰهِ اِلَّا اَنَا اَعۡلَمُ اَیۡنَ اُنۡزِلَتۡ وَلَا اُنۡزِلَتۡ اٰیَةٌ مِّنۡ کِتَابِ اللّٰهِ اِلَّا اَنَا اَعۡلَمُ

۹۸۴ : عمرو بن حفص. حفص. اعمش. مسلم. مسروق د حضرت عبدالله (بن مسعودؓ) قول نقل کۀ، هغۀ اووے، په خدائے م دے قسم وي، چه د هغۀ نه سِوا بل معبود نشته. د قرآن شریف کوم سورت چه نازل شو، نو زۀ د هغے متعلق پوهیږم (یعني ماته ئے معلومات شته) چه هغه کوم ځائے نازل شو. او کوم آیت چه نازل شو، د هغے متعلق زۀ دا هم پوهیږم، چه د چا باره کښ نازل

فِيْمَ اُنْزِلَتْ وَلَوْ اَعْلَمُ اَحَدًا اَعْلَمُ مِنِّيْ بِكِتَابِ اللّٰهِ تَبْلُغُهُ الْاِبِلُ لَرَكِبْتُ اِلَيْهِ.

شوے دے، او كه زۀ دَ چا متعلق (په دے خبره) پوهه شم، چه هغه په كتاب الله څما نه زيات پوهيږي، نو په اوښ به سور هغۀ له ورځم.

۹۸۵: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَأَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ مَنْ جَمَعَ الْقُرْاٰنَ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَرْبَعَةٌ كُلُّهُمْ مِنَ الْاَنْصَارِ اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَّ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَّ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَ اَبُوْ زَيْدٍ تَابَعَهُ الْفَضْلُ عَنْ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ اَنَسٍ.

۹۸۵: حفص بن عمر. همام. قتاده نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دے، ما دَ حضرت انس بن مالك نه دَ حضور صلي الله عليه وسلّم زمانه كښې دَ قرآن جمع كولو متعلق تپوس اوكۀ نو هغۀ جواب راكۀ، څلورو سړو راجمع كړلو، چه ټول انصاري وو. (۱) حضرت ابي بن كعب (۲) حضرت معاذ بن جبل (۳) حضرت زيد بن ثابت او (۴) حضرت ابو زيد وو. فضل په واسطه دَ دَ حسين بن واقد، ثمامه، حضرت انس دَ دے متابعت كښې روايت كړے دے.

۹۸۶: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ ثَابِتُ الْبُنَانِيُّ وَ ثُمَامَةُ عَنْ اَنَسٍ قَالَ مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَجْمَعِ الْقُرْاٰنَ غَيْرُ اَرْبَعَةٍ اَبُو الدَّرْدَاءِ وَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَّ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَ اَبُوْ زَيْدٍ قَالَ وَ نَحْنُ وَرِثْنَاهُ.

۹۸۶: معلي بن اسد. عبدالله بن مثني. ثابت بناني او ثمامه. حضرت انس نه روايت كوي، دَ هغۀ بيان دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم وفات شولو، نو سوا دَ څلورو سړو نه بل چا قرآن نۀ وو جمع كړے، او هغه كسان دا وو (۱) حضرت ابو درداء (۲) حضرت معاذ بن جبل (۳) حضرت زيد بن ثابت (۴) حضرت ابو زيد. حضرت انس اووے، چه مونږ دَ ابو زيد وارثان شولو.

۹۸۷: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ حَبِيْبِ ابْنِ اَبِيْ ثَابِتٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ عَلِيٌّ اَقْضَانَا وَ اُبَيٌّ اَقْرَؤُنَا وَ اِنَّا لَنَدَعُ مِنْ لَحْنِ اُبَيٍّ وَ اُبَيٌّ يَقُوْلُ اَخَذْتُهُ مِنْ

۹۸۷: صدقه بن فضل. يحيي. سفيان. حبيب بن ابي ثابت. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباس نه روايت كوي، حضرت عمر اووے، مونږ كښې دَ ټولونه ښه فيصله كونكے علي دے او ابي مونږ كښې دَ ټولونه لوئے قاري دے. او مونږ دَ ابي بعضے قرات پريږدو. ليكن ابي وائي، چه ما دا دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه خولے

فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا أَتْرُكُهُ لِشَيْءٍ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ أَوْ نُنْسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَا أَوْ مِثْلِهَا.

مبارک نه آوریدلے دے، په دے وجه ما هغه په هیڅ وجه پریښودے نه شه، حالانکه الله تعالیٰ فرمائیلے دي، چه کوم آیت مونږ منسوخ کړو یا هیر کړو، نو د هغے نه بهتر یا د هغے په مثل راوړو.

## الحمدلله والشکر لله "صحیح بخاري شریف شلمه پاره ختمه شوه"